# فتح الهداية





# هدایة

داول حل لپاره په آسانه معیاري پښتو
دهدایې یوه جامع شرحه

زیاد او ترتیب

مولوی حبیب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربیه

صداقت کتبخانه
کندهار

وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ [القرآن]

# فتح الهداية

پښتو شرح

# هدايه

## د اول ځل لپاره په آسانه معياري پښتو
## د هدايې يوه جامع شرحه




كتاب البيوع - مسائل منثورة


ژباړه او ترتيب:
مولوی حبيب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربية



صداقت كتب خانه- كندهار

بسم الله الرحمن الرحيم



## د کتاب پېژندنه


❁ د کتاب نوم : فتح الهدایه پښتو شرح هدایه

❁ ژباړه او ترتیب : مولوي حبیب الرحمن مدني

❁ ټوک : شپږم

❁ خپرندوی : صداقت کتب خانه/ کندهار

❁ کمپوز/ ډیزاین : صداقت د کتاب چاپولو اداره

❁ د چاپ کال : ۱۳۹۸ ل./ ۱٤٤۰ هـ.ق. / ۲۰۱۹ م.

❁ چاپ شمېر : ۱۰۰۰ ټوکه

د نر لاسه کولو ځای:

**صداقت کتب خانه**

کندهار - افغانستان

تلیفون: ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

ایمېل: sadaqat.books@gmail.com

# فهرس

## فَصْلٌ ........ ۵۴



## بَابُ خِيَارِ الشَّرْطِ ........ ۸۷

## فَصْلٌ فِيْ أَحْكَامِهِ



## فَصْلٌ فِيْمَا يُكْرَهُ

# كِتَابُ الْبُيُوْعِ

(دا) كتاب د خرڅولو او رانيولو (د احكامو په بيان كې) دى

**تشريح:** مخكې تر دې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله "كتابُ الوقف" بيان كړى. اوس "كتابُ البُيُوْعِ" بيانوي، په كتابُ الوقف او كتابُ البيوع كې مناسبت دا دى چې په دواړو كې د مالک ملكيت زائليږي، فرق يې دا دى چې په وقف كې د قاضي او حاكم په حكم او فيصله سره د واقف ملكيت زائليږي (لېكن د موقوف عليه لپاره ملكيت نه ثابتيږي)، او په بيع كې د قاضي له حكم او فيصلې څخه بغير د بائع ملكيت (له مبيع څخه) زائليږي او د مشتري لپاره ملكيت ثابتيږي (يعني مبيع د مشتري په ملكيت كې داخليږي)، دغه فرق ته په كتلو سره وقف د مفرد په درجه كې سو او بيع د مركب په درجه كې سوه. او دومره خو تاسي ته هم معلومه ده چې مفرد پر مركب مخكې وي، نو ځكه دلته صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله مخكې مفرد (وقف) بيان كړى دى، اوس تر هغه وروسته مركب (بيع) بيانوي. او بل دا چې مونږ د كتابُ النكاح په شروع كې ذكر كړه چې مصنف رَحِمَهُ الله اول خالص عبادات يعني "لمونځ، روژه، زكاة او داسي نور" ذكر كړي دي. تر هغه وروسته يې نكاح او طلاق ذكر كړي دي كوم چې د عباداتو او معاملاتو په مينځ كې دي، اوس تر هغه وروسته خالص معاملات يعني "بيوع" ذكر كوي.

البيوع: دلته تاسي دا يوه خبره هم په ياد لرئ! چې بُيُوْع جمع د بَيْع ده. بَيْع د ضرب د باب مصدر دى. او د مصدر والي په وجه بيع د جمع په صيغه سره ذكر كول پكار نه دي (ځكه مصدر اسم جنس دى. پر قليل او كثير دواړو يې اطلاق كيږي)، لېكن څرنګه چې د بيع ډېر انواع او اقسام دي (چې په را روانو صفحو كې به هغوى تېوله ذكر سي). نو په دې مناسبت سره مصنف رَحِمَهُ الله بُيُوع د جمع په صيغه سره ذكر كړى دى. په "نهايه" كې ذكر سوي دي چې د بيع تقريباً شل (٢٠) بلكې له دې څخه زيات انواع او اقسام دي (والكُلّ مذكور في النهاية)، او له هغوى څخه مشهوره اقسام به مونږ انشاء الله څه وروسته ذكر كړو.

**د بيع لغوي معنیٰ:** د بيع لفظ له اضدادو څخه دى، يعني له هغه الفاظو څخه دى كوم چې دوې متضاد معناوي لري (يعني يوه معنیٰ يې د بلې معنیٰ سره ضد وي)، د بيع يوه معنیٰ ده: خرڅول (يعني د مال

په عوض کي يو شی له خپل ملکيت څخه ايستل)، او بله معنیٰ يې ده: رانيول (يعني د مال په عوض کي يو شی په خپل ملکيت کي راوستل)، لکه څرنګه چي د يو عربي شاعر په دې شعر کي د بيع لفظ د رانيولو په معنیٰ سره دی:

وَيَأْتِيكَ بِالْأَخْبَارِ مَنْ لَمْ تَبِعْ لَهُ
بَتَاتًا وَلَمْ تَضْرِبْ لَهُ وَقْتَ مَوْعِدِ

(تاج العروس)

په دغه شعر کي "مَنْ لَمْ تَبِعْ" د "مَنْ لَمْ تَشْتَرِ" په معنیٰ سره دی، خلاصه دا چي "خرڅول" او "رانيول" دواړه د بيع لغوي معنیٰ ده.

**د بيع اصطلاحي تعريف:** "مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ عَلَى وَجْهِ التَّرَاضِيْ" (مال په مال سره بدلول، يو د بل په رضا سره)، يعني د شريعت په اصطلاح کي بيع دې ته وايي چي دوه کسان په خپل خوښی او رضا يو د بل سره د مال تبادله او سودا وکړي.

**د بيع د مشروعيت سبب:** په دنيوي ضروورياتو کي د معاملې او کاروبار په حواله سره جائزه او روا طريقه اختيارول.

**د بيع رکن:** ايجاب او قبول. له عاقدَينو څخه چي کوم د بِعْتُ او اِشْتَرَيْتُ قول صادرېږي په هغه کي اول قول ته "ايجاب" وايي او دويم قول ته "قبول" وايي (په بله وينا دا چي په عاقدَينو کي کوم يو اول د خرڅولو او رانيولو خبره وکړي د هغه خبري ته "ايجاب" وايي او د دويم عاقد خبري ته "قبول" وايي).

**يادونه:** د عَاقِد معنیٰ ده: عقد کونکی، معامله کونکی. له عَاقِدَينو څخه مراد بائع او مشتري دي، ځکه چي دوی يو د بل سره د بيع عقد (معامله) کوي.

**د بيع حکم:** دا دی چي بائع پر ثمن قبضه وکړي او مشتري پر مبيع.

**د بيع شرائط:** دا دي چي عاقد به عاقل او مميز وي او مبيع به متقوّم (قيمت لرونکی) مال وي او عاقد به د هغه پر ورسپارلو قادر وي، وسيجئ ذکرها متفرقاً.

**د بيع فايده:** د عاقدَينو لپاره د دوی په خپل مقبوضه شي کي د تصرف جواز او روايښت. (يعني تر بيع وروسته د هر عاقد لپاره په خپل قبضه کړی سوي شي [ثمن او مبيع] کي تصرف کول جائز ګرځي).

**د بيع ارزښت:** د بيوع يعني د "خرڅولو او رانيولو" د احكامو د پېژندلو او زده كولو د اهميت او ارزښت په هكله د احنافو د ستر امام "امام محمد رَحِمَهُ الله" هغه با معنىٰ قول كافي دى كوم چي علامه زرنوجي رَحِمَهُ الله د خپل كتاب "تعليمُ المتعلّم" په شروع كي ذكر كړى دى چي يو چا له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه پوښتنه وكړه چي: "څه وجه ده ستا (په څېر ستر مصنف) د زهد او تصوف پر موضوع هيڅ كتاب نه دى ليكلى؟". نو هغوى په جواب كي وفرمايل چي: "ما (په فقه كي) كتاب البيوع ليكلى دى".

يعني د زيات زهد، تقوىٰ او بزرګۍ حقيقي معنىٰ دا ده چي انسان په خرڅولو رانيولو، تجارت او كاروبار كي د شريعت احكام او د فقه مسائل په تحقيق سره زده كړي او په هغوى ټينګ عمل وكړي او په هغوى كي له هر ډول حرامو كارونو، شبهاتو او مكروهاتو څخه په پوره توګه ځان وساتي.

همدارنګه كله چي له امام مالک رَحِمَهُ الله څخه پوښتنه وسوه چي: "په دنيا كي د زهد معنىٰ څه ده؟" نو هغوى په جواب كي وفرمايل: "حلال مال ګټل او اميدونه كمول (قصر الأمل)". (تنظيم الدرايه ج: ۱، ص: ۳۹)

## د بيع اقسام:

### بيع د ذات په اعتبار سره پر څلور قسمه ده

① بيع نافذ، ② بيع موقوف، ③ بيع فاسد، ④ بيع باطل

### بيع د مبيع په اعتبار سره پر څلور قسمه ده

① بيع مقايضه، دا بيعُ العَين بالعَين (بيعُ المال بالمال) ته وايي. يعني چي ثمن او مبيع له دواړو طرفونو څخه عَين شى او عَين مال وي، لكه غنم د اوربشو په عوض كي خرڅول. ② بيع صَرف، دا بيعُ الثمن بالثمن ته وايي. لكه دراهم د دينارو په عوض كي خرڅول. ③ بيع سَلم، دا بيعُ الدَّين بالعَين ته وايي. يعني مال او قيمت اوس اخيستل او مبيع وروسته وركول. ④ بيع مطلق، دا بيعُ العَين بالثمن ته وايي. لكه غنم د درهمو په عوض كي خرڅول. همدا د بيع مشهور قسم دى، نو ځكه دې ته مطلق بيع ويل كيږي. (نهايه، عنايه)

## ﴿بيع د ثمن په اعتبار سره پر څلور قسمه ده﴾

① بيع مرابحه: يو شی له خپل قيمت (نرخ) څخه په زيات قيمت خرڅول. ② بيع توليه: يو شی په خپل قيمت خرڅول (يعني په څومره پيسو چي يې رانيولی وي، په هغومره پيسو خرڅول). ③ بيع وضيعهٔ: له خپل قيمت څخه په کم قيمت خرڅول. ④ بيع مساومه: بائع او مشتري چي پر کوم قيمت متفق سي په هغه قيمت خرڅول.

## د بيع د ايجاب صيغې او الفاظ

قَالَ: اَلْبَيْعُ يَنْعَقِدُ بِالْإِيجَابِ وَالْقَبُوْلِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: چي بيع منعقد کيږي په ايجاب وقبول سره إِذَا كَانَا بِلَفْظِ الْمَاضِيْ [په دې شرط] کله چي ايجاب وقبول دواړه د ماضي په لفظ سره وي مِثْلَ أَنْ يَقُوْلَ أَحَدُهُمَا: بِعْتُ وَالْآخَرُ: اِشْتَرَيْتُ مثلاً له عاقدينو څخه يو عاقد ووايي: بِعْتُ (ما خرڅ کړی) او بل ووايي: اِشْتَرَيْتُ (ما رانيوی) لِأَنَّ الْبَيْعَ إِنْشَاءُ تَصَرُّفٍ ځکه چي بيع د تصرف انشاء کول دي [يعني بيع د تصرف ثابتولو او په وجود کي د هغه راوستلو ته وايي] وَالْإِنْشَاءُ يُعْرَفُ بِالشَّرْعِ او انشاء په شريعت سره پېژندل کيږي وَالْمَوْضُوْعُ لِلْإِخْبَارِ قَدْ اُسْتُعْمِلَ فِيْهِ او د خبر ورکولو لپاره وضع کړل سوي صيغې [لکه د ماضي صيغې] شرعاً په انشاء کي استعمال سوي دي فَيَنْعَقِدُ بِهِ نو ځکه د ماضي په صيغه سره به بيع منعقد کيږي وَلَا يَنْعَقِدُ بِلَفْظَيْنِ أَحَدُهُمَا لَفْظُ الْمُسْتَقْبَلِ او په دوو داسي صيغو سره به بيع نه منعقد کيږي چي له هغوی څخه يوه د مستقبل [امر] صيغه وي بِخِلَافِ النِّكَاحِ په خلاف د نکاح وَقَدْ مَرَّ الْفَرْقُ هُنَاكَ او هلته [په كتابُ النكاح کي] فرق تېر سو وَقَوْلُهُ: رَضِيْتُ بِكَذَا أَوْ أَعْطَيْتُكَ بِكَذَا أَوْ خُذْهُ بِكَذَا فِيْ مَعْنٰى قَوْلِهِ: بِعْتُ وَاشْتَرَيْتُ او د سړي دا قول: رَضِيْتُ بِكَذَا (زه په دومره پيسو راضي يم) يا أَعْطَيْتُكَ بِكَذَا (ما تا ته په دومره پيسو درکړی) يا خُذْهُ بِكَذَا (په دومره پيسو يې واخله!) د هغه د دې قول په معنیٰ سره دی: بِعْتُ او اِشْتَرَيْتُ لِأَنَّهُ يُؤَدِّيْ مَعْنَاهُ ځکه چي دغه الفاظ د بِعْتُ او اِشْتَرَيْتُ معنیٰ اداء کوي وَالْمَعْنٰى هُوَ الْمُعْتَبَرُ فِيْ هٰذِهِ الْعُقُوْدِ او په دغه عقودو کي معنیٰ معتبره ده [يعني په معاملاتو کي اعتبار معنیٰ لره دی] وَلِهٰذَا يَنْعَقِدُ بِالتَّعَاطِيْ فِي النَّفِيْسِ وَالْخَسِيْسِ او له همدې

وجهي په نفيس [ګران قيمته] او خسيس [كم قيمته] شي كي په تعاطي سره بيع منعقد كيږي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح روايت دى لِتَحَقُّقِ الْمُرَاضَاةِ ځكه چي [له دواړو طرفونو څخه] رضامندي موجوده ده.

**اللغات**: ﴿يَنْعَقِدُ﴾ د انفعال د باب مضارع ده، د دغه باب ډيري معناوي دي، ځيني دا دي: تړل كېدل، مضبوطېدل (ټينګېدل)، قائمېدل، مطلب يې دا دى چي بيع په ايجاب او قبول سره پوره كيږي او ثابتيږي، ﴿إِيْجَاب﴾ د افعال د باب مصدر دى: مخكي موږ د دې تعريف ذكر كړى دى چي په عاقدَينو (بائع او مشتري) كي چي كوم يو اول د خرڅولو او رانيولو په هكله كلام (خبري) وكړي د هغه كلام ته ايجاب وايي او د دويم عاقد كلام ته قبول وايي؛ ايجاب د اثبات په معنیٰ سره دی، د عاقدَينو په كلام كي اول كلام ته ځكه ايجاب وايي چي هغه د دويم عاقد لپاره د قبول خيار ثابتوي، ﴿إِنْشَاء﴾ د افعال د باب مصدر دى، د دغه باب ډيري معناوي دي، ځيني دا دي: پيدا كول، په وجود كي راوستل (موجودول)، ابتداء كول، وضع كول، ﴿إِخْبَار﴾ دا هم د افعال د باب مصدر دى: خبر وركول، خبرول، ﴿إِنْشَاء تَصَرُّف﴾ يو عقد چي تر اوسه سوى نه وي او موجود نه وي، په وجود كي د هغه راوستلو او د هغه ثابتولو ته "انشاء تصرف" وايي، لكه تر بيع مخكي پر مبيع د مشتري ملكيت او تصرف نه وي، نو د بيع په ذريعه د مشتري د ملكيت (تصرف) ثابتولو او په وجود كي د هغه راوستلو ته "انشاء تصرف" (د تصرف انشاء) وايي، يا مثلاً تر بيع مخكي پر ثمن د بائع ملكيت نه وي، نو د بيع په ذريعه پر ثمن د بائع ملكيت ثابتولو ته "انشاء تصرف" وايي (اثمار الهدايه)، ﴿نَفِيْس﴾ د دې لفظ دوې معناوي دي: غوره (ښه)، ګران بيه او قيمتي شی او د "خَسِيْس" هم دوې معناوي دي: كمي مرتبې والا (كمتره)، كم قيمته (ارزانه) شی، دلته د دواړو لفظونو دويمه معنیٰ مراد ده. (احسن الهدايه)، ﴿تَعَاطِي﴾ د تفاعل د باب مصدر دى: د دې لفظ خپله معنیٰ ده: اخيستل (مصباح اللغات)، او د "بيع تعاطي" تعريف به په تشريح كي ذكر سي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چي بيع په ايجاب و قبول سره منعقد كيږي او قائميږي، يعني كه يو سړی ووايي چي ما خرڅ كړی (بِعْتُ) او بل ووايي چي ما رانيوی (اِشْتَرَيْتُ) نو په دغه ايجاب او قبول سره بيع منعقده او پوره سوه، لېكن شرط دا دى چي د ايجاب او قبول دواړو الفاظ به د ماضي په صيغه سره وي؛ **دليل**: ځكه چي د فعلِ ماضي په استعمالولو سره خبره پخيږي او يقيني كيږي، ځكه په عربي ژبه كي يا فعلِ ماضي ده يا فعلِ مضارع ده، او فعل مضارع د حال او استقبال دواړو لپاره راځي، لهذا كه د استقبال معنیٰ مراد كړل سي نو دا به صرف د خرڅولو يا رانيولو وعده وي، حقيقي او

يقيني خرڅول او رانيول به نه وي (او اُصول دا دی چي په معاملاتو کي خبره پخول او يقيني کول ضروري دي)، نو ځکه د خبري پخولو او د بيع يقيني کولو لپاره به د فعل ماضي صيغه استعمالول کيږي. او په حديثونو کي هم د دې لپاره د ماضي صيغه استعمال سوې ده. چي له هغوی څخه يو حديث دا دی: "عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُوْلَ الله ﷺ بَاعَ حِلْساً وقَدَحاً، وقالَ: مَنْ يشْتَرِيْ هٰذَا الحِلْسَ والقدَحَ؟ فقَالَ رَجُلٌ: أَخَذْتُهُمَا بِدِرْهَمٍ". په دې حديث کي رانيونکي کس "أَخَذْتُهُمَا" ويلي دي او د ماضي صيغه يې استعمال کړې ده. نو ځکه په بيع کي د ماضي صيغه استعمالول ضروري دي.

لأن البيع إنشاء تصرف إلخ: په دې جمله سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې خبري دليل بياتوي چي د بيع د منعقد کېدلو لپاره د ماضي صيغه استعمالول ولي ضروري دي؟ حال دا چي بيع "د تصرف انشاء" ته وايي او انشاء په مستقبل کي کيږي. نو فرمايي: دا خبره چي "انشاء په کومه صيغه سره منعقد کيږي؟" دا په شريعت سره پېژندل کيږي (مطلب دا چي په شريعت کي انشاء په کومه صيغه سره منعقد سوې وي په هغه سره انشاء منعقد کيږي)، او په شريعت کي د ماضي په صيغه سره انشاء منعقد سوې ده (لکه مخکي چي حديث ذکر سو). او بل دليل صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دا بيان کړی دی چي د ماضي صيغه که څه هم د ماضي په زمانه کي د خبر ورکولو لپاره راځي لېکن کله په شرعي توګه د انشاء (مستقبل) لپاره هم استعماليږي. نو ځکه د ماضي په صيغه سره به بيع منعقد کيږي. (اثمار الهدايه)

ولا ينعقد إلخ: فرمايي کله چي قاعده او اُصول دا دی چي ايجاب وقبول به دواړه د ماضي په صيغه سره وي. نو اوس که عاقدين د دغه قاعدې مخالفت وکړي او د ايجاب وقبول په الفاظو کي د يوه لفظ لپاره د مستقبل صيغه يعني د امر صيغه استعمال کړي نو په دې صورت کي بيع نه منعقد کيږي. لېکن نکاح منعقد کيږي: ځکه په بيع کي دا ضروري ده چي د ايجاب وقبول دواړو الفاظ به د ماضي په صيغه سره وي او دلته يو د امر په صيغه سره دی. (صاحب د اثمار الهدايې فرمايي چي دلته له مستقبل څخه د امر صيغه مراد ده. ځکه د کتاب النکاح په شروع کي مصنف رَحِمَهُ الله د مستقبل په مثال کي وفرمايل: "مِثْلَ أَنْ يَقُوْلَ: زَوِّجْنِيْ... (إلخ)". له دې څخه معلومه سوه چي له مستقبل څخه د امر صيغه مراد ده. نه د مضارع صيغه).

په بيع او نکاح کي د فرق وجه دا ده چي د بيع حقوق د وکيل وطرف ته راجع کيږي او د نکاح حقوق د مؤکل (وکيل جوړونکي) وطرف ته راجع کيږي. اوس که يو عاقد په بيع کي يو لفظ د مستقبل په صيغه يعني د امر په صيغه سره استعمال کړي مثلاً زيد وخالد ته ووايي: "بِعْ عَبْدِيْ

بِأَلفٍ" (زما غلام په زر درهمه خرڅ کړه!) نو ګواکي زید دغه خالد د خرڅولو وکیل جوړ کړی (لهٰ: دا چي د امر د صیغې په وجه یو عاقد د بل عاقد له طرفه وکیل جوړیږي)، نو اوس چي خالد (وکیل) د هغه په جواب کي د ماضي صیغه استعمال کړي مثلاً ووایي "اِشْتَرَیْتُ" (چي دغه غلام ما خپله رانیوی) نو یوازي خالد به د ایجاب و قبول (خرڅولو او رانیولو) دواړو وکیل او ذمه وار وګرځي: ځکه چي د مالک له طرفه د ایجاب کولو په صورت کي به هغه مُطَالِب یعني (د حق ا ثمن ا) مطالبه کونکي وګرځي بیا چي هغه په خپله غلام رانیسي نو هغه به مُطَالَب وګرځي یعني له هغه شخصه به (د ثمن) مطالبه کیږي (خلاصه دا چي په دې صورت کي به د حق طلب کول او د حق اداء کول دواړه فقط د یوه کس [خالد] پر ذمه سي) او دا صحیح نه دي چي یوازي یو کس دي هم مطالِب وي او هم دي مطالَب وي، ځکه چي د مطالِب کېدلو په صورت کي به هغه مالک جوړونکی وي او د مطالَب کېدلو په صورت کي به هغه مالک جوړېدونکي وي، په بله وینا دا چي په یوه صورت کي به هغه بائع وي او په بل صورت کي به هغه مشتري وي، او دا صحیح نه دي چي یوازي یو کس (فرد واحد) دي هم بائع وي او هم دي مشتري وي، نو ځکه په دې صورت کي بیْع نه صحیح کیږي.

او څرنګه چي د نکاح حقوق د مؤکل (وکیل جوړونکي) وطرف ته راجع کیږي، نو اوس که سړی د امر صیغه استعمال کړي او ښځي ته ووایي "زَوِّجْنِيْ"[1] او ښځه د خپل نکاح وکیله جوړه کړي بیا ښځه "زَوَّجْتُ" ووایي او خپل ځان د هغهٔ په نکاح کړي نو دا صحیح دي او نکاح منعقده کیږي: ځکه چي د نکاح ټوله حقوق د مؤکل وطرف ته راجع کیږي. نو دلته یوازي دغه ښځه مُطَالِبَه او مُطَالَبَه نه ګرځئ (یعني دلته دا خرابي نه پیښیږي چي فرد واحد (ښځه) دي هم مُطالِب وي او هم دي مُطالَب وي)، بلکي په دې صورت کي به ښځه د خپلو حقوقو اداء کونکې وي او خاوند به د خپلو حقوقو اداء کونکی وي، یعني په دې صورت کي به ښځه د بضع مالک جوړونکې وي (یعني خاوند به د خپل بضع اشرمګاه ا مالک جوړوي) او خاوند به د بضع مالک جوړېدنکي وي، همدارنګه د مهر تملیک به د خاوند له طرفه وي او د مهر قبلول او پر هغه قبضه کول به د ښځي له طرفه وي، لهذا کله چي نکاح له پورتنی خرابي څخه پاکه ده، نو ځکه به هغه منعقد کیږي او صحیح کیږي. په لنډه توګه تاسي دا په یاد لرئ! چي په بیع کي فقط یو کس (فرد واحد) د ایجاب و قبول دواړو وکیل او متولي نه سي جوړېدای

---

[1] د "زَوِّجْنِيْ" معنیٰ ده: ته خپل ځان زما په نکاح کړه! یعني زما سره نکاح وکړه!. نو په دې امر سره ښځه د سړي له طرفه د نکاح وکیله جوړیږي او سړی مؤکل جوړیږي.

او په نکاح کي جوړېدای سي (لهذا کله چي په نکاح کي يوازي يو کس د ماضي صيغه استعمال کړي نو ګواکي د ايجاب وقبول دواړو لپاره يې د ماضي صيغه استعمال کړه. لېکن په بيع کي داسي نه سي کېدای)، نو ځکه په دې صورت کي بيع نه صحيح کيږي او نکاح صحيح کيږي، صاحب د هدايې په "وَقَدْ مَرَّ الْفَرْقُ هُنَاكَ" سره همدغه فرق ته اشاره کړې ده.

وقوله رضيت إلخ: فرمايي چي د بيع "انعقاد" فقط د "بِعْتُ او اِشْتَرَيْتُ" سره خاص نه دی، بلکي هر هغه لفظ کوم چي د "بِعْتُ او اِشْتَرَيْتُ" مطلب او معنىٰ لري په هغه سره بيع منعقد کيږي، نو په "رَضِيتُ بِكَذَا" او "اَعْطَيْتُكَ بِكَذَا" او داسي نورو الفاظو سره هم بيع منعقد کيږي او ثابتيږي؛ ځکه چي دا الفاظ هم د "بِعْتُ او اِشْتَرَيْتُ" په معنىٰ سره دي يعني په دې الفاظو سره هم د خرڅولو او رانيولو لپاره د ايجاب وقبول معنىٰ اداء کيږي، نو ځکه به په دې الفاظو سره بيع منعقد کيږي.

ولهذا إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله د بيع د "انعقاد" دار ومدار پر معنىٰ دی، نو چيري چي هم د بيع معنىٰ موجوده سي بيع به منعقد کيږي، نو ځکه د دغه معنىٰ په وجه "بيع تعاطي" هم منعقد کيږي، "بيع تعاطي" دې ته وايي چي بائع مشتري ته مبيع ورکړي او مشتري هغه ته ثمن ورکړي او په خوله سره ايجاب وقبول نه وکړي او دواړه په بيع راضي سي (مثال يې دا دي چي يو سړي ته مخکي معلومه وي چي مثلاً دا بسکوټ په لس روپۍ دی، او س هغه دا بسکوټ را واخلي او دوکاندار ته لس روپۍ وکړي او دوکاندار هم لس روپۍ واخلي، نه دا سړی "اِشْتَرَيْتُ" ووايي او نه دوکاندار "بِعْتُ" ووايي، بلکي په پټه خوله سودا سره وکړي، دې ته "بيع تعاطي" وايي)، نو څرنګه چي په بيع تعاطي کي هم د بيع معنىٰ او صورت موجود دی، نو ځکه په ګران قيمته او کم قيمته ټولو شيانو کي بيع تعاطي جائز ده، همدا صحيح روايت دی، په "هُوَ الصَّحِيحُ" سره مصنف رَحِمَهُ الله د امام کرخي له قول څخه احتراز کړی دی، هغه فرمايي چي صرف په کم قيمته (حقير) شي کي بيع تعاطي جائز ده، لېکن په ګران بيه شي کي بيع تعاطي جائز نه ده، نو مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي صحيح اول روايت دی چي په هر ډول شيانو کي جائز ده.

نن سبا هم تاسي وينئ چي په دوکانونو او پلورنځيو کي پر ځينو شيانو خپل قيمت ليکلی وي، سړی راسي دوکاندار ته پيسې ورکړي او هغه شی واخلي او دوکاندار له څه ويلو څخه بغير پيسې ځني واخلي، څرنګه چي دواړو ته قيمت معلوم وي او دواړه په دې راضي وي، نو ځکه دا بيع جائز ده.

## د "خيارِ قبول" بيان

قَالَ: وَإِذَا أَوْجَبَ أَحَدُ الْمُتَعَاقِدَيْنِ الْبَيْعَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او كله چې له دواړو عقد كونكو [عاقدينو] څخه يو د بيع ايجاب وكړي فَالْآخَرُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ قَبِلَ فِي الْمَجْلِسِ وَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ نو بل [دويم] عقد كونكي [عاقد] ته اختيار دى كه خوښه يې وي نو [د ايجاب] په مجلس كې دې قبول وكړي او كه خوښه يې وي نو هغه دې رد كړي وَهٰذَا خِيَارُ الْقَبُولِ او دا "خيار قبول" دى [يعني دغه اختيار ته "خيارِ قبول" وايي] لِأَنَّهُ لَوْ لَمْ يَثْبُتْ لَهُ الْخِيَارُ ځكه كه د بل عاقد لپاره دغه اختيار ثابت نه سي يَلْزَمُهُ حُكْمُ الْعَقْدِ مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ نو د هغه له رضا څخه بغير به پر هغه د عقد [بيع] حكم لازم سي وَإِذَا لَمْ يُفِدِ الْحُكْمَ بِدُوْنِ قَبُوْلِ الْآخَرِ او كله چې د بل عاقد له قبول څخه بغير ايجاب د حكم فايده نه وركوي فَلِلْمُوْجِبِ أَنْ يَرْجِعَ عَنْهُ نو ايجاب كونكي لره به دا اختيار وي چې له خپل ايجاب څخه رجوع وكړي لِخُلُوِّهِ عَنْ إِبْطَالِ حَقِّ الْغَيْرِ ځكه چې دا رجوع د بل چا د حق له باطلولو څخه خالي ده [يعني د دغه رجوع په وجه د دويم عاقد حق نه باطليږي] وَإِنَّمَا يَمْتَدُّ إِلَى آخِرِ الْمَجْلِسِ لِأَنَّ الْمَجْلِسَ جَامِعُ الْمُتَفَرِّقَاتِ او "خيار قبول" [په دې وجه] د مجلس تر آخره پورې اوږديږي [پاتېږي] ځكه چې مجلس د بېلابېلو شيانو جمع كونكى دى فَاعْتُبِرَتْ سَاعَاتُهُ سَاعَةً وَاحِدَةً دَفْعًا لِلْعُسْرِ وَتَحْقِيْقًا لِلْيُسْرِ نو ځكه د تنګى [سختى] د لېرې كولو او د آسانى د ثابتولو لپاره د مجلس تمام ساعتونه يو ساعت شمارل سوي دي [يعني د يوه مجلس تمام ساعتونه او ګړيان د يوه ساعت او يوه ګړي په څېر شمارل سوي دي] وَالْكِتَابُ كَالْخِطَابِ او خط ليكل د مخامخ خبري كولو په څېر دي وَكَذَا الْإِرْسَالُ او همدارنګه پيغام استول هم [د مخامخ خبري په څېر دي] حَتّٰى أُعْتُبِرَ مَجْلِسُ بُلُوْغِ الْكِتَابِ وَأَدَاءِ الرِّسَالَةِ تر دې چې د خط رسېدلو او د پيغام رسولو د مجلس اعتبار به كيږي وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَقْبَلَ فِي بَعْضِ الْمَبِيْعِ او بائع لره دا اختيار نسته چې د مبيع په بعضي حصه كي بيع قبول كړي وَلَا أَنْ يَقْبَلَ الْمُشْتَرِيْ بِبَعْضِ الثَّمَنِ او نه مشتري لره دا اختيار سته چې د بعضي قيمت په عوض كي [مبيع] قبول كړي لِعَدَمِ رِضَا الْآخَرِ بِتَفَرُّقِ الصَّفْقَةِ ځكه چې [په دې صورت كي] د معاملې د جلا كېدلو

ابېلېدلو ا په وجه د عاقد رضا نسته ايعني دويم عاقد په دې راضي نه دی؛ ځکه چي په دې سره يوه معامله دوه ځايه کيږي ا إِلَّا إِذَا بَيَّنَ ثَمَنَ كُلِّ وَاحِدٍ مګر دا چي د هر يوه اجلا. جلا ا قيمت بيان کړي لِأَنَّهُ صَفَقَاتٌ مَعْنًى ځکه چي دا د معنیٰ په اعتبار سره څو معاملې دي ايوه معامله نه ده ا.

**اللغات:** ﴿أَوْجَبَ﴾ ايجاب کول. ﴿مُتَعَاقِدِ﴾ د تفاعل اسم فاعل دی: عقد کونکی. معامله کونکی. عاقد. ﴿لَمْ يُفِدْ﴾ د افعال له بابه د جحد صيغه ده: فايده کول. فايده ورکول. ﴿خُلُوّ﴾ د نصر مصدر دی: خالي کېدل. ﴿يَمْتَدّ﴾ د افتعال مضارع ده: اوږدېدل. ﴿سَاعَة﴾ د دې لفظ دوې معناوي دي: ګړی (لمحه)، ګېنټه (ساعت). دلته ځني مراد ګړی دی (اثمار الهدايه). ﴿عُسْر﴾ تنګي. ﴿يُسْر﴾ آساني. ﴿كِتَاب﴾ مراد ځني مکتوب دی يعني خط. ﴿خِطَاب﴾ مخامخ خبره کول. مخاطب کول. ﴿إِرْسَال﴾ د افعال مصدر دی: استول. د يو چا په ذريعه پيغام استول. ﴿رِسَالَة﴾ پيغام. ﴿اداءُ الرِّسَالَة﴾ پيغام اداء کول يعني پيغام رسول. ﴿صَفْقَة﴾ يوه معامله. يوه بيع. د دې لفظ خپله معنیٰ ده: لاسونه سره وهل، چکچکه کول. د خرڅلاو او سودا په وخت يو د بل پر لاس باندي لاس وهل. دلته ځني مراد معامله او بيع ده. يوې معاملې ته صفقه وايي او دوو معاملو ته صفقتين وايي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله په عاقدينو کي يو عاقد د بيع ايجاب وکړي نو اوس بل عاقد ته د ايجاب په مجلس کي د بيع قبلولو او نه قبلولو دواړو اختيار دی. مثلاً که د بائع له طرفه ايجاب وسي، نو مشتري ته په مجلس کي دننه د قبول او رد دواړو اختيار سته، او د فقهاؤ په نېز دغه اختيار ته "خيار قبول" وايي؛ د "خيار قبول" د ثبوت وجه دا ده چي که د يوه عاقد تر ايجاب وروسته بل (دويم) عاقد ته "خيار قبول" نه ورکول سي، نو د هغه د رضا او خوښي په خلاف به په جبر او زور سره پر هغه دغه عقد قبلول لازم سي. او موږ مخکي ووېل چي د بيع د انعقاد او صحيح کېدلو لپاره د دواړو عاقدينو رضا ضروري ده، نو په دې وجه د يوه عاقد تر ايجاب وروسته دويم عاقد ته "خيار قبول" ورکول سوی دی چي په بشپړه توګه (علی وجه الکمال) د بيع معنیٰ حاصله سي.

وإذا لم إلخ: فرمايي کله چي د دويم عاقد له قبول څخه بغير د اول عاقد ايجاب هيڅ حکم نه فايده کوي (يعني د دويم عاقد له قبول څخه بغير پر هغه عقد نه لازميږي) نو څرنګه چي په دې صورت کي دويم عاقد ته د ردولو (نه قبلولو) اختيار سته. همداسي به اول عاقد يعني موجب (ايجاب کونکي) ته هم له خپل ايجاب څخه د رجوع کولو اختيار وي؛ ځکه چي يوازي ايجاب څه اهميت نه

سره يې يعني فقط د يوه عاقد په ايجاب کولو سره د بل (دويم) عاقد هيڅ حق د عقد سره نه متعلق کيږي، او کله چي عقد د دويم عاقد د حق سره متعلق نه دی. نو اوس د هغه په باطلولو (ابطال) کي هيڅ حرج نسته، نو په دې وجه موجب لره دا اختيار سته چي له خپل ايجاب څخه رجوع وکړي. په دې شرط چي دويم عاقد هغه قبول کړی نه وي يا هغه انکار کړی وي.

وإنما يمتدّ إلى آخر المجلس إلخ: په دې سره د يو مقدر اعتراض جواب ورکوي. اعتراض دا دی چي د موجب مثلاً د بائع تر ايجاب وروسته د دويم عاقد (مشتري) "خيارِ قبول" ولي د مجلس سره خاص دی (يعني څه وجه ده چي تاسي "خيار قبول" د مجلس سره خاص کړی دی؟)

د دې جواب دا دی چي په دې کي د بائع او مشتري دواړو فايده ده؛ په دې توګه چي مشتري ته به په مجلس کي دننه د فکر او غور کولو او په سوچ سره د سودا کولو موقع حاصله سي. او د بائع لپاره په دې توګه آساني ده چي پر هغه به د لږ وخت لپاره انتظار کول لازم سي يعني فقط د مجلس تر آخره پوري به هغه د ثمن او د مشتري د قبول يا رد انتظار وکړي، لېکن که چيري تر ايجاب وروسته فوراً قبول لازم وګرځول سي نو په دې صورت کي که څه هم د بائع فايده سته چي هغه ته به فوراً د هو! يا نه! جواب حاصل سي مګر په دې کي د مشتري نقصان دی چي بغير له فکر او سوچ څخه به پر هغه سودا کول لازم سي. يا که چيري پر ما وراء د مجلس "خيار قبول" موقوف کړی سي، نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي د مشتري فايده ده چي هغه به په آرام او اطمينان سره په سودا کي سوچ او فکر وکړي. لېکن په دې صورت کي بيا د بائع نقصان دی چي هغه به تر ډېر وخته پوري په انتظار وي او ټوله وخت به يې د مشتري وطرف ته غوږ نيولی وي چي مشتري صاحب به کله ما ته خبر راکړي، لنډه دا چي د دغه دواړو صورتونو په اختيارولو کي د بائع يا مشتري نقصان دی. نو ځکه يو داسي جامع صورت اختيار کړی سو چي په هغه کي د دواړو فايده هم سته او په هغه کي يوه ته د شکايت او ګيله کولو موقع هم نسته. او بل دا چي مجلس متفرق (بېلابېل) شيان سره جمع کوي، يعني د يوه مجلس ټوله ساعتونه د يوه ساعت په څېر شمارل سوي دي، مثلاً که د سجدې آيت په يوه مجلس کي يو وار ووېل سي نو يوه سجده واجبيږي همدارنګه که په يوه مجلس کي لس واره د سجدې آيت ووېل سي نو هم يوه سجده واجبيږي. ځکه چي د مجلس ټوله ساعتونه يو ساعت شمارل سوی دی (همدې ته "المجلس جامع للمتفرقات" ويل سوي دي). نو همداسي به دلته هم د مجلس ټوله ساعتونه د يوه ساعت په څېر شمارل کيږي يعني برابره ده مشتري د مجلس په شروع کي قبول وکړي او که په آخر کي يې وکړي دا به په يوه ساعت کي شمارل کيږي او په حکم کي به سره برابر وي. لهذا

که بالکل د مجلس په آخر کي مشتري قبول وکړي نو دا به ویل کیږي چي اوس دستي ایجاب وسو او همدا اوس دستي هغه قبول وکړی.

والکتاب کالخطاب: د دې حاصل دا دی چي شریعت د غائب عاقد خط او تحریر ته د حاضر عاقد د تکلم او خبري درجه ورکړې ده، لهذا څرنګه چي د حاضر عاقد په خبري سره عقد منعقد کیږي، همداسي د غائب عاقد په خط او تحریر سره هم عقد منعقد کیږي، همدارنګه په اوسنۍ زمانه کي د ټیلفیون، موبائل او ایمیل په پیغام سره هم عقد منعقد کیږي، او څرنګه چي د حاضر بائع تر ایجاب وروسته مشتري ته په مجلس کي دننه "خیار قبول" حاصلیږي، همداسي که غائب بائع د خط یا قاصد په ذریعه ایجاب وکړي او مشتري ته پیغام ورسیږي، نو هم مشتري ته په مجلس کي دننه د قبول او رد اختیار حاصلیږي که چیري هغه په مجلس کي دننه قبول وکړي نو بیع پوره کیږي، کنې د بائع ایجاب باطلیږي او بیع رد کیږي.

ولیس له أن یقبل إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله مشتري مثلاً په دوو شیانو یا ډیرو شیانو کي ایجاب وکړي، یعنې بائع ته ووایي چي زه مثلاً دغه دواړه پسونه ستا څخه په زر درهمه (۱۰۰۰) رانیسم، نو بائع ته دا اختیار نسته چي هغه فقط په یوه پُسه کي بیع قبول کړي، همدارنګه که بائع په دوو شیانو کي ایجاب وکړي، مثلاً ووایي زه دغه دواړه پسونه په زر درهمه خرڅوم، نو اوس مشتري ته دا اختیار نسته چي فقط یو پُسه په پنځه سوه (۵۰۰) درهمه رانیسي (دا په هغه وخت کي کله چي بائع په دې راضي نه وي)؛ ځکه چي د دواړو پسونو بیع یوه ده، او په دې کي د یوه پُسه په اخیستلو سره صفقه او معامله سره جلا کیږي او دوې صفقې ګرځي، او یوه صفقه دوې صفقې ګرځول جائز نه دي. (او که مشتري ووایي چي زه فقط یو پُسه په پنځه سوه درهمه رانیسم او بائع په دې راضي سي، نو اوس ګواکي د مشتري له طرفه ایجاب وسو او د بائع له طرفه قبول وسو، نو ځکه په دې صورت کي د یوه پُسه بیع صحیح کیږي).

ها! که چیري بائع د دواړو پسونو قیمت جلا، جلا بیان کړي، مثلاً ووایي چي د یوه پُسه قیمت پنځه سوه درهمه دي او د بل پُسه قیمت هم پنځه سوه درهمه دي، نو په دې صورت کي مشتري یو پُسه په پنځه سوه درهمه رانیولای سي.

ولا أن یقبل المشتري ببعض إلخ: د دې مثال دا دی چي که بائع ووایي: زه دغه دواړه پسونه په پوره زر درهمه خرڅوم، او مشتري ووایي چي ما دواړه په اته سوه (۸۰۰) درهمه رانیول، نو داسي نه سي کولای؛ ځکه چي دا هم تفریقِ صفقه سوه (ځکه بائع د زرو درهمو ایجاب کړی دی او مشتري د اتو سوو قبول

کړی دی، نو دې ته هم تفریق صفقه وایي) او بائع په دې راضي نه دی، نو ځکه بیع به نه منعقد کیږي او مشتري لره به داسي اختیار نه ثابتیږي (ها! که بائع په دې راضي سي چي په اته سوه درهمه یې رانیسه!، نو په دې صورت کي بیع منعقد کیږي او صحیح کیږي، ځکه چي بائع په اته سوه راضي سو).

## ﴿د خیار شپږ قسمونه﴾

خیار پر شپږ قسمه دی:

(۱)... **خیارِ قبول**: د یوه عاقد تر ایجاب کولو وروسته دویم عاقد ته د قبلولو او ردولو (اخیستلو او نه اخیستلو) اختیار حاصلیږي، دې ته "خیارِ قبول" وایي.

(۲)... **خیارِ مجلس**: تر ایجاب وقبول وروسته د مجلس تر ختمېدلو پوري چي د قبلولو او ردولو کوم اختیار حاصلیږي، دې ته "خیارِ مجلس" وایي. (زموږ په نېز په بیع کي تر ایجاب وقبول وروسته عاقدَینو ته خیارِ مجلس نه حاصلیږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز حاصلیږي، څه وروسته به د دې بحث ذکر سي).

(۳)... **خیارِ شرط**: تر ایجاب وقبول وروسته چي مشتري یا بائع درې ورځي اختیار واخلي، نو دې ته "خیارِ شرط" وایي.

(۴)... **خیارِ رؤیت**: مشتري چي مبیع لیدلې نه وي او په دې صورت کي ایجاب وقبول وکړي، نو تر مبیع لیدلو وروسته هغه ته د اخیستلو او نه اخیستلو اختیار حاصلیږي، دې ته "خیارِ رؤیت" وایي.

(۵)... **خیارِ عیب**: تر ایجاب وقبول وروسته چي په مبیع کي یو غټ عیب ولیدل سي، نو د هغه په وجه مشتري ته د مبیع واپس کولو اختیار حاصلیږي، دې ته "خیارِ عیب" وایي.

(۶)... **خیارِ أخذ**: د مبیع اخیستلو اختیار، که په مبیع کي دوکه او فرېب سوی وي، نو د هغه په وجه مشتري ته د مبیع اخیستلو او نه اخیستلو اختیار حاصلیږي، دې ته "خیارِ أخذ" وایي.

## په کوم شي سره ایجاب باطلیږي؟

وَأَيُّهُمَا قَامَ عَنِ الْمَجْلِسِ قَبْلَ الْقَبُوْلِ او په عاقدینو کې چې کوم یو هم تر قبول کولو اعقد قبلولو ا مخکې له مجلس څخه ولاړ سي بَطَلَ الْإِيْجَابُ نو ایجاب باطلیږي لِأَنَّ الْقِيَامَ دَلِيلُ الْإِعْرَاضِ وَالرُّجُوْعِ ځکه چې ولاړېدل د اعراض کولو او اله خپلې خبرې څخه دا رجوع کولو دلیل دی وَلَهُ ذٰلِكَ او په عاقدینو کې هر یوه ته د دې اختیار سته عَلٰى مَا ذَكَرْنَاهُ لکه [مخکې] چې موږ دا [خبره] ذکر کړه.

**اللغات**: ﴿إِعْرَاض﴾ د افعال مصدر دی: مخ اړول، توجه نه کول (مراد ځني نه قبلول دي).

**تشریح**: د عبارت مطلب دا دی چې څرنګه په صراحتاً رد کولو (ردولو) سره ایجاب باطلیږي، همدارنګه په دلالتاً رد کولو سره هم ایجاب باطلیږي، نو که یو عاقد ایجاب وکړي چې مثلاً دغه دوه پسونه په زر درهمه خرڅوم او بیا دا عاقد (بائع) د دویم عاقد (مشتري) تر قبول کولو مخکې له مجلس څخه ولاړ سي او له خپل ځایه لیرې سي نو مجلس ختمیږي او ایجاب باطلیږي او تر دې وروسته مشتري دغه ایجاب نه سي قبلولای: ځکه چې له مجلس څخه ولاړېدل د اعراض کولو او له ایجاب څخه د رجوع کولو دلیل دی (نو دغه عاقد په ولاړېدلو سره دلالتاً خپل ایجاب رد کړی). همدارنګه که دویم عاقد له مجلس څخه ولاړ سي نو دا له قبول څخه د رجوع کولو (او د ایجاب رد کولو) دلیل دی. او مخکې تاسو وویل چې په عاقدینو کې هر یوه ته د اعراض او رجوع کولو اختیار سته یعني مُوجب ته د رجوع اختیار سته او دویم عاقد ته د رد او قبول اختیار "خیار قبول" سته.

**یادونه**: دلته تاسې دا خبره په یاد لرئ! چې له "قَامَ عَنِ الْمَجْلِس" څخه محض ولاړېدل مراد نه دي. بلکې تر ولاړېدلو وروسته تلل، او بل ځای ته منتقل کېدل ځني مراد دي (یعني ایجاب هغه وخت باطلیږي کله چې عاقد له مجلس څخه ولاړ سي. له خپل ځایه لیرې سي او بل ځای ته نقل سي)؛ ځکه که مَحض ولاړېدل مراد وای نو صاحب د کتاب به د "قَامَ فِي الْمَجْلِس" جمله استعمال کړې وای، نه "قَامَ عَنِ الْمَجْلِس"، لهذا دلودې طرف ته اشاره ده چې مطلق قیام (ولاړېدل) مراد نه دي، بلکې قیام مع الانتقال مراد دی.

او دا خبره هم په یاد لرئ! چې په هر هغه عمل سره مجلس ختمیږي او ایجاب باطلیږي کوم چې پر اعراض دلالت کوي. مثلاً د یوه عاقد تر ایجاب وروسته دویم عاقد په یو بل جلا کار مشغوله سي نو د ایجاب مجلس ختمیږي او ایجاب باطلیږي.

## تر ایجاب وقبول وروسته د بیع لازمېدلو بیان

وَإِذَا حَصَلَ الْإِيجَابُ وَالْقَبُولُ او کله چي ایجاب و قبول حاصل سي ایعني کله چي د عاقدینو په مینځ کي ایجاب وقبول پوره سي] لَزِمَ الْبَيْعُ نو بیع لازمه سوه وَلَا خِيَارَ لِوَاحِدٍ مِنْهُمَا إِلَّا مِنْ عَيْبٍ أَوْ عَدَمِ رُؤْيَةٍ او [تر دې وروسته] په دواړو عاقدینو [بائع او مشتري] کي یوه عاقد ته هم خیار نسته، مګر [د مبیع] له عیب او نه لیدلو څخه [یعني مګر له "خیارِ عیب" او "خیار رؤیت" څخه] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَثْبُتُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا خِيَارُ الْمَجْلِسِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [اوس هم] په عاقدینو کي د هر یوه لپاره "خیار مجلس" ثابتیږي لِقَوْلِهِ عليه السلام: «الْمُتَبَايِعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا»[1] ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: چي دواړو عاقدینو ته اختیار دی تر څو چي سره جلا سوي نه وي وَلَنَا: أَنَّ فِي الْفَسْخِ إِبْطَالُ حَقِّ الْآخَرِ او زموږ دلیل دا دی: چي د عقد په فسخ کولو کي د بل عاقد د حق باطلول سته فَلَا يَجُوزُ نو ځکه دا به جائز نه وي وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ عَلَى خِيَارِ الْقَبُولِ او حدیث پر "خیار قبول" حمل کړی سوی دی وَفِيهِ إِشَارَةٌ إِلَيْهِ او په حدیث کي ودې طرف ته اشاره هم ده فَإِنَّهُمَا مُتَبَايِعَانِ حَالَةَ الْمُبَاشَرَةِ لَا بَعْدَهَا ځکه چي عاقدین د مباشرت [معامله کولو] په حالت کي متبایعان (بیع کونکي) دي، نه تر هغه وروسته أَوْ يَحْتَمِلُهُ یا حدیث د "خیار قبول" احتمال لري فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ نو ځکه به پر هغه حمل کیږي وَالتَّفَرُّقُ فِيهِ تَفَرُّقُ الْأَقْوَالِ او په حدیث کي له تفرق څخه "تفرق اقوال" مراد دی.

**اللغات:** ﴿مُتَبَايِعَان﴾ د تفاعل تثنیه اسم فاعل دی: یو د بل سره بیع کونکی. معامله کونکی. ﴿لَمْ يَتَفَرَّقَا﴾ د تفعل له بابه د تثنیه غائب جحد صیغه ده: جلا کېدل. سره بېلېدل. په پورتني حدیث کي د "يَتَفَرَّقَا" دوې ترجمې او معناوي دي: ① یوه ترجمه یې د "تفرق ابدان" ده. یعني چي تر ایجاب و قبول وروسته دواړه عاقدین په جسماني اعتبار سره جلا سي او د دواړو مجلس بدل سي. دا ترجمه یې امام شافعي رَحِمَهُ الله اخیستې ده. یعني هغه فرمایي چي تر ایجاب وقبول کولو وروسته چي هم تر څو دواړه عاقدین په جسماني توګه سره جلا سوي نه وي. تر هغه وخته پوري دواړو ته د قبول او رد (اخیستلو او نه اخیستلو) اختیار سته چي هغه ته "خیار مجلس" وايي. ② دویمه ترجمه یې د "تفرق اقوال" ده. یعني چي د یوه

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب التجارات، باب البيعان بالخيار ما لم يتفرقا، حديث رقم: ۲۱۸۱.

عاقد تر ايجاب وروسته دويم عاقد قبول وکړي، د دې مطلب دا دی چې د يوه عاقد تر ايجاب وروسته چې تر شو پورې دويم عاقد قبول نه وکړي تر هغه وخته پورې دوی ته د قبول او ردّ اختيار سته چې هغه ته "خيارِ قبول" وايي، او که قبول وکړي نو بيا که څه هم مجلس پاته وي، دوی ته د هغه هيڅ اختيار نسته، دا زموږ مسلک دی، ﴿فَسْخ﴾ د فتح مصدر دی: معامله او سودا ماتول، ختمول. ﴿مُبَاشَرَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: په خپله يو کار کول. حَالَةَ الْمُبَاشَرَة: د معامله کولو حالت، يعني د ايجاب وقبول کولو دوران.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې کله د عاقدَينو په مينځ کې ايجاب وقبول وسي، نو اوس بيع ثابته او لازمه سوه، يعني بائع د ثمن مالک سو او مشتري د مبيع مالک سو، تر دې وروسته د يوه عاقد لپاره هم له خيارِ عيب او خيارِ رؤيت څخه بغير بل خيار يعني "خيارِ مجلس" نه ثابتيږي، همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک دی، د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې تر عقد پوره کېدلو وروسته هم د عاقدَينو لپاره بل خيار يعني "خيارِ مجلس" ثابتيږي، همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله مسلک دی.

**د امـــام شـــافعي دليـــل**: د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل په کتاب کې ذکر سوی حديث دی يعني "الْمُتَبَايِعَان... إلخ"، هغه فرمايي چې په دغه حديث شريف کې د عاقدَينو لپاره د "مُتَبَايِعَان" صيغه استعمال سوې ده، او عاقدَينو ته صرف تر عقد وروسته "مُتَبَايِعَان" ويل کيږي، نه تر عقد مخکې، همدارنګه دلته په "مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا" کې له تفرق څخه "تفرّق ابدان" مراد دی، او د حديث مطلب دا دی چې له "تفرّق ابدان" څخه مخکې تر ايجاب وقبول وروسته هم عاقدَينو ته اختيار حاصل دی چې که دوی وغواړي نو عقد دې نافذ کړي کنې فسخ دې يې کړي، او ښکاره خبره ده چې تر ايجاب وقبول والا وروسته اختيار "خيارِ قبول" نه وي، بلکې "خيارِ مجلس وي"، نو ځکه موږ وايو چې تر ايجاب وقبول کولو (عقد پوره کېدلو) وروسته به هم عاقدَينو ته "خيارِ مجلس" حاصليږي.

**زموږ دليل**: صاحب د هدايې زموږ د مسلک لپاره صرف عقلي دليل پېش کړی دی، لېکن نورو شارحينو پر دغه موقع نقلي دليلونه هم ذکر کړي دي، زموږ نقلي دليل د قرآن کريم دا آيت دی: ﴿يَأَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا أَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ... إلخ﴾ [سورة المائدة: ۱]، الله تعالىٰ په دغه آيت کې مسلمانانو ته د عقد د پوره کولو حکم کړی دی او بيع هم يو عقد دی، لهذا د هغه پوره کول هم ضروري دي، همدارنګه په حديث کې ذکر سوي دي چې "الْمُسْلِمُوْنَ عِنْدَ شُرُوْطِهِمْ" يعني مسلمانان د خپلو شرطونو مطابق معاملات کوي (يعني څنګه شرط چې يې لګولی وي هغسې معامله به کوي)، او

عاقدینو هم دلته د بیع نافذولو شرط لګولی دی، یعني (په ایجاب وقبول کولو سره) هر عاقد له خپل ملکیت څخه د خپل مملوک شي د ایستلو او د بل عاقد د مملوک شي د حاصلولو شرط لګولی دی، لهذا دا شرط به لازم وي او د دوی په مینځ کي کېدونکي عقد به منعقد کیږي، او که چیري دلته خیار مجلس ثابت ومنل سي نو په دې صورت کي به د دغه شرط باطلېدل لازم سي، یعني تر ایجاب وقبول کولو (عقد پوره کېدلو) وروسته به د عقد فسخ کول لازم سي کوم چي په هیڅ توګه صحیح نه دي.

زموږ د عقلي دلیل حاصل دا دی چي کله په یوه مجلس کي ایجاب وقبول دواړه سره جمع سوه، نو بیع لازمه او پوره سوه، لهذا کله چي بیع لازمه سوه نو په عاقدینو کي د هر یوه حق د بیع سره متعلق سو، یعني د ثمن سره د بائع حق متعلق سو او د مبیع سره د مشتري حق متعلق سو، نو اوس چي په عاقدینو کي کوم یو هم دغه بیع فسخ کوي هغه به د بل چا د حق باطلونکی سي (یعني د خپل ملګري "عاقد" د حق باطلونکي به وګرځي)، او د بل چا له رضا څخه بغیر د هغه حق باطلول صحیح نه دي، او د بل چا حق باطلول (ابطال حق الغیر) هغه وخت لازمیږي کله چي تر عقد پوره کېدلو وروسته خیار مجلس ثابت ومنل سي، نو په دې وجه موږ خیار مجلس ثابت نه منو، کنې دا خرابي به منځ ته راسي.

والحدیث محمول إلخ: امام شافعي رَحِمَهُ الله د خیار مجلس پر ثبوت باندي په دې حدیث "المُتَبَایِعَانِ... إلخ" سره دلیل نیولی وو، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله له دې ځایه د دغه حدیث دوه جوابونه ورکوي: (۱)... د اول جواب حاصل دا دی چي ستاسو (د امام شافعي) دا خبره موږ نه تسلیموو چي عاقدینو ته تر عقد وروسته "متبایعان" ویل کیږي، بلکي د تبایع (بیع کولو) حقیقي اطلاق خاص د معامله کولو په وخت کي پر عاقدینو کیږي (یعني خاص د ایجاب وقبول کولو په وخت کي دوی ته متبایعان [بیع کونکي] ویل کیږي)، او ستاسو په دغه حدیث کي ودې طرف ته اشاره هم سته چي خاص د مباشرت (معامله کولو) په حالت کي عاقدینو ته متبایعان ویل کیږي، کنې تر عقد وروسته خو مشتري خپله مبیع واخیستله او بائع خپل ثمن واخیستی او دواړه یو له بل څخه جلا سول، اوس خو دوی ته عاقدان ویل هم صحیح نه دي، متبایعان خو هلته پرېږده!، لهذا کله چي د متبایعان اطلاق د مباشرت پر حالت کیږي، نو په دغه حالت او دوران کي به خیار ثابت منل کیږي، او د مباشرت حالت د یوه عاقد تر ایجاب وروسته او د دویم عاقد تر قبول مخکي وي، او دا تاسي ته هم معلومه ده چي د مباشرت په حالت کي ثابتېدونکي خیار "خیار قبول" وي، نه خیار مجلس، لهذا کله چي په مذکوره حدیث کي له خیار څخه "خیار قبول" مراد دی، نو په هغه سره به د خیار مجلس پر ثبوت دلیل نیول څنګه صحیح وي.

(۲)... دویم جواب دا دی چي فرض کړه! په حدیث کي له خیار څخه په یقیني توګه "خیار قبول" مراد نه دی. خو دا خبره دلته ضرور ښه چي څرنګه ستاسو په نیز او ستاسو په فکر له دې څخه خیار مجلس مراد دی. همدغه ډول زموږ په نیز دلته د خیار قبول احتمال هم شته، او پر خیار قبول د هغه حمل کول زیات غوره دي؛ ځکه چي په دې صورت کي د هیڅ د حق باطلول (ابطال) نه راځي.

والتفرق فیه إلخ: امام شافعي رَحِمَهُ الله په "مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا" سره تفرق بالابدان مراد کړی وو. د هغه په جواب کي فرمايي چي دلته له تفرق څخه "تفرق ابدان" نه، بلکي "تفرق اقوال" مراد دی. یعني له "تفرق اقوال" څخه مخکي عاقدینو ته خیار حاصل دی، او له "تفرق اقوال" څخه مخکي حاصلېدونکي خیار "خیار قبول" وي. نه خیار مجلس.

(۳)... صاحب د مبسوط د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دغه حدیث یو بل جواب هم ورکړی دی. هغه فرمايي چي د دغه حدیث راوي حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دی. او د هغه خپل مسلک او عمل دا دی چي تر عقد پوره کېدلو وروسته خیار مجلس نه ثابتېږي. او أصول دا دی چي که د حدیث د راوي عمل د هغه د بیان سوي حدیث خلاف وي نو دا د حدیث د ضعیفوالي څرګند دلیل دی. او په داسي صورت کي ترجیح د راوي عمل لره وي، نه د هغه روایت لره. نو ځکه دلته به هم د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عمل لره ترجیح وي، او د هغه عمل دا دی چي خیار مجلس نه ثابتېږي. لهذا زموږ لپاره دا هم حجت دی.

## د عوض وصف او مقدار بیانول (تفصيلي بحث)

قَالَ: وَالْأَعْوَاضُ الْمُشَارُ إِلَيْهَا لَا يُحْتَاجُ إِلَى مَعْرِفَةِ مِقْدَارِهَا فِي جَوَازِ الْبَيْعِ فرمايي: کومو عوضونو ته چي اشاره وکړی سي نو د بیع په جائز کېدلو کي د هغوی د مقدار پېژندلو (او معلومولو) ته ضرورت نسته لِأَنَّ بِالْإِشَارَةِ كِفَايَةٌ فِي التَّعْرِيفِ ځکه چي په تعریف (ور پېژندلو) کي اشاره کافي ده (یعني په اشاره سره تعریف کول کافي دي) وَجَهَالَةُ الْوَصْفِ فِيهِ لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ او په اشاره کي د وصف جهالت (نامعلوموالی) جنګ ته رسول نه کوي (یعني تر اشاره کولو وروسته د وصف جهالت د جنګ او جنجال سبب نه جوړېږي) وَالْأَثْمَانُ الْمُطْلَقَةُ لَا تَصِحُّ إِلَّا أَنْ تَكُونَ مَعْرُوفَةَ الْقَدْرِ وَالصِّفَةِ او له اشارې څخه (خالي اثمان (پیسې) صحیح نه دي (یعني په هغوی سره بیع صحیح نه ده) مګر دا چي د دوی مقدار او صفت معلوم وي لِأَنَّ التَّسْلِيمَ وَالتَّسَلُّمَ وَاجِبٌ بِالْعَقْدِ ځکه چي د عقد په وجه سره ورسپارل (ورکول) او اخیستل

ضروري دي وَهٰذِهِ الْجَهَالَةُ مُفْضِيَةٌ إِلَى الْمُنَازَعَةِ او دغه جهالت جنګ ته رسونکی دی فَيَمْتَنِعُ التَّسْلِيمُ وَالتَّسَلُّمُ نو ورکول او اخيستل به ممتنع سي وَكُلُّ جَهَالَةٍ هٰذِهِ صِفَتُهَا تَمْنَعُ الْجَوَازَ او هر هغه جهالت کوم چي پر دې صفت وي [يعني جنګ ته رسونکې وي] هغه د بيع جواز [روايښت] منع کوي هٰذَا هُوَ الْأَصْلُ همدا قاعده ده.

**اللغات**: ﴿أَعْوَاض﴾ جمع د عِوَضٌ ده: کوم شی چي د بل شي په بدله کي ورکول کيږي، هغه ته "عوض" وايي، دلته ځني مراد ثمن او مبيع دي (ځکه مشتري بائع ته د مبيع په بدله کي ثمن ورکوي او بائع د ثمن په بدله کي مبيع ورکوي)، ﴿مُشَارٌ إِلَيْهَا﴾ کوم شي ته چي اشاره وکړی سي، ﴿لَا تُفْضِيْ﴾ د افعال له بابه د نفي صيغه ده، اَفْضٰی يُفْضِيْ إِفْضَاءً: رسول، لا تفضی إلی النزاع (جنګ ته رسول نه کوي، يعني د جنګ سبب نه ګرځي)، ﴿مُنَازَعَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: جنګ و جګړه کول (اختلاف او جنجال کول)، ﴿تَسْلِيْم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ورسپارل، ورکول، ﴿تَسَلُّم﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: اخيستل، ﴿مُفْضِيَة﴾ د افعال مؤنث اسم فاعل دی: رسونکی (سبب جوړېدونکی).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که بائع يا مشتري يا دوی دواړه د عوض مقدار او د هغه وصف بيان نه کړي، مثلاً بائع داسي ووايي چي زه د غنمو دغه کوړه (خره) پر تا خرڅوم (او مقدار يې بيان نه کړي چي دا دومره کېلو غنم دي همدارنګه وصف يې بيان نه کړي چي دا اعلیٰ غنم دي، که ادنیٰ)، او مشتري د ثمن له مقدار او وصف بيانولو څخه بغير مثلاً داسي ووايي چي زه په خپل دغه مټ کي د موجوده دراهمو په عوض کي دا غنم رانيسم (يعني زما په دغه مُټ کي چي څومره دراهم دي د هغه په عوض کي دا غنم رانيسم)، او دوی دواړه په دې راضي وي (لکه په پخوا زمانه کي چي به داسي بيع ډېره کېدل)، نو په دې صورت کي بيع منعقد کيږي او صحيح کيږي؛ ځکه کله چي د مبيع وطرف ته اشاره وسوه او هغه موجوده ده، او مشتري د ثمن وطرف ته اشاره وکړه او هغه هم د مشتري په لاس کي دي، نو ښکاره خبره ده چي دلته په اشاره سره څه نا څه د دواړو عوضونو پته ولګېده او هر يو د هغه مطابق په عقد کولو راضي دی، پاته سو د وصف او مقدار جهالت نو هغه په دې صورت کي مُفضي الی النزاع نه دی (يعني هغه په دې صورت کي د جنګ، جنجال او دعوې سبب نه ګرځي)، ځکه کله چي عوض د عاقدَينو مخته موجود دی او دواړه هغه ته اشاره کوي او دوی په خپلو سترګو هغه ويني، نو ښکاره خبره ده چي دوی دواړه د بيع

کولو لپاره تيار دي او په بيع راضي دي او دا صورت له جنګ او نزاع څخه پاک دی، نو ځکه به دا بيع صحيح کيږي.

دلته دا خبره تاسو په ياد لرئ! چي د "أعواض مشار اليها" بيع هغه وخت صحيح کيږي کله چي أعواض د أموال ربويه له قبيلې څخه نه وي، او که چيري أعواض د أموال ربويه له قبيلې څخه وي، يعني دراهم، دنانير، غنم او داسي نور د خپل جنس په عوض کي خرڅ کړل سي (يعني دراهم د دراهمو په بدله کي، غنم د غنمو په بدله کي او داسي نور)، نو په دې صورت کي بالکل بيع نه صحيح کيږي که څه هم زر واره اشاره ورته وکړی سي؛ ځکه دلته که څه هم تر اشارې وروسته د جنګ او منازعت احتمال ختميږي خو داعواضو د جنس د يو والي په وجه د ربوا او سُود احتمال باقي پاتيږي، او قاعده دا ده چي د حقيقي ربوا په څېر د ربوا احتمال هم حرام دی، نو ځکه په دې صورت کي بيع نه صحيح کيږي.

والأثمان إلخ: فرمايي که ثمن او قيمت مخامخ موجود نه وي، بلکي غائب وي چي د هغه وطرف ته اشاره نه سي کېدای او مشتري د هغه وصف او مقدار هم بيان نه کړي، بس فقط دومره ووايي چي فلانکی شی زه د دراهمو يا دنانيرو په عوض کي رانيسم، نو په دې صورت کي بيع نه صحيح کيږي؛ ځکه کله چي ثمن له اشارې، وصف او مقدار دريو سره شيانو څخه خالي وي، نو ښکاره خبره ده چي دومره جهالت به مُفضي الى النزاع وي او په دې کي به دوکه راسي، او قاعده دا ده چي کوم جهالت مُفضي الى النزاع وي هغه بيع فاسدوي، نو ځکه به دا جهالت هم بيع فاسدوي.

ها! که مشتري د ثمن مقدار بيان کړي چي زه يې د لسو درهمو په عوض کي رانيسم، يا يې صفت بيان کړي، مثلاً داسي ووايي چي زه يې د سمرقند يا بخارا د درهمو په عوض کي رانيسم يا يې د کَرَه او اصلي درهمو په عوض کي رانيسم، نو څرنګه چي اوس د ثمن وصف يا مقدار معلوم سو، نو ځکه دا صورت به د جنګ او منازعت سبب نه جوړيږي او بيع به صحيح کيږي.

**أصول**: په دې عبارت کي صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله يو أصول او قاعده بيان کړې ده او هغه دا چي کوم جهالت او کوم صورت مُفضي الى النزاع وي (يعني د جنګ سبب جوړيږي) په هغه سره عقد فاسديږي (د فرېب او دوکې شی نه مبيع جوړېدای سي او نه ثمن)، او کوم جهالت او صورت چي مُفضي الى النزاع نه وي په هغه سره د عقد پر جواز هيڅ اثر نه پريوځي او عقد صحيح کيږي.

## د ثمن مؤجل په عوض كي د بيع كولو حكم

قَالَ: وَيَجُوزُ الْبَيْعُ بِثَمَنٍ حَالٍّ وَمُؤَجَّلٍ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: چي بيع په نغد ثمن او قرض ثمن دواړو سره جائز ده إِذَا كَانَ الْأَجَلُ مَعْلُومًا [په دې شرط] كله چي [په قرض كي] مودت [تاريخ] معلوم وي لِإِطْلَاقِ قَوْلِهِ تَعَالَى: وَأَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ د الله تعالىٰ د دې فرمان د مطلق والي په وجه: ﴿وَأَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ﴾ (او روا كړې ده الله تعالىٰ بيع) وَعَنْهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] أَنَّهُ اشْتَرَى مِنْ يَهُودِيٍّ طَعَامًا إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ وَرَهَنَهُ دِرْعَهُ او له نبي كريم ﷺ څخه روايت سوى دى چي هغوى ﷺ له يوه يهودي څخه تر يو معلوم مودته پوري غنم رانيوله او هغه ته يې خپله زغره په رهن كښېښوله وَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ الْأَجَلُ مَعْلُومًا او ضروري دي چي مودت [تاريخ] به معلوم وي لِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِيهِ مَانِعَةٌ مِنَ التَّسْلِيمِ الْوَاجِبِ بِالْعَقْدِ ځكه چي د مودت جهالت د عقد په ذريعه د واجب سوي ثمن له ورسپارلو [وركولو] څخه مانع دى [يعني د عقد په ذريعه چي كوم ورسپارل واجب سوي دي، د تاريخ جهالت هغه منع كوي] فَهٰذَا يُطَالِبُهُ بِهِ فِي قَرِيبِ الْمُدَّةِ وَهٰذَا يُسَلِّمُ فِي بَعِيدِهَا ځكه بائع به په نژدې مودت كي د ثمن مطالبه كوي او مشتري به په ليري مودت كي ثمن ورسپاري.

**اللغات:** ﴿مُؤَجَّل﴾ د تفعيل مفعول دى: مؤخر، وروسته كړى سوي (وروسته وركونكى ثمن)، مراد څني قرض دى، ﴿أَجَل﴾ نېټه، ټاكل سوى مودت، مراد څني د قرض وركولو تاريخ دى، ﴿دِرْع﴾ زغره (يو ډول اوسپنيزه جامه وه چي جنګياليو به د بدن د حفاظت لپاره په جنګ كي اغوستل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چي څرنګه د نغدو روپو په عوض كي يو شئ رانيول او اخيستل صحيح دي، همدارنګه تر يو معلوم او مُتعيّن مودت پوري په قرض معامله كول او يو شى رانيول هم صحيح دي؛ ځكه الله تعالىٰ په قرآن كريم د بيع حلّت مطلقاً بيان كړى دى او په ﴿أَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ﴾ كي يې د نقد او قرض هيڅ تفصيل او فرق نه دي ذكر كړى، لهذا څرنګه چي د نقد (نغدو) معامله صحيح ده، همداسي به د قرض معامله هم صحيح وي، او په خپله د نبي كريم ﷺ له طرزِ عمل څخه هم داسي معامله ثابته ده.

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الاستقراض، باب من اشترى بالدّين حديث رقم: ٢٣٨٦

خو د قرض په صورت کې دا ضروري ده چې د قرض مودت (ميعاد) به معلوم او مُتعين وي؛ ځکه که مودت او تاريخ معلوم نه کړی سي نو د ثمن په اداء کولو کې به ستونزه او تکليف مخته راسي (حال دا چې اوس د ثمن اداء کول د عقد په وجه سره واجب سوي دي)، ځکه بائع به په لږ وخت کې د ثمن مطالبه کوي او مشتري به زيات وخت وروسته ثمن ورکوي، او د دې اختلاف په وجه به د دوی په مينځ کې جنجال او جنګ واقع سي او دا صورت به مُفضي الى النـزاع وي، او څه مخکې تاسو دغه اُصول وواييی چې کوم صورت مُفضي الى النزاع وي هغه عقد فاسدوي او ختموي، نو ځکه به د قرض په صورت کې د مودت جهالت د عقد له جواز څخه مانع وي.

## له غير مقيد ثمن څخه کوم ثمن مراد دی؟

قال: وَمَنْ أَطْلَقَ الثَّمَنَ فِي الْبَيْعِ فرمايي: او څوک چې په بيع کې ثمن مطلق ذکر کړي كَانَ عَلَى غَالِبِ نَقْدِ الْبَلَدِ نو دا به د ښار پر غالب [زيات رائج] ثمن محمول وي لِأَنَّهُ الْمُتَعَارَفُ ځکه چې هغه متعارف دي وَفِيهِ التَّحَرِّي لِلْجَوَازِ او په دې کې [د بيع] د جائز کېدلو طلب کول [هم] دي فَيُصْرَفُ إِلَيْهِ نو ځکه به مطلق ثمن د غالب ثمن وطرف ته ګرځول کيږي [او هغه به مُتعين کيږي].

**اللغات**: ﴿نَقْد﴾ نغد مال (لکه دراهم او دنانير، مراد ځني سکّه [پيسه] ده)، جمع: نُقُود، ﴿تَحَرِّی﴾ د تفعّل مصدر دی: طلب کول، غور او فکر کول، اجتهاد کول، (طَلَبُ الأَحْرَى)، ﴿يُصْرَف﴾ د ضرب مضارع ده: ګرځول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی په داسي ښار کې د بيع معامله وکړي چې هلته بېلابېلې پيسې (سکې) رائج وي، لېکن په قيمت (ماليت) کې ټول سره برابري وي او دا سړی (مشتري) ثمن مطلق بيان کړي (مثلا په يو ښار کې افغانۍ او کلداري دواړې چليږي او د دواړو قيمت سره برابر وي. يا مثلاً په يو ښار کې د افغانستان. پاکستان (افغانۍ. کلداري) او د هندوستان پيسې رائج وي او مشتري ثمن مطلق بيان کړي) چې زه فلانکی شی په دومره پيسو رانيسم او د ثمن نوع بيان نه کړي چې افغانۍ. يا پاکستانۍ. يا هندوستانۍ پيسې، او په هغه ښار کې د ټولو قيمت سره برابر وي، نو په دې صورت کې به هغه پيسه (سکّه) د ثمن او قيمت په توګه ورکول کيږي کوم چې په دې ښار کې تر ټولو زيات رائج وي (يعني چې تر نورو پيسو د هغې چلند زيات وي او خلک زياتره په هغه سره معامله کوي)؛ ځکه ښکاره خبره ده چې کله يوه پيسه تر ټولو زيات رائج او غالب وي، نو همدا به ويل کيږي چې مشتري په دې وجه هغه مُتعينه نه کړه چې هغه متعارف ده (يعني د ښار په عُرف کې هغه پيسه رائجه او غالبه ده. او د بيع کولو په وخت کې د عاقدينو ذهن د هغه وطرف ته ځي). يا دا به ويل کيږي چې که

مشتري پيسه مُتعيّنه کولای نو هغه غالبه پيسه به يې مُتعيّنه کړې وای. لهذا د "الْمَعْرُوْفُ كَالْمَشْرُوْطِ" په قاعده سره به هغه پيسه ثمن او قيمت ګرځول کيږي او پر هغه به بيع نافذيږي.

وفيه التحري للجواز: د "تحري" معنیٰ ده "طلب کول، غور او فکر کول"، د دې جملې خپله معنیٰ ده چې د هغه پيسې په مُتعيّنولو کې د بيع د جائز کېدلو لپاره طلب او هڅه کول دي"، يعني په داسې کولو کې د بيع جواز ته لاره هوارول او بيع جائز پاته کول دي، خلاصه دا چې که متعارفه او غالبه پيسه مُتعيّنه نه کړی سي نو بيع به فاسده سي، نو د بيع د جائز کېدلو لپاره به هغه غالبه پيسه (کوم چې زيات رواج وي) مُتعيّنه کيږي او هغه به پر مشتري لازمول کيږي. (او قاعده هم دا ده چې "تُحْمَلُ أُمُوْرُ الْمُسْلِمِيْنَ عَلَى السَّدَادِ وَالصَّلَاحِ حَتّٰى يَظْهَرَ غَيْرُهٗ" يعني تر څو چې ممکنه وي د مسلمانانو معاملات به پر سمون او صحيح والي حمل کيږي او هغوی به نافذول کيږي، او دلته پر غالبه سکّه د ثمن په حمل کولو سره د مشتري د بيع صحيح والي ممکن دی).

## له غير مقيد ثمن څخه کوم ثمن مراد دی؟

قَالَ: فَإِنْ كَانَتِ النُّقُوْدُ مُخْتَلِفَةً فرمايي: او که نقود [په ماليت کې] سره مختلف وي فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسده ده إِلَّا أَنْ يُبَيِّنَ أَحَدَهُمَا مګر دا چې [مشتري] يو نقد بيان کړي وَهٰذَا إِذَا كَانَ الْكُلُّ فِي الرَّوَاجِ سَوَاءً او دا په هغه صورت کې کله چې ټوله نقود په رواج [او چلند] کې سره برابر وي لِأَنَّ الْجَهَالَةَ مُفْضِيَةٌ إِلَى الْمُنَازَعَةِ إِلَّا أَنْ تَرْتَفِعَ الْجَهَالَةُ بِالْبَيَانِ ځکه چې [په دې صورت کې] به جهالت جنګ ته رسونکې وي مګر دا چې [د يو نقد] په بيانولو سره جهالت ختم سي أَوْ يَكُوْنَ أَحَدُهُمَا أَغْلَبَ وَأَرْوَجَ يا دا چې يو نقد [پيسه] غالبه او زياته رواج وي فَحِيْنَئِذٍ يُصْرَفُ إِلَيْهِ نو په دې وخت کې به د هغه وطرف ته بيع ګرځول کيږي تَحَرِّيًا لِلْجَوَازِ د جواز د طلب لپاره [يعني د دې لپاره چې بيع جائز پاته سي] وَهٰذَا إِذَا كَانَتْ مُخْتَلِفَةً فِي الْمَالِيَّةِ او دا حکم په هغه وخت کې دی کله چې نقود په ماليت کې سره مختلف وي فَإِنْ كَانَتْ سَوَاءً فِيْهَا كَالثُّنَائِيِّ وَالثُّلَاثِيِّ وَالنُّصْرَتِيِّ الْيَوْمَ بِسَمَرْقَنْدَ لېکن که نقود په ماليت کې سره برابر وي لکه نن سبا چې په سمرقند کې ثنائي، ثلاثي او نصرتي سکې [په ماليت کې سره برابري] دي وَالْاِخْتِلَافِ بَيْنَ الْعَدَالِيِّ بِفَرْغَانَةَ او لکه [نن سبا] چې په فرغانه کې د عدالي سکو په

مينځ کي اختلاف دی [او په ماليت کي سره برابري دي] [يعني لکه د عدالي په نامه مختلفه دراهم چي په ماليت کي سره برابر دي] جَازَ الْبَيْعُ إِذَا أُطْلِقَ اسْمُ الدِّرْهَمِ نو بيع جائز کيږي، په دې شرط کله چي د "درهم" لفظ مطلق ذکر کړی سي كَذَا قَالُوا همداسي [متاخرينو] مشائخو ويلي دي وَيَنْصَرِفُ إِلَى مَا قَدَّرَ بِهِ مِنْ أَيِّ نَوْعٍ كَانَ او دا إطلاق به [د مشتري] د بيان کړی سوي مقدار وطرف ته ګرځول کيږي، هغه که د هري نوع وي لِأَنَّهُ لَا مُنَازَعَةَ وَلَا اخْتِلَافَ فِي الْمَالِيَّةِ ځکه چي په ماليت کي هيڅ نزاع او اختلاف نسته.

**اللغات**: ﴿تَرْتَفِعُ﴾ د افتعال مضارع ده: پورته کېدل، ليري کېدل، ختمېدل. ﴿مَالِيَّةٌ﴾ مال کېدل، مالي حيثيت، دولت، مراد ځني قيمت دی. ﴿نُصْرَتِيٌّ﴾ د سمرقند والي "نصرة الدين" په خپل دور کي يو ډول درهم رواج کړی وو، د هغه درهم نوم "نصرتي" وو. ﴿الثُّنَائِيُّ﴾ د دې معنیٰ ده: دوه، په سمرقند کي ثنائي داسي درهم وو کوم چي به د يوه درهم نيم وو، يعني دوه ثنائي به يو درهم کېدی (اثمار الهدايه)، ﴿ثُلَاثِيٌّ﴾ د دې معنیٰ ده: درې، دا يو داسي درهم وو کوم چي به د يوه درهم دريمه حصه وه، يعني درې ثلاثي درهمونه به يو درهم کېدی. ﴿عَدَالِيٌّ﴾ په فرغانه کي څو قسمه دراهم رواج وه چي هغوی يو له بل څخه مختلفه وه لېکن د ټولو قيمت سره برابر وو، هغه درهمونو ته به "عدالي" ويل کېدل، اوس دغه ټوله درهمونه (نصرتي او داسي نور) موجود نه دي. ﴿فَرْغَانَة﴾ دا د مصنف (علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله) د علاقې نوم وو، کوم چي اوس د ازبکستان په حصه کي واقع ده.

**تشريح**: په تېر عبارت کي دا صورت بيان سو چي کله په قيمت او رواج دواړو کي نقود (پيسې) سره برابر وي، دلته يو صورت دا بيانوي چي که په يوه ښار کي بېلابېل نقود په رواج کي سره برابر وي، لېکن د دوی قيمت سره مختلف وي، نو په دې صورت کي که مشتري د نقد (پيسې) نوع بيان نه کړي نو بيع فاسديږي، ځکه چي دا صورت به مُفضِي الى النزاع وي، ځکه ښکاره خبره ده چي کله نقود او پيسې په ماليت کي سره مختلف وي نو بائع به د هغه پيسې مطالبه کوي چي د هغې قيمت تر ټولو زيات وي او مشتري به هغه پيسه ورکوي چي د هغې قيمت تر ټولو کم وي، نتيجه به دا را ووځي چي د نقودو د جهالت په وجه به په دواړو کي جنګ اوجنجال واقع سي او دا جهالت به مُفضِي الى النزاع وګرځي، لهذا کله چي دغه جهالت مُفضِي الى النزاع دی، نو دا به د عقد له جواز څخه مانع وي او

بيع به نه صحيح كيږي، لېكن كه مشتري له هغه پيسو (نقودو) څخه يوه پيسه مُتعينه كړي، نو په دې صورت كې جهالت ختميږي او عقد به صحيح كيږي.

أو يكون أحدها إلخ: له دې ځايه يو بل صورت بيانوي، حاصل يې دا دى چې كله مشتري په يو داسي ښار كې ثمن مطلق بيان كړي چې هلته بېلابېلې پيسې (نقود) وي او هغوى په قيمت او رواج دواړو كې سره مختلف وي (او په يوه كې هم سره برابر نه وي)، خو په هغوى كې يوه پيسه غالبه يعني زياته رائجه وي، نو ښكاره خبره ده چې څرنګه د تېر عبارت په صورت كې (يعني داختلافُ النقود او مساوات في القيمة په صورت كې) غالبه او متعارفه پيسه ثمن ګرځول كيږي، همدارنګه به دلته هم د ښار غالبه پيسه ثمن ګرځول كيږي؛ دليل هغه دى كوم چې په تېر عبارت كې ذكر سو يعني "تَحريًّا للجواز" چې بيع جائز پاته سي.

وهذا إذا كانت إلخ: په دې سره صاحب د كتاب رَحِمَهُ الله د دغه عبارت د اول صورت نور وضاحت كوي، فرمايي چې كله مختلفه پيسې (نقود) په رواج كې سره برابر وي نو په دې صورت كې هغه وخت بيع فاسديږي كله چې هغوى په ماليت كې سره مختلف وي يعني د پيسو قيمت سره مختلف وي (لكه د عبارت په شروع كې چې هم مونږ ووېل)، لېكن كه پيسې په ماليت كې هَم سره برابري وي (مثلا په يوه ښار كې څو قسمه سكې او پيسې چليږي او ټوله په رواج او قيمت دواړو كې سره برابر وي)، نو بيا بيع نه فاسديږي او د مشتري د مُتعيّن كړې سوي مقدار مطابق به ثمن واجبيږي، برابره ده هغه په يو ډول پيسه سره اداء سي يا په مختلفُ النوع پيسو سره اداء سي، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې يو مثال ذكر كړى دى، حاصل يې دا دى چې كه څوک په سمرقند كې مثلاً د يوه درهم په عوض كې يو شى رانيسي او درهم مطلق ذكر كړي يعني د درهم نوع او نوم مُتعيّن نه كړي، نو كه هغه دوكاندار ته يو نصرتي درهم وركړي نو هم كافي دى، همدارنګه كه دوه ثنائي درهمه وركړي نو هم كافي دى، او كه درې ثلاثي درهمه وركړي نو هم كافي دي، ځكه چې د دوو ثنائي درهمو قيمت او د درېو ثلاثي درهمو قيمت د يوه درهم سره برابر دى.

يا مثلاً په فرغانه كې به "عدالي" درهمونه يو له بل څخه مختلف وه خو د ټولو قيمت به سره برابر وو، نو له هغوى څخه چې هر درهم هم مشتري اداء كړي، نو بيع به نه فاسديږي. (اثمار الهدايه)

## د غلې د بيع أصول

قال: وَيَجُوزُ بَيْعُ الطَّعَامِ وَالْحُبُوْبِ مُكَايَلَةً وَمُجَازَفَةً فرمايي: او جائز دي خرڅول د غنمو او اخرڅول] د غلې په پيمانه کولو او اټکل [دواړو] سره وَهٰذَا إِذَا بَاعَهُ بِخِلَافِ جِنْسِهِ او دا په هغه صورت کې کله چې بائع هغه د خپل جنس د خلاف په عوض کې خرڅ کړي لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: «إِذَا اخْتَلَفَ النَّوْعَانِ فَبِيْعُوا كَيْفَ شِئْتُمْ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "کله چې دوه قسمونه سره مختلف وي [يعني کله چې د دوو شيانو نوع يو له بل څخه مختلفه وي] نو څرنګه چې ستاسو خوښه وي هغه خرڅ کړئ!" بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَهُ بِجِنْسِهِ مُجَازَفَةً په خلاف د هغه صورت کله چې بائع هغه د خپل جنس په عوض کې په اټکل سره خرڅ کړي لِمَا فِيهِ مِنْ احْتِمَالِ الرِّبَا ځکه چې په دې کې د سود احتمال سته وَلِأَنَّ الْجَهَالَةَ غَيْرُ مَانِعَةٍ مِنَ التَّسْلِيمِ وَالتَّسَلُّمِ او ځکه چې د مقدار جهالت له ورسپارلو او اخيستلو څخه مانع نه دی فَشَابَهَ جَهَالَةَ الْقِيمَةِ نو دا د قيمت د جهالت سره مشابه سو.

**اللغات**: ﴿الطَّعَام﴾ خوراک، غنم، غله. اهلِ حجاز او اهلِ عراق به خاص و غنمو ته "طَعَام" ويل، ﴿حُبُوْب﴾ دانې، غله، حُبُوْب په عامه توګه له غنمو څخه پرته نورې غلې ته وايي (يعني اوربشې، جوارې او داسې نور)، ﴿مُكَايَلَة﴾ د مفاعلې مصدر دی، له "كَيْل" څخه دی: پيمانه کول (يعني د لوښي په ذريعه اندازه کول)، په پخوا زمانه کې به ټولې غلې د متعيّن ظرف او لوښي (پيمانې) په ذريعه خرڅول کېدې، او د هغوی تلل او اندازه کول به د لوښي په ذريعه وه چې هغه ته به "كَيْل" ويل کېده، او د وزن په ذريعه به غلې نه خرڅول کېدې، او صرف سره زر، سپين زر او داسې نور شيان به د وزن په ذريعه خرڅول کېدل، زموږ په اوس زمانه کې ټوله شيان د وزن په ذريعه خرڅول کيږي، صرف بهېدونکي شيان د لوښي په ذريعه خرڅول کيږي. لکه تېل، پټرول او داسې نور (چې د هغوی لوښي ته لېټر وايي)، ﴿الْقِيمَة﴾ بائع او مشتري دواړو چې کوم قيمت متعيّن کړی وي هغه ته په عربي کې "ثمن" وايي، او په بازار کې چې د شي کوم قيمت "نرخ" چليږي، هغه ته په عربي کې "قيمت" وايي.

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب المساقاة، باب الصرف، حديث رقم: ٨١.

**تشريح : صورت د مسئلې :** دا دى چې غنم، اُوربشې او داسې نورې غلې له خپل جنس څخه بغير د بل جنس په عوض کې په پېمانه سره خرڅول هم جائز دي او په اټکل و اندازه سره خرڅول هم جائز دي؛ ځکه چې په خپله نبي کريم ﷺ د جنس د اختلاف (بدلون) په صورت کې د داسې بيع اجازه ورکړې ده، لېکن مثلاً که غنم د غنمو په عوض کې خرڅ کړل سي نو په دې صورت کې فقط په پېمانه کولو سره بيع جائز کيږي او په اټکل او تخمين سره بيع نه جائز کيږي؛ ځکه کله چې يو جنس د خپل هَمْ جنس په عوض کې خرڅول کيږي نو په هغه کې برابري ضروري ده، او ښکاره خبره ده چې په اټکل سره د بيع کولو په صورت کې برابري له منځه ځي او که څه هم په هغه کې د ربوا (سُود) پوره يقين نه وي، مګر د ربوا شبهه او احتمال خامخا پکښې وي، نو ځکه په داسې صورت کې خو "بيع بالکَيل" جائز کيږي، لېکن "بيعُ المُجازَفة" نه جائز کيږي.

لېکن که د غلې جنس بدل کړى سي (مثلاً غنم د اُوربشو په عوض کې خرڅ کړل سي) نو بيا يې مجازفتاً (په اټکل سره) هم بيع صحيح ده؛ د دې يو دليل خو هغه حديث کوم چې په عبارت کې ذکر سو. او دويم دليل دا دى چې د جنس د بدل والي په صورت کې که څه هم د عوضَينو مقدار مجهول دي، مګر دا جهالت لږ او معمولي دى او مُفضِي الى النزاع نه دى، حال دا چې د عقد له جواز څخه هغه جهالت مانع دى کوم چې مُفضِي الى النزاع وي، لهذا کله چې دغه جهالت مُفضِي الى النزاع نه دى، نو دا جهالت د قيمت د جهالت سره مشابه سو، او د قيمت (ثمن) جهالت د مُفضِي الى النزاع نه کېدلو په وجه عقد نه فاسدوي، نو همداسې به دغه جهالت هم عقد نه فاسدوي بلکې د دې سره به عقد صحيح وي.

## په داسې لوښي او پېمانه سره بيع وشراء کول چې د هغه مقدار معلوم نه وي

قال: وَيَجُوزُ بِإِنَاءٍ بِعَيْنِهِ لَا يُعْرَفُ مِقْدَارُهُ فرمايي: او جائز ده بيع په يو داسې مُتعيّن لوښي سره چې د هغه مقدار معلوم نه وي وَبِوَزْنِ حَجَرٍ بِعَيْنِهِ لَا يُعْرَفُ مِقْدَارُهُ او د داسې مُتعيّنې ډبرې په وزن سره چې د هغې مقدار معلوم نه وي لِأَنَّ الْجَهَالَةَ لَا تُفْضِيْ إِلَى الْمُنَازَعَةِ ځکه چې دا جهالت جنګ ته رسول نه کوي (يعني وروسته د جنجال و اختلاف سبب نه ګرځي) لِمَا أَنَّهُ يَتَعَجَّلُ فِيهِ التَّسْلِيمَ ځکه په [مطلق] بيع کې بائع [د مبيع] په ورسپارلو کې تلوار کوي [يعني په حالي بيع کې (کوم چې بيع سَلَم نه وي) بائع مشتري ته سمدستي مبيع ورکوي] فَيَنْدُرُ هَلَاكُهُ قَبْلَهُ نو [د مبيع] تر ورسپارلو مخکې د هغه مُتعيّن لوښي يا ډبرې ضايع کېدل نادر دي بِخِلَافِ السَّلَمِ په خلاف د بيع سَلَم لِأَنَّ التَّسْلِيمَ فِيهِ مُتَأَخِّرٌ

ځکه چي په هغه کي [د مبيع] ورسپارل ځنډمن وي [يعني په بيع سَلم کي مبيع ډېر مودت وروسته ورکول کيږي، سمدستي نه ورکول کيږي] وَالْهَلَاكُ لَيْسَ بِنَادِرٍ قَبْلَهُ او تر هغه مخکي د مُتعيّن لوښي يا ډبري ضايع کېدل نادر نه دي [بلکي د ضايع کېدلو امکان يې سته] فَتَتَحَقَّقُ الْمُنَازَعَةُ لهذا هلته به جنګ ثابت سي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي الْبَيْعِ أَيْضًا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي په [مطلق] بيع کي هم [دا صورت] جائز نه دی وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ وَأَظْهَرُ لېکن اول قول زيات صحيح او زيات څرګند دی.

**اللغات**: ﴿إِنَاء﴾ لوښی، جمع أواني. ﴿حَجَر﴾ ډبره، جمع: أحْجَار. ﴿يَتَعَجَّلُ﴾ د تفعّل مضارع ده: تلوار کول، يو کار په تلوار کول، ژر کول. ﴿يَنْدُر﴾ د نصر مضارع ده: شاذ ونادر کېدل. ﴿هلاك﴾ د ضرب مصدر دی: هلاکېدل، ضايع کېدل. ﴿تَتَحَقَّقُ﴾ د تفعّل مضارع ده: ثابتېدل، موجودېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک په داسي لوښي يا په داسي ډبره سره عقد وکړي چي د هغه مقدار معلوم نه وي، نو عقد صحيح کيږي؛ ځکه که څه هم په دې صورت کي د لوښي او ډبري د مقدار د جهالت او نا معلوم والي په وجه مبيع مجهوله وي، خو څرنګه چي مبيع مخته موجوده وي او بائع سمدستي هغه مشتري ته ورسپاري (او داسي نه ده لکه په بيع سَلم کي چي ډېر وخت وروسته مبيع ورسپارل کيږي)، او په دومره لږ وخت کي د هغه مخصوص لوښي يا ډبري ضايع کېدل شاذ ونادر او نا ممکن دي، ځکه چي دلته له دواړو طرفونو څخه نغده معامله سوې ده، مبيع وثمن، ډبره او لوښی ټول مخته موجود دي، نو هغه به څنګه ضايع سي؟!، نو ځکه د مبيع د مجهول والي باوجود به دا صورت مُفضِي الى النزاع نه وي، او که بالفرض د عاقدَينو په مينځ کي نزاع او اختلاف هم راسي نو دوی به سمدستي د لوښي يا ډبري وزن معلوم کړي او نزاع به بيرته ختمه سي، نو په دې وجه به دا صورت بالکل مُفضِي الى النزاع نه وي، او مخکي موږ وويل چي د عقد له جواز څخه هغه صورت مانع دی کوم چي مُفضِي الى النزاع وي او هغه دلته نسته، نو ځکه به دا بيع جائز وي، لنډه دا چي اول خو دغه صورت مُفضِي الى النزاع نه دی، دويم دا چي که بالفرض په دې صورت کي جنګ او نزاع واقع سي نو د هغه اصلاح او د هغه ختمول ممکن دي، نو ځکه به دلته بيع صحيح کيږي.

بخلاف السلم: څرنګه چي په بيع سَلم کي ثمن مخکي اخيستل کيږي او مبيع ډېر مودت وروسته ورکول کيږي او په هغه مودت کي د مُتعيّن کړی سوي لوښي او ډبري د ضايع کېدلو قوي امکان وي، نو ځکه په داسي صورت کي بيع سَلم نه صحيح کيږي، ځکه دلته که د عاقدَينو په مينځ کي اختلاف راسي نو ښکاره خبره ده چي دا صورت به مُفضِي الى النزاع وي بلکي د نزاع غټ سبب به وګرځي "وَكُلُّ جهالةٍ هٰذه صفتها تمنع الجواز، فكذا هٰذا".

وعن إبي حنيفة إلخ: فرمايي چي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي څرنګه بيع سَلم په داسي لوښي او ډبري سره جائز نه ده (چي د هغه مقدار معلوم نه وي)، همداسي مطلق بيع هم په داسي لوښي سره جائز نه ده؛ ځکه څرنګه چي په بيع سَلم کي د مُفضِي الى النـزاع کېدلو خطره او امکان سته، همداسي دلته هم دغه خطره سته، لهذا دا صورت به هم جائز نه وي، مګر صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په متن کي اول ذکر سوی قول زيات صحيح او زيات واضح دی؛ ځکه که څه هم په دغه صورت کي د نزاع خطره سته، خو هغه دومره معمولي خطره ده چي بالکل د نه خطرې په درجه کي ده، نو ځکه به دا صورت جائز او صحيح وي او پر بيع سَلم به د هغه قياسول صحيح نه وي.

## که بائع يوه کوړه غله خرڅه کړي لېکن د هغې مقدار معلوم نه کړي (حکم او اختلاف)

قال: وَمَنْ بَاعَ صُبْرَةَ طَعَامٍ كُلُّ قَفِيزٍ بِدِرْهَمٍ فرمايي: او څوک چي د غنمو يوه کوړه خرڅه کړي، هر قفيز د يوه درهم په عوض کي جَازَ الْبَيْعُ فِي قَفِيزٍ وَاحِدٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز صرف په يوه قفيز کي بيع جائز کيږي إِلَّا أَنْ يُسَمِّيَ جُمْلَةَ قُفْزَانِهَا مګر دا چي بائع د هغه کوړي ټوله قفيزونه بيان کړي وَقَالَا[*]: يَجُوزُ فِي الْوَجْهَيْنِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په دواړو صورتونو کي بيع جائز کيږي لَهُ: أَنَّهُ تَعَذَّرَ الصَّرْفُ إِلَى الْكُلِّ لِجَهَالَةِ الْمَبِيعِ وَالثَّمَنِ د امام صاحب دليل دا دی: چي د مبيع او ثمن د مجهول والي په وجه بيع د ټولو قفيزونو وطرف ته ګرځول ناممکن دي فَيُصْرَفُ إِلَى الْأَقَلِّ وَهُوَ مَعْلُومٌ نو د اقل [يوه قفيز] وطرف ته به بيع ګرځول کيږي [ځکه چي] اقل معلوم دی إِلَّا أَنْ تَزُولَ الْجَهَالَةُ بِتَسْمِيَةِ جَمِيعِ الْقُفْزَانِ أَوْ بِالْكَيْلِ فِي الْمَجْلِسِ مګر دا چي د ټولو قفيزونو په بيانولو يا په مجلس کي [د غنمو] په پيمانه کولو سره جهالت ليري سي [نو بيا بيع جائز کيږي] وَصَارَ هٰذَا كَمَا لَوْ أَقَرَّ وَقَالَ: لِفُلَانٍ عَلَيَّ كُلُّ دِرْهَمٍ او دا داسي سوه لکه يو څوک چي [د قرض] اقرار وکړي او داسي ووايي: چي د فلانکي پر ما "كُلّ درهم" دی فَعَلَيْهِ دِرْهَمٌ وَاحِدٌ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق پر هغه يو درهم لازم دی وَلَهُمَا: أَنَّ الْجَهَالَةَ بِيَدِهِمَا إِزَالَتُهَا او د صاحبينو دليل دا دی: چي

---

[*] القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة ابن نجيم المصري رَحِمَهُ الله: وظاهر ما في الهداية ترجيح قولهما، لتاخيره دليلهما كما هو عادته، وقد صرح في الخلاصة في نظيره بأن الفتوى على قولهما (البحر الرائق ج:۵، ص:۲۸۴)، وكذا في رد المحتار (ج:۴، ص:۳۱)، وكذا في الدر المنتقى (ج:۲، ص:۱۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۲]

[دلته] د جهالت زائلول [اليري كول] د عاقدينو په لاس كې دي لِأَنَّ مِثْلَهَا غَيْرُ مَانِعٍ او داسي جهالت د عقد له جواز څخه مانع نه دی كَمَا إِذَا بَاعَ عَبْدًا مِنْ عَبْدَيْنِ عَلَى أَنَّ الْمُشْتَرِيَ بِالْخِيَارِ لكه يو څوک چي له دوو غلامانو څخه يو غلام خرڅ كړي پر دې شرط چي مشتري ته به [د هغه يوه غلام د انتخابولو] اختيار وي ثُمَّ إِذَا جَازَ فِي قَفِيزٍ وَاحِدٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ بيا چي كله د امام صاحب په نېز په يوه قفيز كي بيع جائز سوه فَلِلْمُشْتَرِي الْخِيَارُ نو مشتري ته به [د اخيستلو، نه اخيستلو] اختيار وي لِتَفَرُّقِ الصَّفْقَةِ عَلَيْهِ پر مشتري د صفقې د متفرق كېدلو په وجه وَكَذَا إِذَا كِيلَ فِي الْمَجْلِسِ أَوْ سَمَّى جُمْلَةَ قُفْزَانِهَا او همدارنگه كله چي [غنم] په مجلس كي پيمانه كړل سي يا [بائع] ټوله قفيزونه بيان كړي [نو هم به مشتري ته اختيار وي] لِأَنَّهُ عَلِمَ ذَلِكَ الْآنَ ځكه چي مشتري اوس په هغه خبر سو فَلَهُ الْخِيَارُ نو ځكه به هغه ته اختيار وي كَمَا إِذَا رَآهُ وَلَمْ يَكُنْ رَآهُ وَقْتَ الْبَيْعِ لكه په هغه صورت كي [چي مشتري ته اختيار حاصليږي] كله چي مشتري [وروسته] مبيع وويني او د بيع په وخت كي يې هغه لېدلې نه وي [د دغه جملې بله ترجمه دا ده: "لكه په هغه صورت كي كله چي مشتري [مخكي] مبيع ليدلې وي او د بيع په وخت كي يې هغه ليدلې نه وي"، شارحينو دغه دواړي ترجمې كړي دي].

**اللغات**: ﴿صُبْرَة﴾ كوړه، كوټه، خره، دلۍ، راغونډ كړل سوي شيان، سر په سر ايښول سوي شيان، ﴿الطَّعَام﴾ د دې تحقيق مخكي تېر سو، ﴿قَفِيز﴾ دا پخوا يو ډول پيمانه وه چي په هغه سره به شيان پيمانه كېدل، او په يوه او بل ښار كي به د هغې مقدار سره جلا وو، د مصر د اوسني مقدار مطابق تقريباً هغه شپاړس كېلو كيږي، او شرعي قفيز دوولس صاعه كيږي او د احنافو په نېز هغه تقريباً څلوېښت (۴۰) لېټره كيږي او د گرام په حساب سره (۳۹۱۳۸) گرامه كيږي، او د نورو په نېز تقريباً دوديرش (۳۲) لېټره كيږي چي هغه د گرام په حساب سره (۲۶۰۶۴) گرامه كيږي، ﴿صفقة﴾ عقد، معامله، ﴿يُسَمِّي﴾ د تفعيل له بابه د مضارع صيغه ده: نومول، ذكر كول (بيانول)، ﴿صَرْف﴾ د ضرب مصدر دی: گرځول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه يو څوک د غلې (مثلاً د غنمو) كوړه خرڅه كړي او داسي ووايي چي هر قفيز په يوه درهم دركوم (يا مثلاً هره گونۍ په سل درهمه دركوم)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په يوه قفيز (يا گونۍ) كي بيع جائز كيږي او په پاته قفيزونو (يا گونيو) كي نه جائز كيږي، لېكن كه بائع په همغه مجلس كي د ټولو قفيزونو شمېر بيان كړي، يا ټوله غله پيمانه كړي او د

قفيزونو مقدار معلوم کړي، نو بيا په ټوله غله کي بيع صحيح کيږي، صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي په هر حال کي بيع صحيح کيږي، برابره ده د ټولو قفيزونو شمېر بيان کړي او که يې بيان نه کړي، همدا د ائمه ثلاثه وو مذهب هم دی.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي کله بائع د ټولو قفيزونو شمېر بيان نه کړي، نو مبيع مجهوله پاته سوه، او کله چي مبيع مجهوله ده، نو ښکاره خبره ده چي ثمن به هم مجهوله او نامعلومه وي، او په داسي جهالت سره عقد فاسديږي، لهذا دغه عقد به هم فاسديږي، لېکن څرنګه چي هغه "كُلُّ قَفِيْزٍ بِدِرْهَمٍ" ويلي دي او په يوه درهم سره يې يو قفيز مُتعيّن کړی او معلوم کړی دی، او همدا "يو" د "كُلُّ قَفِيْزٍ" "اقلّ" هم دی (او اقلّ معلوم او متعيّن وي)، نو ځکه به صرف په يوه قفيز کي بيع جائز کيږي؛ ځکه دلته په يوه قفيز کي هيڅ جنګ او نزاع نه واقع کيږي، او دا داسي ده لکه يو څوک چي د بل چا لپاره د قرض اقرار وکړي او داسي ووايي چي "پر ما د فلانکي سړي "كُلُّ دِرْهَم" باندي دي"، څرنګه چي دلته د "كُلّ" د مضاف اليه يعني د "دِرْهَم" مقدار معلوم نه دی، نو ځکه په دې صورت کي بالاتفاق پر اقرار کونکي سړي يو درهم واجبيږي، همداسي د "كُلّ قَفِيْز" والا په صورت کي هم د "كُلّ" مضاف اليه يعني "قفيز" معدومُ الانتهاء او نامعلوم دی، نو ځکه په دغه صورت کي به هم صرف په يوه قفيز کي بيع جائز کيږي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي دلته که څه هم ثمن او مبيع دواړه مجهول دي، خو دا دومره غټ جهالت نه دی کوم چي بالکل نه سي زائلېدای يا کوم چي بالکل د نزاع او اختلاف سبب ګرځي، بلکي دا يو داسي جهالت دی چي بائع او مشتري دواړه د هغه پر ختمولو قدرت لري په دې توګه چي بائع د ټولو قفيزونو مقدار بيان کړي، يا غله پېمانه کړي، او له دغو دواړو صورتونو څخه چي کوم صورت هم اختيار کړی سي د هر يوه په ذريعه به ثمن هم معلوم سي او مبيع به هم معلومه سي.

لنډه دا چي د دغه جهالت زائلول ممکن دي، لهذا کله چي جهالت ليري کېدای سي، نو ښکاره خبره ده چي دا به مُفضِيَ الی النزاع هم نه وي، حال دا چي د عقد له جواز څخه هغه جهالت مانع ګرځي کوم چي مُفضِي الی النزاع وي او دغه جهالت مُفضِي الی النزاع نه دی، نو ځکه به دا د عقد له جواز او روايښت څخه مانع هم نه وي، او دا بالکل داسي ده لکه يو څوک چي له خپلو دوو غلامانو څخه يو غلام خرڅ کړي او د هغه تعيين نه وکړي او د مشتري لپاره د يوه غلام د اخيستلو شرط ولګوي (يعني مشتري ته ووايي چي په دغه دوو غلامانو کي به يو غلام ته خوښوې. يعني انتخاب يې ستا پر ذمه دی). تاسي او ګورئ! دلته هم مبيع مجهوله ده، خو دغه جهالت د جنګ او نزاع سبب نه ګرځي، ځکه کله

چي هم مشتري يو غلام مُتعين كړي نو جهالت به ختم سي، نو څرنګه چي دغه جهالت د مُفضي الى النزاع نه كېدلو په وجه د عقد له جواز څخه مانع نه دى، همداسي به د قفيزونو جهالت هم د عقد له جواز څخه مانع نه وي او بيع به جائز وي.

(**اصول**: د صاحبينو نېز اُصول دا دى چي كوم جهالت د مجلس تر ختمېدلو مخكي ليرې كېداى سي نو په داسي جهالت سره بيع نه فاسديږي).

ثم إذا إلخ: د دې حاصل دا دى چي كله د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په يوه قفيز كي بيع جائز او صحيح ده، نو اوس به مشتري ته د هغه د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار حاصليږي؛ ځكه بيع خو به په هغه وخت كي (پر مشتري) لازمه واى كله چي صفقه او معامله متفرقه نه واى، او دلته د مشتري په حق كي صفقه متفرقه ده، هغه په دې توګه چي بائع پوره كوړه (صبرة) خرڅه كړې ده، نه يو قفيز، او بيع فقط په يوه قفيز كي جائز كيږي، نو د صفقې د دغه تفرّق او بېلوالي په وجه به هغه ته د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار وركول كيږي.

دلته تاسي دا خبره په ياد لرئ! چي د صفقې تفرّق پر بائع هم دى (يعني د بائع په حق كي هم صفقه متفرقه ده)، لېكن هغه ته به ځكه هيڅ اختيار نه وركول كيږي چي د صفقې تفرّق د هغه له طرفه واقع سوى دى. كه چيري هغه مخكي د قفيزونو شمېر بيان كړي واى يا يې په هغه مجلس كي غله پيمانه كړې واى نو صفقه به نه متفرقه كېدلاى، لهذا كله چي دا نُقص د بائع له طرفه راغلى دى، نو د هغه وبال به هم د بائع پر ذمه وي او هغه به له اختيار څخه محروميږي، خو څرنګه چي د صفقې په تفرّق كي د مشتري هيڅ دخل نسته، نو ځكه به هغه ته هيڅ سزا نه وركول كيږي او د هغه اختيار به باقي پاتيږي.

وكذا إذا كيل إلخ: فرمايي څرنګه چي په اول صورت كي مشتري ته د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار حاصليږي، همدارنګه كه د عقد په مجلس كي غله پيمانه كړل سي، يا بائع د قفيزونو شمېر بيان كړي، نو په دې صورتونو كي هم مشتري ته خيار حاصليږي؛ ځكه چي اوس مشتري ته د غلې صحيح مقدار معلوم سو، كېداى سي چي مخكي به د هغه په ذهن كي د قفيزونو مقدار بل څه وو او د هغه اخيستل به د مشتري په وس كي وه او تر پيمانه كولو يا تر شمېر بيانولو وروسته به قفيزونه زيات سوي وي چي مشتري به د هغه وس نه لري، يا د مشتري تر ضرورت به كم سوي وي، خلاصه دا چي د قفيزونو تر پيمانه كولو او د شمېر تر بيانولو وروسته به مشتري ته په اخيستلو او نه اخيستلو كي واقعي د غور او فكر ضرورت وي (او اوس به هغه يقيناً د غلې د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار ته محتاج وي)، نو په دې وجه به هغه ته دا اختيار وركول كيږي، كنې د هغه له رضا څخه بغير به پر هغه دغه عقد لازم سي او دا صحيح نه دي، او دا صورت داسي دى لكه يو سړي چي د رانيولو په وخت كي مبيع نه ويني، او وروسته يې ويني، نو په دې صورت كي هغه ته د اخيستلو، نه اخيستلو اختيار حاصليږي، همداسي به په پورتني صورت كي هم هغه ته دغه اختيار حاصليږي.

## كه بائع د پسونو رمه يا د كپړو تان خرڅ كړي لېكن شمېر او مقدار يې بيان نه كړي (حكم او اختلاف)

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ قَطِيْعَ غَنَمٍ كُلُّ شَاةٍ بِدِرْهَمٍ او څوک چې د پسونو رمه خرڅه كړي، هر پسه په يوه درهم فَسَدَ الْبَيْعُ فِي جَمِيعِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په ټولو پسونو كي بيع فاسديږي وَكَذٰلِكَ مَنْ بَاعَ ثَوْبًا مُذَارَعَةً كُلُّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ او همدارنګه څوک چې [په ګز سره] ګزېدونكې كپړه خرڅه كړي، داسي چې هر ګز په يوه درهم وَلَمْ يُسَمِّ جُمْلَةَ الذُّرْعَانِ او ټوله ګزونه بيان نه كړي [نو بيع فاسديږي] وَكَذَا كُلُّ مَعْدُودٍ مُتَفَاوِتٍ او همدارنګه هر عددي شی كوم چي متفاوت وي [يعني په عددي متفاوت شيانو كي هم دغه ډول بيع فاسديږي] وَعِنْدَهُمَا يَجُوزُ فِي الْكُلِّ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په ټولو صورتونو كې بيع جائز كيږي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه كوم چي [مخكي] موږ ذكر كړی وَعِنْدَهُ يَنْصَرِفُ إِلَى الْوَاحِدِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز بيع فقط د يوه، يوه وطرف ته راجع كيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړی غَيْرَ أَنَّ بَيْعَ شَاةٍ مِنْ قَطِيعِ غَنَمٍ وَذِرَاعٍ مِنْ ثَوْبٍ لَا يَجُوزُ لېكن له رمې څخه فقط د يوه پسه بيع او له كپړې څخه فقط د يوه ګز بيع جائز نه ده لِلتَّفَاوُتِ ځكه چي په هغوی كي تفاوت [توپير] سته وَبَيْعُ قَفِيزٍ مِنْ صُبْرَةٍ يَجُوزُ او [د غنمو] له كوړي څخه د يوه قفيز بيع جائز ده لِعَدَمِ التَّفَاوُتِ ځكه چي [هلته] تفاوت نسته فَلَا تُفْضِي الْجَهَالَةُ إِلَى الْمُنَازَعَةِ فِيهِ نو د قفيز په بيع كي به جهالت مُفضي الى النزاع نه وي وَتُفْضِي إِلَيْهَا فِي الْأَوَّلِ او په اول صورت كي [يعني د دغه عبارت په اوله مسئله كي] به جهالت مُفضي الى النزاع وي فَوَضَحَ الْفَرْقُ لهذا [په دواړو صورتونو كي] فرق ښكاره سو.

**اللغات:** ﴿قَطِيْع﴾ رمه (د پسونو او داسي نورو څارويانو مجموعه)، ﴿غنم﴾ د "غَنَم" لفظ اسم جنس دی، مذكر او مؤنث دواړو لره شامل دی، همدارنګه وزې او پسونه ټوله په دې لفظ كې داخل دي، (موږ د

القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: قال الفقيه: والفتوى على قولهما تيسيراً للأمر على الناس (فتح القدير ج:۵، ص:۴۷۶)، وكذا في رد المحتار (ج:۴، ص:۳۳)، وكذا في البحر (ج:۵، ص:۲۸۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۳]

آسانۍ لپاره دې ترجمه په پَسه سره کوو. همدارنګه شاة هم دواړو ته ویل کیږي) او دې ته د "غَنَم" ویلو وجه دا ده چې پَسونه او بزې نه د جهاد آلې دي او نه د دفاع آلې دي بلکې د هر چا لپاره غنیمت دي. ﴿ثَوْب﴾ جامه، کپړه، ټوکر، ﴿مُذَارَعَة﴾ د مفاعلې مصدر دی، له ذراع څخه مشتق دی: د ګز په ذریعه ناپول (ګزول).

**تشريح**: دا مسئله هم تقریباً د مخکنۍ مسئلې په څېر ده، لېکن په دې کې لږ فرق سته، هغه دا چې که یو څوک د پَسونو پوره رمه خرڅه کړي او داسې ووايي چې هر پَسه په یوه درهم دی، لېکن د پسونو شمېر بیان نه کړي او نه ټوله ثمن بیان کړي، یا د لاسي کپړې یو تان خرڅ کړي (کوم چې په لاس سره وودل سوې وي چې د هغې د هر ګز رنګ او انداز جلا وي لکه پخوا چې همداسې کپړې رائج وې) او بائع صرف دومره ووايي چې یو ګز په یوه درهم دی، یا داسې شی خرڅ کړي کوم چې په شمېر سره خرڅول کیږي او د هغه په قیمت کې تفاوت وي، مثلاً هندوانه (ځکه چې د هندوانو کوره په شمېر سره خرڅول کیږي او تقریباً د هرې هندوانې قیمت له بلې څخه جلا وي)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دغه ټولو صورتونو کې مطلقاً بیع فاسدیږي، یعني په هیڅ حصه کې یې هم بیع نه جائز کیږي.

د صاحبینو او د ائمه ثلاثه وو مسلک دا دی چې څرنګه د قفیز والا په صورت کې بیع جائز وه، همداسې دلته هم په ټولو صورتونو کې بیع جائز کیږي؛ او د دوی دلیل دلته هم هغه دی کوم چې د قفیز په بیع کې وو، چې دا یو داسې جهالت دی چې د هغه زائلول د عاقدینو په لاس کې دی او دا مُفضي الی النزاع هم نه دی.

او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې څرنګه د بیع قفیز په صورت کې موږ په یوه قفیز کې د بیع جائز کېدلو خبره کوله او د "کُلّ" د اقلّ وطرف ته مو بیع ګرځوله او صرف په هغه یوه قفیز کې مو بیع جائز ګڼله. همداسې دلته هم د قیاس له رویه موږ ته هغسې کول پکار دي، خو څرنګه چې په رمه کې بېلابېل (مختلف قسمه) پَسونه وي یعني د هغوی په قیمتونو او مصالحو کې زیات تفاوت وي، همدارنګه په لاسي کپړه کې هم تفاوت وي، او د هندوانې او داسې نورو تفاوت خو ښکاره دی، نو اوس که د اقلّ وطرف ته بیع وګرځول سي یعني صرف په یوه پَسه، یا یوه ګز کپړه، یا یوه هندوانه کې بیع جائز وګرځول سي، نو دا ټوله صورتونه به مُفضي الی النزاع وګرځي ځکه چې د تفاوت په وجه به مشتري ښه پَسه، ښه کپړه او غټه هندوانه غواړي، او بائع به په ټولو صورتونو کې هغه ته کمزوری پَسه، خرابه کپړه او چینجنه هندوانه ورکوي او په دې توګه به د جنګ او نزاع نوبت راسي، لنډه دا چې دغه صورتونه مُفضي الی النزاع دي، او مخکې تاسو ووېل چې کوم صورت مُفضي الی النزاع وي هغه د عقد له جواز څخه مانع دی او عقد فاسدوي، نو دغه صورتونه به هم د عقد له جواز څخه مانع وي او د

عقد فاسدونکي به وي، نو د دغو ټولو صورتونو په هر جزء او هره حصه کي به بيع فاسديږي. لېکن څرنګه چي په غله (غنمو) کي تفاوت نه وي، نو ځکه هلته به په يوه قفيز کي د بيع په نافذولو سره جنګ او نزاع نه واقع کيږي او بيع به جائز کيږي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دې جمله "فَوَضَحَ الفَرْقُ" سره همدغه فرق ته اشاره کړې ده.

**يادونه:** نن سبا زياتره د هر تان کپړه په يوه انداز سره وي، نو په داسي تان کي د يوه ګز بيع جائز کيږي، يا که دويم ځل ټوله تان ګز کړي او د تان بيع وکړي، نو هم د تان بيع جائز کيږي. پورتنی حکم صرف د کپړې د اختلاف او بدلون په صورت کي دی.

## د مبيع د کمېدلو يا زياتېدلو بيان

قَالَ: وَمَنِ ابْتَاعَ صُبْرَةَ طَعَامٍ عَلَى أَنَّهَا مِائَةُ قَفِيزٍ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ فرمايي: او څوک چي د غنمو يوه کوړه خرڅه کړي پر دې شرط [او په دې توګه] چي دا سل قفيزونه دي په سلو درهمو فَوَجَدَهَا أَقَلَّ بيا مشتري هغه کم ومونده كَانَ الْمُشْتَرِي بِالْخِيَارِ نو مشتري ته اختيار دی إِنْ شَاءَ أَخَذَ الْمَوْجُودَ بِحِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ که هغه وغواړي نو موجوده قفيزونه دي د هغوی د حصې په مطابق ثمن سره واخلي وَإِنْ شَاءَ فَسَخَ الْبَيْعَ او که وغواړي نو بيع دي فسخ کړي لِتَفَرُّقِ الصَّفْقَةِ عَلَيْهِ قَبْلَ التَّمَامِ ځکه چي [دلته] د بيع تر پوره کېدلو مخکي پر مشتري صفقه متفرقه سوه فَلَمْ يَتِمَّ رِضَاهُ بِالْمَوْجُودِ نو په موجوده قفيزونو سره د هغه رضا پوره نه سوه [ځکه چي د هغه رضا په سلو قفيزونو پوره کيږي، يعني هغه په سلو قفيزنو راضي وو] وَإِنْ وَجَدَهَا أَكْثَرَ او که مشتري قفيزونه [له سلو څخه] زيات ومونده فَالزِّيَادَةُ لِلْبَائِعِ نو زياتوب [زائد مقدار] د بائع لپاره دی. لِأَنَّ الْبَيْعَ وَقَعَ عَلَى مِقْدَارٍ مُعَيَّنٍ ځکه چي بيع پر يو مُتعين مقدار واقع سوې ده وَالْقَدْرُ لَيْسَ بِوَصْفٍ او مقدار وصف نه دی.

**اللغات:** ﴿اِبْتَاعَ﴾ د افتعال ماضي ده: رانيول. ﴿صَفْقَةٌ﴾ عقد، معامله (د بيع معامله).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی (مثلاً) د غنمو يوه کوړه رانيسي او بائع ووايي چي دا سل قفيزونه دي د سلو درهمو په عوض کي، لېکن کله چي مشتري هغه پيمانه کړي نو له سلو قفيزونو څخه کم وخيږي. نو فرمايي چي په دغه صورت کي مشتري ته د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار حاصليږي؛ ځکه کله چي د سلو درهمو په عوض کي د سلو قفيزونو بيع وسوه، نو دا يوه

صفقه سوه، او اوس چي هغه له سلو څخه کم وختل، نو ښکاره خبره ده چي په صفقه کي تفرق او تبدیلي راغله (یعني د کموالي په وجه صفقه متفرقه سوه، ځکه بائع د سلو قفیزونو شرط لګولی دی چي دا سل قفیزونه دي او مشتري به ماته د هغه په عوض کي سل درهمه راکوي. لېکن هغه تر سلو کم سول. نو ګواکي صفقه متفرقه سوه)، همدارنګه د مشتري رضا د اولي صفقې سره یعني د سلو قفیزونو سره متعلق وه (یعني هغه په سلو قفیزنو راضي وو)، او له سلو څخه په کمو قفیزونو معلومه نه ده چي هغه راضي دی، که نه؟ یا معلومه نه ده چي دا به د هغه ضرورت پوره کړي، که نه؟. لهذا کله چي پر مشتري صفقه متفرقه سوه، نو ځکه له سلو څخه په کمو قفیزونو کي د هغه د رضا معلوملو لپاره به هغه ته د اخیستلو او نه اخیستلو اختیار ورکول کیږي، نو که چیري هغه دغه موجوده کم قفیزونه د هغوی د حصې په مطابق ثمن سره اخیستل وغواړي (مثلاً ټوله نیوي [۹۰] قفیزونه وي او مشتري هغوی په نیوي درهمو اخیستل وغواړي)، نو هغه په راضي دی او بیع به جائز کیږي، او که هغه انکار وکړي، نو ښکاره خبره ده چي هغه په دغه صفقې او په دغه مقدار راضي نه دی.

وإن وجدها إلخ: فرمایي که په پورتني صورت کي قفیزونه تر سلو زیات وخیږي، نو زیاتوب (یعني زائد قفیزونه) ټوله د بائع کیږي (مثلا تر پیمانه کولو وروسته ښکاره سوه چي ټوله یو سل او لس [۱۱۰] قفیزونه دي یعني لس قفیزونه زیات دي، نو دا لس قفیزونه د بائع کیږي)؛ د دې یوه وجه خو دا ده چي بیع پر یو مُتعیّن مقدار (سلو قفیزونو) واقع سوې ده، لهذا دا بیع به صرف تر همدې مقداره پوري محدوده وي، او دویمه وجه دا ده چي قفیز د غنمو (غلې) وصف نه دی چي د غنمو تابع کړی سي او مشتري ته ورکول سي، ځکه که چیري قفیز د غنمو وصف وای نو د غنمو سره به یو ځای د مشتري قبضې ته تللای، لکه څرنګه چي د غوایي چاغوالی د غوایي وصف دی او هغه د غوایي سره یوځای مشتري ته ځي، لېکن قفیز وصف نه دی بلکي مقدار دی او اصل دی، نو ځکه هغه به د غنمو سره د مشتري قبضې ته نه ځي (مشتري ته به نه ورکول کیږي)، بلکي جلا به د هغه لپاره قیمت ټاکل کیږي، حال دا چي د هغه قیمت (د بیع په شروع کي) نه دی ټاکل سوی، نو ځکه اوس به هغه صرف د بائع لپاره پاتیږي او مشتري ته به صرف د هغه مقدار د اخیستلو اختیار حاصل وي پر کوم مقدار چي بیع واقع سوې ده او له هغه څخه زائد مقدار به پر مشتري واجبُ الرّدّ وي.

**اصول**: په غله کي قفیز (مقدار) اصل دی، وصف نه دی او د اصل په مقابله کي جلا قیمت راځي، او په مذروعاتو کي ذِراع وصف دی. لنډه دا چي په مکیلاتو او موزوناتو کي مقدار یعني کمي او زیاتوب (قلت او کثرت) اصل دي او په مذروعاتو کي ذراع وصف دی.

**فايده:** د اصل او وصف په مينځ كي فرق: اصل دې ته وايي چي د هغه په مقابله كي قيمت (ثمن) وي او وصف له قيمت څخه خالي وي. او بل فرق يې دا دى چي كوم شى په حصه، حصه كولو (ټوټه، ټوټه كولو) سره عيبداره كيږي، نو كمي او زياتوب په هغه كي وصف دى، او كوم شى چي په حصه، حصه كولو سره نه عيبداره كيږي، نو كمي او زياتوب په هغه كي اصل دى.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَمَنِ اشْتَرٰى ثَوْبًا عَلٰى أَنَّهُ عَشَرَةُ أَذْرُعٍ بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ او څوک چي كپړه رانيسي پر دې شرط چي دا لس گزه ده [او] په لسو درهمو ده أَوْ أَرْضًا عَلٰى أَنَّهَا مِائَةُ ذِرَاعٍ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ يا ځمكه پر دې شرط رانيسي چي دا سل گزه ده [او] په سلو درهمو ده فَوَجَدَهَا أَقَلَّ بيا مشتري هغه كمه ومونده فَالْمُشْتَرِي بِالْخِيَارِ نو [په دې صورت كي] مشتري ته اختيار دى إِنْ شَاءَ أَخَذَهَا بِجُمْلَةِ الثَّمَنِ كه وغواړي نو هغه موجوده مقدار دې په ټوله ثمن سره واخلي وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ او كه وغواړي نو [هغه] دې پرېږدي لِأَنَّ الذِّرَاعَ وَصْفٌ فِي الثَّوْبِ ځكه چي ذراع [گز] په كپړه كي وصف دى أَلَا تَرٰى أَنَّهُ عِبَارَةٌ عَنِ الطُّولِ وَالْعَرْضِ آيا ته نه گورې! چي ذراع له طول [اوږدوالي] او عرض [پراخوالي] څخه عبارت دى [ځكه چي په هغه سره اوږدوالى او پراخوالى معلوميږي] وَالْوَصْفُ لَا يُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ او د وصف په مقابله كي هيڅ ثمن نه راځي كَأَطْرَافِ الْحَيَوَانِ لكه د حيوان اعضاء فَلِهٰذَا يَأْخُذُهُ بِكُلِّ الثَّمَنِ نو په همدې وجه به مشتري هغه په ټوله ثمن سره اخلي بِخِلَافِ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت [يعني د غنمو مسئله] لِأَنَّ الْمِقْدَارَ يُقَابِلُهُ الثَّمَنُ ځكه چي [هلته] د مقدار په مقابله كي ثمن وي فَلِهٰذَا يَأْخُذُهُ بِحِصَّتِهِ نو په همدې وجه به [هلته] مشتري موجوده مقدار د هغه په حصه سره اخلي [يعني موجوده قفيزونه به د هغوى د حصې په مطابق ثمن سره اخلي] إِلَّا أَنَّهُ يَتَخَيَّرُ مگر مشتري ته به اختيار وي لِفَوَاتِ الْوَصْفِ الْمَذْكُورِ لِتَغَيُّرِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ ځكه چي د معقود عليه د بدلېدلو په وجه مذكوره وصف فوت سوى دى فَيَخْتَلُّ الرِّضَا نو [د مشتري] په رضا كي به خلل راسي [يعني د مشتري رضا پوره نه سوه] قَالَ: وَإِنْ وَجَدَهَا أَكْثَرَ مِنَ الذِّرَاعِ الَّذِي سَمَّاهُ او كه مشتري مبيع له هغو گزونو څخه زياته ومونده

کوم چي بائع ذکر کړي وي فَهُوَلِلْمُشْتَرِي نو هغه ازائد گزونه ا د مشتري دي وَلَاخِيَارَلِلْبَائِعِ او بائع لره هيڅ اختيار نسته لِأَنَّهُ صِفَةٌ ځکه چي ذراع صفت [وصف] دی فَكَانَ بِمَنْزِلَةِ مَا إِذَا بَاعَهُ مَعِيْبًا فَإِذَا هُوَ سَلِيْمٌ لهذا دا داسي سوه لکه بائع چي يو عيبداره [عيبجن] شی خرڅ کړي او بيا هغه سالم [روغ] ثابت سي.

**اللغات**: ﴿أَذْرُع﴾ جمع د ذِرَاعٌ ده: شرعي گز. ﴿أَطْرَاف﴾ جمع د طَرَفٌ ده: جانب، طرف، اړخ، مراد ځني اعضاء (اندامونه) دي (اثمار الهدايه). ﴿مَعْقُوْد عَلَيْه﴾ پر کوم شي چي عقد سوی وي، مبيع. ﴿يَخْتَلّ﴾ د افتعال مضارع ده: خلل راتلل، خرابېدل (عيبداره کېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک يوه کپړه رانيسي او بائع ووايي چي دا لس گزه کپړه ده د لسو درهمو په عوض کي، يا مثلاً ځمکه رانيسي او ووايي چي دا سل گزه ځمکه ده د سلو درهمو په عوض کي، او بيا هغه کپړه يا ځمکه له دغه مقدار څخه کمه سي، نو په دې دواړو صورتونو کي مشتري ته دوه اختياره حاصليږي: (۱) که وغواړي نو هغه کپړه يا ځمکه دې د ټوله ثمن په عوض کي واخلي، (۲) يا دې هغه پرېږدي. يعني مشتري ته د گزونو د کمېدلو په وجه د ثمن کمولو اختيار نسته.

او د دې وجه دا ده چي طُول (اوږدوالی) او عرض (پلنوالی) وصف "صفت" دی، نو په کپړه کي گز (ذراع) وصف سو، او څه مخکي موږ وويل چي د وصف په مقابله کي جلا ثمن (قيمت) نه راځي، نو ځکه لس گزه يا سل گزه صرف د ترغيب لپاره سوه او په دې کي د هر گز په بدله کي يو درهم نه راغلی (يعني کله چي د وصف په مقابله کي ثمن نه راځي، نو د بائع له طرفه د لسو گزو يا سلو گزو بيانول په حقيقت کي د دې لپاره سوه چي مبيع (کپړې يا ځمکي) ته د مشتري رغبت وسي. لهذا کله چي د وصف [ذراع] په مقابله کي ثمن نه راځي نو د هر گز په بدله کي يو درهم نه راغلی)، نو گواکي د ټولې کپړې قيمت لس درهمه سو او د پوره ځمکي قيمت سل درهمه سو او د هر گز قيمت يو درهم نه سو، خلاصه دا چي گز وصف دی او د وصف په کمېدلو يا زياتېدلو سره پر اصل مُتعيّن کړی سوي ثمن هيڅ اثر نه پريوځي، لکه کله چي د حيوان اطراف مثلاً لاس يا پښې يا داسي نور د بائع په قبضه کي د هغه له تعدی څخه بغير عيبداره سي، نو د هغه په وجه ثمن نه کمول کيږي، ځکه چي هغوی هم اوصاف دي، لهذا وصف چي هرڅنگه وي د هغه په مقابله کي ثمن (قيمت) نه راځي، همداسي دلته هم گزونه وصف دي، لهذا د هغوی په مقابله کي به هم ثمن نه وي، او کله چي د هغوی په مقابله کي ثمن نسته، نو د هغوی په کمېدلو سره به ثمن هم نه کميږي.

بخلاف الفصل الأول: فرمايي چي د غنمو (غلې) مسئله له دغه مسئلې څخه جلا ده؛ ځكه چي هلته مقدار وصف نه دى، بلكي اصل دى، او د اصل په مقابله كي ثمن (قيمت) راځي، لهذا كه هلته په مقدار (قفيزونو) كي كمي راسي، نو مشتري به هم له ثمن څخه هغومره مقدار كموي.

إلا أنه إلخ: د دې حاصل دا دى چي كله په كپړه او ځمكه كي گز (ذراع) وصف سو او د هغه په كمېدلو سره په ثمن كي هيڅ كمي نه راځي، نو اوس به معامله څنگه وي؟ په ښكاره خو همدا معلومېږي چي پر مشتري به په ظلم او اكراه سره د مبيع اخيستل لازم سي، نو فرمايي چي داسي نه ده، بلكي په دې صورت كي مشتري ته د اخيستلو، نه اخيستلو اختيار حاصلېږي؛ ځكه چي د مشتري رضا د لس گزه كپړې او د سل گزه ځمكي سره متعلقه وه او كله چي هغه مقدار معدوم دى، نو ښكاره خبره ده چي په پاته مقدار (كم مقدار) د هغه راضي كېدل معلوم نه دي چي په هغه راضي دى، كه نه؟، نو ځكه به په دې صورت كي هغه ته د اخيستلو، نه اخيستلو اختيار حاصل وي.

وإن وجدها إلخ: فرمايي كه كپړه يا ځمكه د بائع له بيان سوي گزونو څخه زياته وخېږي، نو څرنگه چي د كمېدلو په صورت كي مشتري هغه په خپل ټوله قيمت سره اخلي او د گزونو د كمۆالي په وجه ثمن نه كموي، همداسي د زياتېدلو په صورت كي به هم هغه زياتوب (زائد گزونه) د مشتري وي او بائع ته به هيڅ اختيار حاصل نه وي؛ ځكه چي ذراع وصف دى او د هغه په مقابله كي ثمن نه راځي، نو دا صورت داسي سو لكه كله چي بائع يوه عيبداره مينځه خرڅه كړي او مشتري چي هغه واخلي نو هغه صحيح سالمه او له عيب څخه پاكه وخېږي، نو دلته هم د دغه وصف (سالم والى) په مقابله كي بائع ته نه زيات ثمن وركول كېږي او نه هغه ته يو ډول اختيار حاصلېږي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

وَلَوْقَالَ: بِعْتُكَهَا عَلَى أَنَّهَا مِائَةُ ذِرَاعٍ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ كُلُّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ او كه بائع [داسي] ووايي: ما دا كپړه [يا ځمكه] پر تا خرڅه كړه پر دې شرط چي دا سل گزه ده په سلو درهمو [او] هر گز په يوه درهم فَوَجَدَهَا نَاقِصَةً بيا مشتري هغه كمه ومونده فَالْمُشْتَرِي بِالْخِيَارِ نو [په دې صورت كي] مشتري ته اختيار دى إِنْ شَاءَ أَخَذَهَا بِحِصَّتِهَا مِنَ الثَّمَنِ كه وغواړي نو موجوده كپړه دي د خپلي حصې په مطابق ثمن سره واخلي وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ او كه وغواړي نو [هغه] دي پرېږدي لِأَنَّ الْوَصْفَ وَإِنْ كَانَ تَابِعًا لَكِنَّهُ صَارَ أَصْلًا بِإِفْرَادِهِ بِذِكْرِ الثَّمَنِ ځكه وصف كه څه هم تابع دى، لېكن د ثمن په ذكر كي د هغه

په جلا ذکر کولو سره هغه اصل وګرځېدی [یعني کله چې بائع ووېل چې هر ګز په یوه درهم دی یعني د هر ګز لپاره یې جلا ثمن (درهم) ذکر کړی، نو د ثمن په جلا ذکر کولو سره هر ګز اصل وګرځېدی] فَيُنَزَّلُ كُلُّ ذِرَاعٍ مَنْزِلَةَ ثَوْبٍ نو ځکه به هر ګز د جلا کپړې په درجه ګرځول کیږي وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَوْ أَخَذَهُ بِكُلِّ الثَّمَنِ لَمْ يَكُنْ آخِذًا لِكُلِّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ او دا حکم په دې وجه دی چې که مشتري موجوده کپړه د ټوله ثمن په عوض کې واخلي نو هغه به د یوه درهم په عوض کې د هر ګز اخیستونکی نه وي (احسن الهدايه) وَإِنْ وَجَدَهَا زَائِدَةً او که مشتري هغه کپړه [له سلو ګزو څخه] زیاته ومومندي فَهُوَ بِالْخِيَارِ نو [هم] هغه ته اختیار دی إِنْ شَاءَ أَخَذَ الْجَمِيعَ كُلُّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ که وغواړي نو ټوله کپړه دې واخلي هر ګز په یوه درهم سره وَإِنْ شَاءَ فَسَخَ الْبَيْعَ او که وغواړي نو بیع دې فسخ کړي لِأَنَّهُ إِنْ حَصَلَ لَهُ الزِّيَادَةُ فِي الذَّرْعِ ځکه که څه هم هغه ته په ګزونو کې زیاتوب حاصل سو [یعني که څه هم په دې صورت کې هغه ته زیات ګزونه حاصلیږي] تَلْزَمُهُ زِيَادَةُ الثَّمَنِ [لېکن د هغه په بدله کې] پر هغه زیات ثمن هم لازمیږي فَكَانَ نَفْعًا يَشُوبُهُ ضَرَرٌ نو دا داسې نفع سوه چې نقصان هم په ګډه دی [یعني په دغه نفع کې تاوان هم شامل دی] فَيَتَخَيَّرُ نو ځکه به هغه ته اختیار وي وَإِنَّمَا يَلْزَمُهُ الزِّيَادَةُ لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ صَارَ أَصْلًا او پر مشتري زیاتوب په هغه دلیل سره لازمیږي کوم چې موږ بیان کړی چې ذراع اصل وګرځېدی وَلَوْ أَخَذَهُ بِالْأَقَلِّ او که موجوده کپړه مشتري په کم ثمن سره واخلي لَمْ يَكُنْ آخِذًا بِالْمَشْرُوطِ نو هغه به د شرط کړل سوي عوض مطابق [د هغه] اخیستونکی نه وي.

**اللغات:** ﴿إِفْرَاد﴾ د افعال مصدر دی: جلا کول، علیحده کول. ﴿فسخ﴾ د نصر ماضي ده: بیع فسخ کول (ماتول)، سودا ماتول. ﴿يَشُوْب﴾ د نصر مضارع ده: ګډېدل، شاملېدل. ﴿ضَرَر﴾ نقصان، تاوان.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که بائع پر یو چا کپړه (یا ځمکه) خرڅه کړي او ووایي چې دا سل ګزه کپړه ده د سلو درهمو په عوض کې او دا خبره هم وکړي چې هر ګز په یوه درهم دی، بیا چې کله مشتري هغه کپړه ګز کړي نو له سلو ګزونو څخه کمه سي، فرمایي چې په دې صورت کې هم متشري ته دوه اختیاره حاصلیږي: ① که د هغه زړه وغواړي نو موجوده ګزونه دې د هغوی د شمېر په مطابق ثمن سره واخلي (مثلاً که ټوله پنځه نیوي [۹۵] ګزه وي نو پنځه نیوي دراهم دې ورکړي). ② یا دې هغه پرېږدي. یعني دلته داسې نه سي کېدای چې د اخیستلو په صورت کې به پوره سل درهمه

ورکوي؛ ځکه که څه هم ذراع وصف دی او په دې اعتبار سره د هغه په مقابله کې ثمن راتلل پکار نه دي، لېکن کله چې دلته بائع "كُلُّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ" ویلي دي او د هر ذراع په عوض کې یې یو درهم شرط کړی دی، نو د هر ذراع په مقابله کې د ثمن ذکر کولو په وجه هر ذراع اصل سو، ځکه چې ثمن صرف د اصل په مقابله کې وي همدارنګه هر ذراع د کپړې په درجه کې سو او سل یا له سلو څخه کم ذراعونه د سل ګزه کپړې یا له هغه څخه د کمې کپړې په درجه کې سول. او ښکاره خبره ده چې کپړه اصل ده او د اصل په مقابله کې ثمن راځي، لهذا دلته به هم د هر ذراع په مقابله کې ثمن وي، او که ذراع نه وي، نو ثمن به هم نه وي، او څرنګه چې په دغه پورتنۍ صورت کې ذراعونه له سلو څخه کم سوي دي، نو ځکه د کم سوو (کم شُده) ذراعونو په مقابله کې به هیڅ ثمن نه وي او مشتري به د کم سوو ذراعونو په حساب سره ثمن کموي.

وهذا لأنه إلخ: په دې سره د دغه کمولو یوه بله وجه بیانوي، فرمایي چې کله بائع "كُلُّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ" وویل، نو دا ثابته سوه چې هغه د هر درهم په عوض کې د یوه ذراع د خرڅولو شرط ولګوی، لهذا اوس که مشتري له سلو څخه کم ذراعونه د پوره سلو درهمو په عوض کې واخلي، نو ښکاره خبره ده چې مشتري د بائع د شرط په خلاف هغه واخیستل اوبل دا چې هغه خپل ځان هم تاواني کړی، او په معاملاتو کې حتی الامکان د شرائطو رعایت کیږي، نو په دې وجه به هم مشتري د کم شُده ذراعونو په بدله کې ثمن کموي او هغه به ته به د موجوده ذراعونو د شمېر په مطابق ثمن سره د اخیستلو یا نه اخیستلو اختیار حاصل وي. او مشتري ته د اختیار حاصلېدلو وجه هغه ده کوم چې مخکې بیان سوه چې د هغه له تعدی څخه بغیر پر هغه صفقه متفرقه سوه.

وإن وجدها إلخ: د دې حاصل دا دی چې که په پورتنۍ صورت کې کپړه له سلو ګزونو څخه زیاته سي، نو فرمایي چې په دغه صورت کې هم مشتري ته هغه مخکنۍ دوه اختیاره حاصلیږي: ① که وغواړي نو ټوله کپړه دې هر ګز په یوه درهم سره واخلي، ② کنې بیع دې فسخ کړي؛ ځکه که څه هم دلته د ټولې کپړې د اخیستلو په صورت کې مشتري ته له مُتعیّن مقدار څخه زیاته کپړه حاصلیږي، لېکن د هغه په بدله کې ثمن هم زیات پر لازمیږي چې هغه به بائع ته ورکوي، او که داسې نه وکړي نو د شرط کړل سوي عوض (یعني د كُلُّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ) مطابق به هغه اخیستونکی نه وي، لهذا د كُلُّ ذِرَاعٍ په شرط باندې د عمل کولو په خاطر به هغه ته د ټولې کپړې د اخیستلو اختیار حاصل وي، همدارنګه هغه ته به د بیع فسخ کولو اختیار هم حاصل وي، ځکه چې دلته په زیاتوب (یعني له سلو څخه په زیاتو ګزونو) سره مشتري ته یو داسې نفع حاصلیږي چې په هغه کې نقصان (یعني د زیاتو ګزونو

ثمن اداء کول) هم شامل دي (یعني که څه هم دلته مشتري ته نفع حاصلیږي خو د هغه په مقابله کي به مشتري تاوان هم ورکوي). او کېدای سي چي د هغه سره تر سلو درهمو زیات مال نه وي او هر انسان د خپل نفع او نقصان مالک دی، نو ځکه د سوچ او غور کولو لپاره به هغه ته مذکوره دوه اختیاره حاصلیږي.

## د کور یا داسي بل ځای له سلو ګزو څخه لس ګزه رانیول (او د فقهاؤ اختلاف)

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى عَشَرَةَ أَذْرُعٍ مِنْ مِائَةِ ذِرَاعٍ مِنْ دَارٍ أَوْ حَمَّامٍ فرمایي: او څوک چي د کور یا د حمام له سلو ګزونو څخه لس ګزه رانیسي [له ذراع څخه شرعي ګز مراد دی] فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بیع فاسده ده وَقَالَا ۞ : هُوَ جَائِزٌ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي جائز ده وَإِنِ اشْتَرٰى عَشَرَةَ أَسْهُمٍ مِنْ مِائَةِ سَهْمٍ او که له سلو حصو څخه لس حصې رانیسي جَازَ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو د ټولو په قول بیع جائز ده لَهُمَا: أَنَّ عَشَرَةَ أَذْرُعٍ مِنْ مِائَةِ ذِرَاعٍ عُشْرُ الدَّارِ د صاحبینو دلیل دا دی: چي له سلو ګزونو څخه لس ګزه د کور لسمه حصه ده فَأَشْبَهَ عَشَرَةَ أَسْهُمٍ نو دا د لسو حصو سره مشابه سوه وَلَهُ: أَنَّ الذِّرَاعَ اسْمٌ لِمَا يُذْرَعُ بِهِ د امام صاحب دلیل دا دی: چي ذارع د هغه آلې نوم دی چي په هغې سره شي ګزول کیږي [یعني په کومه آله سره چي شیان ګزول کیږي هغه ته ذراع وایي] وَاسْتُعِيرَ لِمَا يَحِلُّهُ الذِّرَاعُ او هغه په عاریت اخیستل سوی دی د هغه شي لپاره چي په هغه کي ذراع حلول کوي [یعني چي پر هغه ذراع واقع کیږي. مطلب دا چي کوم شی په دغه آلې سره ګزول کیږي د هغه لپاره د "ذراع" لفظ مستعار اخیستل سوی دی] وَهُوَ الْمُعَيَّنُ دُونَ الْمُشَاعِ او هغه مُعین [تاکل سوی] دی [چي لس ګزه ځمکه یا حمام دی]، مشترک نه دی وَذٰلِكَ غَيْرُ مَعْلُومٍ [لېکن] هغه نامعلوم دی [چي له کوم طرفه لس ګزه دي] بِخِلَافِ السَّهْمِ په خلاف د حصې وَلَا فَرْقَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ بَيْنَ مَا إِذَا عَلِمَ مِنْ جُمْلَةِ الذُّرْعَانِ أَوْ لَمْ يَعْلَمْ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دې کي هیڅ فرق نسته چي د ټولو ګزونو علم وي او

---

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، لأن قولهما استحسان، والفقهاء يترجحون الاستحسان على القياس. وقال المفتي غلام قادر النعماني: القول الراجح هو قول الصاحبين، لكن الفتوىٰ على قول أبي حنيفة في زماننا الّتي في هذه المسئلة (بيع الدار والحمام) لا سيّما في الأسواق الكبيرة والبلدان، لأن جوانبها متفاوتة قيمةً، والفساد والنـزاع في هذا الزمان أكثر [القول الراجح ج:۲، ص:۴]

که نه وي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحیح ده خِلَافًا لِمَا يَقُوْلُهُ الْخَصَّافُ په خلاف د هغه کوم چي امام خصاف رَحِمَهُ الله فرمایي [یعني په خلاف د امام خصاف د قول] لِبَقَاءِ الْجَهَالَةِ ځکه چي [په دواړو صورتونو کي] جهالت باقي پاتیږي.

**اللغات**: ﴿دَار﴾ غټ کور (چي په هغه کي څو خوني [کمرې] وي)، ﴿حَمَّام﴾ غسل خانه (غسلخانه)، له حَمَّام څخه هغه پخواني غټ حمام مراد دی چي هغه کي به یو طرف ته د ګرمو اوبو حوض وو او بل طرف ته به د یخو اوبو حوض وو، او خلکو به حمام والا ته أجرت او کرایه ورکول او په هغه کي به یې غسلونه کول. ﴿يُذْرَعُ﴾ د فتح له بابه د مضارع مجهولي صیغه ده: ګزول، په ذراع (ګز) سره اندازه کول (ناپول)، ﴿مُشَاع﴾ مشترک (کوم چي تر اوسه تقسیم سوی نه وي)، شایع شُده.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک د یو کور یا د یو حمام له سل ګزه ځای څخه صرف لس ګزه ځای رانیسي، یا د یو کور یا حمام د لسو حصو څخه صرف لس حصې رانیسي، نو د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په دواړو صورتونو کي بیع جائز ده، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز په دویم صورت کي خو بیع جائز ده، لیکن په اول صورت کي بیع فاسده ده.

**د صاحبینو دلیل**: دا دی چي د کور یا حمام له سلو ګزونو څخه لس ګزه د هغوی لسمه حصه (عُشر) دی، یعني څرنګه چي له سلو حصو څخه لس حصې د سلو حصو عُشر دی، همدارنګه له سلو ګزونو څخه لس ګزه هم د سلو ګزونو عُشر دی، او په سلو حصو کي د لسو حصو (عُشر) بیع جائز ده، او کله چي دا یعني له سلو ګزونو څخه لس ګزه د لسو حصو سره مشابه دي، نو ځکه په دوی کي د بیع نه جائز کېدلو حکم کول بالکل مناسب نه ښکاري، او بل دا چي تاسو (امام صاحب) هم د حصو والا په صورت کي بیع جائز ګرځوی.

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چي د ذرع اصل معنیٰ د "مذارعة آله" ده، یعني ذراع په اصل کي هغه آلې ته وایي چي په هغه سره شیان ګزول کیږي او څرنګه چي دلته هغه پر خپله حقیقي معنیٰ حمل کول مشکل دي، نو ځکه به دلته مجازاً له ذراع څخه هغه شی مرادیږي چي پر هغه ذراع واقع کیږي یعني مذروع (کوم شی چي ګز کړل سوی وي)، او مذروع خو مُعیّن دی (چي لس ګزه ځمکه یا حمام دی)، لیکن هغه مُشاع نه دی (یعني په دغه مذروع کي شیوع او شرکت نه چلیږي لکه څرنګه چي په حصو [سهامو] کي چلیږي. د دې وضاحت به وروسته وسي)، خو د مُعیّن والي باوجود دغه مذروع نامعلوم (مجهول) هم دی، ځکه کله چي له سل ګزه ځای څخه د لسو ګزو معامله سوې ده، نو که څه هم له سلو ګزو څخه لس

ګزه مُتعيّن سوي دي لېکن دا معلومه نه ده چي هغه لس ګز به له کوم طرفه مشتري ته ورکول کيږي (ځکه چي د بيع په شروع کي دا خبره نه ده سوې او طرف نه دي مُتعيّن سوی)، او کور او حمام داسي ځای دی چي د هغه د يوه طرف او د بل طرف په قيمت کي زيات فرق وي، مثلاً د کور د دروازې چي کوم طرف وي د هغه قيمت زيات وي، او د شا د طرف قيمت يې کم وي، لهذا کله چي د هغه تعيين نه دي سوی، نو ښکاره خبره ده چي دا صورت به مُفضي الى النزاع وي، ځکه مشتري به د مخ لخوا ګران قيمت والا لس ګزه غواړي او بائع به ارزانه قيمت ولا لس ګزه ورکوي او په دې توګه به د نزاع او اختلاف نوبت راسي، او تاسي له شروع څخه دا أصول او قاعده واياست چي کوم جهالت مُفضي الى النزاع وي، هغه عقد فاسدوي، نو همداسي به دا هم عقد فاسدوي.

بخلاف السهم: لېکن څرنګه چي له سلو حصو څخه د لسو حصو بيع مُفضي الى النزاع نه ده، نو ځکه هغه صحيح ده، او هغه ځکه مُفضي الى النزاع نه ده چي د حصو (سهامو) د خرڅولو په صورت کي ځمکه نه ګزول کيږي بلکي صرف په حصو کي مشتري شريک کيږي او فايده ځني اخلي، د مثال په توګه که يو سړي د خپل کور لس (۱۰) حصې پر يو سړي خرڅي کړي او نيوي (۹۰) حصې ځان ته راوګرځوي، او بيا هغه کور يو شوک په کرايه ونيسي او کريه سل (۱۰۰) روپۍ وي، نو نيوي (۹۰) روپۍ به بائع اخلي (کوم چي په کور کي نيوي حصې لري) او لس (۱۰) روپۍ به مشتري اخلي (کوم چي په کور کي لس حصې لري) او کور به مشترک او مُشاع وي او د هغه ګزولو او تقسيمولو ته هيڅ ضرورت نه وي، يا مثلاً د کوم سړي چي په دغه کور کي نيوي حصې دي هغه به له کور څخه نهه ورځي فايده اخلي، او د کوم سړي چي لس حصې دي هغه به يوه ورځ فايده ځني اخلي، ځکه چي د هغه حق لسمه حصه دی، نو دلته (يعني د حصو په صورت کي) هيڅ جنګ او نزاع نه واقع کيږي، او دلته که څه هم د حصو د نه تعيين په وجه جهالت سته، خو دا معمولي غوندي او سپک جهالت دی او داسي جهالت مُفضي الى النزاع نه وي، او عقد هغه وخت فاسديږي کله چي جهالت مُفضي الى النزاع وي، نو ځکه په دې صورت کي بيع جائز کيږي.

ولا فرق إلخ: فرمايي برابره ده د ګزونو والا په صورت کي د کور او حمام ټوله ګزونه معلوم وي او که نه وي، په دواړو صورتونو کي بيع فاسديږي، يعني که بائع داسي ووايي چي دا کور سل ګزه دی او له دې څخه زه لس ګزه خرڅوم، نو په دې صورت کي هم بيع فاسديږي، ځکه چي ځای (طرف) مُتعيّن نه دی، همدارنګه که بائع داسي ووايي چي له دغه کور څخه زه لس ګزه خرڅوم، او دا بيان نه کړي چي دا کور سل ګزه دی يا څومره دی؟، نو په دې صورت کي هم بيع فاسديږي، ځکه چي دلته ځای هم مُتعيّن نه دی او ټوله ګزونه هم معلوم نه دي، نو د دغه دوو جهالتونو په وجه بيع فاسديږي. امام

خصاف رَحِمَهُ الله فرمايي چي که د کور يا حمام ټوله ګزونه معلوم وي، نو د امام صاحب په نېز بيع نه فاسديږي؛ ځکه کله چي ټوله ګزونه معلوم وي نو له سلو ګزونو څخه لس ګزه عُشر (لسمه حصه) سوه، او څرنګه چي له سلو حصو څخه لس حصې خرڅول جائز دي، همداسي به له سلو ګزونو څخه لس ګزه خرڅول جائز وي، لېکن صحيح او معتمد اول قول دی چي ټوله ګزونه معلوم وي او که نه وي، په دواړو صورتونو کي بيع فاسديږي، ځکه چي په دواړو صورتونو کي جهالت باقي پاتيږي (مشتري به د مخ والا لس ګزه غواړي او بائع به د شا د طرف لس ګزه ورکوي او په دې توګه به د نزاع نوبت راسي، نو ځکه په دې دواړو صورتونو کي به بيع فاسديږي).

## تر بيع وروسته د مبيع په ذات کي د بدلون راتللو حکم

وَلَوِ اشْتَرَى عِدْلًا عَلَى أَنَّهُ عَشَرَةُ أَثْوَابٍ او که څوک د کپړو يو ګانټ رانيسي پر دې شرط چي هغه لس تانه دی فَإِذَا هُوَ تِسْعَةٌ أَوْ أَحَدَ عَشَرَ لېکن هغه نهه [۹] يا يوولس [۱۱] تانه وي فَسَدَ الْبَيْعُ لِجَهَالَةِ الْمَبِيعِ أَوِ الثَّمَنِ نو [په دې صورت کي] د مبيع يا ثمن د مجهول والي په وجه بيع فاسديږي وَلَوْ بَيَّنَ لِكُلِّ ثَوْبٍ ثَمَنًا او که بائع د هر تان ثمن بيان کړي جَازَ فِي فَصْلِ النُّقْصَانِ بِقَدْرِهِ نو [د تان] د کمېدلو په صورت کي د هغه په مقدار سره بيع جائز کيږي [يعني د موجوده کم شُده تانو په مقدار سره بيع جائز کيږي، مثلاً که يو تان کم سي او نهه تانونه پاته سي، نو په نهو درهمو سره د هغوی بيع جائز کيږي] وَلَهُ الْخِيَارُ او مشتري ته به اختيار وي وَلَمْ يَجُزْ فِي الزِّيَادَةِ او [د تان] د زياتېدلو په صورت کي بيع نه جائز کيږي لِجَهَالَةِ الْعَشَرَةِ الْمَبِيعَةِ ځکه چي خرڅ کړل سوي لس تانونه مجهول دي وَقِيلَ: عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ لَا يَجُوزُ فِي فَصْلِ النُّقْصَانِ أَيْضًا او ويل سوي دي: چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [د تان] د کمېدلو په صورت کي هم بيع نه جائز کيږي وَلَيْسَ بِصَحِيحٍ [لېکن] دا صحيح قول نه دی بِخِلَافِ مَا إِذَا اشْتَرَى ثَوْبَيْنِ عَلَى أَنَّهُمَا هَرَوِيَّانِ په خلاف د هغه صورت کله چي [يو څوک] پر دې شرط دوې کپړې رانيسي چي دغه دواړه هروي کپړې دي فَإِذَا أَحَدُهُمَا مَرْوِيٌّ بيا په هغوی کي يوه مروي کپړه وخيږي حَيْثُ لَا يَجُوزُ فِيهِمَا نو په دواړو کي بيع نه جائز کيږي وَإِنْ بَيَّنَ ثَمَنَ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا که څه هم د هري کپړې ثمن يې [جلا] بيان کړی وي لِأَنَّهُ جَعَلَ الْقَبُولَ فِي الْمَرْوِيِّ شَرْطًا لِجَوَازِ الْعَقْدِ فِي

الْهَرَوِيِّ ځکه چي بائع په هروي کپړه کي د عقد [بيع] د جواز لپاره په مروي کپړه کي [د بيع] قبلول شرط گرځولي دي وَهُوَ شَرْطٌ فَاسِدٌ او دا فاسد شرط دی وَلَا قَبُولَ يُشْتَرَطُ فِي الْمَعْدُومِ او په ناموجود شي کي قبول نه شرط کيږي [يعني په معدوم شي کي د بيع قبلولو شرط لګول معتبر نه دي] فَافْتَرَقَا نو دواړي مسئلې يو له بل څخه جلا سوې.

**اللغات**: ﴿الْعِدْلُ﴾ د کپړې ډېر تانونه چي يو ځای سره تړل سوي وي نو هغه ته "عِدْلٌ" ويل کيږي، کوم ته چي غالباً "گاټ" ويل کيږي، او له "ثَوْبٌ" څخه دلته د کپړې تان مراد دی، او د "عِدْلٌ" لفظ نوري معناوي هم لري چي له هغوی څخه ځيني دا دي: جوال (ګونۍ)، داوښ پر ملا د يوه طرف بار. ﴿اِفْتَرَقَا﴾ د افتعال له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو له بل څخه جلا کېدل، بېلېدل. ﴿هروِيّ﴾ د افغانستان د هرات ښار ته منسوب دی، پخوا به هلته کپړه جوړېده. ﴿مَرْوِيّ﴾ (د راء په سکون سره) د "مَرْو" وطرف ته منسوب دی، دا هم په خراسان (پخواني افغانستان) کي د يو علاقې نوم وو چي هلته به کپړه جوړېده، خو ځيني وايي چي دا په کوفه کي د يو علاقې نوم دی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي يوه سړي د لسو درهمو په عوض کي د کپړو (تانونو) غټ گاټ رانيوی او بائع صرف دا خبره وکړه چي په دغه گاټ کي لس تانه دي او د لسو درهمو په عوض کي دي او د هر تان لپاره يې جلا قيمت بيان نه کړی. لېکن کله چي گاټ سره خلاص کړی سو، نو په هغه کي صرف نهه تانه وه، يا د لسو پر ځای يوولس تانه وه، نو فرمايي چي په دغو دواړو صورتونو کي بيع فاسديږي، د کمنوالي (يعني د نهو تانونو) په صورت کي د ثمن د مجهول والي په وجه بيع فاسديږي، په دې توګه چي کله دلته د لسو درهمو په عوض کي د پوره لسو تانونو بيع سوې ده، نو لس درهمه د ټولو تانونو ثمن سو، او کله چي يو تان کم سو نو د هغه په اندازه ثمن هم کمېدل پکار دي، خو څرنګه چي هغه کم سوی (کم شُده) تان مجهول دی، معلومه نه ده چي هغه ښه (جيد) تان وو او که خراب (ردئ) وو، مشتري به وايي چي هغه تر ټولو ښه وو نو زه درې درهمه کموم. بائع به وايي چي هغه بالکل خراب تان وو (ښه دی چي ورک او کم سو) لهذا ته د هغه په عوض کي صرف نيم درهم کم کړه!. نو ښکاره خبره ده چي مشتري به په دې راضي نه وي او دا صورت به مُفضي الى النزاع وګرځي.

همدارنګه که تانونه تر لسو زيات سي، نو په دې صورت کي د مبيع د جهالت په وجه بيع فاسديږي؛ ځکه چي مبيع خو صرف لس تانه وه او دلته پر پوره يوولسو (۱۱) تانو مبيع صادقيږي

(ځکه چې ټوله تانونه په یوه ګاڼ کې بند دي) او دا معلومول مشکل دي چې زائد تان کوم یو دی؟ اوس که یو تان کم کړی سي نو ښکاره ده چې د عاقدینو په مینځ کې به جنجال او نزاع واقع سي. بائع به ګران تان ته لاس ونیسي چې دغه تان خو په پنځه درهمه ارزي او تا (مشتري) ټوله تانونه په لس درهمه رانیولي دي، لهذا دغه تان کموم. مشتري به کمزوي تان ته لاس ونیسي چې دغه تان خو په یوه روپۍ هم ګران دی، لهذا ته هغه واپس واخله! نو ښکاره خبره ده چې پر دې به بائع ته غصه ورسي او په دواړو کې به جنګ او جنجال واقع سي، خلاصه دا چې دغه دواړه صورتونه مُفضي الی النزاع دي، او مخکې تاسو وویل چې مُفضي الی النزاع کېدل د بیع د فساد سبب دي، نو ځکه په دې دواړو صورتونو کې به بیع فاسدیږي.

ولوبین إلخ: د دې حاصل دا دی چې که په پورتنۍ مسئله کې بائع دا خبره هم اضافه کړي چې په دغو لسو تانونو کې هر تان په یوه درهم دی، نو په دې صورت کې که تانونه کم سي (یعني په ګاڼ کې نهه یا اته تانونه وي) نو بیع جائز کیږي، او که تانونه تر لسو زیات سي نو بیع فاسدیږي؛ د کموالي په صورت کې د بیع د جائز کېدو وجه دا ده چې کله د هر تان قیمت معلوم دی نو د جنګ او نزاع نوبت به نه راځي، ځکه هغه که خراب تان کم سوی وي او که ښه، په هر صورت کې به د هغه په مقابله کې صرف یو درهم کمول کیږي، نه به مشتري ته څه تکلیف وي او نه به بائع څه اعتراض لري، لهذا کله چې دا صورت له نزاع څخه خالي دی، نو ځکه به صحیح وي. او که تانونه زیات سي نو د بیع د فاسدېدلو وجه دا ده چې اوس هم مبیع مجهوله ده چې زائد تان کوم یو دی؟ او دلته هم د مشتري او بائع له طرفه د نزاع خطره سته (چې مشتري به وایي هغه خراب تان دی او بائع به وایي ښه تان دی)، نو د مُفضي الی النزاع کېدو په وجه به دا صورت هم د مخکې په څېر عقد فاسدوي.

وقیل عند أبي حنیفة إلخ: ځیني مشائخ فرمایي چې د کموالي په صورت کې (یعني کله چې تانونه کم وخیږي نو په دې صورت کې) هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بیع فاسدیږي؛ ځکه کله چې بائع د لسو تانو په نامه ګاڼ خرڅ کړی لېکن په هغه کې نهه تانونه وختل او یو تان معدوم سو، نو ښکاره خبره ده چې دلته د معدوم او موجود دواړو اجتماع راغله (یعني په دغه بیع کې معدوم تان او موجوده تانونه سره جمع سول)، لهذا دا په موجوده تانو کې د بیع د قبولیت لپاره په معدوم تان کې د بیع د قبولیت د شرط لګولو په درجه کې سوه (یعني ګواکې بائع په موجوده تانو کې د بیع د جواز او د بیع د قبلولو لپاره په معدوم تان کې د بیع قبلول شرط کړه)، او په معدوم شي کې د بیع د قبولیت شرط لګول او له مبیع څخه بغیر بل شی شرط ګرځول یو فاسد شرط دی او په فاسد شرط سره بیع فاسدیږي.

دغه مشائخو پورتنۍ مسئله د ثوب پر مسئلې هم قياس کړې ده يعني که يو څوک ذوې کپړې خرڅې کړي او دا شرط ولګوي چې دغه دواړې "هروي" يعني د "هرات" کپړې دي، لېکن کله چې وکتل سي نو معلومه سي چې په هغوی کې يوه د "مَرْو" کپړه ده (يعني هروي نه ده، بلکې مروي ده)، نو په دې صورت کې بيع فاسدېږي، لهذا کله چې د کپړې د وصف (يعني د هروي والي) په فوتېدلو سره بيع فاسدېږي، نو د اصل ثوب يعني د پوره تان په کمېدلو او معدوم کېدلو سره به په درجه اولیٰ بيع فاسدېږي.

وليس بصحيح : لېکن صاحب د کتاب فرمايي که تاسو (مشائخ) هر څنګه قياس وکړی، موږ له خپلې خبرې څخه نه اوړو، يعني ستاسو په قياس سره د تانو د کموالي په صورت کې بالکل بيع نه فاسدېږي بلکې هغه په دې صورت کې جائز کيږي؛ ځکه تاسو څه غور وکړئ! چې کله د هر تان ثمن مُتعيّن دی، نو اوس که يو نه بلکې پنځه تانونه کم سي، نو ښکاره ده چې پنځه درهمه به کمول کيږي او کوم پنځه تانه چې پاته سي د هغوی ثمن به هم پنځه درهمه وي، لهذا کله چې ثمن او مبيع دواړه معلوم دي، نو د بيع په جائز کولو کې بيا څه حرج سته !؟.

پاته سوه د ثوب پر مسئله چې تاسو کوم قياس کړی دی، هغه هم صحيح نه دی، لېکن په دې وجه نه چې هلته د وصف د فوتېدلو په وجه بيع فاسدېږي، بلکې په دې وجه چې کله بائع دا شرط ولګوی چې دغه دواړې هروي کپړې دي خو له هغوی څخه يوه کپړه مروي وختله (حال دا چې د دواړو بيع يوه ده)، نو دا داسې سوه لکه بائع چې په هروي کپړه کې د بيع د جواز لپاره په مروي کپړه کې د بيع قبوليت شرط کړی (په لنډه توګه دا چې ګواکې بائع د هروي کپړې داخيستلو لپاره د مروي کپړې اخيستل شرط کړه)، لهذا دلته په مبيع يعني په هروي کپړه کې د بيع د قبوليت لپاره په غير مبيع يعني په مروي کپړه کې د بيع قبوليت شرط کړی سوی دی، او دا فاسد شرط دی او په داسې شرطونو سره بيع فاسدېږي، نو دلته د دغه فاسد شرط په وجه بيع فاسدېږي، نه د وصف فوتېدلو په وجه.

د دې په خلاف د تان د کموالي مسئله ده، نو په هغه کې چې کوم تان کم سوی دی هغه معدوم دی او په معدوم شي کې شرط لګول بالکل معتبر نه دي، ځکه شرط خو په موجود شي کې لګول کيږي، نو ګواکې بائع ګرسره شرط نه دی لګولی، نو ځکه د تان د کموالي په صورت کې به بيع نه فاسدېږي.

او بله خبره دا ده چې د تان د کموالي په صورت کې چې کله دواړه عاقدين راضي دي، ثمن او مبيع دواړه معلوم دي او شرعاً هيڅ ممانعت نسته، نو بيا به بيع ولې فاسدېږي !؟.

## د کپړې په بيع کې د بيان سوې مقدار د کمېدلو يا زياتېدلو يو خاص صورت

وَلَوِ اشْتَرَى ثَوْبًا وَاحِدًا عَلَى أَنَّهُ عَشَرَةُ أَذْرُعٍ كُلُّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ او که څوک د کپړې يو تان پر دې شرط رانيسي چې هغه لس گزه دی [او] هر گز په يوه درهم فَإِذَا هُوَ عَشَرَةٌ وَنِصْفٌ أَوْ تِسْعَةٌ وَنِصْفٌ لېکن هغه لس نيم گزه يا نهه نيم گزه وي قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ: فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ يَأْخُذُهُ بِعَشَرَةٍ مِنْ غَيْرِ خِيَارٍ نو [په دې باره کې] امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په اول صورت کې [يعنې د لس نيم گزو په صورت کې] به مشتري هغه په لسو درهمو اخلي، بغير له څه اختياره [يعنې مشتري ته د نه اخيستلو اختيار نشته] وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي يَأْخُذُهُ بِتِسْعَةٍ إِنْ شَاءَ او په دويم صورت کې که مشتري وغواړي نو په نهو درهمو به يې اخلي وَقَالَ أَبُويُوسُفَ: فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ يَأْخُذُهُ بِأَحَدَ عَشَرَ إِنْ شَاءَ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې که مشتري وغواړي نو په اول صورت کې به يې په يوولسو درهمو اخلي وَفِي الثَّانِي يَأْخُذُ بِعَشَرَةٍ إِنْ شَاءَ او په دويم صورت کې که هغه [اخيستل] وغواړي نو په لسو درهمو به يې اخلي وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞: يَأْخُذُ فِي الْأَوَّلِ بِعَشَرَةٍ وَنِصْفٍ إِنْ شَاءَ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې که مشتري وغواړي نو په اول صورت کې به هغه [تانونه] په لس نيم درهمه اخلي وَفِي الثَّانِي بِتِسْعَةٍ وَنِصْفٍ او په دويم صورت کې به يې په نهه نيم درهمه اخلي وَيُخَيَّرُ او هغه ته به اختيار ورکول کيږي لِأَنَّ مِنْ ضَرُورَةِ مُقَابَلَةِ الذِّرَاعِ بِالدِّرْهَمِ مُقَابَلَةُ نِصْفِهِ بِنِصْفِهِ ځکه د درهم سره د گز د مقابله کېدو له ضرورت څخه دا [هم] دي چې د نصف مقابله به د نصف سره وي [يعنې کله چې بائع د هر گز په مقابله کې يو درهم متعين کړی دی يعنې هغه ويلي دي چې هر گز په يوه درهم دی، نو د دې مطلب دا هم دی چې نيم گز په نيم درهم دی] فَيَجْرِي عَلَيْهِ حُكْمُهَا لهذا پر نصف به د مقابلې حکم جاري کيږي وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ لَمَّا أَفْرَدَ كُلَّ ذِرَاعٍ بِبَدَلٍ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې کله بائع هر ذراع په بدل [ثمن] سره مستقل

---

۞ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله:... وهو أعدل الأقوال، قال الأتقاني: وبقول محمد رَحِمَهُ الله نأخذ، انتهى (الدر المختار ج:۴، ص:۳۶). وقال العلامة ابن نجيم: وفي الذخيرة: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله أصح، ومن المشائخ من اختار قول محمد رَحِمَهُ الله، وهو أعدل الأقوال كما لا يخفى (البحرالرائق ج:۵، ص:۲۹۳). [القول الراجح ج:۲، ص:۷]

كړې دى [يعني كله چې يې د هر ګز لپاره جلا يو درهم ثمن بيان كړى] نَزَلَ كُلُّ ذِرَاعٍ مَنْزِلَةَ ثَوْبٍ عَلَى حِدَةٍ نو هر ذراع د يوه جلا تان په درجه وګرځېدى وَقَدِ انْتَقَصَ او [دلته] هغه كم سو [يعني دلته يو ذراع نيم كم سو. خو د دې باوجود هغه د جلا تان په درجه كې دى] وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الذِّرَاعَ وَصْفٌ فِي الْأَصْلِ د امام صاحب دليل دا دى: چې ذراع په اصل كې وصف دى وَإِنَّمَا أَخَذَ حُكْمَ الْمِقْدَارِ بِالشَّرْطِ خو هغه [دلته] د شرط په وجه د مقدار [اصل] حكم واخيستى وَهُوَ مُقَيَّدٌ بِالذِّرَاعِ او شرط په ذراع سره مقيد دى فَعِنْدَ عَدَمِهِ عَادَ الْحُكْمُ إِلَى الْأَصْلِ نو د شرط د معدوم كېدلو په صورت كې به حكم د اصل وطرف ته راګرځي وَقِيلَ فِي الْكِرْبَاسِ الَّذِي لَا يَتَفَاوَتُ جَوَانِبُهُ: لَا يَطِيبُ لِلْمُشْتَرِي مَا زَادَ عَلَى الْمَشْرُوطِ او د هغه كپړې [ټوكر] په باره كې "چې د هغه اطراف سره مختلف نه وي" ويل سوي دي: چې په هغه كې د مشتري لپاره هغه مقدار [اخيستل] ښه نه دي كوم چې پر شرط كړى سوي مقدار زيات سي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْمَوْزُونِ ځكه چې هغه كپړه د وزني شي په درجه كې ده حَيْثُ لَا يَضُرُّهُ الْفَصْلُ ځكه چې پرېكول [كاټول] هغې ته نقصان نه كوي وَعَلَى هَذَا لَوْ قَالُوا: يَجُوزُ بَيْعُ ذِرَاعٍ مِنْهُ او پر همدې بناء فقهاؤ فرمايلي دي: چې له داسې كپړې څخه د يوه ګز بيع [هم] جائز ده.

**اللغات**: ﴿يُخَيَّرُ﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: اختيار وركول، ﴿كِرْبَاس﴾ د كاف په "كسره" سره دى، دا له فارسي څخه عربي ته را اوښتى لفظ دى، د "كرباس" دوې معناوي دي: پمبه، له پمبه وو څخه جوړه سخته كپړه، مراد ځني كپړه (ټوكر) دى (معجم الوسيط، معجم لغة الفقهاء)، ﴿لَا يَتَفَاوَتُ﴾ د تفاعل له بابه د نفي صيغه ده: مختلف كېدل، يو له بل څخه بدلېدل (توپير پكښې راتلل)، ﴿جَوَانِب﴾ جمع د جَانِبٌ ده: طرف، څنډه، كناره (حاشيه).

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دغه اوږده عبارت كې د يوې مسئلې دوه صورتونه بيان كړي دي.

**صورت د مسئلې**: دا دى چې يوه سړي د كپړې يو تان رانيوى او دا شرط ولګول سو چې دغه تان لس ګزه دى او هر ګز په يوه درهم دى چې ټوله لس درهمه كيږي، لېكن تر رانيولو وروسته چې مشتري هغه وكتى او ګز يې كړى نو لس نيم ګزه يا نهه نيم ګزه وختى، نو اوس به مشتري هغه په كوم حساب

سره اخلي؟ په دې باره کې د احنافو اختلاف دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمان دا دی چې په اول صورت (یعني د لس نیم ګزو والا په صورت) کې خو به مشتري له څه اختیاره بغیر هغه تان په لس درهمه اخلي او په دویم صورت (یعنې د نهه نیم ګزو والا په صورت کې) مشتري ته اختیار دی، یعني که زړه یې وغواړي نو په نهه درهمه دې یې واخلي، کنې هغه دې پریږدي.

دلیل په کتاب کې جلا، جلا ذکر سوی دی، لېکن موږ به هغه په ترتیب سره بیان کړو (انشاء الله).

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چې د اصل او حقیقت په اعتبار سره ذراع وصف دی او په وصف کې اُصول دا دی چې د هغه په مقابله کې ثمن نه راځي (لکه مخکې چې ذکر سوه)، لېکن کله چې دلته بائع د "کُلُّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَم" شرط ولګوی او د هر ذراع لپاره یې مستقل ثمن بیان کړی، نو د دغه شرط په وجه د ذراع وصفیت ختم سو او په هغه کې اصلیت راغلی او د شرط په هکله اُصول دا دی چې تر څو ممکنه وي د هغه رعایت به کیږي، او کله چې دلته مشتري په "کُلُّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَم" کې د کامل ذراع ثمن بیان کړی دی، نو د شرط رعایت به هم په کامل ذراع کې کیږي، نه په نصف کې، لهذا کله چې په نصف ذراع کې د شرط رعایت نه کیږي، نو د هغه "مستقل بالثمن کېدل" به فوت سي (یعني د هغه د مستقل بالثمن کېدو وصف به ختم سي او مستقل بالثمن به پاته نه سي) او د دغه وصف د فوتېدلو په وجه به ذراع خپل اصلي حالت ته یعني د وصف والي وطرف ته را وګرځي او د وصف په مقابله کې ثمن نه راځي، لهذا په اول صورت کې (یعني د نیم ګز زیاتېدلو په صورت کې) غیر مشروط نصف وصف دی، نو د هغه په مقابله کې به ثمن نه وي او مشتري ته به صرف د لسو درهمو په عوض کې لس نیم ګزه ورکول کیږي، او په دې صورت کې به مشتري ته اختیار هم نه حاصلیږي؛ ځکه که څه هم دلته صفقه متفرقه ده، خو د دې په وجه مشتري ته مُفت زائد ګز حاصلیږي او د هغه زائد ګز په مُقابله کې له مشتري څخه یوه روپۍ هم نه ځي، په بله وینا دا چې په دغه صورت کې د مشتري سراسر نفع ده او په دې نفع کې د نقصان هیڅ ګمان نسته او اختیار په هغه وخت کې حاصلیږي کله چې په حاصل شُده نفع کې د نقصان ګمان هم وي (لکه مخکې چې ذکر سوه).

همداسې د نیم ګز کمېدلو په صورت کې هم د نصف اصلیت ختم سو (او هغه د وصفیت وطرف ته راوګرځېدی او د وصف په مقابله کې هیڅ ثمن نه وي. نو د دغه نیم ګز لپاره به هم هیڅ قیمت او ثمن نه وي)، لهذا دلته به هم مشتري ته صرف د نهو درهمو په عوض کې نهه نیم ګزه کپړه ورکول کیږي، لېکن دلته هغه ته اختیار حاصلیږي، اختیار ځکه ورته حاصلیږي چې صفقه متفرقه سوه او ممکنه ده چې هغه پوره لس ګزه کپړې ته مجبوره وي، لهذا اوس به په نهه نیم ګزو کې د هغه د رضا او مجبورۍ په لحاظ کولو سره هغه ته اختیار ورکول کیږي.

**وقال أبويوسف إلخ:** له دې ځایه د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله مسلک بیانوي، هغه فرمايي چې مشتري ته په دواړو صورتونو کې اختيار حاصليږي، يعني د نيم ګز د زياتېدلو په صورت کې که د مشتري خوښه وي نو يوولس درهمه دې ورکړي، او د کمېدلو په صورت کې که د هغه خوښه وي، نو د لسو درهمو په عوض کې دې نهه نيم ګزه کپړه واخلي، او که زړه يې نه غواړي نو هغه دې پرېږدي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چې کله بائع د هر ذراع (ګز) لپاره جلا يو درهم ثمن بيان کړی دی، نو اوس هر ذراع له وصف څخه اصل وګرځېدی، همدارنګه د "افراد بذکر الثمن" په وجه هر ذراع د جلا تان په درجه وګرځېدی، او که په تان کې څه کمي راسي، نو د هغه په مقابله کې ثمن نه ساقطيږي، او څرنګه چې دلته ذراع د تان په درجه کې دی، نو ځکه به په يو ذراع کې په کمي راتللو سره د هغه ثمن نه کمولی کيږي، بلکې پوره ثمن يعني پوره يو درهم به ورکول کيږي (ځکه که څه هم دلته نيم ذراع کم سوی، نو بيا هم [د کمېدلو باوجود] هغه د جلا مستقل تان په درجه کې دی)، لهذا په اول صورت کې به د پوره (۱۱) درهمو په عوض کې او په دويم صورت کې به د پوره (۱۰) درهمو په عوض کې مشتري ته د دغه تان د اخيستلو اختيار وي؛ او په دواړو صورتونو کې هغه ته اختيار ځکه ورکول کيږي چې د زياتېدلو پهصورت کې که څه هم هغه ته نيم ګز زيات حاصليږي، خو د هغه عوض هم پر هغه لازميږي، او دا نفع د "يَشُوْبُهُ ضَرَر" له قبيلې څخه ده، او د نفع مع الضرر په صورت کې اختيار حاصليږي، نو ځکه په دې صورت کې به هم اختيار حاصليږي. او د کمېدلو په صورت کې د صفقې د تفرق په وجه په معقود عليه (تان) د مشتري راضي کېدل فوت سوه (ځکه چې هغه په پوره لس ګزه تان راضي سوی دی)، لهذا د کموالي د تلافی او تدارک لپاره او د مشتري د رضا په لحاظ کولو سره به هغه ته اختيار حاصليږي.

**وقال محمد إلخ:** له دې ځايه د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک بيانوي، هغه فرمايي چې په دې باره کې خبره اوږدول پکار نه دي، بلکې د زياتېدلو په صورت کې چې څومره زياتوب سوی وي هغومره مقدار دې په ثمن کې هم اضافه کړی سي او د کمېدلو په صورت کې دې هغومره مقدار کم کړی سي، يعني په اول صورت کې دې مشتري لس نيم ګزه کپړه د لس نيمو درهمو په عوض کې واخلي، او په دويم صورت کې دې نهه نيم ګزه کپړه د نهه نيمو درهمو په عواض کې واخلي، او که يې اخيستل نه غواړي نو د صفقې د تفرّق په وجه په دواړو صورتونو کې مشتري ته دغه (د نه اخيستلو) اختيار حاصليږي.

**د امام محمد دليل:** دا دی چې کله دلته بائع د هر یوه ذراع (گز) په مقابله کې یو درهم ثمن متعین کړی او وېې ویل چې هر گز په یوه درهم دی ,نو د دې مطلب دا سو چې د نیم گز په بدله کې نیم درهم دی، لهذا اوس چې څرنګه په یوه کامل (پوره) ذراع کې اصلیت راغلی او هغه اصل وګرځېدی، همداسې ناقص (کم) ذراع هم د اصلیت حامل او قابل دی نو نیم ذراع به هم اصل وي، او ثمن مطلقاً د اصل په مقابله کې راځي، برابره ده هغه کامل وي او که ناقص وي، او د اصل کمېدل یا زیاتېدل پر ثمن اثر کوي، نو ځکه د زیاتېدلو په صورت کې به د نصف ذراع په مقابله کې نصف درهم (نصف ثمن) اداء کول کیږي او د کمېدلو په صورت کې به د نصف ذراع په مقابله کې نصف درهم کمول کیږي. او مشتري ته به دلته هم هغه دواړه اختیاره حاصلیږي کوم چې اوس د شیخینو په دلائلو کې په تفصیل سره بیان سول.

وقيل إلخ: په دې سره دا خبره بیانوي چې پورتني احکام او د امامانو اختلاف د هغه کپړې سره متعلق دي چې د هغې په اطرافو کې تفاوت وي، یعنې پر اطرافو او څنډو یې رنګارنګ ګلان او داسې نور نقشونه جوړ سوي وي او مر طرف یې جلا ډول وي چې د هغه,په کاټولو (پرېکولو) سره ټوله کپړه خرابیږي، په داسې کپړه کې ګز وصف دی. لېکن داسې کپړه چې د هغې هر طرف یو ډول (ساده) وي او د یوه ګزه په کاټولو (پرېکولو) کې هیڅ حرج نه وي (یعني هغه په پرېکولو سره نه خرابیږي)، په داسې کپړه کې هر ګز اصل دی، وصف نه دی، او هغه د موزوني شیانو په درجه کې ده، نو څرنګه چې په موزوني شیانو کې د هر سېر قیمت جلا دی، همدارنګه په داسې کپړه کې به هم د هر ګز قیمت جلا وي او د نیم ګز قیمت به یې جلا وي. نو په داسې غیر متفاوت الاطرف (ساده) کپړه کې که نیم ګز هم زیات سي نو د مشتري لپاره دا ښه نه دي چې هغه بغیر له قیمته واخلي، ځکه چې داسې کپړه د موزوني او مکیلي شي په درجه کې ده (او په موزوني او مکیلي کې شي زیاتوب واپس کول ضروري دي، نو په دغه کپړه کې به هم د هغه واپس کول ضروري وي)، او څرنګه چې د داسې کپړې کاټول (پرېکول) کپړې ته نقصان نه کوي، نو په همدې وجه علماؤ فرمایلي دي چې د دغه کپړې له تان څخه یو، یو ګز پرېکول او هغه جلا خرڅول جائز دي.



# فَصْلٌ

دا فصل د هغه شيانو په بيان کې دی کوم چې (له نوم اخيستلو څخه بغير) په بيع کې داخليږي او کوم چې نه داخليږي

**تشريح**: په دغه فصل کې د دې بيان دی چې که يو څوک شی خرڅ کړي او د هغه شي سره چې کوم شيان لازم وي د هغه نوم نه واخلي (يعني د هغه شي لوازمات په بيع کې ذکر نه کړي)، نو په داسې صورت کې، کوم، کوم شيان په خپله د هغه شي په بيع کې داخليږي؟.

## د ځمکې په بيع کې تبعاً داخلېدونکي شيان

وَمَنْ بَاعَ دَارًا او که څوک يو کور رانيسي دَخَلَ بِنَاؤُهَا فِي الْبَيْعِ نو د هغه کور عمارت [ودانۍ] هم په بيع کې داخليږي وَإِنْ لَمْ يُسَمِّهِ که څه هم د هغه نوم نه واخلي لِأَنَّ اسْمَ الدَّارِ يَتَنَاوَلُ الْعَرْصَةَ وَالْبِنَاءَ فِي الْعُرْفِ ځکه چې په عُرف کې د "دَار" لفظ غولي [حويلي] او عمارت دواړو ته شامليږي وَلِأَنَّهُ مُتَّصِلٌ بِهَا اتِّصَالَ قَرَارٍ او په دې وجه هم چې عمارت د کور [دَار] سره د برقرار [باقي] پاتېدلو لپاره متصل دی فَيَكُونُ تَبَعًا لَهُ نو ځکه هغه به د کور تابع وي وَمَنْ بَاعَ أَرْضًا او که څوک ځمکه رانيسي دَخَلَ مَا فِيهَا مِنَ النَّخْلِ وَالشَّجَرِ نو په هغه ځمکه کې چې کوم د خرما درختې او نورې درختې دي هغوی هم [په بيع کې] داخل کيږي وَإِنْ لَمْ يُسَمِّهِ که څه هم د هغوی نوم نه واخلي لِأَنَّهُ مُتَّصِلٌ بِهَا لِلْقَرَارِ ځکه چې درخته د ځمکې سره د برقرار پاتېدلو لپاره [يعني د همېشه لپاره] متصله ده فَأَشْبَهَ الْبِنَاءَ نو هغه د عمارت سره مشابه سوه وَلَا يَدْخُلُ الزَّرْعُ فِي بَيْعِ الْأَرْضِ إِلَّا بِالتَّسْمِيَةِ او کښت بغير له نوم اخيستلو د ځمکې په بيع کې نه داخليږي لِأَنَّهُ مُتَّصِلٌ بِهَا لِلْفَصْلِ ځکه چې هغه د جلا کېدلو اربېل کېدلو لپاره د ځمکې سره متصل وي اځکه چې کښتونه د همېشه لپاره پر ځمکه نه پرېښوول کيږي.

بلکې هغوی د دې لپاره کرل کيږي چې څه وخت وروسته بېرته وربېل سي ا فَشَابَهَ الْمَتَاعَ الَّذِي فِيهَا نو دا د هغه سامان سره مشابه سو کوم چې په کور کې اپروت اوي.

**اللغات**: ﴿دَار﴾ کور، ﴿بِنَاء﴾ عمارت، ودانۍ، جوړ سوي ځايونه (مراد ځني د کور دېوالونه او خوني دي)، ﴿لَمْ يُسَمِّ﴾ د تفعيل له بابه د جحد صيغه ده: نوم اخيستل (نومول)، ذکر کول (بيانول)، مُتعيّنول، ﴿عَرصة﴾ غولی، حويلي، صحن، انګړ، ﴿نخل﴾ واحد نَخْلَةٌ: د خرما درخته، ﴿شَجَر﴾ واحد شَجَرَةٌ: عامه درخته، مراد ځني له خرما څخه بغير نوري درختي دي، ﴿زَرْع﴾ کښت، فصل، (کښتي)، ﴿فَصْل﴾ د ضرب مصدر دی: جلا کول (عليحده کول)، ﴿متاع﴾ سامان.

**تشريح**: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په دې عبارت کي درې جلا مسئلې بيان کړي دي او دغه مسئلې د دوو (۲) قاعدو سره تعلق لري: ① اوله قاعده دا ده چي په عُرف عام کي چي کوم شی مبيع ګڼل کيږي هغه مطلقاً په بيع کي داخليږي، برابره د هغه صراحت وسي او که نه وسي (يعني نوم يې واخيستل سي، که نه)، ② دويمه قاعده دا ده چي کوم شی د برقرار پاتېدلو لپاره د مبيع سره متصل وي، مطلب دا چي په دائمي توګه د مبيع سره متصل وي، نو هغه هم له صراحت (نوم اخيستلو) څخه بغير په بيع کي داخليږي.

(۱)... اوس د اولي مسئلې تفصيل دا دی چي که يو سړی "دَار" يعني کور خرڅ کړي، نو برابره ده هغه سړی په بيع کي عمارت (يعني دېوالونه او خوني) ذکر کړي، که نه، په هر صورت کي عمارت (دېوالونه او خوني) د کور په بيع کي داخليږي؛ او د دې وجه دا ده چي په عُرف عام کي "دَار" (کور) هغه ځمکي ته وايي چي عمارت پر جوړ سوی وي (يعني چار طرفه دېوال پر را ګرځېدلی وي. ودانۍ او خوني پکښې جوړي سوي وي)، او له عمارت څخه خالي ځمکي ته خو صحرا او ميدان وايي، او څرنګه چي عمارت د کور سره د "اتصال قرار" په توګه متصل وي يعني عمارت د برقرار پاتېدلو لپاره جوړول کيږي، لهذا کله چي په عُرف کي هم هغه ځمکي ته "دَار" وايي چي پر هغې عمارت جوړ سوی وي او د "دَار" سره د عمارت اتصال هم د برقرار پاتېدلو لپاره وي، نو د پورتني دواړو قاعدو پر بناء به د "دَار" په بيع کي عمارت هم داخليږي، برابره ده د هغه صراحت وسي او که نه وسي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که يو څوک داسي ځمکه خرڅه کړي چي په هغې کي خُرما، توت، انځر او داسي نوري (بېخني) درختي شنې کړل سوي وي، نو دغه درختي هم د ځمکي تابع کيږي او په بيع کي داخليږي؛ ځکه چي د ځمکي سره د دغو درختو اتصال "اتصال قرار" دی، او د دويمي (۲) قاعدې پر بناء دغه ډول متصل شيان له صراحت او نوم اخيستلو څخه بغير په بيع (مبيع) کي داخليږي، لهذا دا به هم په بيع کي داخليږي، برابره ده صراحت يې وسي او که نه. او څرنګه چي د

عمارت اتصال د کور (دَار) سره "اتصالِ قرار" دی، همداسي دغه درختي هم په "اتصالِ قرار" سره د ځمکي سره متصلي دي، او تاسي ته معلومه ده چي د "دَار" په بيع کي عمارت داخليږي، لهذا کله چي داسي درختي د عمارت سره مشابه دي، نو هغوی به هم د ځمکي په بيع کي داخليږي.

ولايدخل الزرع إلخ: (۳)... مخکښی دوې مسئلې د پورتني دوو قاعدو سره متعلق وې او پر هغوی متفرع وې لېکن دغه درېيمه مسئله له مذکوره قاعدو څخه وتلې ده، حاصل يې دا دی چي چيري له دغو دوو قاعدو څخه يوه قاعده هم موجوده نه وي، نو هلته له صراحت څخه بغير د شي توابع او لوازمات په بيع کي نه داخليږي، د مثال په توګه که يو څوک ځمکه خرڅه کړي او په هغې کي يو کښت (کېتی) کرل سوې وي، نو هغه کښت له صراحت څخه بغير د ځمکي په بيع کي نه داخليږي؛ ځکه چي نه په عُرفِ عام کي داسي ځمکي ته "دَار" وايي چي په هغې کي کښت کرل سوی وي، او نه کښت د "اتصالِ قرار" په توګه د ځمکي سره متصل وي، بلکي هر ډول کښتونه (کيتاني) په يو څو مياشتو کي دننه رېبل کيږي او له ځمکي څخه ليري کول کيږي، لهذا کله چي په کښت کي دواړي قاعدي نسته، نو څرنګه چي له دغو قاعدو څخه خالي نور صورتونه په بيع کي نه داخليږي، همداسي به دغه صورت هم په بيع کي نه داخليږي.

نو کښت د کور د سامان سره مشابه دی، او سامان بغير له صراحته د کور په بيع کي نه داخليږي، نو کښت به هم بغير له صراحته د ځمکي په بيع کي نه داخليږي.

## د درختو په بيع کي د مېوو حکم

وَمَنْ بَاعَ نَخْلًا أَوْ شَجَرًا فِيهِ ثَمَرٌ او که څوک د خُرما درختي يا داسي درختي رانيسي چي په هغوی کي مېوه وي فَثَمَرَتُهُ لِلْبَائِعِ نو د هغوی مېوه د بائع ده إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ خو دا چي مشتري [د مېوې د اخيستلو] شرط [هم] ولکوي لِقَوْلِهِ عليه السلام [1] : «مَنِ اشْتَرَى أَرْضًا فِيهَا نَخْلٌ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "څوک چي داسي ځمکه رانيسي چي په هغه کي د خرما درختي وي فَالثَّمَرَةُ لِلْبَائِعِ نو د هغې مېوه [خرما] د بائع ده إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ» خو دا چي مشتري شرط ولکوي" وَلِأَنَّ الِاتِّصَالَ وَإِنْ كَانَ خِلْقَةً فَهُوَ لِلْقَطْعِ لَا لِلْبَقَاءِ او ځکه که څه هم د درختو سره د مېوې اتصال پيدايښي دی خو بيا

[1] تخريج: أخرجه الترمذی فی كتاب البيوع، باب ما جاء فی ابتاع النخل، حديث رقم: ۱۲۴۴.

هم مېوه د پرېکېدلو لپاره ده، نه د باقي پاتېدلو لپاره فَصَارَ كَالزَّرْعِ نو هغه د کښت په څېر سوه وَيُقَالُ لِلْبَائِعِ: اِقْطَعْهَا وَسَلِّمِ الْمَبِيعَ او بائع ته به ویل کېږي: چي [خپله] مېوه پرې کړه! او مبيع [مشتري ته] وسپاره! وَكَذَا إِذَا كَانَ فِيهَا زَرْعٌ او همدارنګه کله چي په ځمکه کي کښت وي [نو بائع ته د به د پرېکولو (رېبلو) حکم کېږي] لِأَنَّ مِلْكَ الْمُشْتَرِيْ مَشْغُولٌ بِمِلْكِ الْبَائِعِ ځکه چي د مشتري ملکيت د بائع په ملکيت سره مشغول دی فَكَانَ عَلَيْهِ تَفْرِيغُهُ وَتَسْلِيمُهُ لهذا د هغه فارغول (خالي کول) او مشتري ته ورسپارل به د بائع پر ذمه وي كَمَا إِذَا كَانَ فِيهِ مَتَاعٌ لکه په هغه صورت کي کله چي په کور کي [د بائع] سامان [پروت] وي.

**اللغات**: ﴿نخل﴾ واحد نَخْلَةٌ: د خرما درخته، ﴿ثمر﴾ مېوه، ﴿مُبتاع﴾ د افتعال د باب اسم فاعل دی: رانيونکی (مشتري)، ﴿خِلقة﴾ پېدايش (پيدايښت)، ﴿تفريغ﴾ د تفعيل مصدر دی: فارغول، خالي کول، ﴿تسليم﴾ دا هم د تفعيل مصدر دی: ورسپارل (ورکول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک د خُرما درختي خرڅي کړي يا نوري مېوه داره درختي خرڅي کړي، نو د دې دوه صورتونه دي: ① مشتري به د درختو سره د مېوې د اخيستلو شرط لګولی وي، ② مشتري به دا ډول هيڅ شرط نه وي ذکر کړی، که اول صورت وي يعني مشتري د درختو سره د ميوې اخېستل هم شرط کړي وي، نو په دې صورت کي مېوه هم د مشتري کېږي؛ د دې صورت يو دليل خو هغه حديث دی کوم چيِّ په کتاب کي ذکر سوی دی او عقلي دليل يې دا دی چي که څه هم د درختو سره د مېوې اتصال پيدايشي وي، لېکن هغه يو ورځ نه يو ورځ خامخا پرېکول کېږي او ختمېږي؛ ځکه تر پخېدلو وروسته خامخا مېوه پرېکول کېږي، لهذا مېوه د کښت (کېتی) سره مشابه سوه، او څرنګه چي کښت په شرط او صراحت سره د ځمکي په بيع کي داخلېږي، همداسي به مېوه هم په شرط او صراحت سره د درختو په بيع کي داخلېږي او له شرط او صراحت څخه بغير به هغه د درختو په بيعُ کي نه داخلېږي، لکه څرنګه چي د کښت هم دغه حکم دی.

او کله چي بغير له صراحته مېوه په بيعُ الشجر کي نه داخلېږي، نو ښکاره خبره ده چي هغه د بائع په ملکيت کي پاتېږي، لهذا بائع ته به ويل کېږي چي خپله مېوه پرې کړه! يا خپل کښت ورېبه! (د بيعُ الارض په صورت کي)؛ ځکه کله چي د درختو يا ځمکي معامله وسوه او خرڅه کړل سوه، نو د هغه سره د مشتري (رانيونکي) حق متعلق سو او د بائع مېوه يا د هغه کښت اوس مشتري د خپل حق

له اخیستلو او استفاده کولو څخه منع کوي، نو په دې وجه به بائع په قطعُ الثمار او حصادُ الزرع سرهٔ مکلف کیږي، کنې د بیع حکم (یعني په مبیع کې د مشتري د ملکیت ثبوت او په ثمن کې د بائع د ملکیت ثبوت) به په کامله توګه ثابت نه سي.

او دا مسئله بعینه داسې ده لکه یو څوک چې کور خرڅ کړي او په هغه کې سامان پروت وي، نو ښکاره خبره ده چې له شرط څخه بغیر هغه سامان د کور په بیع کې نه داخلیږي، نو د مشتري د حق فارغولو لپاره به بائع ته د خپل سامان نقل کولو او د کور خالي کولو حکم کیږي. همداسې به په پورتنۍ مسئله کې هم د درختو او ځمکې د خالي کولو او مشتري ته د ورسپارلو ذمه واري پر بائع وي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت (د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک)

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُتْرَكُ حَتَّى يَظْهَرَ صَلَاحُ الثَّمَرِ وَيُسْتَحْصَدُ الزَّرْعُ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې هغه [مېوه او کښت] به پرېښوول کیږي تر دې چې د میوې صلاحیت [منفعت] ښکاره سي [یعني د نفع اخیستلو قابله سي] او کښت ورېبل سي لِأَنَّ الْوَاجِبَ إِنَّمَا هُوَ التَّسْلِيمُ الْمُعْتَادُ ځکه واجب په معتاده [عادي] طریقه سره ورسپارل دي وَالْمُعْتَادُ أَنْ لَا يُقْطَعَ كَذٰلِكَ او معتاده طریقه دا ده چې مېوه دا ډول [یعني تر منفعت ښکاره کېدلو مخکې] نه پرېکړل سي وَصَارَ كَمَا إِذَا انْقَضَتْ مُدَّةُ الْإِجَارَةِ وَفِي الْأَرْضِ زَرْعٌ او دا داسې سو لکه د اجارې مودت چې ختم سي په داسې حال کې چې [تر اوسه] په ځمکه کې کښت پاته وي قُلْنَا: هُنَاكَ التَّسْلِيمُ وَاجِبٌ أَيْضًا موږ وایو: چې هلته [یعني د کښت پاتېدلو په صورت کې] هم ورسپارل ضروري دي حَتَّى يُتْرَكَ بِأَجْرٍ همدا وجه ده چې هغه په اُجرت سره پرېښوول کیږي [یعني د ځمکې مالک له مستأجر څخه اُجرت اخلي. داسې نه ده چې مُفت او بلا اُجرت ته ځمکه ورپرېږدي (ځیني شارحینو دلته د حتیٰ اصطلاحي ترجمه په "همدا وجه ده" سره کړې ده)] وَتَسْلِيمُ الْعِوَضِ كَتَسْلِيمِ الْمُعَوَّضِ او د عوض [اُجرت] ورسپارل د معوض [ځمکې] د ورسپارلو په څېر دی وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا كَانَ الثَّمَرُ بِحَالٍ لَهُ قِيمَةٌ أَوْ لَمْ يَكُنْ فِي الصَّحِيحِ او د صحیح قول مطابق هیڅ فرق نسته په مینځ د دې کې چې کله مېوه په داسې حالت کې وي چې هغه قیمت لري یا [په داسې حالت کې وي چې] قیمت نه لري وَيَكُونُ فِي الْحَالَيْنِ لِلْبَائِعِ او هغه په دواړو حالتونو کې د بائع کیږي لِأَنَّ بَيْعَهُ يَجُوزُ فِي أَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ ځکه

چي له دوو روايتونو څخه په اصح روايت کي د هغې بيع جائز ده عَلٰى مَا نُبَيِّنَ ،چي وروسته به يې موږ بيان کړو فَلَا يَدْخُلُ فِي بَيْعِ الشَّجَرِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ نو ځکه به مېوه له صراحت [نوم اخيستلو] څخه بغير د درختو په بيع کي نه داخليږي.

**اللغات** : ﴿صلاح﴾ صلاحيت (وړتيا)، د منفعت قابل کېدل (يعني چي په مېوه کي د دې وړتيا پيدا سي چي څوک نفع څني واخيستلی سي). ﴿مُعتاد﴾ د افتعال اسم مفعول دی: عادت کړی سوی (عادي)، هغه څه کوم چي د خلګو په عُرف کي عادت وي، د عادت مطابق، په عُرف او عادت کي مروجه طريقه. ﴿يُستحصَد﴾ د استفعال مضارع مجهوله ده: رېبل، شکول (پرېکول، غوڅول). ﴿انقضت﴾ د انفعال ماضي ده: (مودت) تېرېدل، ختمېدل.

**تشريح** : زموږ په نېز خو که مشتري مېوه داره درختي رانيسي او د ميوې اخيستلو شرط نه ولګوي، نو مېوه د بائع کيږي او بائع به هغه فوراً (سمدستي) پرېکوي، يعني د مېوې تر پخېدو پوري به بائع ته مهلت نه ورکول کيږي.

د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د درختو د بيع په صورت کي به مېوه د پخېدو تر وخته پوري پر درختو پرېښوول کيږي، همدارنګه د ځمکي د بيع په صورت کي به کښت د رېبل کېدو تر وخته پوري په ځمکه کي پرېښوول کيږي او بائع به د هغه په رېبلو نه مکلف کيږي او په دواړو صورتونو کي به فوراً ورسپارل واجب او ضروري نه وي.

**د امام شافعي دليل** : دا دی چي تر عقد او معاملې کولو وروسته د بيع د حکم ثابتېدلو لپاره له دواړو عاقدَينو څخه پر هر يوه دا واجبيږي چي يو بل ته د معتاده طريقې مطابق مبيع او ثمن وسپاري، او معتاده طريقه دا ده چي د مېوې له پخېدو او د کښت له رېبل کېدو څخه وروسته مبيع (درخته او ځمکه) ور وسپارل سي. نه مخکي. لهذا دلته به هم په دې عمل کيږي نو د مېوې له پخېدو او د کښت له رېبل کېدو څخه وروسته به پر بائع ورسپارل واجب وي. امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې باره کي يو قياس هم پېش کړی دی. هغه فرمايي چي د دې مثال داسي دی لکه يو سړی چي په اجاره ځمکه ونيسي او په هغه کي کښت وکړي او بيا د کښت له رېبل کېدو څخه مخکي د اجارې مودت پوره سي. نو تاسو او ګورئ! په دې صورت کي هم پر هغه فوراً د کښت رېبل او ځمکي ورسپارل واجب نه دي. بلکي د کښت تر رېبلو پوري به ځمکه پرېښوول کيږي او انتظار به کيږي. نو څرنګه چي دلته فوراً ورسپارل ضروري نه دي، همداسي به د بيع په مسئله کي هم فوراً ورسپارل ضروري نه وي. او تر حصاد او ظهورُ المنفعة پوري به مهلت ورکول کيږي.

**قلنا إلخ:** صاحب د هدايې له دې ځايه د امام شافعي د قياس جواب ورکوي، فرمايي چې ستاسو قياس صحيح نه دی؛ ځکه د اجارې په صورت کې که څه هم د کښت پخېدلو او رېبل کېدلو (حصاد) پورې ځمکه پرېښوول کيږي لېکن هغه خو مفته (بلا عوضه) نه پرېښوول کيږي، بلکې په اجاره نيونکی سړی (مستأجر) د ځمکې مالک ته د پاته مودت نور اُجرت ورکوي او معامله داسې وګرځي لکه مستأجر چې د اجارې تر مودت ختمېدلو وروسته دويم ځل تر حصاده پورې ځمکه په اُجرت ونيوله؛ ځکه چې د عوض (اُجرت) ورسپارل د معوض (ځمکې) د ورسپارلو په څېر دي (يعنې کله چې مستأجر مالک ته نور اُجرت ورکړي، نو ګواکې خپل ځمکه يې هغه ته وسپارله)، لهذا خبره داسې نه ده چې دلته د اجارې تر مودت وروسته ځمکه پرېښوول کيږي، بلکې هغه د يو نوي (دويمې) اجارې په شکل پرېښوول کيږي، نو کله چې په مقيس عليه او مقيس کې دومره فرق دی، نو بيا يو پر بل قياسول صحيح نه دي.

**ولا فرق إلخ:** د دې حاصل دا دی چې که د درختو د بيع په صورت کې مېوه په شرط او صراحت سره په بيع کې داخله نه کړل سي، نو هغه په هر صورت کې د بائع کيږي، يعنې برابره ده مېوه دومره کوچنۍ وي چې هغه هيڅ قيمت نه لري نو په داسې صورت کې هم هغه د بائع کيږي، او که مېوه په داسې حال کې وي چې له هغې څخه فايده اخيستل کېدای سي او هغه قيمت لري نو په دې صورت کې هم هغه د بائع کيږي؛ د دې وجه دا ده چې مېوه که څه هم کوچنۍ وي، بيا هم هغه خرڅولای سي (يعنې د هغې خرڅول صحيح دي)، لهذا کله چې هغه خرڅولای سي، نو هغه د بائع شی دی، نو ځکه هغه به (له شرط او صراحت څخه بغير) د درختو په بيع کې نه داخليږي او هغه به د بائع په ملکيت کې پاتيږي.

## تر تخم کرلو وروسته د ځمکې خرڅولو بيان

وَأَمَّا إِذَا بِيعَتِ الْأَرْضُ وَقَدْ بَذَرَ فِيهَا صَاحِبُهَا او کله چې ځمکه په داسې حالت کې خرڅه کړل سي چې د ځمکې مالک په هغې کې تخم کرلی وي وَلَمْ يَنْبُتْ بَعْدُ او هغه تر اوسه راشين سوی نه وي لَمْ يَدْخُلْ فِيهِ نو هغه [د ځمکې] په بيع کې نه داخليږي لِأَنَّهُ مُودَعٌ فِيهَا ځکه چې هغه په ځمکه کې [امانت] ايښوول سوی دی كَالْمَتَاعِ لکه سامان وَلَوْ نَبَتَ وَلَمْ تَصِرْ لَهُ قِيمَةٌ او که تخم را شين سوی وي، لېکن [دومره لږ راپورته سوی او کوچنی وي چې] تراوسه د هغه هيڅ قيمت نه وي [يعنې وابنه او بوټي دومره کوچني وي چې هيڅ قيمت نه لري] فَقَدْ قِيلَ: لَا يَدْخُلُ فِيهِ نو ويل سوي دي: چې هغه په بيع کې

نه داخليږي وَقَدْ قِيْلَ [*]: يَدْخُلُ فِيهِ او ويل سوي دي: چي پکښي داخليږي وَكَأَنَّ هٰذَا بِنَاءٌ عَلَى الِاخْتِلَافِ فِي جَوَازِ بَيْعِهِ قَبْلَ أَنْ تَنَالَهُ الْمَشَافِرُ وَالْمَنَاجِلُ او ګواکي دا اختلاف پر هغه اختلاف مبني دی کوم چي د هغه [دېرو کوچنيو وښو او بوټو] د بيع په جائز کېدلو کي دی مخکي تر دې چي هغوی ته د څارويو شونډان او لوزونه رسېدلي نه وي [يعني هغوی دومره کوچني وي چي څارويان يې خوړلای نه سي او په لور سره رېبل کېدای نه سي، نو د هغوی د بيع په جواز کي چي کوم اختلاف دی پر هغه اختلاف دغه پورتنی اختلاف هم مبني دی].

**اللغات**: ﴿بِيعت﴾ د ضرب له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده: خرڅ ول. ﴿بَذَر﴾ د نصر له بابه د ماضي صيغه ده: کرل، شنه کول. ﴿نَبَتَ﴾ دا هم د نصر له بابه د ماضي صيغه ده: وابښه او بوټي شين کېدل. ﴿مُودَع﴾ د افعال اسم مفعول دی: په امانت اېښول سوی. ﴿مشافر﴾ جمع د مِشْفَرٌ ده: شونډان، په ځانګړې توګه د اوښ شونډانو ته ويل کيږي، دلته ځني مراد په شونډانو سره وابښه پرېکول او خوړل دي (کوم چي د اوښ او داسي نورو څارويو عادت دی). ﴿مناجل﴾ جمع د مِنْجَلٌ ده: لوز (لوور) د وښو رېبلو آله.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو څوک په ځمکه کي تخم وکري او بيا هغه خرڅه کړي، نو د دې دوه صور تونه دي: ① تخم به را شين سوی وي، ② يا به نه وي، که تخم راشين سوی نه وي، نو له صراحت (نوم اخيستلو) څخه بغير هغه په بيع کي نه داخليږي؛ ځکه چي اوس هغه تخم په ځمکه کي د بائع امانت دی، نو څرنګه چي د بائع سامان په ځمکه يا کور کي اېښوول سوی وي، هغه د بائع کيږي او له صراحت څخه بغير د ځمکي په بيع کي نه داخليږي، همداسي به دا تخم هم د بائع وي او له صراحت څخه بغير به د ځمکي په بيع کي نه داخليږي.

لېکن که تخم لږ راشين سوی وي يعني وابښه او بوټي لږ راپورته سوی وي او دومره کوچني وي چي د قيمت قابل نه وي (يعني هيڅ قيمت نه لري)، نو په دې صورت کي اختلاف دی، يو قول دا دی چي هغه د ځمکي په بيع کي داخليږي، او دويم قول دا دی چي نه داخليږي، اول قول د ابو القاسم رَحِمَهُ الله او د ځيني نورو علماؤ دی، او دويم قول د ابو بکر اسکاف رَحِمَهُ الله او داسي نورو دی.

---

[*] القول الراجح: هو دخول النبات في البيع، قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: إذا نبت ولا قيمة له فيدخل في الأصح، شرح المجمع (رد المحتار ج:۴، ص:۴۱)، وقال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: وذكر صاحب الهداية في التجنيس أن الصواب الدخول كما نصّ عليه القدوري والاسبيجابي، وقال العلامة الشيخ الطحطاوي:...ولو نبت ولم يصر له قيمة ذكر الفقيه وابو الليث أنه لا يدخل فيه، والصواب أنه يدخل، كذا في الظهيرة (الطحطاوي على الدر المختار ج:۳، ص:۲۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۸]

وكأنّ إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په اصل کې دغه اختلاف پر هغه اختلاف مبني دی کوم چې د داسې کوچنيو ونو او بوټو د بيع د جواز په باره کې دی چې هغه لږ غونډې را پورته سوي وي او دومره کوچني وي چې په لور سره نه سي رېبل کېدای او نه يې څاروبيان خوړلای سي، نو د هغوی په باره کې ځينې علماء وايي چې د هغوی خرڅول جائز دي او ځيني وايي چې جائز نه دي، نو کوم علماء چې وايي د هغوی خرڅول جائز دي، د هغو په نېز لږ را پورته سوي کوچني وابنه او بوټي د ځمکې په بيع کې نه داخليږي (ځکه چې اوس هغوی يو قيمتداره شی دي، نو ځکه هغوی به د بائع کيږي او په بيع کې به نه داخليږي)، او کوم حضرات چې وايي د هغوی خرڅول جائز نه دي، د هغو په نېز داسې کوچني وابنه او بوټي د ځمکې په بيع کې داخليږي (ځکه د هغو په نېز دا قيمتداره نه دي، نو ځکه هغوی به د مشتري کيږي يعني په بيع کې به داخليږي).

## د درختو او ځمکې په بيع کې د مېوې او کښت د نه داخلېدلو يو صورت

وَلَا يَدْخُلُ الزَّرْعُ وَالثَّمَرُ بِذِكْرِ الْحُقُوقِ وَالْمَرَافِقِ کښت او مېوه د حقوقو او مرافقو په ذکر کولو [نوم اخيستلو] سره په بيع کې نه داخليږي لِأَنَّهُمَا لَيْسَا مِنْهُمَا ځکه چې هغوی [مېوه او کښت] له حقوقو او مرافقو څخه نه دي وَلَوْ قَالَ: بِكُلِّ قَلِيلٍ وَكَثِيرٍ هُوَ لَهُ فِيهَا وَمِنْهَا مِنْ حُقُوقِهَا او که بائع ووايي: چې [ما پر تا دغه درخته يا ځمکه خرڅه کړه] د هر هغه لږ او ډېر سره کوم چې په هغې کې موجود دي او [د هر هغه لږ او ډېر سره کوم چې] له هغې څخه يعني د هغې له حقوقو څخه دي أَوْ قَالَ: مِنْ مَرَافِقِهَا يا [د حقوقو پر ځای] ووايي: کوم چې د هغې له مرافقو څخه دي [د دغه جملو آسانه ترجمه دا ده: او که بائع ووايي: په دغه ځمکه... کې چې څومره کوچني او غټ شيان دي او د هغې له حقوقو يا مرافقو څخه (چې کوم کوچني او غټ شيان دي) د هغوی سره ما دغه ځمکه پر تا... خرڅه کړه] لَمْ يَدْخُلَا فِيهِ نو [په دې صورت کې] هم مېوه او کښت په بيع کې نه داخليږي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَإِنْ لَمْ يَقُلْ: مِنْ حُقُوقِهَا أَوْ مِنْ مَرَافِقِهَا او که "مِن حقوقها" يا "مِن مرافقها" نه ووايي دَخَلَا فِيهِ نو هغوی دواړه په بيع کې داخليږي وَأَمَّا الثَّمَرُ الْمَجْذُوذُ وَالزَّرْعُ الْمَحْصُودُ لَا يَدْخُلُ إِلَّا بِالتَّصْرِيحِ بِهِ لېکن پرېکړل سوې مېوه او رېبل سوی کښت له صراحت څخه بغير په بيع کې نه داخليږي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْمَتَاعِ ځکه چې هغوی د سامان په درجه کې دي.

**اللغات**: ﴿مرافق﴾ منافع، د دغه لفظ پوره تعريف به په تشريح کې ذکر سي، ﴿مجذود﴾ د نصر له بابه اسم مفعول دی: پرېکړل سوی، شکول سوې ميوه، ﴿محصود﴾ له نصر او ضرب دواړو څخه اسم مفعول دی: رېبل سوی، پرېکړل سوی.

**تشريح:** په دې عبارت کې د بيع څو صورتونه بيان سوي دي، خو له هغه څخه مخکې تاسو د يو څو الفاظو په مطلب ځان پوه کړئ! کوم چې دلته ذکر سوي دي: ① حقوق، ② مرافق، ③ هُو لهٗ فيها،

(۱)... **حقوق:** کوم شی چې د مبيع تابع وي او د مبيع لپاره ضروري وي، هغه ته د مبيع حقوق ويل کيږي، لکه د ځمکي لپاره د اوبو واله (وياله)، يا ځمکي ته د تګ را تګ لاره، دا د ځمکي لپاره ډېر ضروري دي، نو ځکه دوی ته د ځمکي حقوق وايي، لهذا که مشتري (مثلاً) ووايي چې زه ځمکه د هغې د حقوقو سره رانيسم، نو د اوبو واله او د تګ راتګ لاره په دغه بيع کې داخليږي.

(۲)... **مرافق:** کوم شی چې د مبيع لپاره ضروري نه وي، لېکن د مبيع سره خاص وي او په هغه سره د مبيع فايده کيږي (او فايده ځني اخيستل کيږي)، هغه ته مرافق وايي، لکه د کور لپاره اشپزخانه (پخلنځی)، اودس خانه (د اودس کولو ځای)، دا ټول شيان د کور لپاره ضروري نه دي، لېکن د کور سره خاص دي او کور په دې شيانو ښايسته کيږي، نو دوی د کور په مرافقو کې داخل دي، لهذا که مشتري (مثلاً) ووايي چې زه کور د هغه د مرافقو سره رانيسم، نو اشپزخانه، اودس خانه او داسې نور د کور په بيع کې داخليږي.

(۳)... **هُوَلهٗ فيها:** د دغه جملې آسانه مطلب دا دی چې يو شی مثلاً د مبيع په حقوقو يا مرافقو کې داخل نه وي لېکن د مبيع سره ټينګ تعلق لري، نو که مشتري ځمکه د "هو له فيها" سره رانيسي نو په بيع کې هغه شی داخليږي، د مثال په توګه په ځمکه کې کرل سوی کښت (چې هغه تر اوسه رېبل سوی نه وي) د ځمکي په "هو له فيها" کې داخل دی، او د درختي سره لګېدلې مېوه د درختي سره په "هو له فيها" کې داخله ده، نو که څوک ځمکه د "هو له فيها" سره رانيسي نو د هغه ځمکي په بيع کې کښت هم داخليږي، همدارنګه که درخته د "هو له فيها" سره رانيسي نو د هغه درختي سره ميوه هم په بيع کې داخليږي، ځکه چې مېوه د درختي سره متعلق ده.

**صورت د مسئلې:** دا دی که بائع داسې ووايي چې ما دغه ځمکه يا درخته د هغې د حقوقو او مرافقو سره (پر تا) خرڅه کړه، نو په دې صورت کې هم مېوه او کښت د دغو دواړو په بيع کې نه داخليږي؛ ځکه څه مخکې د حقوقو او مرافقو تعريف ستاسو مخته ذکر سو، او ښکاره خبره ده چې مېوه او کښت نه د درختي او ځمکي له حقوقو څخه دي او نه د دوی له مرافقو څخه دي (بلکې دا شيان يو څو وخت د درختي او ځمکي سره لګېدلي وي)، نو ځکه به په دې صورت کې مېوه او کښت د درختي او ځمکي په بيع کې نه داخليږي.

د مسئلې دويم صورت دا دی چې که بائع داسې ووايي: د دغه ځمکې سره يا مثلاً د دغه درختې سره چې هر قليل او کثير (هر کوچنی او غټ شی) دی، همدارنګه د دغه ځمکې يا درختې له حقوقو يا مرافقو څخه چې هر قليل او کثير دی، د هغوی سره ما پر تا دغه ځمکه يا درخته خرڅه کړه (يا مشتري ووايي چې زه يې د هغوی سره رانيسم)، نو په دې صورت کې هم مېوه او کښت د درختې او ځمکې په بيع کې نه داخليږي؛ ځکه د "کُلّ" لفظ که څه هم عام دی او د مبيع هر جزء لره شامل او عام دی (يعني که څه هم د بائع دا جمله چې "هر کوچنی او غټ شی" د ځمکې او درختې هر جزء لره شامله او عامه جمله ده) لېکن کله چې بائع د "کُلّ" سره "مِن حُقوقها و مَرَافقها" هم ووېل، نو د هغه عموميت بدل سو، او ښکاره خبره ده چې مېوه او کښت د ځمکې او درختې له حقوقو او مرافقو څخه نه دي، نو ځکه په دې صورت کې به هم مېوه او کښت د درختې او ځمکې په بيع کې نه داخليږي.

د مسئلې درېيم صورت دا دی چې که بائع مثلاً داسې ووايي: "بعتُ الشجرة (أو الأرض) بكل قليل و كثير هو له فيها و منها"، يعنې د هغه سره "مِن حقوقها و مرافقها" نه ووايي، نو په دې صورت کې د "كُلّ" د لفظ عموم باقي پاتېږي او د هغه په عموم کې د مبيع هر جزء شامليږي، او مېوه او کښت هم د درختې او ځمکې جزء دي، نو ځکه په دې صورت به کې مېوه او کښت هم د درختې او ځمکې په بيع کې داخليږي.

والثمر الخ: د دې حاصل دا دی چې په تېر صورت کې مېوه او کښت هغه وخت د "كُلّ" په عموم کې شامليږي او د درختو او ځمکې په بيع کې داخليږي، کله چې مېوه د درختو سره لګېدلې وي او کښت د ځمکې سره لګېدلی وي، لېکن که مېوله له درختو څخه پرېکړل سوې وي، يا کښت زېبل سوی وي، نو ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې هغوی د درختو او ځمکې جزء نه پاتېږي (ځکه چې د شي جزء د هغه سره متصل وي، جلا نه وي)، لهذا کله چې هغوی په دې صورت کې جزء نه دي، نو که سل واره هم د "كُلّ" لفظ استعمال سي، بيا هم هغوی له صراحت (نوم اخيستلو) څخه بغير په بيع کې نه داخليږي. او بل دا چې له درختو او ځمکې څخه د جلا کېدلو په صورت کې هغوی د کور د سامان سره مشابه کيږي، او د کور سامان صرف په صراحت (نوم اخيستلو) سره په بيع کې داخليږي او له صراحت څخه بغير نه پکښې داخليږي، همداسې به دغه دواړه هم صرف په شرط او صراحت سره په بيع کې داخليږي او له صراحت څخه بغير به نه پکښې داخليږي.

## بيعُ الثمر قبل بدوّ الصلاح

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ ثَمَرَةً لَمْ يَبْدُ صَلَاحُهَا أَوْ قَدْ بَدَا فرمايي: او كه څوک داسي مېوه خرڅه كړي چي د هغې صلاحيت [منفعت] ښكاره سوى نه وي يا ښكاره سوى وي جَازَ الْبَيْعُ نو [په دواړو صورتونو كي] بيع جائز ده لِأَنَّهُ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ ځكه چي مېوه قيمتداره مال دى إِمَّا لِكَوْنِهِ مُنْتَفَعًا بِهِ فِي الْحَالِ يا خو په دې وجه چي في الحاله [اوس] له هغې څخه نفع اخيستل كېداى سي أَوْ فِي الثَّانِي يا [په دې وجه چي] په دويمه زمانه [يعني په مستقبل] كي [له هغې څخه نفع اخيستل كېداى سي] وَقَدْ قِيلَ: لَا يَجُوزُ قَبْلَ أَنْ يَبْدُوَ صَلَاحُهَا او ويل سوي دي: چي له "بدو الصلاح" څخه مخكي د مېوې بيع جائز نه ده وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ [لېكن] اول قول زيات صحيح دى وَعَلَى الْمُشْتَرِي قَطْعُهَا فِي الْحَالِ او [په دې صورت كي] پر مشتري في الحاله د ميوې پرېكول واجب دي تَفْرِيغًا لِمِلْكِ الْبَائِعِ د دې لپاره چي د بائع ملكيت فارغ كړى سي وَهٰذَا إِذَا اشْتَرَاهَا مُطْلَقًا أَوْ بِشَرْطِ الْقَطْعِ او دا بيع په هغه صورت كي جائز ده كله چي يې مېوه مطلق رانيولې وي يا يې د پرېكولو په شرط سره رانيولې وي.

**اللغات**: ﴿يبدو﴾ د نصر مضارع ده: ښكاره كېدل، ﴿صلاح﴾ صلاحيت، قابليت (وړتيا)، د "يبدو الصلاح" معنیٰ ده چي مېوه د انتفاع قابله سي، يعني د دې وړتيا پكښې پيدا سي چي انسان فايده ځني واخيستلى سي، ﴿متقوّم﴾ د تفعيل د باب اسم مفعول دى: قيمت لرونكى (قېمتي)، قيمتداره، كوم مال او كوم شى چي (په شريعت كي) څه قيمت لري، هغه ته "متقوم" وايي، ﴿تفريغ﴾ د تفعيل مصدر دى: فارغول، خالي كول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي له "بدو الصلاح" څخه وروسته خو بالاتفاق د مېوو بيع جائز ده، لېكن تر "بدو الصلاح" مخكي د احنافو په نېز جائز ده او د ائمه ثلاثه وو په نېز ناجائز ده، همدارنګه د شمس الائمه سرخسي او خواهر زاده رَحِمَهُمَا الله په نېز هم ناجائز ده.

(د "بدو الصلاح" معنیٰ ده: صلاحيت ښكاره كېدل، "بدو الصلاح" دې ته وايي چي مېوه د دې قابله سي چي انسان نفع او فايده ځني واخلي، يعني د فايده اخيستلو صلاحيت پكښې پيدا سي او قابلِ انتفاع وګرځي، لكه په لغاتو كي چي هم مورږ دغه مطلب ته اشاره وكړه).

**دليل**: د ائمه ثلاثه وو دليل هغه حديث دى چي په هغه كي تر "بدو الصلاح" مخكي د مېوو له بيع څخه منع سوې ده، نو ځكه دوى فرمايي چي تر څو د مېوې صلاحيت ښكاره نه سي، تر هغه وخته پوري د مېوې بيع نه صحيح كېږي.

**زموږ دليل**: زموږ د احنافو دليل (کوم چي په حقيقت کي د ائمه ثلاثه وو د دليل جواب هم دی) دا دی چي مېوه په هر صورت کي متقوم (قيمتداره) مال دی، هغه په دې توګه چي که چيري د مېوې صلاحيت ښکاره سوی وي، نو ښکاره خبره ده چي هغه خو في الحاله متقومه ده، ځکه چي هغه اوس د انتفاع (نفع اخيستلو) قابله ده يعني في الحاله نفع ځني اخيستل کېدای سي، لېکن که د هغې صلاحيت ښکاره سوی نه وي، نو هغه به په را روان وخت (مستقبل) کي د انتفاع قابله سي، او هر قابل انتفاع شی متقوم وي، لهذا مېوه به هم په مآل او را روان وخت کي د قابل انتفاع کېدلو په وجه متقومه وي او په دواړو صورتونو کي به د هغې بيع جائز کيږي، او ستاسي (دائمه ثلاثه وو) دا خبره چي هغه قابل انتفاع نه ده موږ نه تسليموو، ځکه چي په مآل کي خو هغه خامخا قابل انتفاع ګرځي.

د ائمه ثلاثه وو د مُستدل حديث جواب دا دی چي نبي کريم ﷺ په هغه صورت کي تر "بدو الصلاح" مخکي د مېوې له بيع څخه منع کړې ده کله چي دا شرط لګول سوی وي چي مېوه به پر درختو پرېښوول کيږي، او دې ته خو موږ هم ناجائز وايو؛ ځکه د عقد تر پوره کېدلو وروسته پر درختو د مېوې د پرېښوولو شرط لګول د عقد د مقتضا خلاف دي او په داسي شرط سره بيع فاسديږي کوم چي د عقد د مقتضا خلاف وي، لهذا په حديث کي د بيع د نه جائز کېدلو علت د "بدو الصلاح" نشتوالی نه دی (يعني د بيع د عدم جواز وجه او علت "د صلاح نه ښکاره کېدل" نه دي)، بلکي د عقد د مقتضا په خلاف شرط لګول د بيع د نه جائز کېدلو علت دی، لهذا په دغه حديث سره تر "بدو الصلاح" مخکي بيع ته مطلق ناجائز ويل او په دغه حديث سره په دې هکله دليل نيول صحيح نه دي.

<u>وعلى المشتري إلخ</u>: فرمايي چي کله زموږ په نېز په دواړو صورتونو کي بيع جائز ده، نو اوس به تر معامله کولو وروسته فوراً مشتري ته دا ويل کيږي چي خپل مبيع (مېوه) پرېکړه!، ځکه چي د عقد تر پوره کېدلو وروسته پر هر عاقد ضروري دي چي د بل عاقد ملکيت فارغ کړي، اوس که مشتري ته د قطع الثمار حکم نه وسي، نو ښکاره خبره ده چي د بائع ملکيت به مشغول پاته سي (يعني د بائع درختي به د مشتري په مېوو سره مشغوله پاته سي)، حالانکي پر مشتري د بائع د ملکيت فارغول او ورسپارل ضروري دي.

<u>وهذا إلخ</u>: د دې حاصل دا دی چي په پورتني صورت کي د بيع د جائز کېدلو حکم هغه وخت دی کله چي معامله مطلقاً سوې وي يعني د قطعُ الثمر او ترکُ الثمر له شرط څخه بغير معامله سوې وي، يا صرف د قطعُ الثمر (يعني د مېوې پرېکولو) په شرط سره معامله سوې وي، لېکن که چيري پر دې شرط معامله سوې وي چي مېوه به پر درختو پرېښوول کيږي، نو په دې صورت کي بيع نه صحيح کيږي. لکه په را روان عبارت کي چي به همدغه صورت په تفصيل سره بيان سي.

## د "بیعُ الثمر قبل بدو الصلاح" یو بل صورت

وَإِنْ شَرَطَ تَرْكَهَا عَلَى النَّخِيْلِ او که مشتري پر درختو د مېوې پرېښوولو شرط ولګوي فَسَدَ الْبَيْعُ نو بیع فاسدېږي لِأَنَّهُ شَرْطٌ لَا يَقْتَضِيْهِ الْعَقْدُ ځکه چي دا یو داسي شرط دی چي عقد د هغه تقاضا نه کوي [یعني دا شرط د عقد د مقتضا خلاف دی] وَهُوَ شَغْلُ مِلْكِ الْغَيْرِ او هغه [خلاف کېدل] د بل چا [یعني د بائع] ملکیت مشغول ساتل دي أَوْ هُوَ صَفْقَةٌ فِيْ صَفْقَةٍ یا هغه په یوه معامله کي بله معامله کول دي وَهُوَ إِعَارَةٌ أَوْ إِجَارَةٌ فِيْ بَيْعٍ او هغه [صفقة في صفقة] په بیع کي اعاره ده یا اجاره ده وَكَذَا بَيْعُ الزَّرْعِ بِشَرْطِ التَّرْكِ او همدارنګه [فاسدېږي] د کښت بیع [په ځمکه کي] د [کښت] پرېښوولو په شرط سره لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَكَذَا إِذَا تَنَاهَى عِظَمُهَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوسُفَ او همدارنګه کله چي د مېوې غټوالي انتهاء ته ورسېږي [چي وروسته یې د نور غټېدلو امکان نه وي، نو هم د "ترک" په شرط سره بیع فاسدېږي] د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَاسْتَحْسَنَهُ مُحَمَّدٌ لِلْعَادَةِ[*] او امام محمد رَحِمَهُ الله [د خلکو] د عادت په وجه هغه ښه ګڼلی دی [یعني امام محمد رَحِمَهُ الله په دې صورت کي د خلکو د عُرف او عادت په خاطر د استحسان پر بناء بیع جائز ګرځولې ده] بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَتَنَاهَ عِظَمُهَا په خلاف د هغه صورت کله چي د مېوې غټوالی انتهاء ته رسېدلی نه وي [نو په دې صورت کي بیع فاسدېږي] لِأَنَّهُ شَرَطَ فِيْهِ الْجُزْءَ الْمَعْدُوْمَ ځکه چي [په دې صورت کي] مشتري د معلوم جزء شرط لګولی دی وَهُوَ الَّذِيْ يَزِيْدُ لِمَعْنًى مِنَ الْأَرْضِ أَوِ الشَّجَرِ او دا هغه دی [یعني له معدوم جزء څخه هغه زیاتوب مراد دی] کوم چي د ځمکي یا درختي په قوت سره [په هغه نارسېدلې مېوه کي] زیاتیږي وَلَوِ اشْتَرَاهَا مُطْلَقًا وَتَرَكَهَا بِإِذْنِ الْبَائِعِ او که مشتري مېوه مطلق رانیسي او د بائع په اجازه سره هغه [پر درختو] پرېږدي طَابَ لَهُ الْفَضْلُ نو د مشتري لپاره د مېوې زیاتوب جائز دی وَإِنْ تَرَكَهَا بِغَيْرِ إِذْنِهِ او که د بائع له اجازې څخه بغیر مېوه پرېږدي تَصَدَّقَ بِمَا زَادَ فِيْ ذَاتِهِ نو د مېوې په ذات کي چي څومره زیاتوب

---

[*] القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: ويجوز عند محمد استحساناً، وهو قول الائمة الثلاثة، واختاره الطحاوى لعموم البلوىٰ (فتح القدير ج:۵، ص:۴۸۹). وقال العلامة الحصكفى رَحِمَهُ الله: وبه يُفتى "اى بقول محمد رَحِمَهُ الله". [القول الراجح ج:۲، ص:۹]

راسي هغه دي صدقه کړي لِحُصُولِهِ بِجِهَةٍ مَحْظُورَةٍ ځکه چي دغه زياتوب په ممنوع جهت سره حاصل سوی دی وَإِنْ تَرَكَهَا بَعْدَ مَا تَنَاهٰى عِظَمُهَا او که مشتري [د بائع له اجازې څخه بغير] مېوه پرېږدي وروسته تر دې چي د ميوې غټوالی انتهاء ته ورسيږي لَمْ يَتَصَدَّقْ بِشَيْءٍ نو هيڅ شي دي نه صدقه کوي لِأَنَّ هٰذَا تَغَيُّرُ حَالَةٍ لَا تَحَقُّقُ زِيَادَةٍ ځکه چي دا د حالت تغيّر [بدلون] دی، د زياتوب ثبوت نه دی [يعني دا له يوه حالت څخه بل حالت ته بدلېدل دي، زياتوب نه دي ثابت سوی].

**اللغات**: ﴿نخيل﴾ د خرما درختي (واحد يې نَخْلَةٌ او نَخِيْلَةٌ دی)، ﴿إعارة﴾ د افعال مصدر دی: په عاريت ورکول. عاريتاً ورکول. (اعاره: "تمليكُ المنافع بلا عوض على أن ترد العين" ته وايي. يعنيّ چي يو سړی چا ته يو شی مفت (بېله عوضه) ورکړي او ورته ووايي چي ته خپل نفع ځني واخله! او بيا يې بيرته ما ته راکړه!. يا په بله وينا دا چي يو سړی بل چا ته خواست وکړي چي تر يو څو وخته فلانکی شی (مثلا موټر سايکل) راکړه!. او هغه شی ورکړي چي ته خپل کار ځني واخله!. او تر کار اخيستلو وروسته يې بيرته ما ته وسپاره!. نو دې ته عاريتاً ورکول (په خواست ورکول) وايي. ﴿إجارة﴾ دا هم د افعال مصدر دی: په کرايه ورکول. ﴿تناهٰى﴾ د تفاعل ماضي ده: انتهاء ته رسېدل. درېدل. پوره کېدل. رسېدل. ﴿العظم﴾ د عَين په کسره او د ظاء په سکون سره (يعني عِظْم همدارنګه عِظَم) غټوالي ته وايي، او که دا لفظ د عَين په فتحه او د ظاء په سکون سره وويل سي (يعني عَظْم) نو د هغه دوې معناوي دي: هډوکی. غټه حصه (عَظْمُ الشَّيء: يعني د يو شي غټه حصه). شارحينو يې دواړي معناوي کړي دي. د "تَنَاهٰى عظمها" مطلب دا دی چي مېوه خپل انتهاء ته ورسيږي. يعني څومره چي غټيږي، هغه حدّ ته ورسيږي او تر دې وروسته نوره نه غټيږي. بلکي صرف پخوالي او خوږوالي يې پاته وي. ﴿معنٰى﴾ مراد ځني د درختي يا ځمکي قوت دی. ﴿طاب﴾ د ضرب ماضي ده: ښه کېدل. مراد ځني "حلال کېدل او جائز کېدل" دي. د "طاب له الفضل" مطلب دا دی چي کوم زياتوب په مېوه کي راغلی دی هغه د ده لپاره جائز او ډېر ښه دی. ﴿فضل﴾ زياتوب. اضافه. زائد او اضافي مقدار.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله له دې ځايه په درختو کي د مېوې پرېښوولو او په ځمکه کي د کښت پرېښوولو مختلفه صورتونه او د هغوی احکام ذکر کوي. فرمايي که بائع مېوه خرڅه کړي او مشتري دا شرط ولګوي چي د پخېدلو تر وخته پوري به دا مېوه پر درختو پرېښوول کيږي (د دې لپاره چي مېوه غټه سي او خپل انتهاء ته ورسيږي). نو په دې صورت کي بيع فاسديږي، ځکه چي دا شرط د عقد له مقتضا څخه خلاف دی او هر هغه شرط کوم چي د عقد له مقتضا څخه خلاف وي، هغه بيع فاسدوی. لهذا دغه شرط به هم بيع فاسدوي.

پاته سو دا سوال چې دغه شرط ولې او څنګه د عقد له مقتضا څخه خلاف دی؟ نو د هغه جواب دا دی چې تر عقد پوره کېدلو وروسته د عقد د حکم د ثبوت لپاره ضروري دي چې بائع مشتري ته مبیع وسپارې او مشتري بائع ته ثمن وسپارې او هر یو د بل له حق څخه بالکل فارغ سي او غاړې یې خلاصې سي. لېکن کله چې دا شرط ولګول سي چې مېوه به د پخېدلو تر وختـه پېر درختو پرېښوول کیږي نو په دې صورت کې په مبیع سره د بائع ملکیت مشغول پاتېږي او د مشتري غاړې نه خلاصیږي، نو په دې وجه فقهاؤ دغه شرط د عقد له مقتضا څخه خلاف او د عقد مُفسد (فاسدونکی) ګرځولی دی.

دویم دلیل دا دی چې کله مېوه پر درختو پرېښوول سي نو د دې به دوه صورتونه وي: یا خو به مشتري بائع ته د "أيامُ التَّرْك" أجرت (کرایه) ورکوي، یا به بائع هغه ته د عاریت په توګه درختې ورکوي، که اول صورت وي یعني مشتري أجرت ورکوي، نو دا اجاره ده، او که دویم صورت وي یعني د عاریت والا صورت وي، نو دا اعاره ده، او دلته یو وار مخکې د بیع عقد سوی دی، لهذا کله چې د "تَرْك" (مېوې پرېښوولو) شرط هم ولګول سي، نو دا عقد به اجاره یا اعاره هم وګرځي، نو په یوه عقد یعني د بیع په عقد کې به دننه د بل عقد کول لازم سي، او په حدیث کې له "صفقة في الصفقة" څخه منع سوې ده، نو په دې وجه هم دغه شرط د مقتضاء عقد خلاف او د عقد بیع فاسدونکی دی.

وکذلك الزرع إلخ: فرمایي چې بعینه همدغه حال د ځمکې د بیع هم دی، چې که د "تَرْكُ الزَّرْع" په شرط سره ځمکه خرڅه کړل سي، نو په دې صورت کې هم د عقد له مقتضا څخه د مخالف شرط موجودېدلو په وجه بیع فاسدیږي.

وکذا إذا تناهی إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مېوه خپل انتهاء ته ورسیږي (یعني خپل معلوم مقدار ته ورسیږي، یعني دومره غټه سي چې تر دې وروسته نوره نه غټیږي)، او بیا مشتري هغه د "تَرْك" په شرط سره رانیسي، نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کې هم بیع فاسدیږي؛ د مخکني دلیل په وجه چې دا شرط د عقد له مقتضا څخه خلاف دی، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله د خلګو د عُرف او عادت پر بناء دغه صورت د استحسان په توګه جائز ګرځولی دی (یعني د کښتګرانو او باغوانانو دا عادت دی چې کله داسې مېوه خرڅوي [کوم چې نوره نه غټیږي] نو پر دې شرط یې خرڅوي چې دا مېوه به یو څو وخت پر درختو پرېښوول کیږي. نو د دوی د عادت په خاطر امام محمد رَحِمَهُ الله دغه صورت مُستحسن او ښه ګرځولیٰ دی. او اجازه یې ورکړې ده)، همدا د ائمه ثلاثه وو مسلک هم دی او پر همدې فتویٰ هم ده، ځکه چې دا د فقهي مثل

سوی أصول دی چې "الضرورات تُبِیح المحظورات"، یعني ضرورت ممنوع شیان روا ګرځوي، لهذا دلته هم امام محمد رَحِمَهُ الله د خلکو د ضرورت او د هغوی د عادت په خاطر اجازه ورکړې ده (او بله وجه دا ده چې تر دې وروسته صرف د مېوې رنګ بدلیږي، او هغه له درختي څخه هیڅ قوت نه حاصلوي، یعني له درختي څخه رَس نه ځیښني، نو په دې وجه هم دا صورت جائز کېدل پکار دي).

بخلاف ما إلخ: فرمایي که مېوه خپل انتهاء ته رسېدلې نه وي (او په را روان وخت کي د هغې په مقدار کي د زیاتوب راتللو امکان وي. یعني د هغې د نور غټېدلو أمید او توقع وي)، بیا مشتري هغه د "تَرْك" په شرط سره رانیسي، نو په دې صورت کي بالاتفاق دا بیع فاسدیږي؛ ځکه کله چي اوس هم د مېوې د نور غټېدلو (او د هغې په مقدار کي د زیاتوب راتللو) توقع سته (چي مېوه به د بائع له درختي او ځمکي څخه نور قوت حاصل کړي او نوره به غټه سي)، او دا دلته د بیع کولو په وخت کي معدوم دي، نو ښکاره خبره ده چي دلته مشتري د موجود او معدوم دواړو رانیونکی وګرځېدی؛ ځکه چي د مېوې موجوده مقدار خو موجود دی او د زیاتوب په صورت کي د هغې متوقع مقدار معدوم دی (یعني په را روان وخت کي به مېوه څومره غټه سي، د دې مقدار نا معلوم او معدوم دی) او په دې سره بیع فاسدیږي چي موجود او معدوم دواړه په بیع کي سره یو ځای کړل سي، لهذا دلته به هم بیع فاسدیږي.

ولو اشتراها إلخ: مسئله دا ده چي که مشتري مطلق (یعني له څه شرط څخه بغیر) مېوه رانیسي او اوس هم د میوې د نور غټېدلو امکان او توقع وي او مشتري هغه پر درختو پرېږدي، او دغه "تَرْك" د بائع په اجازه او رضا سره وي (یعني بائع د پرېښوولو اجازه ورکړي)، نو په دې صورت کي چي کوم زیاتوب او اضافه په مېوه کي راسي هغه هم د مشتري لپاره جائز دی او عقد هم جائز دی، ځکه کله چي په عقد کي د "تَرْك" شرط نه ولګول سو، نو د عقد له مقتضا څخه خلاف هیڅ شی موجود نه سو، حال دا چي عقد په داسي شرط سره فاسدیږي کوم چي د عقد د مقتضا خلاف وي، او کله چي دلته بائع په خپله اجازه ورکړه او د خپل حق په مشغولیت راضي سو، نو ځکه اوس به عقد هم جائز وي او د مشتري لپاره به زیاتوب (فضل) هم جائز وي.

لېکن که بائع د "تَرْك" اجازه نه وي ورکړې، خو بیا هم مشتري مېوه پر درختو پرېږدي، نو په دې صورت کي چي تر عقد وروسته په مېوه کي څومره اضافه او زیاتوب راسي، هغه واجبُ التصدّق دی (یعني د هغه صدقه کول پر مشتري واجب او ضروري دي) او مشتري ته پکار دي چي د عقد په ورځ هم د مېوې قیمت معلوم کړي او تر پخېدلو وروسته هم یعني د عقد په ورځ او د پخېدلو پر مهال چي

دمېوې کوم قيمت وي هغه دې دواړه معلوم کړي، او اوس چې د دواړو په مينځ کې کوم فرق وي، يعني د يومُ العقد له قيمت څخه چې څومره قيمت زيات سي، هغه دې صدقه کړي، ځکه چې دلته مشتري د بائع له رضا څخه بغير مېوه پرې اېښې ده، نو ګواکې هغه له مغصوب شي څخه نفع اخيستې ده (ځکه چې هغه د بائع له رضا څخه بغير د هغه له ملکيت [درختو او ځمکې] څخه نفع اخيستې ده)، او له مغصوب شي څخه نفع اخيستل حرام او ناجائز دي، لهذا دغه زياتوب (فضل) به هم حرام او (بدون نية الثواب به) واجبُ التصدّق وي.

وإن ترکها بعد ما إلخ: د عبارت آخري مسئله دا ده چې که مېوه خپل انتهاء ته رسېدلې وي او تر دې وروسته مشتري هغه د بائع له اجازې څخه بغير پر درختو پرېږدي، نو په دې صورت کې د هېڅ شي صدقه کول واجب نه دي؛ ځکه په مخکني صورت کې صدقه کول په دې وجه واجب وه چې د مېوې په ذات کې د بائع د ملکيت دخل وو (يعني مېوې د بائع له درختو او ځمکې څخه قوت حاصل کړی وو)، لېکن کله چې دلته هغه خپل انتهاء ته رسېدلې ده او تر دې وروسته يې د نور غټېدلو هيڅ امکان نسته، نو ښکاره خبره ده چې اوس به پر درختو د مېوې په پرېښوولو کې د بائع د ملکيت هيڅ دخل نه وي، ځکه دغه دخل خو د مېوې د نور غټېدلو (زياتوب) په صورت کې ممکن وو، لېکن اوس په مېوه کې بالکل نور زياتوب نه راځي، نو اوس به د څه شي صدقه کول واجب وي!؟ اوس خو صرف د مېوې په حالت کې تغيّر راځي، او دغه تغيّر د بائع په ملکيت سره (يعني د بائع د ځمکې او درختو په سبب) نه راځي، بلکې اوس چې کومه مېوه هم پخېږي هغه د لمر په وړانګو او تودوخې سره پخېږي، د سپوږمۍ په نورانيت او رڼا سره په هغې کې رنګ راځي او د ستورو په ګردش سره هغه خوږه او لذيذه ګرځي، لهذا کله چې د مېوې له غټېدلو (يعني خپل انتهاء ته له رسېدلو) څخه وروسته د مېوې په راتلونکو اثراتو کې د بائع او د هغه د ملکيت هيڅ دخل نسته، نو ځکه به پر مشتري د هيڅ شي صدقه کول هم ضروري نه وي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

وَإِنْ اشْتَرَاهَا مُطْلَقًا او که چيرې مېوه مطلق رانيسي وَتَرَكَهَا عَلَى النَّخِيلِ وَقَدِ اسْتَأْجَرَ النَّخِيلَ إِلَى وَقْتِ الْإِدْرَاكِ او پر درختو يې پرېږدي [په داسې حال کې چې] درختې [د مېوې] د پخېدلو تر وخته پورې په اجاره [هم] واخلي طَابَ لَهُ الْفَضْلُ نو [په دې صورت کې] د هغه لپاره زياتوب حلال دی. لِأَنَّ الْإِجَارَةَ بَاطِلَةٌ لِعَدَمِ التَّعَارُفِ وَالْحَاجَةِ ځکه چې د عُرف او ضرورت د نشتوالي په وجه اجاره باطله ده فَبَقِيَ الْإِذْنُ مُعْتَبَرًا لهذا [صرف د بائع] اجازت معتبر پاته سو بِخِلَافِ مَا إِذَا اشْتَرَى الزَّرْعَ وَاسْتَأْجَرَ الْأَرْضَ إِلَى أَنْ يُدْرِكَ وَتَرَكَهُ په خلاف د هغه صورت کله چې کښت رانيسي او د پخېدلو تر وخته

پوري ځمکه په اجاره واخلي او کښت پرېږدي حَيْثُ لَا يَطِيْبُ لَهُ الْفَضْلُ نو [په دې صورت کې] د هغه لپاره زياتوب نه حلالېږي لِأَنَّ الْإِجَارَةَ فَاسِدَةٌ لِلْجَهَالَةِ ځکه چې د جهالت په وجه اجاره فاسده ده فَأَوْرَثَتْ خُبْثًا نو هغه جهالت [په مبيع کې] ګندګي پيدا کړه وَلَوِ اشْتَرَاهَا مُطْلَقًا فَأَثْمَرَتْ ثَمَرًا آخَرَ قَبْلَ الْقَبْضِ او که مېوه مطلق رانيسي او [بيا] تر قبضه کولو مخکې درختي نوره مېوه وکړي فَسَدَ الْبَيْعُ نو بيع فاسدېږي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ تَسْلِيمُ الْمَبِيعِ لِتَعَذُّرِ التَّمْيِيزِ ځکه [په دواړو مېوو کې] د تمييز د مشکل والي په وجه د بائع لپاره د مبيع ورسپارل ممکن نه دي وَلَوْ أَثْمَرَتْ بَعْدَ الْقَبْضِ او که درختي تر قبضې وروسته نوره (زائده) مېوه وکړي يَشْتَرِكَانِ فِيهِ لِلِاخْتِلَاطِ نو [د مبيع سره د غير مبيع] د ګډېدلو په وجه به دواړه په هغه کې شريکان کېږي وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِي فِي مِقْدَارِهِ او د زائد په مقدار کې به د مشتري قول معتبر وي لِأَنَّهُ فِي يَدِهِ ځکه چې هغه د ده په قبضه کې دی وَكَذَا فِي الْبَاذِنْجَانِ وَالْبِطِّيخِ او په بانجڼ او خټکي کې هم دغه حکم دی وَالْمَخْلَصُ أَنْ يَشْتَرِيَ الْأُصُولَ او د خلاصون طريقه دا ده چې درختي [هم] رانيسي لِتَحْصُلَ الزِّيَادَةُ عَلَى مِلْكِهِ د دې لپاره چې د ده پر ملکيت زياتوب حاصل سي.

**اللغات**: ﴿استأجر﴾ د استفعال ماضي ده: په کرايه اخيستل، په أجرت نيول. ﴿إدراك﴾ د افعال مصدر دی، د دغه باب څو معناوي دي، ځيني له هغوی څخه دا دي: يو شی خپل وخت ته رسېدل، مېوه پخېدل، حاصلول (ترلاسه کول). ﴿أثمرت﴾ د افعال ماضي ده: مېوه کول. ﴿باذنجان﴾ بانجڼ. ﴿بطيخ﴾ اسم جنس دی کله چې مطلق ذکر سي، خټکي او هندوانې دواړو ته ويل کېږي [المعجم العربي الميسّر: ۱۵۱].

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مېوه خپل انتهاء ته رسېدلې نه وي او په دې دوران کې مشتري هغه مطلق رانيسي يعني د پرېکولو او پرېښوولو (ترْک) له شرط څخه بغير يې رانيسي، او بيا د مېوې د پخېدلو تر وخته پوري درختي په اجاره واخلي، نو په دې صورت کې چې د مېوې په ذات کې کوم اضافه او زياتوب راسي، هغه د مشتري لپاره حلال او جائز دی؛ لېکن په دې وجه نه چې هغه درختي په اجاره اخيستي دي، ځکه چې اجاره خو دلته باطله ده؛ ځکه درختي خو نه په عُرف عام او عادت کې خلګ په اجاره سره اخلي او نه دلته مشتري ته د دې څه ضرورت سته چې درختي په اجاره سره

واخلي؛ ځکه څرنګه چي هغه صرف مېوه اخلي (رانيسي)، همدارنګه هغه ته دا اختيار هم ستـه چي د درختو سره مېوه هم واخلي، د دې لپاره چي د کرايې له مصرف څخه خلاص سي او وروسته د کچه، اومه مېوو پرېکول هم پېښ نه سي، لهذا کله چي د مشتري لپاره له دغه ستونزي او جنجال څخه خلاصېدل ممکن دي، نو په اجاره سره (د درختو) اخيستلو ته څه ضرورت ستـه !؟، او کله چي د مشتري اجاره باطله ده، نو څرنګه چي په اجاره سره د مېوې په پرېښوولو کي د بائع رضا وه (يعني ګواکي په اجاره کي د مېوې په پرېښوولو بائع راضي وو)، لهذا د هغه دغه رضا به باقي پاتېږي او همدا به ويل کيږي چي مشتري د بائع په اجازه سره مېوه پر درختو پرې ايښې ده، او د بائع په اجازه سره د پرېښوولو په صورت کي زياتوب (فضل) د مشتري لپاره حلالېږي، لهذا دلته به هم زياتوب د هغه لپاره حلال وي.

بخلاف إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مشتري کښت رانيسي او بيا د کښت پخېدلو تر وخته پوري ځمکه په کرايه واخلي او په هغې کي کښت پرېږدي، نو په دې صورت کي چي کومه اضافه او زياتوب په کښت کي راسي هغه د مشتري لپاره حلال او جائز نه دی؛ ځکه چي د اجارې د صحيح کېدلو لپاره د اجارې د مودت معلومېدل ضروري دي، او دلته د اجارې مودت مجهول دی، ځکه معلومه نه ده چي کښت به کله پوخ سي، ځکه په ګرمۍ کي کښت ژر پخيږي او په يخ کي په ځنډ سره پخيږي، لهذا کله چي د مودت د مجهول والي په وجه اجاره فاسد ده، نو کوم شي لره چي دغه فاسده اجاره متضمنه وي هغه به هم فاسد وي، او دلته دغه اجاره زياتوب لره شامله او متضمنه ده، لهذا زياتوب به هم فاسد يعني حرام او واجبُ التصدّق وي.

ولو اشتراها مطلقاً إلخ: له دې ځايه دا خبره بيانوي چي که مشتري مېوه مطلق رانيسي (يعني پر درختو د مېوې پرېښوولو شرط نه ولګوي او نه د هغې د پرېکولو شرط ولګوي) او پر مېوې قبضه هم نه وکړي (يعني بائع يې مشتري نه وسپاري)، بيا په دې دوران کي درختي نوره مېوه وکړي (د مثال په توګه مشتري زردالو رانيسي او پر هغوی قبضه نه وکړي او نه يې پرېکړي او په همدې دوران کي درختي نور نوي زردالو وکړي او مبيع او غيرِ مبيع سره ګډ سي)، نو ښکاره خبره ده چي اوس د بائع لپاره په نوې او پخوانۍ مېوه کي امتياز او توپير کول مشکل سوه او د دغه مشکل والي په وجه هغه د مبيع له ورسپارلو څخه عاجزه سو، او دا معلومه خبره ده چي کله بائع د مبيع له ورسپارلو څخه عاجزه سي نو بيع فاسديږي، لهذا په دې صورت کي به هم بيع فاسديږي.

ها! که چيري مشتري قبضه پر وکړي او تر قبضې وروسته (د "تـزك" د مودت په دوران کي) درختي نوې مېوه وکړي، نو په دې صورت کي بيع صحيح کيږي؛ ځکه چي مبيع (مېوه) خو ور وسپارل سوه، نو اوس په دې هکله هيڅ ستونزه او مشکل نسته، ليکن څرنګه چي د مشتري او د بائع په ملکيت کي اختلاط (ګډون) راغلی (ځکه چي نوې مېوه د بائع ده او پخوانۍ مېوه د مشتري ده)، نو په دې وجه به دوی په هغه کي شريکان کيږي

(ځکه چې دواړي مېوې سره خلط ملط سوې)، او د زائد مقدار په باره کي به د مشتري قول معتبر وي (يعني په دې باره کي به د مشتري قول معتبر وي چې درختو څومره نوې [زائده] مېوه وکړه او څومره مېوه د بائع ده او څومره ږماده). ځکه چې مبيع (مېوه) د مشتري په قبضه کي ده، او اُصول دا دی چې "القول قول الآخذ مع يمينه"، يعني قول د اخيستونکی (قبضه کونکی) معتبر دی د قسم سره، او څرنګ چې دلته مشتري قابض او اخيستونکی دی، نو ځکه به صرف د هغه قول معتبر وي.

وكذا في الباذنجان إلخ: فرمايي چې د بانجڼ، ختکي او هندانې هم دغه حکم دی، يعني که چيري "قبل القبض" نوي بانجڼ راشنه سي (او مبيع او غيرِ مبيع سره ګډ سي)، نو د هغوی بيع فاسده ده، او که "بعد القبض" نوي بانجڼ راشنه سي، نو بيع يې جائز ده.

والمخلص إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چې دلته له ټولو مشکلاتو څخه (او د مبيع او غيرِ مبيع له خلط او ګډېدلو څخه) د خلاصون طريقه دا ده چې مشتري د مېوو سره يوځای درختي هم رانيسي، د دې لپاره چې د قطع، تفريغ او تسليم له مشکلاتو او ستونزو څخه خوندي سي او وروسته پيدا کېدونکې مېوه (زياتوب) هم د ده په ملکيت کي حاصله سي (او مبيع او غيرِ مبيع سره ګډوډ نه سي).

## له مبيع څخه استثناء کول

قال: وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَبِيعَ ثَمَرَةً وَيَسْتَثْنِيَ مِنْهَا أَرْطَالًا مَعْلُومَةً فرمايي: او جائز نه دي [د بائع لپاره] چې مېوه خرڅه کړي او له هغې څخه يو څو مُتعيّن رطلونه مستثنیٰ کړي خِلَافًا لِمَالِكٍ په خلاف د امام مالک رَحِمَهُ الله لِأَنَّ الْبَاقِيَ بَعْدَ الِاسْتِثْنَاءِ مَجْهُولٌ ځکه چې [په دې صورت کي] تر استثناء وروسته پاتېدونکی مقدار مجهول دی بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ وَاسْتَثْنَى نَخْلًا مُعَيَّنًا په خلاف د هغه صورت کله چې [باغ] خرڅ کړي او يو څو متعيّني درختي مستثنیٰ کړي [نو جائز دي] لِأَنَّ الْبَاقِيَ مَعْلُومٌ بِالْمُشَاهَدَةِ ځکه چې [په دې صورت کي] پاته مقدار په مشاهده سره معلوم دی قال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: قَالُوا: هٰذِهِ رِوَايَةُ الْحَسَنِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله وايي: چې علماؤ فرمايلي دي: دا د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله روايت دی وَهُوَ قَوْلُ الطَّحَاوِيِّ او همدا د امام طحاوي رَحِمَهُ الله قول دی أَمَّا عَلَى ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ ۞

۞ القول الراجح: هو ظاهر الرواية، ذكر صاحب الهداية دليل ظاهر الرواية آخرًا، وهذا يُشير إلى اختياره وترجيحه كما هو دأبه، قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: ما جاز ايراد العقد عليه بانفراده صح استثناؤه منه (الدر المختار ج:۴، ص:۴۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۰]

يَنۡبَغِي أَنۡ يَجُوزَ [لېکن] د ظاهر روايت مطابق هغه جائز کېدل پکار دي لِأَنَّ الۡأَصۡلَ أَنَّ مَا يَجُوزُ إِيرَادُ الۡعَقۡدِ عَلَيۡهِ بِانۡفِرَادِهِ يَجُوزُ اسۡتِثۡنَاؤُهُ مِنَ الۡعَقۡدِ ځکه اُصول دا دی چي تنها [يوازې] چي د کوم شي عقد صحيح کيږي [يعني کوم شي چي جلا خرڅول جائز وي] نو له عقد څخه د هغه استثناء کول [هم] جائز دي وَبَيۡعُ قَفِيزٍ مِنۡ صُبۡرَةٍ جَائِزٌ او له کوړي څخه د يوه قفيز بيع جائز ده فَكَذَا اسۡتِثۡنَاؤُهُ نو همداسي د هغه استثناء کول هم جائز دي بِخِلَافِ اسۡتِثۡنَاءِ الۡحَمۡلِ وَأَطۡرَافِ الۡحَيَوَانِ په خلاف د حمل او د حيوان داندامونو د استثناء لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ بَيۡعُهُ ځکه چي [تنها] د هغوی بيع نه جائز کيږي فَكَذَا اسۡتِثۡنَاؤُهُ نو همداسي به د هغوی استثناء هم نه جائز کيږي.

**اللغات:** ﴿يستثنی﴾ د استفعال مضارع ده: مستثنیٰ کول، جلا کول. ﴿أرطال﴾ جمع د رِطلٌ ده: دا په پخوا کي يو پيمانه (لوښی) وو چي په هغه سره به شيان اندازه کېدل، مخکي د دې تفصيلي تعريف تېر سو. ﴿صبرة﴾ کوړه، کوټه، خَرَه (ډېر راغونډ کړل سوي شيان). ﴿حَمل﴾ مراد ځني د حيوان په نس کي بچي دی. ﴿أطراف﴾ جمع د طَرَفٌ ده: جانب، اړخ، مراد ځني اعضاء (اندامونه) دي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک مېوه خرڅه کړي او له هغې څخه يو څو مُتعيّن رطلونه مستثنیٰ کړي، نو زموږ په نيز دا استثناء جائز نه ده، لېکن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز جائز ده؛ هغه فرمايي چي څرنګه د باغ خرڅولو په صورت کي د يو څو درختو استثناء کول جائز دي، همداسي د باغ د مېوو په بيع کي د څه ميوو استثناء کول هم جائز دي.

زموږ دليل دا دی چي د مېوې خرڅولو په صورت کي له هغې څخه د څه مقدار په استثناء کولو کي دوې خرابيانې دي: ① ... تر استثناء وروسته د مېوې پاتېدونکی (باقي) مقدار مجهول وي او په هغه کي ښه او کمزورې هر ډول مېوه شامله وي، نو بائع به له هغې څخه ښه مېوه انتخابول غواړي او مشتري به هغه ته کمزورې او خرابه مېوه ورپرېږدي او دا صورت به مُفضِي الی النزاع وګرځي، او کوم شی چي مُفضِي الی النزاع ګرځي؛ هغه بيع فاسدوي، نو په دې وجه د ''ارطالِ معلومه'' استثناء جائز نه ده اوکله چي هغه جائز نه ده، نو ښکاره خبره ده چي دا ډول بيع به هم جائز نه وي.

② ... دويمه خرابي دا ده چي مثلاً بائع د يوه باغ مېوه خرڅه کړه او له هغه څخه يې لس (۱۰) منه مېوه مستثنیٰ کړل، لېکن وروسته چي وکتل سوه نو د ټوله باغ مېوه همدومره وه (يعني ټوله باغ صرف لس

منه مېوه کړې وه)، نو څرنګه چې په دې صورت کې مبيع معدومه ده (او د معدوم شي بيع فاسديږي)،
نو ځکه دا بيع به هم فاسديږي.

لېکن که څوک باغ خرڅ کړي او له هغه څخه يو څو درختي مستثنیٰ کړي، نو دا صورت جائز دی، ځکه چې دلته مستثنیٰ کړل سوي درختي په مشاهده سره معلومي دي او عاقدين هغه نبناني کولای سي (مثلا بائع وايي چې سل [۱۰۰] درختي خرڅوم، او دغه پنځه درختي نه خرڅوم، دلته چې پنځه مُتعيني درختي مستثنیٰ کړل سوې، نو پاته پنځه نيوي [۹۵] درختي هم مُتعيني سوې)، لهذا دا صورت به مُفضي الی النزاع هم نه ګرځي او په دې کې به مبيع هم معدومه نه وي، نو ځکه دا صورت جائز او صحيح دی.

قال إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله وايي چې په پورتني صورت کې د نه جائز کېدلو حکم له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زياد روايت دی، او همدا د امام طحاوي، امام احمد او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله قول هم دی، لېکن د ظاهر روايت مطابق دا صورت جائز کېدل پکار دي؛ ځکه فقهاؤ دا اُصول اېښی دی چې ''أن كل ما يجوز العقد عليه بانفراد يصح استثناؤه من العقد'' (يعني هر هغه شی چې د هغه يوازي خرڅول جائز وي، له عقد څخه د هغه استثناء کول هم جائز دي)، او دا تاسي ته هم معلومه ده چې د باغ له مېوو څخه صرف د يو څو معلومو رطلونو بيع جائز ده، لهذا کله چې د باغ له مېوو څخه د يو څو رطلونو بيع جائز ده، نو له هغوی څخه به د يو څو رطلونو استثناء کول هم جائز وي. او څرنګه چې د غلې له کوړي (صبرة) څخه د يوه قفيز بيع جائز ده، همداسي به د هغه استثناء هم جائز وي، نو معلومه سوه چې په انفرادي حالت کې چې د کومو شيانو بيع جائز کيږي، له عقد څخه د هغوی استثناء هم جائز کيږي.

بخلاف إلخ: کله چې تاسو ته فقهي اُصول معلوم سو، نو اوس واورئ! چې تنها د حيوان او څاروي د حمل بيع جائز نه ده (يعني که بائع وايي چې صرف د بزې په نس کې موجود بچی خرڅوم، بزه نه خرڅوم، نو دا جائز نه دي)، لهذا د هغه استثناء به هم جائز نه وي، ځکه چې د هغه تنها خرڅول جائز نه دي، نو همداسي به د هغه استثنا کول هم جائز نه وي.

همدا حال د حيوان د اندامونو هم دی چې تنها د ژوندي حيوان اندام خرڅول جائز نه دي، لهذا د حيوان خرڅولو په صورت کې به د هغه د يو اندام استثناء کول هم جائز نه وي.

په اول صورت کې چې کوم دا خبره وسوه ''چې تر استثناء وروسته پاتېدونکی مقدار مجهول دی...نو په دې وجه دا ټول بائع جائز نه ده'' علامه عيني رَحِمَهُ الله او داسي نورو فقهاؤ د هغه دا جواب

ورکړی دی چي په پورتني صورت کي د مېوو بيع په وزن او کَيل سره نه ده سوې بلکي په اندازه او اټکل سره سوې ده، او استثناء (مستثنیٰ کړی سوی مقدار) که څه هم د وزن او کَيل په اعتبار سره مجهول دی، لېکن هغه د درختو په څېر په مشاهده سره معلوم دی او کله چي دلته عقد په اندازه (اټکل) سره سوی دی او د اندازې جهالت دلته مُفضي الی النزاع نه ګرځي، نو ځکه به په دې صورت کي بيع ناجائز نه وي، بلکي جائز او صحيح به وي.

او پاته سو د مبيع د معدوم والي مسئله، نو په دې باره کي عرض دا دی چي که صرف مستثنیٰ کرده مېوه ښکاره سي (يعني ټوله باغ فقط مستثنیٰ کړل سوې مېوه وکړي [يعني نقط لس منه وکړي])، نو دا د کل په بيع کي د کل استثناء سوه او د کل استثناء باطلېږي، لهذا دا د عدمِ استثناء په درجه کي سوه، او د عدمِ استثناء په صورت کي بيع جائز کيږي، نو ځکه په دې صورت کي به هم بيع جائز کيږي او د مبيع د معدوم والي علت او توجيه به صحيح نه وي.

## په وږو کي د غنمو بيع

وَيَجُوزُ بَيْعُ الْحِنْطَةِ فِي سُنْبُلِهَا وَالْبَاقِلَاءِ فِي قِشْرِهِ او جائز ده بيع د غنمو په خپل وږو کي او بيع د لوبيا په خپل پوستکو کي وَكَذَا الْأَرُزُّ وَالسِّمْسِمُ او همدارنګه وريجي او کونجتي [يعني د وريجو او کونجتو هم دغه حکم دی] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ بَيْعُ الْبَاقِلَاءِ الْأَخْضَرِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د شنې لوبيا بيع جائز نه ده وَكَذَا الْجَوْزُ وَاللَّوْزُ وَالْفُسْتُقُ فِي قِشْرِهِ الْأَوَّلِ عِنْدَهُ او همدارنګه جوز، بادام او پسته په خپل اولو پوستکو کي خرڅول د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز [جائز نه دي] وَلَهُ فِي بَيْعِ السُّنْبُلَةِ قَوْلَانِ او د غنمو د وږي په باره کي د هغه دوه قولونه دي وَعِنْدَنَا يَجُوزُ ذٰلِكَ كُلُّهُ او زموږ په نېز دا ټوله صورتونه جائز دي لَهُ: أَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ مَسْتُورٌ بِمَا لَا مَنْفَعَةَ لَهُ فِيهِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي [په دغو صورتونو کي] معقود عليه په داسي شي کي پټ [مخفي] دی چي په هغه کي هيڅ منفعت [فايده] نسته فَأَشْبَهَ تُرَابَ الصَّاغَةِ إِذَا بِيعَ بِجِنْسِهِ نو دا د زرګرانو د خاورې سره مشابه سو کله چي هغه د خپل جنس په عوض کي خرڅه کړل سي وَلَنَا مَا رُوِيَ [1] عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب البيوع، حديث رقم: ٥٠. وابو داؤد في كتاب البيوع، باب في بيع الثمار قبل أن يبدو صلاحها، حديث رقم: ٣٣٦٧.

الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: أَنَّهُ نَهٰى عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتّٰى يُزْهِيَ وَعَنْ بَيْعِ السُّنْبُلِ حَتّٰى يَبْيَضَّ وَيَأْمَنَ الْعَاهَةَ او زموږ دليل هغه حديث دی کوم چي له نبي ﷺ څخه روايت سوی دی: چي نبي کريم ﷺ د خرما د درختو له بيع څخه منع کړې ده تر دې چي خرما رنګ ونيسي او [د غنمو] د وږو له بيع څخه يې منع کړې ده تر دې چي هغه سپين وګرځي او له آفت څخه په امن سي وَلِأَنَّهُ حَبٌّ مُنْتَفَعٌ بِهِ او ځکه چي غنم [او داسي نور د خپل پوستکي سره] قابلِ انتفاع غله ده فَيَجُوزُ بَيْعُهُ فِي سُنْبُلِهِ كَالشَّعِيرِ لهذا د اوربشو په څېر به د هغه بيع [هم] په خپل وږي کي جائز وي وَالْجَامِعُ كَوْنُهُ مَالًا مُتَقَوَّمًا او جامع [په مينځ کي د مقيس او مقيس عليه] دا دی چي دا [هر يو] قيمتداره مال دی بِخِلَافِ تُرَابِ الصَّاغَةِ په خلاف د زرګرانو د خاوري لِأَنَّهُ إِنَّمَا لَا يَجُوزُ بَيْعُهُ بِجِنْسِهِ لِاحْتِمَالِ الرِّبَا ځکه چي د خپل جنس په عوض کي د هغې بيع صرف د ربا [سُود] د احتمال په وجه جائز نه ده حَتّٰى لَوْ بَاعَهُ بِخِلَافِ جِنْسِهِ همدا وجه ده که هغه د خلافُ الجنس په عوض کي خرڅه کړل سي [ځيني شارحينو دلته د حتیٰ اصطلاحي ترجمه په "همدا وجه ده" سره کړې ده] جَازَ نو جائز دي وَفِي مَسْأَلَتِنَا لَوْ بَاعَهُ بِجِنْسِهِ او زموږ په دغه [متنازع فيها] مسئله کي که د غنمو وږی د خپل جنس په عوض کي خرڅ کړل سي لَا يَجُوزُ أَيْضًا لِشُبْهَةِ الرِّبَا نو هم د ربا د شبهي په وجه بيع جائز نه ده لِأَنَّهُ لَا يُدْرٰى قَدْرُ مَا فِي السَّنَابِلِ ځکه چي په وږو کي د موجوده غنمو مقدار معلوم نه دی.

**اللغات:** ﴿سُنبل﴾ وږي (د غنمو وږي)، واحد: سُنْبُلَةٌ ج: سَنَابِلِ و سُنْبُلَات، ﴿باقلا﴾ لوبيا، ﴿قِشْر﴾ پوستکی (د مېوو او غلو پوستکی، خُوَر)، ﴿سمسم﴾ کونجتي (کونجدي)، مشهوره دانې دي، ﴿معقود عليه﴾ پر کوم شي چي عقد (بيع) سوې وي چي هغه دلته، غنم لوبيا او داسي نور دي، مبيع، ﴿صاغة﴾ جمع د صَائِغٌ ده: زرګر، زېور جوړونکی (هغه کاريګر چي له زرو څخه زېورات [ګاڼي] جوړوي)، ﴿تراب الصاغة﴾ زرګر چي په کومه خاوره کي د سرو او سپينو زرو د تيارولو او جوړولو کار کوي، په هغه خاوره کي د سرو او سپينو زرو ذرات (رېزې) پاتيږي، هماغه خاوري ته "تراب صاغه" وايي (اثمار الهدايه ج:۸، ص:۷۳)، نو که په دغه خاوره کي د سرو زرو ذرات وي، نو هغه د سرو زرو په عوض کي خرڅول ناجائز دي، ځکه که هغه د سرو زرو په عوض کي خرڅه کړل سي نو کمي او زياتوب خامخا پکښې راځي، نو د ربا (سُود) په وجه هغه د سرو زرو په عوض کي خرڅول ناجائز دي، لېکن د سپينو

زرو یا غنمو په عوض کي د هغې خرڅول جائز دي، ځکه چي د خلافُ الجنس کېدلو په وجه په کمي او زیاتوب سره په هغې کي هیڅ سود نه راځي. همدارنګه که په خاوره کي د سپینو زرو ذرات وي، نو هغه د سپیو زرو په عوض کي خرڅول ناجائز دي، لیکن د سرو زرو یا غنمو او داسي نورو په عوض کي یې خرڅول جائز دي، ﴿یُزْهِی﴾ د افعال مضارع ده: رنګ نیول، رنګ اختیارول. ﴿عاهة﴾ آفت. ﴿حَبّ﴾ دانه، غله. ﴿لا یُدرى﴾ د ضرب له بابه د نفي مجهول صیغه ده: خبرېدل، معلومېدل.

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی چي زموږ په نېز غنم، لوبیا، وریجي، بادام او داسي نور په خپلو پوستکو کي خرڅول جائز دي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز بادام، جوز او داسي نور همدارنګه لوبیا په خپلو پوستکو کي خرڅول جائز نه دي او په وړو کي د غنمو د خرڅولو په هکله د امام شافعي رَحِمَهُ الله دوه قولونه دي: یو د جواز، او بل د عدمِ جواز.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چي جوز، بادام، غنم (په دویم قول کي)، لوبیا، او داسي نور په خپل پوستکو کي مخفي او پټ وي او پوستکي له منفعت او فایدې څخه خالي دي، نو د منفعت سره د غیرِ منفعت د یو ځای کېدلو په وجه بیع ناجائز کیږي، همدارنګه دا معلومه نه ده چي آیا په پوستکو کي جوز او بادام سته، که څنجیان منجیان دي، او د غه نا معلوم والی د معقود علیه د نا معلوم والي په څېر دي، او د معقود علیه د نا معلوم کېدو او معدوم کېدو په صورت کي بیع ناجائز کیږي او فاسدیږي، نو ځکه په دغو صور تونو کي به هم بیع فاسدیږي، او څرنګه چي د زرګر خاوره (چي په هغه کي د سرو یا سپینو زرو ذرات پټ موجود وي) د سرو یا سپینو زرو په عوض کي خرڅه کړل سي، نو د ربا د احتمال په وجه د هغوی بیع ناجائز ده (ځکه چي هلته هم معقود علیه په یو داسي شي کي یعني په خاوره کي پټ دی چي په هغه کي هیڅ منفعت نسته)، نو همداسي په غنم او داسي نور هم په غیرِ نافع شي کي د پټوالي په وجه د هغوی بیع ناجائز وي.

**زموږ دلیل:** هغه حدیث دی کوم چي په عبارت کي ذکر سو، د هغه مطلب دا دی "چي تر څو خُرماوي (کجوري) رنګ نه ونیسي، تاسي هغه مه خرڅوئ! او چي تر څو د غنمو وږي سپین نه سي او له آفتونو څخه محفوظ پاته نه سي، تاسي هغه مه خرڅوئ!"، په دې حدیث سره موږ په دې توګه دلیل نیسو چي د دغه حدیث ممانعت صرف له سپینېدلو څخه د مخکي حالت سره خاص دی، یعني په پوستکو کي خو د غنمو او داسي نورو بیع جائز ده مګر په هغه وخت کي کله چي د غنمو وږي سپین سي، خلاصه دا چي په دغه حدیث سره په وږي کي د غنمو د بیع جواز ثابت سو، او بادام، پسته، جوز او داسي نور هم د غنمو په درجه کي دي، لهذا د هغوی بیع به هم په خپلو پوستکو کي جائز وي.

ولأنه إلخ: له دې ځايه صاحب د هدايې د احنافو عقلي دليل ذکر کوي، کوم چي په حقيقت کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب هم دی، حاصل يې دا دی چي ستاسو دا خبره چي په پوستکو کي د غنم، لوبيا او داسي نورو د خرڅولو په صورت کي معقود عليه په غير نافع شي کي پټ پاتيږي، دا خبره موږ نه تسليموو، ځکه چي غنم داسي غله ده چي هغه خپله هم نفع منده ده او خلک نفع ځني اخلي او د هغې وږي (سنبل) هم نفع مند دي او کار ځني اخيستل کيږي، هغه په دې توګه چي تر غوبل او پاکوالي مخکي وږي د غنمو حفاظت کوي او تر غوبل وروسته هغه د څارويو خوراک او غذا ګرځي، لهذا د غنمو وږي بېکاره او غير نافع ګرځول او په دې سره د بيع پر نه جائز کېدلو دليل نيول صحيح نه دي، او څرنګه چي اوربشي په خپل وږي کي خرڅول جائز دي، همدارنګه غنم او د غنمو په څېر نور شيان هم په خپلو پوستکو کي خرڅول جائز دي، ځکه چي دواړه متقوّم مالونه دي او د متقوّم مال بيع بېله شکه صحيح کيږي.

بخلاف تراب الصاغة إلخ: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چي د زرګر خاوره د خپل جنس مثلاً د سرو يا سپينو زرو په عوض کي خرڅول ځکه جائز نه دي چي په دغه بيع کي د سود او ربا احتمال سته، ځکه دا معلومه نه ده چي په دغه خاوره کي څومره ذرات پټ دي، لهذا اوس که د داسي خاوري چي د سرو يا سپينو زرو ذرات پکښې پټ وي، د اصل سرو يا سپينو زرو په عوض کي د هغې د خرڅولو اجازت ورکول سي، نو ښکاره خبره ده چي په دې کي که څه هم د ربا يقين نسته مګر احتمال يې ضرور سته، او د ربا په باب کي احتمال هم د يقين په څېر حرام دی، لهذا د "تراب صاغه" د نه جائز کېدلو (عدمِ جواز) علت د معقود عليه مخفي والي او پټوالي نه دی بلکي د سُود او ربا احتمال دی، نو کله چي په "تراب صاغه" کي د بيع د نه جائز کېدلو علت بدل سو (يعني کله چي دا معلومه سوه چي په "ترابِ صاغه" کي د بيع د عدمِ جواز علت د معقود عليه پټوالی نه دی، بلکي د رِبا احتمال دی)، نو اوس به په هغه سره د غنمو او داسي نورو د بيع پر ناجائز کېدلو دليل نيول هم صحيح نه وي.

حتّٰى لوباعه إلخ: فرمايي: همدا وجه ده که "تراب صاغه" د خلاف الجنس په عوض کي خرڅه کړل سي (مثلا په خاوره کي د سرو زرو ذرات وي او هغه د سپينو زرو په عوض کي خرڅه کړل سي)، نو بيع جائز ده. لهذا که چيري په "تراب صاغه" کي د نه جائز کېدلو علت په هغې کي د معقود عليه پټوالي وای، نو "تراب صاغه" به د خلاف الجنس په عوض کي خرڅول هم جائز نه وای، حال دا چي د خلاف الجنس په عوض کي د هغې خرڅول جائز دي، معلومه سوه چي په "تراب صاغه" کي د نه جائز

کېدلو علت د ربا احتمال دی، نه د معقود علیه پټوالی. او له همدې کبله که زموږ په متنازع فیها مسئله یعني دغنمو والا په مسئله کي دغنمو وړي دغنمو په عوض کي خرڅ کړل سي، نو دلته هم د ربا د احتمال په وجه بیع نه جائز کیږي؛ ځکه څرنګه چي په خاوره کي موجوده ذرات معلوم نه دي، همدارنګه په وړي کي د موجوده غنمو مقدار هم پټ او نامعلوم دی او خاوره (تراب صاغه) د خپل جنس په عوض کي خرڅول د ربا د احتمال په وجه ناجائز دي، لهذا دغنمو وړي به هم د ربا د احتمال په وجه دغنمو په عوض کي خرڅول ناجائز وي.

## د کور په بیع کي د قلف او چابۍ (کیلی) حکم

| وَمَنْ بَاعَ دَارًا او څوک چي کور خرڅ کړي دَخَلَ فِي الْبَيْعِ مَفَاتِيْحُ أَغْلَاقِهَا نو د کور د ټلفانو چابۍ [هم] په بیع کي داخلیږي [له قلفانو څخه هغه قلفان مراد دي کوم چي په دروازو کي نصب سوي او د دروازو سره موښتي وي] لِأَنَّهُ يَدْخُلُ فِيهِ الْأَغْلَاقُ ځکه چي قلفان په بیع کي داخلیږي لِأَنَّهَا مُرَكَّبَةٌ فِيهَا لِلْبَقَاءِ ځکه قلفان په کور کي د باقي پاتېدلو لپاره لګول سوي [نصب سوي] وي وَالْمِفْتَاحُ يَدْخُلُ فِي بَيْعِ الْغَلَقِ مِنْ غَيْرِ تَسْمِيَةٍ او چابي له نوم اخیستلو [صراحت] څخه بغیر هم د قلف په بیع کي داخلیږي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ بَعْضٍ مِنْهُ ځکه چي هغه د قلف د جزء په درجه کي ده إِذْ لَا يُنْتَفَعُ بِهِ بِدُونِهِ ځکه له چابۍ څخه بغیر له قلف څخه هیڅ نفع اخیستل کېدای نه سي. |
|---|

**اللغات**: ﴿مفاتيح﴾ جمع د مِفْتَاحٌ ده: چابي، کَیلي، کونجي، ﴿أغلاق﴾ جمع د غَلَقٌ ده: ټلف، کولپ، ﴿مُرَكَّبة﴾ د تفعیل اسم مفعول دی، رَكَّبَ يُرَكِّبُ تَرْكِيْبًا: یو شی پر بل شي ایښول، لګول، یو شی د بل شي سره داسي متصل کول چي دواړه یو شی وګرځي، لکه څرنګه چي عرب وایي: رَكَّبَ الفَصَّ فِي الخَاتم.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که څوک یو کور یا داسي بل ځای رانیسي او د هغه په دروازو کي قلفان لګېدلي او نصب سوي وي، نو څرنګه چي قلفان په بیع کي داخلیږي، همداسي د هغوی چابیاني هم په بیع کي داخلیږي؛ قلفان خو ځکه په بیع کي داخلیږي چي هغوی د دروازو سره د "اتصال قرار" په توګه متصل وي، او دا ښکاره خبره ده چي دروازې په بیع کي داخلیږي، لهذا دغه قلفان به هم په بیع کي داخلیږي.

او چابیاني ځکه په بیع کي داخلیږي چي هغوی د قلفانو د جزء په څېر دي، او هغوی له صراحت او بیان څخه بغیر هم د قلفانو په بیع کي داخلیږي (ځکه همدا أصول او قاعده ده چي د مبیع جزء له نوم اخیستلو څخه بغیر هم په بیع کي داخلیږي)، ځکه ښکاره خبره ده چي د کل په بیع کي جزء داخلیږي، لهذا چابیاني به هم د قلفانو په بیع کي داخلیږي، او بل دا چي د قلف رانیولو مقصد له هغه څخه نفع اخیستل وي چي انسان د هغه په ذریعه کور قلف کړي او په اطمینان سره یو خوا ته ولاړ سي، او اطمینان او انتفاع هغه وخت ممکن دي کله چي د قلفانو سره چابیاني هم وي، کنې یوازي قلف خو اولاً بندیږي نه، او که بند هم سي نو بیا د هغه خلاصول مشکل دي، خلاصه دا چي له چابي او کیلي څخه بغیر په قلف کي هیڅ فایده نسته، نو ځکه چابیاني به هم په بیع کي داخلیږي.

## د مبیع او ثمن د پېمانه کونکي (اندازه کونکي) أجرت

قَالَ: وَأُجْرَةُ الْكَيَّالِ وَنَاقِدِ الثَّمَنِ عَلَى الْبَائِعِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمایي: او د پېمانه کونکي کاریګر او ثمن ازمایونکي [معلومونکي] کاریګر أجرت د بائع پر ذمه دی أَمَّا الْكَيْلُ فَلَا بُدَّ مِنْهُ لِلتَّسْلِيمِ کوم چي پېمانه کول دي نو هغه [د مبیع] د ور سپارلو لپاره ضروري دي وَهُوَ عَلَى الْبَائِعِ او د مبیع ورسپارل د بائع پر ذمه دي وَمَعْنَى هٰذَا: إِذَا بِيعَ مُكَايَلَةً او د دې مطلب دا دی: چي کله مبیع د پېمانه کولو په ذریعه خرڅه کړل سي وَكَذَا أُجْرَةُ الْوَزَّانِ وَالزَّرَّاعِ وَالْعَدَّادِ او همدارنګه د وزن کونکي، ګزونکي او شمارونکي أجرت هم [پر بائع واجب دی] وَأَمَّا النَّقْدُ فَالْمَذْكُورُ رِوَايَةُ ابْنِ رُسْتُمَ عَنْ مُحَمَّدٍ او کوم چي د [ثمن] ازمایلو مسئله ده، نو [په متن کي] ذکر سوی حکم له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د ابن رستم روایت دی لِأَنَّ النَّقْدَ يَكُونُ بَعْدَ التَّسْلِيمِ ځکه چي [د ثمن] ازمایل تر ورسپارلو وروسته کیږي أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَكُونُ بَعْدَ الْوَزْنِ آیا ته نه ګورې! چي هغه تر وزن کولو وروسته کیږي وَالْبَائِعُ هُوَ الْمُحْتَاجُ إِلَيْهِ لِيُمَيِّزَ مَا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّهُ مِنْ غَيْرِهِ او [صرف] همدا هغه ته محتاج دی، د دې لپاره چي خپل حق له بل شي [یعني له جعلي او کوټه ثمن] څخه جلا کړي أَوْ لِيَعْرِفَ الْمَعِيبَ لِيَرُدَّهُ یا د دې لپاره چي عیبجن [ثمن] معلوم کړي او هغه بیرته [مشتري ته] واپس کړي وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ سَمَاعَةَ عَنْهُ عَلَى الْمُشْتَرِي* او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د ابن سماعه د روایت مطابق [د ثمن ازمایلو أجرت]

* القول الراجح: هو رواية ابن سماعة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: وبه كان يفتي الصدر الشهيد...إلى أن قال: وفي الخلاصة: الصحيح أنه على المشتري (فتح القدير ج:٥، ص:٢٩٦). [القول الراجح ج:٢، ص:١١]

د مشتري پر ذمه دی لِأَنَّهُ يَحْتَاجُ إِلَى تَسْلِيمِ الْجَيِّدِ الْمُقَدَّرِ ځکه چي [صرف] هغه د ټاکل سوي ښه [کَرَه] ثمن ورسپارلو ته محتاج دی وَالْجُوْدَةُ تُعْرَفُ بِالنَّقْدِ او ښه والي [کَرَه والی] په ازمايلو سره پېژندل کيږي كَمَا يُعْرَفُ الْقَدْرُ بِالْوَزْنِ لکه څرنګه چي مقدار په وزن کولو سره پېژندل کيږي فَيَكُونُ عَلَيْهِ نو ځکه به د هغه أجرت پر مشتري وي قَالَ: وَأُجْرَةُ وَزَّانِ الثَّمَنِ عَلَى الْمُشْتَرِي فرمايي: او د ثمن وزن کونکي کاريګر أجرت [هم] پر مشتري دی لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ هُوَ الْمُحْتَاجُ إِلَى تَسْلِيمِ الثَّمَنِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی چي همدا مشتري د ثمن ورسپارلو ته محتاج دی وَبِالْوَزْنِ يَتَحَقَّقُ التَّسْلِيمُ او ورسپارل په وزن کولو سره متحقق کيږي [نو ځکه د هغه أجرت به هم پر مشتري وي].

**اللغات**: ﴿كَيَّال﴾ د ضرب له بابه د اسم فاعل صيغه ده: پيمانه کونکی (په لوښي سره د غلې وزن معلونکی). ﴿نَاقِد﴾ د نصر له بابه د اسم فاعل صيغه ده، نَقَدَ يَنْقُدُ نَقْدًا: يو شی ازمايل چي ښه او بد يې سره جلا کړی سي (ازمايښت کول)، معلومول، تجربه کول، د يو شي عيب او ښه والی ځان ته معلومول، صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف کړی دی: نَقَدَ الشَّيْءَ: أَيْ نَقَرَهُ لِيَخْتَبِرَهُ أَوْ لِيُمَيِّزَ جَيِّدَهُ مِنْ رَدِيئِهِ، يُقَالُ: نَقَدَ الدَّرَاهِمَ: أَيْ مَيَّزَ جَيِّدَهَا مِنْ رَدِيئِهَا... (الخ). ﴿ذَرَّاع﴾ د فتح له بابه د اسم فاعل صيغه ده: ګزونکی (په ګز سره د ټوکر اندازه معلومونکی. په ګز سره ناپونکی). ﴿مَعِيب﴾ د ضرب له بابه د اسم مفعول صيغه ده: عيبجن (عيبداره).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک يو کَيلي شی خرڅ کړي يا وزني او مذروعي شی خرڅ کړي، نو په دغه ټولو صورتونو کي د کَيل کولو (پيمانه کولو) او وزن کولو او په ذراع سره د ناپولو أجرت هم پر بائع دی؛ او د دې وجه دا ده چي تر بيع (خرڅولو) وروسته پر بائع د مبيع ورسپارل واجب دي، او د مبيع ورسپارل هغه وخت ممکن دي چي کله هغه کَيل کړی سي (که هغه کَيلي شیَ وي)، يا وزن کړی سي (که هغه وزني شی وي)، يا په ګز سره اندازه کړی سي (که هغه مذروعي شی وي)، لهذا کله چي د مبيع ورسپارل په کَيل او وزن باندي موقوف دي، او ورسپارل د بائع پر ذمه دي. نو کَيل او وزن به هم د بائع پر ذمه وي، که بائع په خپله هغه مبيع شی کَيل کړي يا يې وزن کړې نو هيڅ خبره نه ده، کنې په بل چا سره به دا کار کوي او د هغه أجرت به خپله ورکوي.

**وأما النقد إلخ:** يو د ثمن وزن كول (تلل) دي، دا د مشتري پر ذمه دي. نو ځكه به د هغه اُجرت هم د مشتري پر ذمه وي.

او بل د ثمن ازمايل او معلومول دي چي آيا دغه درهم او پيسې كَرَه (اصلي) دي، او كه كوټه (جعلي) دي، نو د هغه داُجرت په باره كي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه نقل سوي دي:

د ابن رستم روايت دا دی چي د ثمن معلومولو اُجرت به د بائع پر ذمه وي: ځكه چي د ثمن ازمايلو نوبت د مشتري تر ورسپارلو وروسته راځي (يعني كله چي مشتري بائع ته ثمن وسپاري. نو تر دې وروسته د ثمن د كَرَه والي او كوټه والي معلومولو ته ضرورت پيښيږي). ځكه چي د مشتري ورسپارل تر وزن وروسته وي، لهذا كله چي د ثمن ورسپارل تر وزن وروسته وي. نو د هغه د ازمايلو (كَره والي او كوټه والي معلومولو) نوبت به هم تر سپارلو وروسته وي، او تر سپارلو وروسته د مشتري ذمه فارغيږي (يعني د ثمن له ورسپارلو څخه وروسته د مشتري غاړه خلاصيږي). لهذا اوس دا د بائع ذمه واري ده چي هغه د خپل ثمن كَرَه والی او كوټه والی معلوم كړي او خراب او معيوب ځني جلا كړي او هغه بيرته مشتري ته وركړي (او معلومه خبره ده چي دغه كار ته صرف بائع محتاج دی). او كه خپله داسي نه سي كولای نو په بل چا دي هغه معلوم كړي او هغه ته دي اُجرت وركړي، ځكه چي اوس خو د ثمن سره صرف د هغه حق تړلی دی، نو د هغه اُجرت به هم پر بائع واجب وي.

له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دويم روايت ابن سماعه نقل كړی دی، او هغه دا دی چي د ثمن ازمايلو اُجرت به پر مشتري واجب وي؛ د دغه روايت دليل دا دی چي د بائع او مشتري په مينځ كي كَرَه (جيد) ثمن تاكل سوی دی، لهذا د كَرَه (جيد) ثمن ورسپارل د مشتري پر ذمه دي، او كَرَه والی، كوټه والی په ازمايلو (نقد) سره معلوميږي، نو ځكه به د ازمايلو اُجرت پر مشتري وي، لكه څرنګه چي د مبيع مقدار په وزن كولو سره معلوميږي چي هغه دومره كېلو ده. نو د مبيع وزن كولو (تللو) اُجرت پر بائع لازم وي، همداسي به د ثمن ازمايلو اُجرت پر مشتري لازم وي.

**وأجرة وزان الثمن إلخ:** له دې ځايه بله مسئله بيانوي چي د ثمن وزن كولو (تللو) اُجرت د مشتري پر ذمه دی (لكه مخكي چي موږ وويل): ځكه چي د ثمن ورسپارل د مشتري پر ذمه وي، او ثمن په وزن سره معلوميږي. لهذا د وزن اُجرت به هم د مشتري پر ذمه وي (ځكه چي د ثمن وزن كونكی كاريګر د مشتري لپاره كار كوي).

او دغه مسئله د ابن سماعه د روايت تائيد هم كوي؛ ځكه څرنګه چي ثمن په وزن سره معلوميږي او د هغه اُجرت پر مشتري لازم دی. همداسي د ثمن كَرَه والی په ازمايلو (نقد) سره معلوميږي نو د هغه اُجرت به هم پر مشتري لازم وي.

## له مبیع او ثمن څخه به اول کوم یو اداء کیږي

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ سِلْعَةً بِثَمَنٍ فرمايي: او څوک چي د ثمن په عوض کي سامان خرڅ کړي قِيْلَ لِلْمُشْتَرِي: اِدْفَعِ الثَّمَنَ أَوَّلًا نو مشتري ته به ویل کیږي: چي اول ته ثمن ورکړه! لِأَنَّ حَقَّ الْمُشْتَرِيْ تَعَيَّنَ فِي الْمَبِيْعِ ځکه چي د مشتري حق په مبیع کي مُتعیّن سو فَيُقَدَّمُ دَفْعُ الثَّمَنِ لهذا د ثمن ورکول [اداء کول] به مخکي کیږي لِيَتَعَيَّنَ حَقُّ الْبَائِعِ بِالْقَبْضِ د دې لپاره چي په قبضه کولو سره د بائع حق متعین سي لِمَا أَنَّهُ لَا يَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِيْنِ ځکه چي ثمن په مُتعیّن کولو سره نه مُتعیّن کیږي تَحْقِيْقًا لِلْمُسَاوَاةِ [او دا حکم] د برابرئ ثابتولو لپاره [دی] قَالَ: وَمَنْ بَاعَ سِلْعَةً بِسِلْعَةٍ أَوْ ثَمَنًا بِثَمَنٍ فرمايي: او څوک چي د سامان په عوض کي سامان یا د ثمن په عوض کي ثمن خرڅ کړي قِيْلَ لَهُمَا: سَلِّمَا مَعًا نو هغوی ته به ویل کیږي: چي تاسي دواړه یې یو ځای وسپارئ! [یعني مبیع او ثمن دواړه یوځای سره وسپارئ!] لِاسْتِوَائِهِمَا فِي التَّعْيِيْنِ وَعَدَمِهِ ځکه چي [اوس] مبیع او ثمن دواړه په تعیین او نه تعیین کي سره برابر دي فَلَا حَاجَةَ إِلَى تَقْدِيْمِ أَحَدِهِمَا فِي الدَّفْعِ نو ځکه په ورکولو [اداء کولو] کي د یوه عاقد [یعني د بائع یا مشتري] مخکي کولو ته هیڅ ضرورت نسته.

**اللغات**: ﴿سلعة﴾ سامان. ﴿استواء﴾ د استفعال مصدر دی: برابري، برابر والی.

**تشریح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې بیان سوي دي: (۱)... که څوک د دراهمو یا دنانیرو په عوض کي یو سامان رانیسي او په اداء کولو کي د عاقدَینو اختلاف راسي، بائع وايي چي اول ثمن راکړه! بیا زه مبیع درکوم، مشتري وايي چي اول سامان راکړه! بیا زه ثمن درکوم، نو په دې صورت کي به کوم یو په مخکي اداء کولو سره مکلّف کیږيُ؟ په دې باره کي څه تفصیل دی، اول تاسو په لاندینی دوو مهمو قاعدو ځان پوه کړئ! (چي هغه ته په عبارت کي هم اشاره سوې ده)، تر هغه وروسته به تفصیل او تشریح ذکر کړو:

①... اوله قاعده دا ده چي درهم او دینار (چي هغه ته پیدایشي ثمن وايي) په مُتعیّن کولو سره نه مُتعیّن کیږي. مثلاً مشتري د پنځو روپو په نوټ سره بیع وکړي (یعني په کاغذي پنځي سره یو شی رانیسي) او بیا بائع ته د هغه پر ځای د پنځو سکه (داوسیني پنځی) ورکړي. نو بیع صحیح کیږي، ځکه چي د پنځو نوټ او د پنځو سکه دواړه په مالیت کي سره برابر دي او دوی په مُتعیّن کولو سره نه مُتعیّن

کيږي (يعني که څه هم د پنځو روپو نوټ متعين کړي خو بيا هم د هغه پر ځای بل نوټ او بله سکه ورکولای سي)، نو ځکه اوس په دوی کي هريو ورکولای سي. لېکن تر قبضه کولو وروسته دراهم او دنانير مُتعيّن کيږي.

(۲) ... دويمه قاعده دا ده چي سامان مثلاً غله په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي، د مثال په توګه بائع پنځه کېلو غنم مُتعيّن کړي او مشتري ته ووايي چي دغه غنم درکوم، نو د هغه پر ځای نور پنځه کېلو نه سي ورکولای، ځکه کېدای سي چي هغه نور غنم خراب وي.

له دغو دوو قاعدو څخه وروسته اوس د مسئلې تفصيل دا دی چي که څوک د دراهمو يا دنانيرو په عوض کي سامان رانيسي، نو څرنګه چي سامان له مخکي څخه مُتعيّن دی (ځکه سامان په مُتعين کولو سره مُتعيّن کيږي) او ثمن يعني دراهم او دنانير (پيسې) له مخکي څخه مُتعيّن نه دي، نو ځکه به مشتري ته ويل کيږي چي اول ته ثمن اداء کړه!، د دې لپاره چي دراهم او دنانير (د بائع) په قبضه کولو سره مُتعيّن سي او د بائع او مشتري دواړو حق سره برابر سي، تر دې وروسته به بائع ته ويل کيږي چي ته سامان اداء کړه!.

**يادونه**: دا فيصله به د جنجال او نزاع په وخت کي کيږي (يعني کله چي د بائع او مشتري په مينځ کي اختلاف راسي، بائع وايي اول ته ثمن راکړه! او مشتري وايي اول ته مبيع راکړه!)، کنې د رضا په وخت کي چي کوم يو هم وړاندېتوب وکړي، نو بيع جائز کيږي.

<u>ومن باع سلعة بسلعة إلخ</u>: (۲) ... دويمه مسئله دا ده که د سامان په عوض کي د سامان معامله وسي، يا د ثمن په عوض کي د ثمن معامله وسي، نو په دې صورت کي به هم يو عاقد په مخکي اداء کولو سره نه مکلف کيږي، بلکي دوی ته به ويل کيږي چي دواړه يو ځای ثمن او مبيع سره وسپارئ!، يعني لاس په لاس سودا سره وکړئ!؛ ځکه دلته مبيع هم سامان دی، او ثمن هم سامان دی، لهذا دواړه مُتعيّن دي، او دواړه په درجه کي سره برابر دي، نو ځکه به بائع او مشتري دواړو ته ويل کيږي چي ثمن او مبيع دواړه يو ځای سره وسپارئ، يوه ته د مخکي سپارلو او بل ته د وروسته سپارلو حق نسته، همدارنګه کله چي مبيع هم دراهم يا دنانير وي او ثمن هم درهم يا دنانير وي، نو څرنګه چي په دې صورت کي دواړه مُتعيّن نه دي، نو ځکه به دواړو ته يو ځای د ورسپارلو او اداء کولو حکم کيږي.



# بَابُ خِيَارِ الشَّرْطِ

## (دا) باب د خيارِ شرط (د احکامو په بيان کي دی)

**تشريح**: مخکي تر دې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د بيع هغه قسم بيان کړی چي په هغه کي هيڅ ډول خيار (اختيار) نسته او هلته بيع هم منعقد کيږي او د هغې حکم هم ثابتيږي، او داسي بيع ته "بيع لازم" وايي، او تر دې وروسته هغه اقسام بيانوي چي په هغوی کي خو بيع منعقد کيږي، لېکن د بيع حکم نه ثابتيږي، او داسي بيع ته "بيع غيرِ لازم" وايي، او د غيرِ لازم په مقابله کي لازِم اقوی او مخکي وي، نو په دې وجه يې "بيع لازم" مخکي کړې ده، او اوس "بيع غيرِ لازم" بيانوي.

او بل دا خبره تاسي په ياد لرئ! چي په بنيادي توګه خِيار پر درې قسمه دی:

(۳)... **خيارِشرط**: تر ايجاب و قبول وروسته چي بائع يا مشتري درې ورځي اختيار واخلي (چي که زما خوښه سوه نو په دغه درېو ورځو کي به مبيع واخلم، کنې رد به يې کړم)، نو دې ته "خيارِ شرط" وايي.

په خيارِ شرط کي خو حکم منعقد کيږي، لېکن دغه خِيار له ابتدائي حکم څخه مانع وي (يعني په شروع کي بيع نه منعقد کيږي).

(۴)... **خيار رؤيت**: مشتري چي مبيع ليدلې نه وي او په دې وخت کي ايجاب و قبول وکړي، نو تر مبيع ليدلو وروسته هغه ته د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار حاصليږي، دې ته "خيارِ رؤيت" وايي.

په دغه خِيار کي عقد او حکم دواړه ثابتيږي، لېکن حکم تام او مکمل نه وي.

(۵)... **خيار عيب**: تر ايجاب و قبول وروسته چي په مبيع کي يو عيب وليدل سي، نو د هغه په وجه مشتري ته د مبيع واپس کولو اختيار حاصليږي، دې ته "خيار عيب" وايي.

په دغه خِيار کي خو حکم ثابتيږي، لېکن هغه لازم نه وي.

او څرنګه چي په دغه درېو (۳) خياراتو کي "خيارِ شرط" په ابتداء کي د حکم لپاره مانع وي، نو ځکه صاحب د کتاب د خِيار په ټولو قسمونو کي اول "خيارِ شرط" بيان کړی دی.

## د "خيارِ شرط" موده

قَالَ: خِيَارُ الشَّرْطِ جَائِزٌ فِي الْبَيْعِ لِلْبَائِعِ وَالْمُشْتَرِيْ فرمايي: خيارِ شرط جائز دی په بيع کي د بائع او مشتري [دواړو] لپاره وَلَهُمَا الْخِيَارُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَمَا دُوْنَهَا او د دوی لپاره به درې [۳] ورځي يا تر دې کم اختيار وي وَالْأَصْلُ فِيهِ مَا رُوِيَ [1]: أَنَّ حِبَّانَ بْنَ مُنْقِذِ بْنِ عَمْرٍو الْأَنْصَارِيَّ رضي الله عنه كَانَ يُغْبَنُ فِي الْبِيَاعَاتِ او اصل په دې باره کي هغه روايت دی: چي حضرت حبان بن منقذ بن عمرو رضي الله عنه به په معاملاتو اخرڅولو او رانيولو] کي دوکه کېدی فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم: «إِذَا بَايَعْتَ فَقُلْ لَا خِلَابَةَ وَلِيَ الْخِيَارُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ» نو نبي صلى الله عليه وسلم هغه ته وفرمايل: "کله چي ته بيع کوې نو وايه! "لَا خِلَابَةَ" (هيڅ دوکه به نه وي) [او وايه!] ما ته به درې ورځي اختيار وي وَلَا يَجُوزُ أَكْثَرُ مِنْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تر درېو ورځو زيات خيار جائز نه دی وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ او همدا د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله قول [هم] دی وَقَالَا [*]: يَجُوزُ إِذَا سَمَّى مُدَّةً مَعْلُومَةً او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: که چيري معلوم موده بيان کړي نو [تر درېو ورځو زيات خيارِ شرط هم] جائز دی لِحَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا [2] أَنَّهُ أَجَازَ الْخِيَارَ إِلَى شَهْرَيْنِ د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د حديث [اثر] په وجه چي هغه تر دوو مياشتو پوري د خيار اجازت ورکړی [دا أثر دی او د "أَنَّهُ" ضمير حضرت ابن عمر ته راجع دی (أثمار الهدايه)] وَلِأَنَّ الْخِيَارَ إِنَّمَا شُرِعَ لِلْحَاجَةِ إِلَى التَّرَوِّي لِيَنْدَفِعَ الْغَبْنُ او په دې وجه [هم] چي خيار د غور او فکر کولو د ضرورت په خاطر مشروع

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الأحكام، باب الحجر على من يفسد حاله، حديث رقم:۲۳۵۵. و الدر القطني في كتاب البيوع، حديث رقم:۲۹۹۲.

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: والصحيح قول الإمام، كما في القهستاني وغيره (الدر المنتقى ج:۲، ص:۲۴). وقال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: اعلم أن الخيار في العقود كلها لا يجوز أكثر من ثلاثة أيام إلا في الكفالة...(رد المحتار ج:۴، ص:۵۲). وقال المفتي غلام قادر النعماني: والأوجه أن يقال: إن كانت المبيعة مما يعلم حالها في ثلاثة أيام أو أقل، فالعمل على قول أبي حنيفة، وإن كانت المبيعة مما لا يعلم حالها في ثلاثة أيام، بل تحتاج إلى أكثر من ذلك، فالعمل على قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله. [القول الراجح ج:۲، ص:۱۳]

[2] تخريج: صاحب د اثمار الهدايې وايي چي دا أثر دی (يعني د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قول دی). او دا ډېر غريب دی چي تر ډېر لټون وروسته مو هم پيدا نه کړی. همدارنګه صاحب زيلعي رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي دا أثر ډېر غريب دی. (اثمار الهدايه ج:۸، ص:۸۱)

سوی دی، د دې لپاره چې دوکه [او تاوان] ليرې سي وَقَدْ تَمَسُّ الْحَاجَةُ إِلَى الْأَكْثَرِ او کله نا کله له درېو ورځو څخه زيات [مودت] ته هم ضرورت پېښيږي فَصَارَ كَالتَّأْجِيلِ فِي الثَّمَنِ لهذا دا د ثمن لپاره د مودت ټاکلو په څېر سو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ شَرْطَ الْخِيَارِ يُخَالِفُ مُقْتَضَى الْعَقْدِ د امام صاحب دليل دا دی: چې د اختيار شرط [خيارِ شرط] د عقد د تقاضا خلاف دی وَهُوَ اللُّزُومُ او هغه د عقد لازمېدل دي وَإِنَّمَا جَوَّزْنَاهُ بِخِلَافِ الْقِيَاسِ لِمَا رَوَيْنَاهُ مِنَ النَّصِّ لېکن موږ خلافُ القياس هغه جائز ګرځولی دی د هغه نص [حديث] پر بناء کوم چې موږ [څه مخکي] روايت کړی فَيُقْتَصَرُ عَلَى الْمُدَّةِ الْمَذْكُورَةِ فِيهِ لهذا هغه به پر هغه مودت منحصر وي کوم چې په نص کي ذکر سوی دی [يعني په نص کي پر ذکر سوي مودت به اکتفاء کيږي چې هغه درې ورځي دي] وَانْتَفَتِ الزِّيَادَةُ او [په هغه کي] زياتوب کول به نفي کيږي [يعني پر درېو ورځو به زياتوب نه کيږي] إِلَّا أَنَّهُ إِذَا أَجَازَ فِي الثَّلَاثِ لېکن که چيري "من له الخيار" په درېو وروځو کي [دننه] بيع جائز وګرځوي [يعني بيع نافذ کړي او خيار ختم کړي] جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ خِلَافًا لِزُفَرَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز جائز دي، په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله هُوَ يَقُولُ: إِنَّهُ انْعَقَدَ فَاسِدًا امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې [په دې صورت کي] بيع فاسده منعقده سوه فَلَا يَنْقَلِبُ جَائِزًا لهذا هغه به [اوس] بيرته جائز نه ګرځي وَلَهُ: أَنَّهُ أَسْقَطَ الْمُفْسِدَ قَبْلَ تَقَرُّرِهِ د امام صاحب دليل دا دی: چې [دلته] "من له الخيار" مُفسد ساقط کړی مخکي تر دې چې هغه ثابت سي [له مُفسد څخه مراد د څلورمي ورځې شرط دی. يعني من له الخيار د څلورمي ورځي له ثابتېدلو (راتللو) څخه مخکي د څلورمي ورځې خيارِ شرط ساقط کړی (د "من له الخيار" څخه مراد "خيار والا" دی. يعني "چا چي خيارِ شرط اخيستی دی")] فَيَعُودُ جَائِزًا نو څک بيع به بيرته جائز ګرځي كَمَا إِذَا بَاعَ بِالرَّقْمِ وَأَعْلَمَهُ فِي الْمَجْلِسِ لکه يو څوک چې د ليکل سوي قيمت په عوض کي يو شی خرڅ کړي او [د عقد] په مجلس کي مشتري [په هغه ليکل سوي قيمت] خبر کړي [نو بيع جائز کيږي] وَلِأَنَّ الْفَسَادَ بِاعْتِبَارِ الْيَوْمِ الرَّابِعِ او ځکه چې فساد د څلورمي ورځي په اعتبار سره دی فَإِذَا أَجَازَ قَبْلَ ذَلِكَ لېکن کله چې هغه [دلته] تر څلورمي ورځي مخکي بيع جائز وګرځوله لَمْ يَتَّصِلِ الْمُفْسِدُ بِالْعَقْدِ نو مفسد د

عقد سره متصل نه سو وَلِهٰذَا قِيلَ : إِنَّ الْعَقْدَ يَفْسُدُ بِمُضِيِّ جُزْءٍ مِنَ الْيَوْمِ الرَّابِعِ او له همدې کبله ويل سوي دي: چي [دلته] د څلورمي ورځي د يوه جزء په تېرېدلو سره عقد فاسديږي وَقِيلَ: يَنْعَقِدُ فَاسِدًا ثُمَّ يَرْتَفِعُ الْفَسَادُ بِحَذْفِ الشَّرْطِ او ويل سوي دي [يعني ځيني حضرات بيا فرمايي]: چي عقد خو فاسد منعقد کيږي [لېکن] بيا د شرط په حذف کولو [ساقطولو] سره فساد ختميږي وَهٰذَا عَلَى الْوَجْهِ الْأَوَّلِ او دا قول پر اول دليل [تعليل] مبني دی.

**اللغات**: ﴿يُغبَن﴾ د سمع له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: غلطي کول، دوکه کېدل (دوکه خوړل)، ﴿لا خلابة﴾ هيڅ دوکه نسته، هيڅ دوکه به نه وي، ﴿التروّي﴾ د تفعّل مصدر دی: سېرابول، غور او فکر کول، ﴿تأجيل﴾ د تفعيل مصدر دی: موده ټاکل (مياد ټاکل، وخت مقرر کول، وخت معلومول)، ﴿الرَّقْم﴾ (د قاف په سکون سره): د دغه لفظ څو معناوي دي: ① پنډ خط (ليک)، ② علامت (نښه)، ③ مهر (ټاپه)، ④ هغه قيمت کوم چي پر کپړه (ټوکر) يا پر بل شي ليکل سوی وي (يعني لېکل سوی رېټ)، ⑤ هره هغه کپړه چي يو معلوم علامت پر نقش کړی سي، دلته يې څلورمه معنیٰ مراد ده. صاحب د معجم الوسيط يې دغه معناوي داسي بيان کړي دي: الرقم: الخط الغليظ. والعلامة. والختم، وما يكتب على الثياب وغيرها من أثمانها. وكل ثوب رُقِم أي وُشِي برقم معلوم حتى صار عَلَمًا... (المعجم الوسيط ج:۱، ص:۳۶۶)

**تشريح**: صاحب د هدايې په دغه ټوله عبارت کي د خيارِ شرط ثبوت، د هغه موده او په دې سلسله کي د امامانو اختلاف او د هغوی دلائل بيان کړي دي، او په دې باره کي يې دوه بحثونه ذکر کړي دي، اول بحث دا دی چي د ټولو امامانو په اتفاق سره د بائع او مشتري لپاره خيار جائز دی، برابره ده په دوی کي يو خيار واخلي يا دواړه يې واخلي؛ دليل د حضرت حبان بن منقذ رضي الله عنه حديث دی چي په هغه کي نبي کريم ﷺ حبان بن منقد ته د خيار اخيستلو حکم کړی دی.

دويم بحث دا دی چي د امام صاحب، امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمُ الله په نيز د خيارِ شرط زيات موده درې ورځي دی، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د خيارِ شرط هيڅ موده نسته، بلکي عاقدين چي هر موده بيان کړي هغه به د خيار موده وي، هغه که درې ورځي وي يا درې مياشتي وي. د امام

مالک رَحِمَهُ الله په نيز د ضرورت مطابق خيار شرط ثابتيږي او د مال د حالت مطابق به په مودت کي کمي او زياتوب کيږي.

**د صاحبينو دليل**: دا ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا اثر دی چي هغه تر دوو مياشتو پوري د خيار اجازت ورکړي دی او دغه اجازت د ضرورت پر بناء وو، نو معلومه سوه چي تر څو ضرورت پاته وي، تر هغه وخت پوري به خيار هم باقي پاتيږي او په دريو ورځو کي به د هغه منحصر کول صحيح نه وي:

د صاحبينو عقلي دليل دا دی چي د خيار شرط مقصد همدا دی چي انسان د غور او فکر کولو لپاره موقع حاصله کړي او له خپل ځان څخه دوکه (فريب) ليري کړي، يعني عاقد د دې لپاره اختيار اخلي چي په مبيع کي غور او فکر وکړي (چي آيا هغه زما لپاره فايده کوي، که نه؟)، او دا ضروري نه ده چي دا شی صرف په درې ورځو کي پوره سي (يعني دا يقيني معلومه نه ده چي انسان فقط په دريو ورځو کي غور او فکر وکړي او بيه نتيجې ته ورسيږي)، بلکي کله نا کله د دې ضرورت هم پيښيږي چي هغه له دريو ورځو څخه زيات اختيار واخلي، لهذا کله چي د خيار شرط اصلي مقصد د غور او فکر موقع حاصلول او دوکه ليري کول دي، او کله نا کله دا شی له دريو (۳) ورځو څخه په زياتو ورځو کي هم نه پوره کيږي، نو ځکه خيار شرط صرف د دريو ورځو سره خاصول د نقل او عقل دواړو خلاف دي.

او لکه څرنګه چي د ثمن (قرض) اداء کولو لپاره له دريو ورځو څخه زيات مهلت اخيستل جائز دي، همداسي به د خيار شرط لپاره هم تر دريو ورځو زيات مهلت اخيستل جائز وي، کنې د خيار شرط چي کومه فايده او کوم مقصد دی، هغه به کما حقهٗ حاصل نه سي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي حق خبره خو دا ده چي خيار شرط بالکل ثابت نه سي، ځکه د خيار تقاضا خو دا ده چي بيع دي (پر مشتري او بائع) لازم نه سي، او د عقد تقاضا دا ده چي بيع دي لازم سي، معلومه خبره ده چي دا شرط د عقد د مقتضا خلاف دی، او د عقد د مقتضا په خلاف شرط سره بيع فاسديږي، ليکن د حضرت حبان بن منقذ د حديث په وجه خلافُ القياس د خيار شرط اجازت ورکول سوی دی، او دومره خو تاسو ته هم معلومه ده چي کوم شی خلافُ القياس ثابت وي هغه صرف د نص تر مورده پوري محدود او منحصر پاتيږي، او د دې هيڅ ګنجائش نسته چي انسان له خپل طرفه په هغه کي زياتوب وکړي، او د حضرت حبان په حديث کي صرف د دريو ورځو اجازت ورکول سوی دی، لهذا په دغه مودت کي به څه زياتوب کول صحيح نه وي نو تر دريو ورځو زيات خيار شرط اخيستل به جائز نه وي.

"لأنه إلخ: د دې حاصل دا دی چې کله د امام صاحب او نورو امامانو په نېز د خيار شرط زيات مودت درې ورځې دی، نو اوس که يو څوک له درېو ورځو څخه زيات خيار واخلي او بيا په درېو ورځو کې دننه بيع جائز وګرځوي (يعني بيع نافذ کړي او خيار ختم کړي)، نو دا صحيح او جائز دي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز ناجائز دي.

د امام زفر دليل دا دی چې له درېو ورځو څخه زيات شرط لګول عقد فاسدوي، لهذا کله چې په دغه شرط سره ابتداءً عقد فاسد سو، نو اوس هغه بيرته جائز نه ګرځي، ځکه اُصول دا دی "أن كلّ ما وقع فاسدًا لا ينقلب جائزًا"، يعني هر هغه شی چې د هغه ابتداء او شروع فاسده سي، هغه همېشه ناجائز پاتېږي او بيرته جائز نه ګرځي، او دغه عقد په ابتداء کې فاسد واقع سوی دی. نو ځکه به دا هم بيرته جائز نه ګرځي، او د دې مثال داسې دی لکه يو څوک چې يو (۱) درهم د دوو (۲) درهمو په عوض کې خرڅ کړي او بيا يو درهم ساقط کړي، نو ښکاره خبره ده چې دلته ابتداءً بيع فاسده سوې ده (ځکه چې يو درهم د دوو درهمو په عوض کې خرڅول ښکاره سُود دی)، لهذا وروسته د يوه درهم په ساقطولو سره د دغه بيع فساد نه ختمېږي او بيرته نه جائز کېږي.

د امام صاحب دليل دا دی چې درې ورځې خو د نصّ (حديث) په حکم سره د خيار شرط ګنجائش سته او کله چې دلته "من له الخِيار" په درېو ورځو کې دننه بيع جائز وګرځوله او نافذ يې کړه، نو هغه د مُفسد (فاسدونکي شي) يعني د څلورمې ورځې له راتګ څخه مخکې عقد پوره کړی (يعني په داسې وخت کې يې بيع نافذ کړه چې تر اوسه په بيع کې فساد ننوتلی او مضبوط سوی نه دی)، لهذا کله چې دلته د مُفسد له استحکام (مضبوطېدلو) او د فساد له تقرّر (ثابتېدلو) څخه مخکې عقد پوره سو، نو اوس به په هغه کې فساد هيڅ اثر نه کوي او عقد به صحيح کېږي. لکه "بيع بالرقم" يعني که مثلاً پر کپړې (ټوکر) قيمت ليکل سوی وي او مشتري هغه نه سي ويلای، او بائع ووايي چې پر کپړې چې کوم قيمت ليکلی دی، زه په هغه قيمت سره دغه کپړه پر تا خرڅوم، نو ښکاره خبره ده چې دلته د مشتري مخ ته ثمن (قيمت) مجهول دی او د ثمن د جهالت په وجه بيع فاسدېږي، نو ځکه دا بيع هم فاسدېږي، لېکن که تر مجلس ختمېدلو مخکې بائع هغه ليکل سوی قيمت مشتري ته ور وښيي او په خبر يې کړي، نو بيع بيرته صحيح او جائز ګرځي، ځکه چې فساد له راننوتلو او مضبوطېدلو څخه مخکې ختم کړی سو، او په خيار شرط کې په څلورمه ورځ فساد راځي. لهذا کله چې هغه له راننوتلو او مضبوطېدلو (استحکام) څخه مخکې ختم کړی سي، نو بيع به جائز ګرځي.

**ولأن الفساد باعتبار إلخ:** د امام صاحب دويم دليل دا دی چي کله "من له الخيار" تر دريو ورځو زيات شرط ولګوي، نو په دې صورت کي درې ورځي خو د هغه حق دی، لېکن له دريو ورځو څخه په زيات مودت کي هغه د موردُ النص مخالفت وکړی، لهذا په دريو ورځو کي دننه خو به پر "من له الخيار" هيڅ مؤاخذه او نيوکه نه وي، مګر تر دريو ورځو وروسته به په دې سره "من له الخيار" نيول کيږي يعني د هغه عقد به فاسدېږي، لېکن کله چي دلته "من له الخيار" په دريو ورځو کي دننه بيع نافذ کړه او خپل خيار يې ختم کړی نو مُفسد (يعني څلورمه ورځ) د عقد سره متصل نه سوه. او کله چي مفسد د عقد سره متصل نه سو، نو بيا به هغه څنګه عقد فاسد کړي!؟. له همدې کبله ځيني حضرات د دغه دويم دليل په خاطر دا خبره کوي چي دلته په بيع کي هيڅ فساد نه دی راغلی. يعني هغوی وايي که څوک تر دريو ورځو زيات اختيار واخلي او بيا په دريو ورځو کي دننه بيع نافذ کړي نو په بيع کي بالکل هيڅ فساد نه راځي (دا د اهل خراسان قول دی). او ځيني حضرات (د امام صاحب) د اول دليل په خاطر دا خبره کوي چي تر دريو ورځو د زيات اختيار اخيستلو په وجه خو فساد راځي، لېکن دلته هغه تر استحکام (مضبوطېدلو) مخکي ختم کړی سو. نو ځکه بيع جائز وګرځېده، (په اول دليل کي د "أَسْقَطَ الْمُفْسِدَ" مطلب همدغه دی چي په بيع کي خو فساد راغلی. لېکن هغه فساد تر مضبوطېدلو مخکي ساقط کړی سو، دا د اهل عراق قول دی).

او صاحبينو چي په خپل دليل کي د ابن عمر کوم حديث ذکر کړی دی. د هغه جواب دا دی چي دا ډېر غريب حديث دی او د دې په مقابله کي د حضرت حبان واقعه مشهوره ده. لهذا دا حديث به د هغه نه معارض کيږي، دويم جواب دا دی چي د ابن عمر په حديث کي د مطلق خيار بيان دی او زياته ممکنه ده چي له هغه څخه خيار رؤيت يا خيار عيب مراد وي او نبي ﷺ په تر دوو مياشتو وروسته د مبيع واپس کولو اجازت ورکړی وي. د دې په خلاف د حضرت حبان په حديث کي خيار شرط په صراحت سره ذکر سوی دی او مُحکَم دی. او دا ښکاره خبره ده چي مُحکَم د مُحتمَل په مقابله کي زيات راجح او قوي وي.

## د "خيار نقد" بيان

وَلَوِ اشْتَرَى عَلَى أَنَّهُ إِنْ لَمْ يَنْقُدِ الثَّمَنَ إِلَى ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَلَا بَيْعَ بَيْنَهُمَا او که څوک پر دې شرط [يو شی] رانيسي چي که هغه تر دريو ورځو پوري ثمن اداء نه کړي نو بيا د دوی دواړو په مينځ کي بيع نسته جَازَ نو بيع جائز ده [او داسي بيع ته خيار نقد وايي] وَإِلَى أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ لَا يَجُوزُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او تر څلور ورځو پوري [داسي بيع] جائز نه ده د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز وَقَالَ مُحَمَّدٌ [1]: يَجُوزُ إِلَى

[1] القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله (لا يصح إلى أربعة أيام)، كما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله (رد المختار ج:۴، ص:۵۴). [القول الراجح ج:۱، ص:۱۴]

أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ أَوْ أَكْثَرَ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې تر څلورو ورځو يا له دې څخه تر زياتو ورځو پورې [هم] جائز ده فَإِنْ نَقَدَ فِي الثَّلَاثِ بيا كه مشتري په دريو ورځو كې [دننه] ثمن اداء كړي جَازَ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو د ټولو په قول كې بيع جائز ده وَالْأَصْلُ فِيهِ أَنَّ هٰذَا فِي مَعْنَى اشْتِرَاطِ الْخِيَارِ او په دې باره كې اصل قاعده دا ده چې دا [خيارِ نقد] د خيارِ شرط په معنىٰ سره دى إِذِ الْحَاجَةُ مَسَّتْ إِلَى الِانْفِسَاخِ عِنْدَ عَدَمِ النَّقْدِ تَحَرُّزًا عَنِ الْمُمَاطَلَةِ فِي الْفَسْخِ ځكه د ثمن د نشتوالي په وخت كې [يعني كله چې د مشتري سره ثمن نه وي] د بيع فسخ كولو ته ضرورت پيښيږي، د دې لپاره چې په فسخ كې له ټال مټال كولو [او د فسخ له ځنډولو] څخه ځان وساتل سي [يعني د مشتري د ثمن نه اداء كولو په صورت كې په فسخ كې له ټال مټول كولو څخه د خوندي كېدلو لپاره د بيع فسخ كولو ته ضرورت پيدا كيږي] فَيَكُونُ مُلْحَقًا بِهِ نو ځكه به دا [خيار نقد] د خيارِ شرط سره ملحق وي وَقَدْ مَرَّ أَبُوحَنِيْفَةَ عَلَىٰ أَصْلِهِ فِي الْمُلْحَقِ بِهِ او امام صاحب په ملحق بِهٖ [خيار شرط] كې هم پر خپل اصل [أصول] تللى دى وَنَفَى الزِّيَادَةَ عَلَى الثَّلَاثِ او پر دريو ورځو زياتوب يې نفي كړي دى وَكَذَا مُحَمَّدٌ فِي تَجْوِيزِ الزِّيَادَةِ او همدارنګه امام محمد رَحِمَهُ الله د زياتوب په جائز ګرځولو كې پر خپل اصل تللى دى وَأَبُويُوسُفَ أَخَذَ فِي الْأَصْلِ بِالْأَثَرِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په اصل [خيارِ شرط] كې [د ابن عمر] په اثر عمل كړى دى وَفِي هٰذَا بِالْقِيَاسِ او په دې [خيارِ نقد] كې يې په قياس [عمل كړى دى] وَفِي هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ قِيَاسٌ آخَرُ او په دې مسئله كې يو بل قياس هم سته وَإِلَيْهِ مَالَ زُفَرُ چې د هغه وطرف ته امام زفر رَحِمَهُ الله ميلان كړى دى وَهُوَ أَنَّهُ بَيْعٌ شُرِطَ فِيهِ إِقَالَةٌ فَاسِدَةٌ او هغه دا چې دا يو داسې بيع ده چې د "اقالهٔ فاسده" شرط پكښې لګول سوى دى لِتَعَلُّقِهَا بِالشَّرْطِ ځكه چې [دلته] اقاله د شرط سره متعلقه ده وَاشْتِرَاطُ الصَّحِيحِ مِنْهَا فِيهِ مُفْسِدٌ لِلْعَقْدِ حال دا چې د بيع په عقد كې د "اقالهٔ صحيحه" شرط لګول هم عقد د فاسدونكى دي [يعني د صحيح اقالې شرط لګول هم بيع فاسدوي] فَاشْتِرَاطُ الْفَاسِدِ أَوْلَىٰ نو د "اقالهٔ فاسده" شرط لګول خو به په درجه اولىٰ د عقد فاسدونكى وي وَوَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ مَا بَيَّنَّا او د استحسان دليل هغه دى كوم چې موږ بيان كړى.

**اللغات:** ﴿لم ينقد﴾ د نصر له بابه د جحد صيغه ده، د دغه باب په صله کي چي ثمن [قيمت او پيسې] راسي نو معنیٰ يې راځي: اداء کول، ورکول. ﴿تحرزًا﴾ د تفعّل مصدر دی: خوندي کېدل، محفوظ کېدل، بچ کېدل، ځان ساتل. ﴿مماطلة﴾ د مفاعلې مصدر دی: ټال متهالول، ټال متهول کول، په تمه کښېښول، (د ټال متهال يا ټال متهول معنیٰ ده: څوک په تمه او په حيلو او بانو کښېباسل. يعني د يو چا حق (قرض) له يوه وخت څخه بل وخت ته ځنډول چي ته سبا راسه زه به يې درکړم، د سبا ورځ چي راسي نو ووايي چي بل سبا به يې درکړم په همدې توګه هغه له خپل وخت څخه حق ډېر وځنډوي او حقدار بېزاره کړي). ﴿مَالَ﴾ د ضرب ماضي ده: ميلان کول، مائل کېدل. ﴿اقاله﴾ د افعال مصدر دی: بيع په رضا سره ماتول (فسخ کول)، يعني اقاله دې ته وايي چي بائع او مشتري يو د بل په رضا سره بيع ماته کړي. (که چيري له يو شرط څخه بغير اقاله وکړي نو دې ته "اقالهٔ صحيحه" وايي، او که اقاله پر يو شرط معلقه کړي نو دې ته "اقالهٔ فاسده" وايي، او قاعده دا ده چي که څوک په بيع کي له مخکي څخه د "اقالهٔ صحيحه" شرط ولګوي نو دا هم بيع فاسدوي، لهذا که د "اقالهٔ فاسده" شرط ولګوي نو دا خو به په درجه اولیٰ بيع فاسدوي).

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که دوه خلک د بيع معامله سره وکړي او مشتري داسي ووايي چي که زه په را روانو دريو (۳) ورځو کي ثمن (پيسې) اداء نه کړم نو زما او ستا په مېنځ کي بيع ماته سوه (چي داسي اختياري معاملې ته "خيار نقد" وايي)، نو د احنافو په نېز دا صورت جائز دی او همدا د استحسان تقاضا هم ده، ائمه ثلاثه (او امام زفر) د قياس له رويه دا صورت ناجائز ګرځوي؛ ځکه د قياس تقاضا دا ده چي تر معامله کولو وروسته دي عقد لازم او ثابت سي لېکن دغه خيار د عقد د لزوم او ثبوت څخه مانع دی، لهذا دا د عقد له مقتضا څخه خلاف دی، نو ځکه د داسي خيار سره به بيع نه جائز کيږي.

د احنافو دليل دا دی چي دغه خيار (يعني خيار نقد) بالکل د خيار شرط په څېر دی، او بل دا چي څرنګه خيار شرط ته ضرورت پيښيږي، همداسي دغه خيار (خيار نقد) ته هم ضرورت پيښيږي، هغه په دې توګه چي که مثلاً د مشتري سره ثمن نه وي او ثمن ځنډوي او بائع عقد فسخ کول وغواړي، نو ښکاره خبره ده چي بائع د هغه له حضور او رضا څخه بغير عقد نه سي فسخ کولای، نو د بيع د فسخ کولو په سلسله کي له ټال متهال (مماطلت) څخه د خوندي کېدو او محفوظ کېدو په خاطر دغه خيار مشروع سوی دی (چي د بيع په فسخ کولو کي ټال متهال او ځنډ نه وسي، بلکي د ثمن د نشتوالي په صورت کي په خپله بيع فسخ سي)، او کله چي خيار نقد د خيار شرط په څېر دی، نو څرنګه چي خيار شرط درې ورځي ثابتيږي، همداسي به خيار نقد هم ثابتيږي او مشتري ته به تر دريو ورځو پوري د ثمن اداء کولو مهلت ورکول کيږي.

لېکن که مشتري د خيار نقد لپاره تر درېو ورځو زيات مودت بيان کړي، نو د دې دوه صورتونه دي: ① يو دا چې مودت خو تر درېو ورځو زيات بيان کړي، لېکن په درېو ورځو کې دننه ثمن اداء کړي، نو دا صورت د امام صاحب او صاحبينو (ټولو) په نېز جائز دی، ② دويم دا چې مودت هم تر درېو ورځو زيات بيان کړي، او په درېو ورځو کې ثمن هم اداء نه کړي، نو دا صورت د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز ناجائز دی او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز جائز دی. او د احنافو د دغه اختلاف وجه دا ده چې دوی خيار نقد پر خيار شرط قياس کړی او د هغه سره يې ملحق کړی دی، او مخکې ذکر سوه چې امام صاحب رَحِمَهُ الله په خيار شرط کې د درېو ورځو شرط جائز ګرځوي او له هغه څخه د زياتو ورځو شرط ناجائز ګرځوي، لهذا دلته هم امام صاحب په خپل اُصول عمل کړی دی او تر درېو ورځو پورې يې خيار نقد جائز ګرځولی دی، لېکن له هغه څخه زيات يې ناجائز ګرځولی دی؛ ځکه په ملحق بهٖ او مقيس عليهٖ کې يعني په خيار شرط کې هم د امام صاحب دغه نظريه ده، لهذا په ملحق او مقيس يعني په خيار نقد کې هم هغه پر خپل دغه نظريه قائم دی.

همداسې امام محمد رَحِمَهُ الله هم پر خپل اُصول قائم دی، يعنې څرنګه چې په ملحق بهٖ او مقيس عليهٖ (خيار شرط) کې د هغه په نېز د معلوم مودت له بيانولو څخه وروسته تر درېو ورځو زيات شرط لګول جائز دي، همداسې په ملحق او مقيس (خيار نقد) کې هم د هغه په نېز د معلوم مودت له بيان څخه وروسته د زياتو ورځو شرط لګول جائز دي.

لېکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په اصل يعنې په مقيس عليه او ملحق به (خيار شرط) کې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په اثر عمل کړی دی کوم چې مخکې ذکر سو، يعنې د هغه اثر په وجه يې تر درېو ورځو زيات هم د خيار شرط اجازت ورکړی دی او په فرع يعنې په مقيس او ملحق (خيار نقد) کې يې پر قياس عمل کړی دی، او د قياس تقاضا دا ده چې تر درېو ورځو زيات دې خيار نقد نه ثابتيږي، ځکه چې په دې سره بائع او مشتري ته حرج او تکليف رسيږي، نو ځکه هغه له درېو ورځو څخه زيات خيار نقد ته ناجائز ويلي دي.

وفي هذه المسألة إلخ: د دې حاصل دا دی چې د خيار نقد پر عدم جواز خو ائمه ثلاثه وو يو په مخکني قياس (چې دا د عقد له مقتضا څخه خلاف دی) سره دليل نيولی دی او له هغه څخه بغير امام زفر رَحِمَهُ الله د يو بل قياس تفتيش هم کړی دی. چې د هغه تفصيل دا دی چې دغه عقد يعنې "إن لم ينقد الثمن إلى ثلاثة أيام فلا بيع بينهما" يو داسې عقد دی چې په هغه کې د "اقاله فاسده" شرط لګول سوی

دی. هغه په دې توګه چې دلته اقاله پر يو شرط يعني د ثمن نه اداء کولو پر شرط معلقه سوې ده، او همدې ته اقالهٔ فاسده وايي (د اقالې مطلب دا دی چې يو د بل په رضا سره بيع ماتول [فسخ کول]. او دلته هم بائع او مشتري ادرې ورځې وروسته] د بيع ماتولو خبره کړې ده لهذا دا اقاله سوه. خو دلته د اقالې سره دا شرط هم لګول سوی دی چې که ثمن اداء نه کړم نو بيع ماته سوه. نو ځکه دا "اقالهٔ فاسده" سوه). او د بيع په سلسله کي قاعده دا ده چي که په بيع کي د "اقالهٔ صحيحه" شرط ولګول سي نو هم بيع فاسديږي، لهذا د "اقالهٔ فاسده" په شرط لګولو سره خو به په درجه اولیٰ بيع فاسديږي، او څرنګه چي دلته د "اقالهٔ فاسده" شرط لګول سوی دی، نو ځکه دلته به هم دغه بيع فاسديږي.

## د بائع د خيار اثر

قَالَ: وَخِيَارُ الْبَائِعِ يَمْنَعُ خُرُوْجَ الْمَبِيْعِ عَنْ مِلْكِهِ فرمايي: او د بائع خيار منع کوي وتل د مبيع د هغه له ملکيت څخه [يعني که بائع خيار شرط اخيستی وي نو په دې صورت کي مبيع د هغه له ملکيت څخه نه وځي که څه هم پر مبيع مشتري قبضه وکړي يعني مبيع د مشتري لاس ته ولاړه سي] لِأَنَّ تَمَامَ هٰذَا السَّبَبِ بِالْمُرَاضَاةِ ځکه چي د دغه سبب پوره کېدل [د دواړو عاقدينو] په رضا سره کيږي [مطلب دا چي د بيع د پوره کېدلو سبب د دواړو عاقدينو رضا ده] وَلَا يَتِمُّ مَعَ الْخِيَارِ او د خيار سره رضا نه پوره کيږي [يعني د خيارِ شرط د اخيستلو سره رضا نه پوره کيږي. نو ځکه به مبيع د بائع له ملکيت څخه نه وځي] وَلِهٰذَا يَنْفُذُ عِتْقُهُ او په همدې وجه د بائع عتق نافذيږي وَلَا يَمْلِكُ الْمُشْتَرِيْ التَّصَرُّفَ فِيْهِ وَإِنْ قَبَضَهُ بِإِذْنِ الْبَائِعِ او [په همدې وجه] مشتري په بيع کي د تصرف نه مالک کيږي، که څه هم هغه د بائع په اجازت سره پر مبيع قبضه کړې وي فَلَوْ قَبَضَهُ الْمُشْتَرِيْ وَهَلَكَ فِيْ يَدِهٖ فِيْ مُدَّةِ الْخِيَارِ او که مشتري پر مبيع قبضه وکړي او د خيار په موده کي مبيع د هغه په قبضه کي هلاکه سي ضَمِنَهُ بِالْقِيْمَةِ نو مشتري د مبيع د قيمت ضامن کيږي لِأَنَّ الْبَيْعَ يَنْفَسِخُ بِالْهَلَاكِ ځکه بيع [د مبيع] په هلاکېدلو سره فسخ کيږي [لهذا دلته د مبيع په هلاکېدلو سره بيع فسخ سوه] لِأَنَّهٗ كَانَ مَوْقُوْفًا ځکه چي بيع موقوف وه وَلَا نَفَاذَ بِدُوْنِ الْمَحَلِّ او له محل څخه بغير بيع نه نافذيږي فَبَقِيَ مَقْبُوْضًا فِيْ يَدِهٖ عَلٰى سَوْمِ الشِّرَاءِ لهذا مبيع د قيمت ټاکلو [نرخ معلومولو] په توګه [د مشتري] په قبضه کي باقي پاته سوه وَفِيْهِ الْقِيْمَةُ او په داسي قبضه کي قيمت وي [يعني په دا ډول قبضه کي پر مشتري قيمت واجبيږي. نه ثمن] وَلَوْ هَلَكَ فِيْ يَدِ الْبَائِعِ او که

مبيع د بائع په قبضه کې هلاکه سي اِنْفَسَخَ الْبَيْعُ نو بيع فسخ کيږي وَلَاشَيْءَ عَلَى الْمُشْتَرِيْ او پر مشتري هيڅ شی نه لازميږي [نه قيمت، او نه ثمن] اعْتِبَارًا بِالْبَيْعِ الصَّحِيحِ الْمُطْلَقِ پر صحيح مطلق بيع باندي په قياس کولو سره.

**اللغات**: ﴿مراضاة﴾ د مفاعلې مصدر دی: يو تر بله راضي کېدل (دواړه عاقدين په راضي کېدل)، ﴿مقبوض﴾ د ضرب د باب مفعول دی: قبضه کړی سوی، اخيستلی سوی، ﴿سوم الشراء﴾ "سَوْم" د نصر د باب مصدر دی، معنی يې ده: قيمت ټاکل، نرخ ټاکل (چي زه يې په دومره رانيسم)، نرخ معلومول، "شراء" رانيولو ته وايي، "مقبوض علی سوم الشراء" هغه شي ته وايي کوم چي د قيمت ټاکلو او معلومولو لپاره له بائع څخه واخيستل سي (يعني مشتري له بائع څخه يو شی واخلي او ورته ووايي چي زه يې ګورم [قيمت يې معلوموم] او بيا يې قيمت ټاکم چي په دومره يې رانيسم. يا ورته ووايي چي مثلاً دا کپړه زه کور ته وړم او ښځي ته يې ښکاره کوم چي هغه يې خوښوي. که نه؟ او څو قيمت لري؟)،

﴿قيمة﴾ په بازار کي چي د شي کوم ريښتيا او نرخ چليږي، هغه ته "قيمت" وايي، او د بائع او مشتري په مينځ کي چي کوم قيمت وټاکل سي، هغه ته "ثمن" وايي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيري په عاقدينو کي د بائع لپاره خيار ثابت وي (يعني بائع خيار شرط اخيستی وي)، نو په دې صورت کي ثمن خو د مشتري له ملکيت څخه وځي، مګر مبيع د بائع له ملکيت څخه نه وځي؛ او د دې وجه دا ده چي د بيع اتمام (پوره والی) د دواړو عاقدينو په رضا باندي موقوف دی، او د يوه عاقد لپاره د خيار په ثابتېدلو سره خو رضا ثابتيږي، مګر رضا نه پوره کيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي د "من ليس له الخيار" له طرفه خو رضا ثابته سوه لېکن د "من له الخيار" رضا د خيار تر مودته پوري موقوف پاته سوه. لهذا کله چي رضا پوره نه سوه نو عقد به هم موقوف او غير تام (نامکمل) پاتيږي.

همدا وجه ده که چيري مبيع غلام يا مينځه وي او بائع هغه د خيار په مودت کي آزاد کړي، نو هغه (غلام يا مينځه) آزاديږي؛ ځکه چي دغه آزادي د خيار په مودت کي واقع سوه. او اوس پورته دا خبره ذکر سوه چي د خيار په مودت کي مبيع د بائع له ملکيت څخه نه وځي (که چيري بائع "من له الخيار" وي)، لهذا دلته به هم مبيع د هغه له ملکيت څخه نه وځي او په هغه کي به د بائع ټول تصرفات نافذيږي، برابره ده هغه اعتاق وي يا بل تصرف وي. او همدا وجه ده چي د خيار په مودت کي مشتري په مبيع کي هيڅ ډول تصرف نه سي کولای. که څه هم هغه د بائع په اراده او اجازت سره پر

مبيع قبضه کړې وي؛ ځکه کله چې د خيار په موده کې مبيع د بائع له ملکيت څخه نه وځي نو اوس که په هغې کې د مشتري تصرف کول صحيح وګرځول سي، نو مشتري به د غير (بل چا) په ملکيت کې د هغه له اجازت څخه بغير تصرف کونکى سي (يعني مشتري به د بل چا په ملکيت کې د هغه له اجازت څخه بغير تصرف کونکى وګرځي) او دا صحيح نه دي (چي څوک د بل چا په ملکيت کي د هغه له اجازت څخه بغير تصرف کوي)، همدا د فقهي قاعده ده چي ”لا يجوز التصرّف فى ملك الغير بغير إذنه“.

فلو قبضه إلخ: فرمايي که په پورتني صورت کي (يعني کله چي خيار د بائع لپاره وي) مشتري پر مبيع قبضه وکړي او بيا د خيار په موده کي د ده نه مبيع هلاکه سي، نو اوس به مشتري د ثمن پر ځاى د هغې قيمت (بازاري ربټ) اداء کوي (يعني په بازار کي چي په هغه ورځ د مبيع کوم ربټ او نرخ چليږي. هغه به بائع ته ورکوي)؛ ځکه چي د خيار په وجه دا بيع موقوف وه، او کله چي د خيار په موده کي مبيع هلاکه سوه، نو اوس د بيع نافذېدل ناممکن سوه، ځکه چي له محل يعني له مبيع څخه بغير بيع نه نافذيږي، لهذا اوس به دا ويل کيږي چي د بائع د خيار په وجه مبيع د مشتري په قبضه کي د عقد په جهت سره وه (يعني مبيع صَرف د عقد په وجه د مشتري په قبضه کي وه)، او اُصول دا دى چي ”مقبوض بجهة العقد مضمون بألقيمة“ وي، يعني هر هغه شى کوم چي د عقد په جهت سره مقبوض وي، د هغه د هلاکېدلو په صورت کي قيمت واجبيږي، نه ثمن، لهذا دلته به هم قيمت واجبيږي او ثمن نه به واجبيږي.

او د دې مثال داسي دى لکه يو څوک چي له بائع څخه شى واخلي او بائع ته ووايي چي زه خپل کور والا ته دا شى ورښکاره کوم بيا يې راوړم (او بائع هغه شى په لاس ورکړي)، لېکن نابېره هغه شى هلاک سي، نو په دې صورت کي د هغه شي بازاري قيمت واجبيږي (که چيري هغه له ذواتُ القيم څخه وي. او که مثلي شى وي يعني له ذواتُ الامثال څخه وي. نو بيا يې مثل واجبيږي)، همداسي به دلته هم بازاري قيمت واجبيږي او د بائع او مشتري په مينځ کي چي کوم ثمن ټاکل سوى دى هغه به نه واجبيږي.

او که خيار د بائع لپاره وي (يعني بائع خيار شرط اخيستى وي) او مبيع هم د هغه په قبضه کي وي او بيا هغه هلاکه سي، نو ښکاره خبره ده چي د محل د فوتېدلو په وجه خو بيع فسخ کيږي، لېکن څرنګه چي مبيع تر اوسه د بائع په قبضه کي وه، نو ځکه پر مشتري به هيڅ ضمان (تاوان) نه واجبيږي، لکه کله چي په صحيح او مطلق (خالي عن الخيار) بيع کي مبيع د بائع په قبضه کي هلاکه سي، نو پر مشتري هيڅ ضمان نه واجبيږي، همداسي به دلته هم پر هغه هيڅ ضمان نه واجبيږي.

## د مشتري د خيار اثر

قَالَ: وَخِيَارُ الْمُشْتَرِي لَا يَمْنَعُ خُرُوْجَ الْمَبِيْعِ عَنْ مِلْكِ الْبَائِعِ فرمايي: او د مشتري خيار نه منع کوي د مبيع وتل د بائع له ملکيت څخه لِأَنَّ الْبَيْعَ فِي جَانِبِ الْآخَرِ لَازِمٌ ځکه چي [دلته] بيع په دويم طرف کي [يعني د بائع په طرف کي] لازمه ده وَهٰذَا لِأَنَّ الْخِيَارَ إِنَّمَا يَمْنَعُ خُرُوْجَ الْبَدَلِ عَنْ مِلْكِ مَنْ لَهُ الْخِيَارُ او دا ځکه چي خيار د "من له الخيار" [يعني چا چي خيار اخيستی وي] له ملکيت څخه د عوض وتل منع کوي لِأَنَّهُ شُرِعَ نَظْرًا لَهُ دُوْنَ الْآخَرِ ځکه چي خيار د هغه د فايدې [او مصلحت] لپاره مشروع سوی دی، نه د بل عاقد لپاره [يعني نه د هغه عاقد لپاره کوم چي خيار اخيستی نه وي] قَالَ: إِلَّا أَنَّ الْمُشْتَرِيَ لَا يَمْلِكُهُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ* فرمايي: لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مشتري د مبيع نه مالک کيږي وَقَالَا: يَمْلِكُهُ او صاحبين فرمايي: چي هغه د مبيع مالک کيږي لِأَنَّهُ لَمَّا خَرَجَ عَنْ مِلْكِ الْبَائِعِ ځکه کله چي مبيع د بائع له ملکيت څخه ووځي فَلَوْ لَمْ يَدْخُلْ فِي مِلْكِ الْمُشْتَرِيْ نو اوس که هغه د مشتري په ملکيت کي داخله نه سي يَكُوْنُ زَائِلًا لَا إِلَى مَالِكٍ نو هغه به له مالک څخه بغير زائله سي [يعني مبيع به بې مالکه پاته سي] وَلَا عَهْدَ لَنَا بِهِ فِي الشَّرْعِ حال دا چي په شريعت کي موږ ته د دې هيڅ علم نسته [يعني موږ په شريعت کي د دې هيڅ مثال نه دی ليدلی] وَلِأَبِيْ حَنِيْفَةَ: أَنَّهُ لَمَّا لَمْ يَخْرُجِ الثَّمَنُ عَنْ مِلْكِهِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي کله ثمن د مشتري له ملکيت څخه نه ووځي فَلَوْ قُلْنَا بِأَنَّهُ يَدْخُلُ الْمَبِيْعُ فِي مِلْكِهِ نو اوس که موږ ووايو چي مبيع د هغه په ملکيت کي داخليږي لَاجْتَمَعَ الْبَدَلَانِ فِي مِلْكِ رَجُلٍ وَاحِدٍ حُكْمًا لِلْمُعَاوَضَةِ نو د عقد معاوضه په وجه به حکما دوه عوضونه ديوه سړي په ملکيت کي سره جمع سي وَلَا أَصْلَ لَهُ فِي الشَّرْعِ حال دا چي په شريعت کي د دې هيڅ اصل نسته لِأَنَّ الْمُعَاوَضَةَ تَقْتَضِي الْمُسَاوَاةَ ځکه چي معاوضه د مساوات تقاضا کوي وَلِأَنَّ الْخِيَارَ

---

* القول الراجح: قول أبی حنيفة رَحِمَهُ الله، قال العلامة فخر الدين قاضيخان رَحِمَهُ الله: ولو كان الخيار للمشتری لا يخرج الثمن عن ملكه فی قولهم ويخرج المبيع عن ملك البائع، ولا يدخل فی ملك المشتری فی قول أبی حنيفة رَحِمَهُ الله، وعندهما يدخل...إلخ (الخانية ج:۲، ص:۳۵۸). [القول الراجح ج:۱، ص:۱۵]

شُرِعَ نَظَرًا لِلْمُشْتَرِيْ لِيَتَرَوّٰى فَيَقِفَ عَلَى الْمَصْلَحَةِ او ځکه چي [د مشتري] خيار د مشتري د فايدې [او مصلحت] لپاره مشروع سوی دی چي هغه غور او فکر وکړي او په خپل مصلحت [ښېګڼه] خبر سي وَلَوْ ثَبَتَ الْمِلْكُ رُبَّمَا يُعْتَقُ عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ اخْتِيَارِهِ او که [د مشتري لپاره] ملکيت ثابت سي نو ځيني وخت به د هغه له اختيار څخه بغير پر هغه مبيع آزاده سي بِأَنْ كَانَ قَرِيْبَهُ په دې توګه چي مبيع د مشتري قريب وي فَيَفُوْتُ النَّظَرُ نو فايده [او مصلحت] به فوت سي.

**اللغات**: ﴿شُرِعَ﴾ د فتح له بابه د ماضي مجهولې صيغه ده: مشروع کېدل (په شريعت کي جاري کېدل. جائز کېدل). ﴿نظرًا﴾ د فايدې لپاره. د مصلحت (ښېګڼي) لپاره. د شفقت په توګه (شارحينو يې دا ټولي معناوي کړي دي). ﴿لا عهد لنا﴾ موږ ته علم (خبر) نسته. ﴿يتروّى﴾ د تفعل مضارع ده: غور او فکر کول.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که چيري خيار د بائع لپاره وي نو مبيع د هغه له ملکيت څخه نه وځي. لېکن که خيار د مشتري لپاره وي نو مبيع د بائع له ملکيت څخه وځي؛ ځکه چي اوس د مشتري لپاره خيار ثابت دی. نه د بائع لپاره. او د چا په حق کي چي خيار ثابت نه وي. د هغه په حق کي بيع لازميږي (يعني پر هغه بيع لازميږي)؛ ځکه چي خيار د "من له الخيار" (صاحبُ الخيار) د فايدې او مصلحت (ښېګڼي) لپاره مشروع سوی دی (يعني چي هغه په بيع کي غور او فکر وکړي او د ځان په حق کي د فايدې فيصله وکړي). لهذا کله چي دلته د بائع لپاره خيار نسته نو ښکاره خبره ده چي د هغه په حق کي به فايده او مصلحت هم نه وي او بيع به پر هغه لازمه وي. او پر هغه بيع هغه وخت لازميږي کله چي مبيع د هغه له ملکيت څخه ووځي. لهذا دومره خو معلومه او مُسلمه ده چي دلته مبيع د بائع له ملکيت څخه وځي. او دا جزئيه متفق عليه هم ده. لېکن په دې کي اختلاف دی چي کله مبيع د بائع له ملکيت څخه ووځي. نو آيا هغه د مشتري په ملکيت کي داخليږي. که نه؟ په دې باره کي د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی.

د امام صاحب مسلک دا دی چي که څه هم دلته مبيع د بائع له ملکيت څخه وځي. مګر هغه د مشتري په ملکيت کي نه داخليږي. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي هغه د مشتري په ملکيت کي داخليږي. همدا د ائمه ثلاثه وو قول هم دی.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي کله مبيع د بائع له ملکيت څخه ووځي. نو اوس که هغه د مشتري په ملکيت کي داخله نه سي. نو مبيع به له مالک څخه بغير پاته سي (هيڅ مالک به يې نه وي). او له

مالک څخه بغير د يو شي پاتېدل د هغه د زوال سبب دی، او بل دا چي په شريعت کي هم د دې هيڅ مثال نسته چي مبيع يا مملوک شی د يوه کس له ملکيت څخه ووځي او د بل کس په ملکيت کي داخل نه سي، نو ځکه موږ وايو چي مبيع د مشتري په ملکيت کي داخلېږي.

**د امام صاحب دليل**: امام صاحب رَحِمَهُ الله د خپل قول په تائيد کي دوه دليلونه پېش کړي دي:

(۱)... کله چي د مشتري لپاره خيار ثابت وي، نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي ثمن د هغه له ملکيت څخه نه وځي، اوس که موږ مبيع هم د هغه په ملکيت کي داخله کړو، نو دوه عوضونه به صرف د يوه سړي (مشتري) په ملکيت کي سره جمع سي، ځکه چي بيع د معاوضې عقد دی، او معاوضه د مساوات تقاضا کوي يعني چي دواړو طرفونو ته دي عوض وي، يعني کله چي د بائع عوض (يعني مبيع) د مشتري په ملکيت کي راسي، نو د مساوات تقاضا دا ده چي د مشتري عوض (ثمن) هم د بائع ملکيت ته ولاړ سي، حالانکي اوس معلومه سوه چي ثمن د مشتري له ملکيت څخه نه وځي، لهذا په دې صورت کي به د يوه کس (مشتري) په ملکيت کي دوه عوضونه سره جمع سي، او په شريعت کي د دې هيڅ اصل نسته، نو ځکه دا صورت صحيح نه دی.

(۲)... د امام صاحب دويم دليل دا دی چي د خيار مقصد شفقت او مصلحت دی (يعني د خيار مقصد دا دی چي مشتري ته مصلحت او فايده حاصله سي)، او ښکاره خبره ده چي کله خيار د مشتري لپاره وي نو د هغه په حق کي به هم د مصلحت او فايدې لحاظ کېږي، او د هغه په حق کي مصلحت او فايده دا ده چي د خيار په مودت کي ښه غور او فکر وکړي او د مشورې او استخارې په ذريعه يو مصلحت ته ورسيږي (او د ځان په حق کي د فايدې فيصله وکړي)، لېکن که مبيع د هغه په ملکيت کي داخله ومنل سي، نو د هغه مصلحت او فايده به فوت سي، ځکه کېداي سي چي مبيع به د مشتري ذی رحم محرم قريب وي او د مشتري په ملکيت کي په راتللو سره به هغه آزاد سي (ځکه په حديث کي راځي: من مَلَكَ ذَا رَحْمٍ مَحْرَمٍ عَتَقَ عَلَيْه)، نو اوګورئ! په دې صورت کي د مصلحت او فايدې پر ځای د مشتري لپاره نقصان او تاوان دی، نو ځکه زموږ فيصله دا ده چي مبيع د مشتري په ملکيت کي نه داخلېږي.

## د مشتري يا بائع د خيار په صورت کي د مبيع هلاکېدلو بيان

قَالَ: فَإِنْ هَلَكَ فِي يَدِهِ فرمايي: بيا که مبيع د مشتري په قبضه کي هلاکه سي هَلَكَ بِالثَّمَنِ نو هغه د ثمن په عوض کي هلاکيږي وَكَذَا إِذَا دَخَلَهُ عَيْبٌ او همدارنګه کله چي په مبيع کي عيب داخل سي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْخِيَارُ لِلْبَائِعِ په خلاف د هغه صورت کله چي خيار د بائع لپاره وي وَوَجْهُهُ

الْفَرْقِ: أَنَّهُ إِذَا دَخَلَهُ عَيْبٌ او د دې فرق وجه دا ده: چې کله په مبيع کې عيب داخل سي يَمْتَنِعُ الرَّدُّ نو [د مبيع] واپس کول ممتنع کيږي [يعني د عيب داخليدلو په وجه د مبيع واپس کول ناممکن ګرځي] وَالْهَلَاكُ لَا يَعْرَى عَنْ مُقَدِّمَةِ عَيْبٍ او هلاکيدل [هم] د عيب له مخکې والي څخه خالي نه وي [يعني تر هلاکيدلو مخکې هم خامخا (په مبيع کې) يو عيب پيدا کيږي کوم چې (د مبيع) د هلاکيدلو سبب جوړيږي] فَيَهْلِكُ وَالْعَقْدُ قَدِ انْبَرَمَ نو مبيع به هلاکه سي په داسې حال کې چې عقد پوره سوی [او لازم سوی] وي فَيَلْزَمُهُ الثَّمَنُ نو ځکه به پر مشتري ثمن لازميږي بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه صورت کوم چې مخکې تېر سو [يعني چې خيار د بائع لپاره وي] لِأَنَّ بِدُخُولِ الْعَيْبِ لَا يَمْتَنِعُ الرَّدُّ حُكْمًا لِخِيَارِ الْبَائِعِ ځکه چې د بائع د خيار د حکم په وجه د عيب په داخليدلو سره [د مبيع] واپس کول نه ممتنع کيږي فَيَهْلِكُ وَالْعَقْدُ مَوْقُوفٌ نو مبيع به هلاکه سي په داسې حال کې چې عقد موقوف وي [يعني د عقد د موقوف والي په حالت کې به مبيع هلاکه سي].

**اللغات:** ﴿يمتنع﴾ د افتعال مضارع ده: ممتنع کېدل، ناممکن کېدل. ﴿مُقدِّمَة﴾ او مُقَدَّمَة: د هر شي شروع، هر مخکنی شی، سريزه (ديباچه). ﴿انبرم﴾ د انفعال ماضي ده: مضبوطېدل (پخېدل، لازمېدل).

**تشريح:** په دې عبارت کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دوو مسئلو په مينځ کې فرق بيانوي چې که خيار د مشتري لپاره وي، او بيا د هغه په قبضه کې مبيع هلاکه سي يا په مبيع کې غټ عيب پيدا سي (چې د هغه ليري کول ممکن نه وي) نو پر مشتري ثمن لازميږي، او که خيار د بائع لپاره وي، او بيا د مشتري په قبضه کې مبيع هلاکه سي نو پر مشتري قيمت (بازاري نرخ) لازميږي (لکه مخکې چې ذکر سوه)، د دې دوو مسئلو په مينځ کې د فرق وجه څه ده؟ نو فرمايي چې که خيار د مشتري لپاره وي او مبيع هلاکه سي، نو ښکاره او معلومه خبره ده چې تر هلاکيدلو مخکې به په مبيع کې يو عيب (لکه مرض يا داسې بل عيب) خامخا پيدا سوی وي (ځکه چې تر هلاکيدلو مخکې يو داسې غټ عيب (مرض) خامخا پيدا کيږي چې د هغه په وجه د مبيع واپس کول ناممکن وي او هغه د مبيع د هلاکيدلو سبب وي)، لهذا کله چې دلته تر هلاکت مخکې په مبيع کې عيب پيدا سو، نو په کوم حالت کې چې مشتري مبيع اخيستې وه د هغه حالت مطابق د مبيع واپس کول ناممکن سو (او کله چې د مبيع واپس کول ناممکن سي نو عقد

[بيع] پوره کيږي او لازميږي)، نو ګواکي دلته تر هلاکت مخکې عقد لازم او نافذ سو، او کله چې عقد لازم سي نو ثمن واجبيږي، نو ځکه به په دې صورت کې هم ثمن واجبيږي، همدارنګه که چې په مبيع کې عيب پيدا سي، نو په دې صورت کې هم د مخکني حالت مطابق د مبيع واپس کول ناممکن دي، نو ځکه به دلته هم عقد لازميږي او ثمن به واجبيږي.

بخلاف ما تقدم إلخ: ليکن که چيري خيار د بائع لپاره وي، او بيا د مشتري په قبضه کې په مبيع کې عيب پيدا سي يا مبيع هلاکه سي، نو په دې صورت کې ځکه پر مشتري قيمت لازميږي، ځکه کله چې خيار د بائع لپاره وي، نو ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې (د عيب په وجه) د مبيع واپس کول ناممکن نه دي (ځکه چې بائع خيار شرط اخيستی دی)، لهذا کله چې په دې صورت کې د مبيع واپس کول ناممکن نه دي نو که په دې صورت کې مبيع هلاکه سوه، نو ګواکي هغه د عقد له پوره کېدلو (لازمېدلو) څخه مخکې هلاکه سوه (او د عقد له پوره کېدلو څخه مخکې د مشتري قبضه د عقد په جهت سره وي)، لهذا دلته د مشتري قبضه د عقد په جهت سره سوه، او که چيري د عقد د جهت والا قبضه هلاکه سي (يعني کوم شی چې د عقد په جهت سره مقبوض وي، که هغه هلاک سي)، نو هغه مضمون بالقيمة وي (يعني د هغه قيمت واجبيږي، ثمن يې نه واجبيږي، لکه مخکې چې ذکر سوه)، نو ځکه به دلته هم پر مشتري قيمت واجبيږي، او ثمن به نه واجبيږي؛ ځکه چې دلته د مبيع معيوب کېدل يا د هغې هلاکېدل دواړه د عقد د موقوف والي په حالت کې پېښ سول (يعني په داسي حالت کې پېښ سول چې تر اوسه عقد پوره سوی او لازم سوی نه دی)، او د عقد د لازمېدلو څخه مخکې که په مبيع کې عيب پيدا سي يا هغه هلاکه سي نو قيمت واجبيږي، لهذا په دې صورت کې به هم قيمت واجبيږي.

## په خيارِ شرط سره د خپل منکوحه مينځې د رانيولو بيان

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى اِمْرَأَتَهُ عَلٰى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فرمايي: او څوک چې خپله ښځه [کوم چې د بل چا مينځه وي] پر دې شرط رانيسي چې هغه ته به درې ورځې خيار [اختيار] وي لَمْ يَفْسُدِ النِّكَاحُ نو [د دوی] نکاح نه فاسديږي لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهَا لِمَا لَهُ مِنَ الْخِيَارِ ځکه چې د خيار په وجه سرې [خاوند] د مينځې مالک نه سو وَإِنْ وَطِئَهَا او که هغه د دې مينځې سره وطي وکړي لَهُ أَنْ يَرُدَّهَا نو هغه ته دا

حق ستة چي مينځه [بائع ته] واپس کړي لِأَنَّ الْوَطْءَ بِحُكْمِ النِّكَاحِ ځکه چي دا وطي د نکاح په حکم سره دي إِلَّا إِذَا كَانَتْ بِكْرًا مګر دا چي ښځه [مينځه] باکره وي لِأَنَّ الْوَطْءَ يُنْقِصُهَا ځکه چي وطي ښځه عيبداره کوي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❀ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دي وَقَالَا: يَفْسُدُ النِّكَاحُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي نکاح فاسديږي لِأَنَّهُ مَلَكَهَا ځکه چي خاوند د دې مينځي مالک سو وَإِنْ وَطِئَهَا لَمْ يَرُدَّهَا او که هغه د مينځي سره وطي وکړي نو مينځه [بائع ته] نه سي واپس کولای لِأَنَّ وَطْأَهَا بِمِلْكِ الْيَمِينِ ځکه چي د هغه وطي د ملک يمين [ملک رقبه] په وجه دي [يعني هغه د ملک رقبه پر بنياد د مينځي سره وطي کړي دي] فَيَمْتَنِعُ الرَّدُّ وَإِنْ كَانَتْ ثَيِّبًا لهذا [د دغې] واپس کول به ناممکن وي، که څه هم هغه [مينځه] ثيبه وي وَلِهٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ أَخَوَاتٌ او د دې مسئلې ډېر مثالونه ستة كُلُّهَا تَبْتَنِي عَلَى وُقُوعِ الْمِلْكِ لِلْمُشْتَرِي بِشَرْطِ الْخِيَارِ وَعَدَمِهِ چي هغوی ټوله پر دې اُصول مبني دي چي په خيار شرط سره په رانيول سوي شي کي (د صاحبينو په نيز) د مشتري ملکيت ثابتيږي او (د امام صاحب په نيز) نه ثابتيږي مِنْهَا: عِتْقُ الْمُشْتَرَى عَلَى الْمُشْتَرِي إِذَا كَانَ قَرِيبًا لَهُ فِي مُدَّةِ الْخِيَارِ له هغه مثالونو څخه يو مثال: د رانيول سوی غلام آزاديدل دي که چيري هغه د مشتري قريب وي د خيار په مودت کي [يعني که رانيول سوی غلام د مشتري ذی رحم محرم وي. نو د خيار په مودت کي هغه پر مشتري آزاديږي] وَمِنْهَا: عِتْقُهُ إِذَا كَانَ الْمُشْتَرِي حَلَفَ إِنْ مَلَكْتُ عَبْدًا فَهُوَ حُرٌّ او له هغوی څخه يو مثال: د رانيول سوي غلام آزاديدل دي که چيري مشتري دا قسم اخيستی وي چي که زه د يو غلام مالک سوم نو هغه آزاد دی [يعني که مشتري داسي قسم اخيستی وي چي که زما په ملکيت کي يو غلام راغلی نو هغه آزاد دی، نو هم مشتری (رانيول سوی غلام) آزاديږي] بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: إِنِ اشْتَرَيْتُ په خلاف د هغه صورت کله چي مشتري ووايي: اِشْتَرَيْتُ [که ما يو غلام رانيوی، نو هغه آزاد دی] لِأَنَّهُ يَصِيرُ كَالْمُنْشِئِ

❀ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله (الخانية ج:۲، ص:۳۵۹). قال صاحب "القول الراجح" هذه مسائل ترتب على أصل المقدم ذكره، وهو أن الخيار إذا كان للمشتري يخرج المبيع عن ملك البائع ولا يدخل في ملك المشتري عند أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، وعندهما يدخل. قال استاذنا المفتي غلام قادر النعماني: وفي الأصل المقدم الراجح قول الإمام أبي حنيفة النعمان رَحِمَهُ الله. [القول الراجح ج:۲، ص:۱۶]

لِلْعِتْقِ بَعْدَ الشِّرَاءِ ځکه چي [په دې صورت کي] مشتري تر رانيولو وروسته [سمدستي] د آزادۍ ايجادونکي ګرځي فَيَسْقُطُ الْخِيَارُ نو ځکه [د هغه] خيار به ساقط سي.

**اللغات**: ﴿بِكْر﴾ باكره، هغه ښځه چي د بكارت پرده يې خوندي پاته وي (يعني د هغې سره تر اوسه جماع نه وي سوې)، ﴿ثيب﴾ ثيبه، هغه ښځه چي د بكارت پرده يې شلېدلې وي (يعني جماع ور سره سوې وي)، ﴿منشئ﴾ د افعال د باب اسم فاعل دی: پيدا كونكى، ايجادونكى.

**تشريح**: مخكي ذكر سوه چي په خيارِ شرط سره د رانيولو په صورت كي مبيع د امام صاحب په نېز د مشتري په ملكيت كي نه داخلېږي او د صاحبينو په نېز داخلېږي، نو اوس پر دغه أصول او اختلاف څو مسئلې متفرع كوي، له هغوی څخه يوه مسئله دا ده چي كه يو څوک خپله ښځه (كوم چي د بل چا مينځه وي) رانيسي او درې ورځي خيار شرط واخلي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا ښځه (مينځه) كه څه هم د خپل مالک له ملكيت څخه ووتله، مګر د مشتري يعني د خاوند په ملكيت كي نه راځي، نو ځكه په دې صورت كي به د خاوند او ښځي نكاح نه فاسدېږي (ځكه چي نكاح هغه وخت فاسدېږي كله چي منكوحه مينځه د خاوند په ملكيت كي راسي)، او كه خاوند د خيار په مودت كي د هغې سره وطي وكړي، نو دا وطي به د مشتري (خاوند) له طرفه اجازت نه منل كيږي او د بيع د نافذېدلو فيصله به نه كيږي، بلكي تر دې وروسته به هم هغه ته دا حق وي چي مينځه بائع ته واپس كړي، ځكه چي هغه دا وطي د ملک رقبه (ملک يمين) پر بنياد نه دي كړي، بلكي د خپل منكوحه والي پر بنياد يې كړي دي (يعني پر دې بنياد يې د مينځې سره وطي كړي دي چي هغه د ده خپله منكوحه ده [د ده په نكاح كي ده])، لهذا د هغه دا وطي د خيار فاسدونكي نه دي (ځكه چي خيار په هغه وطي سره فاسدېږي كوم چي د ملک رقبه پر بنياد وسي، يعني چي مينځه د خاوند په ملكيت كي راسي او بيا خاوند هغې سره وطي وكړي. لهذا كله چي د هغه دا وطي د خيار فاسدونكي نه دي)، نو ځكه هغه ته به د خيار په مودت كي دننه د مينځي د واپس كولو حق هم وي.

ليكن كه مينځه باكره وي او بيا خاوند د خيار په مودت كي د هغې سره وطي وكړي، نو په دې صورت كي د خاوند خيار باطلېږي او عقد لازمېږي او نافذېږي، ځكه چي وطي باكره ښځه عيبداره كوي (او د هغې لپاره وطي عيب دی)، لهذا په وطي سره په مبيع (مينځه) كي يو ډول عيب پيدا سو او عيب د ردّ لپاره مانع وي (يعني د عيب په وجه مشتري [خاوند] مبيع نه سي واپس كولای)، نو ځكه عقد به لازميږي، او د عقد په لازمېدلو سره به د دوی نكاح هم فاسدېږي، ځكه چي تر ملکِ يمين وروسته نكاح باقي نه پاتيږي.

څرنګه چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا مينځه د رانيولو سره سمدستي د خاوند په ملکيت کې راغله، نو ځکه د دوی نکاح به فاسديږي. او که خاوند د خيار په مودت کې د هغې سره وطي وکړي نو خاوند دا مينځه (د صاحبينو په نېز) بائع ته واپس کولای هم نه سي، ځکه چې د صاحبينو په نېز خاوند محض په عقد (رانيولو) سره د هغې مالک سو، او فقط د خيار شرط په وجه معامله معلقه وه، لېکن کله چې هغه د خيار شرط په مودت کې وطي وکړې، نو و دې طرف ته يې اشاره وکړه چې هغه د بيع په نافذېدلو راضي دی، لهذا دلته به د بيع د نافذېدلو په سلسله کې د مشتري په اجازت او د هغه په اشاره سره خيار ساقطيږي، او کله چې خيار ساقط سي نو بيع لازميږي او مينځه د هغه په ملکيت کې راځي، نو ځکه د دوی په مينځ کې به نکاح ختميږي. لنډه دا چې د صاحبينو په نېز د خيار په مودت کې کېدونکي وطي د ملک رقبه (ملک يمين) له قبيلې څخه دي، نه د نکاح، ځکه چې د دوی نکاح خو محض په عقد سره فاسده سوه.

ولهذه المسئلة إلخ: له دې ځايه د پورتنۍ مسئلې نور مثالونه (او نوري هغه مسئلې) ذکر کوي کوم چې ټوله پر پورتني اُصول متفرع دي چې په خيارِ شرط سره د رانيولو په صورت کې مبيع د امام صاحب په نېز د مشتري په ملکيت کې نه داخليږي او د صاحبينو په نېز داخليږي (يعني که مشتري خيارِ شرط واخلي نو بيا هم د صاحبينو په نېز مشتري د مبيع مالک کيږي. او د امام صاحب په نېز يې نه مالک کيږي)،

او صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله ټوله اووه (۷) مثالونه [اووه مسئلې] ذکر کړي دي.

①... اول مثال دا دی چې که مشتري په خيارِ شرط سره يو غلام رانيسي، بيا معلومه سي چې هغه خو د مشتري نژدې قريب (ذو رحم محرم) دی، نو د صاحبينو په نېز د خيار په مودت کې هغه غلام آزاديږي، ځکه چې محض په عقد (رانيولو) سره مشتري د هغه مالک سو (او په حديث کې راځي "من ملك ذا رحم محرم عتق عليه" يعني څوک چې د خپل ذو رحم محرم قريب مالک سي، نو هغه پر ده آزاديږي).

لېکن څرنګه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مشتري (د خيار په مودت کې) د هغه مالک نه سو (ځکه چې په خيارِ شرط سره د رانيولو په صورت کې د امام صاحب په نېز مبيع د مشتري په ملکيت کې نه داخليږي)، نو ځکه هغه به نه آزاديږي (او د امام صاحب په نېز دا غلام هغه وخت آزاديږي. کله چې د خيار مودت تېر سي او مشتري بيع فسخ نه کړي).

②... منها إلخ: د پورتنۍ مسئلې دويم مثال (کوم چې پر مخکني اُصول متفرع دی) دا دی چې که زيد داسي قسم واخيستی "إن ملكتُ عبدًا فهو حُرٌّ" چې که زه د يو غلام مالک سوم (يعني که زما په

ملکيت کي يوغلام راغلی) نو هغه آزاد دی، بيا هغه په خيار شرط سره يو غلام رانيوی، نو څرنګه چي د امام صاحب په نيز زيد د خيار شرط په وجه د دې غلام مالک نه سو، نو ځکه هغه نه آزاديږي، لېکن د صاحبينو په نيز هغه د غلام مالک سو (ځکه چي د دوی په نيز د خيار شرط باوجود مشتري د مبيع مالک کيږي). لهذا کله چي هغه د غلام مالک سو او د هغه په ملکيت کي غلام راغلی، نو د "إن ملکتُ" معنیٰ او مفهوم حاصل سو، نو ځکه جزاء (فهو حُرٌّ) به هم واقع کيږي او هغه به آزاديږي.

لېکن که زيد د "إن ملکتُ" پر ځای د "إن اشتريت" په لفظ سره قسم واخيستی، نو محض په شراء (رانيولو) سره د امام صاحب او صاحبينو په نيز هغه غلام آزاديږي، برابره ده په خيار شرط سره يې رانيسي يا يې مطلق رانيسي؛ ځکه چي د زيد له طرفه آزادي پر شراء (رانيولو) معلقه سوې وه، او دلته شراء (رانيول) ثابت سوه، لهذا آزادي به هم واقع کيږي، ځکه أصول دا دی چي "المُعلَّق بالشرط يثبت ويجب بوجود الشرط" (يعني کوم شی چي پر شرط معلق وي، هغه د شرط موجودېدلو سره سمدستي ثابتيږي او واجب ګرځي)، او څرنګه چي دلته د زيد له طرفه آزادي پر شراء معلقه سوې ده، نو ځکه د شراء په موجودېدلو سره به سمدستي آزادي واقع کيږي.

(د "ملکتُ" او "اشتريتُ" په مينځ کي فرق دا دی چي تر ايجاب وقبول وروسته سمدستي رانيول (اشتريتُ) ثابتيږي او د "اشتريتُ" معنیٰ او مفهوم حاصليږي ا نو ځکه سمدستي به آزادي واقع کيږي]، همدې ته مصنف رَحِمَهُ الله "مُنْشِئ للعِتق" ويلي دي [يعني د آزادۍ پيدا کونکي]، لېکن مالک کېدل (ملکتُ) د خيار تر ختمېدلو وروسته ثابتيږي، صرف په رانيولو سره نه مالک کيږي، يعني مالک کېدل تر ايجاب وقبول وروسته سمدستي نه ثابتيږي بلکي هغه [د امام صاحب په نيز] تر خيار وروسته ثابتيږي، همدا د "ملکتُ" او "اشتريتُ" په مينځ کي فرق دی).

## د پورتني أصول تفريعات

وَمِنْهَا: أَنَّ حَيْضَ الْمُشْتَرَاةِ فِي الْمُدَّةِ لَا يُجْتَزَأُ بِهِ عَنِ الِاسْتِبْرَاءِ عِنْدَهُ او له هغه مثالونو څخه يو مثال دا دی: چي د خيار په مودت کي رانيول سوي مينځې ته حيض راتلل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز له استبراء څخه نه کافي کيږي [يعني که د خيار په مودت کي مينځې ته حيض راسي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه حيض په استبراء کي کافي نه دی] وَعِنْدَهُمَا يُجْتَزَأُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز کافي کيږي وَلَوْ رُدَّتْ بِحُكْمِ الْخِيَارِ إِلَى الْبَائِعِ [همدارنګه] که چيري د خيار شرط پر بناء هغه مينځه بائع

ته واپس کړی سي لَا يَجِبُ عَلَيْهِ الِاسْتِبْرَاءُ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر بائع استبراء نه واجبيږي وَعِنْدَهُمَا يَجِبُ إِذَا رُدَّتْ بَعْدَ الْقَبْضِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز واجبيږي، که چيري تر قبضې وروسته واپس کړی سي وَمِنْهَا: إِذَا وَلَدَتِ الْمُشْتَرَاةُ فِي الْمُدَّةِ بِالنِّكَاحِ او له هغوی څخه يو مثال دا دی: چي کله رانيول سوې مينځه د خيار په مودت کي د نکاح په سبب بچی وزېږوي [يعني مينځه د نکاح په ذريعه له مشتري څخه حامله سوې وي او بيا د خيار په مودت کي بچی وزېږوي] لَا تَصِيرُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ عِنْدَهُ نو [په دې صورت کي] هغه مينځه د مشتري اُم ولد نه ګرځي خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله وَمِنْهَا: إِذَا قَبَضَ الْمُشْتَرِي الْمَبِيعَ بِإِذْنِ الْبَائِعِ ثُمَّ أَوْدَعَهُ عِنْدَ الْبَائِعِ او له هغوی څخه يو مثال دا دی: چي که مشتري د بائع په اجازت سره پر مبيع قبضه وکړي او بيا هغه بائع ته په امانت ورکړي فَهَلَكَ فِي يَدِهِ فِي الْمُدَّةِ بيا د خيار په مودت کي مبيع د بائع په قبضه کي هلاکه سي هَلَكَ مِنْ مَالِ الْبَائِعِ نو [د امام صاحب رَحِمَهُ الله] په نېز هغه مبيع د بائع له مال څخه هلاکيږي [يعني هغه به د بائع له مال څخه هلاکه شمارل کيږي] لِارْتِفَاعِ الْقَبْضِ بِالرَّدِّ لِعَدَمِ الْمِلْكِ عِنْدَهُ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [د مشتري] د ملکيت د نشتوالي په وجه [د مبيع] په واپس کولو سره د مشتري قبضه ختمه سوه وَعِنْدَهُمَا مِنْ مَالِ الْمُشْتَرِي او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه د مشتري له مال څخه هلاکيږي لِصِحَّةِ الْإِيدَاعِ بِاعْتِبَارِ قِيَامِ الْمِلْكِ ځکه چي [د صاحبينو په نېز د مشتري لپاره] د ملکيت ثابتېدلو په اعتبار سره [د مشتري] "امانت ايښوول" صحيح دي.

**اللغات:** ﴿لا يجتزئ﴾ د افتعال له بابه د نفي صيغه ده: کافي کېدل، ﴿استبراء﴾ د استفعال مصدر دی: له "براء" څخه مشتق دی، د مينځې له رانيولو څخه وروسته پر مشتري واجب وي چي ديوه حيض تر تېرېدلو پوري به د مينځې سره وطي نه کوي د دې لپاره چي معلومه سي چي د مينځې په نس کي د بائع حمل نسته، همدې ته استبراء وايي، او استبراء د ملکيت بدلېدلو (انتقال الملک) په وخت کي واجبيږي (يعني کله چي مينځه له يوه ملکيت څخه بل ملکيت ته نقل سي، نو استبراء لازميږي)، د استبراء لغوي معنیٰ ده: (د رحم) د فراغت او پاکوالي طلب کول (چي رحم فارغ او پاک دی، که نه؟)، ﴿مُشتراة﴾ د افتعال له بابه د اسم مفعول مؤنث صيغه ده: رانيول سوې مينځه، ﴿أودع﴾ د افعال ماضي ده: امانت ايښوول، په امانت ورکول (د امانت په توګه ورکول).

**تشريح**: مخکي موږ وويل چي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د پورتنۍ مسئلې تولـه اووه (٧) مثالونه (مسئلې) ذکر کړي دي (کوم چي پر مخکني اُصول متفرع دي، يعني هغه اُصول کوم چي د امام صاحب او صاحبينو په مينځ کي مختلف فيه وو)، او له هغوی څخه دوه په تېر عبارت کي ذکر سول او درې په دغه عبارت کي ذکر سوي دي:

③... که يو سړي په خيار شرط سره يوه مينځه رانيسي (يعني تر رانيولو وروسته درې ورځي خيار شرط واخلي)، او بيا د خيار په مودت کي مينځې ته حيض راسي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا حيض په استبراء کيّ کافي نه دی (يعني دا حيض له استبراء څخه کفايت نه کوي) بلکي لـه نوي (را روان) حيض څخه پر مشتري استبراء واجب ده؛ ځکه چي د استبراء د وجوب سبب د ملکيت تجدد او انتقال (انتقال الملک) دی، او تاسي ته معلومه ده چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مشتري د خيار په مودت کي د مبيع نه مالک کيږي، لهذا کله چي هغه د مبيع (مينځې) مالک نه سو، نو د خيار په مودت کي راتلونکی حيض د هغه په ملکيت کي نه راغلی، حالانکي د استبراء لپاره ضروري دي چي د مشتري په ملکيت کي مينځې ته حيض راسي، او دلته لـه ملکيت بدلېدلو (انتقال الملک) څخه مخکي مينځې ته حيض راغلی دی، نو ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله پـه نېز دا حيض لـه استبراء څخه کفايت نه کوي.

او څرنګه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د خيار په مودت کي د مشتري لپاره ملکيت ثابتيږي (يعني د هغه په ملکيت کي مبيع داخليږي)، نو ځکه د دوی په نېز دا حيض د مشتري وطرف ته له ملکيت بدلېدلو څخه وروسته راغلی (يعني تر رانيولو وروسته د صاحبينو په نېز سملستي د بائع له طرف څخه د مشتري وطرف ته ملکيت بدل سو، او تر ملکيت بدلېدلو وروسته [د مشتري په ملکيت کي] مينځې ته حيض راغلی)، او استبراء هم لـه ملکيت بدلېدلو (انتقال الملک) څخه وروسته مطلوب وي، او انتقال الملک دلته موجود دی، نو ځکه د صاحبينو په نېز دغه حيض په استبراء کي کافي دی او د نوي حيض ضرورت نسته.

ولو ردت إلخ: د دې حاصل دا دی چي څرنګه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د خيار په مودت کي د مشتري ملکيت نه ثابتيږي (يعني د هغه په ملکيت کي مبيع [مينځه] نه داخليږي)، نو اوس که هغه په دې مودت کي مينځه بائع ته واپس کړي، نو ښکاره خبره ده چي د ملکيت نه بدلېدلو (عدم انتقال الملک) په وجه به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر بائع استبراء واجب نه وي؛ ځکه چي د استبراء د وجوب سبب د ملکيت بدلېدل او د ملکيت تجدد دی، او هغه دلته نسته، لهذا کله چي (د امام صاحب په نېز) ملکيت بدل نه سو، نو استبراء به هم واجب نه وي.

او څرنګه چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د خيار په موده کې د مشتري ملکيت ثابتيږي، نو ځکه که مشتري تر قبضه کولو وروسته د خيار په موده کې مينځه بائع ته واپس کړي، نو پر بائع به استبراء واجب وي؛ ځکه چې د استبراء د وجوب سبب د ملکيت بدليدل (انتقال الملک) دی او هغه دلته موجود سو. صاحب دهدايې د "بَعْدَ الْقَبْضِ" په قيد سره دې ته اشاره کړې ده چې که قبل القبض مينځه واپس کړی سي (يعني مشتري پر مينځې قبضه نه وکړي بلکې هغه د بائع په قبضه کې وي او مشتري ووايي چې زه يې نه غواړم، بلکې زما له طرفه دا بيع رد ده)، نو که څه هم په دې صورت کې هم (د صاحبينو په نېز) انتقال الملک موجود سو، خو بيا به هم استحساناً په دې صورت کې استبراء واجب نه وي.

④... څلورم مثال دا دی چې که يو څوک خپله منکوحه ښځه (کوم چې د ده له نکاح څخه حامله وي، او د بل چا مينځه وي) په خيارِ شرط سره رانيسي (يعني درې ورځې خيارِ شرط واخلي)، او بيا د خيار په موده کې مينځه بچی وزېږوي، نو څرنګه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د خيار په موده کې د مشتري (خاوند) لپاره ملکيت ثابت نه سو، نو ښکاره خبره ده چې دا بچی به د منکوحه مينځې وي، نه د مملوکه مينځې (ځکه چې مينځه د هغه په ملکيت کې راغلې نه ده)، او که له منکوحه مينځې څخه بچی پيداسي نو هغه اُمِ ولد نه ګرځي (يعني هغې ته اُمِ ولد نه ويل کيږي)، نو ځکه به دا مينځه هم د مشتري (خاوند) ام ولد نه وي.

او څرنګه چې د صاحبينو په نېز د خيار په موده کې د مشتري لپاره ملکيت ثابت سو، نو ځکه به د دوی په نېز د کوچني پيدايښت (د مشتري) په نکاح کې نه وي، بلکې (د هغه) په ملکيت کې به وي (يعني دا بچی به د مملوکه مينځې وي، ځکه چې نکاح خو د دوی په نېز مخکې لا [محض په عقد سره] فاسده سوه)، او که له مملوکه مينځې څخه بچی پيدا سي نو هغه اُمِ ولد ګرځي، نو ځکه به په دې صورت کې دا مينځه د مشتري اُمِ ولد وي.

⑤... پنځم مثال دا دی چې که يو څوک په خيارِ شرط سره مينځه رانيسي او د بائع په اجازت سره پر هغې قبضه وکړي، او بيا د خيار په موده کې هغه سړی دغه مينځه بائع ته په امانت ورکړي، او په دې دوران کې مينځه هلاکه سي، نو څرنګه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د خيار په موده کې د مشتري ملکيت ثابت نه سو، او پر مينځې صرف د هغه قبضه وه (يعني مينځه صرف د هغه په قبضه کې وه، په ملکيت کې يې نه وه)، او په امانت ورکولو سره د هغه قبضه هم ختمه سوه، ځکه د عدم الملک (نه ملکيت) په وجه خو بالکل د مشتري "امانت ايښول" صحيح نه وو (يعني کله چې د امام صاحب په نېز

مشتري د خيار په موده کې د مبيع مالک نه سو، نو د هغه لپاره دا بالکل صحيح نه وه چې مينځه يې بل چا (بائع) ته په امانت ورکړه)، لهذا کله چې د مشتري ملکيت هم نسته او د هغه قبضه هم ختمه سوه، نو دا د قبل القبض مبيع هلاکېدلو په څېر سو (يعني لکه يو څوک چې يو شی رانيسي او بيا تر قبضه کولو مخکې هغه [د بائع په قبضه کې] هلاک سي)، او د قبل القبض مبيع هلاکېدلو په صورت کې د بائع مال هلاکيږي، نه د مشتري، لهذا کله چې دلته د بائع سره د بائع خپل مال هلاک سوی دی او په هغه کې د مشتري د عمل هيڅ دخل نسته، نو ځکه پر مشتري به ضمان او تاوان واجب نه وي.

او څرنګه چې د صاحبينو په نېز مشتري د خيار په موده کې د مبيع مالک سو، نو ځکه د هغه "امانت ايښول" به صحيح وي (يعني د صاحبينو په نېز د هغه دا کار صحيح وی چې مينځه يې بائع ته په امانت ورکړه)، او که چيري مبيع د مُودَع په قبضه کې هلاکه سي (يعني چا ته چې مبيع په امانت ورکول سوې وي. که د هغه په قبضه کې مبيع هلاکه سي)، نو هغه د مُودِع (امانت ورکونکي) په قبضه کې هلاک شمارل کيږي (يعني په دې صورت کې د مبيع هلاکت د مُودِع (کوم چې دلته مشتری دی) له قبضې څخه شمارل کيږي)، ګواکې مبيع د مشتري په قبضه کې هلاکه سوه، او د مشتري په قبضه کې د مبيع هلاکېدلو په صورت کې خيار ساقطيږي او بيع لازم او نافذ ګرځي، او کله چې بيع لازم سي نو ثمن واجبيږي، نو ځکه دلته به هم پر مشتري د ثمن ضمان واجب وي.

## د پورتني أصول نور تفريعات

وَمِنْهَا: لَوْكَانَ الْمُشْتَرِيْ عَبْدًا مَأْذُوْنًا لَهُ او له هغه مثالونو څخه يو مثال دا دی: چې که مشتري مأذون لهٗ غلام وي فَأَبْرَأَهُ الْبَائِعُ مِنَ الثَّمَنِ فِي الْمُدَّةِ بيا بائع د خيار په موده کې هغه له ثمن [قيمت] څخه بري کړي بَقِيَ عَلٰى خِيَارِهٖ عِنْدَهٗ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه پر خپل خيار باقي پاتيږي لِأَنَّ الرَّدَّ امْتِنَاعٌ عَنِ التَّمَلُّكِ ځکه چې [په دې صورت کې د مبيع] واپس کول له مالک جوړېدلو څخه منع کېدل دي وَالْمَأْذُوْنُ لَهٗ يَلِيْهِ او مأذون لهٗ غلام د دې ولايت لري [يعني هغه ته د دې حق سته] وَعِنْدَهُمَا بَطَلَ خِيَارُهٗ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغه خيار باطليږي لِأَنَّهٗ لَمَّا مَلَكَهٗ ځکه کله چې هغه د مبيع مالک سو كَانَ الرَّدُّ مِنْهُ تَمْلِيْكًا بِغَيْرِ عِوَضٍ نو د هغه له طرفه [د مبيع] واپس کول به تمليک بلا عوض وي [يعني د هغه لپاره به د مبيع واپس کول داسي وي لکه بائع چې بېله عوضه (مفت) د هغه مبيع مالک جوړ کړي] وَهُوَلَيْسَ مِنْ أَهْلِهٖ او هغه د دې اهل نه دی [چې بېله عوض بل څوک

مالک جوړ کړي] وَمِنْهَا: إِذَا اشْتَرَى ذِمِّيٌّ مِنْ ذِمِّيٍّ خَمْرًا عَلَى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ او له هغوی څخه يو مثال دا دی: چې که يو ذمي له بل ذمي څخه شراب رانيسي. پر دې شرط چې هغه ته به اختيار وي ايعني درې ورځې خيار شرط واخلي] ثُمَّ أَسْلَمَ بيا اسلام راوړي بَطَلَ الْخِيَارُ عِنْدَهُمَا نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز [د هغه] خيار باطليږي لِأَنَّهُ مَلَكَهَا ځکه چې هغه د شرابو مالک سو فَلَا يَمْلِكُ رَدَّهَا وَهُوَ مُسْلِمٌ لهذا اوس به د مسلمان والي په حالت کي هغه د شرابو د واپس کولو ملکيت [حق] نه لري ايعني اوس به هغه د اسلام په حالت کي بل څوک (بائع) د دې شرابو مالک کولای نه سي] وَعِنْدَهُ يَبْطُلُ الْبَيْعُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز بيع باطليږي لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهَا ځکه چې [د هغه په نيز] مشتري د شرابو مالک جوړ نه سو فَلَا يَتَمَلَّكُهَا بِإِسْقَاطِ الْخِيَارِ بَعْدَهُ وَهُوَ مُسْلِمٌ لهذا تر مسلمان والي وروسته به اوس د خيار په ساقطولو سره هغه د شرابو مالک کېدای نه سي [ځکه چې مسلمان نه خپله د شرابو مالک کېدای سي او نه بل څوک د شرابو مالک جوړولای سي]

**اللغات:** ﴿مأذون﴾ کوم غلام ته چې خپل مالک د تجارت اجازه ورکړې وي هغه ته مأذون لهُ غلام وايي. ﴿أبرأ﴾ د افعال ماضي ده: بري کول (مراد ځني معافول [بخښل] دي). ﴿يليه﴾ د ضرب مضارع ده: هغه د دې ولايت لري (يعني مأذون لهُ ته د دې ولايت او حق سته).

**تشريح:** صاحب د کتاب په دې عبارت کي پر مخکني مختلف فيه أصول باندي دوه نور متفرع مثالونه (مسئلې) ذکر کوي (او همدا له هغه اوو مثالونو څخه آخري دوه دي):

⑥... ومنها لو كان المشتري عبداً: د شپږم مثال (مسئلې) مدار پر يو بل أصول دی:

**أصول:** دا دی چې مأذون لهُ غلام د يو شي له مفت (بېله عوضه) اخيستلو څخه انکار کولای سي، لېکن که هغه د يو شي مالک سي نو بيا بل څوک بېله عوضه د هغه شي مالک نه سي جوړولای (يعني مفت يې نه سي ورکولای). ځکه چې دا شی اوس د هغه د مالک په ملکيت کي دی. (يعني کوم غلام ته چې خپل مالک اجازه ورکړې وي. که هغه ته يو څوک مفت شی ورکول وغواړي. نو ده ته دا حق سته چې د هغه شي له اخيستلو څخه انکار وکړي او بېله عوضه د شي مالک جوړ نه سي. ځکه چې په دې سره مالک ته هيڅ نقصان نه رسيږي. لېکن که د مأذون لهُ غلام په ملکيت کي يو شی راسي. نو بيا مأذون لهُ غلام هغه شی مفت [بېله عوضه] چا ته نه سي ورکولای. ځکه کله چې ده په ملکيت کي شی راغلی نو دا شی د مالک [مولیٰ] سو. او غلام بېله عوضه د خپل مالک شی بل چا ته نه سي ورکولای. ځکه چې په دې سره مالک ته نقصان رسيږي).

**صورت د مسئلې:** دا دی که مأذون لهُ غلام يو شی رانيسي او درې ورځې خيار شرط واخلي، بيا بائع د خيار په موده (درې ورځو) کي دا غلام له ثمن څخه بري کړي، يعني د هغه شي قيمت ورمعاف

کړي او مفت يې ورکړي، نو آيا د دې غلام خيار پاتې کيږي، که نه؟ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه خيار پاتې کيږي، يعني هغه ته اوس هم دا حق ستهٔ چې مبيع (هغه شی) مفت نه واخلي او د خيار شرط په وجه يې بائع ته واپس کړي؛ ځکه چې هغه (د امام صاحب په نيز) د مبيع مالک سوی نه دی، لهذا کله چې هغه د مبيع مالک نه سو نو د هغه مالک (مولیٰ) هم د مبيع مالک نه سو، لهذا اوس که غلام هغه شی بائع ته واپس کړي نو خپل مالک ته يې هيڅ نقصان نه ورسوی (بلکي غلام د خپل ذاتي غيرت پر بناء د بائع له مفت شي او احسان څخه انکار وکړی، او له مفت مالک جوړېدلو څخه منع سو) او هغه ته د دې حق ستهٔ.

(الرد امتناع عن التملك: يعني بائع ته د مبيع واپس کولو مطلب دا دی چې غلام له [مفت] مالک جوړېدلو څخه منع سو، يعني هغه دا نه غواړي چې مفت او بېله عوضه د مبيع مالک سي، او مأذون لهٗ غلام ته د دې حق ستهٔ)

او د صاحبينو په نيز د هغه خيار ساقطيږي، ځکه چې د خيار په مودت کي هغه د مبيع مالک سو، نو ځکه د هغه مالک (مولیٰ) هم د مبيع مالک سو، نو اوس که غلام د بائع احسان ردّ کړي او مبيع بائع ته واپس کړي، نو ګواکي بېله عوضه يې بائع ته د خپل مولیٰ شی ورکړی (يعني بېله عوضه يې بائع د هغه شي مالک جوړ کړی)، او غلام د "تمليک بلا عوض" اهل نه دی، يعني د دې اهل نه دی چې بېله عوضه بل چا ته د خپل مولیٰ شی ورکړي او د هغه مالک يې جوړ کړي (ځکه چې دا تبرّع ده، او غلام ته د تبرّع اجازه نستهٔ)، نو ځکه به د غلام خيار ساقطيږي؛ او هغه ته به د مبيع واپس کولو حق نه وي.

⑦... ومنها إذا اشترى ذمي إلخ: اووم مثال (مسئله) هم پر يو أصول مبني ده:

**أصول**: دا دی چې مسلمان د شرابو مالک کېدای نه سي (يعني مسلمان د اسلام په حالت کي د شرابو مالک نه سي جوړېدای)، او نه مسلمان بل څوک د شرابو مالک جوړولای سي؛ ځکه چې شراب د مسلمان په حق کي حرام دي.

**صورت د مسئلې**: دا دی که يو ذمي له بل ذمي څخه شراب رانيسي او درې ورځي خيارِ شرط واخلي، بيا د خيار په مودت کي مشتري ذمي اسلام راوړي، نو څرنګه چې د صاحبينو په نيز هغه د خيار په مودت کي د شرابو مالک سو، لهذا اوس هغه بائع ته دا شراب نه سي واپس کولای (يعني داسي نه سي کولای چې خيار ساقط کړې او شراب بائع ته واپس کړي)؛ ځکه چې لوړ أصول ذکر سو چې مسلمان بل څوک د شرابو مالک کولای نه سي (يعني هغه ته دا اجازه نستهٔ چې بل څوک د شرابو مالک جوړ کړي)، نو ځکه به اوس خيارِ شرط ختميږي او بيع به پوره کيږي، او شراب به د مشتري سره پاتې کيږي.

او د امام صاحب په نيز دا بيع باطليږي، ځکه چي د هغه په نيز د خيار په مودت کي (د ذمي والي په حالت کي) مشتري د شرابو مالک نه سو، او که اوس (تر مسلمان والي وروسته) هغه خيار ساقط کړي نو د دې مطلب دا دی چي هغه د مالک جوړېدلو او بيع نافذېدلو لپاره داسي کوي (يعني اوس د خيار ساقطولو مطلب دا دی چي هغه غواړي چي د شرابو مالک سي او بيع نافذ سي)، حال دا چي اوس د اسلام راوړلو په وجه هغه د شرابو مالک کېداى هم نه سي (ځکه چي اسلام د شرابو له تملک (مالک جوړېدلو) او تمليک (مالک جوړولو) دواړو څخه مانع دى). نو ځکه به بيع باطليږي، او شراب به د بائع وطرف ته ځي. (أثمار الهدايه ج:٨، ص:٩٧)

## د صاحبُ الخيار (خيار لرونكي) لپاره د خپل ملګري په ناموجوديت کي د بيع فسخ کولو او نافذلو حکم

قَالَ: وَمَنْ شُرِطَ لَهُ الْخِيَارُ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او د چا لپاره چي خيار شرط ثابت وي [يعني چا چي خيار شرط اخيستى وي] فَلَهُ أَنْ يَفْسَخَ فِي الْمُدَّةِ وَلَهُ أَنْ يُجِيزَ نو د هغه لپاره دا جائز دي چي د خيار په مودت کي بيع فسخ کړي او د هغه لپاره دا [هم] جائز دي چي د بيع اجازت ورکړي [يعني بيع نافذ کړي] فَإِنْ أَجَازَهُ بِغَيْرِ حَضْرَةِ صَاحِبِهِ نو که چيري هغه د خپل ملګري په ناحاضر والي [نا موجوديت] کي بيع نافذ کړي جَازَ نو جائز دي وَإِنْ فَسَخَ او که چيري [د هغه په ناموجوديت کي] بيع فسخ کړي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْآخَرُ حَاضِرًا مګر دا چي بل عاقد [يعني ملګرى] حاضر وي [نو بيا جائز دي] عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز [يعني دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دى] وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ❁: يَجُوزُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز دي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دى وَالشَّرْطُ هُوَ الْعِلْمُ او شرط علم [د فسخ] دى [يعني شرط په فسخ خبرېدل دي، نه د ملګري حاضرېدل] وَإِنَّمَا كَنَّى بِالْحَضْرَةِ عَنْهُ او امام قدوري په حاضرېدلو سره کنايتا علم [خبرېدل] مراد کړي دي لَهُ: أَنَّهُ مُسَلَّطٌ عَلَى الْفَسْخِ مِنْ جِهَةِ صَاحِبِهِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي هغه [صاحبُ الخيار] د خپل ملګري له طرفه پر فسخ کولو مسلط دى [يعني د خپل ملګري له طرفه د بيع پر فسخ کولو ګومارل

---

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله بعد تفصيل المسئلة: والحاصل قياسان تعارضا: قياس أبي يوسف رَحِمَهُ الله على تصرف الوكيل وقياسهما على عزل الوكيل، ثم في قياسهما أمور طردية لا معنى لها (فتح القدير ج:٥، ص:٥١٢)، وكذا قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله:... ورجّح قوله في الفتح، نهر (ج:٤، ص:٦١)، وكذا في التبيين (ج:٤، ص:١٨). [القول الراجح ج:٢، ص:١٧]

سوى دى] فَلَا يَتَوَقَّفُ عَلٰى عِلْمِهِ كَالْإِجَازَةِ نو ځکه به فسخ کول د هغه پر علم [خبرېدلو] نه موقوف کيږي، لکه څرنګه چې اجازت دی [يعني لکه څرنګه چې د بيع نافذول د ملګري پر علم نه موقوف کيږي] وَلِهٰذَا لَا يُشْتَرَطُ رِضَاهُ او له همدې وجهې د هغه [يعني د ملګري] رضا شرط نه ده وَصَارَ كَالْوَكِيلِ بِالْبَيْعِ او دا د بيع د وکيل جوړولو په څېر سو وَلَهُمَا: أَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِي حَقِّ الْغَيْرِ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې فسخ کول د بل چا [ملګري] په حق کې تصرف کول دي [يعني که صاحبُ الخيار د خپل ملګري په ناموجوديت کې عقد فسخ کړي نو دا د هغه په حق کې تصرف کوي] وَهُوَ الْعَقْدُ بِالرَّفْعِ او هغه د عقد ختمول دي [يعني هغه تصرف دا دی چې صاحبُ الخيار لازم سوی عقد ختموي] وَلَا يَعْرَى عَنِ الْمَضَرَّةِ او دا له ضرر [نقصان] څخه خالي نه دي لِأَنَّهُ عَسَاهُ يَعْتَمِدُ تَمَامَ الْبَيْعِ السَّابِقِ فَيَتَصَرَّفُ فِيهِ ځکه ممکنه ده چې هغه [ملګری] د مخکنۍ بيع پر پوره والي اعتماد وکړي نو په هغه کې به تصرف وکړي فَتَلْزَمُهُ غَرَامَةُ الْقِيمَةِ بِالْهَلَاكِ فِيمَا إِذَا كَانَ الْخِيَارُ لِلْبَائِعِ نو پر هغه به [د مبيع] د هلاکېدلو په وجه د قيمت تاوان لازم سي [دا] په هغه صورت کې کله چې خيار د بائع لپاره وي أَوْ لَا يَطْلُبُ لِسِلْعَتِهِ مُشْتَرِيًا فِيمَا إِذَا كَانَ الْخِيَارُ لِلْمُشْتَرِي يا د خپل سامان لپاره به د دويم مشتري تلاش نه کوي په هغه صورت کې کله چې خيار د مشتري لپاره وي وَهٰذَا نَوْعُ ضَرَرٍ او دا يو ډول نقصان دی فَيَتَوَقَّفُ عَلٰى عِلْمِهِ نو ځکه به فسخ کول د هغه [ملګري] پر علم موقوف کيږي وَصَارَ كَعَزْلِ الْوَكِيلِ او دا د وکيل معزوله کولو په څېر سو بِخِلَافِ الْإِجَازَةِ په خلاف [د بيع] د اجازت لِأَنَّهُ لَا إِلْزَامَ فِيهِ ځکه چې په هغه کې هيڅ الزام نسته [يعني د بيع د اجازت (نافذولو) په صورت کې هيڅ ضرر نه لازميږي] وَلَا نَقُولُ: إِنَّهُ مُسَلَّطٌ او موږ دا نه وايو [يعني موږ دا خبره نه منو]: چې هغه [پر فسخ کولو] مسلط دی وَكَيْفَ يُقَالُ ذٰلِكَ وَصَاحِبُهُ لَا يَمْلِكُ الْفَسْخَ او دا به څرنګه وويل سي حال دا چې د هغه ملګری په خپله د فسخ کولو مالک نه دی وَلَا تَسْلِيطَ فِي غَيْرِ مَا يَمْلِكُهُ الْمُسَلِّطُ او مُسلِّط [مسلط کونکی] چې د کوم شي مالک نه وي، په هغه کې تسليط [مسلط کول] نسته [يعني په هغه سره بل څوک نه سي مسلط کولای. دلته مسلط د "لام" په کسره سره

دی يعني د اسم فاعل صيغه ده] وَلَوْ كَانَ فَسَخَ فِي حَالِ غَيْبَةِ صَاحِبِهِ وَبَلَغَهُ فِي الْمُدَّةِ او که چيري هغه د خپل ملګري د غائبوالي [نا موجوديت] په حالت کي بيع فسخ کړې وي او [بيا] د خيار په مودت کي ملګري ته خبر ورسيږي [يعني په درې ورځو کي دننه د فسخ علم ورته حاصل سي] تَمَّ الْفَسْخُ لِحُصُولِ الْعِلْمِ بِهِ نو د علم حاصلېدلو په وجه به فسخ پوره کيږي وَلَوْ بَلَغَهُ بَعْدَ مُضِيِّ الْمُدَّةِ او که تر مودت تېرېدلو وروسته هغه ته خبر ورسيږي تَمَّ الْعَقْدُ بِمُضِيِّ الْمُدَّةِ قَبْلَ الْفَسْخِ نو تر فسخ مخکي د مودت تېرېدلو په وجه به عقد [بيع] پوره کيږي.

**اللغات**: ﴿يُجيز﴾ د افعال مضارع ده: اجازت ورکول (اجازه ورکول)، جائز ګرځول. مراد ځني نافذول دي. ﴿حضرة﴾ حضور (حاضر والی)، موجوديت. ﴿كَنّى﴾ د ماضي صيغه ده. له ضرب او نصر دواړو څخه راځي: کنايه کول (کنايتا مرادول)، د لفظ غير مدلول مرادول (يعني لفظ ذکر کول او په هغه سره د لفظ غير مدلولي معنیٰ مرادول). ﴿عزل﴾ د ضرب مصدر دی: معزوله کول، ګوښه کول. له کار څخه برطرفه کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د صاحب الخيار (من له الخيار) لپاره د خيار په مودت کي دننه د بيع فسخ کول او نافذول دواړه جائز دي. اوس که چيري هغه د خپل ملګري (من له ليس الخيار) په ناموجوديت کي د بيع اجازت ورکړي يعني بيع نافذ کړي نو دا بالاتفاق صحيح دي، لېکن که صاحب الخيار د خپل ملګري په ناموجوديت کي بيع فسخ کړي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا فسخ نه صحيح کيږي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز صحيح کيږي، همدا د امام شافعي او نورو امامانو رَحِمَهُمُ الله قول هم دی، امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د فسخ اصل شرط علم الفسخ (په فسخ خبرېدل) دي. او په متن کي هم له حضور (موجوديت) څخه کنايتا علم مراد سوی دی. (يعني په متن کي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله ويلي دي: "إلا أن يكون الآخر حاضرًا" چي د فسخ په وخت کي به بل عاقد [من ليس له الخيار] حاضر وي نو بيا فسخ جائز ده. د دې مطلب دا دی چي هغه ته به د فسخ علم [خبر] وي. د هغه حاضرېدل ضروري نه دي. يعني که په درې ورځو کي دننه هغه ته د بيع فسخ کېدلو خبر ورسيږي نو همدومره کافي دي. لېکن که چيري هغه په درې ورځو کي په فسخ خبر نه سي نو بيع پوره کيږي او لازميږي).

**د امام ابو يوسف دليل**: دا دی چي "من له الخيار" د خپل ملګري يعني د "من ليس له الخيار" له طرفه د عقد پر فسخ کولو مسلط (ګومارل سوی) دی. او هر هغه کس کوم چي د بل چا له طرفه پر يو

کار مُسلّط وي، د هغه کار په کولو سره پر هغه کس هيڅ مؤاخذه او نيوکه نه وي، او د هغه کار ور ښوول هم پر هغه ضروري نه وي (يعني پر هغه کس دا هم ضروري نه وي چي کوم سړي پر کار مُسلّط کړی وي، هغه په کار کولو خبر کړي)، لهٰذا کله چي په خيار شرط کي د "من ليس له الخيار" له طرفه تسليط على الفسخ موجود دى، نو اوس به د "من له الخيار" فسخ د "من ليس له الخيار" پر علم (خبرېدلو) موقوف نه وي، لکه څرنګه چي ستاسو په نيز هم د "من له الخيار" د بيع اجازت او نافذول د "من ليس له الخيار" پر علم موقوف نه دي، همدارنګه کله چي "من ليس له الخيار" په خيار شرط راضي سو او "من له الخيار" ته يې د بيع د نافذولو او فسخ کولو حق ورکړی، نو اوس به نه د "من له الخيار" نافذول د "من ليس له الخيار" پر علم موقوف وي او نه د هغه فسخ، او همدې ته تسليط وايي، او د تسليط په صورت کي معاملات د مُسَلِّط (مُسلّط کونکي) پر علم نه موقوف کيږي، لهٰذا دا فسخ به هم د هغه پر علم نه موقوف کيږي، همدا وجه ده چي فسخ هم د "من ليس له الخيار" پر رضا (راضي کېدلو) نه موقوف کيږي، يعني که هغه راضي وي او که نه وي، په هر صورت کي فسخ نافذيږي.

او دا داسي ده لکه د بيع لپاره وکيل جوړول، يعني لکه څرنګه چي يو سړی بل څوک د خپل ځان لپاره د بيع وکيل جوړ کړي، نو هغه وکيل ته د هر ډول تصرف اختيار وي، او د هغه يو فعل هم د مؤکل (وکيل جوړونکي) پر علم موقوف نه وي، همداسي کله چي "من له الخيار" ته هم د خپل ملګري (من ليس له الخيار) له طرفه د بيع نافذولو او فسخ کولو (دواړو) قدرت حاصل دی، نو ښکاره خبره ده چي اوس به نه د هغه اجازت (نافذول) د ملګري پر علم موقوف وي او نه د هغه فسخ.

**د طرفينو دليل**: دا دی چي د "من له الخيار" لپاره عقد فسخ کول د خپل ملګري (من ليس له الخيار) په حق کي تصرف کول دي، ځکه کله چي د هغه د ملګري لپاره خيار ثابت نه دی، نو عقد د هغه په حق کي لازم دی، لهٰذا اوس که "من له الخيار" عقد فسخ کړي، نو د بل چا (خپل ملګري) حق به د هغه له اجازت څخه بغير فسخ سي او د هغه په حق کي به بغير له اجازته تصرف وسي، حال دا چي د "لا يجوز التصرف في ملك الغير بغير إذنه" په قاعده سره فقهاؤ داسي تصرفات بالکل ممنوع او ناجائز ګرځولي دي.

ولا يعرىٰ عن المضرة إلخ: او بل دا چي د "من ليس له الخيار" فسخ د هغه د ملګري لپاره مضر هم ده، برابره ده "من له الخيار" مشتري وي او که بائع وي؛ ځکه که چيري "من له الخيار" بائع وي (يعني بائع خيار شرط اخيستی وي)، نو ځيني وخت داسي کيږي چي مشتري د عقد د پوره کېدلو په ګومان سره په مبيع کي تصرف وکړي (يعني د مشتري دا ګومان سي چي درې ورځي تيري سوي دي او تر اوسه د بائع له طرفه

هيڅ خبر هم راغلى نه دى، نو ډېره ممکنه ده چې بيع پوره ده يعني بائع په بيع راضي دى، نو په دې ګومان سره مشتري په مبيع کې تصرف وکړي)، او د هغه دا تصرف د مبيع هلاکېدلو سبب وګرځي او مبيع هلاکه سي، حال دا چې بائع بيع فسخ کړې وي، نو نتيجه دا راووځي چې پر مشتري د مبيع قيمت (بازاري رېټ) لازم سي، او کله دا قيمت له ثمن څخه ډېر زيات وي، نو ښکاره خبره ده چې له ثمن څخه زيات قيمت ورکول د هغه په حق کې مضر (نقصان مند) دي.

او که "من له الخيار" مشتري وي نو په دې صورت کې بائع ته نقصان رسيږي؛ ځکه چې هغه د عقد پوره کېدلو په ګومان سره په انتظار کښيني (يعني تر دريو ورځو وروسته د هغه دا ګومان سي چې زما مبيع مشتري رانيولې او بيع پوره سوه) او د دغه ګومان په وجه هغه د خپل مبيع لپاره د بل مشتري تلاش نه کوي، حال دا چې ځيني وخت د هغه مبيع له مخکني قيمت څخه په ګران قيمت خرڅيږي (کوم چې تر مخکني قيمت دوچنده زيات وي)، يا کله مبيع داسي وي چې د هغې د خرڅلاو مودت مختصر وي (يعني صرف په يوه موسم کې خرڅيږي او په بل وخت کې داسي څوک نه پيدا کيږي چې هغه رانيسي) او په دې سره بائع ته نقصان ورسيږي، خلاصه دا چې د "من له الخيار" لپاره د خپل ملګري له علم او خبرېدلو څخه بغير عقد فسخ کول د ضرر او نقصان سبب دى، او د فقه اُصول دا دى چې "لَا ضَرَرَ وَلَا ضِرَارَ" يعني (په معامله کې) نقصان زغمل او بل چا ته نقصان ورکول صحيح نه دي، لهذا دلته به هم د "من له الخيار" لپاره د "من ليس له الخيار" له اجازت څخه بغير عقد فسخ کول او هغه ته نقصان رسول صحيح نه وي.

او دا داسي ده لکه وکيل معزوله کول، يعني څرنګه چې د مؤکل (وکيل جوړونکي) لپاره ضروري دي چې وکيل تر معزوله کولو مخکې په عزل خبر کړي، د دې لپاره چې هغه د ناخبرتيا په وجه خپل ځان ته نقصان نه ورسوي، همداسي "من له الخيار" ته پکار دي چې خپل ملګري ته د بيع فسخ کولو خبر ورکړي، د دې لپاره چې هغه له ضرر او نقصان څخه خوندي سي (او لکه څرنګه چې وکيل په عزل خبر نه کړي نو هغه نه معزوله کيږي، همداسي که خپل ملګری په فسخ خبر نه کړي، نو بيع به نه فسخ کيږي).

بخلاف الإجازة إلخ: په دې عبارت سره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي چې د "من له الخيار" اجازت ورکول يعني بيع نافذول په دې وجه صحيح دي چې د بيع په نافذولو کې د هغه ملګري (من ليس له الخيار) ته هيڅ نقصان نه رسيږي، نو ځکه په دې صورت کې د هغه علم (خبرېدل) ضروري نه دي، او په دې صورت کې "من ليس له الخيار" ته ځکه نقصان نه رسيږي چې د هغه په حق کې خو عقد لازم وي (ځکه چې محض په عقد کولو سره د هغه په حق کې عقد لازميږي) او تر

دې وروسته "من له الخيار" د عقد اجازت ورکوي او هغه نافذوي. نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي د "من ليس له الخيار" هيڅ نقصان نسته (بلکي که هغه بائع وي. نو په دې کي د هغه سراسر ګټه ده. چي د هغه مطلب مبيع خرڅول وو او هغه خرڅه سوه). نو ځکه به په دې صورت کي د "من ليس الخيار" علم ضروري نه وي. او پر دې باندي د فسخ والا صورت قياسول صحيح نه دي، ځکه چي په هغه کي د "من ليس له الخيار" نقصان دی.

ولا نقول إلخ: امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په خپل دليل کي وفرمايل چي "من له الخيار" د خپل ملګري له طرفه د عقد پر فسخ کولو مسلط دی. په دې عبارت سره د هغه جواب ورکوي فرمايي چي ستاسي دا خبره موږ نه منو او دا صحيح نه ده؛ ځکه چي د "من ليس له الخيار" په حق کي خو محض په عقد کولو سره عقد لازم سي او هغه په خپله د فسخ کولو مالک نه وي. نو بل څوک به څنګه پر فسخ مسلط کړي !؟. ځکه چي د تسليط لپاره ملکيت ضروري دی. لېکن "من ليس له الخيار" مخکي لا خپل ملکيت د لاسه ورکړی دی. لهذا ستاسي دا خبره چي هغه "من له الخيار" پر فسخ مسلط کړی دی صحيح نه ده.

ولو کان إلخ: فرمايي که چيري "من له الخيار" د خپل ملګري له علم (خبرېدلو) څخه بغير عقد فسخ کړي. لېکن بيا د خيار په مودت کي دننه هغه ته خبر ورسيږي. نو داسي فسخ صحيح کيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي مقصد يعني د فسخ علم حاصل سو.

ها! که چيري "من له الخيار" ته د خيار تر مؤدت وروسته خبر ورسيږي. نو په دې صورت کي عقد پوره کيږي او (پر من له الخيار) لازميږي؛ ځکه چي عقد صرف د خيار تر مودته پوري محدود وو. او کله چي د خيار تر مودت وروسته هغه په فسخ خبر سو. نو د دې فسخ اعتبار نه کيږي (يعني داسي فسخ غير معتبره او غير صحيح ده). نو ځکه به عقد پوره او لازم وي. ځکه محض د مودت په تېرېدلو سره هم عقد پوره کيږي او لازم ګرځي.

## د صاحبُ الخيار د مرګ په صورت کي د خيار باطلېدلو حکم

قَالَ: وَإِذَا مَاتَ مَنْ لَهُ الْخِيَارُ فرمايي: او که چيري "من له الخيار" مړ سي [يعني د چا لپاره چي خيارِ شرط ثابت وي که چيري هغه مړ سي] بَطَلَ خِيَارُهُ وَلَمْ يَنْتَقِلْ إِلَى وَرَثَتِهِ نو د هغه خيار باطليږي او د هغه د وارثانو وطرف ته نه نقل کيږي [يعني په خيارِ شرط کي ميراث نه جاري کيږي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُورَثُ عَنْهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مړي له طرفه هغه ميراث کيږي [يعني ميراث پکښي جاري

کيږي] لِأَنَّهُ حَقٌّ لَازِمٌ ثَابِتٌ فِي الْبَيْعِ ځکه چي خيار شرط په بيع کي يو لازم او ثابت سوی حق دی فَيَجْرِي فِيهِ الْإِرْثُ كَخِيَارِ الْعَيْبِ وَالتَّعْيِيْنِ لهذا د خيار عيب او خيار تعيين په څېر به په هغه کي هم وراثت جاري کيږي. وَلَنَا: أَنَّ الْخِيَارَ لَيْسَ إِلَّا مَشِيئَةً وَإِرَادَةً وَلَا يُتَصَوَّرُ انْتِقَالُهُ زموږ دليل دا دی: چي خيار صرف خوښي او ارادې ته وايي او د هغه د نقل کېدلو تصور [هم] نه سي کېدای [يعني مشيت او اراده انتقال نه قبلوي] وَالْإِرْثُ فِيمَا يَقْبَلُ الِانْتِقَالَ او وراثت په هغه شيانو کي جاري کيږي کوم چي انتقال [نقل کېدل] قبلوي بِخِلَافِ خِيَارِ الْعَيْبِ په خلاف د خيار عيب لِأَنَّ الْمُوَرِّثَ اسْتَحَقَّ الْمَبِيعَ سَلِيمًا ځکه چي مورث د صحيح سالم مبيع مستحق وو فَكَذَا الْوَارِثُ نو همداسي به وارث هم [د صحيح سالم مبيع مستحق] وي فَأَمَّا نَفْسُ الْخِيَارِ لَا يُوَرَّثُ لېکن خودي خيار نه ميراث کيږي [يعني خودي په خيار عيب کي ميراث نه جاري کيږي] وَخِيَارُ التَّعْيِيْنِ يَثْبُتُ لِلْوَارِثِ ابْتِدَاءً او خيار تعيين له شروع څخه د وارث لپاره ثابتيږي لِاخْتِلَاطِ مِلْكِهِ بِمِلْكِ الْغَيْرِ ځکه چي د هغه ملکيت د بل چا د ملکيت سره ګډ وي لَا أَنْ يُوَرَّثَ الْخِيَارُ او داسي نه ده چي هغه ميراث کيږي [يعني خبره داسي نه ده کوم چي امام چي شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په هغه کي ميراث جاري کيږي].

**اللغات:** ﴿ورثة﴾ جمع د وَارِثٌ ده: ميراث خور (هغه کس کوم چي د مړي په ميراث کي حق لري)، ﴿خيار عيب﴾ د دې تعريف مخکي تېر سو چي که په مبيع کي عيب وي نو مشتري ته دا حق سته چي د عيب په وجه بائع ته مبيع واپس کړي، ﴿خيار تعيين﴾ دې ته وايي چي که بائع په دوو شيانو کي بېله تعيينه يو شی پر مشتري خرڅ کړي (مثلا ورته وو وايي چي زه په دغه دوو غلامانو کي يو غلام پر تا خرڅوم)، نو اوس په هغه دوو کي چي د يوه د انتخابولو اختيار مشتري ته حاصليږي، هغه ته خيار تعيين وايي، ﴿مشيئة﴾ خوښه، خوښي، غوښتنه، ﴿مُورث﴾ د فاعل صيغه ده. له افعال او تفعيل دواړو بابونو څخه راتلای سي: ميراث پرېښوونکی. هغه مړی کوم چي خپل تر شا ميراث پرېږدي، د کوم کس په مال کي چي ميراث جاري کيږي هغه ته مورث وايي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د احنافو په نېز په خيار شرط کي وراثت نه جاري کيږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په هغه کي هم وراثت جاري کيږي، همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک دی. لهذا که "من له الخيار" مړ سي، نو زموږ په نېز د هغه خيار باطليږي او د وارثانو وطرف ته نه نقل

کيږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د "من له الخيار" په مرګ سره د هغه خيار نه باطليږي او د وار ثانو وطرف ته نقل کيږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي خيار يو لازم او ثابت شُده (ثابت سوی) حق دی، او په دا ټول حقوقو کي وراثت جاري کيږي، لهذا په دې کي به هم وراثت جاري کيږي او دا خيار به د وار ثانو وطرف ته نقل کيږي؛ خيار شرط په دې توګه لازم حق دی چي شريعت په بيع کي هغه مشروع کړی دی او که عاقد هغه باطلول وغواړي نو داسي نه سي کولای، او هغه په دې توګه ثابت دی چي په عاقدَينو کي هريوه ته د دې اختيار سته چي په بيع کي خيار شرط ولګوي، نو کله چي په دغه خيار کي لزوم او ثبوت دواړه خبري سته، نو څرنګه چي په نورو لازمو او ثابت شُده شيانو کي وراثت جاري کيږي، همداسي به په دې کي هم وراثت جاري کيږي. او بل دا چي خيار عيب او خيار تعيين کوم چي په بيع کي مشروع دي په هغوی کي هم وراثت جاري کيږي، لهذا په دې غريب کي وراثت نه جاري کول ښه نه ښکاري، نو ځکه موږ د خيار عيب او خيار تعيين په څېر په دې کي هم د وراثت جاري کېدلو (او وارث ته د خيار نقل کېدلو) فيصله کوو.

**زموږ دليل**: دا دی چي خيار شرط مشيت او ارادې ته وايي يعني خيار د دې لپاره اخيستل کيږي چي انسان خپل مشيت (خوښه) او اراده کما حقه استعمال کړي، او مشيت او اراده د عرض له قبيلې څخه دي او غير حسي شيان دي، او عرض او غير حسي شی انتقال نه قبلوي (خلاصه دا چي په وراثت کي عرض نه منتقل کيږي، بلکي عَين او حسي شی منتقل کيږي)، لهذا کله چي خيار عرض او غير حسي شی دی، نو ځکه به په هغه کي وراثت نه جاري کيږي.

بخلاف إلخ: له دې ځايه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل (کوم چي قياس دی) جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي په خيار عيب کي وارث لره د مبيع واپس کولو اختيار په دې وجه نه وي چي د هغه وطرف ته د مورث خيار نقل کيږي، بلکي په خيار عيب کي د مبيع واپس کولو اختيار په دې وجه وي چي مورث د صحيح سالم او د بې عيبه مبيع مستحق وو، نو په دې وجه کله چي د هغه تر مرګ وروسته وار ثانو ته مبيع نقل کيږي، نو هغوی به هم د صحيح سالم او غير معيوب مبيع حقداره وي، برابره ده مورث د دې شرط لګولی وي، که نه وي.

وخيار التعيين إلخ: په دې سره هم د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي په خيار تعيين کي هم د وارث خيار بعينه د مورث خيار نه وي، بلکي د مورث خيار د هغه په مرګ سره سمدستي باطليږي، خو څرنګه چي مبيع د وارث وطرف ته نقل کيږي او په هغه مبيع کي د بل

چا (يعني د بائع) ملکيت هم شامل وي، نو ځکه د مبيع د جهالت ختمولو لپاره (او د بل چا له ملکيت څخه د خپلې مبيع د جلا کولو لپاره) وارث ته د مبيع د تعيين اختيار ورکول کيږي، او داسې نه ده چې په هغه کې ميراث جاري کيږي او هغه د وارث وطرف ته نقل کيږي؛ ځکه مخکې دا خبره ذکر سوه چې خيار د عرض له قبيلې څخه دی، او په اعراضو کې وراثت نه جاري کيږي، وراثت خو په اعيانو کې جاري کيږي.

## د بل چا (غير عاقد) لپاره خيارِ شرط لګول

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى شَيْئًا وَشَرَطَ الْخِيَارَ لِغَيْرِهٖ فرمايي: او څوک چې يو شی رانيسي او له خپل ځان څخه بغير د بل چا لپاره خيارِ شرط ولګوي فَأَيُّهُمَا أَجَازَ نو په دوی چې کوم يو هم [د بيع] اجازت ورکړي [يعني بيع نافذ کړي] جَازَ نو هغه به جائز کيږي [نافذيږي] وَأَيُّهُمَا نَقَضَ او کوم يو چې هم بيع فسخ کړي اِنْتَقَضَ نو هغه به فسخ کيږي وَأَصْلُ هٰذَا أَنَّ اشْتِرَاطَ الْخِيَارِ لِغَيْرِهٖ جَائِزٌ اِسْتِحْسَانًا او د دې [مسئلې] بنياد دا دی چې د بل چا لپاره خيارِ شرط لګول استحساناً جائز دي [او دا زموږ د احنافو مذهب هم دی ما سوا له امام زفر رَحِمَهُ الله څخه] وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَجُوْزُ او قياساً جائز نه دي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ ❁ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْخِيَارَ مِنْ مَوَاجِبِ الْعَقْدِ وَأَحْكَامِهٖ ځکه چې خيار د عقد د لوازماتو او د هغه د احکامو څخه دی فَلَا يَجُوْزُ اشْتِرَاطُهٗ لِغَيْرِهٖ لهذا د بل چا لپاره به د هغه شرط لګول جائز نه وي کَاشْتِرَاطِ الثَّمَنِ عَلٰى غَيْرِ الْمُشْتَرِيْ لکه بغير له مشتري څخه پر بل چا د ثمن [اداء کولو] شرط لګول [چې جائز نه دي] وَلَنَا: أَنَّ الْخِيَارَ لِغَيْرِ الْعَاقِدِ لَا يَثْبُتُ إِلَّا بِطَرِيْقِ النِّيَابَةِ عَنِ الْعَاقِدِ زموږ دليل دا دی: چې د غير عاقد لپاره خيار صرف د نائب والي په توګه ثابتيږي فَيُقَدَّرُ الْخِيَارُ لَهُ اقْتِضَاءً لهذا اول به اقتضاءً په خپله د عاقد [مشتري] لپاره خيار ثابتيږي ثُمَّ يُجْعَلُ هُوَ نَائِبًا عَنْهُ تَصْحِيْحًا لِتَصَرُّفِهٖ بيا به غير عاقد د هغه نائب ګرځول کيږي، د دې لپاره چې د هغه [مشتري] تصرف صحيح کړي وَعِنْدَ ذٰلِكَ يَكُوْنُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْخِيَارُ نو په دې وخت کې به په دوی کې د هر يوه لپاره خيار وي

---

❁ القول الراجح: قول الجمهور (يعني اشتراط الخيار لغير العاقد جائز)، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: ولو شرط المشتري الخيار لغيره، صح استحساناً وثبت الخيار لهما...(رد المحتار ج:۴، ص:۶۴)، وكذا قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: وبقولنا قال مالک واحمد رَحِمَهُمَا الله، وهو الأصح من مذهب الشافعي وزفر رَحِمَهُمَا الله(فتح القدير ج:۵، ص:۵۱۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۸]

فَأَيُّهُمَا أَجَازَ لهذا په دوی کي چي کوم يو هم د بيع اجازت ورکړي [يعني بيع نافذ کړي] جَازَ نو هغه به جائز کيږي وَأَيُّهُمَا نَقَضَ او کوم يو چي هم بيع فسخ کړي اِنْتَقَضَ نو هغه به فسخ کيږي وَلَوْ أَجَازَ أَحَدُهُمَا وَفَسَخَ الْآخَرُ او که په دوی کي يو د بيع اجازت ورکړي او بل يو بيع فسخ کړي يُعْتَبَرُ السابِقُ نو د مخکني يوه اعتبار به کيږي [يعني کوم چي په فعل کي اول وي او تر بل يوه مخکي فعل صادر کړي نو د هغه فعل به معتبر وي، برابره ده فعل اجازت (د بيع نفاذ) وي او که فسخ وي] لِوُجُودِهِ فِي زَمَانٍ لَا يُزَاحِمُهُ فِيهِ غَيْرُهُ ځکه چي هغه [سابق] په داسي زمانه کي موجود دی چي په هغه کي بل يو د ده مزاحم نه دی.

**اللغات**: ﴿أجاز﴾ د افعال ماضي ده: اجازت ورکول، جائز ګرځول، کله چي دا باب د بيع سره ذکر سي نو د "نافذولو" معنیٰ ورکوي، يعني بيع نافذول (مصباح اللغات)، ﴿نقض﴾ د نصر ماضي ده: ماتول، فسخ کول، ﴿عاقد﴾ بيع کونکی، معامله کونکی، ﴿غير عاقد﴾ بيع نه کونکی، مشتري چي د چا لپاره خيارِ شرط لګولی وي هغه ته غير قاعد وايي، ﴿سابق﴾ مخکنی (اول).

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که زيد مثلاً د خپل ورور خالد لپاره کپړه (ټوکر) رانيسي او د هغه لپاره خيارِ شرط ولګوي (يعني د خپل ورور لپاره خيارِ شرط واخلي چي که هغه په درې ورځو کي کپړه خوښه کړي او بيع نافذ کړيْ نو بيع به نافذيږي او که فسخ يې کړي نو هغه به فسخ کيږي)، نو څرنګه چي دغه خيار د خالد لپاره ثابتيږي، همداسي به د اصل مشتري يعني د زيد لپاره هم ثابتيږي او په دوی دواړو کي به هر يوه ته د بيع د نافذلو او فسخ کولو اختيار وي، همدا استحسان دی او دا د احنافو مذهب هم دی (ما سوا له امام زفر رَحِمَهُ الله څخه)، لېکن د قياس تقاضا دا ده چي د غير عاقد لپاره دي خيارِ شرط صحيح نه وي (چي هغه دلته خالد دی)، او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک دی؛ ځکه کله چي خيار په بيع کي شرط کړی سي نو هغه د بيع د لوازماتو او احکامو څخه يو لازم او يو حکم وګرځي (مطلب دا چي خيارِ شرط د بيع د عقد يو لازمي حکم دی)، او له عاقدَينو څخه بغير د بل چا لپاره د بيع په عقد کي دخل کول د عقد له مقتضا څخه خلاف دي، نو ځکه د قياس له نظره دا صحيح نه دي، او څرنګه چي پر غير عاقد او غير مشتري د ثمن اداء کولو شرط لګول جائز نه دي، همداسي به د غير عاقد لپاره خيارِ شرط لګول هم جائز نه وي.

ولنا أن الخيار إلخ: زموږ دليل دا دى چي د خيار شرط مشروعيت پر ضرورت موقوف دى (يعني خيار شرط د ضرورت پر بناء مشروع سوى دى)، او ځيني وخت مشتري نوى او ساده (بې تجربه) وي او په بيع او سودا نه پوهيږي، نو ځکه داسي کس ته مجبوره وي کوم چي په سودا پوهيږي چي هغه صحيح معامله وکړي او د مشتري لپاره صحيح او ښه شى خوښ کړي، نو د دغه ضرورت او مجبورۍ په خاطر د استحسان په توګه د غير عاقد (خالد) لپاره خيار شرط جائز ګرځول سوى دى، کنې د هغه لپاره اصالةً د خيار ثابتېدلو هيڅ صورت نسته، ځکه چي هغه يو اجنبي يعني له عقد څخه وتلى کس دى، لهذا د خيار شرط په باره کي به هغه د مشتري نائب منل کيږي، يعني مشتري به اولاً په خپل تصرف (سودا) کي د خپل ځان لپاره د خيار شرط لګونکى وي او بيا به هغه د خپل تصرف (سودا) د سمون او ښه والي لپاره د هغه بل چا (خالد) نائب جوړونکي وي چي تصرف او معامله صحيح او سمه سي.

لنډه دا چي کله د دواړو لپاره خيار ثابت دى، نو اوس چي په دوى کي کوم يو هم بيع نافذ کړي نو بيع به نافذيږي، او چي بيع فسخ کړي نو هغه به فسخ کيږي، او که يو بيع نافذ کړي او بل يې فسخ کړي، نو د کوم يوه فعل چي مخکي وي د هغه اعتبار به کيږي (يعني کوم يو چي په فعل کي اول وي د هغه فعل به معتبر وي)، برابره ده هغه اصل وي او که نائب وي، او برابره ده د بيع نفاذ اول وي او که فسخ (يعني برابره ده اول يو بيع فسخ کړي او که يې نافذ کړي)؛ ځکه کوم يو چي هم اول د خيار پر بناء فيصله وکړي، ښکاره خبره ده چي د هغه فيصلې په وخت کي دويم يو د هغه مزاحم (مقابل) نه وو، او د مزاحمت د نشتوالي په صورت کي (يعني کله چي مزاحمت نه وي نو) تصرفات موجوديږي او ثابتيږي، لهذا کله چي دلته هم د اول يوه هيڅ مزاحم نسته او د هغه د فيصله کولو په وخت کي د دويم يوه فيصله د هغه د فيصلې سره نه ټکر کيږي، نو ځکه به د هغه اول يوه (سابق) فيصله معتبره وي او د هغه خيار به نافذيږي، برابره ده هغه فسخ وي او که نفاذ (اجازت) وي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَلَوْ خَرَجَ الْكَلَامَانِ مِنْهُمَا مَعًا او که د [اصل او نائب] دواړو کلام [تصرف] يو ځاى صادر سي يُعْتَبَرُ تَصَرُّفُ الْعَاقِدِ فِي رِوَايَةٍ وَتَصَرُّفُ الْفَاسِخِ فِي أُخْرَى نو په يوه روايت کي د عقد کونکي د تصرف اعتبار کيږي او په بل روايت کي د فسخ کونکي د تصرف اعتبار کيږي [يعني په يوه روايت کي د عاقد تصرف معتبر دى او په دويم روايت کي د فاسخ تصرف معتبر دى] وَجْهُ الْأَوَّلِ: أَنَّ تَصَرُّفَ الْعَاقِدِ أَقْوَى د اول

روايت دليل دا دی: چې د عاقد تصرف زيات قوي دی لِأَنَّ النَّائِبَ يَسْتَفِيْدُ الْوِلَايَةَ مِنْهُ ځکه چې نائب له هغه [عاقد] څخه ولايت حاصلوي وَجْهُ الثَّانِيْ: أَنَّ الْفَسْخَ أَقْوٰى د دويم روايت دليل دا دی: چې فسخ زياته قوي ده لِأَنَّ الْمُجَازَ يَلْحَقُهُ الْفَسْخُ ځکه چې نافذ کړی سوي عقد ته فسخ لاحقېدای سي [يعني کوم عقد چې نافذ کړی سي نو هغه فسخ کېدای سي] وَالْمَفْسُوْخُ لَا تَلْحَقُهُ الْإِجَازَةُ [لېکن] فسخ کړی سوي عقد ته اجازت [نفاذ] نه سي لاحقېدای [يعني فسخ کړی سوی عقد نه سي نافذېدای] وَلَنَا مَلَكَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا التَّصَرُّفَ او کله چې [دلته] په دوی دواړو کي هريو د تصرف مالک دی رَجَّحْنَا بِحَالِ التَّصَرُّفِ نو موږ د تصرف حالت ته ترجيح ورکړه وَقِيْلَ: الْأَوَّلُ قَوْلُ مُحَمَّدٍ وَالثَّانِيْ قَوْلُ أَبِيْ يُوْسُفَ[1] او ويل سوي دي: چې اول روايت [چي د عاقد د تصرف اعتبار کيږي] د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی او دويم روايت [چي د فاسخ د تصرف اعتبار کيږي] د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول دی وَاسْتُخْرِجَ ذٰلِكَ مِمَّا إِذَا بَاعَ الْوَكِيلُ مِنْ رَجُلٍ وَالْمُوَكِّلُ مِنْ غَيْرِهِ مَعًا او دا مسئله له هغه صورت څخه مستنبط ده چي کله وکيل پر يوه سړي او مؤکل پر بل سړي پر يوه ځای [معا] شی خرڅ کړي [يعني چي کله وکيل او مؤکل دواړه يوځای خرڅلاو وکړي] فَمُحَمَّدٌ يَعْتَبِرُ فِيهِ تَصَرُّفَ الْمُوَكِّلِ نو امام محمد رَحِمَهُ الله په دې صورت کي د مؤکل د تصرف اعتبار کوي [يعني د مؤکل تصرف معتبر گڼي] وَأَبُوْيُوْسُفَ يَعْتَبِرُهُمَا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د [مؤکل او وکيل] دواړو د تصرف اعتبار کوي.

**اللغات**: ﴿عاقد﴾ معامله کونکی، بيع کونکی، ﴿فاسخ﴾ فسخ کونکی، بيع ماتونکی، ﴿يستفيد﴾ د استفعال مضارع ده: حاصلول، فايده حاصلول (ترلاسه کول)، ﴿مُجاز﴾ د افعال له بابه د اسم مفعول صيغه ده: اجازت ورکول سوی (جائز کړی سوی)، نافذ کړی سوی، ﴿باع﴾ د ضرب ماضي ده: خرڅول.

---

[1] القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله (الرواية الثانية)، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: ولو كانا معاً فالفسخ أحق في الأصح.. (الدر المختار ج:۴، ص:۶۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۸]

**تشريح : صورت د مسئلې :** دا دی که څوک يو شی رانيسي او د بل چا لپاره خيـار شرط ولګوي (مثلا زيد د خالد لپاره کپړه رانيسي او د هغه لپاره خيار شرط ولګوي)، او بيا د خيار په مودت کي دواړه يو ځای خپل خيار استعمال کړي (او دواړه يو ځای د بيع د اجازت او فسخ خبره وکړي) يعني يو د بيع اجازت ورکړي هغه نافذ کړي، او بل يو هغه فسخ کړي، نو اوس به د کوم يوه تصرف معتبر وي؟

په دې باره کي دوه روايتونه دي او دواړه د مبسوط دي: ① ... د کتاب البيوع روايت دا دی چي د اصل (عاقد) تصرف معتبر دی، برابره ده هغه بيع نافذ کړي او که فسخ يې کړي، ② ...او په مبسوط کي د کتاب المأذون روايت دا دی چي د عقد د فسخ کونکي تصرف معتبر دی، برابره ده هغه اصل (عاقد) وي او که نائب (غير عاقد) وي.

**دليل :** د اول روايت دليل دا دی چي اصل (عاقد) مالک او مختار وي، او نائب د ولايت په حاصلولو کي هغه ته محتاج وي (يعني نائب د تصرف ولايت له هغه شخصه حاصلوي او په دې هکله نائب هغه ته محتاج او مجبوره وي)، او مختار له محتاج شخصه مخکي وي، لهذا دلته به هم عاقد له نائب شخصه مخکي وي او د هغه تصرف به معتبر وي.

او د دويم روايت دليل دا دی چي د عقد فسخ کول زيات قوي دي؛ ځکه د کوم عقد چي اجازت ورکول سوی وي (يعني نافذ سوی وي) هغه فسخ کېدای سي، لېکن کوم عقد چي فسخ کړی سوی وي نو هغه بالکل نه سي نافذېدای (د مثال په توګه که چيري "من له الخيار" د بيع اجازت ورکړي يعني بيع نافذ کړي، لېکن تر نافذېدلو وروسته د بائع په قبضه کي مبيع هلاکه سي، نو دلته که څه هم بيع نافذ سوې ده لېکن د مبيع هلاکېدلو په وجه "من له الخيار" بيرته هغه فسخ کولای سي، د دې په خلاف که چيري بيع فسخ سي مثلاً د "من له الخيار" تر اجازت ورکولو او نافذولو مخکي مبيع هلاکه سي [نو بنکاره خبره ده چي بيع فسخ کيږي]. نو اوس که "من له الخيار" سل واره اجازت ورکړي او بيع نافذ کړي، بيا هم دا فسخ سوې بيع نافذېدای نه سي)، نو معلومه سوه چي فسخ پر اجازت (نفاذ) باندي جاري کيږي، لېکن اجازت پر فسخ باندي نه جاري کيږي، او پر يو شي باندي جاري کېدونکی شی د هغه بل شي په مقابله کي زيات قوي (اقوی) وي، او څرنګه چي په دې مسئله کي دواړه د تصرف مالکان دي، نو ځکه به د تصرف حالت ته کتل کيږي (چي د کوم يوه تصرف قوي دی او د کوم يوه د ضعيف دی) او د هغه مطابق به فيصله به کيږي، او د فسخ تصرف د حالت په اعتبار سره زيات قوي دی، نو ځکه به صرف هغه ته فوقيت او تقدم (وړانديتوب) حاصل وي او د عقد د فسخ کونکي تصرف به معتبر وي، برابره ده هغه اصل (عاقد) وي او که نائب وي.

وقيل الأول إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله وايي: ځيني حضرات فرمايي چي په لوړ ذکر سوي اختلاف کي اول روايت د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی او د دويم روايت د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول

دي او اصل اختلاف د وكيل او د مؤكل په يو ځاى خرڅولو كي دى. صورت د مسئلې دا دى كه يو سړى بل څوک د خپل شي د خرڅولو وكيل جوړ كړي. او بيا وكيل او مؤكل دواړه يو ځاى هغه شى خرڅ كړي (يعني په يوه وخت كي وكيل هغه شى پريوه سړي خرڅ كړي او مؤكل يې پر بل سړي خرڅ كړي). نو په دې صورت كي امام محمد رَحِمَهُ الله د مؤكل د تصرف اعتبار كوي؛ ځكه چي مؤكل اصل مالک او اصل عاقد دى. او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د دواړو د حالة التصرف اعتبار كوي او دواړه په مبيع كي مشترک ګرځوي (ځكه د دواړو د تصرف حالت يو ډول دى. ځكه چي دواړو خرڅلاو كړى دى). نو ځيني حضرات فرمايي چي همداسي په اول روايت كي امام محمد رَحِمَهُ الله د اصل (عاقد) د تصرف اعتبار كوي، او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د دواړو د حالة التصرف اعتبار كوي. خلاصه دا چي اصل اختلاف خو په "وكيل بالبيع" كي دى. او بيا زموږ د پورتنۍ مسئلې اختلاف د هغه "وكيل بالبيع" له مسئلې څخه مستنبط سوى دى او پر هغه مبني دى.

## د دوو شيانو د بيع كولو په وخت كي د يوه لپاره خيار شرط اخيستل

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ عَبْدَيْنِ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ فِي أَحَدِهِمَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ [امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي]: او څوک چي دوه غلامان د زرو درهمو په عوض كي پر دې شرط زانيسي چي هغه ته به په يوه غلام كي درې ورځي اختيار [خيار شرط] وي فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو [په دې صورت كي] بيع فاسده ده وَإِنْ بَاعَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِخَمْسِمِائَةٍ عَلَى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ فِي أَحَدِهِمَا بِعَيْنِهِ [لېكن] كه له هغوى څخه هر يو په پنځه سوه درهمه پر دې شرط رانيسي چي هغه ته به په يوه مُعين غلام كي درې ورځي اختيار وي جَازَ الْبَيْعُ نو بيع جائز ده وَالْمَسْأَلَةُ عَلَى أَرْبَعَةِ أَوْجُهٍ او دا مسئله پر څلورو صورتونو ده [يعني د دې مسئلې څلور صورتونه دي] أَحَدُهَا: أَنْ لَا يُفَصِّلَ الثَّمَنَ وَلَا يُعَيِّنَ الَّذِي فِيهِ الْخِيَارُ يو صورت دا دى: چي بائع نه د ثمن تفصيل وكړي [يعني نه ثمن جلا بيان كړي] او نه د هغه غلام تعيين وكړي چي په هغه كي خيار وي [يعني نه خيار والا غلام مُتعين وكړي] وَهُوَ الْوَجْهُ الْأَوَّلُ فِي الْكِتَابِ او دا په متن كي اول [ذكر سوى] صورت دى وَفَسَادُهُ لِجَهَالَةِ الثَّمَنِ وَالْمَبِيعِ او دا صورت د ثمن او مبيع [دواړو] د مجهول والي په وجه فاسد دى لِأَنَّ الَّذِي فِيهِ الْخِيَارُ كَالْخَارِجِ عَنِ الْعَقْدِ ځكه په كوم غلام كي چي خيار دى هغه له عقد څخه د وتلي په څېر دى [يعني ګواكي هغه له عقد څخه وتلى دى] إِذِ الْعَقْدُ مَعَ الْخِيَارِ لَا يَنْعَقِدُ فِي

حَقِّ الْحُكْمِ ځکه عقد د خيار سره د حکم په حق کي نه منعقد کيږي فَبَقِيَ الدَّاخِلُ فِيهِ أَحَدُهُمَا لهذا په عقد [بيع] کي صرف يو غلام داخل پاته سو وَهُوَ غَيْرُ مَعْلُومٍ او هغه يو، نا معلوم دی [نو ځکه به بيع فاسديږي] وَالْوَجْهُ الثَّانِي: أَنْ يُفَصِّلَ الثَّمَنَ وَيُعَيِّنَ الَّذِي فِيهِ الْخِيَارُ او دويم صورت دا دی: چي بائع ثمن هم جلا بيان کړي او د هغه غلام تعيين هم وکړي چي په هغه کي خيار وي وَهُوَ الْمَذْكُورُ ثَانِيًا فِي الْكِتَابِ او دا په متن کي پر دويم نمبر ذکر سوی صورت دی وَإِنَّمَا جَازَ لِأَنَّ الْمَبِيعَ مَعْلُومٌ وَالثَّمَنَ مَعْلُومٌ او په دې صورت کي ځکه بيع جائز ده چي مبيع هم معلوم دی او ثمن هم معلوم دی وَقَبُولُ الْعَقْدِ فِي الَّذِي فِيهِ الْخِيَارُ وَإِنْ كَانَ شَرْطًا لِانْعِقَادِهِ فِي الْآخَرِ او په خيار والا غلام کي د عقد قبلول که څه هم په دويم غلام کي د عقد منعقد کېدلو لپاره شرط دي [يعني که څه هم دلته په "من فيه الخيار غلام" کي د عقد قبلول په دويم غلام (مبيع) کي د بيع د جواز لپاره شرط دي، کوم چي يو فاسد شرط دی] وَلَكِنَّ هَذَا غَيْرُ مُفْسِدٍ لِلْعَقْدِ لېکن دا شرط عقد لره فاسدونکی نه دی لِكَوْنِهِ مَحَلًّا لِلْبَيْعِ ځکه چي هغه [من فيه الخيار غلام] د بيع محل دی كَمَا إِذَا جَمَعَ بَيْنَ قِنٍّ وَمُدَبَّرٍ لکه په هغه صورت کي [چي عقد نه فاسديږي] کله چي يو څوک خالص غلام او مدبر غلام [په يوه بيع کي] سره جمع کړي وَالثَّالِثُ: أَنْ يُفَصِّلَ وَلَا يُعَيِّنَ او دريم صورت دا دی: چي ثمن جلا بيان کړي لېکن [د من فيه الخيار غلام] تعيين نه وکړي وَالرَّابِعُ: أَنْ يُعَيِّنَ وَلَا يُفَصِّلَ او څلورم صورت دا دی: چي [د من فيه الخيار] تعيين وکړي لېکن ثمن جلا بيان نه کړي وَالْعَقْدُ فَاسِدٌ فِي الْوَجْهَيْنِ او عقد په دې دواړو صورتونو کي فاسد دی إِمَّا لِجَهَالَةِ الْمَبِيعِ أَوْ لِجَهَالَةِ الثَّمَنِ يا خو د مبيع د مجهول والي په وجه يا د ثمن د مجهول والي په وجه.

**اللغات:** ﴿أوْجُه﴾ جمع د "وَجْهٌ" ده: شکل، صورت، طريقه. ﴿قِن﴾ خالص غلام، چي په هغه کي د آزادۍ هيڅ شائبه راغلې نه وي، ﴿مُدبّر﴾ هغه غلام چي خپل مالک ورته ويلي وي: زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې (د احنافو په نيز په مدبر کي د آزادۍ شائبه راغلې وي، نو ځکه د هغه خرڅول جائز نه دي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د زرو درهمو په عوض کي دوه غلامان خرڅ کړي او له هغوی څخه په يوه غلام کي درې ورځي خيار واخلي، نو په دې صورت کي بيع فاسده ده، او که د

دواړو غلامانو ثمن هم جلا بيان کړي او د "من فيه الخيار" تعيين هم وکړي (يعني په کوم غلام کي چي درې ورځي خيار واخلي هغه هم معلوم کړي)، نو په دې صورت کي بيع صحيح ده.

په اصل کي د دې مسئلې ټوله څلور صورتونه دي چي له هغوی څخه په يوه صورت کي بيع جائز ده او په پاته صورتونو کي بيع فاسده ده.

(۱)... په متن کي ذکر سوی اول صورت دا دی چي بائع دوه غلامان د زرو درهمو په عوض کي خرڅ کړي او په يوه غلام کي درې ورځي خيار واخلي، لېکن په هغوی کي د هر يوه ثمن جلا بيان نه کړي او نه خيار والا غلام مُتعيّن کړي، نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي مبيع او ثمن دواړه مجهول دي، نو ځکه دا بيع فاسده ده؛ مبيع خو ځکه مجهوله ده چي کله بائع له دواړو غلامانو څخه په يوه غير مُعيّن (نامعلوم) غلام کي خيار شرط ولګوی، نو هغه د "خارج عن العقد" په څېر سو (يعني داسي سو لکه له عقد څخه وتلی غلام)؛ ځکه چي د خيار سره د عقد حکم (يعني د مشتري ملکيت) نه ثابتيږي، يعني د خيار په وجه په هغه (من فيه الخيار) کي د مشتري ملکيت نه ثابتيږي، لهذا کله چي يو غلام له عقد څخه د خارج په څېر سو، نو اوس په بيع کي صرف يو غلام داخل سو، او د "من فيه الخيار" د عدم تعيين په وجه دا معلومه نه ده چي کوم غلام په بيع کي داخل دی (يعني "من فيه الخيار" مُتعيّن او معلوم نه دی نو په دې وجه هغه غلام هم معلوم نه دی کوم چي په بيع کي داخل دی. لنډه دا چي د "من فيه الخيار" د نامعلوم والي په وجه مبيع غلام هم نامعلوم دی)، لهذا مبيع مجهوله سوه. او بائع مطلق د زرو درهمو په عوض کي خرڅلاو کړی دی او د يوه غلام لپاره يې هم جلا ثمن نه دي بيان کړی، نو ښکاره خبره ده چي ثمن هم مجهول دی. او په ثمن او مبيع کي صرف د يوه په جهالت سره هم بيع فاسديږي، نو کله چي دواړه مجهول وي نو په درجه اولیٰ به بيع فاسديږي.

(۲)... په متن کي ذکر سوی دويم صورت دا دی چي بائع د هر غلام ثمن هم جلا بيان کړي، او په کوم غلام کي چي خيار واخلي هغه هم مُتعيّن کړي، مثلاً داسي ووايي چي زه خپل دغه دوه غلامان زيد او خالد هر يو په پنځه، پنځه سوه درهمه مجموعتاً د زرو درهمو په عوض کي خرڅوم او په خالد کي به ما ته درې ورځي اختيار وي، نو فرمايي چي په دې صورت کي بالکل بيع صحيح او جائز ده؛ ځکه کله چي د بائع له طرفه "من فيه الخيار" مُتعيّن سو، نو مبيع غلام (يعني من ليس فيه الخيار) هم معلوم سو. او د هر يوه لپاره د جلا ثمن بيانولو په وجه ثمن هم مُتعيّن سو. لهذا که څه هم "من فيه الخيار" له عقد څخه د خارج په څېر دی، خو د دې باوجود هم عقد صحيح دی؛ ځکه چي ثمن او مبيع دواړه معلوم دي، او د عقد د صحت (صحيح کېدلو) لپاره همدومره علم او خبر کافي دی.

**وقبول العقد في الذي إلخ:** په دې سره د يو مقدر اشکال جواب ورکوي، اشکال دا دی چې کله "من فيه الخيار" غلام حکماً په بيع کې داخل نه دي او مبيع نه دی، او دويم غلام (يعني من ليس فيه الخيار) مبيع دی، نو ګواکې تاسي په مبيع کې د بيع د صحت (صحيح کېدلو) لپاره په غير مبيع کې د عقد قبلول شرط کړل، حال دا چې داسي شرط خو عقد (بيع) فاسدوي، لکه څرنګه چې آزاد او غلام په يوه عقد کې جمع کول او يو ځای خرڅول په دې وجه ناجائز دي چې که آزاد او غلام دواړه يو ځای سره خرڅ کړل سي نو په مبيع (يعني په غلام) کې به د عقد د صحت لپاره په غير مبيع (يعني په آزاد) کې د عقد قبلول شرط وګرځي (يعني هلته په غير مبيع کې د عقد قبلولو د شرط په وجه بيع فاسده او ناجائز ده)، او دا شرط دلته هم موجود دی، لهذا څرنګه چې د آزاد او غلام د جمع کولو په صورت کې بيع فاسديږي، همداسي دلته (په دويم صورت کې) هم بيع فاسدېدل پکار دي، حالانکې دلته تاسو د جواز فتوی ورکړې ده.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې جواب ورکوي فرمايي چې تاسو خو دا خبره وکړه چې "من فيه الخيار" حکماً په بيع کې داخل نه دی، لېکن دې ته خو او ګورئ! چې هغه د بيع محل دی، که نه؟ که تاسو فکر وکړی نو معلومه به سي چې "من فيه الخيار" د بيع محل دی، او کله چې هغه د بيع محل دی، نو صرف د بيع له حکم څخه بغير هغه من کُل وجه په بيع کې داخل دی او مبيع دی، او کله چې هغه مبيع دی، نو ځکه به بيع صحيح او جائز وي او ستاسي دا اشکال به صحيح نه وي چې دلته په مبيع کې د بيع د صحت لپاره په غير مبيع کې د عقد قبلول شرط دي.

او پاته سو آزاد نو هغه خو مطلقاً د بيع محل نه دی، او کله چې هغه د بيع محل نه دی، نو د هغه د مبيع کېدلو هيڅ صورت نه جوړيږي، نو ځکه به هلته په غير مبيع کې د عقد قبلولو د شرط په وجه بيع فاسديږي، لهذا تاسو د هغه پر فساد نور صورتونه مه قياسوئ!.

او په پورتني (دويم) صورت کې د بيع د صحيح کېدلو په هکله زموږ قياس دا دی چې که يو څوک قن (خالص غلام) او مدبر غلام په يوه بيع کې سره جمع کړي، نو صرف په قن غلام کې زموږ په نېز بيع جائز کيږي، او په مدبر غلام کې نه جائز کيږي؛ ځکه چې مدبر انتقال الملک نه قبلوي، خو د دې باوجود هغه د بيع محل دی او په عقد کې داخل دی. نو په دغه صورت کې که څه هم په مدبر کې بيع نافذ نه ده، لېکن بيا هم په قن کې د بيع د صحت لپاره په مدبر کې د بيع قبلول شرط نه دي. همداسي په پورتني (دويم) صورت کې هم په يوه غلام کې د بيع د صحت لپاره په بل غلام کې د بيع قبلول شرط نه دي. نو ځکه به بيع نه فاسديږي.

(۳)... د مسئلې درېيم صورت دا دی چې بائع د هر غلام ثمن جلا بيان کړي، لېکن "من فيه الخيار" مُتعيَن نه کړي، نو په دې صورت کې بيع فاسديږي، ځکه کله چې "من فيه الخيار" مُتعين نه دی، نو ښکاره خبره ده چې مبيع مجهوله ده. او د مبيع د جهالت په وجه عقد فاسديږي.

(۴)... د مسئلې څلورم صورت بالکل د دريم صورت برعکس دی، يعني بائع "من فيه الخيار" مُتعيَن کړي، لېکن د هريوه ثمن جلا بيان نه کړي (يعني د هريوه ثمن مُتعيَن نه کړي)، نو په دې صورت کې هم بيع فاسديږي؛ ځکه دلته که څه هم مبيع يعني "من ليس فيه الخيار" معلوم دی، لېکن د هغه ثمن مُتعيَن نه دی، ځکه چې د "من فيه الخيار" ثمن مُتعيَن نه دی، او مخکې دا خبره ذکر سوه چې د ثمن د جهالت په وجه هم عقد فاسديږي.

﴿د مسئلې ټوله صورتونه (په لنډه توګه)﴾

| شمېره | ثمن متعين وي، يا نه وي | خيار متعين وي، يا نه وي | حکم |
|---|---|---|---|
| (۱) | ثمن مُتعيَن نه وي | خيار هم مُتعيَن نه وي | بيع فاسده ده |
| (۲) | ثمن مُتعيَن وي | خيار هم مُتعيَن وي | بيع جائز ده |
| (۳) | ثمن مُتعيَن وي | خيار مُتعيَن نه وي | بيع فاسده ده |
| (۴) | ثمن مُتعيَن نه وي | خيار مُتعيَن وي | بيع فاسده ده |

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى ثَوْبَيْنِ عَلَى أَنْ يَأْخُذَ أَيَّهُمَا شَاءَ بِعَشَرَةٍ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: او څوک چې دوې کپړې رانيسي پر دې شرط چې کومه يوه د هغه په دواړو کې خوښه سي په لسو درهمو به هغه اخلي وَهُوَ بِالْخِيَارِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ او هغه ته به درې ورځې اختيار وي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا بيع جائز ده وَكَذَا الثَّلَاثَةُ او همدارنګه په دريو کپړو کې [هم داسې بيع جائز ده] فَإِنْ كَانَتْ أَرْبَعَةَ أَثْوَابٍ [لېکن] که کپړې څلور وي فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسده ده [دا استحسان دی او همدا راجح قول دی] وَالْقِيَاسُ: أَنْ يَفْسُدَ الْبَيْعُ فِي الْكُلِّ ۞ او قياس دا دی: چې په ټولو صورتونو کې دې بيع فاسده سي لِجَهَالَةِ الْمَبِيعِ ځکه چې مبيع مجهوله ده وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ او همدا د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله

۞ القو الراجح: قول الجمهور (الاستحسان)، وايضاً العرف والعادة يؤيدان الاستحسان (مفتي غلام قادر النعماني). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۹]

قول دی وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ شَرْعَ الْخِيَارِ لِلْحَاجَةِ إِلَى دَفْعِ الْغَبْنِ لِيَخْتَارَ مَا هُوَ الْأَرْفَقُ وَالْأَوْفَقُ د استحسان دليل دا دی: چې خيار د فرېب [دوکې] د ليرې کولو لپاره مشروع سوی دی، چې صاحب الخيار [من له الخيار] زيات نفع مند او موافق شی اختيار کړي وَالْحَاجَةُ إِلَى هٰذَا النَّوْعِ مِنَ الْبَيْعِ مُتَحَقِّقَةٌ او دا ډول بيع ته ضرورت متحقق دی لِأَنَّهُ يَحْتَاجُ إِلَى اخْتِيَارِ مَنْ يَثِقُ بِهِ ځکه چې [ځيني وخت] مشتري د هغه کس واختيارولو [انتخابولو] ته محتاج وي پر کوم چې مشتري باور لري أَوِ اخْتِيَارِ مَنْ يَشْتَرِيهِ لِأَجْلِهِ يا د هغه کس واختيارولو ته [محتاج وي] چې د هغه لپاره مبيع رانيسي وَلَا يُمْكِنُهُ الْبَائِعُ مِنَ الْحَمْلِ إِلَيْهِ إِلَّا بِالْبَيْعِ او بائع مشتري ته دا قدرت نه ورکوي چې له بيع کولو څخه بغير هغه کس ته مبيع يوسي [يعني ځيني وخت مشتري د باوري او ماهر سړي و اختيار ته يا د چا لپاره چې شی رانيسي د هغه و اختيار ته محتاج وي. لېکن بائع له بيع کولو څخه بغير مشتري ته دا اجازت نه ورکوي چې د هغه وطرف ته شی يوسي] فَكَانَ فِي مَعْنَى مَا وَرَدَ بِهِ الشَّرْعُ لهذا دا [خيار تعيين] هم د هغه خيار په معنیٰ سره سو چې د هغه په باره کې شريعت وارد سوی دی [يعني د خيار شرط په معنیٰ سره سو] غَيْرَ أَنَّ هٰذِهِ الْحَاجَةَ تَنْدَفِعُ بِالثَّلَاثِ مګر دا ضرورت په دريو کپړو سره پوره کيږي لِوُجُودِ الْجَيِّدِ وَالْوَسَطِ وَالرَّدِيءِ فِيهَا ځکه چې [عموما] په دريو کپړو کې ښه او منځنی او خرابه کپړه موجوده وي [يعني غالباً په دريو کپړو کې يوه ښه کپړه وي، بله منځنی وي او بله کمزوري وي] وَالْجَهَالَةُ لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ فِي الثَّلَاثَةِ او د دريو کپړو په صورت کې جهالت هم جنګ ته رسول نه کوي لِتَعْيِينِ مَنْ لَهُ الْخِيَارُ د "من له الخيار" د مُتعينولو په وجه [يعني د چا لپاره چې خيار ثابت دی. هغه ته په پورتني صورت کې د تعيين حق سته چې په دريو کپړو کې يوه کپړه مُتعينه کړي. نو په دې وجه هلته جهالت هم مُفضي الی النزاع نه ګرځي] وَكَذَا فِي الْأَرْبَعِ او همدارنګه په څلورو کپړو کې [جهالت مُفضي الی النزاع نه دی] إِلَّا أَنَّ الْحَاجَةَ إِلَيْهَا غَيْرُ مُتَحَقِّقَةٍ لېکن څلورو کپړو ته ضرورت محتقق نه دی وَالرُّخْصَةُ ثُبُوتُهَا بِالْحَاجَةِ وَكَوْنُ الْجَهَالَةِ غَيْرَ مُفْضِيَةٍ إِلَى الْمُنَازَعَةِ حال دا چې [د خيار تعيين] د رخصت ثبوت د ضرورت پر بناء دی او پر دې بناء دی چې جهالت به مُفضي الی النزاع [جنګ ته رسونکی] نه وي [نو چيري چې دا دواړه (يعني ضرورت او جهالت مُفضي الی النزاع نه کېدل) نه وي بلکې يو وي. هلته به د خيار تعيين او د دغه بيع

رخصت نه ثابتيږي | فَلَا تَثْبُتُ بِأَحَدِهِمَا لهذا په دوی کي به صرف په يوه سره رخصت نه ثابتيږي.

**اللغات**: ﴿شَرْع﴾ د فتح مصدر دی: مشروع کېدل (په شريعت کي جائز کېدل)، مشروع کول. ﴿غبن﴾ دوکه، فريب. ﴿أرفق﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات نرم، زيات نفع مند (فايده من). ﴿أوفق﴾ دا هم د اسم تفضيل صيغه ده: زيات موافق، د حالت سره سم (د حالاتو موافق). ﴿يثق﴾ د ضرب مضارع ده: باور کول، اعتماد کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک له دوو کپړو څخه يا له دريو کپړو څخه يوه نامُتعيّنه کپړه د لسو درهمو په عوض کي رانيسي او په دريو ورځو کي د هغه يوې کپړې د مُتعيّنولو شرط هم ولګوي (يعني که يو سړی بائع ته ووايي چي زه په دغه دوو يا دريو کپړو کي يوه کپړه د لسمو درهمو په عوض کي رانيسم پر دې شرط چي ما ته به درې ورځي اختيار هم وي چي زه دغه دوې يا درې کپړې د ځان سره يووسم او په دوی کي هغه يوه کپړه د ځان لپاره مُتعيّنه او خوښه کړم)، نو استحساناً په دغو دواړو صورتونو کي بيع صحيح ده (يعني هم د دوو کپړو په صورت کي او هم د دريو کپړو په صورت کي، دا د جمهورو قول دی)، ليکن که له څلورو کپړو څخه يوه نامُتعيّنه کپړه رانيسي او پورتنی شرط هم ولګوي، نو بيع فاسده ده. او قياس دا دی چي په دريو سره صورتونو کي بيع فاسده ده (يعني هم د دوو کپړو او دريو کپړو په صورت کي او هم د څلورو کپړو په صورت کي)؛ همدا د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله قول دی.

د قياس دليل (يعني د امام زفر او امام شافعي دليل) دا دی چي مبيع خو په دغه کپړو کي صرف يوه کپړه ده او دا يوه کپړه نامُتعيّنه (نامعلومه) ده، نو ګواکي مبيع مجهوله ده، او څرنګه چي په کپړو کي تفاوت هم وي (يعني يوه کپړه له بلې څخه جلا وي، او پخوا به په کپړو کي لږ تفاوت نه، بلکي زيات تفاوت به وو، ځکه کپړه به په لاسو سره جوړېده، نه په ماشينانو سره)، نو په دې وجه به دا جهالت مُفضِي الى النزاع هم وي (په دې توګه چي مشتري به اعلیٰ او ښه کپړه اخيستل غواړي او بائع به په هغه کپړو کي کمزورې کپړه ورکول غواړي او پر دې به ټينګار کوي)، او هر هغه جهالت کوم چي مُفضِي الى النزاع وي هغه عقد فاسدوي، نو ځکه په دغو ټولو صورتونو کي به عقد فاسديږي.

وجه الاستحسان: د استحسان دليل دا دی چي خيار شرط په دې وجه مشروع سوی دی (يعني خيار شرط ځکه په شريعت کي جائز ګرځول سوی دی) چي انسان د هغه په ذريعه له دوکې او تاوان څخه محفوظ سي او فايده منه او موافقه معامله وکړي، او دا ضرورت ځيني وخت له خيار شرط څخه و خيار تعيين ته تجاوز وکړي (يعني کله ناکله دا ضرورت په خيار شرط سره نه پوره کيږي بلکي خيار تعيين ته ضرورت پيښ

سي)، ځکه چې ځينې وخت مشتري نا تجربکاره وي، په سودا پوره نه پوهيږي. او د ځان لپاره صحيح او فايدمنه فيصله نه سي کولای، نو ځکه هغه دې ته مجبوره وي چې يو ماهر سړي ته مبيع يووسي او په هغه يې مُتعيّنه کړي، يا د چا لپاره چې مبيع رانيسي هغه ته يې ورښکاره کړي او هغه د ځان لپاره صحيح مبيع مُتعيّنه کړي، او بل طرف ته بائع له عقد کولو څخه بغير هغه ته مبيع په لاس نه ورکوي چې د ځان سره يې يووسي، نو ځکه داسي خيار ته ضرورت پيښ سو.

لنډه دا چې څرنګه خيارِ شرط د ضرورت پر بناء مشروع دی، همدارنګه په خيارِ تعيين کي هم ضرورت موجود دی، لهذا کله چې په دواړو کي ضرورت موجود دی نو دواړه به مشروع او جائز وي، او کله چې خيارِ تعيين د ضرورت بناء مشروع دی، نو د "الضرورة تقدر بقدرها" په قاعده سره به دا خيار تر حقيقي ضرورت پوري محدود وي (يعني څومره چې ضرورت وي هغومره به خيارِ تعيين جائز وي)، او حقيقي ضرورت په دريو کپړو سره پوره کيږي؛ ځکه چې عموماً درې کپړې پر جيد، اوسط او ردي باندي مشتملي وي (يعني غالباً په دريو کپړو کي يوه کپړه ښه وي، بله منځنۍ وي او بله څه کمزورې وي، لهذا ماهر او په سودا پوه کس په هغوی کي صحيح او موافقه کپړه مُتعيّنولای سي، او هغه حقيقتاً نورو کپړو ته ضرورت نه لري، لهذا څلورمي کپړې ته ضرورت نه وي، لنډه دا چې صرف په دريو کپړو سره هم د تعيين ضرورت پوره کيږي، او خيارِ تعيين د ضرورت پر بناء مشروع دی نو څومره چې ضرورت وي هغومره به جائز وي)، او د څلورو کپړو څه ضرورت نسته، نو ځکه په څلورو کپړو کي به بيع فاسديږي.

والجهالة إلخ: په دې سره د قياس جواب ورکوي کوم چې د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله قول دی (او هغه دا وو چې په مبيع کي [يعني په دوو يا دريو کپړو کي] جهالت دی او هغه مُفضِي الی النزاع هم دی، نو ځکه په دغو ټولو صورتونو کي به عقد فاسديږي)، د جواب حاصل دا دی چې کله دلته مشتري ته د تعيين اختيار سته، نو اوس به بالکل جهالت مُفضِي الی النزاع نه وي (ځکه جهالت به هلته مُفضِي الی النزاع وای کله چې مشتري ته د تعيين هيڅ اختيار نه وای)، او په داسي جهالت سره عقد نه فاسديږي کوم چې مُفضِي الی النزاع نه وي، لهذا دلته به هم عقد نه فاسديږي.

وكذا إلى الأربع: په دې سره د يو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې څرنګه د دريو کپړو په صورت کي د خيارِ تعيين په وجه جهالت مُفضِي الی النزاع نه دی، همدارنګه کله چې د څلورو کپړو په صورت کي بائع ته خيارِ تعيين وي، نو هلته به هم جهالت مُفضِي الی النزاع نه وي (ځکه جهالت هلته مُفضِي الی النزاع وي کله چې مشتري ته د تعيين اختيار نه وي)، لهذا د څلورو کپړو په صورت کي هم بيع جائز کېدل پکار دي، حال دا چې ستاسو په نېز داسي بيع فاسده او ناجائز ده.

د جواب حاصل دا دی چي د دريو کپړو په صورت کي د دوو علتونو په خاطر د خيار تعيين اجازت (رخصت) ورکول سوی دی او بيع جائز ګرځول سوې ده: ① ضرورت، ② او د جهالت مُفضي الى النزاع نه کېدل. نو چيري چي دغه دوه علتونه موجود وي، هلته به خيار تعيين ثابتيږي او بيع به جائز کيږي، کنې نه به ثابتيږي او بيع به نه جائز کيږي، او دلته يعني د څلورو کپړو په صورت کي صرف يو علت موجود دی او هغه دا چي په دغه صورت کي جهالت د خيار تعيين په وجه مُفضي الى النزاع نه دی، لېکن بل علت (يعني د ضرورت والا علت) دلته نسته؛ ځکه چي د څلورو کپړو هيڅ ضرورت نسته (ځکه کپړې صرف په دريو اقسامو کي منحصر دي)، لنډه دا چي دلته صُرُف يو علت موجود دی او بل موجود نه دی، او حکم هغه وخت ثابتيږي کله چي ټول علتونه موجود سي، نو ځکه د څلورو کپړو په صورت کي به د خيار تعيين اجازت نه وي او داسي بيع به جائز نه وي.

ثُمَّ قِيْلَ: يُشْتَرَطُ أَنْ يَكُونَ فِي هٰذَا الْعَقْدِ خِيَارُ الشَّرْطِ مَعَ خِيَارِ التَّعْيِيْنِ بيا ويل سوي دي: چي دا شرط [او ضروري] دي چي په دغه عقد کي به د خيار تعيين سره خيار شرط هم وي وَهُوَ الْمَذْكُورُ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ او همدا په جامع صغير کي ذکر سوي دي وَقِيْلَ❀: لَا يُشْتَرَطُ او ويل سوي دي [يعني ځيني حضرات فرمايي]: چي دا شرط نه دي [چي د خيار تعيين سره به خيار شرط هم وي] وَهُوَ الْمَذْكُورُ فِي الْجَامِعِ الْكَبِيْرِ او دا بيا په جامع کبير کي ذکر سوي دي فَيَكُونُ ذِكْرُهُ عَلىٰ هٰذَا الِاعْتِبَارِ وِفَاقًا لَا شَرْطًا نو د جامع کبير پر اعتبار به د خيار شرط ذکر په اتفاقي توګه وي، نه د شرط په توګه وَإِذَا لَمْ يَذْكُرْ خِيَارَ الشَّرْطِ او کله چي [عاقد] خيار شرط ذکر نه کړي لَا بُدَّ مِنْ تَوْقِيتِ خِيَارِ التَّعْيِيْنِ بِالثَّلَاثِ عِنْدَهُ نو [په دې صورت کي] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز خيار تعيين په دريو ورځو سره مُتعيّن کول ضروري دي وَبِمُدَّةٍ مَعْلُومَةٍ أَيَّتُهَا كَانَتْ عِنْدَهُمَا [لېکن] د صاحبينو په نېز صرف په يو معلوم مودت سره [د خيار تعيين مُتعيّن کول ضروري دي] هغه که هرڅو مره مودت وي ثُمَّ ذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ: اِشْتَرٰى ثَوْبَيْنِ بيا په ځينو نسخو کي ذکر سوي دي: "اشترى ثوبين" وَفِي بَعْضِهَا: اِشْتَرٰى أَحَدَ الثَّوْبَيْنِ او

---

❀ القول الراجح: هو قول عدم اشتراط خيار الشرط مع خيار التعيين، قال العلامة ابن الهمام: وصححه فخر الاسلام فقال: الصحيح عندنا أنه ليس بشرط. (فتح القدير ج:۵، ص ۵۲۲)، وكذا في رد المحتار (ج:۴، ص:۶۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۰]۔

په ځينو کي ذکر سوي دي: "اشترٰى أحد الثوبين" وَهُوَ الصَّحِيحُ او همدا [دويم عبارت] صحيح دی لِأَنَّ الْمَبِيْعَ فِي الْحَقِيقَةِ أَحَدُهُمَا وَالْآخَرُ أَمَانَةٌ ځکه چي مبيع په حقيقت کي له دواړو کپړو څخه يوه کپړه ده او دويمه کپړه امانت ده وَالْأَوَّلُ تَجَوُّزٌ وَاسْتِعَارَةٌ او اول عبارت [يعني "اشترٰى ثوبين"] د مجاز او استعارې په توګه دی.

**اللغات**: ﴿وفاقا﴾ په اتفاقي توګه، اتفاقي، ﴿توقيت﴾ د تفعيل مصدر دی: وخت متعين کول، وخت ټاکل.

**تشريح**: د دې عبارت حاصل دا دی چي مخکنۍ مسئله (يعني د تېر عبارت د متن مسئله: ومن اشترٰى ثوبين... إلخ) په جامع صغير او جامع کبير دواړو کي امام محمد رَحِمَهُ الله ذکر کړې ده. په جامع صغير کي د خيار تعيين سره د خيار شرط اخيستل (لګول) هم ذکر سوي دي [1] (لکه په متن کي چي هم دا ډول ذکر سوي دي)، نو په دې وجه ځيني حضرات (لکه امام کرخي رَحِمَهُ الله او داسي نور) فرمايي چي په مخکنۍ مسئله کي بيع هغه وخت جائز کېږي کله چي عاقد (مشتري) د خيار تعيين سره خيار شرط هم واخلي (يعني د دريو ورځو شرط هم ولګوي)، لېکن په جامع کبير کي د خيار تعيين سره د خيار شرط اخيستل ضروري نه دي ګڼل سوي. لهذا په متن کي چي کوم درې ورځې خيار شرط ذکر سوی دی هغه په اتفاقي توګه دی د جامع کبير پر اعتبار (يعني د جامع کبير پر اعتبار هغه په متن کي اتفاقاً ذکر سوی دی. خلاصه دا چي د جامع کبير پر اعتبار خيار شرط اخيستل شرط او ضروري نه دي. ځکه چي اتفاقي قيد شرط نه وي)، نو په دې وجه ځيني حضرات (لکه فخر الاسلام بزدوي رَحِمَهُ الله او داسي نور) فرمايي چي په مخکنۍ مسئله کي د خيار تعيين سره د خيار شرط اخيستل شرط او ضروري نه دي.

وإذا لم إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چي که عاقد صرف خيار تعيين ذکر کړي او خيار شرط ذکر نه کړي، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز خيار تعيين په دريو ورځو سره مؤقت کول ضروري دي (يعني په دې صورت کي به مشتري صرف درې ورځي خيار تعيين اخلي. نه زياتي ورځي)؛ ځکه چي امام صاحب رَحِمَهُ الله په ملحق بهٖ يعني په خيار شرط کي هم له دريو ورځو څخه زيات اجازت نه ورکوي. او د صاحبينو په نيز هغه له دريو ورځو څخه زيات هم خيار تعيين اخيستلای سي (يعني عاقدين چي هر څومره موده متعين کړي هغه د صاحبينو په نيز صحيح دی)، ځکه چي دوی په ملحق بهٖ (خيار شرط) کي هم له دريو ورځو څخه زيات اجازت ورکوي.

[1] د جامع صغير عبارت دا دی: رجل اشترٰى أحد الثوبين على أن يأخذ أيهما شاء بعشرة هو بالخيار ثلاثة أيام فهو جائز.. إلخ. جامع صغير، باب في خيار الرؤية... ص: ۳۴۵). په دې عبارت کي ذکر سوي دي چي که مشتري د خيار تعيين سره درې ورځي اختيار (خيار شرط) هم واخلي.....نو داسي بيع جائز ده.

ثم ذكر إلخ: په دې سره د مخکنۍ مسئلې (يعني د متن) د عبارت وضاحت کوي. فرمايي چې د جامع صغير په ځينې نسخو کې "اشترى ثوبين" له "أحد" څخه بغير ذکر سوي دي (يعني په ځينې نسخو کې د دې سره د "أحد" لفظ نه دى ذکر سوى)، او په ځينو نسخو کې "اشترى أحد الثوبين" يعني د "أحد" لفظ ور سره ذکر سوى دى، او همدا دويم عبارت (اشترى أحد الثوبين) صحيح دى؛ ځکه چې مبيع خو په حقيقت کې يوه کپړه ده، دويمه کپړه خو د امانت په توګه ده. نو ځکه دا عبارت زيات صحيح دى، او د "اشترى ثوبين" په صورت کې مجاز او استعاره ده. يعني د کل په ذکر کولو سره جزء مراد سوى دى، او ښکاره خبره ده چې په اول صورت کې د مجاز او استعارې تکلف نسته، نو ځکه هغه زيات صحيح او غوره دى.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

وَلَوْ هَلَكَ أَحَدُهُمَا أَوْ تَعَيَّبَ او که له دواړو کپړو څخه يوه هلاکه سي يا عيبداره سي لَزِمَهُ الْبَيْعُ فِيهِ بِثَمَنِهِ نو په هغه کپړه کي د هغې په ثمن سره بيع لازميږي وَتَعَيَّنَ الْآخَرُ لِلْأَمَانَةِ او دويمه کپړه د امانت لپاره مُتعيّن کيږي لِامْتِنَاعِ الرَّدِّ بِالتَّعَيُّبِ ځکه چي د عيبداره کېدو په وجه [د عيبجني کپړې] واپس کول ناممکن دي وَلَوْ هَلَكَا جَمِيعًا مَعًا او که دواړي کپړې يو ځاى سره هلاکي سي يَلْزَمُهُ نِصْفُ ثَمَنِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو پر مشتري د هري کپړې نصف ثمن لازميږي لِشُيُوعِ الْبَيْعِ وَالْأَمَانَةِ فِيهِمَا ځکه چي [اوس] په دواړو کپړو کي بيع او امانت شايع سو [يعني په دې صورت کي هره کپړه مبيع هم ده او امانت هم ده] وَلَوْ كَانَ فِيهِ خِيَارُ الشَّرْطِ او که په دې عقد کي [د مشتري لپاره] خيارِ شرط هم وي لَهُ أَنْ يَرُدَّهُمَا جَمِيعًا نو مشتري ته دا حق سته چي دواړې کپړې [بائع ته] واپس کړي وَلَوْ مَاتَ مَنْ لَهُ الْخِيَارُ او که چيري هغه کس مړ سي چي د هغه لپاره خيار ثابت وي [يعني که چيري خيار والا مړ سي] فَلِوَارِثِهِ أَنْ يَرُدَّ أَحَدَهُمَا نو د هغه وارث ته دا حق سته چي له دواړو کپړو څخه يوه کپړه واپس کړي لِأَنَّ الْبَاقِيَ خِيَارُ التَّعْيِينِ لِلِاخْتِلَاطِ ځکه چي [د ملکيت] د ګډون په وجه صرف خيارِ تعيين پاته دى وَلِهَذَا لَا يَتَوَقَّتُ فِي حَقِّ الْوَارِثِ او له همدې وجهي د وارث په حق کي وخت [مودت] نه

مُتعين نه کيږي وَأَمَّا خِيَارُ الشَّرْطِ لَا يُورَثُ او کوم چې خيار شرط دی نو هغه نه ميراث کيږي [يعني په هغه کې وراثت نه جاري کيږي] وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او موږ دا [مسئله] مخکې ذکر کړې ده.

**اللغات**: ﴿تعيّب﴾ د تفعّل ماضي ده: عيبي کېدل، عيبداره کېدل (عيبجن کېدل). ﴿شيوع﴾ د ضرب مصدر دی: شايع کېدل، غوړېدل (خپرېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړي د خيار تعيين په توګه دوې کپړې اخيستي وي، بيا د خيار په موده کې له هغوی څخه يوه کپړه هلاکه سي يا په هغې کې يو عيب پيدا سي، نو ښکاره خبره ده چې اوس د خپل مخکني حالت مطابق د هغه کپړې واپس کول ناممکن دي (ځکه چې مخکې هغه عيبداره نه وه. او اوس عيبداره سوه)، او مخکې ذکر سوه چې "امتناعُ الردّ" د "لزوم البيع" په څېر دی (مطلب دا چې که د مبيع واپس کول ممتنع او ناممکن وي نو بيع لازميږي)، او د لزوم البيع په صورت کې ثمن واجبيږي، لهذا دلته به هم پر مشتري د هلاک سوي يا عيبداري کپړې ثمن واجب وي چې هغه به بائع ته ورکوي، او تر ثمن ورکولو وروسته هغه دويمه پاته کپړه د امانت لپاره مُتعيّن کيږي (نو مشتري ته پکار دي چې هغه بائع ته واپس کړي).

ولوهلكا إلخ: فرمايي که دواړي کپړي يو ځای هلاکي سي او دا معلومه نه وي چې کومه يوه اول هلاکه سوه، نو په دې صورت کې د دواړو کپړو نصف ثمن واجبيږي؛ ځکه چې د عدم اوليت په وجه هر يوه مبيع هم ده او امانت هم ده، نو ځکه موږ په هره کپړه کې نصف مبيع وګرځوی او نصف مو امانت وګرځوی، او څرنګه چې تاوان صرف د مبيع ورکول کيږي، نه د امانت؛ نو ځکه به مشتري د هري کپړې نصف ثمن ورکوي، او د نصف امانت هيڅ تاوان پر هغه نه واجبيږي؛ ځکه د فقه دا مشهوره قاعده ده چې "الأمانات لا تُضمن" (يعني که امانتونه هلاک سي نو د هغوی ضمان او تاوان نه واجبيږي).

ولوكان فيه إلخ: د دې عبارت تعلق د مخکنۍ مسئلې سره دی، فرمايي که مشتري د خيار تعيين سره خيار شرط هم اخيستی وي (يعني د دريو ورځو شرط يې هم لګولی وي)، نو هغه ته دا حق سته چې د خيار شرط پر بنياد دواړي کپړې بائع ته واپس کړي (يعني که هغه وغواړي نو د خيار شرط پر بناء دواړي کپړې بائع ته واپس کولای سي)، او که هغه خيار شرط نه وي اخيستی، نو څرنګه چې اوس صرف خيار تعيين دی، نو ځکه به يوه کپړه اخلي، او بله کپړه د خيار تعيين پر بناء واپس کولای سي.

ولو مات إلخ: د دې حاصل دا دی چې که "من له الخيار" (مشتري) د خيار تعيين سره خيار شرط هم اخيستی وي، لېکن د مبيع تر مُتعينولو مخکې هغه مړ سي (يعني تر اوسه هغه مبيع مُتعينه کړې نه وي او درې ورځې تيرې سوي نه وي چې هغه مړ سي)، نو په دې صورت کې د هغه خيار شرط باطليږي، لېکن خيار تعيين (صرف ابتداءً د وارث په حق کې) باقي پاتيږي، او د خيار تعيين پر بناء وارث يوه ډېره بائع ته واپس کولای سي. او دواړې نه سي واپس کولای؛ ځکه مخکې موږ وويل چې په خيار شرط کې وراثت نه جاري کيږي، او خيار تعيين هم دوراثت په توګه (د وارث وطرف ته) نه نقل کيږي، بلکې د "من له الخيار" په مرګ سره هغه هم باطليږي، خو ځرنګه چې د هغه د مرګ په وجه مبيع د وارث وطرف ته نقل کيږي او په هغه مبيع کې د بائع ملکيت هم شامل وي (يعني د وارث سره د بائع ملکيت هم ګډ وي)، نو ځکه د بائع له ملکيت څخه د خپلي مبيع د جلا کولو او عليحده کولو لپاره ابتداءً وارث ته د تعيين اختيار ورکول کيږي، داسې نه ده چې هغه ته د تعيين اختيار په وراثت کې حاصليږي؛ ځکه که دا اختيار هغه ته په وراثت کې حاصلېدای نو ښکاره خبره ده چې د مورث په مرګ سره به د هغه په حق کې هم درې ورځې مودت مُتعيّن کېدای، حالانکې د وارث په حق کې هيڅ مودت نه مُتعيّن کيږي (يعني د وارث لپاره درې ورځې ضروري نه وي، بلکې هغه که هر وخت وغواړي مبيع مُتعينولای سي). معلومه سوه چې دا اختيار (خيار تعيين) وارث ته د خپل ملکيت د جلا کولو لپاره ورکول سوی دی، نه د وراثت په توګه. (لکه مخکې چې هم په دې هکله بحث ذکر سو).

## د صاحبُ الخيار (خيار والا) د شفعه د دعوی حکم

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى دَارًا عَلَى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ فرمايي: او که چا يو کور رانيوی پر دې شرط چې هغه ته به خيار شرط وي فَبِيعَتْ دَارٌ أُخْرَى بِجَنْبِهَا بيا د هغه کور تر څرنګ بل کور خرڅ سو فَأَخَذَهَا بِالشُّفْعَةِ او مشتري هغه په شفعه سره واخيستی [يعني د حق شفعه په توګه يې هغه کور هم رانيوی] فَهُوَ رِضًا نو دا رضا ده [يعني دا په اول کور او په اولي بيع راضي کېدل دي] لِأَنَّ طَلَبَ الشُّفْعَةِ يَدُلُّ عَلَى اخْتِيَارِهِ الْمِلْكَ فِيهَا ځکه چې د شفعه طلب کول په [اول] کور کې د ملکيت پر اختيارولو دلالت کوي لِأَنَّهُ مَا ثَبَتَ إِلَّا لِدَفْعِ ضَرَرِ الْجِوَارِ ځکه چې شفعه د جوار [همسايه والي] د ضرر ليرې کولو لپاره ثابته سوې ده وَذَلِكَ بِالِاسْتِدَامَةِ او دا جوار د ملکيت په همېشتوب سره ثابتيږي فَيَتَضَمَّنُ ذَلِكَ سُقُوطَ الْخِيَارِ سَابِقًا عَلَيْهِ نو د شفعه طلب کول به تر خپل ځان مخکې د خيار ساقطېدلو لره شامل وي فَيَثْبُتُ

الْمِلْكُ مِنْ وَقْتِ الشِّرَاءِ لهذا [د مشتري] ملکيت به د رانيولو له وخت څخه ثابت سي فَيَتَبَيَّنُ أَنَّ الْجِوَارَ كَانَ ثَابِتًا او دا به ښکاره سي چي جوار ثابت وو وَهٰذَا التَّقْرِيرُ يُحْتَاجُ إِلَيْهِ لِمَذْهَبِ أَبِي حَنِيفَةَ خَاصَّةً او په خصوصي توګه د امام صاحب د مذهب لپاره دغه بحث [او تفصيل] ته ضرورت سته [يعني دغه تقرير صرف د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر مذهب ضروري دی].

**اللغات**: ﴿الشفعة﴾ که يو همسايه خپل کور خرڅ کړي او بل همسايه د همسايه توب د حق په وجه دعویٰ وکړي چي دا کور زه رانيسم او بل چا ته يې نه ورکوم، نو دغه حق ته "حقِ شفعه" وايي، او همدې ته "حق جوار" وايي، ﴿جوار﴾ همسايه والی (همسايه توب)، څنګ، بغل، ﴿استدامة﴾ د استفعال مصدر دی: همېشه پاتېدل، باقي پاتېدل، ﴿يتضمن﴾ د تفعل مضارع ده: شاملېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی په خيارِ شرط سره يو کور رانيسي او د خيار په موده کي د هغه کور سره متصل کور (يعني د همسايه کور) خرڅ سي او "من له الخيار" د شفعه د حق دعویٰ وکړي او هغه کور هم رانيسي، نو د هغه لپاره دا دويم کور په شفعه رانيول د دې خبري دليل دی چي هغه په اول کور راضي دی او په هغه کي يې بيع نافذ کړه؛ ځکه چي د شفعه ثبوت د جوار د ضرر ليري کولو لپاره سوی دی (يعني د شفعه حق ځکه ثابتيږي چي يو خراب او بدمعاش سړی هغه کور نه رانيسي او په جوار کي د موجود والي په وجه بل همسايه [شفيع] ته تکليف نه ورسوي)، او جوار هغه وخت ثابتيږي کله چي شفيع (يعني د شفعه دعوی کونکی) په پوره توګه د هغه کور مالک وي کوم چي د مشفوعه کور تر څنګ وي (لنډه دا چي د "من له الخيار" لپاره جوار هغه وخت ثابتيږي او هغه وخت له ده څخه دا ضرر ليري کيږي کله چي په بشپړه توګه د خيار والا کور د ده په ملکيت کي راسي او د ده خيار ساقط سي)، لهذا د "من له الخيار" د شفعه طلب او دعوی کول په خپله د دې خبري دليل دی چي د شفعه تر طلب مخکي هغه په اول کور (يعني په خيار والا کور) کي خپل خيارِ شرط ساقط کړی او په هغه کي يې بيع نافذ کړه، او کله چي هغه د شفعه له طلب څخه مخکي خپل خيار شرط ساقط کړی دی نو اوس به په اول کور کي د رانيولو له وخت څخه د هغه ملکيت ثابت وي (ځکه چي له هغه وخت څخه ايجاب او قبول سوی دی)، او کله چي د هغه ملکيت ثابت دی نو د هغه لپاره به جوار هم ثابت وي، او د شفعه حق انسان ته د جوار په وجه حاصليږي، لهذا هغه ته به د شفعه حق (حق الشفع) هم حاصل وي.

وهذا التقرير إلخ: فرمايي د "من له الخيار" (شفيع) د ملکيت ثابتېدلو په باره کي چي موږ دلته کوم بحث او تقرير کړی دی، هغه صرف د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر مذهب ضروري دی؛ ځکه چي د امام

صاحب په نېز د خيار په مودت کې مبيع د مشتري په ملکيت کې نه داخلېږي او په هغه کې د مشتري ملکيت نه ثابتېږي، نو د امام صاحب پر مذهب به په دغه مذکور تقرير او دليل سره د مشتري ملکيت ثابتيږي، او د صاحبينو په نېز خو محض په رانيولو (شراء) سره د مشتري ملکيت ثابتيږي او مشتري د هغه کور مالک کيږي، او د رانيولو سره سمدستي د مشتري لپاره د شفعه حق ثابتيږي، لهذا د دوی په نېز د ملکيت ثابتېدلو لپاره څه تقرير او دليل ته ضروروت نسته.

## که دوه خلک په ګډه يو شی په خيارِ شرط سره رانيسي لېکن په دوی کې يو په بيع راضي سي (حکم او اختلاف)

قَالَ: وَإِذَا اشْتَرَى الرَّجُلَانِ غُلَامًا عَلَى أَنَّهُمَا بِالْخِيَارِ فرمايي: او کله چي دوه خلک په خيارِ شرط سره [په ګډه] يو غلام رانيسي فَرَضِيَ أَحَدُهُمَا بيا په دوی کي يو [په بيع] راضي سي [يعني په دوی کي صرف يو د بيع اجازت ورکړي او خپل خيار ساقط کړي] فَلَيْسَ لِلْآخَرِ أَنْ يَرُدَّهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو بل يوه ته دا اختيار نسته چي بيع ردّ کړي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَقَالَا ۞: لَهُ أَنْ يَرُدَّهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي هغه [بل يوه] ته اختيار سته چي بيع ردّ کړي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ خِيَارُ الْعَيْبِ وَخِيَارُ الرُّؤْيَةِ او پر همدغه اختلاف خيارِ عيب او خيارِ رؤيت هم دي لَهُمَا: أَنَّ إِثْبَاتَ الْخِيَارِ لَهُمَا إِثْبَاتُهُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي د دوی دواړو لپاره خيار ثابتول داسي دي لکه په دوی کي د هر يوه لپاره [جلا] خيار ثابتول فَلَا يَسْقُطُ بِإِسْقَاطِ صَاحِبِهِ لهذا د خپل ملګري په ساقطولو سره به د هغه [بل يوه] خيار نه ساقطيږي لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّهِ ځکه چي په دې کي د هغه [بل يوه] د حق باطلول سته وَلَهُ: أَنَّ الْمَبِيعَ خَرَجَ عَنْ مِلْكِهِ غَيْرَ مَعِيبٍ بِعَيْبِ الشَّرِكَةِ د امام صاحب دليل دا دی: چي [دلته] مبيع د بائع له ملکيت څخه په داسي حال کي ووتل چي هغه د شرکت په عيب سره عيبداره نه وه فَلَوْ رَدَّهُ أَحَدُهُمَا اوس که په دوی کي يو دا مبيع ردّ کړي رَدَّهُ مَعِيبًا بِهِ نو هغه به دا مبيع د شرکت په عيب سره عيبجنه ردّ کړي وَفِيهِ إِلْزَامُ ضَرَرٍ زَائِدٍ حال دا چي په دې کي

۞ القول الراجح: قول الامام كما هو ظاهر من داب المصنف رَحِمَهُ الله، قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله:.....(فتح القدير ج:۵، ص:۵۲۷)، وقال الاستاذ المفتي غلام قادر النعماني: وإذا رضى أحدهما و ردّ الآخر بعد رضاء صاحبه، ففيه ضررين على البائع، لأن البائع ما رضى بتفريق الصفقة ولا بالشركة مع أحد من المشتريَين [القول الراجح ج:۲، ص:۲۱]

[پر بائع] د زائد ضرر لازمول سته وَلَيْسَ مِنْ ضَرُورَةِ إِثْبَاتِ الْخِيَارِ لَهُمَا الرِّضَاءُ بِرَدِّ أَحَدِهِمَا او د دواړو لپاره د خيار په ثابتولو کې دا ضروري نه ده چې يو به د بل په رد باندې راضي وي لِتَصَوُّرِ اجْتِمَاعِهِمَا عَلَى الرَّدِّ ځکه چې په رد باندې د دواړو متفق کېدل هم ممکن دي.

**اللغات**: ﴿غلام﴾ کوچنی هلک، مجازاً خادم او غلام ته هم وايي، ﴿يَرُدَّهُ﴾ د نصر مضارع ده: ردول (ردول)، واپس کول، ﴿إبطال﴾ د افعال مصدر دی: باطلول، ﴿تصوّر﴾ د تفعّل مصدر دی: متصور کېدل، ممکن کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې که دوه خلک په ګډه يو غلام رانيسي او په دوی کې هر يو د خپل ځان لپاره خيارِ شرط واخلي، بيا يو د بيع اجازت ورکړي او خيار ساقط کړي (يعنې په دوی کې صرف يو مشتري بيع نافذ کړي)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دويم مشتري خيار ساقطيږي اوباطليږي، اوس هغه د خپل خيار پر بناء غلام نه سي ردولای او بيع نه سي فسخ کولای، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز اوس هم د دويم مشتري خيار پاته دی او هغه ته دا حق سته چې د خپل خيار پر بناء بيع رد او فسخ کړي. د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف په خيارِ عيب او خيارِ رؤيت کې هم دی، يعنې که تر رانيولو وروسته دواړه مشتريان په مبيع کې يو عيب ووينې او بيا په دوی کې يو د عيب باوجود په مبيع راضي سي او بيع نافذ کړي، يا مثلاً دواړو مشتريان د بيع په وخت کې مبيع نه وويني، او د ليدلو په وخت کې صرف يو مشتري په مبيع راضي سي او بيع نافذ کړي، نو په دې دواړو صورتونو کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دويم مشتري خيار ساقطيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دلته هم د دويم مشتري اختيار باقي پاتيږي، يعنې هغه ته به د خپل خيار پر بناء د بيع فسخ کولو او ردولو حق وي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې کله دلته د دواړو مشتريانو لپاره خيار ثابت دی، نو ګواکې د هر يوه لپاره جلا، جلا په مستقله توګه خيار ثابت دی، لهذا اوس که د يوه مشتري رضا او اسقاط (ساقطول) د دويم مشتري په حق کې هم اسقاط وګرځول سي (يعنې کله چې يو مشتري په بيع راضي سي، خپل خيار ساقط کړي او بيع نافذ کړي، نو اوس که د هغه د خيار ساقطولو او بيع نافذولو په وجه د دويم مشتري په حق کې هم خيار ساقط کړی سي)، نو بنکاره خبره ده چې د دويم مشتري حق به باطل سي، او د بل چا د حق ابطال (باطلول) صحيح نه دي، نو ځکه به د يوه مشتري اسقاط الخيار د بل مشتري په حق کې اسقاط نه ګرځول کيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي دلته تر عقد کولو وروسته مبيع د بائع له ملکيت څخه صحيح سالمه او د شرکت له عيب څخه پاکه ووتل، اوس که يو مشتري د بيع اجازت ورکړي او بل يو هغه ردّ کړي، نو ښکاره خبره ده چي د ردّونکي او بائع په مينځ کي به مبيع مشترکه سي (او شرکت په مبيع کي عيب دی)، حال دا چي تر دې مخکي په مبيع کي هيڅ عيب نه وو، او اوس هغه د بائع وطرف د شرکت په عيب سره عيبداره واپس کيږي، او په دې کي د بائع سخت ضرر دی، ځکه تر بيع مخکي چي کله مبيع له شرکت څخه خالي وه نو په هغه کي بائع ته د هر ډول تصرف کولو اختيار وو، لېکن د ردولو په صورت کي د شرکت د عيب په وجه د هغه دغه اختيار ختم سو (يعني اوس هغه په مبيع (غلام) کي هر ډول تصرف نه سي کولای، بلکيو اوس به هغه د نوبت او واري په توګه له مبيع (غلام) څخه نفع اخلي، او په خيار کي چي انسان څرنګه خپل ځان له ضرر څخه ساتي همداسي به دويم کس هم له ضرر څخه ساتي (يعني څرنګه چي د خيار مقصد دا دی چي "من له الخيار" خپل ځان له ضرر څخه وساتي، نو همداسي به د دې خبري خاطر هم کوي چي بل يوه ته به تکليف او ضرر نه رسوي)، اوس دلته دوې خبري سره جمع دي: ①... يوه خبره دا چي که د يوه مشتري په رضا او اسقاط سره د دويم مشتري خيار ساقط کړی سي نو دا د هغه (دويم مشتري) په حق کي نقصان دی، ②... دويمه دا چي که د دويم مشتري خيار پاته کړی سي او د ردّ حق ورکول سي نو په دې کي د بائع نقصان دی، او د بائع نقصان د مشتري په مقابله کي زيات دی، نو ځکه به د بائع لپاره فيصله کيږي، او د يوه مشتري اسقاط الخيار به د دويم مشتري په حق کي اسقاط ګرځول کيږي او بائع ته به نقصان نه ورکول کيږي، ځکه چي بل چا ته له نقصان ورکولو څخه په خپله نقصان پورته کول زيات غوره دي (يعني بائع ته له نقصان ورکولو څخه دا زيات غوره دي چي مشتري په خپله غاړه نقصان واخلي).

<u>وليس من إلخ</u>: په دې سره د يو اشکال جواب ورکوي، اشکال دا دی چي کله بائع دواړو مشتريانو ته خيار ورکړی نو هغه ګواکي د يوه مشتري په ردّ او فسخ راضي سو. لهذا هغه پر خپل ځان په خپله رضا سره ضرر او نقصان لازم کړی دی، نو بايد د دويم مشتري خيار ساقط نه کړی سي او هغه ته دي د ردّ حق ورکول سي، نو فرمايي چي (په دې مسئله کي) دواړو مشتريانو ته په خيار ورکولو سره دا خبره نه لازميږي چي بائع د يوه مشتري په اجازت (نفاذ) او د بل مشتري په ردّ او فسخ راضي وو: ځکه د هغه خيال او مقصد خو دا وو چي دواړه به د بيع اجازت ورکړي (يعني دواړه به بيع نافذ کړي). يا به يې دواړه فسخ کړي، د هغه په وهم او ګومان کي هم دا خبره نه وه چي يو مشتري به د بيع اجازت ورکړي او بل يو به يې ردّ کړي، او کله چي بائع په دې راضي نه دی، نو دا اشکال هم ختم سو. لهذا د يوه مشتري تر اجازت (نفاذ) وروسته به دويم ته د ردّ حق نه ورکول کيږي.

## که مبيع له شرط څخه خلاف وخيږي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا عَلَىٰ أَنَّهُ خَبَّازٌ أَوْ كَاتِبٌ فرمايي: او څوک چي يو غلام پر دې شرط رانيسي چي هغه ډوډۍ پخونکی دی يا ليکونکي دی وَكَانَ بِخِلَافِهِ حال دا چي هغه د دې په خلاف وي فَالْمُشْتَرِيْ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ بِجَمِيعِ الثَّمَنِ نو مشتري ته اختيار دی که وغواړي نو هغه دې د ټوله ثمن په عوض کي واخلي وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ او که وغواړي نو هغه دي پريږدي لِأَنَّ هٰذَا وَصْفٌ مَرْغُوبٌ فِيهِ ځکه چي دا [خبازيت او نور] داسي صفت دی چي په هغه کي رغبت کيږي [يعني خبازيت او داسي نور په غلام کي د رغبت والا وصف دی چي سړی د داسي غلام په رانيولو کي رغبت کوي] فَيُسْتَحَقُّ فِي الْعَقْدِ بِالشَّرْطِ لهذا د شرط په وجه به دا صفت په عقد کي مستحق [او ضروري] وي ثُمَّ فَوَاتُهُ يُوجِبُ التَّخْيِيرَ بيا د دغه صفت فوتېدل به [مشتري ته] اختيار ورکول واجبوي [يعني د دغه وصف فوتېدل به د مشتري د اختيار موجب او سبب وي] لِأَنَّهُ مَا رَضِيَ بِهِ دُونَهُ ځکه چي مشتري له دغه صفت څخه بغير په مبيع راضي نه سو وَهٰذَا يَرْجِعُ إِلَى اخْتِلَافِ النَّوْعِ لِقِلَّةِ التَّفَاوُتِ فِي الْأَغْرَاضِ او دا تفصيل د نوع د اختلاف وطرف ته راجع کيږي، په اغراضو کي د لږ فرق په وجه فَلَا يَفْسُدُ الْعَقْدُ بِعَدَمِهِ لهذا د دې [صفت] په نشتوالي سره به عقد نه فاسديږي بِمَنْزِلَةِ وَصْفِ الذُّكُورَةِ وَالْأُنُوثَةِ فِي الْحَيَوَانَاتِ لکه په حيوانانو کي چي د مذکر او مؤنث کېدلو صفت دی وَصَارَ كَفَوَاتِ وَصْفِ السَّلَامَةِ او دا داسي سو لکه د سلامتيا [سالموالي] صفت فوتېدل وَإِذَا أَخَذَهُ أَخَذَهُ بِجَمِيعِ الثَّمَنِ او مشتري چي کله هغه اخلي [رانيسي] نو د ټوله ثمن په عوض کي به يې اخلي لِأَنَّ الْأَوْصَافَ لَا يُقَابِلُهَا شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ ځکه چي د اوصافو په مقابله کي هيڅ ثمن نه وي لِكَوْنِهَا تَابِعَةً فِي الْعَقْدِ ځکه چي اوصاف په عقد کي [د مبيع] تابع وي. عَلَىٰ مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي وپېژندل سوه [يعني لکه څرنګه چي مخکي دا خبره تاسي ته معلومه سوه].

**اللغات**: ﴿خبّاز﴾ ډوډۍ پخونکی (چي زموږ په عامه اصطلاح نغنوای ورته وايي)، ﴿کاتب﴾ ليکونکی (په خط او ليک واقف)، ميرزا، منشي، ﴿وصف﴾ صفت، ځانګړنه، ﴿أنوثة﴾ مؤنث کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه يو څوک پر دې شرط يو غلام رانيسي چي هغه ډوډۍ پخونكى دى، يا په خط او كتابت ښه واقف دى، لېكن تر رانيولو وروسته معلومه سي چي هغه نه ډوډۍ پخولاى سي او نه يو حرف ليكلاى سي، نو په دې صورت كي به مشتري ته د هغه داخيستلو يا نه اخيستلو اختيار وي؛ ځكه چي خباز كېدل او كاتب كېدل داسي وصف دى چي د هغه په ليدلو سره سړى د غلام په رانيولو كي رغبت كوي، لهذا كله چي په عقد كي دا وصف شرط كړى سو نو ښكاره خبره ده چي مشتري به په هغه وصف سره د غلام اخيستلو مستحق وي (يعني كله چي د ډوډۍ پخولو يا د كتابت وصف شرط كړى سو، نو مشتري به خاص د ډوډۍ پخونكي [خباز] غلام او د كاتب غلام مستحق وي)، او د دغه وصف د نشتوالي په صورت كي به هغه ته د غلام اخيستلو يا نه اخيستلو اختيار وي؛ ځكه چي مشتري له دې وصف څخه بغير د هغه غلام په اخيستلو راضي نه دى، او تاسي ته معلومه ده چي د بيع د صحت لپاره د دواړو عاقدَينو رضا ضروري ده (يعني بيع هغه وخت صحيح كيږي كله چي دواړه عاقدين په بيع راضي وي، لېكن دلته مشتري په راضي نه دى)، نو ځكه به د وصف د فوتېدلو په صورت كي هغه ته د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار وي.

وهذا يرجع إلخ: له دې ځايه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دوه اُصولو ته اشاره كوي: (۱)... كه په مبيع كي "جنس" فوت سي، نو بيع فاسديږي، ځكه چي جنس يو غټ شى دى، (۲)... او كه په مبيع كي كوچنى شى فوت سي چي هغه ته په منطق كي "نوع" وايي، يا "كوچنى صفت" ورته وايي، نو په دې سره بيع نه فاسديږي، لېكن مشتري ته به داخيستلو يا نه اخيستلو اختيار وي، كه په غلام كي د ډوډۍ پخولو صفت يا د كتابت صفت نه وي، نو دا د نوع فوتېدل دي، د جنس فوتېدل نه دي، نو ځكه به بيع نه فاسديږي؛ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې دوه مثالونه ذكر كړي دي: ①... په حيوان كي مذكر او مؤنث كېدل د نوع والا صفت دى، نو كه بائع د مذكر والي پر شرط يو حيوان خرڅ كړي لېكن هغه ماده وخيږي (مثلاً د پسه په نامه يې خرڅ كړي لېكن هغه مېږه وخيږي)، نو بيع نه فاسديږي، د دې په خلاف په انسان كي مذكر او مؤنث كېدل د جنس والا صفت دى، نو كه د غلام په نامه يې خرڅ كړي لېكن هغه مينځه وخيږي، نو بيع فاسديږي؛ ځكه چي جنس فوت سو، ②... دويم مثال يې دا ذكر كړى دى چي له عيب څخه د مبيع سالموالي دا يو كوچنى صفت دى او نوع ده، نو كه بائع ووايي چي

دا مبيع سالمه ده، عيبداره نه ده، لېکن هغه عيبداره وخيږي. نو بيع نه فاسديږي. ځکه چې مبيع خو، موجوده ده، صرف د سالموالي صفت پکښې نسته. نو ځکه به مشتري ته اختيار وي. (تفاوت في الأغراض: که په غرض او مقصد کې غټ فرق وي نو هغه په شريعت کې د جنس والا په صفت سره ياديږي، او که په غرض کې لږ فرق وي يا فرق پکښې نه وي نو د نوع والا صفت ورته وايي. د مثال په توګه په حيوانانو کې د پسه او ميږې دواړو غرض "غوښې خوړل" دي، يا مثلاً د غوا او غوايي دواړو غرض "غوښې خوړل" او "کار ځنې اخيستل" دي، نو ځکه په حيوان کې د مذکر او مؤنث فرق د نوع فرق دی، او د غلام غرض "خدمت اخيستل" دي او د مينځې غرض "وطي کول" دي، کوم چې يو غټ غرض دی او په يوه او بل کې ډېر تفاوت سته، نو ځکه په غلام او مينځه کې د مذکر او مؤنث فرق د جنس فرق دی او د جنس والا صفت دی. (أثمار الهدايه ج:٨، ص:١١٧)

<u>وإذا اخذه إلخ</u>: فرمايي که بيا هم مشتري د هغه غلام اخيستل وغواړي چې په هغه کې د کتابت يا د ډوډۍ پخولو صفت نه وي، نو د وصف په بدله کې به ثمن نه کموي؛ ځکه چې مخکې دا خبره ذکر سوه چې اوصاف د مبيع تابع کيږي، او د تابع په مقابله کې ثمن نه راځي، او څرنګه چې دلته هم خباز کېدل يا کاتب کېدل د غلام يو وصف دی، نو ځکه به د هغه په فوتېدلو سره ثمن نه کمول کيږي، لهذا که مشتري د هغه غلام اخيستل وغواړي نو د غلام پوره قيمت به اداء کوي. فقط والله وعلمه اتم



# بَابُ خِيَارِ الرُّؤْيَةِ

(دا) باب په د خيار رؤيت (په بيان کی) دی

**تشريح**: د "باب خيار الشرط" په شروع کې موږ د خيار قسمونه ذکر کړه، او هلته مو د هر يوه تعريف او د مخکې والي وجه هم ذکر کړه. دلته په لنډه توګه عرض دا دی چې خيار رؤيت پر خيار عيب ځکه مخکې سوی دی چې خيار رؤيت د بيع له تکميل څخه مانع وي، او خيار عيب د بيع د لزوم څخه مانع وي، او د لزوميت درجه له تماميت (تکميل) څخه وروسته ده، نو په دې وجه صاحب د کتاب اول خيار رؤيت بيان کړی دی، او تر دې وروسته به خيار عيب بيان کړي.

خيار رؤية: که څوک بغير د ليدلو څخه يو شی رانيسي، نو تر ليدلو وروسته هغه ته اختيار دی که خوښه يې وي نو هغه شی دې واخلي، کنې وا پس دې يې ورکړي، همدې ته "خيار رؤيت" وايي.

## د "خيار رؤيت" بيان

وَمَنِ اشْتَرَى شَيْئًا لَمْ يَرَهُ او که څوک داسي شی رانيسي چې هغه يې ليدلی نه وي [يعني که څوک د ليدلو څخه بغير يو شی رانيسي] فَالْبَيْعُ جَائِزٌ نو بيع جائز ده وَلَهُ الْخِيَارُ إِذَا رَآهُ او ده ته به اختيار [خيار رؤيت] وي کله چې هغه شی ويني إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ بِجَمِيعِ الثَّمَنِ که وغواړي نو هغه دې د ټوله ثمن په عوض کې واخلي وَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ او که وغواړي نو هغه دې واپس کړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَصِحُّ الْعَقْدُ أَصْلًا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا عقد بالکل نه صحيح کيږي لِأَنَّ الْمَبِيعَ مَجْهُولٌ ځکه چې مبيع مجهوله ده وَلَنَا قَوْلُهُ عليه السلام: [1] «مَنِ اشْتَرَى شَيْئًا لَمْ يَرَهُ فَلَهُ الْخِيَارُ إِذَا رَآهُ» او زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: "کوم سړی چې داسي شی رانيسي چې هغه يې ليدلی نه وي، نو ده ته اختيار دی کله چې هغه ويني" وَلِأَنَّ الْجَهَالَةَ بِعَدَمِ الرُّؤْيَةِ لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ او ځکه چې د نه

[1] تخريج: أخرجه الدار القطني ج:۳، حديث رقم:۱۰. والبيهقي في سنن الكبرى، باب من قال يجوز بيع العين الغائبة، حديث رقم:۱۰۴۲۵.

ليدلو جهالت جنګ ته رسول نه کوي لِأَنَّهُ لَوْلَمْ يُوَافِقْهُ ځکه که د مشتري مبيع خوښه نه سي يَرُدُّهُ نو هغه به يې [بائع ته] واپس کړي فَصَارَ كَجَهَالَةِ الْوَصْفِ فِي الْمُعَايَنِ الْمُشَارِ إِلَيْهِ نو دا داسي سو لکه په هغه مبيع کي د وصف جهالت کوم چي په سترګو وليدل سي او اشاره ورته وسي وَكَذَا إِذَا قَالَ: رَضِيتُ ثُمَّ رَآهُ او همدارنګه کله چي مشتري ووايي: زه په راضي يم، بيا مبيع ووينې [يعني کله چي د ليدلو ځخه بغير مبيع رانيسي او د خپلي رضا اظهار هم وکړي] لَهُ أَنْ يَرُدَّهُ نو [هم] به هغه ته دا اختيار وي چي مبيع واپس کړي لِأَنَّ الْخِيَارَ مُعَلَّقٌ بِالرُّؤْيَةِ ځکه چي اختيار پر ليدلو معلق دی لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث پر بناء کوم چي موږ روايت کړی فَلَا يَثْبُتُ قَبْلَهَا لهذا تر ليدلو مخکي به اختيار نه ثا بتيږي وَحَقُّ الْفَسْخِ قَبْلَ الرُّؤْيَةِ بِحُكْمِ أَنَّهُ عَقْدٌ غَيْرُ لَازِمٍ لَا بِمُقْتَضَى الْحَدِيثِ او [د مشتري لپاره] ”د فسخ حق“ د عقد د نه لازميدلو په وجه دی، د حديث د مقتضا په وجه نه دی وَلِأَنَّ الرِّضَاءَ بِالشَّيْءِ قَبْلَ الْعِلْمِ بِأَوْصَافِهِ لَا يَتَحَقَّقُ او ځکه چي د يو شي په اوصافو تر خبريدلو مخکي په هغه باندي راضي کيدل نه متحقق کيږي فَلَا يُعْتَبَرُ قَوْلُهُ: رَضِيتُ قَبْلَ الرُّؤْيَةِ لهذا تر ليدلو مخکي به د مشتري دا قول: ”رضيتُ“ [زه په بيع راضي يم] معتبر نه وي بِخِلَافِ قَوْلِهِ: رَدَدْتُ په خلاف د هغه د دې قول: رددتُ [ما بيع ردّ کړه].

**اللغات:** ﴿لا تُفضي﴾ د افعال له بابه د نفي صيغه ده: رسول، سبب جوړيدل. ﴿لم يوافق﴾ د مفاعلې له بابه د جحد صيغه ده: موافق کيدل (د طبيعت موافق کيدل، خوښيدل). ﴿مُعايَن﴾ د مفاعلې له بابه د اسم مفعول صيغه ده: په سترګو ليدل سوی. ﴿مشارٌإليه﴾ هغه شی چي اشاره ورته وسيَ. ﴿رؤية﴾ ليدل. ﴿رددتُ﴾ د نصر له بابه د واحد متکلم صيغه ده: ردول، واپس کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک بغير د ليدلو څخه يو شی رانيسي، نو زموږ په نيز دا عقد صحيح دی، او تر ليدلو وروسته به مشتري ته د اخيستلو يا نه اخيستلو اختيار وي؛ که د هغه زړه وغواړي، نو د ټوله ثمن په عوض کي دي هغه شی واخلي، کنې واپس دي يې کړي. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا عقد صحيح نه دی.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چې کله مشتري مبيع نه وليدل، نو مبيع مجهوله سوه، او د مبيع يا ثمن د جهالت په صورت کې بيع نه صحيح کيږي، نو ځکه به دلته هم بيع نه صحيح کيږي.

**زمونږ دليل**: د نبي کريم ﷺ دا حديث دی: "چې کوم څوک د ليدلو څخه بغير يو شی رانيسي، نو تر ليدلو وروسته به هغه ته د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار وي". په دې حديث کې نبي کريم ﷺ په واضحه توګه د ليدني څخه بغير عقد جائز هم ګرځولی دی او مشتري ته يې اختيار هم ورکړی دی: لهذا د دې حديث په خلاف به بل هيڅ تأويل نه منل کيږي.

ولأن الجهالة إلخ: زمونږ عقلي دليل دا دی (کوم چې په حقيقت کې د امام شافعي رحمه الله د دليل جواب هم دی) چې د مبيع د جهالت په صورت کې هغه وخت بيع نه صحيح کيږي کله چې جهالت مُفضي الى النـزاع وي. او څرنګه چې دلته مشتري ته تر ليدلو وروسته د مبيع واپس کولو اختيار (خيار رد) حاصل دی. نو ښکاره خبره ده چې اوس به د مبيع جهالت د جنګ او نزاع سبب نه وي. او کله چې دا جهالت مُفضي الى النزاع نه دی. نو بيله شکه به عقد صحيح کيږي او مشتري ته به خيار حاصليږي.

او لکه څرنګه چې د مبيع د معاين کېدلو او مشار اليه کېدلو په صورت کې د وصف په جهالت سره پر عقد هيڅ اثر نه پرېوځي. يعني که يو سړی د خپلو سترګو مخته معامله وکړي او د غنمو يوه کوړه (کوټه) د اشارې په ذريعه رانيسي، نو دلته که څه هم د غنمو مقدار مجهول دی. خو څرنګه چې دا جهالت مُفضي الى النزاع نه دی (ځکه چې هغه د خپلو سترګو مخته او په اشاره سره په خپله رضا معامله کړې ده). نو ځکه دا عقد نه فاسديږي. همداسې به دلته هم د مبيع په جهالت سره پر عقد هيڅ اثر نه پرېوځي او عقد نه به فاسديږي (ځکه چې دا جهالت هم مفضي إلى النزاع نه دی).

وکذا إلخ: فرمايي که مشتري د ليدلو څخه بغير يو شی رانيسي او په هغه باندې خپله رضا هم ښکاره کړي او ووايي: رضيت (زه په دې بيع راضي يم)، نو بيا هم د هغه خيار رؤيت نه ساقطيږي؛ ځکه نبي کريم ﷺ په دې حديث "من اشترى شيئاً لم يره... إلخ" کې خيار پر "رؤيت" معلق کړی دی. او کوم شی چې پر بل شي معلق وي، نو هغه د دې بل شي (معلق به) تر وجود مخکې نه ثابتيږي، لهذا کله چې خيار پر "رؤيت" معلق دی. نو تر رؤيت (ليدلو) مخکې به هغه نه ثابتيږي، او کله چې هغه تر رؤيت مخکې نه ثابتيږي. نو ساقط به څرنګه سي!؟ (يعني کله چې خيار تر ليدلو مخکې نه ثابتيږي. نو تر ليدلو مخکې به "رضيتُ" ويل يعني بيع نافذول او خيار ساقطول به څرنګه صحيح وي. نو ځکه مونږ وايو چې تر ليدلو مخکې په رضا ښکاره کولو او "رضيتُ" ويلو سره خيار رؤيت نه ساقطيږي).

**وحق الفسخ إلخ:** دا د يو مقدر سوال جواب دی. حاصل د سوال دا دی چې کله د پورتني حديث پر بناء تر ليدلو مخکې د مشتري لپاره خيار نه ثابتيږي، نو بايد دواړه ډوله خيارونه ثابت نه سي. يعني "خيار اجازت" هم او "خيار فسخ" هم (يعني بايد تر ليدلو مخکې مشتري ته نه دې اختيار وي چې د عقد اجازت ورکړي يعني عقد نافذ کړي، او نه دې اختيار وي چې عقد فسخ کړي)، حال دا چې تر ليدلو مخکې که څه هم د هغه لپاره خيار اجازت نه ثابتيږي، لېکن خيار فسخ ثابتيږي، نو آخر د دې فرق څه وجه ده چې يو ثابتيږي او بل نه ثابتيږي؟.

د دغه سوال په جواب کې فرمايي چې تر ليدلو مخکې د مشتري لپاره د خيار فسخ د ثابتېدلو وجه دا نه ده چې هغه په پورتني حديث سره ثابت دی، او خيار اجازت په حديث سره ثابت نه دی، بلکې د خيار فسخ حق هغه ته ځکه حاصل دی چې د خيار رؤيت په وجه تر اوسه دغه عقد لازم سوی نه دی. او غير لازم عقد هر وخت فسخ کېدای سي، لهذا د مشتري لپاره د فسخ حق د عقد د نه لازمېدلو په وجه ثابت دی، نه د حديث په وجه، او هغه د پورتني حديث سره هيڅ تعلق نه لري. نو ځکه داسي نامعقوله اعتراض مه کوئ!

د مذکوره سوال دويم جواب دا دی چې په يو شي راضي کېدل او د رضا اظهار کول داسي دي لکه د هغه شي صفت او ښه والي بيانول، او د ليدلو څخه بغير د يو شي ښه والي بيانول معتبر نه دي. لهذا کله چې مشتري نه مبيع ليدلې ده او نه د هغې په اوصافو خبر دی، نو د هغه دا قول "رَضِيتُ" (زه په راضي يم) معتبر نه سو. او کله چې دا معتبر نه دی. نو د هغه (مشتري) لپاره خيار استعمالول او بيع نافذول (خيار اجازت) هم ثابت نه سو، لېکن که مشتري "رددتُ" ووايي او بيع فسخ کړي، نو د هغه ردّ صحيح او معتبر دی؛ ځکه د يو شي تر ليدلو مخکې د هغه د ردّ او ترديد لپاره د هغه په اوصافو خبرېدل ضروري نه دي. (دا انکاري جواب دی. او اول جواب تسليمي وو).

## د بائع لپاره خيار رؤيت

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ مَالَمْ يَرَهُ فرمايي: او که څوک داسي شی رانيسي کوم چې يې ليدلی نه وي فَلَا خِيَارَ لَهُ نو هغه [بائع] لره خيار نسته وَكَانَ أَبُوحَنِيْفَةَ يَقُولُ أَوَّلًا: لَهُ الْخِيَارُ او امام صاحب رَحِمَهُ الله به اول فرمايل: چې هغه لره خيار سته اِعْتِبَارًا بِخِيَارِ الْعَيْبِ وَخِيَارِ الشَّرْطِ په خيار عيب او خيار شرط باندي په قياس کولو سره وَهٰذَا لِأَنَّ لُزُومَ الْعُقْدِ بِتَمَامِ الرِّضَا زَوَالًا وَثُبُوتًا او دا ځکه چې د عقد لازمېدل د زوال (عن ملک البائع) او ثبوت (لملک المشتري) په اعتبار سره د رضا پر تماميت [پوره والي] باندي موقوف دي وَلَا يَتَحَقَّقُ ذٰلِكَ إِلَّا بِالْعِلْمِ بِأَوْصَافِ الْمَبِيْعِ او تماميت نه ثابتيږي مګر د مبيع د اوصافو په خبر سره [يعني د مبيع په اوصافو تر خبرېدلو مخکې رضامندي نه پوره کيږي] وَذٰلِكَ

بِالرُّؤْيَةِ او د مبيع په اوصافو خبربدل په ليدلو سره كيږي فَلَمْ يَكُنِ الْبَائِعُ رَاضِيًا بِالزَّوَالِ لهذا بائع به [د خپل ملكيت] پر زائلېدلو راضي نه وي وَوَجْهُ الْقَوْلِ الْمَرْجُوعِ إِلَيْهِ: أَنَّهُ مُعَلَّقٌ بِالشِّرَاءِ لِمَا رَوَيْنَا او د مرجوع اليه قول دليل دا دی: چي زموږ د روايت کړی سوي حديث پر بناء خيار رؤيت پر شراء [رانيولو] معلق دی فَلَا يَثْبُتُ دُونَهُ لهذا له شراء څخه بغير به هغه نه ثابتيږي وَرُوِيَ أَنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ بَاعَ أَرْضًا لَهُ بِالْبَصْرَةِ مِنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ او روايت سوی دی چي حضرت عثمان رضي الله عنه خپله د بصرې ځمكه پر حضرت طلحه بن عبيد الله رضي الله عنه خرڅه كړه فَقِيلَ لِطَلْحَةَ: إِنَّكَ قَدْ غُبِنْتَ نو حضرت طلحه رضي الله عنه ته ويل سوه: چي ته [په دې بيع كي] تاواني سوې [يعني په دې بيع كي ته خطاوتلې او په دې كي ستا نقصان وو] فَقَالَ: لِيَ الْخِيَارُ لِأَنِّي اشْتَرَيْتُ مَا لَمْ أَرَهُ نو حضرت طلحه وفرمايل: ما ته به خيار رؤيت وي؛ ځكه چي ما داسي شی رانيوی كوم چي ما ليدلی نه دی وَقِيلَ لِعُثْمَانَ: إِنَّكَ قَدْ غُبِنْتَ او حضرت عثمان رضي الله عنه ته ويل سوه: چي ته تاواني سوې فَقَالَ: لِيَ الْخِيَارُ لِأَنِّي بِعْتُ مَا لَمْ أَرَهُ نو هغه وفرمايل: ما ته به خيار رؤيت وي؛ ځكه ما داسي شی خرڅ كړی كوم چي ما ليدلی نه دی فَحَكَّمَا بَيْنَهُمَا جُبَيْرَ بْنَ مُطْعِمٍ بيا دغه حضراتو په خپل مينځ كي جبير بن مطعم رضي الله عنه فيصله كونكی [دريمګړی] جوړ كړی فَقَضَى بِالْخِيَارِ لِطَلْحَةَ نو هغه د حضرت طلحه رضي الله عنه لپاره د خيار رؤيت فيصله وكړه وَكَانَ ذَلِكَ بِمَحْضَرٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او دا فيصله د صحابه كرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په حضور [موجوديت] كي وسوه.

**اللغات**: ﴿مرجوع﴾ د ضرب اسم مفعول دی: كوم شي ته چي رجوع وسي، مرجوع إليه: مراد ځني هغه قول دی چي وروسته امام صاحب رَحِمَهُ الله د هغه وطرف ته رجوع وكړه. ﴿غُبنت﴾ د سمع له بابه د واحد مخاطب ماضي مجهولي صيغه ده: تاواني كېدل، خطاوتل (تېروتل)، دوكه كېدل. ﴿حكّما﴾ د تفعيل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده. حَكَّمَ يُحَكِّمُ تَحْكِيمًا: يو څوك په خپل مينځ كي فيصله كونكی (دريمګړی) جوړول، دريمګړی ټاكل. ﴿قضى﴾ د ضرب ماضي ده: فيصله كول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه څوك د ليدلو څخه بغير يو شی خرڅ كړي، نو دا بيع صحيح ده. خو بائع ته هيڅ ډول خيار نه حاصليږي، امام صاحب رَحِمَهُ الله مخكي د بائع لپاره د خيار رؤيت قائل وو، او هغه په دې باره كي دوه دليلونه وړاندي كول: ①... قياس،

يعني څرنګه چې په خيارِ عيب او خيارِ شرط کې بائع او مشتري دواړه برابر حقداره دي، او د دوی دواړو لپاره دا خيارونه ثابتيږي، همداسې به په خيارِ رؤيت کې هم دواړه مشترک وي، او دا خيار به هم په دوی کې د هر يوه لپاره ثابتيږي؛ ځکه چې د خيارِ عيب او خيارِ شرط په څېر دا هم يو مشروع او متحقق خيار دی.

(۲)... د امام صاحب رَحِمَهُ الله دويم دليل دا وو چې بيع هغه وخت لازميږي کله چې پر زوال او ثبوت باندې د عاقدَينو (بائع او مشتري) له طرفه رضامندي مکمله سي، يعني بائع له خپل ملکيت څخه د مبيع پر زائلولو راضي سي او مشتري د خپل ځان لپاره د مبيع پر قبلولو راضي سي، او د داسې رضامندۍ لپاره د مبيع په اوصافو خبرېدل ضروري دي، او د مبيع په اوصافو خبرېدل د مبيع پر ليدلو موقوف دي، لهذا د ليدلو څخه بغير د مبيع خرڅولو په صورت کې به بائع د ملکيت پر زوال راضي نه وي، نو د هغه د نه راضي کېدلو (عدم رضا) په وجه به عقد هم لازم او تام نه وي؛ ځکه چې په بيع کې د دواړو عاقدَينو رضامندي ضروري ده، او تاسې ته معلومه ده چې په غيرِ لازم او غيرِ تام عقد کې هر عاقد ته د بيع د فسخ کولو اختيار وي، لهذا بائع ته به هم د غه د فسخ حق حاصل وي او هغه ته به د بيع د فسخ کولو اختيار وي.

ووجه القول إلخ: فرمايي چې د احنافو دليل او د امام صاحب د مرجوع اليه (وروستني) قول دليل دا دی چې په مخکني حديث "من اشترى شيئاً... إلخ" کې خيارِ رؤيت پر شراء (رانيولو) معلق سوی دی، يعني د خيارِ رؤيت دار ومدار پر رانيولو دی، او رانيول د مشتري له طرفه کيږي، لهذا د خيارِ رؤيت مستحق به هم صرف هغه وي، همدارنګه د دې قول تائيد د حضرت عثمان او حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په واقعه سره هم کيږي چې په داسې مسئله کې حضرت عثمان بائع وو او حضرت طلحه مشتري وو، او د دوی حَکَم (فيصله کونکی) حضرت جبير بن مطعم رَضِيَ اللهُ عَنْه وو، او هغه د خيارِ رؤيت فيصله د مشتري په حق کې وکړه (يعني حضرت جبير بن مطعم د حضرت طلحه په حق کې فيصله وکړه)، او دا فيصله د صحابه وو په حضور او موجوديت کې وسوه، لهذا که چيري د بائع لپاره هم خيارِ رؤيت ثابتېدای، نو صحابه به د حضرت جبير بن مطعم پر فيصله چپ نه پاتېدای او سکوت به يې نه اختيارولای، دا واقعه په خپله ودې طرف ته اشاره کوي چې د خيارِ رؤيت حق د مشتري لپاره دی، نه د بائع لپاره.

## د "خيار رؤيت" د غير مؤقت كېدلو بيان

ثُمَّ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ غَيْرُ مُؤَقَّتٍ بيا خيار رؤيت مؤقت نه دى ايعني د هغه لپاره متعين وخت نسته ا بَلْ يَبْقَى إِلَى أَنْ يُوْجَدَ مَا يُبْطِلُهُ بلكې خيار رؤيت باقي پاتېږي تر هغه وخته پورې چې د هغه باطلونكى شى موجود سي وَمَا يُبْطِلُ خِيَارَ الشَّرْطِ مِنْ تَعَيُّبٍ أَوْ تَصَرُّفٍ يُبْطِلُ خِيَارَ الرُّؤْيَةِ او كوم شيان چې خيار شرط باطلوي لكه [د مبيع] عيبداره كېدل يا [په مبيع كې] تصرف كول، هغه خيار رؤيت هم باطلوي ثُمَّ إِنْ كَانَ تَصَرُّفًا لَا يُمْكِنُ رَفْعُهُ بيا كه هغه داسي تصرف وي چې د هغه زائلول [ختمول] ممكن نه وي كَالْإِعْتَاقِ وَالتَّدْبِيْرِ لكه آزادول يا مدبر جوړول أَوْ تَصَرُّفًا يُوجِبُ حَقًّا لِلْغَيْرِ يا داسي تصرف وي چې د بل چا لپاره حق ثابتوي كَالْبَيْعِ الْمُطْلَقِ وَالرَّهْنِ وَالْإِجَارَةِ لكه مطلق بيع كول، په رهن اېښوول او په اجاره وركول يُبْطِلُهُ قَبْلَ الرُّؤْيَةِ وَبَعْدَهَا نو داسي تصرف تر رؤيت مخكې هم خيار رؤيت باطلوي او تر رؤيت وروسته هم لِأَنَّهُ لَمَّا لَزِمَ ځكه كله چې دا تصرف لازم سو تَعَذَّرَ الْفَسْخُ نو فسخ كول ناممكن سوه فَبَطَلَ الْخِيَارُ نو ځكه خيار باطل سو وَإِنْ كَانَ تَصَرُّفًا لَا يُوجِبُ حَقًّا لِلْغَيْرِ او كه هغه تصرف داسي وي كوم چې د بل چا لپاره حق نه ثابتوي كَالْبَيْعِ بِشَرْطِ الْخِيَارِ وَالْمُسَاوَمَةِ وَالْهِبَةِ مِنْ غَيْرِ تَسْلِيْمٍ لكه په خيار شرط سره مبيع خرڅول، او د نرخ ټاكلو په توګه مبيع وركول، او له ور سپارلو څخه بغير مبيع هبه كول لَا يُبْطِلُهُ قَبْلَ الرُّؤْيَةِ نو داسي تصرف تر رؤيت مخكې خيار نه باطلوي لِأَنَّهُ لَا يَرْبُو عَلَى صَرِيْحِ الرِّضَا ځكه چې دا تر صريح [صراحتاً] رضا لوړ [او مخكې] نه دي وَيُبْطِلُهُ بَعْدَ الرُّؤْيَةِ لېكن [دا تصرف] تر رؤيت وروسته خيار باطلوي لِوُجُودِ دَلَالَةِ الرِّضَا ځكه چې [تر رؤيت وروسته] دلالتاً رضا موجوده سوه.

**اللغات**: ﴿تعيّب﴾ د تفعّل مصدر دى: عيبداره كېدل. ﴿مساومة﴾ نرخ معلومول، نرخ ټاكل، رېښتې او قيمت معلومول (يعني مشتري له بائع څخه يو شى واخلي او ورته ووايي چې زه يې وړم او ګورم. بيا يې قيمت ټاكم چې په دومره يې رانيسم. او بائع هغه شى وركړي). ﴿رهن﴾ په ګرو اېښوول. ﴿لا يربو﴾ د نصر له بابه د نهي صيغه ده: زياتېدل، اضافه كېدل، افضل كېدل (لوړېدل).

**تشریح**: فرمايي ځرنګه چي نور خيارات مؤقت دي او په هغوی کي د وخت او ورځو تعيين سته، لېکن خيار رؤيت غير مؤقت دی او په هغه کي د وخت او ورځو هيڅ تعيين نسته، بلکي دا خيار تر هغه وخته پوري پاتېږي تر څو چي د هغه مُبطل (باطلونکی شی) موجود نه سي، او هغه شيان کوم چي د خيار شرط لپاره مُبطل دي مثلاً د مبيع عيبداره کېدل، يا په مبيع کي د مشتري تصرف کول او داسي نور، هغه شيان خيار رؤيت هم باطلوي.

لېکن د تصرف په سلسله کي تفصيل دا دی چي په مبيع کي په مطلق تصرف کولو سره خيار نه باطلېږي، بلکي که تصرف داسي وي چي د هغه زائلول ناممکن وي، مثلاً مبيع غلام وي او مشتري هغه آزاد کړي، يا مدبر يې جوړ کړي، يا تصرف داسي وي چي په هغه سره د بل چا حق ثابت سه، مثلاً مطلق بيع کول (يعني مشتري بدون الشرط بيع وکړي)، يا مثلاً يو شی رانيسي او هغه بل چا ته په رهن کښېږدي يا په اجاره يې ورکړي، نو دغه دواړه تصرفات خيار رؤيت باطلوي، برابره ده هغه د مبيع تر ليدلو مخکي صادر سي يا د مبيع تر ليدلو وروسته؛ ځکه کله چي په مبيع کي د بل چا حق ثابت سي يا په هغې کي داسي تصرف وسي چي د هغه زائلول ناممکن وي، نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي بيع لازمه سوه او د هغې فسخ کول ناممکن سوه، او د فسخ د ناممکنوالي په صورت کي خيار باطلېږي، لهذا دلته به هم خيار باطلېږي.

لېکن که مشتري په مبيع کي داسي تصرف وکړي چي په هغه کي د بل چا د حق اثبات نه وي. مثلاً د ليدلو ځخه بغير شی رانيول او هغه په خيار شرط سره خرڅول، يا دا شی د نرخ ټاکلو (مساومت) په توګه ورکول، يا بل چا ته دا شی هبه کول او د هغه په قبضه کي نه ورکول، نو که په دغو صورتونو کي تصرف تر رؤيت (ليدلو) مخکي وي، نو هغه د خيار رؤيت لپاره مبطل نه ګرځي؛ ځکه چي په دغو صورتونو کي د مشتري له طرفه دلالتاً رضامندي موجوده سوه، او تر رؤيت مخکي د مشتري په صراحتاً رضامندی سره هم خيار رؤيت نه باطلېږي، نو په دلالتاً رضامندی سره به خو په طريقه اولیٰ نه باطلېږي.

لېکن که د مبيع تر رؤيت وروسته دا ډول تصرف موجود سي. نو خيار رؤيت باطلېږي؛ ځکه چي دلالتاً رضا موجوده سوه، او د مبيع تر رؤيت وروسته په دلالتاً رضامندی سره هم خيار باطلېږي.

## د "خيار رؤيت" باطلونکي شيان

| قَالَ: وَمَنْ نَظَرَ إِلٰى وَجْهِ الصُّبْرَةِ فرمايي: او که څوک د غلې د کوړې مخ ته اوګوري أَوْ إِلٰى ظَاهِرِ الثَّوْبِ مَطْوِيًّا يا د پېچلي تان ظاهري حصې ته اوګوري أَوْ إِلٰى وَجْهِ الْجَارِيَةِ يا د مينځې مخ ته اوګوري أَوْ إِلٰى وَجْهِ الدَّابَّةِ وَكَفَلِهَا يا د څاروي مخ او د شا حصې ته اوګوري فَلَا خِيَارَ لَهُ نو هغه لره خيار نسته |
|---|

وَالْأَصْلُ فِي هٰذَا: أَنَّ رُؤْيَةَ جَمِيعِ الْمَبِيعِ غَيْرُ مَشْرُوطٍ او اصل په دې سلسله کې دا دی: چې د ټولې [پوره] مبيع ليدل شرط نه دي لِتَعَذُّرِهِ ځکه چې دا متعذر دي فَيَكْتَفِي بِرُؤْيَةِ مَا يَدُلُّ عَلَى الْعِلْمِ بِالْمَقْصُودِ لهذا د هغه جزء پر ليدلو به اکتفاء کيږي کوم چې د مقصود پر خبر دلالت کوي [يعني د داسې جزء او عضو پر رؤيت به اکتفاء کيږي چې په هغه سره مقصود معلوميږي] وَلَوْ دَخَلَ فِي الْبَيْعِ أَشْيَاءُ او که چيرې په بيع کې ډېر شيان داخل وي فَإِنْ كَانَ لَا يَتَفَاوَتُ آحَادُهَا كَالْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ نو که چيرې د هغوی افراد متفاوت نه وي لکه کيلي او وزني شي وَعَلَامَتُهُ: أَنْ يُعْرَضَ بِالنَّمُوذَجِ او د هغه علامت دا دی [يعني د کوم شي افراد چې متفاوت نه وي د هغه نښه دا ده]: چې هغه د نمونې په توګه پېشول کيږي يَكْتَفِي بِرُؤْيَةِ وَاحِدٍ مِنْهَا نو په هغوی کې به د يوه فرد [او يوه جزء] په ليدلو سره اکتفاء کيږي إِلَّا إِذَا كَانَ الْبَاقِي أَرْدَأَ مِمَّا رَأٰى خو دا چې پاته افراد [اجزاء] د ليدل سوي فرد څخه زيات خراب وي فَحِينَئِذٍ يَكُونُ لَهُ الْخِيَارُ نو په دې وخت کې به مشتري ته خيار رؤيت حاصل وي وَإِنْ كَانَ يَتَفَاوَتُ آحَادُهَا او که د هغه شيانو افراد متفاوت وي كَالدَّوَابِّ وَالثِّيَابِ لکه څارويان او کپړې [ټالونه] لَا بُدَّ مِنْ رُؤْيَةِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهَا نو [په دې صورت کې] له هغوی څخه د هر يوه فرد ليدل ضروري دي وَالْجَوْزُ وَالْبَيْضُ مِنْ هٰذَا الْقَبِيلِ فِيمَا ذَكَرَهُ الْكَرْخِيُّ او د امام کرخي رَحِمَهُ الله په ذکر سوي قول کې جوز او هګۍ هم له دغه [يعني د متفاوت له] قبيلې څخه دي وَكَانَ يَنْبَغِي أَنْ يَكُونَ مِثْلَ الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ لېکن مناسب دا ده چې جوز او هګۍ دې د غنمو او اوربشو په څېر وي لِكَوْنِهَا مُتَقَارِبَةً ځکه چې د دوی افراد متقارب دي.

**اللغات:** ﴿صُبرة﴾ کوره، کوټه (د ډېرو شيانو مجموعه، مراد ځنې د غنمو او داسي نورو مجموعه ده)، ﴿مطوی﴾ د ضرب د باب اسم مفعول دی: پېچل سوی، ﴿كَفَل﴾ (بفتح الكاف والفاء) د څاروي کوناټي، د شا حصه، ﴿لا يتفاوت﴾ د تفاعل له بابه د نفي صيغه ده: مختلف کېدل، توپير پکښې راتلل، لايتفاوت آحادها: داسي شی چې د هغه هر، هر فرد مختلف نه وي، لکه غنم، جواري، اوربشي او داسي نور، ﴿مكيل﴾ پيمانه کېدونکی شی (په لوښي سره اندازه کېدونکی شی)، ﴿موزون﴾

وزن کېدونکی شی (تلل کېدونکی شی)، ﴿يعرض﴾ د مضارع مجهولي صيغه ده: پېښول (پېش کول)، وړاندي کول، ﴿نموذج﴾ نمونه (هغه شی کوم چي د وربنکاره کولو لپاره ايښول سوی وي)، مثل، نظير، ﴿أردأ﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات خراب، زيات بد.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که څوک صرف د غنمو د کوړي مخ (پورتنی حصې) ته اوګوري يا هغه رانيسي، يا مثلاً د پېچلي تان و ظاهري حصې ته اوګوري او هغه رانيسي او ټوله تان نه اوګوري، يا صرف د مينځي مخ ووېني او هغه رانيسي، يا صرف د څاروي مخ او شا ته اوګوري او هغه رانيسي، نو په دغو ټولو صورتونو کي مشتري ته خيارِ رؤيت نه حاصلېږي.

والأصل في هذا إلخ: په دې سره صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د خيار رؤيت د ساقطېدلو په سلسله کي يوه قاعده ذکر کوي، د قاعدې له تشريح څخه مخکي تاسو په دې ځان پوه کړئ! چي مبيع درې ډوله او درې قسمه وي: ① ټوله مبيع يو شی (شئ واحد) وي، لکه يو څاروی، يو کور او داسي نور، ② مبيع ډېر شيان وي لېکن هغوی متقاربُ الأحاد وي، لکه مکيلات او موزونات، ③ مبيع ډېر شيان وي لېکن هغوی متفاوتُ الأُحاد وي، مثلاً ډېر څارويان، د کپړې ډېر تانونه او داسي نور.

اوس که مبيع اول قسم وي (يعني شئ واحد وي) نو د خيار رؤيت د سقوط لپاره د پوره مبيع ليدل شرط نه دي؛ ځکه چي ځيني وخت مبيع غلام يا مينځه وي، يا د غنمو، اوربشو... غټه کوړه وي، او د دغو شيانو هر هر جزء ته کتل متعذر او مشکل دي، لهذا کله چي د دوی هر هر جزء ته کتل متعذر دي، نو صرف د هغه جزء په ليدلو سره به اکتفاء کيږي چي په هغه سره مقصود حاصل سي. او د غنمو پورتنی حصې ته په کتلو سره د غنمو د ښه والي او بدوالي اندازه معلوميږي، همدارنګه د پېچلي تان ظاهري حصې ته په کتلو سره د کپړې جوړ او د هغې ښه والی او بدوالی معلوميږي، لکه څرنګه چي د څاروي (سپارلی) مخ او شا ته په کتلو سره د هغه ښه والی او بدوالی ښکاره کيږي، نو کله چي په پورتني صورتونو کي د مذکوره شيانو په ليدلو سره د مقصود علم حاصلېږي او په مقصود مشتري خبرېږي، نو د رؤيت لپاره به صرف د همدغه شيانو رؤيت کافي وي، لهذا که څوک صرف مخ او ظاهري حصې ته اوګوري او شی رانيسي، نو د هغه خيار به ساقطيږي.

ولو دخل إلخ: فرمايي که چيري مبيع دويم قسم وي، يعني مبيع ډېر شيان وي لېکن د هغوی افراد متقارب وي، لکه وزني او کَيلي شيان، نو په دې صورت کي هم د يوه شي په ليدلو سره په پاته نورو شيانو کي خيارِ رؤيت ساقطيږي؛ ځکه کله چي مبيع متقاربُ الأحاد وي، نو ښکاره خبره ده چي په

هغوی کي به تفاوت او توپیر هم نه وي، یا به ډېر لږ غوندې تفاوت پکښې وي، او د تفاوت د نشتوالي په صورت کي د يوه جزء رؤيت د کل قائم مقام کيږي، لهذا دلته به هم د يوه شي په ليدلو سره په پاته شيانو کي خيار رؤيت ساقطيږي.

لېکن که په دې صورت کي د ليدل سوي جزء څخه بغير د مبيع پاته اجزاء ډېر خراب وي او د استعمالولو قابل نه وي، نو بيا په هغه پاته شيانو کي خيار رؤيت نه ساقطيږي، بلکي مشتري ته به دغه خيار حاصل وي.

وإن كان إلخ: فرمايي که چيري مبيع د دريم قسم سره متعلق وي، يعني مبيع ډېر شيان وي او هغوی متفاوتُ الأحاد وي، لکه ډېر څارويان، د کپړې ډېر تانونه او داسي نور، نو په دې صورت کي د يوه جزء په رؤيت او ليدلو سره په نورو اجزاؤ کي خيار رؤيت نه ساقطيږي، ځکه چي د متفاوتُ الأحاد کېدلو په وجه د يوه جزء په ليدلو سره د مبيع د نورو اجزاؤ ښه والی او خرابوالی نه معلوميږي، نو ځکه به دلته د مبيع د هر هر جزء ليدل ضروري وي، او د يوه جزء په ليدلو سره به په نورو اجزاؤ کي خيار رؤيت نه ساقطيږي.

وعلامته إلخ: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د متقاربُ الأحاد او د متفاوتُ الأحاد علامت او د هغوی د پېژندلو نښه دا بيان کړې ده چي که مبيع د هغو شيانو له قبيلې څخه وي چي ځيني له هغوی څخه د نمونې (او سيمپل) په توګه نه پېشول کيږي، نو هغوی متفاوتُ الأحاد دي، مثلاً مبيع د کپړې ډېر تانونه وي، يا ډېر څارويان وي، ښکاره خبره ده چي په هغوی کي د يو مخصوص تان يا څاروی په پېش کولو سره د پاته اجزاؤ ښه والی او بد والی نه سي معلومېدای، نو ځکه دا شيان متفاوتُ الأحاد دي، لهذا په هغوی کي د يوه رؤيت د بل لپاره کافي نه دی.

والجوز إلخ: فرمايي جوز او هګۍ د امام کرخي رَحِمَهُ الله د ذکر سوي قول مطابق متفاوتُ الأحاد دي؛ ځکه د ځينو د کوچنيوالي او غټوالي په وجه د هغوی په افرادو کي تفاوت زيات وي، لېکن د مصنف رَحِمَهُ الله ميلان ودې طرف ته دی چي جوز او هګۍ د اوربشو او غنمو په څېر متقاربُ الأحاد دي. او څرنګه چي په غنمو او اوربشو کي د ځينو په ليدلو سره په پاته اوربشو او غنمو کي خيار رؤيت ساقطيږي. همداسي به په جوز او هګۍ کي هم د ځينو په ليدلو سره په نورو کي خيار رؤيت ساقطيږي.

## د "رؤيت" تفصيل

إِذَا ثَبَتَ هٰذَا فَنَقُولُ: اَلنَّظَرُ إِلَىٰ وَجْهِ الصُّبْرَةِ كَافٍ کله چي دا قاعده ثابته سوه، نو موږ وايو: چي د غلې د کوړي مخ ته کتل کافي دي لِأَنَّهُ يُعْرَفُ وَصْفُ الْبَقِيَّةِ ځکه چي دا د پاته مبيع وصف معلوموي لِأَنَّهُ مَكِيلٌ يُعْرَضُ بِالنَّمُوذَجِ ځکه چي غله [يعني غنم او داسي نور] کيلي شي دي او هغه د نمونې په توګه پېشول کيږي وَكَذَا النَّظَرُ إِلَىٰ ظَاهِرِ الثَّوْبِ مِمَّا يُعْلَمُ بِهِ الْبَقِيَّةُ او همدارنګه د کپړې ظاهري حصې ته کتل داسي دي چي په هغه سره پاته کپړه معلوميږي إِلَّا إِذَا كَانَ فِي طَيِّهِ مَا يَكُونُ مَقْصُودًا خو دا چي د کپړې په ول [پېچ] کي داسي شی وي کوم چي مقصود وي كَمَوْضِعِ الْعَلَمِ لکه د نقش ونګار ځای وَالْوَجْهُ هُوَ الْمَقْصُودُ فِي الْآدَمِيِّ او په انسان کي [صرف] مخ مقصود وي وَهُوَ وَالْكَفَلُ فِي الدَّوَابِّ او په څارويو کي مخ او د شا حصه مقصود وي فَيُعْتَبَرُ رُؤْيَةُ الْمَقْصُودِ لهذا [صرف] د مقصود د ليدلو اعتبار به کيږي وَلَا يُعْتَبَرُ رُؤْيَةُ غَيْرِهِ او له مقصود څخه بغير [د نورو اجزاؤ] د ليدلو اعتبار به نه کيږي وَشَرَطَ بَعْضُهُمْ رُؤْيَةَ الْقَوَائِمِ او ځينو حضراتو د څاروي د پښو ليدل [هم] شرط کړي دي وَالْأَوَّلُ هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او اول قول له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی وَفِي شَاةِ اللَّحْمِ لَا بُدَّ مِنَ الْجَسِّ او د غوښو والا په بزه [او پسه] کي په لاس سره مسه کول ضروري دي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ وَهُوَ اللَّحْمُ يُعْرَفُ بِهِ ځکه چي [په دې صورت کي] مقصود يعني غوښي صرف د لاس په مسه کولو سره معلوميږي وَفِي شَاةِ الْقِنْيَةِ لَا بُدَّ مِنْ رُؤْيَةِ الضَّرْعِ او په پالل کېدونکې بزه کي د غولانځي ليدل ضروري دي وَفِيمَا يُطْعَمُ لَا بُدَّ مِنَ الذَّوْقِ او په خوړل کېدونکي شيانو کي څکل ضروري دي لِأَنَّ ذٰلِكَ هُوَ الْمُعَرِّفُ لِلْمَقْصُودِ ځکه چي صرف هغه د مقصود معلومونکي دي.

**اللغات**: ﴿يعرّف﴾ د تفعيل له بابه د مضارع معلومي صيغه ده: وروپېژندل، وربنوول، معلومول، ﴿طيّ﴾ پېچ، ول، ﴿العَلَم﴾ مراد ځني نقش ونګار او ګلکاري ده، ﴿قوائم﴾ جمع د قَائِمَةٌ ده: د څاروي پښې، ﴿جسّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: تلاش او لټون کول، په لاس سره مسه کول (لاس پر تېرول، په لاس سره کتل)، ﴿قِنْية﴾ او قُنْية: هغه څاروی کوم چي د پاللو لپاره وي، نه د ذبح کولو

لپاره (يعني هغه بزه، مېږه او داسي نور کوم چي د دې لپاره پالل کيږي چي بچي (مرغومي) ځني حاصل کړل سي).

﴿ضَرْع﴾ غولانځه (د څاروي د بدن هغه برخه چي شيدې پکښي زېرمه کيږي)، ﴿ذَوْق﴾ د ضرب مصدر دی: څکل (د شي خوند کتل).

تشريح: فرمايي کله چي تاسو د مبيع اقسام او د هغوی احکام وويل، نو اوس دا په ياد لرئ! چي په مخکښنی مسئله کې صرف د غنمو د کوړي مخ او پورتنی حصې ته کتل کافي دي؛ ځکه چي د پورتنی حصې په ليدلو سره د لاندي غنمو وصف (ښه والی او بدوالی) معلوميږي، همدارنګه د کپړي د ظاهري حصې په ليدلو سره هم د پاته کپړې وصف معلوميږي، نو ځکه په دې صورتونو کې به د بعضي حصې رؤيت کافي وي، او د بعضي په ليدلو سره به په مابقي کي خيار رؤيت ساقطيږي.

لېکن که په تان کي يو داسي شی وي چي د مشتري مقصود صرف هغه وي، مثلاً په تان کي ګلکاري سوې وي يعني نقشونه او ګلان پکښي وي او مشتري صرف د هغه په وجه تان رانيولی وي، لېکن هغه نقشونه د تان پر ظاهري حصه نه وي بلکي د هغه په داخلي (باطني) پيچ کي وي، نو په دې صورت کي د ظاهري حصې په رؤيت سره په هغه نقشونو او ګلانو کي خيار رؤيت نه ساقطيږي.

والوجه إلخ: فرمايي څرنګه چي د انسان په ټولو اندامونو کي د هغه مخ تر ټولو افضل او اشرف اندام دی، نو ځکه هغه به مقصود وي او صرف د هغه رؤيت به کافي وي، لکه څرنګه چي په څارويو کي د مخ سره شا (کوناټي) هم مقصود وي، نو ځکه په څارويو کي به د مخ او شا رؤيت کافي وي او د هغوی ليدل به په مابقي کي خيار ساقطوي.

ځيني حضراتو په څارويو کي د شا د ليدلو سره د هغوی د پښو ليدل هم شرط کړي دي، مګر اول قول چي په هغه کي صرف د مخ او شا د رؤيت يادونه سوې ده، هغه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول دی او هغه مختار او مفتیٰ به قول دی.

وفي شاة اللحم إلخ: که څوک بزه (يا پسه) رانيسي او د هغه مقصد ذبح کول او د بزې غوښي خوړل وي، نو په دې صورت کي پر بزې لاس تېرول (مسه کول) او د بزې بدن کتل ضروري دي (چي هغه چاغه ده که ډنګره)؛ ځکه چي دلته د مشتري مقصد غوښي دي او د غوښي وصف په لاس تېرولو او مسه کولو سره معلوميږي، نو ځکه به "جسّ" او "مسّ" ضروري وي.

ها! که څوک د پاللو لپاره بزه رانيسي يعني د دې لپاره يې رانيسي چي له هغې څخه شيدې او بچي (مرغومي) حاصل کړي، نو په دې صورت کي د بزې د غولانځو ليدل هم ضروري دي؛ ځکه دلته د مشتري مقصود پالل دي او د پاللو دار ومدار پر شيدو دی، نو ځکه د شيدو د ځای يعني د غولانځو ليدل به ضروري

وي. او د خوراک او چښاک په شيانو کې څکل (خوند کتل) ضروري دي، ځکه چې د هغوی ښه والی او بدوالی، مالګه، مرچ او داسې نور صرف په څکلو سره معلوميږي، نو ځکه څکل به ضروري وي او له هغه څخه بغير به رؤيت نه ساقطيږي.

## د پورتني بحث نور وضاحت

قَالَ: وَإِنْ رَأٰى صَحْنَ الدَّارِ فرمايي: که مشتري د کور صحن [غولی] وويني فَلَا خِيَارَ لَهُ نو هغه لره خيارِ رؤيت نشته [يعني د هغه خيارِ رؤيت ساقطيږي] وَإِنْ لَمْ يُشَاهِدْ بُيُوتَهَا که څه هم د کور خوني [کمرې] نه او ګوري وَكَذٰلِكَ إِذَا رَأٰى خَارِجَ الدَّارِ أَوْ رَأٰى أَشْجَارَ الْبُسْتَانِ مِنْ خَارِجٍ او همدارنګه کله چې د کور دباندينۍ حصه ووينې يا له دباندينۍ حصې څخه د باغ درختې ووينې [نو هم د هغه خيارِ رؤيت ساقطيږي] وَعِنْدَ زُفَرَ لَا بُدَّ مِنْ دُخُولِ دَاخِلِ الْبُيُوتِ ❁ او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز د خونو داخلي [دننه] حصې ته داخليدل ضروري دي وَالْأَصَحُّ أَنَّ جَوَابَ الْكِتَابِ عَلٰى وِفَاقِ عَادَتِهِمْ فِي الْأَبْنِيَةِ او صحيح خبره دا ده چې د عمارتونو په هکله د متن [قدوري] فيصله د هغو [يعني د کوفې او بغداد د خلکو] د عادت موافق ده فَإِنَّ دُوْرَهُمْ لَمْ تَكُنْ مُتَفَاوِتَةً يَوْمَئِذٍ ځکه چې په هغه وخت کې د هغو کورونه متفاوت [او عليحده] نه ول فَأَمَّا الْيَوْمَ فَلَا بُدَّ مِنَ الدُّخُولِ فِي دَاخِلِ الدَّارِ لِلتَّفَاوُتِ ليکن نن سبا د تفاوت په وجه د کور داخلي [دننه] حصې ته داخليدل ضروري دي وَالنَّظَرُ إِلَى الظَّاهِرِ لَا يُوْقِعُ الْعِلْمَ بِالدَّاخِلِ [ځکه چې] ظاهري حصې ته کتل د داخلي حصې علم [خبر] نه واقع کوي [يعني د ظاهري حصې په رؤيت او ليدلو سره د داخلي حصې وصف نه سي معلوميداى].

**اللغات**: ﴿صَحْن﴾ غولی (حويلي، صحن، انګر)، ﴿بيوت﴾ جمع د بَيْتٌ ده: مراد ځني خوني او کمرې دي، ﴿أبنية﴾ جمع د بِنَاءٌ ده: عمارتونه، (جوړې کړل سوي ودانۍ)، ﴿دُوْر﴾ جمع د دَارٌ ده: کورونه.

**تشريح**: مسئله دا ده چې پخوا به د کوفې او د بغداد په کورونو کې برابر والی وو (يعني د کور صحن او د خوني [کمرې] صحن او داخلي حصه به يو شان وه)، او داسې به ډېر کم پيښيدل چې د کور صحن او ظاهري حصه دې د خوني له صحن او داخلي حصې څخه جلا او متفاوت وي، نو ځکه په هغه زمانه کې حکم

❁ القول الراجح: قول زفر رَحِمَهُ الله كما قال صاحب الدر المختار: لابد من رؤية داخل الدار والبيوت وهو الصحيح وعليه الفتوى... وهٰذا اختلاف زمان لا برهان (ج:۴، ص:۷۴)، وكذا في الدر المنتقى (ج:۲، ص:۳۷). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۲]

دا وو چې که څوک صرف د کور صحن ووينې او کور رانيسي، نو د هغه خيارِ رؤيت به ساقطيږي، که څه هم د کور خونې نه ويني: ځکه چې هلته به د کور د صحن په ليدلو سره هم مقصود حاصليدی (يعنې صرف د کور د ظاهري حصې په ليدلو سره به هم د ټوله کور وصف معلومېدی)، نو ځکه به پر هغه اکتفاء کېدل.

لېکن څرنګه چې په اوسني وخت کې د کور د ظاهري حصې او باطني حصې په مينځ کې ډېر فرق راغلی دی، د جوړښت په اعتبار سره هم او د ماليت په اعتبار سره هم، نو ځکه په اوسني وخت کې د کور هري خونې ته داخلېدل او د هغې کتل ضروري دي، او صرف د کور و ظاهري حصې ته ياد خونې و خارجي حصې ته کتل کافي نه دي يعنې په دې سره خيارِ رؤيت نه ساقطيږي، همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک دی او همدا مفتیٰ به قول دی.

پاتې سوه دا مسئله چې که څوک له خارجي او دباندينې طرف څخه د باغ د درختو ظاهري حصو ته اوګوري، نو په ظاهر روايت کې په داسې خارجي رؤيت سره خيارِ رؤيت ساقطيږي، لېکن قاضي خان او نور مشائخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي چې په داسې رؤيت سره خيارِ رؤيت نه ساقطيږي: ځکه چې مقصود د باغ داخلي او دننه حصه وي، نو ځکه به په ظاهري او خارجي رؤيت سره دلته خيارِ رؤيت نه ساقطيږي.

## د وکيل او قاصد د رؤيت حکم او تفصيل

قَالَ: وَنَظَرُ الْوَكِيلِ كَنَظَرِ الْمُشْتَرِيْ حَتّٰى لَا يَرُدَّهُ إِلَّا مِنْ عَيْبٍ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: او د وکيل کتل د مشتري [مؤکل] د کتلو په څېر دي تر دې چې مشتري له عيب څخه بغير [په بل سبب سره] مبيع نه سي واپس کولای وَلَا يَكُوْنُ نَظَرُ الرَّسُوْلِ كَنَظَرِ الْمُشْتَرِيْ [لېکن] د قاصد [استازي] کتل د مشتري د کتلو په څېر نه دي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ ❁ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دي وَقَالَا: هُمَا سَوَاءٌ وَلَهُ أَنْ يَرُدَّهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې وکيل او قاصد دواړه سره برابر دي [همدارنګه] مشتري لره دا اختيار سته چې مبيع واپس کړي قَالَ: مَعْنَاهُ الْوَكِيلُ بِالْقَبْضِ صاحب د هداې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې [په متن کې] له وکيل څخه مراد وکيل بالقبض دی فَأَمَّا الْوَكِيلُ بِالشِّرَاءِ فَرُؤْيَتُهُ تُسْقِطُ الْخِيَارَ بِالْإِجْمَاعِ او کوم چې وکيل بالشراء دی نو د هغه ليدل په اجماع سره خيارِ رؤيت ساقطوي لَهُمَا:

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله كما يظهر من دأب صاحب الهداية، وكذا في التبيين (ج:۴، ص:۲۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۳]

أَنَّهُ تَوَكَّلَ بِالْقَبْضِ دُونَ إِسْقَاطِ الْخِيَارِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي دا وکيل د قبضه کولو وکيل جوړ سوی دی، نه د خيار ساقطولو امطلب دا چي مشتري هغه د قبضه کولو وکيل جوړ کړی دی. نه د خيار ساقطولو ا فَلَا يَمْلِكُ مَا لَمْ يَتَوَكَّلْ بِهِ لهذا د کوم شي چيٰ هغه وکيل نه دي جوړ سوی [نو] د هغه د کولو ملکيت [اختيار] به هم نه لري وَصَارَ كَخِيَارِ الْعَيْبِ وَالشَّرْطِ وَالْإِسْقَاطِ قَصْدًا او دا د خيارِ عيب، خيار شرط او د قصداً خيار ساقطولو په څېر سو. وَلَهُ: أَنَّ الْقَبْضَ نَوْعَانِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي قبضه پر دوه قسمه ده تَامٌّ وَهُوَ أَنْ يَقْبِضَهُ وَهُوَ يَرَاهُ [۱] يو قبضۀ تام ده. او هغه دا ده چي [وکيل] د مبيع د ليدلو په حالت کي پر مبيع قبضه وکړي وَنَاقِصٌ وَهُوَ أَنْ يَقْبِضَهُ مَسْتُورًا [۲] او بل قبضۀ ناقِص ده. او هغه دا ده چي د مبيع د پټوالي په حالت کي پر هغې قبضه وکړي وَهٰذَا لِأَنَّ تَمَامَهُ بِتَمَامِ الصَّفْقَةِ او دا تفصيل ځکه دی چي د قبضې پوره والی د صفقې په پوره کېدلو سره دی [يعني قبضه ځکه پر دوه قسمه ده چي د قبضې د تماميت او پوره والي دار ومدار د عقد پر پوره کېدلو دی] وَلَا تَتِمُّ مَعَ بَقَاءِ خِيَارِ الرُّؤْيَةِ او د خيار رؤيت د پاتېدلو سره صفقه نه تاميږي [يعني د خيار رؤيت د پاتېدلو په صورت کي عقد نه پوره کيږي] وَالْمُوَكِّلُ مَلَكَهُ بِنَوْعَيْهِ او مؤکل د قبضې د دواړو قسمونو [تام او ناقص] مالک وي فَكَذَا الْوَكِيلُ نو همداسي به وکيل هم [د قبضې د دواړو قسمونو مالک] وي وَمَتَى قَبَضَ الْمُوَكِّلُ وَهُوَ يَرَاهُ سَقَطَ الْخِيَارُ او کله چي مؤکل د مبيع د ليدلو په حالت کي پر هغې قبضه وکړي نو خيار ساقطيږي فَكَذَا الْوَكِيلُ نو همداسي به وکيل هم وي [يعني همداسي که وکيل مبيع ووېني او قبضه پر وکړي. نو هم به خيار ساقطيږي] لِإِطْلَاقِ التَّوْكِيلِ ځکه چي توکيل مطلق دی [يعني مشتري هغه د مطلق قبضې وکيل جوړ کړی دی] وَإِذَا قَبَضَهُ مَسْتُورًا او کله چي وکيل د مبيع د پټوالي په حالت کي پر هغې قبضه وکړي اِنْتَهَى التَّوْكِيلُ بِالنَّاقِصِ مِنْهُ نو د قبضه ناقص په وجه توکيل [وکالت] ختميږي فَلَا يَمْلِكُ إِسْقَاطَهُ قَصْدًا بَعْدَ ذٰلِكَ لهذا تر دې وروسته به وکيل قصداً د خيار ساقطولو مالک نه وي [يعني د قصداً خيار ساقطولو اختيار به نه لري] بِخِلَافِ خِيَارِ الْعَيْبِ په خلاف د خيار عيب

لِأَنَّهُ لَا يَمْنَعُ تَمَامَ الصَّفْقَةِ ځکه چې هغه د صفقې تماميت نه منع کوي [يعني خيارِ عيب د عقد له پوره والي ځخه مانع نه دی] فَيَتِمُّ الْقَبْضُ مَعَ بَقَائِهِ لهذا د خيارِ عيب د پاتېدلو سره به هم قبضه تامېږي وَخِيَارُ الشَّرْطِ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ او خيارِ شرط هم پر دغه اختلاف دی وَلَوْ سُلِّمَ فَالْمُوَكِّلُ لَا يَمْلِكُ التَّامَّ مِنْهُ او که تسليم هم کړی سي نو مؤکل [په خپله] د قبضۀ تام مالک نه دی فَإِنَّهُ لَا يَسْقُطُ بِقَبْضِهِ ځکه چې د مؤکل په قبضه کولو سره خيار نه ساقطيږي لِأَنَّ الِاخْتِبَارَ وَهُوَ الْمَقْصُودُ بِالْخِيَارِ يَكُونُ بَعْدَهُ ځکه چې غور او فکر کول کوم چې د خيارِ شرط مقصود دي هغه [د مبيع] تر قبضه کولو وروسته وي فَكَذَا لَا يَمْلِكُهُ وَكِيلُهُ لهذا همداسي به د مؤکل وکيل هم د قبضۀ تام مالک نه وي وَبِخِلَافِ الرَّسُولِ لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ شَيْئًا او په خلاف د قاصد ځکه چې هغه د هيڅ شي ملکيت نه لري [يعني هغه د قبضې او داسي نورو هيڅ اختيار نه لري] وَإِنَّمَا إِلَيْهِ تَبْلِيغُ الرِّسَالَةِ [بلکې] هغه صرف د پيغام رسولو اختيار لري وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ الْقَبْضَ وَالتَّسْلِيمَ إِذَا كَانَ رَسُولًا فِي الْبَيْعِ همدا وجه ده که هغه په بيع کې قاصد وي نو د قبضه کولو او ورسپارلو ملکيت نه لري.

**اللغات**: ﴿رسول﴾ قاصد، استازی، پيغام رسونکی، خبر ورونکی، ﴿وکيل بالقبض﴾ د قبضه کولو وکيل (يعني که څوک بيع وکړي او د مبيع د قبضه کولو لپاره بل څوک خپل وکيل جوړ کړي، نو هغه ته وکيل بالقبض وي، او که څوک د ځان لپاره بل څوک د يو شي د رانيولو وکيل جوړ کړي، نو هغه ته وکيل بالشراء وايي).
﴿تَوَكَّلَ﴾ د تفعّل ماضي ده: وکيل جوړېدل، وکالت قبلول (دالفظ نوري معناوي هم لري، خو دلته يې همدغه معنیٰ مراد ده). ﴿توکيل﴾ د تفعيل مصدر دی: وکيل جوړول، ﴿نوعَيْه﴾ دوه قسمونه، دا په اصل کې "نوعَيْن" وو، نون د اضافت په وجه حذف سو، ﴿صفقة﴾ معامله، عقد، ﴿اختبار﴾ د افتعال مصدر دی: ازمايل، (معلومول)، مراد ځني په مبيع کې غور او فکر کول دي کوم چې د خيارِ شرط مقصد دی.

**تشريح**: په دې عبارت کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د جامع صغير يوه مسئله بيان کړې ده کوم چې د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په مينځ کې مختلف فيها ده.
مسئله دا ده که يو سړی د ليدلو څخه بغير يو شی رانيسي او بيا دا سړی بل څوک پر هغه شي د قبضه کولو وکيل جوړ کړي، او وکيل هغه شی ووينې او پر هغه قبضه وکړي، نو په دې صورت کې

د مشتري خيار رؤيت ساقطيږي، او د وکيل ليدل د مشتري د ليدلو قائم مقام کيږي، نو د وکيل د ليدلو او قبضه کولو څخه وروسته به مشتري (مؤکل) ته دخيار رؤيت پر بناء د مبيع واپس کولو حق نه وي، لېکن که په مبيع کې يو عيب وي، نو په دې صورت کې مشتري هغه واپس کولای سي.
او که چيري د مشتري قاصد (رسول) دا کار وکړي او هغه مبيع ووينې او پر هغې قبضه وکړي، نو په دې صورت کې د مشتري خيار نه ساقطيږي، بلکې اوس به هم مشتري ته د خيار رؤيت پر بناء د مبيع واپس کولو حق وي.

د وکيل او قاصد د رؤيت دغه فرق د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی، کنې صاحبين رَحِمَهُمَا الله په دواړو صورتونو کې د مشتري لپاره د عدم سقوط الخيار قائل دي (يعني د دوی په نېز په دواړو صورتونو کې د مشتري خيار نه ساقطيږي)، برابره ده که د مشتري وکيل مبيع ووينې او که د مشتري قاصد يې ووينې، په هر صورت کې د هغه خيار رؤيت باقي پاتيږي، او د خيار رؤيت پر بناء به هغه ته د مبيع واپس کولو حق وي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې مشتري ودغه وکيل ته صرف پر مبيع د قبضه کولو وکالت ورکړی دی، د خيار د ساقطولو وکالت يې نه دي ورکړی، لهذا کله چې وکيل د خيار ساقطولو وکيل نه دي جوړ سوی نو بيا به هغه د اسقاط الخيار (خيار ساقطولو) مالک هم نه وي، ها! هغه صرف د قبضه کولو وکيل دی، لهذا د هغه وکالت به صرف د مبيع تر قبضه کولو پوري محدود وي او دا وکالت به په اسقاط الخيار کي مؤثر نه وي.

او دا داسي ده لکه يو څوک چې يو شی رانيسي او بل سړی پر هغه د قبضه کولو وکيل جوړ کړي، او وکيل د قبضه کولو پر وخت په هغه شي کي عيب ووينې خو د عيب باوجود پر هغه قبضه وکړي، نو هم د مؤکل (مشتري) خيار عيب نه ساقطيږي.

همدارنګه که يو څوک په خيار شرط سره يو شی رانيسي او بل څوک د قبضه کولو وکيل جوړ کړي او وکيل مبيع ووينې او پر هغې قبضه وکړي، نو هم د مؤکل (مشتري) خيار شرط نه ساقطيږي.

همداسي که يو څوک بل سړی پر مبيع د قبضه کولو وکيل جوړ کړي، او وکيل د ليدلو څخه بغير پر هغه شي قبضه وکړي، نو اوس که تر ليدلو وروسته هغه بالقصد (قصداً) د خيار رؤيت ساقطول وغواړي نو داسي نه سي کولای، بلکې د مؤکل (مشتري) خيار باقي پاتيږي.

نو څرنګه چې د خيار عيب، خيار شرط او د اسقاط بالقصد په صورتونو کې د وکيل په رؤيت سره د مؤکل خيار رؤيت نه ساقطيږي، همداسي به د وکيل بالقبض په ليدلو او قبضه کولو سره هم د مؤکل خيار رؤيت نه ساقطيږي.

**د امام صاحب دليل**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چي په دې مسئله کي وکيل "وکيل بالقبض" دی. او قبضه پر دوه قسمه ده: ① قبضۀ تام. يعني تر ليدلو وروسته پر مبيع قبضه کول. ② قبضۀ ناقص. يعني د ليدلو څخه بغير پر مبيع قبضه کول. او قبضه ځکه پر دې دوه قسمه ده چي د قبضې د تماميت او پوره والي دار ومدار د صفقې پر تماميت او پوره والي دی. او د خيار رؤيت په بقاء او موجوديت کي صفقه نه تاميږي. يعني که مشتري مبيع ووينې او پر هغې قبضه وکړي نو ښکاره خبره ده چي خيار رؤيت ساقطيږي او صفقه تاميږي (يعني که مشتري تر ليدلو وروسته پر مبيع قبضه وکړي. نو صفقه تام ده). او که مشتري د ليدلو څخه بغير پر مبيع قبضه وکړي. نو څرنګه چي په دې صورت کي خيار رؤيت باقي او موجود دی. نو ځکه صفقه ناقصه ده. او کله چي صفقه ناقصه ده نو قبضه به هم ناقصه وي. خلاصه دا چي مشتري (مؤکل) د قبضې د دواړو قسمونو (تام او ناقص) مالک وي. او څرنګه چي د وکيل بالقبض توکيل مطلق دی (يعني مشتري هغه د مطلق قبضې وکيل جوړ کړی دی)، نو د "المطلق إذا أُطلق يُراد به الفرد الكامل" پر بناء به وکيل هم د قبضې د دواړو قسمونو مالک وي. او څرنګه چي د مؤکل د ليدلو او قبضه کولو په صورت کي صفقه تاميږي او لازميږي او خيار رؤيت ساقطيږي. همداسي به د وکيل د ليدلو او قبضه کولو په صورت کي هم صفقه تاميږي او خيار رؤيت به ساقطيږي؛ ځکه چي د مؤکل په څېر وکيل هم د قبضې د دواړو قسمونو يعني د تام او ناقص مالک دی.

وإذا قبضه إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال: دا صحيح نه دي چي تاسو د مشتري وکيل کما حقه د مشتري په څېر ګرځولی دی او د هغه لپاره مو د مشتري په څېر د قبضې دواړه قسمونه ثابت کړي دي؛ ځکه که مشتري (مؤکل) د ليدلو څخه بغير پر مبيع قبضه وکړي او وروسته خپل خيار ساقطول وغواړي. نو هغه داسي کولای سي. لېکن که وکيل د ليدلو څخه بغير پر مبيع قبضه وکړي او بيا بالقصد خيار ساقطول وغواړي. نو هغه داسي نه سي کولای. معلومه سوه چي دغه وکيل من كُل وجه د مؤکل (مشتري) په درجه کي نه دی. او کله چي هغه من كُل وجه د مؤکل په حکم کي نه دی. نو د هغه لپاره د مؤکل اختيارات ثابتول هم صحيح نه دي.

صاحب د هدايې د دې سوال په جواب کي فرمايي چي وکيل ته د مؤکل (مشتري) له طرفه صرف د قبضه کولو حکم سوی دی. لهذا محض په قبضه کولو سره د هغه وکالت ختميږي. برابره ده هغه قبضۀ تام وکړي يا ناقص وکړي. که چيري قبضۀ تام وکړي نو د مؤکل (مشتري) خيار ساقطيږي. او که قبضۀ ناقص وکړي نو محض په قبضه کولو سره د هغه وکالت ختميږي. او تر

وکالت ختمېدلو وروسته هغه د مؤکل (مشتري) لپاره داجنبي په څېر ګرځي، او اجنبي سړی د مشتري په حق کې نه د يو شي د ثابتولو (اثبات الشي) مالک وي او نه د يو شي د ساقطولو (اسقاط الشي) مالک وي، لهذا کله چې هم وکيل محض په قبضه (ناقص) سره اجنبي سو. نو بيا به هغه د اسقاط الخيار مالک نه وي.

بخلاف خيار العيب: دا د صاحبينو د قياس جواب دی، حاصل د جواب دا دی چې خيار رؤيت پر خيار عيب قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چې خيار عيب د صفقې له تماميت (پوره والي) څخه مانع نه وي يعني د خيار عيب باوجود هم صفقه تامېږي (پوره کېږي)، او د قبضې تام کېدل پر همدغه د صفقې پر تماميت موقوف وي، لهذا کله چې په خيار عيب کې صفقه تامېږي نو قبضه به هم تامېږي، حال دا چې د خيار رؤيت په صورت کې نه صفقه تامېږي او نه قبضه تامېږي، لهذا د دومره فرق سره به يو پر بل قياسول صحيح نه وي.

وخيار الشرط إلخ: فرمايي چې خيار رؤيت پر خيار شرط هم قياسول صحيح نه دي؛ ځکه که يو څوک په خيار شرط سره يو شی رانيسي او بل سړی پر هغه د قبضه کولو وکيل جوړ کړي، او دا بل سړی (وکيل بالقبض) مبيع ووينې او پر هغه قبضه وکړي، نو دغه مسئله هم د امام صاحب او صاحبينو په مينځ کې مختلف فيها ده، يعني د امام صاحب په نېز په دې صورت کې د مؤکل خيار ساقطېږي، او د صاحبينو په نېز نه ساقطېږي بلکې باقي پاتېږي، لهذا کله چې دا (د خيار شرط) مسئله په خپله مختلف فيها ده او خصم ته تسليم نه ده، نو پر هغې به بله مسئله قياسول ولې صحيح وي!؟.

ولوسلم إلخ: فرمايي که د صاحبينو دا خبره ومنل سي (يعني که بيا هم د صاحبينو دا خبره موږ تسليم کړو) چې که وکيل بالقبض مبيع ووينې او پر هغه قبضه وکړي نو د مؤکل خيار شرط نه ساقطېږي، نو په دې صورت کې به د دوی د قياس جواب دا وي چې د خيار شرط په موجوديت کې هم صفقه نه تامېږي (يعني که مؤکل خيار شرط واخلي او په خپله پر مبيع قبضه وکړي، نو هم خيار شرط نه ساقطېږي)؛ ځکه چې د خيار شرط مقصد په مبيع کې غور او فکر کول او د مبيع خوښول دي، او ښکاره خبره ده چې دا مقصد بعد القبض حاصلېږي، لهذا که چېري تر قبضې مخکې يا د وکيل تر قبضې وروسته خيار شرط ساقط ومنل سي، نو بالکل د خيار شرط مقصد به فوت سي، او بل دا چې په خپله د مؤکل (مشتري) په قبضه سره دغه خيار نه ساقطېږي، نو وکيل کوم چې د هغه نائب او قائم مقام دی، د هغه په قبضه سره به څنګه ساقط سي !؟، يعني کله چې د مؤکل او اصل قبضه خيار

شرط نه سي ساقطولای، نو د نائب او فرع قبضه خو هغه ته حرکت هم نه سي ورکولای. ساقطول خو هلته پرېږده!.

وبخلاف الرسول إلخ: فرمايي چي د خيار رؤيت مسئله د قاصد (رسول) پر مسئله قياسول هم صحيح نه دي؛ ځکه چي په وکيل او قاصد کي د ځمکي او آسمان فرق دی؛ ځکه وکيل بالبيع د قبضې او تسليم دواړو مالک وي (يعني د دواړو ملکيت او اختيار لري)، لېکن قاصد صرف د پيغام رسولو مالک او په دې سره مکلف وي، لهذا کله چي هغه د قبضې مالک نه دی، نو د هغه پر قبضې به د بل چا قبضه قياسول څنګه صحيح وي!؟.

## د نابينا سرې خيار رؤيت

قَالَ: وَبَيْعُ الْأَعْمٰى وَشِرَاؤُهُ جَائِزٌ فرمايي: او د نابينا [ړانده] سرې خرڅول او رانيول جائز دي وَلَهُ الْخِيَارُ إِذَا اشْتَرٰى او هغه ته به خيار وي کله چي شی رانيسي لِأَنَّهُ اشْتَرٰى مَا لَمْ يَرَهُ ځکه چي هغه داسي شی رانيوی کوم چي يې ليدلی نه دی [يعني هغه د ليدلو څخه بغير شی رانيوی] وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او موږ د دې تفصيل مخکي بيان کړی دی ثُمَّ يَسْقُطُ خِيَارُهُ بِجَسِّهِ الْمَبِيعَ إِذَا كَانَ يُعْرَفُ بِالْجَسِّ بيا د مبيع په مسه کولو [لاس تېرولو] سره د هغه خيار ساقطيږي، کله چي مبيع په مسه کولو سره پېژندل کيږي [يعني که مبيع داسي شی وي کوم چي په مسه کولو سره معلوميږي نو په دې صورت کي د نابينا مشتري په مسه کولو سره د هغه خيار ساقطيږي] وَبِشَمِّهِ إِذَا كَانَ يُعْرَفُ بِالشَّمِّ [همدارنګه] د مبيع په بويولو سره [د هغه خيار ساقطيږي] کله چي مبيع په بويولو سره پېژندل کيږي وَبِذَوْقِهِ إِذَا كَانَ يُعْرَفُ بِالذَّوْقِ او د مبيع په څکلو سره [د هغه خيار ساقطيږي] کله چي په څکلو سره هغه پېژندل کيږي كَمَا فِي الْبَصِيرِ لکه څرنګه چي د بينا [ليدونکي] سرې په حق کي [دا حکم] دی وَلَا يَسْقُطُ خِيَارُهُ فِي الْعَقَارِ حَتّٰى يُوْصَفَ لَهُ او په ځمکه کي د هغه خيار نه ساقطيږي تر دې چي هغه ته [د ځمکي] وصف بيان کړی سي لِأَنَّ الْوَصْفَ يُقَامُ مَقَامَ الرُّؤْيَةِ ځکه چي وصف د رؤيت قائم مقام کيږي كَمَا فِي السَّلَمِ لکه څرنګه چي په بيع سَلَم کي [داسي کيږي] وَعَنْ أَبِي يُوْسُفَ أَنَّهُ إِذَا وَقَفَ فِي مَكَانٍ لَوْ كَانَ بَصِيرًا لَرَآهُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي که نابينا کس [د ځمکي] په داسي ځای کي

ودرېږي چي که هغه بينا [ليدونکي] واى نو [پوره] ځمکه به يې ليدلې واى وَقَالَ: قَدْ رَضِيْتُ او بيا [په دې حالت کي] داسي ووايي: رضيتُ [زه په بيع راضي يم] سَقَطَ خِيَارُهُ نو د هغه خيار ساقطيږي لِأَنَّ التَّشْبِيْهَ يُقَامُ مَقَامَ الْحَقِيقَةِ فِي مَوْضِعِ الْعَجْزِ ځکه چي د عجز [عاجز والي] په ځاى کي تشبيه د حقيقت قائم مقام کيږي كَتَحْرِيكِ الشَّفَتَيْنِ يُقَامُ مَقَامَ الْقِرَاءَةِ فِي حَقِّ الْأَخْرَسِ فِي الصَّلَاةِ لکه په لمانځه کي چي د گونگي سړي په حق کي د شونډانو ښورول د قرائت قائم مقام دي وَإِجْرَاءِ الْمُوسٰى مَقَامَ الْحَلْقِ فِي حَقِّ مَنْ لَا شَعْرَلَهُ فِي الْحَجِّ او لکه په حج کي چي د پک [گنجه] سړي په حق کي د خريلو مشين [پر سر] تېرول د خريلو قائم مقام دي وَقَالَ الْحَسَنُ: يُوَكِّلُ وَكِيْلًا يَقْبِضُهُ وَهُوَيَرَاهُ او حسن بن زياد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي نابينا کس دي يو وکيل [بالقبض] مقرر کړي چي هغه د مبيع د ليدلو په حالت کي پر مبيع قبضه وکړي وَهٰذَا أَشْبَهُ بِقَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول سره زيات مشابه دى لِأَنَّ رُؤْيَةَ الْوَكِيلِ كَرُؤْيَةِ الْمُوَكِّلِ عَلٰى مَا مَرَّ آنِفًا ځکه چي [د امام صاحب په نېز] د وکيل رؤيت د مؤکل د رؤيت په شېر دى.

**اللغات**: ﴿اعمىٰ﴾ ړوند، نابينا سړى، بې سترگو، ﴿جسّ﴾ د نصر د باب مصدر دى: په لاس سره مسه کول (په لاس سره کتل، لاس پر تېرول)، ﴿شمّ﴾ د نصر د باب مصدر دى: بوېول، ﴿ذوق﴾ دا هم د نصر د باب مصدر دى: څکل (خوند کتل)، ﴿بصير﴾ ليدونکى، بينا، ﴿تحريك﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: ښورول، ﴿شفتَين﴾ تثنيه د شَفَةٌ ده: دواړه شونډان، ﴿أخرس﴾ گونگى (له څه ويلو او خبرو کولو څخه بې برخى)، ﴿إجراء﴾ د افعال مصدر دى: جاري کول (مراد ځني پر سر تېرول دي)، ﴿موسٰى﴾ د وريښتانو د خريلو مشين (ماشين)، ﴿حَلق﴾ د ضرب مصدر دى: خرول، خريل (خرېيل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چي د احنافو په نېز د نابينا (ړانده) سړي بيع صحيح او جائز ده، او که چيري هغه يو شى رانيسي نو هغه ته خيار رؤيت حاصلېږي؛ ځکه مخکي دا خبره ذکر سوه چي د ليدلو څخه بغير د يو شي د رانيولو په صورت کي خيارِ رؤيت حاصلېږي، نو څرنگه چي روغ او بينا سړى د ليدلو څخه بغير يو شى رانيسي نو هغه ته خيارِ رؤيت حاصلېږي، همداسي که نابينا سړى يو شى رانيسي، نو هغه ته به هم خيارِ رؤيت حاصلېږي، ځکه چي هغه د ليدلو څخه بغير شى رانيولى دى.

ثم يسقط إلخ: د دې حاصل دا دی چې کله د نابينا لپاره خيار رؤيت ثابت دی نو بيا به هغه څنګه ساقطيږي؟ فرمايي څرنګه چې د روغ او بينا سړي په حق کې د پوره مبيع کتل (رؤيت) مشکل او متعذر وي او د هغه په حق کې علم بالمقصود رؤيت ګرځول کيږي او په دې سره د هغه خيار ساقطيږي، همداسي به د نابينا په حق کې هم علم بالمقصود رؤيت ګرځول کيږي او د همدغه علم بالمقصود په ذريعه به د هغه رؤيت ساقطيږي. او د کوم شي تعلق چې د مسه کولو سره دی، يعني کومه مبيع چې په لاس تېرولو او مسه کولو سره پېژندل کيږي، که نابينا مشتري داسي مبيع رانيسي او بيا يې مسه کړي يعني لاس پر تېر کړي او اندازه يې معلومه کړي، نو د هغه خيار ساقطيږي، او که مبيع په بويولو "شَمّ" سره پېژندل کيږي يا په څکلو "ذَوْق" سره هغه پېژندل کيږي، نو د نابينا مشتري په بويولو او څکلو سره د هغه خيار ساقطيږي، لکه څرنګه چې مشتري روغ او بينا وي، نو هم د داسي مبيع په "شَمّ" يا "ذَوْق" سره مشتري په مقصود خبريږي او د هغه خيار رؤيت ساقطيږي؛ ځکه چې علم بالمقصود ضروري دی، او په داسي مبيع کې چې څرنګه بينا سړی په بويولو او څکلو سره په مقصود خبريږي او په دې سبب سره د هغه خيار رؤيت ساقطيږي، همداسي نابينا هم په دا ډول مبيع کې په بويولو، څکلو، مسه کولو او داسي نورو سره په مقصود خبريږي، لهذا د بينا په څېر به د هغه خيار هم ساقطيږي.

ولا يسقط إلخ: فرمايي که نابينا مشتري ځمکه رانيسي (يعني داسي شی رانيسي کوم چې د مذوقه او مشمومه شيانو له قبيلې څخه نه وي)، نو تر څو چې هغه ته د دې ځمکي کما حقه وصف بيان نه کړی سي، د هغه خيار رؤيت نه ساقطيږي؛ ځکه چې په دا ډول مبيع کې د وصف بيان د رؤيت قائم مقام ګرځول سوی دی، لهذا تر څو چې د وصف بيانولو په ذريعه نابينا مشتري پوره خبر نه کړل سي، د هغه خيار رؤيت نه ساقطيږي. او لکه څرنګه چې په بيع سَلَم کې مبيع (مسلم فيه) مخته حاضر نه وي او هلته د مبيع وصف بيانول د مبيع قائم مقام کيږي (يعني په وصف بيانولو سره هلته مبيع حاضر ګڼل کيږي)، همداسي به دلته هم د وصف بيان د رؤيت قائم مقام کيږي.

وعن أبي يوسف إلخ: د دې حاصل دا دی چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز که نابينا سړی د ځمکي د رانيولو په وخت کې د ځمکي پر داسي (لوړ) ځای ولاړ وي (يا ودرول سي) چې که هغه روغ او بينا وای نو ټوله رانيول سوې ځمکه به يې ليدلې وای، نو که په دې حالت کې هغه "رضيتُ" ووايي يا د بيع د نافذېدلو حکم وکړي، نو د هغه خيار ساقطيږي؛ ځکه ښکاره خبره ده چې دلته د نابينا سړي په حق کې ليدل (رؤيت) ناممکن دي او د ليدلو څخه هغه بالکل عاجز دی، او اُصول دا دی چې د عجز په

ځای کي تشبيه د حقيقت قائم مقام کيږي (يعني که څوک د حقيقي کار کولو څخه عاجز وي. نو د هغه کار سره چي کوم کار مشابه وي د هغه په کولو سره هم حقيقت (حقيقي کار) اداء کيږي). لکه د ګونګي په حق کي چي "عجز عن القراءة" ثابت دی. نو د هغه په حق کي "تحريکُ الشفتين" د قرائت قائم مقام دي، همدارنګه د پک (ګنجه) سړي په حق کي "عجز عن الحلق" ثابت دی. لهذا د هغه په حق کي د سر خريلو ماشين پر سر تېرول د حَلْق (سر خريلو) قائم مقام دي، نو څرنګه چي په دې دوو صورتونو کي د عجز ثابتېدلو په وجه نورو کارونو يعني تشبيهاتو ته د حقيقت درجه ورکول سوې ده، همداسي به د نابينا په حق کي هم د "عجز عن الرؤية" د ثابتېدلو په وجه تشبيه ته د حقيقت (رؤيت) درجه ورکول کيږي (يعني په ځمکه کي د نابينا سړي درېدلو ته به د رؤيت درجه ورکول کيږي) او د رؤيت د ثابتېدلو په صورت کي خيار ساقطيږي، لهذا کوم شی چي د حقيقت قائم مقام دی (چي هغه په ځمکه کي پر مخصوص ځای د نابينا درېدل يا درول دي)، نو د هغه د ثابتېدلو په صورت کي به هم خيار ساقطيږي.

حسن بن زياد رَحِمَهُ الله فرمايي: غوره دا ده چي نابينا کس تر رانيولو وروسته بل څوک خپل وکيل بالقبض جوړ کړي، د دې لپاره چي دا وکيل مبيع ووينې او پر هغې قبضه وکړي، او د وکيل رؤيت د مؤکل رؤيت شمارل کيږي، دا قول دامام صاحب رَحِمَهُ الله د قول سره زيات مشابه دی: ځکه چي امام صاحب د وکيل رؤيت د مؤکل د رؤيت په څېر ګڼي (يعني د هغه په نېز د وکيل رؤيت په درجه او حکم کي داسي دی لکه د مؤکل رؤيت).

## د خيارِ رؤيت يو ځانګړې صورت

قَالَ: وَمَنْ رَأَى أَحَدَ الثَّوْبَيْنِ فَاشْتَرَاهُمَا ثُمَّ رَأَى الْآخَرَ فرمايي: او که څوک د کپړې له دوو تانو څخه صرف يو تان ووينې او دواړه رانيسي بيا دويم تان ووينې جَازَ لَهُ أَنْ يَرُدَّهُمَا نو د هغه لپاره دا جائز دي چي دواړه تانونه واپس کړي لِأَنَّ رُؤْيَةَ أَحَدِهِمَا لَا تَكُونُ رُؤْيَةَ الْآخَرِ لِلتَّفَاوُتِ فِي الثِّيَابِ ځکه چي په کپړو کي د تفاوت په وجه د يوه تان ليدل د دويم تان ليدل نه شمارل کيږي فَبَقِيَ الْخِيَارُ فِيمَا لَمْ يَرَهُ لهذا په ناليدل سوي تان کي به خيار رؤيت باقي پاته وي ثُمَّ لَا يَرُدُّهُ وَحْدَهُ بَلْ يَرُدُّهُمَا بيا مشتري به يوازي هغه [ناليدل سوی] تان نه واپس کوي بلکي دواړه به واپس کوي كَيْ لَا يَكُونَ تَفْرِيقًا لِلصَّفْقَةِ قَبْلَ التَّمَامِ د دې لپاره چي د عقد له پوره کېدلو څخه مخکي صفقه متفرقه نه سي وَهٰذَا لِأَنَّ الصَّفْقَةَ لَا

تَتِمُّ مَعَ خِيَارِ الرُّؤْيَةِ قَبْلَ الْقَبْضِ وَبَعْدَهُ او دا ځکه چي د خيار رؤيت سره صفقه نه پوره کيږي، تر قبضې مخکي هم او تر قبضې وروسته هم [يعني برابره ده پر مبيع قبضه وسي او که نه وسي، د خيار رؤيت په موجوديت کي عقد نه پوره کيږي] وَلِهٰذَا يَتَمَكَّنُ مِنَ الرَّدِّ بِغَيْرِ قَضَاءٍ وَلَا رِضَاءٍ او له همدې کبله مشتري [د قاضي] له فيصلې او [د بائع] له رضا څخه بغير هم مبيع واپس کولای سي وَيَكُونُ فَسْخًا مِنَ الْأَصْلِ او دغه واپس کول به له اصل عقد څخه فسخ وي [يعني د مشتري دا "واپس کول" به له شروع او بنياد څخه "د عقد فسخ کول" شمارل کيږي] وَمَنْ مَاتَ وَلَهُ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ او که څوک مړ سي او د هغه لپاره خيار رؤيت وي بَطَلَ خِيَارُهُ نو د هغه خِيار باطليږي لِأَنَّهُ لَا يَجْرِي فِيهِ الْإِرْثُ عِنْدَنَا ځکه چي زموږ په نيز په خِيار کي وراثت نه جاري کيږي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي خِيَارِ الشَّرْطِ او دا بحث موږ په خيارِ شرط کي ذکر ی دی.

**اللغات:** ﴿ثوب﴾ کپړه (مجازاً تان ته هم ويل کيږي لکه مخکي چي ذکر سوه، او دلته يې دواړي معناوي مراد کېدای سي)، ﴿تفاوت﴾ د تفاعل مصدر دی: جلا کېدل، توپير پکښي راتلل، ﴿تفريق﴾ د تفعيل مصدر دی: جلا کول، بېلول، ﴿صفقة﴾ عقد (معامله)، ﴿تفريقًا للصفقة قبل التمام﴾ د دې مطلب دا دی چي کله بيع او عقد يو وي او هغه تر اوسه پوره سوی نه وي او په همدې وخت کي نيمه مبيع واخيستل سي او نيمه واپس کړل سي، نو دا له عقد پوره کېدلو څخه مخکي د صفقې متفرق کول (بېلول) دي، دا جائز نه دي، ﴿إرث﴾ ميراث، وراثت.

**تشريح:** مخکي دا خبره تېره سوه چي که مبيع د متفاوتُ الاحاد شيانو له قبيلې څخه وي، نو په دې صورت کي د مبيع هر، هر جزء ليدل ضروري دي، او د مبيع د يوه جزء رؤيت د کل نه قائم مقام کيږي، دغه خبره په دې مسئله کي په یاد لرئ!.

**مسئله:** دا ده که يو څوک د کپړې (ټوکر) دوه تانه رانيسي، او له هغوی څخه صرف يو تان ويني او بل يو نه ويني، نو د دويم تان د ليدلو په وخت کي که د مشتري دويم تان خوښ نه سي نو هغه ته د دواړو تانو د واپس کولو حق سته؛ ځکه چي د کپړو په وصف او قيمتونو کي تفاوت زيات وي او هغه د متفاوت الاحاد مبيع په درجه کي وي، او تاسو ته معلومه ده چي د متفاوت الاحاد مبيع د هر جزء ليدل ضروري دي، له هغوی څخه د يوه جزء رؤيت د کل رؤيت نه شمارل کيږي، لهذا دلته به هم د ليدل سوي تان رؤيت د ناليدل سوي تان لپاره رؤيت نه وي او په هغه کي به خيارِ رؤيت باقي پاته وي، او مشتري ته به د ردّ (واپس کولو) اختيار وي.

ثم لا يرده إلخ: فرمايي چې په دې مسئله کې مشتري ته صرف د ناليدل سوي تان د واپس کولو اختيار نسته، بلکې پر هغه د دواړو تانو واپس کول ضروري دي (يعني هم ناليدل سوی تان او هم ليدل سوی تان)؛ ځکه چې هغه دواړه پر يوه ځای رانيولي دي، او په يوه تان کې خيار رؤيت باقي پاته دی، او د خيار رؤيت په موجوديت کې صفقه نه تاميږي، برابره ده پر مبيع قبضه وسي او که نه، لهذا که مشتري له دواړو تانو څخه صرف يو تان واپس کړي، نو د عقد له تامېدلو څخه مخکې به صفقه متفرقه سي، حال دا چې په حديث شريف کې د عقد او صفقې له تامېدلو څخه مخکې د صفقې له تفريق څخه منع سوې ده، لهذا دا ممانعت به دلته هم جاري کيږي او مشتري ته به صرف د يوه تان د واپس کولو اختيار نه وي. او د صفقې د دغه نه تامېدلو په وجه به مشتري په هر حال کې د مبيع د واپس کولو مالک وي، برابره ده قاضي فيصله وکړي او که يې نه وکړي، همدارنګه برابره ده بائع راضي وي او که نه وي، په هر صورت کې به هغه د مبيع د واپس کولو مالک وي. او دغه واپس کول به د عقد له ابتداء څخه فسخ شمارل کيږي، يعني که هغه مبيع واپس کړي نو دا به ويل کيږي چې له سره بالکل عقد سوی نه وو؛ ځکه چې د نه ليدلو په وجه په دويم تان کې د مشتري رضا معدوم وه، حال دا چې بيع "مبادلةُ المال بالمال بالتراضي" ته وايي. او هغه (تراضي) دلته نسته (يعني ګواکي د عقد په وخت کې مشتري په دويم تان راضي نه وو)، نو ځکه به دغه واپس کول فسخ من الأصل شمارل کيږي.

ومن مات إلخ: فرمايي که چيري "من له الخيار" مړ سي نو څرنګه چې د هغه خيار شرط باطليږي، همداسي د هغه خيار رؤيت هم باطليږي او د وارثانو وطرف ته نه نقل کيږي؛ ځکه مخکې هم دا بحث تېر سو چې په خيار کې وراثت نه جاري کيږي؛ ځکه خيار د اعراضو له قبيلې څخه دی، او اعراض انتقال او بدلون نه قبلوي.

## تر بيع مخکې د رؤيت بيان

وَمَنْ رَأَى شَيْئًا ثُمَّ اشْتَرَاهُ بَعْدَ مُدَّةٍ او که څوک يو شی ووينې بيا څه مودت وروسته هغه رانيسي فَإِنْ كَانَ عَلَى الصِّفَةِ الَّتِي رَآهُ نو که دا شی پر هغه صفت وي څرنګه چې يې ليدلی وي فَلَا خِيَارَ لَهُ نو هغه ته به خيار نه وي لِأَنَّ الْعِلْمَ بِأَوْصَافِهِ حَاصِلٌ لَهُ بِالرُّؤْيَةِ السَّابِقَةِ ځکه چې د هغه شي د اوصافو علم په مخکني [اول] رؤيت سره مشتري ته حاصل دی [يعني ځکه چې په اول رؤيت سره مشتري ته د هغه اوصاف معلوم سوا] وَبِفَوَاتِهِ يَثْبُتُ الْخِيَارُ او د دې علم بالاوصاف په فوتېدلو سره خيار ثابتيږي إِلَّا

اذا كَانَ لَا يَعْلَمُهُ مَرْئِيهُ مګر دا چې مشتري هغه خپل ليدل سوى شى نه وګڼي ايعني مشتري ته دا هغه شى معلوم نه سي كوم چې ده ليدلى وو] لِعَدَمِ الرِّضَا بِهِ په هغه سره [د مشتري] د نه راضي کېدلو په وجه ايعني ځکه چې په دې صورت کي مشتري په هغه شي راضي نه دى] وَإِنْ وَجَدَهُ مُتَغَيِّرًا او که مشتري هغه شى بدل سوى ومونډي فَلَهُ الْخِيَارُ نو [هم] به هغه ته خيار وي لِأَنَّ تِلْكَ الرُّؤْيَةَ لَمْ تَقَعْ مُعْلِمَةً بِأَوْصَافِهِ ځکه چې هغه [مخکنی] رؤيت د مبيع په اوصافو خبرونکی واقع نه سو فَكَأَنَّهُ لَمْ يَرَهُ نو ګواکي مشتري هغه شى [ګرسره] ليدلى نه دې وَإِنْ اخْتَلَفَا فِي التَّغَيُّرِ او كه بائع او مشتري [د هغه شي] په بدلېدلو كي اختلاف وکړي فَالْقَوْلُ لِلْبَائِعِ نو خبره به د بائع معتبره وي لِأَنَّ التَّغَيُّرَ حَادِثٌ ځکه چې بدلېدل يو نوى كار دى وَسَبَبُ اللُّزُومِ ظَاهِرٌ او د عقد د لازمېدلو سبب ظاهر دى إِلَّا إِذَا بَعُدَتِ الْمُدَّةُ مګر دا چې مودت اوږد سي عَلَى مَا قَالُوا لکه څرنګه چې متأخرينو فقهاؤ ويلي دي لِأَنَّ الظَّاهِرَ شَاهِدٌ لِلْمُشْتَرِي ځکه چې [په دې صورت کي] ظاهري حالت د مشتري په حق کي ګواه دی بِخِلَافِ مَا إِذَا اخْتَلَفَا فِي الرُّؤْيَةِ په خلاف د هغه صورت کله چې بائع او مشتري [د مبيع] په ليدلو کي اختلاف وکړي لِأَنَّهَا أَمْرٌ حَادِثٌ ځکه چې رؤيت [ليدل] يو نوى كار دى وَالْمُشْتَرِيْ يُنْكِرُهُ او مشتري د هغه انکار کوي فَيَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو ځکه به د مشتري قول معتبر وي.

**اللغات:** ﴿مَرْئيّه﴾ په آخر کي يې "هاء" د ضمير ده. او دا "مَرْئِيٌّ" دى کوم چې د "رَأى" له بابه مفعول دى او معنى يې ده: ليدل سوى. ﴿مُتغيِّر﴾ د تفعّل د باب مفعول دى: بدل سوى. ﴿سبب لزوم العقد﴾ د عقد لازمېدلو سبب، ځيني حضرات وايي چې له دې څخه "رؤية سابقة" مراد دى، او ځيني حضراتو له دې څخه نور څه مراد کړي دي کوم چې د هدايې په حاشيه کي مذکور دي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه سړي مخکي يو شى ليدلى وي او په هغه وخت کي يې نه رانيسي، بلکي د ليدلو له وخت څخه يې مثلاً يوه مياشت يا دوې مياشتي وروسته رانيسي، نو په دې باره کي حکم دا دى چې كه دا شى پر هغه حالت پاته وي پر کوم حالت چې مشتري ليدلى وي، نو د هغه خيار رؤيت ساقطېږي، او بيا هغه ته هيڅ خيار نه حاصلېږي؛ ځکه چې د خيار مقصد (په مبيع کي) غور او فکر کول دي او په دې صورت کي دا خبره تر رانيولو مخکي مشتري ته حاصله سوه. لهذا اوس به هغه ته خيار رؤيت نه حاصلېږي.

لېکن که مشتري په شک کي وي او هغه ته په يقين سره دا معلومه نه سي چي آيا دا هغه شی دی کوم چي ده ليدلی وو، نو په دې صورت کي هغه ته خيار رؤيت حاصلېږي؛ ځکه کله چي مشتري ته د خپل مخکني رؤيت مطابق په يقيني توګه دا هغه شی نه ښکاري کوم چي ده ليدلی وو، نو ښکاره خبره ده چي د موجوده مبيع پر اخيستلو د هغه رضا متحقق او ثابته نه سوه، او د رضا د نه ثابتېدلو په صورت کي خيار حاصلېږي، نو ځکه به دلته مشتري ته خيار حاصلېږي.

وإن وجده متغيرًا: فرمايي همدارنګه که په مبيع کي څه تغير او تبديلي راغلې وي او د مخکني رؤيت په مقابله کي هغه مشتري ته بدله سوې معلومه سي، نو په دې صورت کي هم هغه ته خيار رؤيت حاصلېږي؛ ځکه چي مخکنی رؤيت مشتري د مبيع په اوصافو خبر نه کړی او هغه رؤيت د موجوده رؤيت په اعتبار سره د نه ليدلو په درجه کي واقع سو يعني ګواکي مخکي مشتري هغه شی ګرسره ليدلی نه دی، او د ليدلو څخه بغير د رانيولو په صورت کي مشتري ته خيار حاصلېږي. لهذا په دې صورت کي به هم هغه ته خيار رؤيت حاصلېږي.

وإن اختلفا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که بائع او مشتري د مبيع د تغير او بدلون په هکله اختلاف وکړي، يعني مشتري د تغير دعویٰ کوي او بائع له دې څخه انکار کوي او د مشتري سره ګواهان نه وي، نو په دې صورت کي به د قسم سره د بائع خبره معتبر وي؛ ځکه چي د مبيع متغير کېدل يو حادث او عارضي امر دی، او د عقد د لازمېدلو سبب (يعني مخکنی رؤيت) ظاهر دی. او قاعده دا ده چي "أنّ من ساعده الظاهر فالقول قوله" يعني د چا قول چي د ظاهري حالت موافق وي، د هغه خبره به منل کيږي. او څرنګه چي په دې مسئله کي هم د بائع قول د ظاهري حالت موافق دی، نو ځکه به د هغه خبره منل کيږي.

ها! که چيري د مخکني رؤيت موده اوږده سي او په دومره اوږده موده کي د مبيع متغير کېدل يقيني هم وي، نو په دې صورت کي به د مشتري قول معتبر وي او د بائع خبره به نه منل کيږي؛ ځکه چي د اوږده مودت په صورت کي به د مشتري قول د ظاهري حالت مطابق وي او ظاهر به د هغه په حق کي ګواه وي (يعني دا خبره به ظاهر وي چي په دغه مودت کي مبيع بدله سوې ده).

او د چا قول چي د ظاهري حالت موافق وي، د هغه خبره به منل کيږي، لکه په قاعده کي چي د دې وضاحت وسو، لهذا دلته به هم د مشتري خبره منل کيږي، همدا د متأخرينو مسلک دی، او شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله او داسي نورو فقهاؤ هم و دغه طرف ته ميلان کړی دی.

بخلاف ما إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مشتري او بائع خاص د رؤيت (ليدلو) په هکله اختلاف وکړي، بائع د رؤيت دعوىٰ کوي او مشتري د رؤيت انکار کوي، نو په دې صورت کې که دبائع سره ګواهان نه وي، نو د قسم سره به د مشتري قول معتبر وي؛ ځکه چې ليدل حادث او نوی امر دی او بائع دعوىٰ کوي چې تاليدلی دی او مشتري د دې انکار کوي، نو ځکه به د قسم سره د منکر خبره منل کيږي . ځکه همدا أصول او قاعده ده چې: "البينةُ على المُدَّعِي واليمينُ على من أنكر".

## په مبيع کې د ردّوبدل کولو په صورت کې د خيار رؤيت بيان

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى عِدْلَ زُطِّيٍّ وَلَمْ يَرَهُ فرمايي: او که څوک د زطي تانونو يو ګاټ رانيسي او هغه نه وويني [يعني که څوک د ليدلو څخه بغير د تانونو يو ګاټ رانيسي] فَبَاعَ مِنْهُ ثَوْبًا بيا له هغه څخه يو تان خرڅ کړي أَوْ وَهَبَهُ وَسَلَّمَهُ يا يې چا ته هبه کړي او هغه ته يې وسپاري لَمْ يَرُدَّ شَيْئًا مِنْهَا إِلَّا مِنْ عَيْبٍ نو مشتري له هغه څخه هيڅ شی [تان] نه سي واپس کولای مګر له عيب څخه [يعني له عيب څخه بغير مشتري بل په هيڅ سبب سره تان نه سي واپس کولای] وَكَذٰلِكَ خِيَارُ الشَّرْطِ او همدا حکم د خيار شرط هم دی لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ الرَّدُّ فِيمَا خَرَجَ عَنْ مِلْكِهِ ځکه چې کومه مبيع [تان] د هغه له ملکيت څخه ووتل د هغه واپس کول ناممکن سو وَفِي رَدِّ مَا بَقِيَ تَفْرِيقُ الصَّفْقَةِ قَبْلَ التَّمَامِ او د پاته مبيع په واپس کولو کي له پوره والي څخه مخکي تفريق الصفقة لازميږي [يعني د مابقي مبيع په واپس کولو سره صفقه له پوره والي څخه مخکي متفرّقه کيږي] لِأَنَّ خِيَارَ الرُّؤْيَةِ وَالشَّرْطِ يَمْنَعَانِ تَمَامَهَا ځکه چې خيار رؤيت او خيار شرط د صفقې پوره والی منع کوي بِخِلَافِ خِيَارِ الْعَيْبِ په خلاف د خيار عيب لِأَنَّ الصَّفْقَةَ تَتِمُّ مَعَ خِيَارِ الْعَيْبِ بَعْدَ الْقَبْضِ ځکه چې تر قبضې وروسته د خيار عيب سره هم صفقه تاميږي [يعني پر مبيع تر قبضې روسته د خيار عيب باوجود عقد پوره کيږي] وَإِنْ كَانَتْ لَا تَتِمُّ قَبْلَهُ که څه هم تر قبضې مخکې نه تاميږي وَفِيهِ وَضْعُ الْمَسْأَلَةِ او د مسئلې وضع په همدې صورت کې ده [چې تر قبضې وروسته وي] فَلَوْ عَادَ إِلَيْهِ بِسَبَبٍ هُوَ فَسْخٌ بيا که په يو داسې سبب سره مشتري ته مبيع [تان] واپس کړی سي چې هغه فسخ وي [يعني چې هغه سبب د فسخ په درجه کې وي] فَهُوَ عَلَى خِيَارِ الرُّؤْيَةِ نو

مشتري به پر خپل خيار رؤيت وي [يعني هغه ته به واپس خپل خيار رؤيت حاصليږي] كَذَا ذَكَرَهُ شَمْسُ الْأَئِمَّةِ السَّرَخْسِيُّ همداسي شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله ذكر كړي دي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَا يَعُودُ بَعْدَ سُقُوطِهِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي خيار رؤيت تر ساقطېدلو وروسته بيا واپس نه راگرځي كَخِيَارِ الشَّرْطِ لكه خيار شرط [چي واپس نه راگرځي] وَعَلَيْهِ اعْتَمَدَ الْقُدُورِيُّ او پر همدې امام قدوري رَحِمَهُ الله اعتماد كړی دی.

**اللغات:** ﴿زُطِّيٌّ﴾ دا د "زط" وطرف ته منسوب دی، "زط" په هندوستان كي د يو قوم نوم دی، ﴿لا يعود﴾ د نصر له بابه د نفي صيغه ده: راگرځېدل، واپس كېدل (واپس راتلل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه څوک د ليدلو څخه بغير د زطي تانونو يو گاټ رانيسي او تر قبضه كولو وروسته له هغوی څخه يو تان خرڅ كړي، يا يې چا ته هبه كړي او د هغه په قبضه كي يې وركړي، نو په دې دواړو صورتونو كي د مشتري خيار رؤيت ساقطيږي (يعني په دې صورت كي مشتري له پاته تانو څخه هيڅ تان بائع ته نه سي واپس كولای)، او همدا حكم په هغه وخت كي هم دی كله چي يې په خيار شرط سره رانيسي او بيا يو تان خرڅ كړي، يا يې هبه (مع القبض) كړي، يعني څرنگه چي د مشتري خيار رؤيت ساقطيږي، همداسي د هغه خيار شرط هم ساقطيږي، او په دواړو صورتونو كي به صرف د عيب په وجه هغه ته د پاته مبيع د واپس كولو اجازه وي؛ د دې وجه دا ده چي كله مشتري يو تان خرڅ كړی يا يې هبه كړی نو ښكاره خبره ده چي هغه تان خو د ده له ملكيت څخه ووتی او د هغه واپس كول ناممكن سو او څرنگه چي خيار رؤيت او خيار شرط دواړه د صفقې له پوره والي (تماميت) څخه مانع دي، نو ځكه به د ما بقي (پاته) مبيع واپس كول هم ممكن نه وي؛ ځكه چي د ما بقي مبيع په واپس كولو سره تفريق الصفقه قبل التمام لازميږي (يعني كه پاته مبيع واپس كړی سي نو عقد به تر پوره كېدلو مخكي متفرّق سي)، او دا باطل او ناجائز دي، نو ځكه به اوس دلته د مشتري خيار ساقطيږي او د مبيع واپس كول به ممتنع وي.

---

* القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما قال ابن عابدين رَحِمَهُ الله: وعن ابي يوسف لايعود، لأن الساقط لايعود...وصحّحه قاضي خان رَحِمَهُ الله وعليه اعتمد القدوري رَحِمَهُ الله (رد المحتار ج:۴، ص:۷۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۵]

**بخلاف خيار العيب**: فرمايي چي د خيارِ عيب مسئله له خيارِ شرط او خيارِ رؤيت څخه څه جلا ده، يعني په خيارِ عيب کي قبل القبض خو صفقه نه تاميږي، ليکن بعد القبض په هغه کي صفقه تاميږي، نو بعد القبض که څه هم د ما بقي مبيع په واپس کولو سره تفريق الصفقه لازميږي، خو هغه تفريق به بعد التمام واللزوم وي، او د صفقې له پوره والي څخه وروسته تفريق هيڅ حرج نه لري، نو ځکه به د خيارِ عيب په صورت کي بعد القبض هم مشتري ته د مبيع واپس کولو اجازه وي.

**فلوعاد إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که په دې مسئله خرڅ کړی سوی تاڼ دويم مشتري واپس کړي، يا موهوب لهٔ هبه واپس کړي (يعني که دويم مشتري هغه يو تاڼ بيرته اول مشتري ته واپس کړي، يا موهوب لهٔ د هبې څخه انکار وکړي او اول مشتري ته خپل تاڼ واپس کړي)، نو ښکاره خبره ده چي دا د تصرف فسخ کېدل سو (مطلب دا چي په دې سره د بيع او هبې تصرف فسخ سو، يعني ګواکي اول مشتري بيع او هبه کړې نه ده). او د تصرف د فسخ کېدلو په صورت کي د شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله په نيز د اول مشتري خيارِ رؤيت واپس راګرځي او هغه ته به د دغه خيار پر بناء د پوره مبيع (ګاڼ) د واپس کولو اختيار وي.

ليکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي که اول مشتري ته مبيع واپس کړی سي نو بيا په هيڅ صورت کي هغه ته واپس خيارِ رؤيت نه حاصليږي؛ ځکه اُصول دا دی چي ''الساقطُ لايعود'' يعني ساقط سوی شی واپس کېدلای نه سي، لهذا مونږ د اُصول مخالفت نه کوو.

صاحب د هدايې فرمايي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله همدغه قول معتبر او معتمد ګڼلی دی. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم



# بَابُ خِيَارِ الْعَيْبِ

## (دا) باب د خيار عيب (د احكامو په بيان كي) دى

**تشريح**: د "باب خيار الشرط" په شروع كي دا خبره ذكر سوه چي خيارِ شرط او خيارِ رؤيت د خيارِ عيب په مقابله كي اقوىٰ (زيات قوي) دي او خيارِ عيب قوي دى (ځكه چي خيارِ شرط او رؤيت د عقد له پوره والي [تماميت] څخه مانع وي او دا خيارِ عيب د عقد له پوره والي څخه مانع نه وي)، او قوي له اقوىٰ څخه وروسته وي، نو په همدې مناسبت يې هغه له خيارِ شرط او خيارِ رؤيت څخه وروسته بيان كړى دى.

**د عيب تعريف**: عيب په لغت كي نقص او كمى ته وايي او د عيب عام فهمه تعريف دا دى: "مَا تَخْلُوْ عَنْهُ أَصْلُ الْفِطْرَةِ السَّلِيْمَةِ مِمَّا يُعَدُّ بِهِ نَاقِصًا"، يعني عيب هغه كمي او نيمګړتيا ته وايي چي له هغه څخه د يو شي اصل فطرتِ سليمه خالي وي او د هغه په وجه شى ناقص شمارل كيږي.

**خيار عيب**: كه څوك يو شى رانيسي او بيا په هغه كي يو عيب ويني، نو د هغه عيب په وجه ده ته اختيار دى كه خوښه يې وي نو هغه شى دي واخلي. كنې واپس دي يې كړي. دغه اختيار ته "خيار عيب" وايي.

### د "خيارِ عيب" بيان

وَإِذَا اطَّلَعَ الْمُشْتَرِىْ عَلٰى عَيْبٍ فِى الْمَبِيْعِ او كله چي مشتري په مبيع كي په يو عيب خبر سي [يعني يو عيب پكښي ويني] فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ بِجَمِيْعِ الثَّمَنِ نو هغه ته اختيار دى كه وغواړي نو د ټوله ثمن په عوض كي دي مبيع واخلي وَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ او كه غواړي نو هغه دي واپس كړي لِأَنَّ مُطْلَقَ الْعَقْدِ يَقْتَضِىْ وَصْفَ السَّلَامَةِ ځكه چي مطلق عقد د سالموالي د وصف تقاضا كوي [يعني مطلق عقد د دې تقاضا كوي چي مبيع به سالمه وي] فَعِنْدَ فَوْتِهِ يَتَخَيَّرُ نو د هغه د فوتېدلو په صورت كي به مشتري ته اختيار حاصليږي كَىْ لَا يَتَضَرَّرَ بِلُزُوْمِ مَا لَا يَرْضٰى بِهِ د دې لپاره چي نقصان مند نه سي په لازمېدلو سره د داسي شي په كوم چي هغه راضي نه دى [مطلب دا چي كه دلته مشتري ته اختيار نه وركول سي نو پر

ده به هغه شی لازم سي په کوم چي دئ راضي نه دی او په دې سره به ده ته ضرر او نقصان ورسيږي] وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُمْسِكَهُ وَيَأْخُذَ النُّقْصَانَ او مشتري ته دا حق نسته چي مبيع راوګرځوي او نقصان واخلي [يعني په مبيع راضي سي لېکن له بائع څخه د عيب په اندازه ثمن واخلي] لِأَنَّ الْأَوْصَافَ لَا يُقَابِلُهَا شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ فِي مُجَرَّدِ الْعَقْدِ ځکه چي په مطلق عقد کي د اوصافو په مقابله کي هيڅ ثمن نه وي وَلِأَنَّهُ لَمْ يَرْضَ بِزَوَالِهِ عَنْ مِلْكِهِ بِأَقَلَّ مِنَ الْمُسَمّٰى او ځکه چي بائع له تاکل سوي قيمت څخه په کمه له خپل ملکيت څخه د مبيع پر وتلو راضي نه دی فَيَتَضَرَّرُ بِهِ نو په دې سره به هغه ته نقصان ورسيږي وَدَفْعُ الضَّرَرِ عَنِ الْمُشْتَرِيْ مُمْكِنٌ بِالرَّدِّ بِدُوْنِ تَضَرُّرِهِ او [د مبيع] د واپس کولو په ذريعه له مشتري څخه نقصان دفع کول ممکن دي بغير له دې چي بائع ته نقصان ورسيږي وَالْمُرَادُ عَيْبٌ كَانَ عِنْدَ الْبَائِعِ وَلَمْ يَرَهُ الْمُشْتَرِيْ عِنْدَ الْبَيْعِ وَلَا عِنْدَ الْقَبْضِ او له عيب څخه هغه عيب مراد دی کوم چي د بائع سره [هم] موجود وي او مشتري هغه نه د بيع کولو په وخت کي ليدلی وي او نه يې [د مبيع] د قبضه کولو په وخت کي ليدلی وي لِأَنَّ ذٰلِكَ رِضَاءٌ بِهِ ځکه چي په دې وخت کي ليدل په عيب راضي کېدل دي [يعني د بيع کولو يا قبضه کولو په وخت کي د عيب ليدل په عيب د راضي کېدلو علامت دی].

**اللغات**: ﴿اطّلع﴾ د افتعال ماضي ده: اګاه کېدل، واقف کېدل، خبرېدل، ﴿يتضرّر﴾ د تفعّل مضارع ده: نقصان رسېدل، نقصان مند کېدل (تاواني کېدل)، ﴿يُمسك﴾ د افعال مضارع ده: نيول، راګرځول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک يو شی رانيسي او وروسته په هغه کي يو عيب ووينې، نو مشتري ته خيارِ عيب حاصلېږي، اوس که هغه وغواړي نو معيوبه (عيبداره) مبيع دې د خپل پوره ثمن په عوض کي واخلي، کنې هغه دې واپس کړي؛ ځکه چي دلته عقد مطلق واقع سوی دی يعني د عيب د وجود له شرط څخه بغير واقع سوی دی، او په مطلق عقد کي د مبيع سالموالي او له عيب څخه د مبيع پاکوالی ضروري وي، که چيري مبيع صحيح او سالمه وي نو عقد به پوره کيږي، لېکن که په مبيع کي څه کمي وي او هغه سالمه نه وي نو په دې صورت کي به مشتري ته د اخيستلو يا نه اخيستلو اختيار حاصلېږي؛ ځکه چي مشتري د بې عيبه مبيع په اخيستلو راضي سوی دی، اوس که د معيوب والي په صورت کي هغه ته اختيار نه ور کول سي، نو معيوبه او ناخوښه مبيع به د

هغه پر ذمه لازمه کړل سي او په دې کي د هغه ضرر او نقصان دی. حال دا چي شريعت د ضرر دفع کولو حکم کړی دی، نو ځکه به دلته له مشتري څخه د ضرر ليري کولو لپاره هغه ته اختيار حاصليږي.

وليس له إلخ: فرمايي چي د مشتري د دغه خيار نوعيت به هغه وي کوم چي موږ بيان کړی. يعني يا به د پوره ثمن په عوض کي مبيع اخلي، يا به پوره مبيع واپس کوي، او هغه ته دا حق نسته چي مبيع راوګرځوي او د عيب په اندازه ثمن کم کړي او له بائع څخه هغومره ثمن واپس واخلي؛ ځکه چي د مبيع عيبداره کېدل او د مبيع سالموالی فوتېدل دا په خپله يو وصف دی، او تاسو مخکي ووېل چي د وصف په مقابله کي ثمن نه راځي. لهذا څرنګه چي دلته هم وصف فوت سوی دی، نو ځکه د هغه په مقابله کي به هم هيڅ ثمن نه وي.

صاحب د هدايې دلته د "مُجَرَّد العَقد" په قيد سره له هغه صورت څخه احتراز کړی دی چي هلته د وصف اخيستل مقصود وي (يعني چي مشتري د يو وصف په وجه شی رانيولی وي)؛ ځکه ښکاره خبره ده چي کله د وصف اخيستل مقصود وي. نو د هغه په مقابله کي به ثمن هم وي کنې مبادلة المال بالمال به څنګه متحقق سي.

او د دې عدم امساک دويم دليل (يعني د دې خبري دويم دليل چي مبيع راګرځول او ثمن کمول صحيح نه دي) دا دی چي کله د بائع او مشتري په مينځ کي ثمن وټاکل سو، نو اوس که مشتري له هغه ټاکل سوي ثمن څخه ثمن کم کړي او له بائع څخه يې واپس اخلي، نو ښکاره خبره ده چي په دې کي د بائع ضرر او نقصان دی ؛ ځکه بائع د ټاکل سوي ثمن څخه په کمه د خپل شي په ورکولو راضي نه دی، لهذا که د امساک (يعني د مبيع راګرځولو او د ثمن کمولو) والا صورت اختيار کړی سي نو بائع ته به ضرر او نقصان ورسيږي، او په بيع کي د دواړو طرفونو تراضي ملحوظ او مطلوب وي (يعني بائع او مشتري به دواړه په بيع راضي وي). نو په دې وجه به هم مشتري ته د اخيستلو يا نه اخيستلو اختيار حاصليږي.

ودفع الضرر: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي څرنګه د مشتري د امساک په صورت کي بائع ته ضرر رسيږي، همداسي په ټوله ثمن سره د اخيستلو په صورت کي مشتري ته هم ضرر رسيږي، نو تاسي ولي صرف د بائع د طرف خيال ساتلی او صرف د هغه د ضرر خبره کوی.

د دې په جواب کي فرمايي چي موږ د دواړو طرفونو خيال ساتلو. لېکن د مشتري په حق کي په يو داسي طريقه او صورت سره د ضرر او نقصان دفع کول ممکن دي چي په هغه کي نه د بائع ضرر دی او نه د مشتري، او هغه دا چي مشتري مبيع واپس کړي او له بائع څخه خپل ټوله ثمن واخلي، اوګورئ! په دې صورت کي به مشتري ته خپل ټوله ثمن حاصل سي او بائع ته به خپله مبيع حاصله سي، نه به هغه ته شکايت وي او نه به ده ته. نو ځکه به دا صورت اختيارول کيږي.

والمراد بالعيب إلخ: فرمايي په متن کې له ذکر سوي عيب (على عيبٍ) څخه مراد هغه عيب دی کوم چې د بائع سره موجود وي او د رانيولو او قبضه کولو په وخت کې مشتري هغه نه وي ليدلی؛ ځکه که عيب نوی وي يعني له رانيولو څخه وروسته پيدا سي، يا همدارنګه د رانيولو يا قبضه کولو په وخت کې مشتري هغه ليدلی وي، نو په دې دواړو صورتونو کې مشتري ته خيارِ عيب نه حاصليږي؛ په اول صورت کې ځکه نه حاصليږي چې دلته مبيع د مشتري په قبضه کې عيبداره سوې ده، او بائع چې په کوم وخت کې مشتري ته مبيع سپارلې وه په هغه خت کې مبيع صحيح سالمه او له عيب څخه پاکه وه، او د مشتري په قبضه کې د پيدا سوي عيب په وجه هغه ته خيار نه حاصليږي.

او په دويم صورت کې د خيار نه حاصلېدلو وجه دا ده چې کله مشتري په خپله د رانيولو يا قبضه کولو په وخت کې عيب ليدلی دی، نو دا ليدل د عيبداره مبيع په رانيولو باندې دلالتاً راضي کېدل دي، او خيار چې څرنګه په صراحتاً رضامندي سره ساقطيږي، همداسې په دلالتاً رضامندي سره هم هغه ساقطيږي.

## د کوم عيب په وجه مشتري ته خيار حاصليږي؟

| |
|---|
| قَالَ: وَكُلُّ مَا أَوْجَبَ نُقْصَانَ الثَّمَنِ فِي عَادَةِ التُّجَّارِ فرمايي: او هر هغه شی کوم چې د تاجرانو په عُرف کې د ثمن کموالی لازموي فَهُوَ عَيْبٌ نو هغه عيب دی لِأَنَّ التَّضَرُّرَ بِنُقْصَانِ الْمَالِيَّةِ ځکه چې نقصان مند کېدل [ضرر رسېدل] د ماليت د کموالي په سبب سره وي وَذَٰلِكَ بِانْتِقَاصِ الْقِيمَةِ او دا د ماليت کموالی د قيمت د کمېدلو په سبب سره وي وَالْمَرْجِعُ فِي مَعْرِفَتِهِ عُرْفُ أَهْلِهِ او د دې د پېژندلو مرجع د تاجرانو عُرف دی [يعني د دې د پېژندنې لپاره به د تاجرانو عُرف ته رجوع کيږي]. |

**اللغات**: ﴿تجار﴾ جمع د تَاجِرٌ ده: سوداګر، کاروباري. ﴿نقصان﴾ د نصر مصدر دی: کمېدل، کموالي، کمي. ﴿مرجع﴾ د ضرب له بابه اسم ظرف دی: ځای د رجوع کولو. ﴿انتقاص﴾ د افتعال مصدر دی: کمېدل.

**تشريح**: د کوم عيب په وجه چې مشتري ته خيارِ عيب حاصليږي، امام قدوري رَحِمَهُ الله په دې عبارت کې د هغه عيب په هکله يو اُصول او قاعده بيانوي، حاصل يې دا دی چې د تاجرانو په عُرف کې چې کوم شی په قيمت (ثمن) کې کمي پيدا کوي (يعني چې د هغه په وجه د شي قيمت کميږي). هغه ته عيب وايي؛ ځکه چې د ضرر او نقصان دارومدار د ماليت پر کموالي دی، او د قيمت د کمېدلو په وجه ماليت هم کميږي، لهذا هر هغه شی کوم چې د قيمت د کمېدلو سبب جوړيږي، هغه ته

عيب وايي او د داسي عيب په وجه مشتري ته خيار عيب حاصليږي. او په دې باره كي به د تاجرانو عُرف او اصطلاح ته رجوع كيږي چي كوم شيان د قيمت كمېدلو سبب جوړيږي.

## د يو څو عيبونو بيان

قَالَ: وَالْإِبَاقُ وَالْبَوْلُ فِي الْفِرَاشِ وَالسَّرِقَةُ فِي الصَّغِيرِ عَيْبٌ مَا لَمْ يَبْلُغْ فرمايي: او تښتېدل او په بستره [ځاى] كي متيازي كول او غلا كول په كوچني غلام كي عيب دي تر څو چي هغه بالغ سوى نه وي فَإِذَا بَلَغَ فَلَيْسَ ذَلِكَ بِعَيْبٍ حَتَّى يُعَاوِدَهُ بَعْدَ الْبُلُوغِ او كله چي بالغ سي نو دا عيب نه دي تر دې چي غلام تر بلوغت وروسته هغه بيا وكړي وَمَعْنَاهُ: إِذَا ظَهَرَتْ عِنْدَ الْبَائِعِ فِي صِغَرِهِ ثُمَّ حَدَثَتْ عِنْدَ الْمُشْتَرِي فِي صِغَرِهِ د دې عبارت مطلب دا دى: چي كله دا شيان [عيبونه] د غلام په كوچنيوالي كي د بائع سره ښكاره سي بيا د غلام په كوچنيوالي كي د مشتري سره هم پيدا سي فَلَهُ أَنْ يَرُدَّهُ نو [په دې صورت كي] مشتري ته دا حق سته چي غلام واپس كړي لِأَنَّهُ عَيْنُ ذَلِكَ ځكه چي دا بعينهٖ هغه عيب دى [كوم چي د بائع سره وو] وَإِنْ حَدَثَتْ بَعْدَ بُلُوغِهِ او كه د غلام تر بلوغت وروسته دا شيان پيدا سي لَمْ يَرُدَّهُ نو بيا مشتري هغه غلام نه سي واپس كولاى لِأَنَّهُ غَيْرُهُ ځكه چي دا له هغه څخه بغير بل عيب دى [كوم چي د بائع سره وو] وَهَذَا لِأَنَّ سَبَبَ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ يَخْتَلِفُ بِالصِّغَرِ وَالْكِبَرِ او دا حكم ځكه دى چي په كوچنيوالي او غټوالي [بلوغت] سره د دې شيانو سبب بدليږي [يعني په كوچنيوالي او بالغوالي كي د دې شيانو سبب مختلف او سره جلا وي] فَالْبَوْلُ فِي الْفِرَاشِ فِي الصِّغَرِ لِضَعْفِ الْمَثَانَةِ ځكه په كوچنيوالي كي په ځاى كي متيازي كول د مثانې د كمزورۍ په وجه وي وَبَعْدَ الْكِبَرِ لِدَاءٍ فِي الْبَاطِنِ او تر غټوالي وروسته په باطن [يعني په نس او بدن] كي د يو ناروغي په وجه وي وَالْإِبَاقُ فِي الصِّغَرِ لِحُبِّ اللَّعِبِ او تښتېدل په كوچنيوالي كي د لوبي [بازۍ] سره د محبت په وجه وي وَالسَّرِقَةُ لِقِلَّةِ الْمُبَالَاةِ او غلا كول د كم پروايي په وجه وي وَهُمَا بَعْدَ الْكِبَرِ لِخُبْثٍ فِي الْبَاطِنِ [لېكن] تر غټوالي وروسته دا دواړه د باطن د خباثت په وجه وي وَالْمُرَادُ مِنَ الصَّغِيرِ مَنْ يَعْقِلُ او له كوچني څخه هغه كوچنى غلام مراد دى كوم چي پوهيږي فَأَمَّا الَّذِي لَا يَعْقِلُ لېكن هغه كوچنى غلام كوم چي نه پوهيږي

[او هغه له کور څخه ووځي او بيا نه راځي] فَهُوَ ضَالٌّ لَا آبِقٌ نو هغه ګمراه وي ايعني لاره ئي ورکه وي] تښتېدونکی نه وي فَلَا يَتَحَقَّقُ عَيْبًا نو ځکه به هغه عيب نه وي.

**اللغات**: ﴿إباق﴾ دغلام تښتېدل. ﴿فراش﴾ بستر (بستره)، دبيدېدلو ځای. ﴿يُعاوِد﴾ دمفاعلې مضارع ده: داول امر وطرف ته واپس راتلل (يعني دوباره راتلل)، دوباره ښکاره کېدل، دوباره کول (احسن الهدايه). ﴿مثانة﴾ دمتيازو پوکنۍ. ﴿داء﴾ مرض، ناروغي. ﴿باطن﴾ دهر شي دننه حصې ته وايي. ﴿لَعْب﴾ او لَعِب: لوبې، بازي. ﴿خبث﴾ بدي. ﴿ضالّ﴾ بې لارې، ګمراه، هغه کس چې لاره ئې ورکه وي، او "آبق" قصداً تښتېدونکي ته وايي.

**تشريح**: د دغه عبارت مسئله پر لاندينې أصول مبني ده:

**أصول**: دا دی چې په کوچنيوالي کې تښتېدل جلا عيب دې او تر بلوغت (بالغ کېدلو) وروسته تښتېدل جلا عيب دې، دواړه سره يو نه دي، همدارنګه په کوچنيوالي کې غلا کول يا متيازې کول جلا عيب دي او تر بلوغت وروسته غلا کول او متيازې کول جلا عيب دي.

دعبارت حاصل دا دی که يو کوچنی غلام دمالک په قبضه کې مذکوره حرکتونه کوي (يعنې له پورتني عيبونو څخه يو عيب پکښې ښکاره سي)، او بيا يو څوک هغه په کوچنيوالي کې رانيسي، او د همدغه کوچنيوالي په حالت کې دمشتري (رانيونکي) سره هم په دې غلام کې هغه عيب ښکاره سي، نو ددې عيب په وجه مشتري هغه واپس کولای سي (يعني ددې په وجه مشتري ته خيار عيب حاصلېږي)؛ ځکه کوم عيب چې دبائع په قبضه کې په کوچني غلام کې وو، هماغه عيب بيرته د مشتري سره په غلام کې د کوچنيوالي په حالت کې ښکاره سو، نو دواړه عيبونه يو دي، نو ځکه به مشتري هغه واپس کولای سي. لېکن که عيب په کوچنيوالي کې ښکاره نه سي، بلکې هغه کوچنی غلام دمشتري په قبضه کې بالغ سي او تر بلوغت وروسته هغه عيب پکښې پيدا سي، نو څرنګه چې دا عيب دبائع له طرفه په غلام کې نه دي راغلی، بلکې دمشتري سره په هغه کې جلا پيدا سو دی (ځکه چې د کوچنيوالي عيب جلا وي، او تر بلوغت وروسته عيب جلا وي)، نو ځکه اوس د دغه عيب په وجه مشتري هغه نه سي واپس کولای (يعني مشتري ته خيار عيب نه حاصلېږي).

وهذا لأن سبب إلخ: له دې ځايه صاحب د هدايې د کوچنيوالي او بلوغت د صورتونو په مينځ کې د فرق وجه بيانوي، فرمايي چې په کوچنيوالي کې دا عيبونه په يوه سبب سره وي، او تر بلوغت وروسته په بل سبب سره وي؛ ځکه په کوچنيوالي کې په ځای کې متيازې کول د مثانې د کمزورۍ

په وجه وي، او تر بلوغت وروسته په نس او بدن کي ديو ناروغي په وجه وي، همدارنګه په کوچنيوالي کي غلام ځکه تښتي چي د بازۍ او لوبي سره د هغه محبت وي، او تر بلوغت وروسته چي کله هغه عاقل سي، نو بيا تښتېدل د فطري خباثت او رذالت په وجه وي. او په کوچنيوالي کي غلا ځکه کوي چي هغه ته د دې هيڅ باک او پروا نه وي او هغه ته دا ښول کار غټ نه ښکاري، لېکن تر بلوغت وروسته د فطري خباثت په وجه غلا کيږي، لهذا کله چي د کوچنيوالي او بالغوالي د عيبونو په سبب کي دومره اختلاف دی، نو د دوی په حکم کي به هم اختلاف وي، او چيري چي د عيب سبب متحد وي، هلته خو به مشتري ته د واپس کولو حق وي، او چيري چي په سبب کي اختلاف وي، هلته به په حکم کي هم اختلاف وي او مشتري به د واپس کولو له حق څخه محروميږي؛ ځکه چي دا عيب له هغه عيب څخه جلا دی کوم چي د بائع سره موجود وو، لهذا دا د مشتري په حق کي د نوي عيب په څېر سو، او که د مشتري په قبضه کي نوی عيب پيدا سي نو هغه د واپس کولو له حق څخه محروميږي (يعني هغه ته خيارِ عيب نه حاصليږي)، همداسي به دلته هم هغه له دې حق څخه محروميږي.

والمراد إلخ: د کوچنيوالي هم دوه حالتونه دي، يو دا چي کوچنی بالکل شعور نه لري، او بل دا چي شعور لري، فرمايي چي په متن کي له "صغير" څخه باشعوره کوچنی غلام مراد دی؛ ځکه که هغه شعور نه لري او له کور څخه ولاړ سي او بيا کور ته نه راځي، نو دې ته تښتېدونکي نه وايي بلکي "ضال" (ګمراه) ورته وايي (يعني په لاره ناخبر دی او د کور لاره ځني ورکه ده)؛ ځکه چي هغه هيڅ شعور نه لري، نو ځکه د هغه تښتېدل عيب نه دي، لېکن که شعور لري او وتښتي نو دې ته تښتېدل وايي کوم چي په غلام کي عيب دي، همدا حکم د متيازو او غلا کولو هم دی.

## د "جنون" عيب

قَالَ: وَالْجُنُونُ فِي الصِّغَرِ عَيْبٌ أَبَدًا [امام محمد رحمه الله] فرمايي: او لېونتوب په کوچنيوالي کي د همېشه لپاره عيب دی [يعني د کوچنيوالي لېونتوب په غلام کي د همېشه لپاره عيب شمارل کيږي] وَمَعْنَاهُ: إِذَا جُنَّ فِي الصِّغَرِ فِي يَدِ الْبَائِعِ ثُمَّ عَاوَدَهُ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي فِيهِ أَوْ فِي الْكِبَرِ او د دې عبارت مطلب دا دی: چي کله [کوچنی غلام] په کوچنيوالي کي لېونی سي بيا د مشتري په قبضه کي هغه ته په کوچنيوالي يا غټوالي کي دوباره لېونتوب راسي يَرُدُّهُ نو [په دې صورت کي] مشتري هغه واپس کولای سي لِأَنَّهُ عَيْنُ الْأَوَّلِ ځکه چي دا بعينه اول [جنون] دی إِذِ السَّبَبُ فِي الْحَالَيْنِ مُتَّحِدٌ ځکه چي سبب په دواړو

حالتونو کې يو دی وَهُوَ فَسَادُ الْعَقْلِ او هغه د عقل خرابېدل دي وَلَيْسَ مَعْنَاهُ أَنَّهُ لَا يُشْتَرَطُ الْمُعَاوَدَةُ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي او د دې عبارت مطلب دا نه دی چې د مشتري په قبضه کې د جنون [لېونتوب] واپس راتلل شرط نه دي لِأَنَّ اللهَ تَعَالَى قَادِرٌ عَلَى إِزَالَتِهِ ځکه چې الله د جنون پر زائلولو قادر دی وَإِنْ كَانَ قَلَّمَا يَزُولُ که څه هم هغه ډېر کم زائليږي فَلَا بُدَّ مِنَ الْمُعَاوَدَةِ لِلرَّدِّ لهذا [د غلام] د واپس کولو لپاره [د جنون] واپس راتلل ضروري دي.

**اللغات**: ﴿جنون﴾ لېونتوب. ﴿معاودة﴾ د مفاعلې مصدر دی: واپس راتلل (واپس راګرځېدل)، دوباره راتلل، دوباره ښکاره کېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که غلام يا مينځه په کوچنيوالي کې په جنون (لېونتوب) مبتلا سي او عقل يې سلب سي، نو دا د همېشه لپاره د دوی په حق کې عيب او داغ شمارل کيږي، صاحب د کتاب د دې نور وضاحت کوي فرمايي چې که څوک داسې غلام رانيسي چې هغه په کوچنيوالي کې د بائع سره په جنون مبتلا سوی وي او د مشتري په قبضه کې هغه جنون واپس راوګرځي، نو په دې صورت کې مشتري ته مطلقاً د واپس کولو حق او اختيار سته، يعني برابره ده جنون د صغر (کوچنيوالي) په حالت کې راوګرځي يا د کبر (بالغوالي) په حالت کې راوګرځي، په دواړو صورتونو کې مشتري ته د واپس کولو حق حاصليږي؛ ځکه چې حکم صرف په هغه عيبونو کې بدليږي چې په هغوی کې د صغر او کبر سبب سره مختلف وي، او د لېونتوب سبب د صغر او کبر په دواړو حالتونو کې يو دی، نو ځکه به د هغه په حکم کې هيڅ تبديلي نه راځي، او کله چې هم جنون واپس راوګرځي، نو مشتري ته به د واپس کولو حق حاصليږي.

**وليس معناه إلخ**: څرنګه چې د متن (جامع صغير) له ظاهري عبارت يعني له "عيب أبدًا" څخه دا وهم کيږي چې د کوچنيوالي په حالت کې واقع کېدونکی جنون به د همېشه لپاره عيب وي، برابره ده هغه د مشتري په قبضه کې واپس راوګرځي او که نه راوګرځي. نو په دې عبارت سره صاحب د هدايې دغه وهم ليري کوي فرمايي چې د متن د عبارت مطلب هغه نه دی د کوم چې وهم کيږي؛ ځکه الله تعالیٰ پر هر شي قادر دی او ډېره ممکنه ده چې د مشتري په قبضه کې جنون ختم سي (يعني که څه هم د بائع په قبضه کې جنون پيدا سوی وي، وروسته کېدای سي چې الله تعالیٰ هغه ختم کړي)، که څه هم مشاهده او تجربات دا وايي چې جنون ډېر کم زائليږي، لېکن د دې باوجود هم د جنون زوال ممکن دی؛ نو ځکه به مشتري ته صرف هغه وخت د واپس کولو حق حاصليږي کله چې د هغه په قبضه کې جنون واپس راوګرځي. له دې څخه مخکې هغه ته د واپس کولو هيڅ حق نسته.

## د خولې او بغل بوی او د زنا عيب

قَالَ : وَالْبَخَرُ وَالدَّفَرُ عَيْبٌ فِي الْجَارِيَةِ فرمايي: او په مينځه کې د خولې او د بغل بد بوی عيب دی لِأَنَّ الْمَقْصُودَ قَدْ يَكُونُ الِاسْتِفْرَاشُ ځکه چې ځينې وخت [له مينځې څخه] فراش جوړول مقصود وي وَهُمَا يُخِلَّانِ بِهِ او دا دواړه بويونه په فراش جوړولو کې خلل اچوي وَلَيْسَ بِعَيْبٍ فِي الْغُلَامِ او په غلام کې دا بدبويي عيب نه ده لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الِاسْتِخْدَامُ ځکه چې [له غلام څخه] خدمت اخيستل مقصود وي وَلَا يُخِلَّانِ بِهِ او دا دواړه په خدمت اخيستلو کې خلل نه اچوي إِلَّا أَنْ يَكُونَ مِنْ دَاءٍ مګر دا چې هغه ديو ناروغۍ په سبب سره وي لِأَنَّ الدَّاءَ عَيْبٌ ځکه چې ناروغي عيب ده وَالزِّنَا وَوَلَدُ الزِّنَا عَيْبٌ فِي الْجَارِيَةِ دُونَ الْغُلَامِ او زنا کول او ولد الزنا [حرامي] کېدل په مينځه کې عيب دي، نه په غلام کې لِأَنَّهُ يُخِلُّ بِالْمَقْصُودِ فِي الْجَارِيَةِ ځکه چې په مينځه کې دا شيان په مقصود کې خلل اچوي وَهُوَ الِاسْتِفْرَاشُ وَطَلَبُ الْوَلَدِ او مقصود [له مينځې څخه] استفراش او د بچي طلب کول دي وَلَا يُخِلُّ بِالْمَقْصُودِ فِي الْغُلَامِ او په غلام کې دا په مقصود کې خلل نه اچوي وَهُوَ الِاسْتِخْدَامُ او مقصود [له غلام څخه] خدمت اخيستل دي إِلَّا أَنْ يَكُونَ الزِّنَا عَادَةً لَهُ مګر دا چې زنا کول د غلام عادت ګرځېدلی وي عَلَى مَا قَالُوا لکه څرنګه چې فقهاؤ ويلي دي لِأَنَّ اتِّبَاعَهُنَّ يُخِلُّ بِالْخِدْمَةِ ځکه چې په ښځو پسې کېدل په خدمت کې خلل اچوي.

**اللغات**: ﴿بَخَر﴾ د خولې بد بوی، ﴿دَفَر﴾ تېز او تند بوی (مراد ځنې د بغل بدبوی وي). ﴿استفراش﴾ د استفعال مصدر دی: مينځه فراش (بستره) ګرځول، مينځه خپل فراش جوړول (مراد ځنې جماع ور سره کول او د هغې سره پرېوتل دي). ﴿استخدام﴾ دا هم د استفعال مصدر دی: خدمت اخيستل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د مينځې له خولې يا بغل څخه بد بوی راځي، نو دا د هغې په حق کې عيب شمارل کېږي او د دې عيب په وجه مشتري ته د هغې د واپس کولو حق (حقُّ الردّ) حاصلېږي؛ دليل دا دی چې ځينې خلک د استفراش او جماع لپاره مينځه رانيسي، او د جماع کولو په حالت کې پرېوتلو، مچولو او داسې نورو ته ضرورت پېښېږي، اوس که د مينځې له خولې يا بغل څخه بد بوی راځي، نو ښکاره خبره ده چې نه به په مچه کې څه مزه وي او نه په جماع کې، لنډه دا چې

دا دواړه شيان مخل بالمقصود (په مقصود کي خلل اچونکي) دي، نو ځکه دا عيب دي او مشتري ته به د دې په وجه حقُ الردّ حاصليږي.

او که د غلام له خولې يا بغل څخه بد بوی راځي، نو دا د هغه په حق کي عيب نه دي؛ ځکه چي د غلام په رانيولو سره صرف خدمت اخيستل مقصود وي (يعني له غلام څخه صرف خدمت اخيستل کيږي، د هغه سره څوک نه پريوځي)، او د خولې او بغل بوی په خدمت اخيستلو کي مخل (خلل اچونکي) نه دي، نو ځکه د غلام په حق کي به دا عيب نه شمارل کيږي او د دې په وجه به مشتري ته حقُ الردّ نه حاصليږي.

والزنا وولد الزنا إلخ: فرمايي که مينځه زانيه (زناکاره) وي يا هغه ولد الزنا (حراميه) وي، نو دا دواړه صفتونه د هغې په حق کي عيب دي؛ ځکه چي دواړه مخل بالمقصود دي، په دې توګه چي که مينځه زانيه وي نو ښکاره خبره ده چي د استفراش او جماع په نيت سره رانيونکي سړی به د هغې له جماع څخه نفرت کوي، او له هغې څخه چي کوم نسل پيدا کيږي هغه به خراب عادت والا وي، همدارنګه که هغه ولد الزنا (حراميه) وي نو مشتري به له هغې څخه د بچي په طلب کي هيڅ رغبت نه لري، ځکه له هغې څخه چي کوم نسل پيدا کيږي هغه ته به هم خلګ ولد الزنا او حرامي وايي او عيبداره به ګڼل کيږي. لنډه دا چي دا دواړه صفتونه مخل بالمقصود دي، نو ځکه دا په مينځه کي عيب دي.

لېکن د غلام زاني کېدل يا ولد الزنا کېدل عيب نه دي؛ ځکه چي له غلام څخه صرف خدمت اخيستل مقصود وي، او دا شيان په خدمت کي مخل نه دي، نو ځکه به دا عيب هم نه وي. ها! که يو غلام د زنا عادي وي، نو بيا زنا د هغه په حق کي هم عيب ده؛ ځکه کله چي غلام په زنا او بدکارۍ عادت وي، نو ښکاره ده چي د زنا د نشې په وجه به همېشه په مينځو او ښځو پسې وي او لکه بې مهاره اوښ هلته او دلته به ګرځي، او له خپل خدمت او ذمه وارۍ څخه به غافل او بې پروا وي، لنډه دا چي د زنا عادي کېدل په خدمت کي مخل دي او خدمت نه کول عيب دي، نو په دې وجه فقهاؤ د عادي غلام په حق کي زنا عيب ګڼلې ده.

## د غلام يا مينځي کفر

قَالَ: وَالْكُفْرُ عَيْبٌ فِيهِمَا [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: او کفر په غلام او مينځه دواړو کي عيب دی لِأَنَّ طَبْعَ الْمُسْلِمِ يَتَنَفَّرُ عَنْ صُحْبَتِهِ ځکه چي د مسلمان طبيعت د کافر له يوځای والي څخه نفرت کوي وَلِأَنَّهُ يَمْتَنِعُ صَرْفُهُ فِي بَعْضِ الْكَفَّارَاتِ او په دې وجه هم چي په ځيني کفاراتو کي د کافر ورکول ممنوع دي فَتَخْتَلُّ الرَّغْبَةُ نو ځکه په رغبت کي به خلل وي [يعني د هغه په رانيولو کي به رغبت کم وي]

فَلَوِ اشْتَرَاهُ عَلٰى أَنَّهُ كَافِرٌ او كه غلام پر دې شرط رانيسي چي هغه كافر دی فَوَجَدَهُ مُسْلِمًا او بيا هغه مسلمان ومومي لَا يَرُدُّهُ نو مشتري هغه نه سي واپس كولای لِأَنَّهُ زَوَالُ الْعَيْبِ ځكه چي دا د عيب زائلېدل دي وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ يَرُدُّهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز مشتري هغه واپس كولای سي لِأَنَّ الْكَافِرَ يُسْتَعْمَلُ فِيمَا لَا يُسْتَعْمَلُ فِيهِ الْمُسْلِمُ ځكه چي كافر په هغه كارونو كي كارول كېدای سي چي په هغوی كي مسلمان نه سي كارول كېدای وَفَوَاتُ الشَّرْطِ بِمَنْزِلَةِ الْعَيْبِ او د شرط فوتېدل د عيب په درجه كي دي.

**اللغات**: ﴿يتنفر﴾ د تفعّل له بابه د مضارع صيغه ده: نفرت او كركه كول. ﴿صحبة﴾ ملګرتيا، يوځای والي (يو ځای ژوند سره تېرول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي كفر د غلام او مينځې دواړو په حق كي عيب دی؛ ځكه چي د مسلمان طبيعت او مزاج د كافرانو له صحبت او يوځای والي څخه انكار كوي، لهذا كله چي طبيعت له هغو څخه انكار كوي نو ښكاره خبره ده چي مالك به كافر غلام يا كافره مينځه خپل ځان ته نژدې هم نه پرېږدي او په استفراش او استخدام دواړو كي به خلل واقع سي.

د كفر د عيب والي دويم علت دا دی چي كله نا كله غلام په كفاره كي د وركولو لپاره رانيول كېږي، او ځيني كفاراتِ داسي دي چي په هغه كي صرف مسلمان غلام وركول كېږي (لكه د قتل كفاره، همدارنګه د ځينو په نېز د ظهار او يمين كفاره)، لهذا په دې حواله سره هم د كافر غلام په رانيولو كي د مسلمان رغبت كم وي، او كله چي د هغه په رانيولو كي رغبت كم دی نو د دې اثر پر قيمت لوېږي او د هغه په قيمت (ثمن) كي كمي راځي، او كوم شی چي د قيمت د كموالي سبب جوړېږي هغه ته عيب وايي؛ نو ځكه به كفر د غلام او مينځي په حق كي عيب وي.

**فلو اشتراه إلخ**: فرمايي كه څوك پر دې شرط غلام رانيسي چي هغه كافر دی (او كه كافر نه وي نو زه يې بيرته واپس كوم)، لېكن تر رانيولو وروسته معلومه سي چي هغه مسلمان دی، نو د احنافو په نېز مشتري ته د هغه د واپس كولو حق او اجازه نسته؛ ځكه چي د غلام په حق كي كفر عيب دی، نه زوال د كفر، او مشتري ته صرف د عيب په وجه حقُ الردّ حاصلېږي؛ نه د عيب د زوال يعني د غلام د مسلمان كېدلو په وجه، ځكه د عيب د زوال په صورت كي بالكل مشتري ته حقُ الردّ نه حاصلېږي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې صورت كي هم مشتري ته خيار عيب او حقُ الردّ حاصلېږي؛ د هغه دليل دا دی چي په كافر او مسلمان كي د ځمكي او آسمان فرق دی، او ډېر ځله

مسلمان سړی د سپک او ادنیٰ کار لپاره کافر غلام استعمالول غواړي او په کافر غلام چې کوم کار کوي، په مسلمان غلام هغه کار نه کوي، همدارنګه په ځينې ځايو کې صرف کافر غلام استعمالول کېدای سي، مثلاً د لمانځه په وخت کې کافر غلام د دوکان حفاظت کولای سي، لېکن مسلمان غلام خو به لمونځ په جماعت سره کوي، نو کله چې د کافر او مسلمان مقاصد سره جلا دي او د مقاصدو په بدلون سره احکام بدلیږي، نو ځکه به دلته هم حکم بدلیږي او مشتري ته‌به حَقُ الردّ حاصلیږي.

او بل دا چې مشتري د کفر په شرط سره غلام رانیولی دی او د هغه د مسلمان والي په صورت کې دغه شرط فوتیږي، او د شرط فوتېدل عیب دي، او د عیب په صورت کې مشتري ته خیارِ عیب او حقُ الردّ حاصلیږي، لهذا دلته به هم مشتري ته دا اختیار حاصلیږئ.

د احنافو له طرفه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قیاس جواب دا ورکول سوی دی چې د کفر په شرط سره د رانیولو په صورت کې د غلام د مسلمان کېدلو مسئله د دیاناتو (دیني اُمورو) سره متعلق ده، لهذا پر دې باندې معاملات قیاسول صحیح نه دي؛ ځکه چې په مقیس علیه او مقیس کې موافقت ضروري دی، او دلته ستاسو په قیاس کې سراسر توپیر او مغایرت سته.

## حیض نه راتلل

قَالَ: فَلَوْكَانَتِ الْجَارِيَةُ بَالِغَةً لَاتَحِيْضُ فرمايي: که مينځه بالغه وي [لېکن] حيض نه ورته راځي أَوْ هِيَ مُسْتَحَاضَةٌ يا هغه مستحاضه وي فَهُوَعَيْبٌ نو دا عيب دي لِأَنَّ ارْتِفَاعَ الدَّمِ وَاسْتِمْرَارَهُ عَلَامَةُ الدَّاءِ ځکه چې د وينې بندوالی [انقطاع] او د هغې مسلسل راتلل د ناروغی نښه ده وَيُعْتَبَرُ فِي الْارْتِفَاعِ أَقْصٰى غَايَةِ الْبُلُوْغِ او د وينې په بندوالي کې به د بلوغ د آخري حد [آخري مودت] اعتبار کیږي وَهُوَسَبْعَ عَشَرَةَ سَنَةً فِيهَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ ❁ او د بلوغ آخري حد د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز اوولس [۱۷] کاله دي [او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز ۱۵ کاله دی] وَيُعْرَفُ ذٰلِكَ بِقَوْلِ الْأَمَةِ او دا [د وينې انقطاع او استمرار] به د مينځې په خبره سره معلومیږي فَتُرَدُّ إِذَا انْضَمَّ إِلَيْهِ نُكُوْلُ الْبَائِعِ او کله چې [د هغې] د خبري سره د بائع انکار هم يو ځای سي نو هغه به واپس کړی کیږي قَبْلَ الْقَبْضِ وَبَعْدَهُ برابره ده تر

❁ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: وأقصى غاية البلوغ عند الصاحبين خمسة عشرة، وبقولهما يُفتٰى (العناية ج:۶، ص:۹۰۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۶]

قبضې مخکې وي او که وروسته وي وَهُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده.

**اللغات:** ﴿ارتفاع﴾ د افتعال مصدر دی: پورته کېدل، ختمېدل (مراد ځني د ويني بندېدل او د حيض نه راتلل دي)، ﴿اقصٰی﴾ اخري، ﴿غاية﴾ حد، انتهاء، ﴿نكول﴾ د نصر او ضرب مصدر دی: له قسم څخه انکار کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مينځه بالغه وي او د بلوغت تر آخري حده پوري (چې هغه د امام صاحب په نيز ۱۷ کاله دي) رسېدلې وي، لېکن بيا هم هغې ته حيض نه راځي، همدارنګه که د يوې بالغې مينځې څخه مسلسل د استحاضې وينه بهيږي، نو دا دواړه خبري د هغې په حق کې عيب شمارل کيږي؛ ځکه چې "انقطاع الدم" او "استمرار الدم" دواړه د ناروغۍ (مرض) په وجه وي، او ناروغي عيب ده، نو ځکه به مشتري ته د مينځې د واپس کولو اختيار وي. اوس که چيري مشتري دا دعوىٰ کوي چې هغې ته حيض نه راځي، نو قاضي به له بائع څخه پوښتنه کوي چې آيا مشتري صحيح وايي، که چيري بائع د مشتري تصديق وکړي، نو ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې مشتري ته حقُ الردّ حاصليږي، لېکن که بائع د هغه دعوىٰ ردّ کړي، نو بيا به د دغه قاعدې "البينة على المدعي...إلخ" پر بناء پر مشتري بيّنه لازم وي، خو څرنګه چې انقطاع الحيض يو مخفي (پټ) کار دی او په هغه اګاه کېدل مشکل دي، نو ځکه له مشتري څخه د بيّنه اخيستلو پر ځای به بائع ته ويل کيږي چې ته قسم واخله! چې ستا په قبضه کې دا عيب (په مينځه کې) نه وو، که چيري قسم واخلي نو هغه به بري کيږي او مشتري ته به حقُ الردّ نه حاصليږي، لېکن که هغه له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي، نو په دې صورت کې به د مشتري لپاره حقُ الردّ ثابتيږي.

دا تفصيل خو د انقطاعُ الدم (انقطاعُ الحيض) په هکله وو، او که چيري مشتري د استمرارُ الدم دعوىٰ وکړي، نو په دې صورت کې به د بائع د انکار په وخت کې له مشتري څخه د بيّنه مطالبه کيږي؛ ځکه چې استمرار الدم يو واضح مرض او ناروغي ده، او د ښځو لپاره په هغه اګاه کېدل ممکن دي؛ نو ځکه په دې صورت کې د يوې عادلې مسلماني ښځه ګواهي ضروري ده، که چيري هغه ښځه د مشتري د دعوىٰ مطابق ګواهي ورکړي، نو مشتري ته به حقُ الردّ حاصليږي، او که مشتري بيّنه پېش نه کړی سي، نو له بائع څخه به قسم اخيستل کيږي: که چيري هغه قسم واخلي نو د مشتري دعوىٰ به بې بنياده وي. او که بائع له قسم څخه انکار وکړي نو د مشتري دعوىٰ به ثابتيږي او هغه ته به حقُ الردّ حاصليږي. او برابره ده مشتري پر مينځې قبضه کړې وي، که نه وي، په دواړو صورتونو کې هغه حکم دی کوم چې اوس بيان سو.

## په مبيع کي د نوي عيب پيداکېدلو يو بل صورت

قَالَ: وَإِذَا حَدَثَ عِنْدَ الْمُشْتَرِيْ عَيْبٌ فرمايي: او کله چي د مشتري سره [په مبيع کي] نوی عيب پيدا سي فَاطَّلَعَ عَلٰى عَيْبٍ كَانَ عِنْدَ الْبَائِعِ بيا مشتري په داسي عيب هم اګاه سي کوم چي د بائع سره وي فَلَهُ أَنْ يَرْجِعَ بِالنُّقْصَانِ نو مشتري ته دا اختيار سته چي [پر بائع] د عيب د نقصان رجوع وکړي وَلَا يَرُدُّ الْمَبِيعَ او مبيع نه سي واپس کولای لِأَنَّ فِي الرَّدِّ إِضْرَارًا بِالْبَائِعِ ځکه چي [د مبيع] په واپس کولو کي د بائع نقصان دی لِأَنَّهُ خَرَجَ عَنْ مِلْكِهِ سَالِمًا وَيَعُوْدُ مَعِيْبًا ځکه چي مبيع د بائع له ملکيت څخه صحيح سالمه وتلې وه او اوس به [هغه ته] عيبداره واپس سي فَامْتَنَعَ نو ځکه [واپس کول] ممتنع سو وَلَا بُدَّ مِنْ دَفْعِ الضَّرَرِ عَنْهُ او له مشتري څخه نقصان ليري کول [هم] ضروري دي فَتَعَيَّنَ الرُّجُوعُ بِالنُّقْصَانِ لهذا صرف رجوع بالنقصان مُتعيّنه سوه [يعني صرف همدا صورت پاته سو چي مشتري به پر بائع د نقصان رجوع کوي] إِلَّا أَنْ يَرْضَى الْبَائِعُ أَنْ يَأْخُذَهُ بِعَيْبِهِ مګر دا چي بائع په دې راضي وي چي مبيع د عيب سره واخلي [يعني بائع د عيب باوجود هم د مبيع په اخيستلو راضي وي] لِأَنَّهُ رَضِيَ بِالضَّرَرِ ځکه چي [په دې صورت کي] هغه [په خپله] په نقصان راضي دی.

**اللغات:** ﴿حدث﴾ د نصر ماضي ده: پېښېدل، نوي پيدا کېدل. ﴿اطلع﴾ د افتعال ماضي ده: اګاه کېدل، خبرېدل. ﴿اضرار﴾ د افعال مصدر دی: نقصان رسول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که زيد له خالد څخه يو پُسه رانيسي، او پُسه چي کله د زيد په قبضه کي راسي نو يوه پښه يې ماته سي، بيا معلومه سي چي په پُسه کي يو بل عيب سته چي هغه د بائع (خالد) سره هم وو (يعني وروسته په پُسه کي يو بل عيب ښکاره سي او ثابته سي چي دا عيب په پُسه کي هغه وخت هم وو کله چي پُسه د بائع په قبضه کي وو)، نو په دې صورت کي مشتري ته د پُسه د واپس کولو اختيار نسته، بلکي هغه ته د عيب په اندازه د قيمت اخيستلو حق سته (يعني هغه ته صرف دا حق سته چي د مخکني عيب نقصان له بائع څخه واخلي)؛ د دې دليل دا دی چي که څه هم دا پُسه د بائع سره هم عيبداره وو، مګر هغه د مشتري له عيب څخه پاک وو (يعني هغه نوی عيب کوم چي د مشتري سره په پُسه کي پيدا سو [چي هغه د پښې ماتېدل دي]. له هغه عيب څخه پُسه خالي وو)، اوس که د هغه نوي عيب سره بائع ته پُسه واپس کړی سي نو بائع ته به نقصان ورسيږي؛ ځکه چي د بائع سره دا پُسه له هغه نوي عيب

څخه پاک او بې عيبه وو، لهذا بائع ته د نقصان رسېدلو په وجه د پَسه واپس کول ممتنع او غير صحيح سو، همدارنګه مشتري هم له نقصان څخه ساتل پکار دي؛ نو ځکه صرف يو صورت پاته سو او هغه دا چي د بائع سره کوم عيب وو، مشتري به د هغه په اندازه قيمت له بائع څخه اخلي.

إِلا أن يرضى إلخ: لېکن که بائع دېر په زړه صفاوي او د نوي عيب باوجود هم د مبيع (پَسه) په اخيستلو راضي سي، نو بيا په دې صورت کي د مشتري حقُ الردّ واپس راګرځي، لهذا اوس مشتري د هغه نوي عيب باوجود مبيع واپس کولای سي؛ ځکه چي "امتناعُ الردّ" د صاحب الحق يعني د بائع په وجه وو، لېکن کله چي هغه په خپله د خپل حق په ساقطولو راضي دی، نو موږ ته د هغه د ثابتولو څه ضرورت سته؟.

## په معيب کي د ردّ وبدل کولو په صورت کي د خيارِ عيب حکم (تفصيلي بيان)

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى ثَوْبًا فَقَطَعَهُ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: او که څوک کپړه رانيسي او هغه پرېکړي فَوَجَدَ بِهِ عَيْبًا بيا په هغې کي يو عيب پيدا کړي رَجَعَ بِالْعَيْبِ نو هغه به [پر بائع] د عيب په نقصان سره رجوع کوي لِأَنَّهُ امْتَنَعَ الرَّدُّ بِالْقَطْعِ ځکه چي د پرېکولو په وجه [د کپړې] واپس کول متمنع [ناممکن] سو فَإِنَّهُ عَيْبٌ حَادِثٌ ځکه چي پرېکول يو نوی عيب دی فَإِنْ قَالَ الْبَائِعُ: أَنَا أَقْبَلُهُ كَذٰلِكَ بيا که بائع [داسي] ووايي: چي دا کپړه زه همداسي [پرېکړل سوې] قبلوم كَانَ لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې حق سته لِأَنَّ الِامْتِنَاعَ لِحَقِّهِ ځکه چي [د واپس کولو] امتناع د هغه د حق په وجه وه وَقَدْ رَضِيَ بِهِ حال دا چي [اوس] هغه [په خپله] د عيبداره کپړې په اخيستلو راضي دی فَإِنْ بَاعَهُ الْمُشْتَرِيْ لېکن که مشتري دا کپړه خرڅه کړي لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ نو [پر بائع] د هيڅ شي رجوع نه سي کولای [يعني له بائع څخه هيڅ نقصان نه سي اخيستلای] لِأَنَّ الرَّدَّ غَيْرُ مُمْتَنِعٍ بِرِضَا الْبَائِعِ ځکه چي [واپس کول] د بائع د رضا په وجه ممتنع [ناممکن] وو فَيَصِيْرُ هُوَ بِالْبَيْعِ حَابِسًا لِلْمَبِيْعِ لهذا د خروښولو په ذريعه به مشتري د مبيع راګرځونکي سي [يعني د کپړې د خرڅولو په وجه مشتري د مبيع (کپړې) راګرځونکی سوا] فَلَا يَرْجِعُ بِالنُّقْصَانِ نو ځکه به اوس هغه [پر بائع] د نقصان رجوع نه سي کولای فَإِنْ قَطَعَ الثَّوْبَ وَخَاطَهُ أَوْ صَبَغَهُ أَحْمَرَ او که مشتري کپړه پرېکړي او [بيا] يې وګنډي يا هغې ته سور رنګ ورکړي أَوْ لَتَّ

السَّوِيقَ بِسَمْنٍ يا نيښ په غوړو ګډي کړي ثُمَّ اطَّلَعَ عَلَى عَيْبٍ بيا [په کپړه يا نينو کي] پريو عيب اګاه سي رَجَعَ بِنُقْصَانِهِ نو [صرف] د هغه عيب په نقصان سره به رجوع کوي [يعني له بائع څخه صرف د هغه عيب تاوان اخيستلای سي] لِامْتِنَاعِ الرَّدِّ بِسَبَبِ الزِّيَادَةِ ځکه چي د زياتوب کولو په سبب سره [د مبيع] واپس کول ممتنع [ناممکن] سو لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى الْفَسْخِ فِي الْأَصْلِ بِدُونِهَا ځکه له زياتوب څخه بغير د اصل د فسخ کولو هيڅ صورت نسته لِأَنَّهَا لَا تَنْفَكُّ عَنْهُ ځکه چي زياتوب له اصل څخه نه جلا کيږي وَلَا وَجْهَ إِلَيْهِ مَعَهَا او د زياتوب سره [د مبيع] د واپس کولو هيڅ صورت نسته لِأَنَّ الزِّيَادَةَ لَيْسَتْ بِمَبِيعَةٍ ځکه چي زياتوب مبيع نه دی فَامْتَنَعَ أَصْلًا نو ځکه واپس کول بالکل متعذر [ناممکن] سوه وَلَيْسَ لِلْبَائِعِ أَنْ يَأْخُذَهُ او بائع ته دا اختيار نسته چي مزيد فيه مبيع واخلي [يعني د زياتوب سره مبيع واخلي] لِأَنَّ الِامْتِنَاعَ لِحَقِّ الشَّرْعِ لَا لِحَقِّهِ ځکه چي [دلته د واپس کولو] متعذر والی د شريعت د حق په وجه دی، نه د بائع د حق په وجه فَإِنْ بَاعَهُ الْمُشْتَرِي بَعْدَمَا رَأَى الْعَيْبَ او که تر عيب ليدلو وروسته مشتري مبيع خرڅه کړي رَجَعَ بِالنُّقْصَانِ نو هغه به [پر بائع] په نقصان سره رجوع کوي [يعني د عيب تاوان به واپس ځني اخلي] لِأَنَّ الرَّدَّ مُمْتَنِعٌ أَصْلًا قَبْلَهُ ځکه چي د هغه تر خرڅولو مخکي بالکل واپس کول متعذر وو فَلَا يَكُونُ بِالْبَيْعِ حَابِسًا لِلْمَبِيعِ لهذا د بيع په وجه به هغه د مبيع راګرځونکي نه وي [يعني د خرڅولو په وجه هغه حابس للمبيع نه سو] وَعَنْ هَذَا قُلْنَا: إِنَّ مَنِ اشْتَرَى ثَوْبًا فَقَطَعَهُ لِبَاسًا لِوَلَدِهِ الصَّغِيرِ وَخَاطَهُ او له همدې څخه موږ دا هم وايو: چي که څوک کپړه رانيسي او هغه د خپل کوچني بچي د جامو [کاليو] لپاره پرېکړي او [بيا] هغه وګنډي ثُمَّ اطَّلَعَ عَلَى عَيْبٍ بيا [په کپړه کي] په يو عيب اګاه سي لَا يَرْجِعُ بِالنُّقْصَانِ نو په نقصان سره رجوع نه سي کولای [يعني له بائع څخه د عيب تاوان نه سي اخيستلای] وَلَوْ كَانَ الْوَلَدُ كَبِيرًا او که بچی غټ [بالغ] وي يَرْجِعُ نو رجوع کولای سي لِأَنَّ التَّمْلِيكَ حَصَلَ فِي الْأَوَّلِ قَبْلَ الْخِيَاطَةِ ځکه چي په اول صورت [يعني د کوچني بچي په صورت] کي تر ګنډلو مخکي تمليک حاصل سو وَفِي الثَّانِي بَعْدَهَا بِالتَّسْلِيمِ إِلَيْهِ او په دويم صورت کي تر ګنډلو او غټ بچي ته تر ورسپارلو وروسته [تمليک حاصل سو].

**اللغات:** ﴿ثوب﴾ کپړه، ټوکر، ﴿امتنع﴾ د افتعال ماضي ده: متعذر کېدل، ناممکن کېدل، ﴿حابس﴾ د ضرب فاعل دی: راګرځونکی، بندونکی، د خپل ځان سره ساتونکی. ﴿حابسًا للمبيع﴾

د خپل ځان سره د مبيع راګرځونکی، دا يو محاوره ده. که د مشتري په فعل سره مبيع د مشتري سره راوګرځي (يعني د بائع وطرف ته د مبيع واپس کول ناممکن سي او هغه د مشتري سره لازمه سي)، نو هغه حَابِس لِلمبيع دی، او که په يو بله وجه مبيع د مشتري سره راوګرځي نو هغه حابس للمبيع نه دی. ﴿خاط﴾ د ضرب ماضي ده: ګنډل. ﴿رجع﴾ د ضرب ماضي ده: رجوع کول. ﴿رجوع بالنقصان﴾ له بائع څخه تاوان اخيستل، يعني د عيب په وجه چي په مبيع کي کوم نقصان راغلی دی د هغه قيمت او تاوان له بائع څخه اخيستل. ﴿تمليک﴾ د تفعيل مصدر دی: مالک جوړول. ﴿سويق﴾ نينې، يعني د غنمو او اوربشو وريتل سوي دانې (په اُور باندي د غنمو او داسي نورو کباب کړل سوي دانې). ﴿لتّ﴾ د نصر ماضي ده: په نينو غوړي ګډول (په غوړو لړل). ﴿سَمْن﴾ غوړي (د غوا او داسي نورو غوړي).

**تشريح**: په دغه اوږده عبارت کي صرف د يوې مسئلې سره متعلق څو صورتونه بيان سوي دي. د مسئلې حاصل دا دی چي که يو سړی کپړه (ټوکر) رانيسي او هغه پرېکړي (يعني غځچي يې کړي د دې لپاره چي يو څه ځني جوړ کړي)، لېکن تر پرېکولو وروسته هغه په کپړه کي يو عيب ويني او ثابته سي چي دا عيب د بائع سره هم موجود وو (يعني دا عيب هغه وخت هم په کپړه کي وو کله چي کپړه د بائع په قبضه کي وه)، نو په دې صورت کي مشتري هغه کپړه نه سي واپس کولای؛ ځکه چي مشتري کپړه پرېکړه او په هغې کي يې نوی عيب پيدا کړی؛ حال دا چي د بائع سره هغه کپړه د "قطع" له عيب څخه پاکه او بې عيبه وه. لهذا اوس که پرېکړل سوې کپړه واپس کړی سي نو بائع ته به نقصان ورسيږي، نو ځکه دا کپړه واپس کولای نه سي. لېکن څرنګه چي د پخواني عيب په وجه (کوم چي د بائع سره وو) مشتري ته هم نقصان رسيږي، نو ځکه به مشتري ته د رجوع بنقصان العيب اختيار وي او هغه به د عيب په اندازه ثمن کموي (يعني د عيب په اندازه قيمت او تاوان به له بائع څخه واپس اخلي).

فإن قال البائع إلخ: فرمايي که بائع د مقطوعه (پرېکړل سوي) کپړې په اخيستلو راضي وي نو اخيستلای يې سي؛ يعني په دې صورت کي مشتري هغه ته مقطوعه کپړه واپس کولای سي؛ ځکه چي امتناعُ الردّ د بائع د حق په وجه وو (يعني د کپړې واپس کول د بائع د حق په وجه ممنوع او ناجائز وو)، او کله چي دلته بائع په خپله د خپل حق ساقطولو او نقصان زغملو ته تيار دی، نو موږ څه کولای سو.

فإن باعه إلخ: د مسئلې يو صورت دا دی چي که مشتري دا مقطوعه کپړه خرڅه کړي او تر خرڅولو مخکي يا وروسته په يو عيب اګاه سي، نو په دواړو صورتونو کي مشتري نه پر بائع رجوع (بنقصان

العيب) کولای سي او نه کېږه بائع ته واپس کولای سي؛ ځکه کېدای سي چي بائع به د مقطوعه کپړې په اخيستلو راضي سوي وای، لهذا دلته د بائع د رضا امکان وو. لېکن په خرڅولو سره ګواکي مشتري د ځان سره مبيع راوګرځوله، او عيبداره مبيع راګرځول او خرڅول دا په هغه مبيع باندي د راضي کېدلو دليل دی (يعني ګواکي مشتري په عيبداره مبيع راضي سو)، او په بيع باندي د راضي کېدلو په صورت کي نه مشتري مبيع واپس کولای سي، او نه پر بائع رجوع (بنقصان العيب) کولای سي.

فإن قطع الثوب إلخ: د مسئلې يو صورت دا دی که مشتري کپړه رانيسي او هغه پرېکړي او بيا يې وګنډي (يعني يو شی ځني جوړ کړي)، يا کپړې ته سور رنګ ورکړي، يا نيښې رانيسي او غوړي په ګډ کړي (يعني نيښې په غوړو ولړي او ورسره ګډې يې کړي). او تر دې وروسته په يو عيب اګاه سي، نو په دې ټولو صورتونو کي مشتري ته صرف د رجوع بنقصان العيب حق حاصلېږي او هغه په يوه صورت کي هم مبيع نه سي واپس کولای.

ځکه په اول صورت کي مشتري يو وار کپړه پرېکړه او بيا يې وګنډله، نو په دې سره يې د کپړې په عيب کي نور زياتوب وکړی، همدارنګه په دويم صورت کي يې په رنګولو او په دريم صورت کي يې د غوړو په ګډولو سره په مبيع کي نور زياتوب وکړی، او په دې صورتونو کي دا زياتوب هم داسې دی کوم چي له مبيع يعني له کپړې او نيښو څخه نه جلا کېږي؛ نو کله چي زياتوب له مبيع څخه نه سي جلا کېدای او هغه مبيع هم نه سي ګرځېدای (يعني دا زياتوب مبيع کېدلای هم نه سي. ځکه چي د مشتري له طرفه سوی دی)، نو ځکه اوس په دې حالت کي د مبيع واپس کول متعذر (ناممکن) سو، او د متعذر والي په صورت کي مشتري ته صرف د رجوع بنقصان العيب حق حاصلېږي؛ لهذا په دې صورتونو کي به هم هغه ته صرف دا حق حاصلېږي.

وليس للبائع إلخ: فرمايي چي په دې صورتونو کي بائع ته دا اختيار هم نسته چي مزيد فيه مبيع واخلي؛ يعني د مخکني صورتونو په څېر دلته بائع ته د عيبداره مبيع د واپس اخيستلو اجازه نسته؛ ځکه چي په مخکني صورتونو کي (يعني د کپړې پرېکولو او نورو صورتونو کي) امتناعُ الردِ د بائع د حق په وجه وو، او دلته (يعني په مبيع کي د زياتوب کولو په صورت کي) امتناعُ الردِ د شريعت د حق په وجه دی؛ ځکه مخکي دا خبره تېره سوه چي زياتوب د مشتري له طرفه سوی دی نو هغه مبيع نه سي ګرځېدای لهذا اوس که مزيد فيه مبيع بائع ته واپس کړی سي نو په دې کي به د سُود (ربا) شبهه وي؛ ځکه په مبيع کي چي کوم زياتوب سوی دی هغه خالي عن العوض دی (يعني د بائع له طرفه مشتري ته د هغه زياتوب عوض نه دی ورکول سوی)، او ربا د شريعت حق دی، نو ځکه د شريعت د حق په لحاظ کولو سره به بائع د مزيد فيه مبيع له اخيستلو څخه منع کېږي.

فإن باعه إلخ: د مسئلې يو صورت دا هم دی چې که مشتري د کپړې تر ګنډلو يا رنګولو يا په نيـنو د غوړلو ګډولو څخه وروسته يو عيب وويني او بيا هم کپړه يا نيينې خرڅې کړي، نو په دې صورت کې مشتري ته د رجوع بالنقصان حق حاصليږي، ځکه چې دلته مشتري له خرڅولو څخه مخکې په مبيع کې زياتوب وکړی او همدغه زياتوب د امتناعُ الردّ سبب وګرځېدی. لهذا اوس مشتري د مبيع په خرڅولو سره حَابِس لِلمبيعُ نه سو (ځکه چې زياتوب خو د ردّ [واپس کولو] دروازه مخکې لا بنده کړه)، او د حابس للمبيع نه کېدلو په صورت کې مشتري ته د رجوع بنقصان العيب حق حاصليږي، لهذا په دې صورت کې به هم هغه د دې حقدار وي.

وعن هٰذا إلخ: د دې حاصل دا دی چې له پورتني تفصيلاتو څخه يو اُصول مستنبط سو، اُصول دا دی چې په کوم صورت کې مشتري حابس للمبيع وي په هغه صورت کې مشتري له حقُ الردّ او رجوع بالنقصان دواړو څخه محروميږي، او چيري چې مشتري حابس نه وي، نو هلته مشتري ته د رجوع بالنقصان حق حاصليږي.

د مثال په توګه که يو سړی کپړه رانيسي او د خپل کوچني بچي لپاره کالي ځني پرېکړي او ويې ګنډي، او تر ګنډلو وروسته په يو عيب آګاه سي، نو هغه ته د رجوع بالنقصان حق نه حاصليږي، او که بچی غټ (بالغ) وي نو په دې صورت کې مشتري ته د رجوع بالنقصان حق حاصليږي؛ په دې دوو صورتونو کې د فرق تر بيان مخکې په يوه قاعده ځان پوه کړئ!.

**قاعده**: دا ده چې کوچني بچي د پلار ماتحت وي (يعني د پلار تر تصرف لاندي وي) د هغه له طرفه پلار معامله کوي او د هغه پر مال پلار قبضه کوي، نو کله چې پلار پر مال قبضه وکړي او د هغه مالک سي نو سمدستي کوچنی بچی هم پر مال قبضه کونکی ګرځي او د هغه مالک کيږي (لنډه دا چې د پلار په مالک کېدلو سره کوچنی بچی هم مالک کيږي). او که پلار د غټ (بالغ) بچي لپاره قبضه وکړي، نو هغه (غټ بچی) نه مالک کيږي تر څو چې غټ بچی په خپله پر هغه قبضه نه وکړي، ځکه چې هغه عاقل او بالغ دی.

اوس په پورتني دوو صورتونو کې فرق دا دی چې په اول صورت (يعني د بچي د کوچنيوالي په صورت) کې تمليک له ګنډلو څخه مخکې حاصل سو (يعني کله چې پلار د کوچني بچي له طرفه پر کپړې قبضه وکړه او هغه يې پرېکړه نو سمدستي کوچنی بچی د کپړې مالک جوړ سو)، او محض د کپړې په پرېکولو سره پلار خپل بچي ته د کپړې هبه کونکی او ورسپارونکی وګرځېدی يعني په دې صورت کې پلار محض په پرېکولو سره حابس للمبيع وګرځېدی، او د حابس للمبيع کېدلو په صورت کې مشتري (کوم چې پلار دی) د رجوع بالنقصان له حق څخه محروميږي، لهذا دلته به هم هغه محرومول کيږي.

او ځرنګه چي په دويم صورت کي بچی بالغ او غټ دی او پر معامله کولو قادر دی، نو ځکه محض په پرېکولو سره د هغه په حق کي تمليک نه حاصلېږي. بلکي د هغه په حق کي تر ګنډلو وروسته په سپارلو سره دا ثابتيږي (يعني کله چي پلار د بالغ بچي لپاره کالي پرېکړي او ويې ګنډي نو محض په دې سره هغه نه مالک کيږي. بلکي بالغ بچی هغه وخت مالک کيږي کله چي پلار تر ګنډلو وروسته هغه ته کپړه وسپاري). لهذا کله چي صرف د کپړې په پرېکولو او ګنډلو سره تسليم او هبه ثابته نه سوه، نو پلار حابس للمبيع نه وګرځېدی، او د حابس للمبيع نه کېدلو په صورت کي مشتري ته د رجوع (بنقصان العيب) حق سته، لهذا په دې صورت کي به هم مشتري (پلار) ته دا حق وي.

## د پورتني مسئلې بل صورت

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى عَبْدًا فَأَعْتَقَهُ أَوْ مَاتَ عِنْدَهُ او که څوک يو غلام رانيسي او [بيا] غلام آزاد کړي يا غلام د هغه سره مړ سي ثُمَّ اطَّلَعَ عَلٰى عَيْبٍ بيا مشتري [په غلام کي] پر يو عيب اګاه سي رَجَعَ بِنُقْصَانِهِ نو هغه به د عيب په نقصان سره رجوع کوي [يعني له بائع څخه به د عيب تاوان (قيمت) واپس اخلي] أَمَّا الْمَوْتُ فَلِأَنَّ الْمِلْكَ يَنْتَهِيْ بِهِ کوم چي مرګ دی نو ځکه چي په مرګ سره ملکيت انتهاء ته رسيږي [يعني په مرګ سره هغه پوره کيږي] وَالِامْتِنَاعُ حُكْمِيٌّ لَا بِفِعْلِهِ او [د مرګ په صورت کي د واپس کولو] ممتنع کېدل غير اختياري دي، د مشتري په فعل سره نه دي وَأَمَّا الْإِعْتَاقُ فَالْقِيَاسُ فِيهِ أَنْ لَا يَرْجِعَ او کوم چي اعتاق [آزادول] دي نو په دې باره کي د قياس تقاضا دا ده چي مشتري رجوع نه سي کولای لِأَنَّ الِامْتِنَاعَ بِفِعْلِهِ ځکه چي [په اعتاق کي د واپس کولو] ممتنع کېدل د مشتري په فعل سره دي فَصَارَ كَالْقَتْلِ نو دا د قتل په څېر سو وَفِي الِاسْتِحْسَانِ يَرْجِعُ او په استحسان کي رجوع کولای سي [يعني د استحسان تقاضا دا ده چي د اعتاق په صورت کي مشتري رجوع کولای سي] لِأَنَّ الْعِتْقَ إِنْهَاءُ الْمِلْكِ ځکه چي عتق [هم] د ملکيت انتهاء ته رسول دي [يعني په عتق سره هم ملکيت انتهاء ته رسيږي او پوره کيږي] لِأَنَّ الْآدَمِيَّ مَا خُلِقَ فِي الْأَصْلِ مَحَلًّا لِلْمِلْكِ ځکه چي انسان په اصل کي د ملکيت لپاره محل نه دی پيدا سوی [يعني انسان په اصل خلقت کي د ملکيت محل نه دی] وَإِنَّمَا يَثْبُتُ الْمِلْكُ فِيهِ مُوَقَّتًا إِلَى الْإِعْتَاقِ [بلکي] په انسان [غلام] کي تر اعتاق [آزادولو] پوري مؤقت ملکيت ثابتيږي فَكَانَ إِنْهَاءً نو

ځکه به اعتاق [د ملکیت] انتهاء ته رسونکې وي ایعني ځکه په آزادولو سره به ملکیت پوره کیږي او تامیږي] فَصَارَ كَالْمَوْتِ لهذا اعتاق د مرګ په شان سو وَهٰذَا لِأَنَّ الشَّيْءَ يَتَقَرَّرُ بِانْتِهَائِهِ او دا [د رجوع د جائز کېدلو] حکم ځکه دی چې شی خپل انتهاء ته په رسېدلو سره ثابتیږي فَيُجْعَلُ كَأَنَّ الْمِلْكَ وَالرَّدَّ مُتَعَذِّرٌ بَاقٍ لهذا داسې به فرض کیږي چې ګواکې ملکیت پاته دی او واپس کول متعذر [ناممکن] دي وَالتَّدْبِيرُ وَالِاسْتِيلَادُ بِمَنْزِلَتِهِ او مدبر جوړول او اُم ولد جوړول هم د اعتاق په درجه کې دي لِأَنَّ تَعَذُّرَ النَّقْلِ مَعَ بَقَاءِ الْمَحَلِّ بِالْأَمْرِ الْحُكْمِيِّ ځکه چې د محل د باقي پاتېدلو سره [د ملکیت] د انتقال متعذر کېدل د غیر اختیاري امر په وجه دی وَإِنْ أَعْتَقَهُ عَلَى مَالٍ ✿ او که چیرې مشتري د مال په عوض کې غلام آزاد کړي لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ نو بیا [پر بائع] د هیڅ شي رجوع نه سي کولای [دا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله قول دی او ظاهر روایت] لِأَنَّهُ حَبَسَ بَدَلَهُ ځکه چې [دلته] مشتري د مبیع بدل [مال] راګرځولی دی [یعني د غلام په بدله کې یې مال راګرځولی دی] وَحَبْسُ الْبَدَلِ كَحَبْسِ الْمُبْدَلِ او د بدل راګرځول داسې دي لکه د مُبدل راګرځول وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ يَرْجِعُ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی: چې [په دې صورت کې هم] مشتري رجوع کولای سي لِأَنَّهُ إِنْهَاءٌ لِلْمِلْكِ وَإِنْ كَانَ بِعِوَضٍ ځکه چې اعتاق هم د ملکیت انتهاء ته رسول دي [یعني د ملکیت لپاره پوره کونکي دي] که څه هم هغه په عوض سره وي.

**اللغات:** ﴿ينتهي﴾ د افتعال مضارع ده: انتهاء ته رسېدل، ختمېدل (پوره کېدل)، ﴿انهاء﴾ د افعال مصدر دی: انتهاء ته رسول، ختمول، ﴿حُكميّ﴾ د دې لفظي معنیٰ ده: په حکم سره، یعني د الله په حکم سره غلام مړ سو او د الله د حکم په وجه د بائع وطرف ته د هغه واپس کېدل ناممکن سو، نه د مشتري په فعل سره (یعني په دې کې د مشتري هیڅ غلطي نسته)، نو د حکمي مطلب او مفهوم "غیرِ اختیاري" دی، ﴿الأمر الحكمي﴾ د دې لفظي معنیٰ ده: حکمي امر، یعني شریعت د آزادولو (مدبر جوړلو...) حکم کړی دی، که مشتري هغه ومني او غلام آزاد کړي نو ګواکې د شریعت د حکم په وجه د هغه واپس کول ناممکن سو، نه د مشتري په فعل سره، ګواکې په دې کې د مشتري هیڅ غلطي نسته، لهذا په تدبیر او استیلاد کې به هم مشتري ته د رجوع حق حاصلیږي، نو د الامر الحکمی

✿ القول الراجح: هو قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، يظهر من الهداية ترجيح قو أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لكن الظاهر من باقي الكتب أن ظاهر الرواية راجح كما في رد المحتار (ج:۴، ص:۹۴)، وكذا في الخلاصة (ج:۳، ص:۷۰). [القول الراجح ج:۳، ص:۲۸]

مطلب دی "غير اختياري امر او حکم". ﴿حبس﴾ د ضرب مصدر دی: راګرځول، د خپل ځان سره ساتل. ﴿بدل﴾ عوض، مراد ځني د غلام په بدله کي اخيستل سوی مال دی. ﴿مُبدل﴾ مبيع، مراد ځني غلام دی.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که يو سړی غلام رانيسي او بيا يې آزاد کړي، يا هغه غلام د مشتري په قبضه کي مړ سي، او د غلام تر آزادېدلو يا د هغه تر مرګ وروسته مشتري په يو پخواني عيب اګاه سي کوم چي د بائع سره هم موجود وي، نو اوس به مشتري څه کوي؟ آيا هغه به د رجوع بنقصان العيب حقدار وي، که نه؟

فرمايي چي د مرګ په صورت کي خو ښکاره خبره ده چي مشتري ته د رجوع بنقصان العيب حق حاصليږي؛ ځکه چي مرګ يو فطري او غير اختياري شی دی چي په هغه کي د بنده د فعل هيڅ دخل نسته، لهذا دلته د غلام په مرګ کي د مشتري هيڅ دخل نه راغلی او نه د هغه له طرفه څه زياتوب وسو، او بيا دا منل سوې خبره ده چي "الشيءُ يتقرر بانتهائه" يعني کله چي يو شی خپل انتهاء ته ورسيږي نو ثابتيږي او لازميږي، او د غلام په مرګ سره بيع انتهاء ته ورسېده او پوره سوه (او اوس ذکر سوه چي کوم شی انتهاء ته ورسيږي نو هغه لازميږي)، نو ځکه دلته د غلام بيع ثابته او لازمه سوه او د غير اختياري شي په وجه د غلام واپس کول ناممکن سو، لېکن څرنګه چي مشتري په هغه کي يو عيب ليدلی دی او هغه عيب هم پخوانی دی، او د مشتري په هغه کي هيڅ دخل هم نسته، نو ځکه به هغه ته د رجوع حق (يعني د رجوع بنقصان العيب حق) حاصليږي.

وأما الإعتاق إلخ: تر اعتاق يعني د غلام تر آزادولو وروسته د حقُ الرّجوع د حاصلېدلو او نه حاصلېدلو په هکله د قياس او استحسان دوې جلا نظريې دي: ① ... د قياس تقاضا دا ده چي تر آزادولو وروسته که مشتري (په غلام کي) په يو عيب اګاه سي نو هغه ته دي د رجوع حق نه حاصليږي؛ ځکه چي دلته امتناعُ الرد د غير اختياري شي په وجه نه دی. بلکي په خپله د مشتري د فعل (اعتاق) په وجه دی؛ ځکه کله چي مشتري په عيب تر اګاه کېدلو مخکي غلام آزاد کړی نو مشتري حابس للمبيع وګرځېدی (په بله وينا راضي بالمبيع وګرځېدی)، او د حبس په صورت کي مشتري ته د رجوع حق نه حاصليږي، لکه څرنګه چي مشتري مبيع قتل کړي او بيا په يو عيب اګاه سي نو په دې صورت کي هغه د رجوع له حق څخه محروميږي، همداسي به دلته هم هغه د رجوع بنقصان العيب له حق څخه محرومول کيږي (همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دی).

وفي الاستحسان إلخ: فرمايي د استحسان پر بناء به دلته مشتري ته د رجوع حق حاصلیږي: دليل دا دی چي انسان د اصل خلقت او پيدايښت په اعتبار سره د ملکيت محل نه وي، بلکي د عارض يعني د غلامی په سبب سره تر يو ټاکلي او مؤقت وخت (د آزادی تر وخت) پوري د ملکيت محل پاتيږي، او څرنګه چي په مرګ سره يو شی انتهاء ته رسيږي، همداسي له غلامی څخه تر خلاصيدلو او آزاديدلو وروسته هم انتهاء ته رسيږي، او هر شی چي خپل انتهاء ته ورسيږي نو ثابتيږي او لازميږي، او څرنګه چي (د غلام) د مرګ په صورت کي مشتري ته د رجوع حق حاصليږي، همداسي به دلته مشتري ته د رجوع حق حاصليږي او داسي به فرض کيږي "چي د هغه ملکيت خو پاته دی لیکن د غلام واپس کول متعذر (ناممکن) دي". او د متعذر والي په صورت کي مشتري ته د رجوع حق حاصليږي: نو ځکه به استحساناً په دې صورت کي هم هغه ته د رجوع حق حاصليږي (دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دی، او همدا راجح قول دی القول الراجح ج: ۲، ص: ۱۲۷).

والتدبير والاستيلاد إلخ: فرمايي څرنګه چي د اعتاق په صورت کي استحساناً مشتري ته د رجوع حق حاصليږي، همدارنګه تر مدبر جوړلو او أم ولد جوړولو وروسته که مشتري په عيب اګاه شي نو هم هغه ته د رجوع حق حاصليږي؛ ځکه چي د مدبر او أم ولد واپس کول او له يوه ملکيت څخه بل ملکيت ته د دوی منتقل کېدل هم د شريعت د حکم په وجه متعذر (ناممکن) دي، او حال دا چي محل او عين (يعني د مدبر او أم ولد ذات) باقي پاته دی، نو دا مبيع د بقاء په صورت کي د امتناعُ الردّ په څېر سو (يعني دا داسي سو لکه مبيع چي باقي او موجوده وي ليکن د هغې واپس کول ناممکن او ممنوع وي، او دلته هم د مدبر او أم ولد ذات پاته دی (ځکه چي هغوی مړه سو نه دي بلکي آزاد کړی سوي دي) او د بائع وطرف ته د هغوی واپس کول او منتقل کېدل ناممکن دي) او په داسي صورت کي مشتري ته د رجوع حق حاصليږي، لهذا دلته به هم هغه ته د رجوع حق حاصليږي.

وإن أعتقه إلخ: مسئله دا ده که مشتري غلام آزاد کړي، ليکن مفت نه، بلکي د عوض (مال) په بدله کي يې آزاد کړي (يعني ثمن او پيسې ځني واخلي)، نو په دې مسئله کي د ظاهر روايت (صاحبينو) حکم دا دی چي مشتري ته به د رجوع حق نه حاصليږي؛ ځکه چي مشتري د مبيع بدل يعني مال اخيستی او راګرځولی دی، او د بدل راګرځول د مُبدل (يعني د مبيع) د راګرځولو په څېر دي، او د مُبدل (مبيع) د راګرځولو په صورت کي مشتري د رجوع له حق څخه محروميږي، لهذا د بدل د راګرځولو په صورت کي به هم هغه د رجوع له حق څخه محروميږي.

او په دې باره کي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا نقل سوی دی چي په دې صورت کي به هم مشتري ته د رجوع (بنقصان العيب) حق وي: ځکه چي په اعتاق سره خامخا ملکيت انتهاء ته رسيږي (يعني اعتاق په هر صورت کي د ملکيت د پوره کېدلو ذريعه ده) برابره ده هغه بالعوض او که بلا عوض وي، او د اعتاق په صورت کي مشتري ته د رجوع حق حاصليږي. لهذا دلته به هم هغه ته د رجوع حق حاصليږي.

## په معيب كي د رد وبدل كولو يو بل صورت (تفصيلي بيان)

قَالَ: وَإِنْ قَتَلَ الْمُشْتَرِيْ الْعَبْدَ فرمايي: او كه مشتري غلام قتل كړي أَوْ كَانَ طَعَامًا فَأَكَلَهُ يا مبيع خوراک وي او مشتري هغه وخوري لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ۞ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مشتري [پر بائع] د هيڅ شي رجوع نه سي كولای [يعني رجوع بالنقصان نه سي كولای] أَمَّا الْقَتْلُ فَالْمَذْكُورُ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ كوم چي قتل دی نو [په متن كي] ذكر سوی قول [چي مشتري رجوع بالنقصان نه سي كولای] ظاهر روايت دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ يَرْجِعُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چي مشتري رجوع كولای سي لِأَنَّ قَتْلَ الْمَوْلَى عَبْدَهُ لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ حُكْمٌ دُنْيَاوِيٌّ ځكه كه مالک خپل غلام قتل كړي نو د دې سره هيڅ دنيوي حكم نه متعلق كيږي فَصَارَ كَالْمَوْتِ حَتْفَ أَنْفِهِ نو دا داسي سو لكه په خپل [طبعي] مرګ مړ كېدل فَيَكُونُ إِنْهَاءً نو ځكه به دا [د ملكيت] انهاء وي وَوَجْهُ الظَّاهِرِ: أَنَّ الْقَتْلَ لَا يُوجَدُ إِلَّا مَضْمُونًا او [د امام صاحب رَحِمَهُ الله] د ظاهر روايت دليل دا دی: چي قتل نه موجوديږي مګر ضمان والا [يعني د قتل ضمان خامخا واجبيږي] وَإِنَّمَا يَسْقُطُ الضَّمَانُ هُهُنَا بِاعْتِبَارِ الْمِلْكِ او دلته ضمان صرف د ملكيت په وجه ساقطيږي فَيَصِيرُ كَالْمُسْتَفِيدِ بِهِ عِوَضًا نو مالک به داسي وي لكه په خپل ملكيت سره د عوض حاصلونكي كس بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ په خلاف د اعتاق [ازادولو] لِأَنَّهُ لَا يُوجِبُ الضَّمَانَ لَا مَحَالَةَ ځكه چي اعتاق خامخا ضمان نه واجبوي كَإِعْتَاقِ الْمُعْسِرِ عَبْدًا مُشْتَرَكًا لكه تنګلاسی [محتاج] سړی چي مشترک غلام آزاد كړي وَأَمَّا الْأَكْلُ فَعَلَى الْخِلَافِ او كوم چي خوراک دی نو هغه هم مختلف فيه دی فَعِنْدَهُمَا يَرْجِعُ ۞ نو د صاحبينو په نيز [د خوراک په صورت كي] مشتري رجوع كولای سي وَعِنْدَهُ لَا يَرْجِعُ اسْتِحْسَانًا او د امام صاحب رَحِمَهُ

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في فتح القدير (ج:۶، ص:۱۶)، وكذا في رد المختار (ج:۴، ص:۹۲) [القول الراجح ج:۲، ص:۳۰]

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار: ..فإنه يرجع بالنقصان استحسانا عندهما وعليه الفتوى (ج ۴، ۹۳)، وكذا في البحر الرائق (ج:۶، ص:۵۳). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۰]

الله په نيز هغه استحساناً رجوع نه سي کولای وَعَلىٰ هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا لَبِسَ الثَّوْبَ حَتّٰى تَخَرَّقَ او پر همدغه اختلاف [دا مسئله هم] ده چي که مشتري کپړه واغوندي تر دې چي هغه شيري سي لَهُمَا: أَنَّهُ صَنَعَ فِي الْمَبِيْعِ مَا يُقْصَدُ بِشِرَائِهِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي مشتري په مبيع کي هغه تصرف وکړی کوم چي د مبيع په رانيولو سره مقصود کيږي [يعني مشتري په مبيع کي داسي تصرف وکړی کوم چي د مبيع د رانيولو په قصد سره کيږي] وَيُعْتَادُ فِعْلُهُ فِيهِ او په مبيع کي داسي تصرف کول معتاد [عادت] دي فَأَشْبَهَ الْإِعْتَاقَ نو دا د اعتاق سره مشابه سو وَلَهُ: أَنَّهُ تَعَذَّرَ الرَّدُّ بِفِعْلٍ مَضْمُوْنٍ مِنْهُ فِي الْمَبِيْعِ د امام صاحب دليل دا دی: چي د مشتري له طرفه په مبيع کي د ضمان والا کار کېدلو په وجه د مبيع واپس کول متعذر [ناممکن] سو فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ وَالْقَتْلَ نو دا د [مبيع] خرڅولو او د [غلام] قتل کولو سره مشابه سو وَلَا مُعْتَبَرَ بِكَوْنِهِ مَقْصُوْدًا او د خوراک [او داسي نورو] د مقصود کېدلو هيڅ اعتبار نسته أَلَا تَرَىٰ أَنَّ الْبَيْعَ مِمَّا يُقْصَدُ بِالشِّرَاءِ آيا ته نه ګورې! چي بيع [خرڅول] له هغه شيانو څخه دي کوم چي په رانيولو سره مقصود کيږي [يعني ځيني وخت د رانيولو مقصد خرڅول وي، يعني مشتري کله د دې لپاره شی رانيسي چي بيا يې پر بل چا خرڅ کړي] ثُمَّ هُوَ يَمْنَعُ الرُّجُوْعَ بيا هغه [خرڅول] رجوع منع کوي [يعني خرڅول له رجوع بالنقصان څخه مانع دي] فَإِنْ أَكَلَ بَعْضَ الطَّعَامِ ثُمَّ عَلِمَ بِالْعَيْبِ او که مشتري د خوراک څه حصه وخوري او بيا په عيب خبر سي فَكَذَا الْجَوَابُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ نو [په دې صورت کي] هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دغه حکم دی [چي مشتري رجوع بالنقصان نه سي کولای، همدارنګه نه مابقي مبيع واپس کولای سي] لِأَنَّ الطَّعَامَ كَشَيْءٍ وَاحِدٍ ځکه چي خوراک د يوه شي په څېر دی [يعني د طعام د شئ واحد په درجه کي دی] فَصَارَ كَبَيْعِ الْبَعْضِ نو دا داسي سو لکه [د مبيع] بعضي حصه خرڅول وَعِنْدَهُمَا أَنَّهُ يَرْجِعُ بِنُقْصَانِ الْعَيْبِ فِي الْكُلِّ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز [حکم دا دی] چي مشتري به په ټوله خوراک کي د عيب په نقصان سره رجوع کوي وَعَنْهُمَا: أَنَّهُ يَرُدُّ مَا بَقِيَ او له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه [دويم] روايت دا دی: چي مشتري به هغه خوراک واپس کوي کوم چي پاته سي [يعني پاته سوی خوراک به بائع ته واپس کوي] لِأَنَّهُ لَا يَضُرُّهُ التَّبْعِيضُ ځکه چي حصه، حصه کول خوراک [طعام] ته ضرر نه رسوي.

**اللغات**: ﴿حتف﴾ مرګ، ﴿حتف أنفه﴾ په خپل مرګ (په طبعي مرګ)، ﴿معسر﴾ تنګلاسی، محتاج، غريب، ﴿تخرّق﴾ د تفعل ماضي ده: شيرل کېدل، ﴿يعتاد﴾ د افتعال مضارع ده: عادت

کېدل. يعتاد فعله: داسې کار چې په خلکو کې د هغه کول عادت وي، لکه د خوراک خوړل چې عادت دي او د کپړې اغوستل چې عادت دي، مروج کار. ﴿مضمون﴾ داسې کار چې د هغه ضمان واجبيږي (ضمان والا کار).

**تشريح**: صاحب د کتاب په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان کړي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که مشتري يو غلام رانيسي او هغه قتل کړي، يا د خوراک يو شی رانيسي او هغه وخوري، بيا مشتري په يو پخواني (کان عند البائع) عيب باندې اګاه سي، نو په دې باره کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې مشتري ته د رجوع بنقصان العيب حق نه حاصليږي همدا ظاهر روايت دی. لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز هغه ته دا حق حاصليږي، همدا د امام احمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله مسلک دی.

لأن قتل المولی عبده إلخ: د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې که مالک (مولیٰ) خپل غلام قتل کړي، نو د هغه د قتل سره هيڅ دنيوي حکم نه متعلق کيږي او پر مالک د هيڅ ډول ديت يا قصاص حکم نه لازميږي، او د مالک قتلول د غلام د طبعي او فطري مرګ په درجه کې دي (يعني د مالک قتلول داسې دي لکه غلام چې په خپل مرګ مړ سي)، او تاسو ته معلومه ده چې په طبعي مرګ سره (بيع او) د غلام ملکيت انتهاء ته رسيږي، او هغه پوره کيږي او لازميږي، او د ملکيت د پوره کېدلو او انتهاء ته رسېدلو په صورت کې که (د مبيع) واپس کول متعذر وي نو مشتري ته د رجوع بنقصان العيب حق حاصليږي، لهذا دلته به هم مشتري يعني مالک ته دا حق حاصليږي؛ ځکه چې دلته هم د مبيع واپس کول متعذر (ناممکن) دي.

ووجه الظاهر إلخ: د ظاهر روايت (يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله) دليل دا دی چې قتل په هيڅ حالت کې هم بېله ضمانه نه واقع کيږي، بلکې هر قتل مضمون او ضمان والا وي (يعني د هر قتل ضمان او تاوان واجبيږي)، نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: "ليس في الإسلام دم مفرج (أي مبطل ومهدر)" يعني په اسلام کې هيڅ وينه ضايع او بېکاره (هدر) نه ده، همدا وجه ده که دغه مالک له خپل غلام څخه بغير بل څوک قتل کړي وای، نو پر هغه به د قتلِ عمد په صورت کې قصاص پر واجب وای او د غير عمد په صورت کې به ديت پر واجب وای، معلومه سوه چې په اسلام کې هر قتل مضمون وي، لېکن دلته په دې وجه پر مالک هيڅ ضمان نه واجبيږي چې هغه غلام د ده خپل ملکيت دی او مالک د قتل په عوض کې خپل ملکيت زائل کړی دی (نو په دې وجه پر هغه هيڅ ضمان واجب او لازم نه سو)، او

ځکه څرنګه چي يو څوک په ملکيت سره عوض حاصل کړي او د عوض په بدله کي ملکيت ساقط کړي، يعني غلام رانيسي او بيا غلام خرڅ کړي خپل ملکيت زائل کړي، نو دغه رانيونکی (مشتري) د رجوع له حق څخه محروميږي، همداسي به دلته هم د قتل په ذريعه د ملکيت زائلولو په صورت کي هغه د رجوع له حق څخه محروميږي.

بخلاف الإعتاق إلخ: فرمايي چي تر آزادولو وروسته پر عيب د اګاه کېدلو په صورت کي مشتري ته ځکه د رجوع حق حاصليږي، چي هلته مشتري (ازادونکی) د آزادولو په عوض کي هيڅ عوض نه اخلي، لهذا دا د مرګ سره مشابه سو، او د غلام د مرګ په صورت کي مشتري ته د رجوع حق حاصليږي. لهذا دلته به هم حاصليږي؛ او لکه څرنګه چي يو تنګلاسی (محتاج) سړی مشترک غلام آزاد کړي، نو پر هغه هيڅ ضمان نه واجبيږي، همداسي به دلته هم پر مشتري هيڅ ضمان نه واجبيږي؛ بلکي برعکس به مشتري ته د رجوع بنقصان العيب حق حاصليږي.

وأما الأكل فعلى الخلاف إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده که څوک د خوراک يو شی رانيسي او ويې خوري يا کپړه رانيسي او هغه واغوندي او بيا هغه څيري سي، تر دې وروسته مشتري په يو عيب اګاه سي، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې دواړو صورتونو کي مشتري ته د رجوع حق حاصليږي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به په دواړو صورتونو کي مشتري استحساناً د رجوع له حق څخه محروميږي. صاحبِ هدايې د "وأما الأكل" څخه تر "حتى تخرق" پوري همدا دويمه مسئله بيان کړې ده.

لهما: أنه صنع في المبيع إلخ: د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي مشتري په مبيع کي داسي تصرف وکړی لکه په بيع راضي سړی چي يې کوي (يعني د ده له تصرف څخه په بيع راضي کېدل ښکاره سو)، او عموماً په خلکو کي دا شيان معتاد (عادت) هم دي چي هغوی ماکولات (د خوراک شيان) تر رانيولو وروسته خوري، همدارنګه ملبوسات (د اغوستلو شيان) اغوندي. لهذا دا د اعتاق سره مشابه سو. او څرنګه چي د اعتاق په صورت کي د ملکيت د پوره کېدلو او انتهاء ته د رسېدلو په وجه مشتري ته د رجوع حق حاصليږي، همداسي دلته هم د مشتري په تصرف (خوړلو او اغوستلو) سره بيع انتهاء ته ورسېده او هغه ثابته او پوره سوه، او بيا تر عيب ښکاره کېدلو وروسته د مبيع واپس کول متعذر سو، نو ځکه به مشتري ته د رجوع حق حاصليږي.

• وله: أنه تعذر الرد إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چي په دغه صورت کي د مبيع واپس کول د مشتري له طرفه د يو داسي فعل په وجه متعذر سوي دي چي د هغه ضمان واجبيږي،

همدا وجه ده که مشتري د بل چا شنی وخوري يا يې واغوندي، نو خامخا پر هغه ضمان واجبيږي، لهذا دا صورت د مبيع د خرڅولو او د غلام د قتل کولو په څېر سو. او په دې دواړو صورتونو کي مشتري ته د رجوع حق نه حاصليږي. لهذا په دې صورت کي به هم هغه د رجوع له حق څخه محروميږي.

ولا معتبر إلخ: په دې سره د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د قياس جواب ورکوي. فرمايي چي ستاسي دا خبره "چي مشتري په مبيع کي معتاد او متعارف تصرف کړی دی نو د اعتاق سره د مشابهت په وجه به هغه ته د رجوع حق حاصليږي" موږ ته تسليم نه ده؛ ځکه دا ضروري نه دي چي مبيع همېشه د يوه مقصد لپاره رانيول سي (يعني مبيع همېشه د يوه مقصد لپاره نه رانيول کيږي)، بلکي ماکولات او ملبوسات ځيني وخت (له خوړلو او اغوستلو څخه بغير) د تجارت او خرڅولو په قصد سره رانيول کيږي (يعني مشتري هغه د خرڅولو په نيت سره رانيسي)، او په هغه صورت کي مشتري ته د رجوع حق نه حاصليږي، لهذا په دې صورت کي به هم هغه له دې حق څخه محروميږي.

فإن أكل بعض الطعام إلخ: مسئله دا ده که مبيع د ماکولاتو له قبيلې څخه وي او مشتري له هغه څخه څه حصه وخوري. ټوله نه وخوري، او تر دې وروسته په يو عيب اګاه سي. نو په دې صورت کي هم د امام صاحب مسلک دا دی چي مشتري نه مابقي مبيع واپس کولای سي او نه رجوع بنقصان العيب کولای سي؛ ځکه چي خوراک (طعام) د شئ واحد (يوه شي) په درجه کي دی، او له شئ واحد څخه څه حصه خوړل او څه حصه واپس کول صحيح نه دي، او دا "بعض دون البعض" د بيع سره مشابه دي. او په داسي بيع کي مشتري د رجوع له حق څخه محروميږي. لهذا دلته به هم هغه د رجوع له حق څخه محرومول کيږي.

وعندهما إلخ: او له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه په دې مسئله کي دوه روايتونه دي:

(۱)... مشتري ته په ټوله خوراک (طعام) کي د رجوع حق حاصليږي. يعني کوم څه چي مشتري وخوړل په هغه کي هم او کوم خوراک چي پاته سو په هغه کي هم. ځکه چي خوراک د شئ واحد په درجه کي دی، لهذا د بعض دون البعض واپس کول ممتنع سو. لېکن څرنګه چي د عيب په وجه مشتري ته نقصان ورسېدی، نو ځکه به په ټوله خوراک کي مشتري ته د رجوع حق حاصل وي. ځکه د صاحبينو په نېز خو مشتري د ټوله خوراک د خوړلو په صورت کي هم د رجوع مستحق کيږي. ففي البعض يستحق بالأولى.

(۲)... دويم روايت دا دی چي صرف په پاته خوراک (ما بقي مبيع) کي مشتري ته د واپس کولو حق حاصليږي؛ ځکه چي د طعام لپاره تبعيض او تقطيع مضر نه دی (يعني څه خوړل او څه پرېښوول همدارنګه پرېکول طعام ته ضرر نه رسوي)، لهذا څومره حصه چي مشتري پرې ايښې ده هغه دي بائع ته واپس کړي، او څومره حصه چي يې خوړلې ده د هغې په اندازه دي له بائع څخه د عيب نقصان واخلي.

## هګۍ، خټکي او داسي نور ماتول په مبيع کي تصرف شمارل کيږي، که نه؟

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى بَيْضًا أَوْ بِطِّيْخًا أَوْ قِثَّاءً أَوْ خِيَارًا أَوْ جَوْزًا فرمايي: او که څوک هګۍ يا خټکي يا توري يا بادرنګ يا جوز رانيسي فَكَسَرَهُ فَوَجَدَهُ فَاسِدًا بيا هغه مات کړي نو خراب يې ومومي فَإِنْ لَمْ يُنْتَفَعْ بِهِ نو که له هغه څخه [بالكل] فايده نه سي اخيستل کېدای رَجَعَ بِالثَّمَنِ كُلِّهِ نو مشتري به ټوله ثمن واپس اخلي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالٍ ځکه چي [اوس] هغه مال نه دی فَكَانَ الْبَيْعُ بَاطِلًا نو ځکه به بيع باطله وي وَلَا يُعْتَبَرُ فِي الْجَوْزِ صَلَاحُ قِشْرِهِ او په جوز کي د هغه د پوستکي سموالی [روغوالی] معتبر نه دی عَلٰى مَاقِيلَ لکه څرنګه چي ويل سوي دي لِأَنَّ مَالِيَّتَهُ بِاعْتِبَارِ اللُّبِّ ځکه چي د جوز ماليت د مغز په اعتبار سره وي وَإِنْ كَانَ يُنْتَفَعُ بِهِ مَعَ فَسَادِهِ او که د خرابوالي باوجود له هغه څخه فايده اخيستل کېدای سي لَمْ يَرُدَّهُ نو [بيا] مشتري هغه نه سي واپس کولای لِأَنَّ الْكَسْرَ عَيْبٌ حَادِثٌ ځکه چي ماتول يو نوی عيب دی وَلٰكِنَّهُ يَرْجِعُ بِنُقْصَانِ الْعَيْبِ دَفْعًا لِلضَّرَرِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ ليکن د ضرر دفع کولو په خاطر به مشتري حتى الامکان د عيب د نقصان رجوع کوي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَرُدُّهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مشتري به [په دې صورت کي هم] هغه واپس کوي لِأَنَّ الْكَسْرَ بِتَسْلِيطِهِ ځکه چي ماتول د بائع په مسلط کولو سره سوي دي [يعني د بائع له طرفه مشتري پر ماتولو مسلط سوی دی. يعني هغه ته بائع د دې اختيار او قدرت ورکړی دی. لهذا په ماتولو کي د مشتري څه غلطي نسته]

قُلْنَا: اَلتَّسْلِيطُ عَلَى الْكَسْرِ فِي مِلْكِ الْمُشْتَرِيْ لَا فِي مِلْكِهِ موږ وايو چي پر ماتولو مسلط کول د مشتري په ملکيت کي دي، نه د بائع په ملکيت کي فَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَ ثَوْبًا فَقَطَعَهُ نو داسي سو لکه مبيع چي کپړه وي او مشتري هغه پرې کړي وَلَوْ وَجَدَ الْبَعْضَ فَاسِدًا وَهُوَ قَلِيلٌ او که د مبيع څه حصه خرابه وي او هغه لږ [معمولي] وي جَازَ الْبَيْعُ اسْتِحْسَانًا نو استحسانا بيع جائز ده لِأَنَّهُ لَا يَخْلُو عَنْ قَلِيلٍ فَاسِدٍ ځکه چي مبيع د لږ [معمولي] خرابۍ څخه خالي نه وي وَالْقَلِيلُ مَا لَا يَخْلُو عَنْهُ الْجَوْزُ عَادَةً او لږ خرابي دا ده چي له هغه څخه عموماً جوز خالي نه وي كَالْوَاحِدِ وَالِاثْنَيْنِ فِي الْمِائَةِ لکه په سلو کي يو، دوه وَإِنْ كَانَ الْفَاسِدُ كَثِيرًا او که خراب زيات وي لَا يَجُوزُ نو بيع جائز نه ده وَيَرْجِعُ بِكُلِّ الثَّمَنِ او

مشتري به ټوله ثمن واپس اخلي لِأَنَّهُ جَمَعَ بَيْنَ الْمَالِ وَغَيْرِهِ ځکه چي بائع [په عقد کي] مال او غير مال دواړه سره جمع کړل فَصَارَ كَالْجَمْعِ بَيْنَ الْحُرِّ وَالْعَبْدِ نو دا داسي سو لکه [په عقد کي] آزاد کس او غلام سره جمع کول.

**اللغات**: ﴿بِطّيخ﴾ خټکي او هندواني دواړو ته وايي (المعجم العربي الميسر)، ﴿قثاء﴾ توری، مشهوره سبزي ده، ﴿خيار﴾ بادرنگ، ﴿ينتفع﴾ د افتعال مضارع مجهوله ده: نفع اخيستل، فايده اخيستل (فايده تر لاسه کول)، ﴿قشر﴾ پوست، پوستکی، خور، ﴿لبّ﴾ مغز.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که يو څوک هګی، يا خټکی، يا جوز او داسي نور رانيسي او تر ماتولو وروسته هغه خراب وخيږي، نو فرمايي که هغه دومره خراب وي چي بالکل د انتفاع قابل نه وي (يعني بالکل فايده نه سي ځني اخيستل کېدای)، يعني نه د انسانانو په کار راتلای سي او نه د حيوانانو، نو په دې صورت کي مشتري ته دا حق سته چي له بائع څخه خپل پوره قيمت واخلي؛ ځکه کله چي هغه بالکل د انتفاع قابل نه دي نو ښکاره ده چي هغه مال نه دي؛ ځکه مال که في الحاله د انتفاع قابل نه وي لېکن في المآل (يعني په راروان وخت کي) په هغه کي د انتفاع امکان پاته وي، او دلته دواړه شيان معدوم دي (يعني هغه نه في الحاله د انتفاع قابل دي، نه في المآله)، نو ځکه دا بيع باطله سوه، او په باطله بيع کي مشتري د خپل پوره ثمن حقداره وي (يعني خپل پوره ثمن ورکول کيږي)، لهذا دلته به هم هغه ته پوره ثمن ورکول کيږي.

**ولا يعتبر الخ**: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي ستاسي پورتنی دليل په هګی، خټکي او داسي نورو کي صحيح دی، لېکن په جوز کي دا علت صحيح نه دی؛ ځکه جوز داسي شی دی چي د مغز د خرابوالي باوجود د هغه له پوستکو څخه انتفاع (نفع اخيستل) ممکن دی؛ ځکه چي د جوز پوستکي روغ او سم وي، لهذا داسي ولي نه کيږي چي په جوز کي بيع باقي پاته سي او د مغز د قيمت په اندازه مشتري له بائع څخه نقصان واخلي. لکه څرنګه چي د ځيني مشائخو همدا مذهب دی.

نو د دې په جواب کي فرمايي چي په جوز کي د پوستکو د سموالی او روغوالي هيڅ اعتبار نسته؛ ځکه چي له ماتولو څخه مخکي په جوز کي صرف مغز معتبر وي، نه پوستکي. لهذا کله چي تر ماتولو مخکي او د عقد په خت کي د پوستکو هيڅ اعتبار نسته، نو تر عقد او ماتولو وروسته به هم د دوی هيڅ اعتبار نه وي، لهذا مشتري به صرف د عيب (خراب مغز) په اندازه نقصان له بائع څخه نه اخلي، بلکي ټوله ثمن به ځني اخلي، او پوستکي به هغه ته واپس کوي.

وإن كان ينتفع إلخ: فرمايي که د خرابوالي باوجود مبيع د انتفاع قابله وي اوله هغې څخه نفع اخيستل کېدای سي، نو په دې صورت کي مشتري ته د ټوله مبيع د واپس کولو او د خپل ثمن د اخيستلو حق نسته؛ ځکه کله چي مشتري مبيع ماته کړي، نو دا د هغه له طرفه په مبيع کي يو نوی عيب سو، او د مشتري له طرفه په مبيع کي د نوي عيب د پيدا کېدلو په صورت کي هغه ته د واپس کولو حق نه حاصلېږي، لېکن څرنګه چي د پخواني عيب په وجه مشتري ته ضرر او نقصان رسېږي، نو ځکه به د دغه ضرر د لیري کولو لپاره هغه ته د رجوع بنقصان العيب حق وي، د دې لپاره چي له مشتري څخه هم ضرر ليري سي او د بائع نقصان هم نه وسي.

لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي په دې صورت کي هم مشتري ته د مبيع د واپس کولو حق سته، او پاته سوه د ماتولو په وجه په هغه کي د نوي عيب پيدا کېدلو خبره، نو د هغه هيڅ اعتبار نسته؛ ځکه چي دلته په خپله د بائع له طرفه مشتري ته د اختيار او قدرت ورکولو څخه وروسته مبيع ماته سوې ده او د بائع له طرفه مشتري پر دې مسلط سوی دی نو په دې کي د مشتري څه غلطي نسته، او اُصول دا دی چي تر تسليط وروسته پر مسلط کړی سوي کس نه هيڅ ضمان واجبېږي او نه هغه به ته څه نقصان رسيږي، لهذا دلته هم د بائع له طرفه پر ماتولو تسليط او قدرت حاصل دی، نو په نوي عيب کي به مشتري تعدیٰ کونکی نه وي (يعني د نوي عيب په وجه به هغه متجاوز نه شمارل کيږي)، او د دې نوي عيب په وجه به هغه له حقُ الردّ (د مبيع د واپس کولو له حق) څخه نه محروموِل کيږي.

قلنا إلخ: زموږ له طرفه جواب دا دی چي صحيح ده دلته د بائع له طرفه تسليط على الكسر موجود دی، لېکن دې ته خو اوګورئ! چي دا تسليم د کومي درجې دی او د چا په ملکيت کي واقع دی؟ تر څه فکر وروسته به دا ښکاره سي چي مشتري هغه جوز او داسي نور په خپل ملکيت کي مات کړي دي، نه د بائع په ملکيت کي؛ ځکه چي د عقد تر پوره کېدلو وروسته خو د بائع ملکيت ختم سو او هغه د اجنبي کس په څېر سو، نو اوس د هغه له طرفه د تسليط څه مطلب دی؟ دا خو داسي سو لکه مشتري چي کېړه رانيسي او هغه پرېکړي، ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي خو نه تاسي د تسليط على القطع قائل ياست او نه د ردّ المبيع (د مبيع د واپس کولو)، بلکي دلته په عيب تر اګاه کېدلو وروسته خو مشتري له حقّ الردّ څخه محروميږي او د دې باوجود هغه ته د رجوع (بنقصان العيب) حق حاصلېږي. همداسي به په پورتني صورت کي مشتري ته د رجوع (بنقصان العيب) حق حاصلېږي، د دې لپاره چي هغه له ضرر او نقصان څخه وساتل سي.

ولووجد البعض إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مشتري مبيع لږ خرابه وموندي (مثلاً جوز لږ خراب وي)، نو فرمايي چي په دې صورت کي بيع صحيح ده؛ ځکه چي عموماً په شيانو کي لږ غوندي خرابي راځي او عموماً له داسي معمولي خرابۍ څخه مېوه خالي نه وي، نو ځکه فقهاؤ استحساناً په دې صورت کي عقد جائز ګرځولی دی.

صاحب د کتاب د قليل او معمولي حدّ بيانوي فرمايي لکه څرنګه چي يو څوک سل (۱۰۰) جوز رانيسي او له هغوی څخه صرف يو، يا دوه خراب راووځي، نو دا قليل مقدار دی او معاف دی، لېکن که په مبيع کي زيات مقدار خراب وي، نو په دې صورت کي بيع نه جائز کېږي؛ ځکه د مبيع کمي چي کوم مقدار خراب وي ، هغه مال نه دی، او مابقي صحيح مبيع مال دی، او په يوه عقد کي د مال او غير مال په جمع کېدلو سره عقد فاسدېږي، لکه څرنګه چي په يوه عقد کي د غلام سره د آزاد کس د جمع کولو په صورت کي عقد فاسدېږي؛ ځکه چي غلام د بيع محل دی، لېکن آزاد خو نه د بيع محل دی او نه د ملکيت محل دی، نو څرنګه چي جمع بين العبد والحر عقد فاسدوي، همداسي جمع بين المال وغير المال عقد فاسدوي، او د عقد فاسدېدلو په صورت کي مشتري ته د دې حق او اختيار وي چي خپل ټوله ثمن (له بائع څخه) واپس واخلي، لهذا دلته به هم هغه ته د ټوله ثمن د اخيستلو حق وي.

## که مشتري مبيع خرڅه کړي او د دويم مشتري سره په مبيع کي عيب ښکاره سي (تفصيلي حکم)

قَالَ : وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا فَبَاعَهُ الْمُشْتَرِيْ فرمايي: او که څوک يو غلام خرڅ کړي بيا مشتري [هم] هغه خرڅ کړي ثُمَّ رُدَّ عَلَيْهِ بِعَيْبٍ بيا هغه غلام د يو عيب په وجه پر [اول] مشتري را واپس کړی سي فَإِنْ قَبِلَ بِقَضَاءِ الْقَاضِيْ بِإِقْرَارٍ أَوْ بَيِّنَةٍ أَوْ بِإِبَاءِ يَمِيْنٍ نو که [اول] مشتري د قاضي په فيصله سره دا واپسي [رد] قبول کړي [برابره ده] په اقرار سره يا په ګواهۍ سره يا له قسم څخه د انکار کولو په ذريعه لَهُ أَنْ يَرُدَّهُ عَلٰى بَائِعِهِ نو [اول] مشتري ته دا اختيار سته چي هغه مبيع پر خپل بائع واپس کړي لِأَنَّهُ فَسْخٌ مِنَ الْأَصْلِ ځکه چي دا له اصل څخه فسخ ده [يعني دويمه بيع له اصل څخه فسخ سوه] فَيُجْعَلُ الْبَيْعُ كَأَنْ لَمْ يَكُنْ نو دا [دويمه بيع] به داسي ګرځول کېږي لکه ګرسره چي سوې نه وي غَايَةُ الْأَمْرِ أَنَّهُ أَنْكَرَ قِيَامَ الْعَيْبِ ها! دا ويل کېدای سي چي [اول] مشتري د عيب له وجود څخه انکار وکړی لٰكِنَّهُ صَارَ مُكَذَّبًا شَرْعًا بِالْقَضَاءِ لېکن د قاضي په فيصله سره هغه شرعاً دروغجن وګرځېدی

وَمَعْنَى الْقَضَاءِ بِالْإِقْرَارِ أَنَّهُ أَنْكَرَ الْإِقْرَارَ فَأُثْبِتَ بِالْبَيِّنَةِ او د قضاء بالاقرار مطلب دا دی چي مشتري له عيب څخه انکار وکړي، بيا [د دويم مشتري له طرفه] د ګواهۍ په ذريعه هغه ثابت کړی سي [يعني پورته چي کوم "بالاقرار" ذکر سو د هغه مطلب دا دی چي اول مشتري د عيب له اقرار څخه انکار وکړي (چي ما د عيب اقرار نه دی کړی) لېکن دويم مشتري د ګواهانو په ذريعه د هغه اقرار ثابت کړي] وَهٰذَا بِخِلَافِ الْوَكِيلِ بِالْبَيْعِ إِذَا رُدَّ عَلَيْهِ بِعَيْبٍ بِالْبَيِّنَةِ او دا [صورت] د وکيل بالبيع [د صورت] په خلاف دی کله چي هغه ته د عيب په وجه د ګواهۍ په ذريعه مبيع واپس کړل سي حَيْثُ يَكُونُ رَدًّا عَلَى الْمُوَكِّلِ نو دا وکيل ته واپس کول دي [يعني که مبيع وکيل ته واپس کړل سي نو هغه په خپله مؤکل ته واپس کيږي] لِأَنَّ الْبَيْعَ هُنَاكَ وَاحِدٌ وَالْمَوْجُودُ هٰهُنَا بَيْعَانِ ځکه چي بيع هلته [يعني د وکيل په صورت کي] يوه ده او دلته دوې بيع دي فَيُفْسَخُ الثَّانِي وَلَا يَنْفَسِخُ الْأَوَّلُ نو دويمه بيع به فسخ کيږي او اوله بيع به نه فسخ کيږي [مطلب دا چي کله دلته دوې بيع دي نو د دويمي بيع په فسخ کېدلو سره به اوله بيع نه فسخ کيږي] وَإِنْ قَبِلَ بِغَيْرِ قَضَاءِ الْقَاضِي او که اول مشتري [د دويم مشتري رد] د قاضي له فيصلې څخه بغير قبول کړي لَيْسَ لَهُ أَنْ يَرُدَّهُ نو [بيا] هغه ته دا اختيار نسته چي مبيع [خپل بائع ته] واپس کړي لِأَنَّهُ بَيْعٌ جَدِيدٌ فِي حَقِّ ثَالِثٍ ځکه چي د دريم په حق کي دا نوې بيع ده وَإِنْ كَانَ فَسْخًا فِي حَقِّهِمَا که څه هم د دوی [اول او دويم مشتري] په حق کي فسخ ده وَالْأَوَّلُ ثَالِثُهُمَا او اول بائع د دوی دريم دی وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَإِنْ رُدَّ عَلَيْهِ بِإِقْرَارِهِ بِغَيْرِ قَضَاءٍ بِعَيْبٍ لَا يَحْدُثُ مِثْلُهُ او په جامع صغير کي دي: چي که د قاضي له فيصلې څخه بغير د [اول] مشتري په اقرار سره هغه ته د يو داسي عيب په وجه مبيع واپس کړی سي چي هغسي عيب نه سي پيدا کېدی لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يُخَاصِمَ الَّذِي بَاعَهُ نو مشتري ته دا حق نسته چي د خپل بائع سره مخاصمه وکړي وَبِهٰذَا يَتَبَيَّنُ أَنَّ الْجَوَابَ فِيمَا يَحْدُثُ مِثْلُهُ وَفِيمَا لَا يَحْدُثُ سَوَاءٌ او له دې [مسئلې] څخه دا خبره ښکاره سوه چي حکم په هغه عيب کي چي مثل يې پيدا کېدای سي او په هغه عيب کي چي مثل يې نه سي پيدا کېدای برابر دی وَفِي بَعْضِ رِوَايَاتِ الْبُيُوعِ: أَنَّ فِيمَا لَا يَحْدُثُ مِثْلُهُ يَرْجِعُ بِالنُّقْصَانِ او د کتاب المبيوع په ځيني رواياتو کي ذکر سوي دي: چي د کوم عيب مثل نه

سي پيدا كېداى په هغه كي به [اول] مشتري له خپل بائع څخه [دعيب] نقصان واپس اخلي لِلتَّيَقُّنِ بِقِيَامِ الْعَيْبِ عِنْدَ الْبَائِعِ الْأَوَّلِ ځكه چي [په دې صورت كي] داول بائع سره دعيب موجودېدل يقيني دي.

**اللغات**: ﴿رُدَّ﴾ دنصر ماضي مجهوله ده: واپس كول. ﴿إباء﴾ دفتح مصدر دى: انكار كول. ﴿مُكذِّب﴾ د تفعيل مفعول دى: څوك چي دروغجن ثابت كړى سي، چا ته چي دروغجن وويل سي، (څوك چي دروغجن وګڼل سي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه زيد له حامد څخه يو غلام رانيسي، او تر قبضه كولو وروسته حامد هغه پر خالد خرڅ كړي، نو دلته زيد اول مشتري دى او خالد دويم مشتري دى، اوس كه دويم مشتري (خالد) ديو عيب په وجه هغه غلام اول مشتري يعني زيد ته واپس كړي، او زيد دا واپسي قبوله كړي، نو دې ته به كتل كيږي، چي اول مشتري (زيد) د قاضي په قضاء سره واپسي قبوله كړه، يا بغير له قضاء څخه، كه چيري هغه د قاضي په قضاء (فيصله) سره واپسي قبوله كړي، نو بيا هغه ته دا اختيار ستهٔ چي اول بائع (حامد) ته غلام واپس كړي.

بإقرار أو بينة أو بإباء إلخ: د قاضي د قضاء درې صورتونه دي: ①... يو دا چي دويم مشتري دا دعوىٰ وكړي چي اول مشتري په مبيع (غلام) كي د عيب اقرار كړى دى، لېكن اول مشتري له اقرار څخه انكار كوي (چي ما نه دي كړى)، بيا دويم مشتري د هغه په اقرار بالعيب باندي ګواهي پېش كړي (يعني په ګواهۍ سره دا ثابته كړي چي هغه د عيب اقرار كړى دى، او پر دې بناء قاضي فيصله وكړي)، ②... او بل دا چي دويم مشتري په مبيع (غلام) كي د عيب دعوىٰ وكړي، لېكن اول مشتري له هغه څخه انكار وكړي، او پر دې باندي دويم مشتري د مبيع پر معيوب والي ګواهي (بيّنه) پېش كړي، ③... دريم دا چي دويم مشتري ګواهي پېش نه كړى سي (يعني د ګواهۍ [بيّنه] له پېشولو څخه عاجز سي). پر دې باندي قاضي له اول مشتري څخه د قسم مطالبه وكړي، او هغه له قسم اخيستلو څخه انكار وكړي، نو په دې دريو سره صورتونو كي به قاضي مبيع اول مشتري ته واپس كوي او هغه اول مشتري ته دا اختيار سته چي خپل بائع يعني حامد ته مبيع واپس كړي؛ ځكه كله چي د قاضي د قضاء پر بناء دا واپسي صادر سوه، نو ښكاره ده چي دا به له اصل او بنياد څخه فسخ شمارل كيږي او دا به وويل كيږي چي دويمه بيع بالكل سوې نه وه، او كله چي دويمه بيع معدومه وګرځېده، نو صرف اوله بيع باقي پاته سوه. او څرنګه چي مبيع معيوبه ده، نو ځكه به اول مشتري ته د خيارِ عيب په وجه د واپس كولو حق حاصليږي (چي خپل بائع [حامد] ته مبيع واپس كړي).

غاية الأمر إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي دلته اول مشتري له عيب څخه انکار کوي (او عيب ګرسره نه مني)، نو بيا هغه ته څرنګه د قاضي په قضاء (فيصله) سره دا حق حاصليږي چي خپل بائع ته مبيع واپس کړي؟ په دې سره خو د هغه په خبره کي تناقض او تضاد راځي (چي يو طرف ته هغه له عيب څخه انکار کوي، او بل طرف ته هغه ته حقُ الرد [د واپس کولو حق] ورکول کيږي)، دا صحيح نه دي؟ صاحبِ د کتاب د دې په جواب کي فرمايي چي صحيح ده دلته که څه هم ظاهراً تناقض سته، لېکن کله چي قاضي د عيب فيصله وکړه نو شريعت اول مشتري درواغجن ثابت کړی، يعني د هغه انکار يې دزواغ وشماری چي هو! په دې مبيع کي عيب سته، او کله چي يې د هغه انکار درواغ وشماری نو عيب ثابت سو، نو ځکه به اوس هغه ته د حقُ الردّ په ورکولو سره د هغه په قول او فعل کي تناقض نه راځي.

ومعنى القضاء بالإقرار إلخ: فرمايي د قضاء بالاقرار (يعني څه مخکي چه د قاضي د فيصلې درې صورتونه ذکر سول. له هغوی څخه چي اول کوم د اقرار پر بناء فيصله وه، د هغه مطلب) دا دی چي اول مشتري د عيب د اقرار انکار وکړي (چي ما اقرار نه دي کړی)، او پر دې باندي دويم مشتري د ګواهی په ذريعه ثابته کړي چي هغه د عيب اقرار کړی دی، لکه مخکي چي هم مورږ د دې وضاحت وکړی.

وهذا بخلاف الوکيل بالبيع إلخ: دا هم د يو مقدر سوال جواب دی (اصلاً په دې عبارت سره د وکيل بالبيع او د اول مشتري په مينځ کي فرق بيانوي)، سوال دا دی چي که يو سړی مثلاً خپل د پُسه د خرڅولو لپاره بل سړی وکيل جوړ کړي (نو دې بل سړي ته وکيل بالبيع وايي)، او بيا دا وکيل بالبيع پُسه خرڅ کړي، لېکن د يو عيب په وجه پُسه بېرته هغه (وکيل بالبيع) ته واپس کړی سي، نو دا د وکيل وطرف ته واپس کېدل د مؤکل وطرف ته واپس کېدل دي (يعني کله چي د وکيل وطرف ته پُسه واپس کړی سي، نو هغه په خپله د مؤکل [وکيل جوړونکي] وطرف ته واپس کيږي)، وکيل ته دا ضرورت نسته چي د مؤکل وطرف ته د پُسه واپس کولو په هکله يو اقدام وکړي؛ د دې په خلاف د متن په مسئله کي د دويم مشتري له طرفه اول مشتري ته د مبيع واپس کېدل د اول مشتري د بائع وطرف ته واپس کېدل نه دي (يعني که دويم مشتري د اول مشتري وطرف ته مبيع واپس کړي نو هغه په خپله د اول بائع وطرف ته نه واپس کيږي)، بلکي که د اول مشتري خوښه وي نو مبيع د بائع وطرف ته واپس کيږي، کنې نه واپس کيږي، حال دا چي د اول مشتري او د وکيل دواړو حالت سره برابر دی، نو پکار دا وه چي څرنګه د وکيل وطرف ته د مبيع په واپس کېدلو سره هغه د مؤکل وطرف ته واپس کيږي، همداسي بايد د اول مشتري وطرف ته د مبيع په واپس کېدلو سره هم د هغه د بائع وطرف ته مبيع واپس سي.

د دې په جواب کي فرمايي چي د اول مشتري او د وکيل حالت سره برابر نه دی؛ ځکه چي د وکيل په مسئله کي بيع يوه ده، او د متن په مسئله کي دوې بيع دي؛ يوه د اول بائع او د اول مشتري په

مينځ کې (يعني يوه بيع د حامد او زيد په مينځ کې ده)، او بله د اول مشتري (زيد) او د دويم مشتري (خالد) په مينځ کې ده، او د دويمې بيع په فسخ کېدلو سره اوله بيع نه فسخ کيږي، نو په همدې وجه د اول مشتري وطرف ته د مبيع په واپس کېدلو د هغه د بائع وطرف ته مبيع نه واپس کيږي.

وإن قبل إلخ: د دې حاصل دا دی که اول مشتري د دويم مشتري پر خبره اعتماد وکړي او د قاضي له فيصلې څخه بغير په خپله رضا مبيع (غلام) واپس واخلي، نو په دې صورت کې اول مشتري ته دا اختيار نسته چې خپل بائع ته مبيع واپس کړي؛ ځکه که څه هم د اول مشتري او دويم مشتري په حق کې دا واپسي فسخ البيع ده، لېکن د دريم کس يعني د اول بائع په حق کې دا نوې دريمه بيع ده، ځکه کله چې اول مشتري د قاضي له فيصلې څخه بغير مبيع واخيستل، نو دا داسې سو لکه اول مشتري چې له دويم مشتري څخه مبيع رانيول، لهذا دا واپسي داسې ده لکه نوې دريمه بيع، که څه هم هغه ظاهراً فسخ ده، نو کله چې هغه دريمه بيع ده (په مينځ کې د اول او دويم مشتري)، نو اول بايع (حامد) به مبيع څرنګه واپس واخلي !؟ (لهذا هغه اوس بالکل مبيع واپس نه سي اخيستلای)، نو ځکه به اول مشتري ته دا اختيار نه وي چې خپل بائع (حامد) ته مبيع واپس کړي.

وفي الجامع الصغير إلخ: فرمايي په جامع صغير کې ذکر سوي دي چې که يو څوک غلام رانيسي او هغه خرڅ کړي، بيا دويم مشتري په هغه غلام کې داسې عيب ووينې چې د اول مشتري په قبضه کې د هغه پيدا کېدل ناممکن او محال وي، مثلاً د غلام د لاس يا د پښې په ګوتو کې له پنځو څخه يوه ګوته زياته وي، يا يو داسې بل عيب وي چې د اول مشتري په قبضه کې د هغه پېښېدل ناممکن وي، او بيا د هغه عيب په وجه دويم مشتري خپل بائع يعني اول مشتري ته غلام واپس کړي، او اول مشتري د عيب اقرار وکړي (چې صحيح ده دا غلام زما سره معيوب وو) او غلام واپس واخلي، نو اوس د اول مشتري لپاره نه له خپل بائع (اول بائع) څخه د عيب نقصان اخيستل صحيح دي، او نه د غلام واپس کول صحيح دي.

فرمايي د جامع صغير له مسئلې څخه دا خبره ښکاره سوه چې اول مشتري په هيڅ حال کې رجوع او رد نه سي کولای يعني په هيڅ حال کې هم له خپل بائع څخه نه د عيب نقصان اخيستلای سي او نه هغه ته غلام واپس کولای سي؛ برابره ده د عيب پيدا کېدل (حدوث) ممکن وي او که ناممکن وي؛ ځکه کله چې اول مشتري د حدوث د ناممکنوالي په صورت کې رجوع او رد نه سي کولای، نو د حدوث د امکان په صورت کې خو يې په درجه اولیٰ نه سي کولای؛ ځکه چې د امکان په صورت کې دا هم ويل کېدای سي چې دا عيب د اول مشتري سره پيدا سوی دی او مخکې نه وو.

وفي بعض إلخ: فرمايي د مبسوط د كتاب البيوع په ځيني رواياتو كي ذكر سوي دي چي كه دويم مشتري دي ته داسي عيب په وجه مبيع واپس كړي چي د هغه حدوث (وجود) ممكن وي، نو په دې صورت كي هغه له خپل بائع څخه د عيب نقصان واپس اخيستلای سي؛ ځكه چي دلته دا خبره په يقين سره معلومه سوه چي عيب د اول بائع سره موجود وو، او د اول بائع سره د عيب موجودېدلو په صورت كي اول مشتري له هغه څخه د عيب نقصان واپس اخيستلای سي، نو همداسي به دلته هم هغه د عيب نقصان واپس اخلي.

## په مبيع كي د عيب د مُدعي سړي احكام

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى عَبْدًا فَقَبَضَهٗ فَادَّعٰى عَيْبًا فرمايي: او كه څوك غلام رانيسي او پر هغه قبضه وكړي بيا د يو عيب دعوىٰ وكړي لَمْ يُجْبَرْ عَلٰى دَفْعِ الثَّمَنِ حَتّٰى يَحْلِفَ الْبَائِعُ أَوْ يُقِيمَ الْمُشْتَرِيْ بَيِّنَةً نو هغه به د ثمن [قميت] پر وركولو نه مجبورول كيږي تر دې چي بائع قسم واخلي يا مشتري گواهي پېش كړي لِأَنَّهٗ أَنْكَرَ وُجُوبَ دَفْعِ الثَّمَنِ ځكه چي مشتري د ثمن وركولو له وجوب څخه انكار وكړی حَيْثُ أَنْكَرَ تَعَيُّنَ حَقِّهٖ بِدَعْوَى الْعَيْبِ په دې توگه چي هغه د عيب په دعوىٰ سره د خپل حق د مُتعيّن كېدلو څخه انكار وكړی وَدَفْعُ الثَّمَنِ أَوَّلًا لِيَتَعَيَّنَ حَقُّهٗ بِإِزَاءِ تَعَيُّنِ الْمَبِيْعِ او اول د ثمن وركول [هم] ځكه [واجب وي] چي د مبيع د مُتعيّن كېدلو په مقابله كي [د ثمن سره] د بائع حق متعلق سي وَلِأَنَّهٗ لَوْ قَضٰى بِالدَّفْعِ او په دې وجه [هم] چي كه قاضي د ثمن وركولو فيصله وكړي فَلَعَلَّهٗ يَظْهَرُ الْعَيْبُ فَيَنْتَقِضُ الْقَضَاءُ نو كېدای سي چي عيب به ښكاره سي او [د قاضي] فيصله به ماته سي فَلَا يَقْضِيْ بِهٖ صَوْنًا لِقَضَائِهٖ لهذا د خپل قضاء د ساتلو لپاره به قاضي [اوس] د وركولو فيصله نه كوي فَإِنْ قَالَ الْمُشْتَرِيْ: شُهُوْدِيْ بِالشَّامِ [لېكن] كه مشتري ووايي: چي زما گواهان په شام كي دي اُسْتُحْلِفَ الْبَائِعُ وَدَفَعَ الثَّمَنَ نو له بائع څخه به قسم اخيستل كيږي او مشتري به [هغه ته] ثمن وركوي يَعْنِيْ إِذَا حَلَفَ يعني [ثمن به هغه وخت وركوي] كله چي بائع قسم واخلي وَلَا يُنْتَظَرُ حُضُورُ الشُّهُوْدِ او [د مشتري] د گواهانو د حاضرېدلو انتظار به نه كيږي لِأَنَّ فِي الْاِنْتِظَارِ ضَرَرًا بِالْبَائِعِ ځكه چي [د

هغوی] په انتظار کې د بائع نقصان دی وَلَيْسَ فِي الدَّفْعِ كَثِيرُ ضَرَرٍ بِهِ او د ثمن په ورکولو کې د مشتري زيات نقصان نشته لِأَنَّهُ عَلَى حُجَّتِهِ ځکه چې هغه پر خپل حجت دی أَمَّا إِذَا نَكَلَ لېکن که بائع اله قسم اخيستلو څخه] انکار وکړي أُلْزِمَ الْعَيْبُ نو [په مبيع کې] به عيب لازمول کيږي [يعني د بائع انکار په مبيع کې عيب لازموي او ثابتوي] لِأَنَّهُ حُجَّةٌ فِيهِ ځکه چې د عيب ثابتېدلو په سلسله کې انکار هم يو حجت دی.

**اللغات**: ﴿ادّعٰى﴾ د افتعال ماضي ده: دعوىٰ کول. ﴿بإزاء﴾ په مقابله کې، په برابري کې. ﴿صون﴾ د نصر مصدر دی: حفاظت کول. ساتل. صوناً لقضائه (قضاء له توهين او سپکاوي څخه ساتل).
﴿شهود﴾ جمع د شَاهِدٌ ده: ګواه. ﴿استحلف﴾ د استفعال ماضي مجهوله ده: له يو چا څخه قسم اخيستل (په يو چا قسم اداء کول). ﴿نكل﴾ د نصر او ضرب ماضي ده: له قسم څخه انکار کول.
﴿حجة﴾ د قضاء په محاوره کې د حجت معنىٰ ده: دليل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی غلام رانيسي او تر قبضه کولو وروسته په هغه غلام کې د يو عيب دعوىٰ وکړي، نو تر دعوی وروسته به دا سړی (مشتري) د ثمن پر ورکولو نه مجبورول کيږي، او تر هغه وخته پورې به نه مجبورول کيږي تر څو چې بائع دا قسم نه واخلي چې په غلام کې عيب نه وو، او کله چې بائع قسم واخلي چې دا غلام زما په قبضه کې بې عيبه وو او عيب پکښې نه وو، نو په دې صورت کې به مشتري د ثمن پر ورکولو مجبورول کيږي او قاضي به له هغه څخه ثمن اخلي او بائع ته به يې ورکوي. يا دا چې مشتري به په دې مکلف کوي چې پر خپله دعوىٰ ګواهي (بيّنه) پېش کړي، که مشتري ګواهي پېش کړي، نو هغه ته به د مبيع واپس کولو اختيار وي، او د ګواهۍ د پېشولو په صورت کې به هغه د ثمن پر ورکولو نه مجبورول کيږي لکه څرنګه چې د متن له عبارت څخه همدا مفهوم راوځي. بلکې د ګواهۍ پېشولو په صورت کې خو به د هغه دعوىٰ ثابتيږي او هغه ته به د مبيع واپس کولو حق او اختيار وي.

او د عيب تر دعوىٰ وروسته به مشتري په دې وجه د ثمن پر ورکولو نه مجبورول کيږي چې په نفس عقد سره د مشتري حق د مبيع سره متعلق کيږي او ثابتيږي. او په همدې وجه هغه په ثمن کې په وړاندېتوب کولو مکلف کيږي (چې اول به ثمن اداء کوي) د دې لپاره چې د ثمن سره د بائع حق متعلق سي او له دواړو طرفونو څخه تراضي او مساوات ثابت سي. لېکن کله چې مشتري په مبيع کې

د عيب دعویٰ وکړه، نو ګواکي هغه په مبيع کي د خپل حق د متعلق کېدلو او ثابتېدلو څخه انکار وکړي، او کله چي په مبيع کي د مشتري حق ثابت نه وي نو هغه به د ثمن پر ورکولو نه مجبورول کيږي؛ ځکه کله چي د عيب په وجه د هغه حق په مبيع کي ثابت نه سو، نو د بائع حق (ثمن) به هم نه ثابتيږي (ځکه داسي نه سي کېدای چي د يوه عاقد حق ثابت سي او د بل حق ثابت نه سي).

ولأنه لو قضی إلخ: او دويم دليل (د دې خبري چي مشتري به نه مجبورول کيږي) دا دی چي که قاضي مشتري مجبوره کړي او د ثمن ورکولو فيصله وکړي، نو وروسته کېدای سي چي د مشتري له طرفه د ګواه پېشولو په وجه يا له قسم څخه د بائع د انکار کولو په وجه په مبيع کي عيب ثابت سي او د قاضي مخکني فيصله به ماته سي او د ثمن اخيستلو فيصله به وسي، او په دې کي د قضاء توهين او سپکاوی دی، نو په دې وجه به اوس قاضي چپ پاتيږي او د مشتري له طرفه د ګواهي پېشولو يا د بائع له طرفه د قسم اخيستلو انتظار به کوي.

فإن قال إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله مشتري په مبيع کي د عيب دعویٰ وکړي، نو سمدستي به قاضي له هغه څخه د ګواهي طلب کوي (چي ګواهي پېش کړه!)، لېکن که مشتري ووايي چي زما ګواهان په شام (يا داسي بل ليري ځای) کي دي، لهذا ته ما ته يو څو وخت مهلت راکړه! چي هغوی را ورسيږي، نو فرمايي چي مشتري ته به هيڅ مهلت نه ورکول کيږي او تر دې عذر وروسته به له بائع څخه قسم اخيستل کيږي؛ که بائع د عدم عيب قسم واخلي، نو مشتري به د ثمن پر ورکولو مجبورول کيږي او له هغه څخه به ثمن اخيستل کيږي. او د مشتري د ګواهانو انتظار به نه کيږي؛ ځکه چي بائع مشتري ته مبيع سپارلې ده، اوس که د ثمن ورکولو لپاره د مشتري د ګواهانو انتظار وسي او بائع انتظار کړی سي، نو په دې کي د بائع ضرر او نقصان دی چي د هغه د لاس څخه مبيع ووتل لېکن لاس ته يې ثمن نه راغلی، لهذا له بائع څخه د ضرر دفع کولو په خاطر به د هغه په قسم سره فيصله کيږي؛

او که څه هم په دې فيصله کي د مشتري هم ضرر او نقصان دی، لېکن هغه دومره نه دی چي تدارک او تلافي دي يې ممکن نه وي (بلکي هغه معمولي غوندي ضرر دی)؛ ځکه چي مشتري خو په دې سلسله کي پر خپل حجت قائم دی او کله چي هغه ګواهي پېش کړي نو هغه ته به دا اختيار وي چي مبيع واپس کړي او له بائع څخه خپل ثمن واخلي، او د بائع په حق کي دا ضرر په دې توګه زيات دی چي کېدای سي مشتري ګواهي پېش نه کړی سي، يا د انتظار په موده کي به بائع ته بل خريدار (ګراک) راسي چي هغه به مبيع رانيسي مګر د انتظار په وجه به بائع خپله مبيع پر بل چا نه

سي خرڅولای، او قاعده دا ده چې "یُخْتَارُ أَهْوَنُ الشَّرَّیْن"، یعنې له دوو ضررونو څخه به سپک ضرر اخیستل کیږي او په هغه به عمل کیږي؛ او څرنګه چې په دې مسئله کې هم د مشتري په حق کې ضرر کم دی، نو ځکه به د بائع تر قسم وروسته هغه د ثمن په اداء کولو مکلف کیږي.

لېکن که بائع له قسم څخه انکار وکړي، نو په دې صورت کې به مشتري ته د مبیع واپس کولو حق وي او هغه به د ثمن پر ورکولو نه مجبورول کیږي؛ ځکه کله چې بائع له قسم څخه انکار وکړي، نو د هغه دا انکار د عیب اقرار ته متضمن سو، او که بائع د عیب اقرار وکړي نو مشتري ته حقُ الرد خاصلیږي، لهذا د دې حق په وجه به مشتري ته د مبیع واپس کولو حق او اختیار وي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى عَبْدًا فَادَّعٰى إِبَاقًا فرمایي: او که څوک غلام رانیسي بیا د هغه د تښتېدلو دعوٰی وکړي لَمْ یُحَلَّفِ الْبَائِعُ حَتّٰى یُقِیمَ الْمُشْتَرِیُ الْبَیِّنَةَ أَنَّهُ أَبَقَ عِنْدَهُ نو له بائع څخه به قسم نه اخیستل کیږي تر دې چې مشتري پر دې خبرې ګواهي پېش کړي چې هغه غلام د بائع سره هم تښتېدلی دی وَالْمُرَادُ التَّحْلِیْفُ عَلٰى أَنَّهُ لَمْ یَأْبِقْ عِنْدَهُ او [په متن کې له قسم اخیستلو څخه] مراد پر دې خبره قسم اخیستل دي چې هغه د بائع سره تښتېدلی نه دی [یعني بائع به داسې قسم اخلي چې دا غلام زما سره نه دی تښتېدلی] لِأَنَّ الْقَوْلَ وَإِنْ کَانَ قَوْلَهُ ځکه که څه هم د بائع قول معتبر دی وَلٰکِنَّ إِنْکَارَهُ إِنَّمَا یُعْتَبَرُ بَعْدَ قِیَامِ الْعَیْبِ بِهِ فِي یَدِ الْمُشْتَرِيْ لېکن د هغه انکار به د مشتري په قبضه کې د عیب تر موجودېدلو وروسته معتبر وي وَمَعْرِفَتُهُ بِالْحُجَّةِ او د عیب موجودېدلو معرفت په حجت سره حاصلیږي [یعنې دا خبره "چې د مشتري سره عیب [تښتېدل] موجود سوه" په حجت او دلیل سره پېژندل کیږي، یعنې په دې سره چې مشتري ګواهي وړاندې کړي چې غلام زما سره وتښتېدی] فَإِذَا أَقَامَهَا او کله چې مشتري ګواهي پېش کړي [پر دې خبره چې غلام زما سره وتښتېدی] حَلَّفَ بِاللّٰهِ لَقَدْ بَاعَهُ وَسَلَّمَهُ إِلَیْهِ وَمَا أَبَقَ عِنْدَهُ قَطُّ نو قاضي دې له بائع څخه دا قسم واخلي چې په الله قسم! هغه [بائع] دا غلام خرڅ کړی او مشتري ته یې وسپاری او دا غلام د هغه [بائع] سره هیڅکله نه دی تښتېدلی کَذَا قَالَ فِي الْکِتَابِ همداسې امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کې فرمایلي دي وَإِنْ شَاءَ حَلَّفَهُ بِاللّٰهِ مَا لَهُ حَقُّ الرَّدِّ عَلَیْكَ مِنَ الْوَجْهِ الَّذِيْ یَدَّعِيْ او که قاضي وغواړي نو داسې قسم دې ځنې واخلي چې په الله قسم! مشتري ته په هغه

سبب سره پر تا [بائع] د واپس کولو حق نسته د کوم چې هغه دعویٰ کوي أَوْ بِاللّٰهِ مَا أَبَقَ عِنْدَكَ قَطُّ یا په الله قسم! ستا [بائع] سره هیڅکله غلام نه دي تښتېدلی أَمَّا لَا يُحَلِّفُهُ بِاللّٰهِ لَقَدْ بَاعَهُ وَمَا بِهِ هٰذَا الْعَيْبُ لېکن قاضي له بائع څخه داسې قسم نه سي اخیستلای چې په الله قسم هغه [بائع] غلام په داسې حالت کې خرڅ کړی چې په هغه کې دا [د تښتېدلو] عیب نه وو وَلَا بِاللّٰهِ لَقَدْ بَاعَهُ وَسَلَّمَهُ وَمَا بِهِ هٰذَا الْعَيْبُ او نه داسې قسم ځني اخیستلی سي چې په الله قسم! بائع هغه په داسې حالت کې خرڅ کړی او مشتري ته یې وسپاری چې په هغه کې دا عیب نه وو لِأَنَّ فِيهِ تَرْكَ النَّظَرِ لِلْمُشْتَرِيْ ځکه چې په دې [دوو قسمونو] کې د مشتري لپاره شفقت [او مصلحت] پرېښوول سوی دی لِأَنَّ الْعَيْبَ قَدْ يَحْدُثُ بَعْدَ الْبَيْعِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ ځکه چې عیب ځیني خت تر خرڅولو وروسته له ورسپارلو څخه مخکې پیدا کیږي وَهُوَ مُوجِبٌ لِلرَّدِّ او هغه [یعني په داسې وخت کې عیب پیدا کېدل] هم [د مبیع] واپس کول واجبوي وَالْأَوَّلُ ذُهُولٌ عَنْهُ او په اول صورت کې له دې څخه غفلت دی [یعني له پورتني دوو قسمونو څخه په اول قسم کې د "عیب قبل التسلیم" ذکر نسته] وَالثَّانِيْ يُوْهِمُ تَعَلُّقَهُ بِالشَّرْطَيْنِ او په دویم صورت کې دا وهم کیږي چې د عیب تعلق به د دواړو شرطونو سره وي فَيَتَأَوَّلُهُ فِي الْيَمِينِ عِنْدَ قِيَامِهِ وَقْتَ التَّسْلِيمِ دُونَ الْبَيْعِ نو بائع به په قسم کې دا تأویل وکړي چې عیب [د غلام] ورسپارلو په وخت کې موجود وو، نه د خرڅولو په وخت کې.

**اللغات**: ﴿إباق﴾ د ضرب او نصر مصدر دی، له سمع څخه هم راځي: تښتېدل (د غلام)، ﴿ذهول﴾ غفلت.

**تشریح**: د غلام د تښتېدلو (اباق) په هکله دا خبره مخکې تېره سوه چې تښتېدل په غلام کې عیب دی، لېکن مشتري ته هغه وخت د دغه عیب په وجه د غلام واپس کولو حق (حقُ الردّ) حاصلیږي، کله چې د مشتري په قبضه کې هم غلام وتښتي (صرف د بائع په قبضه کې د غلام تښتېدل د مشتري په حق کې عیب نه شمارل کیږي)، همدارنګه دا هم شرط دي چې دا غلام به د مشتري سره په هغه حالت کې تښتېدلی وي په کوم حالت کې چې د بائع سره تښتېدلی وي (یعني که د بائع سره په کوچنیوالي [عدم بلوغ] کې تښتېدلی وي، نو د مشتري سره به هم په کوچنیوالي کې تښتېدلی وي، او که د بائع سره تر بلوغ وروسته تښتېدلی وي، نو د مشتري سره به هم تر بلوغ وروسته تښتېدلی وي، نو په دې صورت کې مشتري غلام واپس کولای سي. کنې هغه نه سي واپس کولای، ځکه چې تښتېدل په کوچنیوالي کې [قبل البلوغ] د لوبې او بازۍ سره د محبت په

وجه وي. او تر بالغ کېدلو وروسته [بعد البلوغ] د باطني خباثت په وجه وي. لهٰذا په کوچنيوالي او بالغوالي کي تښتېدل دوه جلا عيبونه دي. يو عيب نه دی. نو ځکه د تښتېدلو حالت به سره يو وي).

**صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک غلام رانيسي او قبضه پر وکړي، او تر دې وروسته هغه د قاضي په دربار کي دا دعویٰ وکړي چي دا غلام "آبق" دی (يعني د تښتېدلو عادت پکښي سته). نو محض په دې دعویٰ سره هغه ته د غلام واپس کولو حق (حقُ الردّ) نه حاصلېږي؛ بلکي قاضي به له هغه څخه دا مطالبه کوي چي ته پر دې خبره گواهي پېش کړه! چي دا غلام ستا سره (يعني ستا په قبضه کي) هم تښتېدلی دی، که مشتري پر خپل دغه دعوی گواهي پېش کړي، نو قاضي به له بائع څخه د هغه د تصديق مطالبه کوي، که بائع تصديق وکړي نو مشتري ته به د غلام واپس کولو حق (حقُ الردّ) حاصلېږي، لېکن که بائع د مشتري د دعوې تکذيب وکړي، يا داسي ووايي چي زما سره خو دا غلام قبل البلوغ تښتېدلی وو او د مشتري سره بعد البلوغ تښتېدلی دی، نو بيا به قاضي له مشتري څخه دا مطالبه کوي چي پر دې خبره گواهي پېش کړه! چي هغه غلام ستا او د بائع دواړو سره په يوه حالت کي تښتېدلی دی، که مشتري پر دې هم گواهي پېش کړي نو هغه ته به حقُ الردّ حاصلېږي، لېکن که هغه گواهي پېش نه کړی سي، نو قاضي به له بائع څخه په دې الفاظو قسم اخلي چي په الله قسم! دا غلام زما سره نه دی تښتېدلی، يا په کوم حالت کي چي د مشتري سره تښتېدلی دی په هغه حالت کي زما سره نه دی تښتېدلی، او تر دې قسم وروسته به مشتري له حقُ الردّ څخه محروميږي.

لأن القول إلخ: فرمايي چي د مشتري له طرفه د گواهۍ تر پېشولو مخکي له بائع څخه د قسم نه اخيستلو وجه (يعني د دې وجه چي اول به له مشتري څخه د گواهۍ مطالبه کيږي او تر هغه مخکي به له بائع څخه قسم نه اخيستل کيږي) دا ده چي مشتري د عيب د وُجود مدعي دی (يعني د عيب د موجودېدلو دعویٰ کوي) او بائع د دې منکر دی، او په شيانو کي سلامتيا (يعني له عيب څخه پاکېدل) اصل دي (نو بائع د اصل دعویٰ کوي). لهٰذا د بائع انکار به هغه وخت معتبر وي کله چي په مبيع کي د عيب د موجودېدلو يا نه موجودېدلو خبر حاصل سي، او دا خبر په حجت او گواهۍ (بيّنه) سره حاصلېږي. نو ځکه اول مشتري به د گواهۍ په پېشولو سره مکلف کيږي، او تر دې وروسته به له بائع څخه قسم اخيستل کيږي.

فإذا أقامها إلخ: نو که مشتري خپل د عيب پر دعویٰ گواهي پېش کړي، نو اوس به له بائع څخه په دغه دريو جملو کي په يوه جمله سره قسم اخيستل کيږي: (۱) يو دا چي هغه به داسي قسم اخلي چي په الله قسم! ما غلام خرڅ کړی او مشتري ته مي وسپاري او هغه زما سره هيڅکله نه دی تښتېدلی. (۲) يا داسي قسم به اخلي. په الله قسم! په کوم سبب (اباق) سره چي مشتري د حقُ الرد

دعوىٰ کوي، په هغه سبب سره مشتري ته حقُ الردّ حاصل نه دی (يعني په کومه وجه چي مشتري ما ته غلام واپس کوي، په الله قسم! په هغه وجه پر ما غلام نه سي واپس کولای، ځکه چي هغه زما سره هيڅکله تبنتېدلی نه دی)، ③ يا داسي (صراحتاً) قسم به اخلي چي په الله قسم هغه زما سره هيڅکله نه دی تبنتېدلی، که چيري بائع له دغو دريو قسمونو څه يو قسم واخلي، نو بيا به مشتري له حقُ الردّ څخه محروميږي.

أما لايحلّف إلخ: فرمايي چي قاضي به له بائع څخه صرف په پورتنی دريو جملو سره قسم اخلي، او بائع په را روانو دوو جملو سره قسم نه سي اخيستلای: ① په الله قسم! ما دا غلام په داسي حالت کي خرڅ کړی چي په هغه کي دا (د تبنتېدلو) عيب نه وو، ② په الله قسم! ما غلام په داسي حالت کي خرڅ کړی او مشتري ته مي وسپاری چي (په دغه دواړو وختونو کي) په هغه کي دا عيب نه وو.

له بائع څخه دا دوه قسمه ځکه نه سي اخيستلای چي د قاضي ولايت عام او د هغه شفقت د هر چا لپاره تام او بشپړ وي، او په دغه دوو قسمونو کي که څه هم د بائع په طرف کي شفقت او مصلحت سته، لېکن مشتري بالکل د شفقت له حق څخه محروميږي؛ په دې توګه چي په اول قسم کي يعني کله چي بائع د خرڅولو په وخت کي د عدم عيب قسم واخلي نو دا به صرف د هغه فايده وي؛ ځکه کېدای سي چي تر خرڅولو وروسته له ورسپارلو څخه مخکي به عيب پيدا سوی وي، او دا عيب هم د حقُ الردّ مُوجب دی (يعني د ورسپارلو په وخت کي د عيب پيدا کېدلو په صورت کي هم بائع ته حقُ الردّ حاصليږي)، حال دا چي په دغه (اول) قسم کي د ورسپارلو په وخت کي د عدم عيب ذکر نسته، او په داسي قسم سره مشتري له حقُ الردّ څخه محروميږي؛ ځکه چي خلک او قاضي به دا خيال وکړي چي بائع قسم اخيستی دی، او په دې کي د مشتري ښکاره نقصان دی، نو ځکه له بائع به څخه داسي قسم نه اخيستل کيږي.

او په دويم قسم کي (يعني ما غلام په داسي حالت کي خرڅ کړی او مشتري ته مي وسپاری چي په هغه کي دا عيب نه وو) په دې توګه د مشتري نقصان دی چي کله بائع د خرڅولو او سپارلو په دواړو وختونو کي د عدمِ عيب قسم واخلي، نو له هغه څخه دا وهم کيږي (يعني له هغه څخه دا اورېدنکو او قاضي په ذهن کي دا خبره راځي) چي د خرڅولو او سپارلو په دواړو وختونو کي عيب موجود نه وو (نه د خرڅولو په وخت کي او نه د ورسپارلو په وخت کي)، حال دا چي بائع به په خپل دې قسم کي دا تأويل وکړي چي په اجتماعي توګه په دغه دواړو حالتونو کي عيب نه وو لېکن د ورسپارلو په وخت کي عيب وو (يعني په دويم قسم کي هغه دا تأويل کولای سي چي زما مراد له دغه قسم څخه دا نه دی چي نه د خرڅولو په وخت کي عيب موجود وو او نه د ورسپارلو په وخت کي، بلکي په مجموعي توګه په دواړو وختونو کي موجود نه وو، لېکن د ورسپارلو په وخت کي موجود وو)، او په داسي صورت کي بائع ته حقُ الردّ حاصليږي، لېکن د بائع په قسم سره به قاضي دوکه سي او مشتري به له دې حق څخه محروم کړي او په دې کي د مشتري ښکاره نقصان دی، نو ځکه داسي قسم به هم له بائع څخه نه اخيستل کيږي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَلَوْلَمْ يَجِدِ الْمُشْتَرِىْ بَيِّنَةً عَلٰى قِيَامِ الْعَيْبِ عِنْدَهُ او که مشتري ګواه پيدا نه کړي د ځان سره د عيب پر موجودېدلو ايعني که مشتري پر دې خبره ګواهي پېش نه کړی سي چي زما سره په غلام کي عيب (تښتېدل) موجود سوه] وَأَرَادَ تَحْلِيفَ الْبَائِعِ: بِاللهِ مَا يَعْلَمُ أَنَّهُ أَبَقَ عِنْدَهُ او بيا له بائع څخه داسي قسم اخيستل وغواړي چي: په الله قسم! هغه [بائع] په دې خبر نه دی چي د مشتري سره غلام تښتېدلی دی يُحَلَّفُ عَلٰى قَوْلِهِمَا نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د قول مطابق له بائع څخه داسي قسم اخيستل کېدای سي وَاخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ عَلٰى قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول مشائخو رَحِمَهُمُ الله اختلاف کړی دی لَهُمَا: أَنَّ الدَّعْوٰى مُعْتَبَرَةٌ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي د مشتري دعوىٰ معتبره ده حَتّٰى يَتَرَتَّبَ عَلَيْهَا الْبَيِّنَةُ همداوجه ده چي پر هغې ګواهي مُرتّب کېږي [قائمېږي] فَكَذَا يَتَرَتَّبُ التَّحْلِيفُ نو همداسي به [له بائع څخه] قسم اخيستل هم پر هغې مُرتّب کېږي وَلَهُ عَلٰى مَا قَالَهُ الْبَعْضُ: أَنَّ الْحَلْفَ يَتَرَتَّبُ عَلٰى دَعْوٰى صَحِيْحَةٍ او د بعضي مشائخو د قول مطابق د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي قسم پر صحيح دعوىٰ مُرتّب کېږي وَلَيْسَتْ تَصِحُّ إِلَّا مِنْ خَصْمٍ او دعوىٰ نه صحيح کېږي مګر د خصم له طرفه [يعني دعوىٰ صرف د خصم صحيح کېږي] وَلَا يَصِيْرُ خَصْمًا فِيْهِ إِلَّا بَعْدَ قِيَامِ الْعَيْبِ او مشتري په دې صورتِ مسئله کي خصم نه ګرځي مګر د عيب تر ثبوت وروسته [مطلب دا چي مشتري د عيب تر ثابتولو مخکي خصم نه ګرځي] وَإِذَا نَكَلَ عَنِ الْيَمِيْنِ او کله چي بائع له قسم څخه انکار وکړي عِنْدَهُمَا يُحَلَّفُ ثَانِيًا لِلرَّدِّ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِىْ قَدَّمْنَاهُ نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به له هغه څخه دويم وار د رَدّ [واپس کولو] لپاره قسم اخيستل کېږي پر هغه طريقه کوم چي موږ مخکي ذکر کړه قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: إِذَا كَانَتِ الدَّعْوٰى فِيْ إِبَاقِ الْكَبِيْرِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي کله دعوىٰ د غټ [بالغ] غلام د تښتېدلو په هکله وي يُحَلَّفُ: مَا أَبَقَ مُنْذُ بَلَغَ مَبْلَغَ الرِّجَالِ نو له بائع څخه به داسي قسم اخيستل کېږي چي: [په الله قسم!] له کوم وخت څخه چي دا غلام د خلکو سن ته رسېدلی دی نو نه دی تښتېدلی لِأَنَّ الْإِبَاقَ فِي الصِّغَرِ لَا يُوْجِبُ

رَدَّهُ بَعْدَ الْبُلُوغِ ځکه چې په کوچنیوالي کي تښتېدل تر بالغوالي وروسته رد [واپس کول] نه واجبوي.

**اللغات**: ﴿یترتب﴾ د تفعّل مضارع ده: مُرتّب کېدل، قائمېدل، قرار نیول. ﴿خصم﴾ فریق مخالف، مدعي یا مدعیٰ علیه (دوی یو د بل خصم دي). ﴿إباق﴾ د نصر او ضرب مصدر دی، له سمع څخه هم راځي: تښتېدل (د غلام).

**تشریح**: په تېر عبارت کي د دې وضاحت وسو چې مشتريّ به پر خپله دعوی گواهي پېش کوي او له گواهۍ څخه بغیر د هغه دعوی معتبره نه ده. دلته د دې خبري نور وضاحت کوي فرمایي چې که مشتري پر خپله دعوی گواهي پېش نه کړی سي، نو آیا مشتري ته د دې اختیار او اجازه سته چې له بائع څخه په دې الفاظو قسم واخلي "په الله قسم! زه په خبر نه یم (ما ته معلومه نه ده) چې دا غلام د مشتري سره تښتېدلی دی"، په دې باره کي اختلاف دی، د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز مشتري ته د دې اختیار سته، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دوه قولونه مشائخو بیان کړي دي: ① مشتري ته د داسي قسم اخیستلو اختیار سته، ② مشتري ته د هغه اختیار نسته.

**د صاحبینو دلیل**: دا دی چې د مشتري دعوی معتبره ده، ځکه که د هغه دعوی معتبره نه وای نو له هغه څخه به د گواهۍ مطالبه نه کېدلای، نو کله چې د هغه دعوی معتبره ده او پر هغه گواهي مُرتّب کېږي (مبني کېږي) نو د هغه پر دعوی به قسم هم مُرتّب کېږي او د دعوی صحیح کېدلو په خاطر به مشتري ته له بائع څخه د داسي قسم اخیستلو اختیار وي.

**د امام صاحب دلیل**: کوم مشائخ چې فرمایي چې د امام صاحب په نېز مشتري ته دا اختیار نسته چې له بائع څخه داسي قسم واخلي؛ د هغو دلیل دا دی چې قسم پر صحیح دعوی مُرتّب کېږي او صحیح دعوی د خصم (مدعي) له طرفه ثابتېږي، او په دې مسئله کي مشتري خصم (مدعي) نه دی؛ ځکه چې هغه پر دې خبره گواهي پېش نه کړی سوه چې زما سره عیب (تښتېدل) موجود سوه (او مشتري هغه وخت دلته خصم [مدعي] گرځي کله چې په گواهۍ سره دا ثابته کړي چې زما سره په غلام کي عیب موجود دی)، لهذا کله چې هغه خصم نه دی، نو د هغه دعوی به هم صحیح او معتبره نه وي او پر هغه به قسم هم نه مُرتّب کېږي؛ ځکه چې قسم پر صحیح دعوی مُرتّب کېږي.

وإذا نكل إلخ: فرمايي که بائع له قسم اخيستلو څخه انکار وکړي او دا (پورتنی) قسم نه واخلي، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به له هغه څخه دويم وار هغه درې قسمونه اخيستل کيږي کوم چې په تېر عبارت کي بيان سول، که چيري بائع قسم واخلي نو مشتري به له حقُ الردّ څخه محروميږي، لېکن که قسم نه واخلي، نو د بائع سره به عيب ثابتيږي او مشتري ته به حقُ الردّ (دغلام واپس کولو) حق وي.

قال ﷺ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي که مشتري بعد البلوغ د غلام تـښتېدلو دعویٰ وکړي، نو بائع به داسي قسم اخلي چي په الله قسم! له کوم وخت څخه چې دا غلام بالغ سوی دی زما سره نه دی تښتېدلی؛ ځکه که غلام د بائع سره په کوچنيوالي کي تښتېدلی وي او د مشتري سره بعد البلوغ وتښتيږي، نو هم مشتري له حقُ الردّ څخه محروميږي او د هغه دا حق ختميږي؛ ځکه چي د حقُ الردّ لپاره د اباق د حالت يو والي ضروري دی، او دلته د قبل البلوغ او بعد البلوغ په وجه د اباق په حالت کي اختلاف او بدلون دی.

## د خيارِ عيب د دعوې پر وخت د مبيع په تعداد کي د اختلاف راتللو بيان

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى جَارِيَةً وَتَقَابَضَا فرمايي: او که چا يو مينځه رانيوله او بائع او مشتري دواړو [پر ثمن او مبيع] قبضه وکړه فَوَجَدَ بِهَا عَيْبًا بيا مشتري په مينځه کي يو عيب وموندی فَقَالَ: الْبَائِعُ: بِعْتُكَ هٰذِهٖ وَأُخْرٰى مَعَهَا نو بائع وويل: چي ما د دې مينځي سره يوه بله مينځه هم پر تا خرڅه کړې وه وَقَالَ: الْمُشْتَرِىْ: بِعْتَنِيهَا وَحْدَهَا او مشتري وويل: چي تا صرف همدغه يوه مينځه پر ما خرڅه کړې وه فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِىْ نو قول د مشتري معتبر دی لِأَنَّ الِاخْتِلَافَ فِىْ مِقْدَارِ الْمَقْبُوضِ ځکه چي اختلاف د قبضه کړی سوي مقدار په هکله دی فَيَكُوْنُ الْقَوْلُ لِلْقَابِضِ كَمَا فِى الْغَصْبِ لهذا د قبضه کونکي قول به معتبر وي لکه څرنګه چي په غصب کي دي وَكَذَا إِذَا اتَّفَقَا عَلٰى مِقْدَارِ الْمَبِيْعِ وَاخْتَلَفَا فِى الْمَقْبُوْضِ او همدارنګه کله چي بائع او مشتري د مبيع پر مقدار اتفاق وکړي او په قبضه کړی سوي مقدار کي اختلاف وکړي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات:** ﴿جارية﴾ مينځه، ﴿بعتك﴾ د ضرب له بابه د واحد متکلم صيغه ده: خرڅول، ﴿مقبوض﴾ د ضرب له بابه د مفعول صيغه ده: قبضه کړی سوی (پر کوم شي چي قبضه وسي).

**تشريح : صورت د مسئلې:** دا دی که زيد له خالد څخه مينځه رانيسي، او بائع (خالد) پر ثمن قبضه وکړي او مشتري (زيد) پر مبيع. بيا مشتري (زيد) په مينځه کي يو عيب ويني او هغه وغواړي چي بائع (خالد) ته مينځه واپس کړي او له هغه څخه خپل ثمن واپس واخلي. لېکن کله چي مشتري د بائع مختـه دا خبره کښېږدي، نو بائع وايي چي ما دې مينځي سره يوه بله مينځه هم پر تا خرڅه کړې وه. نو ته خپل پوره ثمن واپس نه سې اخيستلای صرف د معيوبه مينځي په اندازه ثمن واپس اخيستلای سې. او مشتري وايي چي ستا دماغ خراب دی تا خو صرف دغه يوه مينځه پر ما خرڅه کړې وه، دوې مينځي چيري وې؟

او په دوی کي د يوه سره هم ګواهان نه وي، نو په دې صورت کي به د مشتري (مدعیٰ عليه) خبره منل کيږي؛ ځکه چي دلته د مقبوض مقدار په سلسله کي اختلاف دی، او اُصول دا دی چي "القول قول الآخذ" يعني د مقبوض مقدار په هکله د اخيستونکي (قبضه کونکي) قول معتبر وي، او څرنګه چي په دې مسئله کي مشتري آخذ او قابض دی، نو ځکه به صرف د هغه خبره معتبره وي، لکه کله چي د غاصب او مغصوب منهٔ په مينځ کي د غصب د مقدار په هکله اختلاف راسي، يعني غاصب د يوه غلام دعوی کوي او مغصوب منهٔ د دوو غلامانو دعوی کوي، نو هلته هم صرف د غاصب قول معتبر کيږي؛ ځکه چي آخذ او قابض صرف غاصب وي. همداسي دلته هم صرف مشتري قابض دی. لهذا صرف د هغه خبره به معتبره وي.

وكذا إذا اتفقا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د بائع په څېر مشتري هم دا اقرار کوي چي تا پر ما دوې مينځي خرڅي کړي دي، لېکن د مقبوض مقدار په هکله کي اختلاف وکړي، بائع وايي چي تا پر دواړو قبضه کړې وه، مشتري وايي چي ما صرف پر يوې قبضه کړې وه. نو دلته به هم صرف د قابض يعني د مشتري قول معتبر وي، او د بائع خبره به نه منل کيږي.

## له دوو غلامانو څخه په يوه غلام کي د عيب ښکاره کېدلو حکم

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى عَبْدَيْنِ صَفْقَةً وَاحِدَةً فرمايي: او که څوک په يوه عقد کي دوه غلامان رانيسي فَقَبَضَ أَحَدَهُمَا وَوَجَدَ بِالْآخَرِ عَيْبًا او په هغوی کي پر يوه غلام قبضه وکړي او په بل يوه کي عيب ويني فَإِنَّهُ يَأْخُذُهُمَا أَوْ يَدَعُهُمَا نو هغه به دواړه غلامان اخلي يا دواړه به پرېږدي لِأَنَّ الصَّفْقَةَ تَتِمُّ بِقَبْضِهِمَا ځکه چي صفقه د دواړو په قبضه کولو سره پوره کيږي [تامیږي] فَيَكُونُ تَفْرِيقُهَا قَبْلَ التَّمَامِ نو اد يوه غلام په واپس کولو سره] به له پوره کېدلو څخه مخکي د صفقې تفريق [تفريق الصفقه] لازم سي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او موږ مخکي دا [مسئله] ذکر کړې ده وَهٰذَا لِأَنَّ الْقَبْضَ لَهُ شَبَهٌ بِالْعَقْدِ او دا [حکم] ځکه دی چي قبضه د عقد سره مشابه ده فَالتَّفْرِيقُ فِيهِ كَالتَّفْرِيقِ فِي الْعَقْدِ لهذا په قبضه کي تفريق کول په عقد کي د تفريق کولو په څېر

دي وَلَوْ وَجَدَ بِالْمَقْبُوضِ عَيْبًا او که مشتري په قبضه کړی سوي غلام کي عيب ومومندي اِخْتَلَفُوا فِيهِ نو په دې هکله مشائخو اختلاف کړی دی وَيُرْوٰى عَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَرُدُّهُ خَاصَّةً له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي مشتري به فقط هغه مقبوض [معيوب] غلام واپس کوي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يَأْخُذُهُمَا أَوْ يَرُدُّهُمَا او زياته صحيح دا ده چي مشتري به دواړه اخلي يا به دواړه واپس کوي لِأَنَّ تَمَامَ الصَّفْقَةِ تَعَلَّقَ بِقَبْضِ الْمَبِيعِ ځکه چي د صفقې پوره کېدل د مبيع د قبضه کولو سره متعلق دي وَهُوَ اسْمٌ لِلْكُلِّ او مبيع د کل نوم دی [يعني مبيع ټوله رانيول سوي شي ته وايي، لهذا دلته مبيع دواړه غلامان دي، نه يو غلام] فَصَارَ كَحَبْسِ الْمَبِيعِ لَمَّا تَعَلَّقَ زَوَالُهُ بِاسْتِيفَاءِ الثَّمَنِ نو دا د مبيع راګرځولو په څېر سو کله چي د مبيع د راګرځولو زائلېدل د [ټوله] ثمن د اخيستلو سره متعلق وي لَا يَزُولُ دُونَ قَبْضِ جَمِيعِهِ نو [په داسي صورت کي] د مبيع راګرځولو حق د ټوله ثمن له قبضه کولو څخه بغير نه زائلېږي وَلَوْ قَبَضَهُمَا ثُمَّ وَجَدَ بِأَحَدِهِمَا عَيْبًا او که مشتري پر دواړو غلامانو قبضه وکړي بيا په يوه کي عيب ومومندي يَرُدُّهُ خَاصَّةً نو فقط هغه [معيوب] غلام به واپس کوي خِلَافًا لِزُفَرَ ❁ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله هُوَ يَقُولُ: فِيهِ تَفْرِيقُ الصَّفْقَةِ هغه فرمايي: چي په دې صورت کي [هم] تفريق الصفقه راځي وَلَا يَعْرَى عَنْ ضَرَرٍ او تفريق الصفقه له نقصان څخه خالي نه وي لِأَنَّ الْعَادَةَ جَرَتْ بِضَمِّ الْجَيِّدِ إِلَى الرَّدِيءِ ځکه چي عادت [په خلکو کي] دا جاري دی چي ښه شی د خراب شي سره يو ځای کېږي [يعني ښه او کمزوری شی دواړه يو ځای سره خرڅوي] فَأَشْبَهَ مَا قَبْلَ الْقَبْضِ نو دا صورت تر قبضې مخکي [د يوه غلام د واپس کولو سره] مشابه سو وَخِيَارَ الرُّؤْيَةِ وَالشَّرْطِ [همدارنګه] د خيار رؤيت او خيار شرط سره مشابه سو [يعني د خيار رؤيت او شرط په وجه د يوه غلام د واپس کولو سره مشابه سو] وَلَنَا: أَنَّهُ تَفْرِيقُ الصَّفْقَةِ بَعْدَ التَّمَامِ او زموږ دليل دا دی: چي دلته د صفقې تر پوره کېدلو وروسته تفريق الصفقه راځي لِأَنَّ بِالْقَبْضِ تَتِمُّ الصَّفْقَةُ فِي خِيَارِ الْعَيْبِ ځکه چي په خيار عيب کي په قبضه سره صفقه پوره کېږي وَفِي خِيَارِ الرُّؤْيَةِ وَالشَّرْطِ لَا تَتِمُّ بِهِ او په خيار رؤيت او خيار شرط کي په قبضه سره صفقه نه پوره کېږي عَلَى مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر

---

❁ القول الراجح: قول الجمهور كما هو ظاهر من دأب المصنف رَحِمَهُ الله، وكذا في الدر المختار (ج:۴، ص:۱۰۴). [القول الراجح ج:۳، ص: ۳۰]

سو وَلِهٰذَا لَوِ اسْتُحِقَّ أَحَدُهُمَا همدا وجه ده که له دوو غلامانو څخه يو غلام [د بل چا] مستحق وخيږي لَيْسَ لَهُ أَنْ يَرُدَّ الْآخَرَ نو مشتري ته دا اختيار نسته چي بل [دويم] غلام واپس کړي.

**اللغات**: ﴿تفريق﴾ د تفعيل مصدر دی: جلا کول، عليحده کول، بېلول (دوه ځايه کول)، ﴿صَفْقه﴾ عقد، معامله، ﴿يدع﴾ د مضارع صيغه ده: پرېښوول، ﴿ضمّ﴾ د نصر مصدر دی: سره يوځای کول، سره جمع کول، ﴿جيّد﴾ ښه، ﴿رديء﴾ خراب، بد.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک په يوه عقد کي دوه غلامان رانيسي (يعني دوه غلامان يو ځای سره رانيسي)، او په هغوی کي صرف پر يوه غلام قبضه وکړي او پر کوم يوه چي يې قبضه نه وي کړې په هغه کي مشتري يو عيب ووېني، نو مشتري ته دا حق نسته چي معيوب غلام واپس کړي او غير معيوب (سالم) غلام واخلي، بلکي د ټوله ثمن په عوض کي به دواړه اخلي يا دواړه به واپس کوي؛ دليل دا دی چي د خيارِ عيب په صورت کي "صفقه" تر قبضه کولو وروسته پوره کيږي (يعني د خيارِ عيب په صورت کي صفقه هغه وخت پوره کيږي کله چي مشتري پر مبيع قبضه وکړي)، لېکن تر قبضه کولو مخکي نه پوره کيږي لکه مخکي چي دا بحث تېر سو، نو په دې مسئله کي صفقه هغه وخت پوره کيږي کله چي مشتري پر دواړو غلامانو قبضه وکړي حالانکي مشتري صرف پر يوه غلام قبضه کړې ده، نو که مشتري معيوب غلام واپس کړي او سالم غلام واخلي نو دا تفريق الصفقه قبل التمام دی، او تفريق الصفقه قبل التمام ناجائز دی. او په قبضه کي تفريق الصفقه ځکه ناجائز دی چي "قبضه" د عقد سره مشابه ده په دې توګه چي "عقد" په مبيع (غلام) کي ملک رقبه ثابتوي، او قبضه ملک تصرّف (ملک يَد) ثابتوي، او له ملک رقبه څخه مقصود هم ملک تصرف وي، نو ثابته سوه چي د عقد او قبضې دواړو مقصود ملک تصرّف ثابتول دي، او کله چي د دواړو مقصود يو دی نو دواړه يو د بل سره مشابه سول، او کله چي په قبضه او عقد کي مشابهت سته نو په قبضه کي تفريق الصفقه کول په عقد کي د تفريق کولو په څېر سو، او په عقد کي تفريق کول ناجائز دي، نو ځکه به په قبضه کي تفريق کول هم ناجائز وي.

په عقد کي د تفريق کولو صورت دا دی چي يو سړی مثلاً ووايي زه دا دوه غلامه د زرو درهمو په عوض کي خرڅوم، مشتري ووايي چي ما له هغوی څخه په يوه غلام کي بيع قبوله کړه نو دا تفريقُ الصفقه دی او ناجائز دی. همدا ډول له دوو غلامانو څخه پر يوه غلام قبضه کول او بل د عيب په وجه واپس کول ناجائز دي.

ولو وجد إلخ: او كه چيري مشتري په مقبوض غلام كي عيب وويني او پر كوم غلام چي يې قبضه نه وي كړې هغه له عيب څخه سالم وي، نو په دې باره كي د مشائخو اختلاف دى، له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دا روايت نقل سوى دى چي مشتري دي صرف معيوب غلام واپس كړي او د هغه د حصې ثمن دي واخلي او غير معيوب (سالم) غلام دي نه واپس كوي؛ ځكه چي د مقبوض غلام په حق كي صفقه تام سوه، نو د مقبوض غلام وطرف ته په نظر كولو سره تفريق الصفقه لازم نه سوه. او كله چي تفريق الصفقه لازم نه سوه نو اوس د هغه په جائز والي كي هيڅ شبهه نسته. لېكن اصح قول دا دى چي په دې صورت كي دي هم مشتري د ټوله ثمن په عوض كي دواړه غلامان واخلي يا دواړه دي واپس كړي: ځكه چي د صفقې پوره كېدل د قبضه كولو سره متعلق دي يعني كله چي مشتري پر مبيع قبضه وكړي نو صفقه پوره كيږي، او مبيع د هغه كل نوم دى پر كوم چي عقد واقع سوى وي (يعني مبيع هغه ټوله شي ته وايي چي پر هغه بيع واقع سي. نو دلته مبيع دواړه غلامان دي)، لهذا قبضه به صرف هغه وخت پوره كيږي كله چي مشتري پر دواړو غلامانو قبضه وكړي. او څرنګه چي يې په دې صورت كي صرف پر يوه غلام قبضه كړې ده. نو ځكه په دې صورت كي صفقه پوره نه سوه. او كله چي صفقه پوره نه سوه. نو د يوه غلام په واپس كولو سره به تفريق الصفقه قبل التمام لازم سي. او تفريق الصفقه قبل التمام ناجائز دى. نو ځكه به په دې صورت كي هم يو غلام واپس كول او بل نه واپس كول ناجائز وي. او مبيع د هغه كل نوم دى پر كوم چي بيع واقع سوې ده. د دې مثال دا دى چي كه بائع له مشتري څخه په دې وجه مبيع راوګرځوي چي مشتري ټوله ثمن اداء كړي. بيا زه مبيع ورسپارم. نو د بائع دا حق تر هغه وخته نه زائليږي تر څو چي مشتري ټوله ثمن اداء نه كړي. لهذا كه مشتري څه غونډي ثمن وركړي نو هم بائع ته د مبيع راګرځولو حق سته: ځكه چي ثمن د كُل عوض نوم دى، نه د بعضي عوض (يعني ثمن او قيمت ټوله عوض ته وايي. نه د عوض څه حصې ته). همداسي مبيع هم د ټوله معوض نوم دى. نه د بعضي معوض.

ولو قبضهما إلخ: فرمايي كه چيري مشتري پر دواړو غلامانو قبضه وكړي، بيا په يوه غلام كي عيب ووينې، نو زموږ (د جمهورو) په نيز هغه صرف معيوب غلام واپس كولاى سي، امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې صورت كي به هم دواړه غلامان واپس كوي يا دواړه به اخلي، صرف د يوه غلام د واپس كولو اجازه او اختيار نسته.

د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دى چي په دې صورت كي هم تفريق الصفقه سته كه څه هم هغه بعد التمام ده. او په دې كي د بائع ضرر دى (ځكه تفريق الصفقه كه قبل التمام وي او كه بعد التمام وي دواړه له ضرر او نقصان څخه خالي نه وي). ځكه د خلكو عادت دا وي چي ښه شى د خراب شي سره ګډ يو ځاى خرڅوي. نو كه مشتري ته د يوه غلام د واپس كولو اجازه وركول سي نو په دې كي د بائع نقصان دى. په دې توګه چي مشتري كوم غلام واپس

کړي هغه به کمزورئ او خراب (ردي) وي او ښه (جيد) غلام به د ځان سره را ګرځوي. او د بائع لپاره به دا کمزوری غلام يوازي خرڅول مشکل وي. نو له بائع څخه د ضرر ليري کولو په وجه به مشتري ته صرف د معيوب غلام د واپس کولو اختيار نه وي. او دا د مابعد القبض صورت د ماقبل القبض صورت سره مشابه سو. او د دوی په مينځ کي جامع "دفع الضرر" دی. يعني څرنګه چي تر قبضه کولو مخکي له بائع څخه د ضرر ليري کولو په خاطر فقط د معيوب غلام د واپس کولو اجازه او اختيار نسته. همداسي له بائع څخه د ضرر ليري کولو په خاطر به تر قبضه کولو وروسته هم فقط د معيوب غلام د واپس کولو اجازه نه وي. او دا د خيار رؤيت او خيار شرط سره مشابه سو. يعني څرنګه چي مشتري ته د خيار رؤيت او خيار شرط په وجه له دوو غلامانو څخه د يوه غلام د راګرځولو اجازه نسته. همداسي به مابعد القبض د معيوب غلام د واپس کولو او د سالم غلام د راګرځولو اجازه نه وي.

ولنا أنه تفريق إلخ: زموږ دليل دا دی چي کله مشتري پر دواړو غلامانو قبضه وکړه نو د قبضه کولو په وجه صفقه تام سوه (پوره سوه). ځکه چي د خيار عيب په صورت کي که څه هم (پر مبيع) تر قبضه کولو مخکي صفقه نه پوره کيږي لېکن تر قبضه کولو وروسته صفقه پوره کيږي. نو مابعد القبض صرف د معيوب غلام په واپس کولو سره بېله شکه تفريق الصفقه لازميږي لېکن دا تفريق الصفقه بعد التمام دی. نه قبل التمام. او تفريق الصفقه قبل التمام که څه هم ناجائز دی لېکن تفريق الصفقه بعد التمام جائز دی. نو ځکه موږ مابعد القبض د معيوب غلام د واپس کولو اجازه ورکړې ده.

پاته سو خيار رؤيت او خيار شرط نو پر هغوی خيار عيب قياسول صحيح نه دي: ځکه چي د خيار رؤيت او خيار شرط په وجه صفقه نه تاميږي. نه تر قبضه کولو مخکي او نه تر قبضه کولو وروسته. نو د خيار رؤيت او شرط په صورت کي که مشتري مابعد القبض هم يو غلام واپس کړي او بل واپس نه کړي نو تفريق الصفقه قبل التمام لازميږي. حالانکي دا ناجائز دي. او د خيار عيب په صورت کي که مابعد القبض يو غلام واپس کړي او بل واپس نه کړي نو تفريق الصفقه بعد التمام راځي. او دا جائز دي. نو د دومره غټ فرق باوجود به خيار عيب پر خيار رؤيت او شرط قياسول څنګه صحيح وي!؟.

ولهذا إلخ: فرمايي څرنګه چي د خيار عيب په صورت کي مابعد القبض (د مبيع تر قبضه کولو وروسته) صفقه تاميږي. نو ځکه پر دواړو غلامانو د مشتري تر قبضه کولو روسته که يو غلام د بل چا مستحق وخيږي (يعني بل سړي دا دعویٰ وکړي چي په دوی کي يو غلام زما دی او دا ثابته کړي) او هغه دا يو غلام واخلي. نو اوس مشتري ته دا اختيار نسته چي دويم غلام بائع ته واپس کړي. بلکي مشتري ته صرف دا اختيار سته چي له بائع څخه د هغه مستحق غلام ثمن واپس واخلي: ځکه چي دلته (يعني تر قبضه کولو وروسته) تفريق الصفقه بعد التمام لازميږي او دا جائز او صحيح دي (او کله چي دا جائز دي نو ځکه مشتري ته د دويم غلام د واپس کولو اختيار نسته).

## د کيلي يا وزني شي د يوه جزء د معيوب کېدلو صورت

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى شَيْئًا مِمَّا يُكَالُ أَوْ يُوزَنُ فرمايي: که څوک له هغه شيانو څخه يو شی رانيسي کوم چي پېمانه کېږي يا تلل کېږي [يعني کيلي يا وزني شی رانيسي] فَوَجَدَ بِبَعْضِهِ عَيْبًا بيا [تر قبضې وروسته] د هغه بعضي حصه معيوبه ومومي رَدَّهُ كُلَّهُ أَوْ أَخَذَهُ كُلَّهُ نو هغه دي ټوله شی واپس کړي يا دي ټوله شی واخلي وَمُرَادُهُ بَعْدَ الْقَبْضِ او مراد د ماتن [امام محمد رَحِمَهُ الله] تر قبضې وروسته [عيب ليدل] دي لِأَنَّ الْمَكِيلَ إِذَا كَانَ مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ ځکه کله چي کيلي شی له يوه جنس څخه وي فَهُوَ كَشَيْءٍ وَاحِدٍ نو هغه د يوه شي [او يوې مبيع] په څېر دی أَلَا تَرٰى أَنَّهُ يُسَمّٰى بِاسْمٍ وَاحِدٍ آيا ته نه ګورې! چي هغه په يوه نوم سره نومول کېږي [په يوه نوم سره يادېږي] وَهُوَ الْكُرُّ وَنَحْوُهُ يعني کُر او داسي نور وَقِيلَ ۞: هٰذَا إِذَا كَانَ فِي وِعَاءٍ وَاحِدٍ او ويل سوي دي: چي دا حکم په هغه وخت کي دی کله چي مبيع په يوه لوښي کي وي فَإِذَا كَانَ فِي وِعَاءَيْنِ لېکن که هغه په دوو لوښو کي وي فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ عَبْدَيْنِ نو هغه د دوو غلامانو په درجه کي ده حَتّٰى يَرُدَّ الْوِعَاءَ الَّذِي وَجَدَ فِيهِ الْعَيْبَ دُونَ الْآخَرِ تر دې چي هغه لوښي به واپس کوي په کوم کي چي عيب ويني، نه بل [دويم] لوښی.

**اللغات:** ﴿يُكَال﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: پيمانه کول (په لوښي سره اندازه کول)، ﴿يُوزن﴾ دا هم مخکنی صيغه ده: وزن کول، تلل، ﴿کُرّ﴾ دا په عربو کي د يو غټي پيمانې (لوښي) نوم وو چي په هغه سره به غله پيمانه کېده، د هدايې په حاشيه کي چي د دې کوم مقدار ليکل سوی دی په هغه اعتبار سره يو کُر تقريباً (۲۵۴۷) کېلو کېږي (يعني ۲۵۴۷ سېره په پاکستاني سېر سره).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک يو کيلي شی مثلاً غنم، اوربشي، يا وزني شی مثلاً اوسپنه، سرپ، مس رانيسي، او تر قبضه کولو وروسته په هغه کي يو عيب ويني، نو اوس حکم دا دی چي يا دي ټوله مبيع واخلي يا ټوله مبيع دي واپس کړي، او هغه داسي نه سي کولای چي معيوب مقدار واپس کړي او د هغه په اندازه ثمن واپس واخلي او غير معيوب مقدار د ځان سره را وګرځوي.

---

۞ القول الراجح: هو ظاهر الرواية، كما قال صاحبُ العناية...وأما فيهما فلا يجوز إذا كان الجنس واحدا سواء كان في وعاء واحد أو في وعائين على اختيار المشائخ (العناية ج:۶، ص:۳۱)، وكذا في رد المحتار (ج:۴، ص:۹۳). [القول الراجح ج:۲، ۳۲]

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په متن کې دامام محمد رَحِمَهُ الله مراد همدا دی چې مشتري تر قبضې وروسته عيب وويني، او د دې قيد فايده دا ده چې قبل القبض د کَيلي او غير کَيلي ټولو مبيعاتو حکم همدا دی چې هلته صرف معيوب مقدار واپس کول صحيح نه دي. او تر قبضې وروسته فقط په غير کَيلي او غير وزني شيانو کې د معيوب مقدار واپس کول صحيح دي. لېکن په کَيلي او وزني شيانو کې تر قبضې وروسته معيوب واپس کول او غير معيوب راګرځول صحيح نه دي؛ او د دې وجه دا ده چې که کَيلي او وزني شيان له يوه جنس څخه وي، مثلاً غنم يا اوسپنه او داسې نور، نو هغه د شئ واحد په درجه کې دي، همدا وجه ده چې د هغه نوم هم يو دی، يعني غنم که هر څومره ډېر وي نو د ټولو غنمو جلا جلا نوم نه دی، بلکې ټولو ته يو غنم وايي، مثلاً که غنم يو کُر وي يا يو من وي نو بيا هم هغه ته يو غنم او يوه مبيع وايي، نو کله چې دا مبيع د شئ واحد (يوه شي) په درجه کې ده، او په شئ واحد کې حکم دادی چې که د هغه بعضې حصه معيوبه سي نو د کل اخيستل ضروري دي يا د کل واپس کول ضروري دي، داسې نه سي کېدای چې بعضې حصه واخيستل سي او پاته حصه واپس کړی سي، همداسې به دلته هم دا حکم وي چې يا مشتري به ټوله مبيع اخلي، يا ټوله به پرېږدي.

وقيل هذا إلخ: فرمايي يو قول دا دی چې دا حکم (يعني ټوله اخيستل يا ټوله واپس کول) په هغه صورت کې دی کله چې مبيع په يوه لوښي کې وي،لېکن که مبيع په دوو لوښو کې وي، نو د هغه حکم د دوو غلامانو په څېر دی، لهذا څرنګه چې بعد القبض له دوو غلامانو څخه يو غلام واپس کول صحيح دي او مشتري ته د دې اختيار سته، همداسې به په دې صورت کې هم چې په کوم لوښي کې معيوبه مبيع وي مشتري ته به د هغه د واپس کولو اختيار وي، او د دواړو واپس کول به ضروري نه وي. لېکن ظاهر روايت دا دی چې د يوه او دوو لوښو په مينځ کې هيڅ فرق نسته.

## که د مبيع يوه حصه د بل چا مستحق وخيږي (حکم)

وَلَوِاسْتُحِقَّ بَعْضُهُ او که د کَيلي يا وزني شي بعضې حصه مستحق وخيږي فَلَا خِيَارَ لَهُ فِي رَدِّ مَا بَقِيَ نو مشتري ته د پاته مبيع د واپس کولو اختيار نسته لِأَنَّهُ لَا يَضُرُّهُ التَّبْعِيضُ ځکه چې حصه، حصه کول هغه [کيلي يا وزني شي] ته ضرر نه رسوي [يعني تبعيض او تشقيص د هغه لپاره مضر نه دی] وَالِاسْتِحْقَاقُ لَا يَمْنَعُ تَمَامَ الصَّفْقَةِ او استحقاق [مستحق ختل] د عقد پوره کېدل نه منع کوي لِأَنَّ تَمَامَهَا بِرِضَاءِ الْعَاقِدِ لَا بِرِضَاءِ الْمَالِكِ ځکه چې د عقد پوره کېدل د بائع په رضا سره دي، نه د مالک

په رضا سره [يعني عقد د بائع په رضا سره پوره کيږي نه د مالک په رضا سره] وَهٰذَا إِذَا كَانَ بَعْدَ الْقَبْضِ او دا حکم په هغه وخت کې دی کله چې استحقاق تر قبضې وروسته وي أَمَّا لَوْ كَانَ قَبْلَ الْقَبْضِ لېکن که استحقاق تر قبضې مخکې وي فَلَهُ أَنْ يَرُدَّ مَا بَقِيَ نو بيا مشتري ته دا اختيار سته چې پاته مبيع واپس کړي لِتَفَرُّقِ الصَّفْقَةِ قَبْلَ التَّمَامِ د صفقې [عقد] تر پوره کېدلو مخکې د تفريق الصفقه په وجه وَإِنْ كَانَ ثَوْبًا او که مبيع کپړه وي فَلَهُ الْخِيَارُ نو هم مشتري ته [د واپس کولو] اختيار سته لِأَنَّ التَّشْقِيصَ فِيهِ عَيْبٌ ځکه چې حصه، حصه کول په کپړه کې عيب دی وَقَدْ كَانَ وَقْتَ الْبَيْعِ حَيْثُ ظَهَرَ الِاسْتِحْقَاقُ او [داسې وګڼه چې] دا عيب د بيع په وخت کې موجود وو نو استحقاق ښکاره سو [مطلب دا چې دا عيب په حقيقت کې د بيع په وخت کې هم موجود وو. لېکن د استحقاق په وخت کې ښکاره سو] بِخِلَافِ الْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ په خلاف د کَيلي او وزني شی [چې په هغه کې تشقيص عيب نه دی]

**اللغات**: ﴿استحق﴾ د استفعال ماضي مجهوله ده: مستحق کېدل، مستحق ختل (يو شی د بل چا لپاره ثابتېدل)، ﴿تبعيض﴾ د تفعيل مصدر دی: حصه، حصه کول، ټوکره، ټوکره کول. ﴿صفقة﴾ عقد، معامله. ﴿تشقيص﴾ د تفعيل مصدر دی: حصه، حصه کول، ټوکره، ټوکره کول (دوه ځايه کول، دوې حصې کول)، ﴿مکيل﴾ کَيلي شی، يعني کوم شی چې پېمانه کيږي او په پېمانه سره خرڅيږي، ﴿موزون﴾ وزني شی، يعني کوم شی چې تلل کيږي او په وزن او تللو سره خرڅيږي.

**تشريح**: د دغه عبارت مسئله پر دې اُصول مبني ده چې په کَيلي او وزني شي کې تشقيص عيب نه دی (يعني هغه حصه، حصه کول عيب نه دي) لېکن په کپړه (ټوکر) کې تشقيص عيب دی.

**صورت د مسئلې**: دا دی که څوک کَيلي يا وزني شی رانيسي او پر هغه قبضه وکړي (يعني له بائع څخه يې واخلي)، بيا د هغه يوه حصه د بل چا مستحقه وخيږي (يعني بل څوک دعوىٰ وکړي چې په دغه شي کې يوه حصه زما ده او هغه دا ثابته کړي او خپله حصه واخلي)، نو په دې صورت کې مشتري د مبيع پاته (مابقي) حصه نه سي واپس کولای (يعني هغه ته حقُ الرد نه حاصليږي)؛ بلکي د مستحقه حصې په اندازه ثمن به له بائع څخه واپس اخلي (لېکن که مبيع دوه غلامان وای نو د يوه د استحقاق په صورت کې به مشتري ته حقُ الرد حاصلېدای لکه مخکې چې موږ وويل. لېکن په کَيلي يا وزني شي کې حکم داسې نه دی)، ځکه چې په کَيلي يا وزني شي کې تشقيص (حصه، حصه کول) او د هغه يوه حصه کمول عيب نه شمارل کيږي؛ لهذا کله

چي په هغه کي تشقيص عيب نه دی، نو په استحقاق سره به مشتري ته هيڅ نقصان نه رسيږي، او بل دا چي دلته تشقيص او تفريق تر قبضې وروسته دی، لهذا تفريق الصفقه بعد التمام (يعني د صفقې تر پوره کېدلو وروسته) راغلی، نو ځکه هيڅ حرج نسته.

والاستحقاق لايمنع إلخ: دا د يو اشکال جواب دی، اشکال دا دی چي د کَيلي يا وزني شي (مثلاً د غنمو) کومه حصه چي د بل چا مستحقه وختله، د هغه مالک خو دا بل څوک دی (يعني چا چي دعوىٰ وکړه او خپله دعوىٰ او حصه يې ثابته کړه، د هغه حصې مالک خو هغه دعوىٰ کونکی دی)، او هغه د خپلي حصې په خرڅولو راضي نه وو، بلکي صرف بائع (عقد کونکی) په دې راضي وو، او صفقه د مالک او بائع دواړو په رضا سره پوره کيږي، حال دا چي مالک په دې راضي نه وو، لهذا دلته صفقه پوره نه سوه نو تفريق د صفقې تر پوره کېدلو مخکي واقع سو، او تفريق الصفقه قبل التمام ناجائز دی، لهذا له دغه ناجائز کار څخه د ځان ساتلو لپاره مشتري ته حقُ الرد حاصلېدل پکار دي؛ نو د دې په جواب کي فرمايي چي د مبيع يوه حصه د بل چا مستحق کېدل د صفقې له پوره‌والي څخه مانع نه دي؛ ځکه چي د صفقې پوره کېدل د عاقد (عقد کونکي) پر رضا موقوف دي نه د مالک، او عاقد په صفقه (عقد) راضي وو لهذا صفقه پوره سوه، او کله چي هغه پوره سوه، نو تر دې وروسته په تفريقُ الصفقه کي هيڅ حرج نسته (ځکه چي اوس تفريقُ الصفقه قبل التمام نه لازميږي).

أما لو کان إلخ: لېکن که تر قبضې مخکي د مبيع يوه حصه د بل چا مستحقه وخيږي (د بل چا حق پکښي ثابت سي)، نو په دې صورت کي مشتري ته حقُ الرد حاصليږي؛ ځکه چي صفقه په قبضه سره پوره کيږي، نو که تر قبضې مخکي يوه حصه د بل چا مستحق وخيږي نو دا له صفقې (عقد) پوره کېدلو څخه مخکي تفريقُ الصفقه دی، او تفريق الصفقه قبل التمام ناجائز دی، نو ځکه اوس به مشتري ته د مابقي مبيع د واپس کولو حق او اختيار وي.

وإن کان ثوبا إلخ: فرمايي که مبيع کپړه وي، او تر قبضې وروسته په کپړه کي د بل چا حق ثابت سي، نو په دې صورت کي مشتري ته حقُ الرد حاصليږي؛ ځکه چي تشقيص او دوه ځايه کول په کپړه کي عيب دی (ځکه که د کپړې يوه حصه د بل چا مستحق وخيږي نو په پاته کپړه سره پوره قميص نه جوړيږي او هغه بېکاره پاتيږي. نو ځکه په کپړه کي تشقيص عيب دی)، او له استحقاق څخه معلوميږي چي دا عيب د بيع په وخت کي د بائع سره هم موجود وو (يعني په حقيقت کي دا عيب د بيع په وخت کي هم موجود وو ځکه چي د بيع په وخت کي هم هغه کپړه د دغه بل کس مستحق وه]، او اوس د استحقاق په وخت کي دا عيب ښکاره سو). نو معلومه سوه چي دا عيب د بائع له طرفه راغلی دی، او کوم عيب چي د بائع له طرفه وي د هغه

په وجه مشتري ته حقُ الرد حاصلیږي، لهذا په دې صورت کې به هم هغه ته حقُ الرد حاصلیږي، لیکن څرنګه چې په کَیلي او وزني شیانو کې تشقیص عیب نه دی (ځکه که نیم غنم امثلا ادبل چا مستحق وخیږي، نو مابقي نیم غنم هم خورل کېدای سي، او هغه داسي نه دي لکه کپړه)، نو ځکه په دې شیانو کې به تر قبضې وروسته داستحقاق ثابتېدلو په صورت کې مشتري ته د مابقي مبیع د واپس کولو اختیار نه وي (بلکي هغه ته به صرف د رجوع بنقصان العیب اختیار وي، یعني له بائع څخه به د مستحقه حصې په اندازه ثمن واپس واخلي).

## د خیارِ عیب یو څو باطلونکي شیان

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى جَارِيَةً فرمایي: او که څوک مینځه رانیسي فَوَجَدَ بِهَا قُرْحًا فَدَاوَاهُ بیا مشتري په هغې کي زخم ومونډي او د هغه درملنه وکړي أَوْ كَانَتْ دَابَّةً فَرَكِبَهَا فِي حَاجَتِهِ یا مبیع څاروی وي او مشتري د خپل ضرورت لپاره پر هغه سپور سي فَهُوَ رِضًا نو دا [په مبیع] راضي کېدل دي [یعني دا کارونه پر دې دلالت کوي چي هغه په مینځه او څاروي راضي دی] لِأَنَّ ذٰلِكَ دَلِيلُ قَصْدِهِ الِاسْتِبْقَاءَ ځکه چي دا د مبیع د باقي ساتلو پر اراده دلیل دي بِخِلَافِ خِيَارِ الشَّرْطِ په خلاف د خیارِ شرط لِأَنَّ الْخِيَارَ هُنَاكَ لِلِاخْتِبَارِ ځکه چي هلته [یعني په خیارِ شرط کي] خیار د ازمایلو لپاره وي وَأَنَّهُ بِالِاسْتِعْمَالِ او ازمایل په استعمالولو سره ممکن دي فَلَا يَكُونُ الرُّكُوبُ مُسْقِطًا نو ځکه به [هلته] سپرېدل [د خیارِ شرط لپاره] ساقطونکي نه وي وَإِنْ رَكِبَهَا لِيَرُدَّهَا عَلٰى بَائِعِهَا او که مشتري د دې لپاره پر څاروي سپور سي چي هغه خپل بائع ته واپس کړي أَوْ لِيَسْقِيَهَا یا د دې لپاره چي څاروي ته اوبه ورکړي [یعني اوبه یې کړي] أَوْ لِيَشْتَرِيَ لَهَا عَلَفًا یا د دې لپاره چي د هغه لپاره خوراکه رانیسي فَلَيْسَ بِرِضًا نو دا [په څاروي] راضي کېدل نه دي أَمَّا الرُّكُوبُ لِلرَّدِّ فَلِأَنَّهُ سَبَبُ الرَّدِّ کوم چي د واپس کولو لپاره سپرېدل دي نو ځکه چي هغه د واپس کولو سبب [او ذریعه] ده وَالْجَوَابُ فِي السَّقْيِ وَاشْتِرَاءِ الْعَلَفِ مَحْمُولٌ عَلٰى مَا إِذَا كَانَ لَا يَجِدُ بُدًّا مِنْهُ او حکم په اوبه کولو کي او د خوراکې په رانیولو کي محمول دی پر هغه صورت کله چي مشتري له سپرېدلو څخه هیڅ چاره نه مونډي إِمَّا لِصُعُوبَتِهَا یا د څاروي د سختوالي په وجه أَوْ لِعَجْزِهِ یا [له پیاده تګ څخه] د مشتري د عاجزوالي په وجه أَوْ لِكَوْنِ الْعَلَفِ فِي عِدْلٍ وَاحِدٍ یا په

دې وجه چې خوراکه [يعني پروړ يا وابنه] په يوه ګاټې [بنډل] کې [تړلې] وي وَأَمَّا إِذَا كَانَ يَجِدُ بُدًّا مِنْهُ لِانْعِدَامِ مَا ذَكَرْنَاهُ لېکن که مشتري له سپرېدلو څخه چاره وموندې، زموږ د ذکر سوو عذرونو د نشتوالي په وجه يَكُونُ رِضًا نو دا [رکوب] به [په ښاروي] راضي کېدل وي.

**اللغات:** ﴿قرح﴾ زخم، ﴿داوئ﴾ د مفاعلې ماضي ده: دواء کول، علاج او درملنه کول، ﴿دابة﴾ ښاروی (مراد ځنې د سپرېدلو ښاروی دی، لکه آس او داسي نور)، ﴿استبقاء﴾ د استفعال مصدر دی: باقي ساتل (پاته کول)، برقرار ساتل، ﴿يسقي﴾ د ضرب مضارع ده: اوبول، اوبه ورکول (اوبه په چيښل)، ﴿علف﴾ د ښارويانو خوراکه يعني وابنه، پروړ او داسي نور، ﴿صعوبة﴾ سختي، سختوالي (مراد ځنې سرکښوالي دی)، ﴿عِدل﴾ ګاټې، بنډل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی مينځه رانيسي او په هغه کي يو زخم وموندي بيا مشتري د هغه علاج او درملنه وکړي، يا هغه يو ښاروی (سپارلي) رانيسي او د خپل يو ضرورت لپاره پر ښاروي سپور سي، نو په دې دواړو صورتونو کي مشتري له حقُ الردّ څخه محرومېږي (يعني هغه ته دا حق نه حاصلېږي چي مبيع [مينځه، ښاروی] بائع ته واپس کړي).

دليل دا دی چي کله دلته مشتري د عيب تر لېدلو وروسته د مينځي علاج وکړی يا د خپل حاجت لپاره پر ښاروي سپور سو، نو د هغه دا فعل په عيب د راضي کېدلو دليل سوء او د هغه طرز عمل دا ښکاره کړه چي هغه د ځان سره د مبيع په باقي ساتلو راضي دی (يعني د مبيع په اخيستلو راضي دی)، او کله چي مشتري په عيب راضي سو، نو ښکاره خبره ده چي هغه ته به حقُ الردّ نه حاصلېږي.

ها! که مشتري په خيار شرط سره ښاروی رانيسي او بيا پر هغه يو وار سپور سي، نو په دې سپرېدلو سره د مشتري خيار شرط (حقُ الردّ) نه ساقطيږي؛ ځکه چي د خيار شرط مقصد د مبيع ازمايل او معلومول دي، او يو وار سپرېدل د ازمايلو او معلومولو لپاره وه (چي په دې سره هغه ځان ته ښاروی معلوم کړي)، او مبيع هغه وخت معلومېدای سي کله چي هغه استعمال کړل سي، نو ځکه د يو وار سپرېدلو په وجه به د مشتري خيار نه ساقطيږي.

وإن ركبها إلخ: فرمايي که مشتري يو ښاروی رانيسي، بيا د بائع وطرف ته د واپس بېولو لپاره پر هغه سپور سي او د بائع وطرف ته روان سي، نو دا سپرېدل حقُ الردّ نه ساقطوي؛ ځکه ښکاره خبره ده چي مبيع ښاروی دی نو د هغه د واپس بېولو لپاره به مشتري پر هغه سپرېږي (ځکه چي ښاروی عموماً په سپرېدلو سره بېول کيږي).

ها! که مشتري د دې لپاره پر هغه سپور سي چي اوبو ته يې بوځي او په هغه اوبه وڅيښي. يا د دې لپاره چي د څاروي وابنه يا پروړ رانيسي او پر هغه يې را بار کړي، نو د مشتري دا سپرېدل به دوه ډوله وي: (۱) ... که څاروی دومره سرکښ وي چي له سپرېدلو څخه بغير اوبو ته د هغه رسول ناممکن وي، يا د اوبو ځاى ليري وي او مشتري بوډا وي پياده هلته نه سي تللاى، يا مثلاً وابنه يا پروړ يو ځاى سره تړلي وي يعني يو بنډل او يوه غوټه وي چي کله هغه د څاروي په يوه طرف کي کښېښول سي نو د وزن سمولو لپاره به په بل طرف کي خامخا مشتري کښيني، که د دغه عذرنو او وجهو په خاطر مشتري پر هغه سپور سي، نو د مشتري يو وار داسې سپرېدل د هغه حقُ الردّ نه ساقطوي؛ ځکه په دې حالتونو کي د مشتري سپرېدل په عيب باندي د هغه د راضي کېدلو دليل نه جوړېږي. (۲) ... لېکن که هغه هسي پر څاروي سپور سي او له مذکوره عذرونو څخه يو عذر هم نه وي يا داسي بله هيڅ معقوله وجه نه وي. نو په دې صورت کي د هغه سپرېدل په عيب باندي د هغه د راضي کېدلو دليل جوړېږي. نو ځکه به د هغه حقُ الردّ ساقطيږي (يعني هغه ته به دا اختيار نه وي چي مبيع [څاروي] بائع ته واپس کړي).

## د يو مخکني سبب په وجه د قتل کېدونکي يا لاس پرېکېدونکي غلام حکم

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى عَبْدًا قَدْ سَرَقَ فرمايي: او که څوک داسي غلام رانيسي چي هغه غلا کړې وي وَلَمْ يَعْلَمْ بِهِ حال دا چي مشتري په دې خبر نه وي فَقُطِعَ عِنْدَ الْمُشْتَرِيْ بيا د مشتري سره د هغه لاس پرېکړل سي لَهُ أَنْ يَرُدَّهُ وَيَأْخُذَ الثَّمَنَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مشتري ته دا اختيار سته چي هغه غلام واپس کړي او [ټوله] ثمن واخلي وَقَالَا: يَرْجِعُ بِمَا بَيْنَ قِيمَتِهِ سَارِقًا إِلَى غَيْرِ سَارِقٍ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د غله او نا غله غلام د قيمت په مينځ کي چي کوم فرق وي هغه به اخلي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا قُتِلَ بِسَبَبٍ وُجِدَ فِي يَدِ الْبَائِعِ او پر همدې اختلاف دي کله چي غلام د يو داسي سبب په وجه قتل کړی سي کوم چي د بائع په قبضه کي موجود سوی وي وَالْحَاصِلُ أَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الِاسْتِحْقَاقِ عِنْدَهُ وَبِمَنْزِلَةِ الْعَيْبِ عِنْدَهُمَا او [د دې اختلاف] حاصل دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [د غلام] دا عيب د استحقاق په درجه کي دی او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د عيب په درجه کي دی لَهُمَا: أَنَّ الْمَوْجُودَ فِي يَدِ الْبَائِعِ سَبَبُ الْقَطْعِ وَالْقَتْلِ د صاحبينو دليل دا

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله. كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۱۰۶)، وكذا في فتح القدير (ج:۶، ص:۳۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۳]

دی: چي د بائع په قبضه کي [د غلام] د لاس پرېکېدلو يا قتل کېدلو سبب موجود دی وَأَنَّهُ لَا يُنَافِي الْمَالِيَّةَ او دا سبب د ماليت منافي نه دی فَنَفَذَ الْعَقْدُ فِيهِ نو عقد بيع به په هغه کي نافذيږي لَكِنَّهُ مُتَعَيَّبٌ ليکن هغه عيبداره دی فَيَرْجِعُ بِنُقْصَانِهِ عِنْدَ تَعَذُّرِ رَدِّهِ نو ځکه د مبيع د واپس کولو د متعذروالي [ناممکنوالي] په وخت کي به مشتري د عيب په نقصان سره رجوع کوي [يعني له بائع ځخه به د عيب نقصان واپس اخلي] وَصَارَ كَمَا إِذَا اشْتَرَى جَارِيَةً حَامِلًا فَمَاتَتْ فِي يَدِهِ بِالْوِلَادَةِ او دا داسي سو لکه يو شوک چي حامله مينځه رانيسي بيا د ولادت [بچي زېږلو] په وجه د هغه په قبضه کي مړه سي فَإِنَّهُ يَرْجِعُ بِفَضْلِ مَا بَيْنَ قِيمَتِهَا حَامِلًا إِلَى غَيْرِ حَامِلٍ نو مشتري به د حامله او غير حامله مينځي په مينځ کي چي کوم زائد قيمت وي هغه به واپس اخلي وَلَهُ: أَنَّ سَبَبَ الْوُجُوبِ فِي يَدِ الْبَائِعِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي [د قطع او قتل] د واجبېدلو سبب د بائع په قبضه کي موجود سوی دی وَالْوُجُوبُ يُفْضِي إِلَى الْوُجُودِ او وجوب وجود ته رسول کوي [يعني وجوب د وجود سبب جوړيږي] فَيَكُونُ الْوُجُودُ مُضَافًا إِلَى السَّبَبِ السَّابِقِ نو ځکه به وجود د مخکني سبب وطرف ته منسوب وي وَصَارَ كَمَا إِذَا قُتِلَ الْمَغْصُوبُ أَوْ قُطِعَ بَعْدَ الرَّدِّ بِجِنَايَةٍ وُجِدَتْ فِي يَدِ الْغَاصِبِ او دا به داسي وي لکه [د غاصب] تر واپس کولو وروسته چي غصب کړل سوی غلام د داسي جرم په وجه قتل کړی سي يا يې لاس پرېکړل سي کوم چي د غاصب په قبضه کي موجود سوی وي وَمَا ذُكِرَ مِنَ الْمَسْأَلَةِ مَمْنُوعَةٌ او کومه مسئله چي ذکر سوه هغه ممنوع ده [يعني موږ ته تسليم نه ده].

**اللغات:** ﴿متعيب﴾ د تفعّل مفعول دی: عيبداره، عيبجن (معيوب). ﴿فضل﴾ اضافي، زائد، ﴿جناية﴾ جرم، ﴿يُفضي﴾ د افعال مضارع ده: رسول، سبب جوړېدل، الوجوب يفضي إلى الوجود: د کار واجبېدل د کار تر کېدلو پوري رسول کوي. يعني د يو شي واجبېدل د هغه د کېدلو سبب جوړيږي.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که شوک داسي غلام رانيسي چي هغه د بائع په قبضه کي غلا کړې وي (يعني کوم وخت چي د بائع په قبضه کي وو په هغه وخت کي يې غلا کړې وي)، او مشتري د هغه په غلا خبر نه سي. نه د رانيولو په وخت کي او نه د قبضه کولو په وخت کي. بيا د دې غلام لاس د مشتري په قبضه کي پرېکړل سي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مشتري ته دا اختيار سته چي دا

مقطوع اليد غلام بائع ته واپس کړي او له هغه څخه خپل ټوله ثمن واپس واخلي او هغه ته دا اختيار هم سته چي غلام راوګرځوي او له بائع څخه د عيب نقصان يعني نيم ثمن واخلي؛ ځکه چي د انسان لاس د انسان د نيم ثمن برابر دی. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د غله غلام او د نا غله (غير سارق) غلام په قيمت کي چي کوم تفاوت وي هغه به اخلي، مثلاً د غله غلام قيمت زر (۱۰۰۰) درهمه وي او د غير سارق غلام قيمت پنځلس سوه (۱۵۰۰) درهمه وي، نو مشتري به له بائع څخه پنځه سوه (۵۰۰) درهمه واپس اخلي او دا به ګڼل کيږي چي د غلا کولو په وجه پنځه سوه درهمه قيمت کم سو.

د امام صاحب او صاحبينو همدا اختلاف په هغه وخت کي هم دی کله چي غلام د مشتري په قبضه کي د يو داسي سبب په وجه قتل کړی سي چي هغه د بائع په قبضه کي موجود سوی وی، مثلاً غلام د بائع په قبضه کي يو څوک عمداً قتل کړی وي، يا هغه مرتد سوی وي، بيا قصاصاً يا د مرتد کېدلو په وجه دا غلام د مشتري په قبضه کي قتل کړی سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به مشتري له بائع څخه ټوله ثمن واپس اخلي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د داسي غلام قيمت معلومول کيږي کوم چي واجب القتل او مباح الدم وي او بل د داسي غلام قيمت به معلومول کيږي کوم چي واجب القتل نه وي بلکي معصوم الدم وي، او د هغوی دواړو په قيمت کي چي کوم تفاوت وي، مشتري به هغه له بائع څخه واپس اخلي، مثلاً د واجب القتل او مباح الدم غلام قيمت دوه سوه درهمه وي او د غير واجب القتل غلام قيمت زر درهمه وي، نو مشتري به له خپل بائع څخه اته سوه (۸۰۰) سوه درهمه واپس اخلي.

والحاصل إلخ: فرمايي چي د دې اختلاف حاصل دا دی چي د غلام مباح الدم کېدل يا مباح اليد کېدل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د استحقاق په څېر دي (يعني لکه بل څوک چي د غلام مستحق وخيږي)، او د استحقاق په صورت کي مشتري ته حقُ الرّدّ حاصليږي (يعني د استحقاق په صورت کي هغه ته دا اختيار وي چي مبيع واپس کړي او خپل ټوله ثمن واپس واخلي)، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه د عيب په څېر دي، نو که مبيع عيبداره وي او د هغې واپس کول متعذر (ناممکن) وي نو مشتري ته د رجوع بنقصان العيب حق حاصليږي (يعني هغه ته دا اختيار وي چي له بائع څخه د عيب د نقصان په اندازه ثمن واخلي)، او دلته هم د غلام مباح اليد يا مباح الدم کېدل عيب دي، او د دې غلام د واپس کولو متعذروالی خو د قتل په صورت کي ښکاره دی؛ ځکه کله چي د قصاص يا ارتداد په وجه غلام د مشتري سره قتل کړی سو نو د هغه واپس کول متعذر (ناممکن) سو، او د قطع اليد په صورت کي ځکه د هغه واپس کول متعذر دي چي د غلام لاس د مشتري په قبضه کي پرېکړل سوی دی، لهذا که

ځه هم د قطع د وجوب سبب (غلا) د بائع په قبضه کې موجود سوی دی لېکن د مشتري په قبضه کې د هغه لاس پرېکېدل د نوي (جديد) عيب په څېر سو. او که د مشتري په قبضه کې نوی عيب پيدا سي نو هغه ته حقُ الردّ (د واپس کولو حق) نه حاصلېږي، لهذا کله چې د غلام واپس کول متعذر سو حال دا چې غلام له بائع ځخه عيبداره راغلی دی، نو ځکه به د معيوب او غير معيوب (مباح او غيرِ مباح) غلام په قيمت کې چې کوم تفاوت وي مشتري به هغه له بائع ځخه واپس اخلي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې که ځه هم د قطع اليد يا د قتل سبب د بائع په قبضه کې موجود سوی دی، لېکن د دې باوجود دا سبب نه د غلام د ماليت منافي دی او نه د نفاذ عقد منافي دی، ځکه د هغه بيع جائز ده نو عقد به هم نافذېږي، لېکن هغه د مباح اليد يا مباح الدم کېدلو په وجه عيبداره دی، او د مشتري لپاره د دې عيبداره غلام واپس کول متعذر سو لکه ځه مخکې چې د دې وضاحت وسو، او کله چې مبيع عيبداره وي او د هغې واپس کول متعذر وي، نو مشتري ته د رجوع بنقصان العيب اختيار وي (چې له بائع ځخه د عيب د نقصان په اندازه ثمن واپس واخلي)، نو ځکه به په دې صورت کې هم هغه ته د رجوع بنقصان العيب اختيار وي.

او دا مسئله داسې ده لکه يو څوک چې حامله مينځه رانيسي او د هغې په حمل نه د رانيولو په وخت کې خبر سي او نه د قبضه کولو په وخت کې، بيا د ولادت په وجه هغه د مشتري په قبضه کې مړه سي، نو مشتري به د حامله مينځې او غير حامله مينځې قيمت سره اندازه کوي او د دواړو د قيمت په مينځ کې چې کوم فرق وي هغه به له بائع ځخه واپس اخلي همدې ته رجوع بنقصان العيب وايي، نو همدا ډول به په دې مسئله کې هم مشتري له بائع ځخه د عيب نقصان واپس اخلي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې دلته د غلام د لاس پرېکېدلو يا قتل کېدلو د وجوب سبب د بائع په قبضه کې موجود سوی دی، او د وجوب سبب مفضي الی الوجوب وي، نو ګواکې د لاس پرېکېدل يا قتل د بائع په قبضه کې واجب سو، او وجوب مفضي الی الوجود وي (يعني وجود لره مستلزم وي او د هغه وطرف ته مضاف وي)، نو ګواکې د غلام د لاس پرېکېدل يا د هغه قتل کېدل د مخکښي سبب په وجه د بائع په قبضه کې موجود سو، نو کله چې د لاس پرېکېدل يا قتل کېدل په هغه سبب سره موجود سو کوم چې د بائع په قبضه کې وو، نو دا غلام د مستحق غلام په څېر سو، يعني ګواکې دا غلام ګرسره د بائع نه وو بلکې په هغه کې د بل چا استحقاق وو کوم چې اوس ښکاره سو، او مستحق لره بيع نه شامليږي (يعني مستحقه مبيع په بيع کې نه داخليږي)، او کله چې مستحق لره بيع نه شامليږي، نو ګرسره د مشتري قبضه ثابته نه سوه، او کله چې د مشتري قبضه ثابته نه سوه، نو ځکه به هغه له بائع ځخه خپل ثمن واپس اخلي، او څرنګه چې د لاس پرېکېدلو په صورت کې ګواکې نيم غلام مستحق سو، نو ځکه به په دې صورت کې مشتري نيم ثمن واپس اخلي، يا دا مقطوع اليد غلام به واپس کوي او ټوله ثمن به واپس اخلي.

او د دې مثال داسې دی لکه يو څوک، چې غلام غصب کړي او غلام د غاصب په قبضه کې عمداً يو څوک قتل کړي يا غلا وکړي. بيا غاصب هغه مغصوب غلام مالک (مغصوب منهٔ) ته واپس کړي او د مالک په قبضه کې هغه قصاصاً قتل سي يا د مخکنۍ غلا په وجه د هغه لاس پرېکړل سي. نو اوس به مالک (مغصوب منهٔ) د غلام د قتل کېدلو په صورت کې له غاصب څخه د غلام ټوله قيمت اخلي؛ او د لاس پرېکېدلو په صورت کې به نيمه قيمت ځني اخلي يا هغه به غاصب ته واپس کوي او ټوله قيمت به ځني اخلي؛ ځکه چې د غلام د لاس پرېکېدلو يا قتل کېدلو سبب د غاصب په قبضه کې واجب سو. او تاسي مخکې وويل چې وجوب مفضي الی الوجود وي. لنډه دا چې څرنګه دلته مالک له غاصب څخه ټوله ثمن يا داسې نور واپس اخلي. همداسې به په پورتنۍ مسئله کې هم که غلام د قتل يا ارتداد په وجه قتل کړی سي نو مشتري به له بائع څخه ټوله ثمن اخلي او که د هغه لاس پرېکړل سي نو مشتري به له بائع څخه نيم ثمن اخلي يا هغه به بائع ته واپس کوي او ټوله ثمن به ځني اخلي.

وما ذكر من المسألة إلخ: او د حامله مينځې په حق کې چې صاحبينو کومه مسئله د قياس په توګه ذکر کړه هغه موږ ته تسليم نه ده؛ ځکه چې په هغه مسئله کې بيان سوی حکم صرف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی، کنې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چې کله حامله مينځه د ولادت په وجه مړه سي نو مشتري به له بائع څخه ټوله ثمن واپس اخلي. لهذا کله چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دا دی نو د حامله مينځې مسئله به د امام صاحب په خلاف د قياس په توګه پېشول څنګه صحيح وي!؟.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَلَوْ سَرَقَ فِيْ يَدِ الْبَائِعِ ثُمَّ فِيْ يَدِ الْمُشْتَرِيْ او که غلام د بائع په قبضه کې غلا وکړي بيا د مشتري په قبضه کې غلا وکړي فَقُطِعَ بِهِمَا عِنْدَهُمَا بيا د دواړو غلاوو په وجه د هغه لاس پرېکړل سي يَرْجِعُ بِالنُّقْصَانِ نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به مشتري د عيب نقصان واپس اخلي كَمَا ذَكَرْنَا لکه [مخکې] چې موږ ذکر کړه وَعِنْدَهُ* لَا يَرُدُّهُ بِدُوْنِ رِضَاءِ الْبَائِعِ لِلْعَيْبِ الْحَادِثِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د نوي عيب پيدا کېدلو په وجه د بائع له رضا څخه بغير مشتري هغه نه سي واپس کولای وَيَرْجِعُ بِرُبْعِ الثَّمَنِ او د ثمن څلورمه حصه به واپس اخلي وَإِنْ قَبِلَهُ الْبَائِعُ او که بائع هغه

* القول الراجح: قول الإمام أبي حنيفة رَحِمَهُ الله. [القول الراجح ج:۲، ص:۳۲]

[مقطوعُ اليد] غلام قبول کړي فَبِثَلَاثَةِ الْأَرْبَاعِ نو مشتري به د ثمن درې څلورمې حصې واپس اخلي لِأَنَّ الْيَدَ مِنَ الْآدَمِيِّ نِصْفُهُ ځکه چي د انسان لاس د هغه نصف [نيمه حصه] وي [مطلب دا چي د انسان د لاس قيمت د انسان د نصف قيمت برابر دی] وَقَدْ تَلِفَتْ بِالْجِنَايَتَيْنِ او [دلته] لاس د دوو جرمونو په وجه تلف سو [يعني د دوو غلاوو په سزا کي پرېکړل سو] وَفِي إِحْدَاهُمَا رُجُوعٌ او له هغوی څخه په يوه کي د رجوع حق سته [يعني له هغوی څخه صرف په يوه جرم (يوې غلا) کي مشتري ته د نقصان واپس اخيستلو حق سته] فَيَتَنَصَّفُ نو ځکه به هغه نصف نيمايي کيږيٚ [يعني دوې حصې به کيږي].

**اللغات**: ﴿تلفت﴾ د سمع ماضي ده: هلاکېدل، تلفېدل (ضايع کېدل)، ﴿يتنصف﴾ د تفعل مضارع ده: نيمايي کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که غلام يو وار د مالک په قبضه کي غلا وکړي او بيا چي کله مالک هغه خرڅ کړي نو د مشتري په قبضه کي هم غلا وکړي، بيا د دواړو غلاوو په وجه د هغه لاس پرېکړل سي، نو د صاحبينو په نېز به مشتري له بائع څخه د عيب نقصان واپس اخلي، يعني د غله او ناغله په قيمت کي چي کوم تفاوت وي مشتري به هغه له بائع څخه واپس اخلي لکه په مخکني عبارت کي چي د دې تفصيل تير سو. او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مشتري دا مقطوع اليد غلام د بائع له رضا څخه بغير نه سي واپس کولای؛ ځکه چي د مشتري سره په دې غلام کي يو نوی (جديد) عيب پيدا سو (يعني د مشتري په قبضه کي غلا کول او د دواړو غلاوو په وجه د هغه لاس پرېکېدل)، او دا خبره مخکي تېره سوه چي که د مشتري سره په مبيع کي نوي عيب پيدا سي نو مشتري له حقُ الردّ څخه محروميږي يعني د هغه د واپس کولو اختيار نه پاتيږي، نو ځکه به په دې صورت کي هم مشتري د مقطوع اليد غلام د واپس کولو اختيار نه وي، لېکن مشتري به د ثمن څلورمه حصه له بائع څخه واپس اخلي يعني که د دې غلام قيمت مثلاً زر (۱۰۰۰) درهمه وي نو مشتري به له بائع څخه دوه نيم سوه (۲۵۰) درهمه واپس اخلي؛ ځکه چي د غلام لاس د دوو غلاوو په سزا کي پرېکړل سوی دی، يوه هغه غلا کوم چي يې د بائع سره کړې ده او بله يې د مشتري سره کړې ده، او دا خبره تسليم ده چي مشتري د هغه عيب نقصان له بائع څخه اخيستلای سي کوم چي د بائع په قبضه کي پيدا سوی وي، نه د هغه عيب کوم چي په خپله د مشتري په قبضه کي پيدا سوی وي، نو کله چي د غلام لاس د دواړو غلاوو په وجه پرېکړل سوی دی نو مشتري ته به صرف د دوٚمره ثمن اخيستلو اختيار وي کوم چي د نيم لاس په مقابله کي راځي، او څرنګه چي د يوه لاس په مقابله

کي نصف ثمن راځي (ځکه مخکي موږ وويل چي د انسان لاس د انسان د نيم ثمن [نيم قيمت] برابر دی)، نو د نيم لاس په مقابله کي به د ثمن څلورمه حصه (ربع) راسي، نو ځکه مشتري ته به د هغه غلا په وجه کوم چي غلام د بائع په قبضه کي کړې وي د ربع الثمن د واپس اخيستلو حق او اختيار وي.

**وإن قبله البائع إلخ**: او که بائع ښه سړی وي او مقطوعُ اليد غلام قبول کړي او د هغه په واپس اخيستلو راضي سي، نو په دې صورت کي به مشتري له بائع څخه د ثمن درې څلورمي حصې واپس اخلي (يعني ۷۵۰ سره درهمه)؛ ځکه چي د انسان د لاس ثمن د انسان د نصف ثمن برابر شمارل کيږي، او د غلام لاس د دوو غلاوو په وجه پرېکړل سوی دی او مشتري ته له هغوی څخه صرف په يوې غلا کي د عيب د نقصان اخيستلو حق سته، لهذا دا نصف ثمن (يعني د لاس ثمن) به نيمول کيږي يعني دوې حصې به کيږي (چي هغه هره يوه څلورمه حصه کيږي) او له دې دوو حصو څخه به يوه حصه (کوم چي څلورمه حصه کيږي) د مشتري له ثمن څخه کمول کيږي، نو اوس به مشتري ته نصف او پاته يوه حصه (څلورمه حصه) ورکول کيږي خلاصه دا چي د ثمن درې څلورمي حصې به ورکول کيږي او يوه څلورمه حصه به نه ورکول کيږي، د هغه غلا په وجه کوم چي غلام د هغه په قبضه کي کړې وي.

## تر څو ځله خرڅېدلو وروسته د مخکني سبب په وجه د غلام د لاس پرېکېدلو حکم

وَلَوْ تَدَاوَلَتْهُ الْأَيْدِيْ او که هغه [غل غلام] لاس په لاس واخيستل سي [يعني ډېر واره خرڅ کړل سي] ثُمَّ قُطِعَ فِيْ يَدِ الْأَخِيْرِ بيا د آخري مشتري [رانيونکي] په قبضه کي د هغه لاس پرېکړل سي رَجَعَ الْبَاعَةُ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ عِنْدَهُ ۞ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به ټوله بائعين [خرڅونکي] يو پر بل رجوع کوي [مطلب دا چي هر مشتري به له خپل بائع څخه ثمن واپس اخلي] كَمَا فِي الْاِسْتِحْقَاقِ لکه د استحقاق په صورت کي چي کيږي وَعِنْدَهُمَا يَرْجِعُ الْأَخِيْرُ عَلٰى بَائِعِهٖ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به آخري مشتري پر خپل بائع رجوع کوي وَلَا يَرْجِعُ بَائِعُهُ عَلٰى بَائِعِهٖ او د هغه بائع پر خپل بائع رجوع نه سي کولای لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْعَيْبِ ځکه چي دا د عيب په درجه کي دئ وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ: وَلَمْ يَعْلَمِ الْمُشْتَرِيْ يُفِيْدُ عَلٰى مَذْهَبِهِمَا او په متن کي د ماتن رَحِمَهُ الله دا قول: "ولم يعلم المشتري" د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله پر مذهب فايده کوي لِأَنَّ الْعِلْمَ بِالْعَيْبِ رِضًا بِهٖ ځکه چي په عيب خبرېدل

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، کما ذکر في رد المحتار (ج:۴، ص:۱۰۶)، وکذا في فتح القدير (ج:۶، ص:۳۸).
[القول الراجح ج۲، ص:۳۴]

په هغه راضي کېدل دي [يعني په عيب اګاه کېدل په هغه د راضي کېدلو دليل دی] وَلَا يُفِيدُ عَلَى قَوْلِهِ فِي الصَّحِيحِ او د صحيح قول مطابق د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول [دا قيد] هيڅ فايده نه کوي لِأَنَّ الْعِلْمَ بِالِاسْتِحْقَاقِ لَا يَمْنَعُ الرُّجُوعَ ځکه چي په استحقاق خبرېدل رجوع کول [يعني د ثمن واپس اخيستل] نه منع کوي.

**اللغات**: ﴿تداولته﴾ د تفاعل له بابه د ماضي صيغه ده: لاس په لاس اخيستل (پرلپسې له يوه لاس څخه بل لاس ته تلل)، په نوبت اخيستل. ﴿باعة﴾ جمع د بائعٌ ده: خرڅونکي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که غلام د خپل مالک په قبضه کي غلا وکړي، بيا مالک هغه پر خالد خرڅ کړي او خالد هغه پر شاکر خرڅ کړي او شاکر هغه پر زاهد خرڅ کړي. بيا دآخري مشتري يعني د زاهد په قبضه کي د هغه لاس د مخکنۍ غلا په وجه پرېکړل سي کوم چي هغه د مالک (اول بائع) په قبضه کي کړې وي، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي هر يو مشتري به دا مقطوع اليد غلام خپل بائع ته واپس کوي او له هغه څخه به ټوله ثمن اخلي. يا مقطوع اليد غلام به د ځان سره راګرځوي او رجوع بالنقصان به کوي يعني له خپل بائع څخه به د عيب نقصان يعني نيم ثمن واپس اخلي، مطلب دا چي زاهد به له شاکر څخه او شاکر به له خالد څخه او خالد به يې د غلام له اول مالک څخه واپس اخلي چي د هغه په قبضه کي غلام غلا کړې ده؛ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د غلام لاس پرېکېدل د استحقاق په څېر دي. او د استحقاق حکم همدا دی چي که دآخري مشتري په قبضه کي غلام د بل چا مستحق وخېږي نو هر يوه مشتري ته دا اختيار سته چي له خپل بائع څخه ثمن واپس واخلي، نو همداسي به د لاس پرېکېدلو په صورت کي هم هر مشتري ته د دې اختيار وي چي له خپل بائع څخه ثمن واپس اخلي.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مذهب دا دی چي آخري مشتري يعني زاهد خو له خپل بائع يعني له شاکر څخه د عيب نقصان (نيم ثمن) واپس اخيستلای سي، لېکن د زاهد بائع (شاکر) له خپل بائع يعني له خالد څخه د عيب نقصان نه سي اخيستلای؛ ځکه چي د لاس پرېکېدل د صاحبينو په نېز د عيب په څېر دي. او مخکي دا قاعده تېره سوه چي که مشتري حابس للمبيع وي نو هغه ته د رجوع بالنقصان اختيار نسته (يعني له بائع څخه د عيب نقصان واپس نه سي اخيستلای) برابره ده هغه په مبيع کي په پيدا سوي عيب خبر وي او که نه وي. او که مشتري حابس للمبيع نه وي او د مبيع واپس کول هم متعذر (ناممکن) نه وي نو هغه د عيب په وجه مبيع واپس کولای سي او که د نوي (جديد)

عيب په وجه د مبيع واپس کول متعذر وي نو هغه رجوع بالنقصان کولای سي (يعني له بائع څخه د عيب نقصان واپس اخيستلای سي). نو څرنګه چي آخري مشتري يعني زاهد دا غلام نه دي خرڅ کړی نو ځکه هغه حابس للمبيع نه سو او څرنګه چي د غلام لاس د آخري مشتري په قبضه کي پرېکړل سوی دی، او د صاحبينو په نيز د لاس پرېکېدل نوی عيب (عيب حادث) دی چي د هغه په وجه د مبيع واپس کول متعذر سو، نو په دې وجه آخري مشتري له خپل بائع څخه د عيب نقصان واپس اخيستلای سي، او څرنګه چي د آخري مشتري بائع يعني شاکر او د هغه بائع يعني خالد دا غلام خرڅ کړی دی نو ځکه شاکر او د هغه بائع (خالد) دواړه حابس للمبيع سول، او حابس للمبيع له خپل بائع څخه د عيب نقصان واپس نه سي اخيستلای، نو ځکه به د آخري مشتري بائع (شاکر) ته له خپل بائع (خالد) څخه او هغه (خالد) ته له خپل بائع يعني له مالک څخه د عيب د نقصان اخيستلو حق او اختيار نه وي.

قوله في الکتاب إلخ: په دې عبارت سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په متن کي د دې قيد "ولم يعلم المشتري" (يعني د غلام عيب [غلا] مشتري ته نه د بيع په وخت کي معلوم وي او نه د قبضې په وخت کي) فايده ذکر کوي فرمايي چي دا قيد صرف د صاحبينو پر قول مفيد او په کار راتلونکی دی، لېکن د امام صاحب پر قول مفيد نه دی؛ ځکه چي د صاحبينو په نيز د غلا په وجه د غلام لاس پرېکېدل د عيب په درجه کي دي، او د عيب په وجه مشتري هغه وخت مبيع واپس کولای سي کله چي د بيع يا قبضې په وخت کي مشتري په عيب خبر (اګاه) نه وي؛ ځکه که په دې وختونو کي هغه په عيب تر اګاه کېدلو وروسته هم معامله وکړي نو د هغه خبرېدل په عيب د راضي کېدلو دليل ګرځي او هغه د رجوع بالنقصان له حق څخه محرومېږي، نو ځکه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا ضروري ده چي د رانيولو او قبضه کولو په وخت کي به مشتري د مبيع په عيب خبر نه وي.

او څرنګه چي د امام صاحب په نيز د غلا په وجه لاس پرېکېدل د استحقاق په درجه کي دي، او د استحقاق په صورت کي حکم دا دی چي که مشتري د بيع په وخت کي هم په استحقاق خبر وي (يعني په دې خبر وي چي په دې مبيع کي يوه حصه د بل چا ده يا پوره مبيع د بل چا ده) نو هم دا خبر تيا رجوع بالنقصان نه منع کوي، نو ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز که مشتري په عيب خبر وي او که نه وي په دواړو صورتونو کي هغه ته د رجوع بالنقصان حق حاصلېږي.

## كه بائع د برائت شرط ولګوي (چي زما مبيع له هر عيب څخه بري ده) او مشتري دا شرط ور سره ومني...(حكم او اختلاف)

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا وَشَرَطَ الْبَرَاءَةَ مِنْ كُلِّ عَيْبٍ فرمايي: او كه څوک غلام رانيسي او له هر عيب څخه د بري كېدلو شرط ولګوي فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَرُدَّهُ بِعَيْبٍ نو [په دې صورت كي] مشتري ته د هيڅ عيب په وجه هم د غلام واپس كولو اختيار نسته وَإِنْ لَمْ يُسَمِّ الْعُيُوبَ بِعَدَدِهَا كه څه هم بائع عيبونه په شمار نه وي ذكر كړي [يعني كه څه هم هغه نوم په نوم عيبونه شمارلي او ذكر كړي نه وي] وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ: لَا تَصِحُّ الْبَرَاءَةُ بِنَاءً عَلَى مَذْهَبِهِ أَنَّ الْإِبْرَاءَ عَنِ الْحُقُوقِ الْمَجْهُولَةِ لَا يَصِحُّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [د بائع له طرفه دا] برائت صحيح نه دي د هغه پر دې مذهب باندي په بناء كولو سره [يعني د امام شافعي دا قول د هغه پر دې مذهب مبني دی] چي له مجهوله حقوقو څخه بري كول صحيح نه دي هُوَ يَقُولُ: إِنَّ فِي الْإِبْرَاءِ مَعْنَى التَّمْلِيكِ هغه فرمايي: چي په ابراء [بري كولو] كي د تمليک [مالک جوړولو] معنیٰ سته حَتَّى يَرْتَدَّ بِالرَّدِّ تر دې چي هغه [يعني ابراء] په ردّ كولو سره ردّ كيږي وَتَمْلِيكُ الْمَجْهُولِ لَا يَصِحُّ او [څوک] د مجهول شي مالک جوړول صحيح نه دي وَلَنَا: أَنَّ الْجَهَالَةَ فِي الْإِسْقَاطِ لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ وَإِنْ كَانَ فِي ضِمْنِهِ التَّمْلِيكُ لِعَدَمِ الْحَاجَةِ إِلَى التَّسْلِيمِ او زموږ دليل دا دی: چي جهالت په ساقطولو كي نزاع ته رسول نه كوي (كه څه هم د هغه په ضمن كي تمليک سته)، ځكه چي [په ساقطولو كي] ورسپارلو ته ضرورت نسته فَلَا تَكُونُ مُفْسِدَةً نو ځكه به دا جهالت [د عقد لپاره] فاسدونكې نه وي وَيَدْخُلُ فِي هَذِهِ الْبَرَاءَةِ الْعَيْبُ الْمَوْجُودُ وَالْحَادِثُ قَبْلَ الْقَبْضِ فِي قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ ۞ او په دې برائت كي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله پر قول موجوده عيب او تر قبضې مخكې پيداكېدونكې عيب [دواړه] داخليږي وَقَالَ: مُحَمَّدٌ: لَا يَدْخُلُ فِيهِ الْحَادِثُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [تر قبضې مخكې] پيداكونكې عيب نه پكښې داخليږي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْبَرَاءَةَ تَتَنَاوَلُ الثَّابِتَ ځكه چي برائت ثابت [او موجود] شي ته شامليږي وَلِأَبِي

---

۞ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۱۰۷). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۵]

يُوسُفَ: أَنَّ الْغَرَضَ إِلْزَامُ الْعَقْدِ بِإِسْقَاطِ حَقِّهِ عَنْ صِفَةِ السَّلَامَةِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د برائت مقصود د عقد لازمول دي د سلامتيا له وصف څخه د مشتري د حق په ساقطولو سره وَذٰلِكَ بِالْبَرَاءَةِ عَنِ الْمَوْجُودِ وَالْحَادِثِ او دا مقصود له موجوده او حادث [دواړه] عيبونو څخه د بري کېدلو په ذريعه حاصليږي.

**اللغات:** ﴿لم يسمّ﴾ له تفعيل څخه د جحد صيغه ده: نومول (نوم اخيستل)، ذکر کول (بيانول). ﴿تمليک﴾ د تفعيل مصدر دی: مالک جوړول. ﴿يرتدّ﴾ د افتعال مضارع ده: ردّ کېدل (ردېدل)، واپس کېدل. ﴿إسقاط﴾ ساقطول، غورځول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک غلام خرڅ کړي او دا شرط ولګوي چي زما غلام له هرډول عيب او نقص څخه بري دی (يو ٪ ب هم پکښې نسته) او مشتري دا شرط منظور کړي، نو اوس مشتري ته د هيڅ عيب په وجه هم د غلام واپس کولو حق نسته؛ برابره ده بائع عيبونه نوم په نوم شمارلي وي، که نه وي (يعني د هر عيب نوم يې اخيستی وي، که نه وي)، همدارنګه برابره ده بائع او مشتري ته هغه عيبونه معلوم وي، که نه وي، په هر صورت کي د بائع له طرفه د برائت تر شرط لګولو وروسته که مشتري هغه قبول او منظور کړي، نو هغه ته د واپس کولو حق (حقّ الردّ) نه حاصليږي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا برائت صحيح نه دی، يعني له هر عيب څخه د بري کېدلو په شرط سره بيع فاسديږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله يو روايت دا دی چي په دې صورت کي خو بيع صحيح ده لېکن شرط باطليږي. د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول بنياد د هغه پر دې مسلک دی چي عيبونه مجهوله حقوق دي (يعني عيوب له حقوق مجهوله وو څخه دي او مجهول دي)، او له مجهوله حقوقو څخه بري کول صحيح نه دي؛ ځکه چي په برئ کولو کي د تمليک معنیٰ سته، همدا وجه که د قرض (پور) مالک خپل قرضدار (پور وړی) له قرض څخه بري کړي (يعني قرض ورمعاف کړي)، لېکن قرضدار دا برائت او معافي ردّ کړي (چي نه! زه خامخا قرض درکوم)، نو دا ردّ صحيح کيږي او قرضدار له قرض څخه نه بري کيږي، نو او ګورئ! که په ابراء (بري کولو) کي د تمليک معنیٰ نه وای نو د قرضدار ردّ به نه صحيح کېدای او د هغه قرض به معاف کېدای. معلومه سوه چي په بري کولو کي د تمليک معنیٰ سته، او د مجهول شي تمليک صحيح نه دی (يعني څوک د مجهول شي مالک جوړول صحيح نه دي)، نو ځکه به له مجهوله عيبونو څخه بري کول هم صحيح نه وي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چي بري کول د اسقاط (ساقطولو) له قبيلې څخه دي، نه د تمليک له قبيلې څخه چي د "ابراء" په لفظ سره د عَين تمليک صحيح نه دي (يعني د بري کولو په لفظ سره څوک د يو عَين شي مالک

کول صحيح نه دي)، لهذا کله چي د ابراء په لفظ سره د عَين شي مالک کول صحيح نه دي. نو معلومه سوه چي ابراء (بري کول) تمليک نه دی بلکي اسقاط دی، او جهالت په اسقاطاتو کي مُفضِي الی النزاع نه دی: ځکه جهالت هغه وخت مُفضِي الی النزاع ګرځي کله چي د شي ورسپارلو ته ضرورت وي، او څرنګه چي په اسقاط کي د ورسپارلو ضرورت نه پريوځي، نو ځکه به جهالت په اسقاط کي مُفضِي الی النزاع نه وي، او کله چي په اسقاط کي جهالت مُفضِي الی النزاع نه دی نو په هغه سره به بيع هم نه فاسديږي بلکي بيع به صحيح وي. او کله چي بيع صحيح ده نو د بائع شرط به هم صحيح وي او مشتري ته به د هيڅ عيب په وجه د واپس کولو حق نه وي.

وإن كان في ضمنه إلخ: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس "حتى يرتد بالرد" جواب ورکوي. د جواب حاصل دا دی چي ابراء اسقاط دی يعني د ابراء حقيقي مفهوم او معنیٰ اسقاط (ساقطول) دي. خو څرنګه چي ضمناً په هغه کي د تمليک معنیٰ سته، نو په دې وجه ابراء په رَدّ کولو سره رَدّ کيږي، او د دې دا مطلب نه دی چي د ابراء اصل او حقيقي مفهوم تمليک دی، بلکي په ابراء کي تمليک ضمناً ثابت دی. او پر ضمني شي قياس کول او مسئله وضع کول صحيح نه دي.

ويدخل إلخ: فرمايي چي کله بائع له هر عيب څخه د برائت شرط ولګوي نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په دې برائت کي هغه عيب هم داخليږي کوم چي د بيع په وخت کي موجود وي او هغه عيب هم پکښي داخليږي کوم چي تر بيع وروسته او له قبضه کولو څخه مخکي پيدا سوی وي. او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي کوم عيب تر بيع وروسته او له قبضه کولو څخه مخکي پيدا سوی وي، هغه په دې برائت کي نه داخليږي، بلکي د هغه عيب په وجه مشتري ته خيارِ عيب حاصليږي همدا د امام زفر، امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمُ الله مسلک دی.

د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي برائت داسي شي ته شامليږي کوم چي ثابت وي، او ثابت هغه عيب دی کوم چي د بيع په وخت کي موجود وي، نو ځکه به برائت فقط هغه عيب ته شامليږي کوم چي د بيع کولو په وخت کي موجود وي، او کوم عيب چي تر بيع وروسته او له قبضې څخه مخکي پيدا سوی وي هغه ته به نه شامليږي.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د دغه برائت مقصود دا دی چي مشتري چي کوم د صحيح سالمي مبيع حق لري هغه حق ساقط کړی سي او بيع (پر مشتري) لازمه کړل سي. او دا مقصود هغه وخت حاصليږي کله چي بائع له موجوده عيبونو څخه هم بري وي او له حادث (نوي پيدا کېدونکو) عيبونو څخه هم بري وي، نو ځکه به په برائت کي موجوده او حادث دواړه ډوله عيبونه داخليږي. فقط والله أعلم وعلمه أتم.



# بَابُ الْبَيْعِ الْفَاسِدِ

## (دا) باب د بيع فاسد (په بيان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې صاحب د کتاب بيع صحيح او د هغې متعلقات او فروعات بيان کړل، اوس په دې باب کي بيع غير صحيح او د هغې متعلقات بيانوي؛ ځرنګه چي بيع صحيح اصل ده، او بيع غير صحيح فرع ده، نو ځکه صاحب د کتاب اول د اصل بيان وکړی. اوس تر هغه وروسته فرع بيانوي. بيا په دې باب کي د بيع غير صحيح ټوله اقسام يعني باطل، فاسد، موقوف او مکروه ټوله بيان سوي دي، خو ځرنګه چي د بيع باطل، بيع مکروه او بيع موقوف په مقابله کي بيع فاسد د کثرت اسباب په وجه کثيرُ الوقوع ده (يعني سببونه يې زيات دي چي د هغه په وجه زياته پيښيږي)، نو ځکه يې دا باب د "بيع فاسد" په نوم سره نومولی دی.

**بيع باطل**: هغه بيع ته وايي کوم چي د ذات او وصف دواړو په اعتبار سره مشروع نه وي، لکه د مردار سوي حيوان او د معدوم شي بيع.

**بيع فاسد**: هغه بيع ته وايي کوم چي د ذات (اصل) په اعتبار سره خو مشروع وي، لېکن د وصف په اعتبار سره مشروع نه وي، لکه د غيرِ مقدورُ التسليم شي بيع (يعني داسي شی خرڅول چي خرڅونکی د هغه په ورسپارلو باندي قدرت نه لري).

**بيع مکروه**: هغه بيع ته وايي کوم چي د ذات او وصف په اعتبار سره خو مشروع وي. لېکن د يو منهي عنهٗ فعل د اتصال په وجه په هغه کي کراهت پيدا سي. لکه د جمعې تر اذان وروسته خرڅول او رانيول.

**بيع موقوف**: هغه بيع ته وايي کوم چي د ذات او وصف دواړو په اعتبار سره صحيح وي. لېکن د هغه نفاذ (نافذېدل) له عاقدَينو څخه بغير پر بل (دريم) کس موقوف وي. لکه د فضولي بيع يا د غلام بيع. ښکاره ده چي دا دوې بيع (يعني بيع مکروه او بيع موقوف) د وصف او ذات دواړو په اعتبار سره صحيح دي. لېکن په اوله بيع کي د منهي عنهٗ په وجه کراهت سته، او دويمه بيع له عاقدَينو څخه بغير د يو بل کس پر اجازه موقوف ده.

د بيع فاسد او بيع باطل په مينځ کي فرق دا دی چي بيع باطل په هيڅ حال کي ملکيت نه فايده کوي، نه تر قبضې مخکي او نه تر قبضې وروسته (يعني په بيع فاسد کي بائع د ثمن نه مالک کيږي او نه مشتري د مبيع مالک کيږي د قبضې او غيرِ قبضې په دواړو حالتونو کي. ځکه چي هغه داسي ده لکه نه بيع). او بيع فاسد که څه هم قبل القبض ملکيت نه فايده کوي. لېکن تر قبضې وروسته د ملکيت فايده ور کوي.

## د بيع باطل او بيع فاسد بيان

وَإِذَا كَانَ أَحَدُ الْعِوَضَيْنِ أَوْ كِلَاهُمَا مُحَرَّمًا او كله چي له دواړو عوضونو څخه يو عوض يا دواړه حرام وي فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسده ده كَالْبَيْعِ بِالْمَيْتَةِ وَالدَّمِ وَالْخِنْزِيرِ وَالْخَمْرِ لکه د مردار سوي حيوان، ويني، خنزير او د شرابو په عوض کي بيع کول وَكَذَا إِذَا كَانَ غَيْرَ مَمْلُوكٍ او همدارنګه کله چي [له دواړو عوضونو څخه يو عوض يا دواړه] غير مملوک وي كَالْحُرِّ لکه آزاد سړی [يعني لکه د آزاد کس په عوض کي بيع کول] قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: هٰذِهِ فُصُولٌ جَمَعَهَا صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي امام قدوري رَحِمَهُ الله دا ټوله صورتونه [خلط ملط] سره جمع کړي دي وَفِيهَا تَفْصِيلٌ نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ حال دا چي په هغوی کي تفصيل سته چي هغه به موږ انشاء الله بيان کړو فَنَقُولُ: الْبَيْعُ بِالْمَيْتَةِ وَالدَّمِ بَاطِلٌ نو موږ وايو: چي د مردار سوي حيوان او ويني په عوض کي بيع کول باطل دي وَكَذَا بِالْحُرِّ او همدارنګه د آزاد په عوض کي هم [بيع باطله ده] لِانْعِدَامِ رُكْنِ الْبَيْعِ ځکه چي [په دوی کي] د بيع رکن معدوم دی وَهُوَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ او هغه مال په مال سره بدلول دي [يعني د بيع رکن مال د مال په عوض کي ورکول دي] فَإِنَّ هٰذِهِ الْأَشْيَاءَ لَا تُعَدُّ مَالًا عِنْدَ أَحَدٍ ځکه چي دا شيان د هيچا په نېز هم مال نه شمارل کيږي وَالْبَيْعُ بِالْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ فَاسِدٌ او د شرابو او خنزير په عوض کي بيع کول فاسد دي لِوُجُودِ حَقِيقَةِ الْبَيْعِ وَهُوَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ ځکه چي [په دوی کي] د بيع حقيقت يعني مبادلة المال بالمال موجود دی فَإِنَّهُ مَالٌ عِنْدَ الْبَعْضِ ځکه چي شراب او خنزير د ځينو خلکو په نېز مال دي.

**اللغات**: ﴿كلاهما﴾ هغوی دواړه، ﴿ميتة﴾ هغه حيوان کوم چي په خپل طبعي مرګ مړ (مردار) سي (يعني له شرعي ذبح کولو څخه بغير مړ سي، چي هغه زموږ د ځينو په اصطلاح مرداره يا مردار وايي)، ﴿مبادلة﴾ د مفاعلې مصدر دی: يو په بل سره بدلول، ادل بدل کول.

**تشريح**: امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي که عوضين يعني ثمن او مبيع دواړه حرام وي، يا په دوی کي يو حرام وي، نو بيع فاسديږي، لکه د مردار سوي حيوان يا د ويني يا د خنزير او شرابو په عوض کي خرڅول او رانيول (يعني دا شيان ثمن ګرځول [د ثمن په توګه ټاکل] يا مبيع ګرځول).

صاحب د هدايې فرمايي چې امام قدوري رَحِمَهُ الله د اختصار لپاره دا ټوله صورتونه بيع فاسد ګرځولي دي، لېکن په هغوی کي ځيني بيع فاسد دي او ځيني بيع باطل دی. تفصيل يې دا دی که څوک يو شی رانيسي او مردار حيوان يا وينه يا آزاد کس ثمن وګرځوي (يعني ديو شي په بدله کي دا شيان د ثمن په توګه ورکړي)، نو په دې صورتونو کي بيع باطله ده (يعني ملکيت نه فايده کوي)؛ ځکه چې بيع مبادلة المال بالمال ته وي؛ او مردار حيوان، وينه او آزاد کس د هيڅ آسماني دين والا په نېز مال نه شمارل کيږي، لهذا کله چې دا مال نه دي، نو په دوی کي د بيع رکن (مبادلة المال بالمال) معدوم سو. او د بيع وجود پر رکن موقوف دی (ځکه چې د هر شي وجود پر رکن موقوف وي)، نو ځکه په دې صورتونو کي بيع باطليږي.

والبيع بالخمر إلخ: فرمايي که څوک د خنزير يا شرابو په عوض کي کپړه رانيسي نو په دې صورت کي بيع فاسديږي لېکن باطليږي نه؛ ځکه دلته د بيع رکن او حقيقت موجود دی (يعني مبادلة المال بالمال)؛ ځکه چې شراب او خنزير د ذميانو په نېز مال دي، لهذا دا بيع خو باطليږي نه، خو څرنګه چې مسلمان کس د خنزير او شرابو پر ورکولو او اخيستلو قادر نه دی، نو د غير مقدور التسليم شي د ثمن جوړولو په وجه دا بيع فاسديږي.

د بيع باطل او بيع فاسد ثمره په دې صورت کي ښکاره کيږي چې که مبيع غلام وي او مسلمان سړی هغه ديو مردار په عوض کي رانيسي او آزادې کړي نو په دې صورت کي بيع باطليږي او غلام نه آزاديږي، لېکن که مسلمان د شرابو په عوض کي غلام رانيسي او پر هغه قبضه وکړي او آزادې کړي، نو په دې صورت کي غلام آزاديږي، خو څرنګه چې شراب د مسلمان په حق کي مال نه دي، نو ځکه به هغه مسلمان سړی بائع ته د غلام قيمت ورکوي (ځکه چې په داسي وخت کي پر مسلمان د شي قيمت لازميږي).

## بيع باطل او بيع فاسد ملکيت ثابتوي، که نه؟

وَالْبَاطِلُ لَا يُفِيْدُ مِلْكَ التَّصَرُّفِ او بيع باطل د تصرف کولو د ملکيت فايده نه ورکوي وَلَوْهَلَكَ الْمَبِيْعُ فِيْ يَدِ الْمُشْتَرِيْ فِيهِ او که په بيع باطل کي مبيع د مشتري په قبضه کي هلاکه سي يَكُونُ أَمَانَةً عِنْدَ بَعْضِ الْمَشَايِخِ نو د ځينو مشائخو په نېز به دا مبيع امانت وي [يعني ځيني مشائخ دا امانت شماري. نو داسي به ګڼل کيږي لکه امانت چې هلاک سو] لِأَنَّ الْعَقْدَ غَيْرُ مُعْتَبَرٍ ځکه چې دا عقد [بيع] معتبر نه دی فَبَقِيَ الْقَبْضُ بِإِذْنِ الْمَالِكِ لهذا صرف د مالک په اجازه سره قبضه کول باقي پاته سو وَعِنْدَ الْبَعْضِ يَكُونُ مَضْمُونًا او د ځينو په نېز به مضمون وي [يعني د ځينو په نېز د دې مبيع ضمان واجبيږي] لِأَنَّهُ لَا يَكُونُ

أَدْنٰى حَالًا مِنَ الْمَقْبُوْضِ عَلٰى سَوْمِ الشِّرَاءِ ځکه د دې مبيع حالت له هغه مبيع څخه کم نه دی کوم چې د نرخ معلومولو لپاره قبضه کړې سوې [يعني له بائع څخه اخيستل سوې] وي وَقِيْلَ: الْأَوَّلُ قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَالثَّانِيْ قَوْلُهُمَا ۞ او ويل سوي دي: چې اول قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله او دويم قول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دی كَمَا فِيْ بَيْعِ أُمِّ الْوَلَدِ وَالْمُدَبَّرِ لکه څرنګه چې دام ولد او مدبر په بيع کې [ددې حضراتو دوه اقوال دي] عَلٰى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى چې هغه به موږ انشاء الله [څه وروسته] بيان کړو وَالْفَاسِدُ يُفِيْدُ الْمِلْكَ عِنْدَ اتِّصَالِ الْقَبْضِ بِهِ او بيع فاسد د قبضې د اتصال په وخت کې د ملکيت فايده ورکوي وَيَكُوْنُ الْمَبِيْعُ مَضْمُوْنًا فِيْ يَدِ الْمُشْتَرِيْ فِيْهِ او په بيع فاسد کې مبيع د مشتري په قبضه کې مضمون کيږي وَفِيْهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَسَنُبَيِّنُهُ بَعْدَ هٰذَا إِنْ شَاءَ اللهُ او هغه به موږ له دې څخه وروسته انشاء الله ژر بيان کړو وَكَذَا بَيْعُ الْمَيْتَةِ وَالدَّمِ وَالْحُرِّ بَاطِلٌ او همداسې د مردار سوي حيوان، وينې او آزاد کس بيع باطله ده لِأَنَّهَا لَيْسَتْ أَمْوَالًا ځکه چې دا شيان مال نه دي فَلَا تَكُوْنُ مَحَلًّا لِلْبَيْعِ نو ځکه د بيع محل به هم نه وي.

**اللغات**: ﴿سوم الشراء﴾ "سَوْم" د نصر د باب مصدر دی، معنیٰ يې ده: نرخ او قيمت ټاکل (چې زه يې په دومره رانيسم)، نرخ معلومول. "شراء" رانيولو ته وايي، "مقبوض علیٰ سوم الشراء" هغه شي ته وايي کوم چې د قيمت ټاکلو او معلومولو لپاره له بائع څخه واخيستل سي (يعني بائع ووايي چې دا شی زه په لس درهمه خرڅوم، او مشتري ورته ووايي چې زه يې وړم، قيمت يې معلوموم، که مي خوښ سو نو هغه رانيسم، کنې نه يې رانيسم، د داسې شي په هلاکېدلو سره پر مشتري ضمان واجبيږي)، په لنډه توګه چې مقبوض علی سوم الشراء هغه شي ته وايي کوم چې د رانيولو په نيت له بائع (دوکاندار) څخه واخيستل سي.

**تشريح**: صاحب د هدايې په دې عبارت کې د بيع باطل او فاسد په مينځ کې فرق بيان کړی دی، کوم چې موږ د باب په شروع کې هم ذکر کړی، فرمايي چې په بيع باطل کې مشتري د هيڅ شي نه مالک کيږي، نه د مبيع مالک کيږي او نه په مبيع کې د تصرف کولو مالک کيږي. او که چيري په بيع

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال صاحب رد المحتار: وصحح في الذخيرة ضمانه: قيل وعليه الفتوى وهو الصحيح على ما ذكره السرخسي...إلخ (رد المحتار ج:۴، ص:۱۱۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۷]

باطل کي مبيع د مشتري په قبضه کي هلاکه سي نو ځيني مشائخ هغه امانت شماري (يعني هغه داسي ده لکه امانت چي هلاک سي) يعني پر مشتري د مبيع ضمان نه واجبيږي، نه د مبيع ثمن پر واجبيږي او نه د هغې قيمت پر واجبيږي؛ ځکه چي دا عقد باطل دی، او عقد باطل غير معتبر دی او پر مبيع د مشتري قبضه د مالک په اجازت سره ده، نو ځکه به مبيع امانت وي، او د امانت په هلاکېدلو سره ضمان نه واجبيږي، نو ځکه به دلته پر مشتري ضمان نه واجبيږي. او د ځينو مشائخو په نيز پر مشتري ضمان واجبيږي؛ د هغو دليل دا دی چي که څه هم دلته عقد غير معتبر دی، لېکن بيا هم پر مبيع خو د مشتري قبضه سته، او دا قبضه له هغه قبضې څخه کمه نه ده کوم چي په بيع علیٰ سوم الشراء کي کيږي بلکي تر هغه زياته قوي ده، يعني که يو سړی مثلاً دوکاندار ته ووايي چي دا شی زه رانيسم خو پر دې شرط چي يو واريې کور ته ورم، که د هغو خوښ سو نو بيا يې د لسو درهمو په عوض کي اخلم، او دوکاندار په لاس شی ورکړي (يعني سړی قبضه پر وکړي. [داسي شي ته مقبوض علی سوم الشراء وايي])، خو په لاره کي هغه هلاک سي، نو پر دې اخيستونکي سړي د هغه شي ضمان لازميږي، نو څرنګه چي د مقبوض علی سوم الشراء په هلاکېدلو سره ضمان واجبيږي، همداسي به د مقبوض في الباطل په هلاکېدلو سره هم ضمان واجبيږي؛ ځکه چي دا په حالت کي له مقبوض علی سوم الشراء څخه زيات قوي دی، ځکه په بيع باطل کي خو د خرڅولو او رانيولو صورت موجود وي، لېکن په مقبوض علی سوم الشراء کي صرف د رانيولو وعده وي.

وقيل إلخ: فرمايي د محمد بن مسلمة بلخي او داسي نورو حضراتو رايه دا ده چي اول قول يعني د مبيع د امانت کېدلو قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، او دويم قول يعني د مضمون کېدلو قول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دی، لکه څرنګه چي د أم ولد او مدبر په بيع کي دي. يعني که څوک أم ولد او مدبر خرڅ کړي او بيا هغوی د مشتري په قبضه کي هلاک سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر مشتري ضمان نه واجبيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز واجبيږي، او د دې تفصيل به انشاء وروسته بيان سي.

والفاسد إلخ: او بيع فاسد په قبضه کولو سره د ملکيت فايده ورکوي، يعني په بيع فاسد کي مشتري هغه وخت د مبيع مالک کيږي کله چي (د بائع په اجازه سره) پر مبيع قبضه وکړي، او که چيري په بيع فاسد کي مبيع د مشتري په قبضه کي هلاکه سي نو پر مشتري د هغې ضمان واجبيږي يعني که مبيع مثلي شی وي نو پر مشتري د هغه مثل واجبيږي او که قيمت والا وي نو د هغه قيمت پر واجبيږي. صاحب د هدايې فرمايي چي په بيع فاسد کي د مبيع د مضمون کېدلو په هکله د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی، او د دې تفصيل به هم انشاء الله وروسته بيان سي.

وكذا بيع إلخ: فرمايي څرنګه چې په هغه صورت کې بيع باطليږي کله چې مردار حيوان، وينه او آزاد کس ثمن وګرځول سي (يعني د ثمن په توګه ورکول سي)، همداسې که دا شيان مبيع وګرځول سي، نو هم بيع باطليږي؛ ځکه چې دا شيان مال نه دي نو ځکه دوی محل د بيع (يعني مبيع) هم کېدای نه سي، لهذا کله چې دلته مبيع مال نه دی، نو د بيع رکن (مبادلة المال بالمال) موجود نه سو، او د رکن په نشتوالي سره بيع باطليږي، نو ځکه به دلته بيع باطليږي.

## د شرابو او خنزير د بيع مختلف صورتونه

وَأَمَّا بَيْعُ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ إِنْ كَانَ قُوبِلَ بِالدَّيْنِ كَالدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ او کوم چې د شراب او خنزير د بيع مسئله ده نو که چيرې د هغوی په مقابله کې دَين وي لکه دراهم او دنانير فَالْبَيْعُ بَاطِلٌ نو بيع باطله ده وَإِنْ كَانَ قُوبِلَ بِعَيْنٍ او که د هغوی په مقابله کې عَين وي [لکه کپړه يا داسې بل شی] فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسد ده حَتَّى يَمْلِكَ مَا يُقَابِلُهُ تر دې چې کوم شی د شراب يا خنزير په مقابله کې وي هغه مملوک کيږي [يعني مشتري د هغه مالک کيږي] وَإِنْ كَانَ لَا يَمْلِكُ عَيْنَ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ که څه هم شراب او خنزير په خپله نه مملوک کيږي [يعني دويم عاقد د هغه نه مالک کيږي] وَوَجْهُ الْفَرْقِ: أَنَّ الْخَمْرَ مَالٌ او وجه د فرق دا ده: چې شراب مال دي وَكَذَا الْخِنْزِيرُ مَالٌ عِنْدَ أَهْلِ الذِّمَّةِ او همدارنګه خنزير د ذميانو په نيز مال دي إِلَّا أَنَّهُ غَيْرُ مُتَقَوِّمٍ لِمَا أَنَّ الشَّرْعَ أَمَرَ بِإِهَانَتِهِ وَتَرْكِ إِعْزَازِهِ لېکن هغه [شرعا] غير متقوّم دي ځکه چې شريعت د هغه [يعني د خنزير او شرابو] د سپکاوي کولو او د هغوی د عزت [احترام] پرېښوولو حکم کړی دی وَفِي تَمَلُّكِهِ بِالْعَقْدِ مَقْصُودًا إِعْزَازٌ لَهُ حال دا چې بالقصد د عقد په ذريعه د هغوی په مالک جوړېدلو کې د هغوی عزت دی وَهَذَا لِأَنَّهُ مَتَى اشْتَرَاهُمَا بِالدَّرَاهِمِ او دا حکم ځکه دی چې کله څوک هغوی د دراهمو په عوض کې رانيسي فَالدَّرَاهِمُ غَيْرُ مَقْصُودَةٍ نو دراهم مقصود نه وي لِكَوْنِهَا وَسِيلَةً ځکه چې دراهم صرف [د هغوی] د حاصلولو ذريعه ده لِمَا أَنَّهَا تَجِبُ فِي الذِّمَّةِ همدا وجه ده چې دراهم پر ذمه واجبيږي وَإِنَّمَا الْمَقْصُودُ الْخَمْرُ او مقصود [صرف] شراب وي فَسَقَطَ التَّقَوُّمُ أَصْلًا لهذا [د هغوی] متقوّم کېدل بالکل ساقط سو [يعني هغوی د مسلمان په حق کې قيمت والا پاته نه سو. نو ځکه به بيع باطليږي] بِخِلَافِ مَا إِذَا اشْتَرَى الثَّوْبَ بِالْخَمْرِ په خلاف د هغه صورت کله چې د

شرابو په عوض کي کپړه رانيسي لِأَنَّ الْمُشْتَرِيَ لِلثَّوْبِ إِنَّمَا يَقْصِدُ تَمَلُّكَ الثَّوْبِ بِالْخَمْرِ ځکه چې د کپړې رانيونکی د شرابو په عوض کي [ځان] د کپړې مالک کېدل غواړي وَفِيهِ إِعْزَازٌ لِلثَّوْبِ دُونَ الْخَمْرِ او په دې کې د کپړې عزت دی، نه د شرابو. فَبَقِيَ ذِكْرُ الْخَمْرِ مُعْتَبَرًا فِي تَمَلُّكِ الثَّوْبِ لَا فِي حَقِّ نَفْسِ الْخَمْرِ نو د شرابو ذکر د کپړې د مالک کېدلو په باره کي معتبر سو او په خپله د شرابو په حق کي معتبر نه سو حَتَّى فَسَدَتِ التَّسْمِيَةُ وَوَجَبَتْ قِيمَةُ الثَّوْبِ دُونَ الْخَمْرِ نو ځکه د شرابو نوم اخيستل [يعني شراب د ثمن په توګه ټاکل] به فاسد وي او د کپړې قيمت به واجب وي، نه د شرابو وَكَذَا إِذَا بَاعَ الْخَمْرَ بِالثَّوْبِ او همدارنګه کله چي شراب د کپړې په عوض کي خرڅ کړي [يا يې رانيسي] لِأَنَّهُ يُعْتَبَرُ شِرَاءُ الثَّوْبِ بِالْخَمْرِ ځکه چي دلته به د شرابو په عوض کي د کپړې رانيول معتبر وي لِكَوْنِهِ مُقَايَضَةً ځکه چي دا بيع مقايضه ده.

**اللغات**: ﴿قوبل﴾ د مفاعلې له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده: يو شی د بل شي سره مقابله کول، پر تله کول، (يو شی د بل شي په مقابله کي راتلل)، ﴿إهانة﴾ د افعال مصدر دی: سپکاوی کول، ﴿تملک﴾ د تفعّل مصدر دی: مالک جوړېدل، مالک کېدل. ﴿مقايضة﴾ له "قاض" څخه مشتق دی، بيع العرض بالعرض ته وايي (يعني د سامان په بدله کي سامان ورکول). مثلاً دواړو طرفونو ته غنم وي يا بل شی وي، درهم يا دينار نه وي نو دې ته "بيع مقايضه" وايي، په دې بيع کي د هر طرف شی مبيع هم جوړېدای سي او ثمن هم جوړېدای سي.

**تشريح**: مخکي تر دې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د مردار حيوان، وينې او آزاد کس بيان وکړ، او په دې عبارت کي د شرابو او خنزير حکم بيانوي، فرمايي چي د شراب او خنزير دوه صورتونه دي: ① يو دا چي هغوی مبيع وګرځول سي او درهم او دنانير د هغوی ثمن وټاکل سي، ② دويم دا چي هغوی مبيع وګرځول سي، او عَين شی يعني کپړه يا بل شی د هغوی ثمن وټاکل سي يا د دې برعکس وسي، په اول صورت کي بيع باطليږي. او په دويم صورت کي بيع فاسديږي: يعني په اول صورت کي نه مشتري په مبيع (شراب او خنزير) کي د تصرف مالک کيږي او نه بائع په ثمن کي د تصرف مالک کيږي. او په دويم صورت کي د کپړې مشتري د قيمت په عوض کي د هغې مالک کيږي لېکن دويم عاقد د مبيع نه مالک کيږي. په دې دوو صورتونو کي د فرق وجه دا ده چي په اول صورت کي يعني

کله چې شراب او خنزير مبيع وي نو په دې صورت کې د بيع په جائز کولو د هغوی عزت او اکرام لازميږي، حال دا چې په شريعت کې له دې څخه د ځان ساتلو حکم سوی دی: الله تعالیٰ فرمايي: ﴿إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ...إلخ﴾ [سورة المائدة: ۹۰]، لهذا د شريعت د دې حکم او تاکيد په خاطر پر هر مسلمان له دې شيانو څخه اجتناب کول (ځان ساتل) لازم دي؛ لېکن کله چې هغوی مبيع وي (او په بيع کې صرف مبيع مقصود وي، نه ثمن)، نو ځکه بالقصد (دمقصود په توګه) به د خنزير او شرابو تملک (مالک جوړېدل) لازم سي او په دې توګه به د هغوی عزت او اکرام وسي، او د يو مسلمان لپاره دا نه ښايي چې د شريعت د منع کړل سوو شيانو احترام او عزت وکړي، نو ځکه د مسلمان په حق کې د هغوی تقوّم (متقوّم کېدل) بالکل ساقط سو، او څرنګه چې شراب او خنزير په دې صورت کې مبيع ده، نو خاص د مبيع تقوّم ساقط سو يعني په خپله مبيع غير متقوّم سوه، او تاسي ته معلومه ده چې د غير متقوّم شي بيع باطليږي، نو ځکه به په دې صورت کې هم بيع باطليږي.

او په دويم صورت کې يعني کله چې د خنزير او شرابو په عوض کې کپړه يا داسي بل شی ثمن وي، نو په دې صورت کې بيع فاسديږي او باطليږي نه (لکه څه مخکې چې موږ وويل)؛ د دې وجه دا ده چې که کپړه يا بل شی په ثمن کې وټاکل سي نو دا "بيع مقايضه" ده، يعني بيع العرض بالعرض (د سامان په عوض کې سامان خرڅول)، او په بيع مقايضه کې هر عوض مبيع هم کېدای سي او ثمن هم کېدای سي (يعني په بيع مقايضه کې له دواړو عوضونو څخه هر عوض مبيع او ثمن دواړه جوړېدای سي)، لهذا کله چې هر عوض ثمن هم کېدای سي او مبيع هم، نو کپړه به مبيع ګرځول کيږي او شراب يا خنزير به ثمن ګرځول کيږي (ځکه اُصول دا دی: "أن أمور المسلمين تحمل على السداد والصلاح حتى يظهر غيره" يعني تر څو چې ممکنه وي د مسلمانانو اُمور به پر سمون او صحيح والي حمل کيږي [او له بطلان څخه به ساتل کيږي])، نو ځکه به دلته شراب يا خنزير مبيع نه ګرځول کيږي، کنې دا به د سموالي او صلاح خلاف وي او بيع به باطله سي.

لنډه دا چې دلته کپړه مبيع سوه او تاسي ته معلومه ده چې په بيع کې مبيع مقصود وي. نه ثمن. ځکه ثمن خو د مبيع حاصلولو ذريعه او وسيله وي، او کله چې دلته کپړه مبيع ده، نو بالقصد د کپړې په مالک جوړېدلو کې به د هغې عزت او اکرام وسي، نه د خنزير يا شرابو، او کله چې دلته د خنزير يا شرابو عزت او اکرام نه کيږي نو دا به د شريعت د حکم "فَاجْتَنِبُوْهُ" منافي هم نه وي، نو ځکه به بيع هم نه باطليږي.

لېکن څرنګه چې په دې صورت کې شراب ثمن دي، او د مسلمان لپاره د هغه ورکول او اخيستل ممنوع دي، نو ځکه پر مشتري به د شرابو پر ځای د هغه کپړې قيمت (بازاري نرخ) واجب وي.

وكذا إلخ: او که څوک داسې ووايي چې زه شراب د کپړې په عوض کې خرڅوم يا ووايي چې زه شراب د کپړې په عوض کې رانيسم، نو په دې صورت کې هم بيع فاسدېږي او باطلېږي نه؛ ځکه که څه هم دلته شراب مبيع ده، لېکن څرنګه چې دا بيع مقايضه ده او په بيع مقايضه کې عوضين ثمن او مبيع دواړه کېدای سي، او په شرابو کې د ثمن جوړېدلو جهت راجح دی، نو ځکه به د فساد طرف ته د بطلان پر طرف ترجيح ورکول کيږي (يعني شراب به ثمن ګرځول کيږي)، د دې لپاره چې د مسلمان تصرف له بطلان څخه وساتل سي، کوم چې د پورتني اُصول حاصل دی.

## د اُم ولد او مدبر د بيع بيان

قَالَ: وَبَيْعُ أُمِّ الْوَلَدِ وَالْمُدَبَّرِ وَالْمُكَاتَبِ فَاسِدٌ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او د ام ولد، مدبر او مکاتب بيع فاسده ده وَمَعْنَاهُ بَاطِلٌ او د دې معنیٰ دا ده چې باطله ده لِأَنَّ اسْتِحْقَاقَ الْعِتْقِ قَدْ ثَبَتَ لِأُمِّ الْوَلَدِ ځکه چې د اُم ولد لپاره د آزادېدلو استحقاق ثابت سو لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَام [1]: أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: چې هغه [ماريه قبطيه] خپل بچي آزاد کړه وَسَبَبُ الْحُرِّيَّةِ انْعَقَدَ فِي الْمُدَبَّرِ فِي الْحَالِ او د مدبر په حق کې د آزادېدلو سبب في الحاله منعقد سو لِبُطْلَانِ الْأَهْلِيَّةِ بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه چې تر مرګ وروسته د مالک [د آزادولو] اهليت باطلېږي وَالْمُكَاتَبُ اسْتَحَقَّ يَدًا عَلَى نَفْسِهِ لَازِمَةً فِي حَقِّ الْمَوْلَى او مکاتب پر خپل ذات د داسې تصرف مستحق سو کوم چې د مالک په حق کې لازم دی وَلَوْ ثَبَتَ الْمِلْكُ بِالْبَيْعِ [نو اوس] که چېرې د بيع په وجه د مشتري لپاره ملکيت ثابت سي لَبَطَلَ ذٰلِكَ كُلُّهُ نو دا ټول به باطل سي فَلَا يَجُوزُ نو ځکه به بيع جائز نه وي وَلَوْ رَضِيَ الْمُكَاتَبُ بِالْبَيْعِ او که مکاتب په خپل بيع راضي سي فَفِيهِ رِوَايَتَانِ نو په دې کې دوه رُوايتونه دي وَالْأَظْهَرُ الْجَوَازُ او زيات ظاهر روايت د جواز [جائز کېدلو] دی وَالْمُرَادُ الْمُدَبَّرُ الْمُطْلَقُ دُونَ الْمُقَيَّدِ او [له مدبر څخه] مراد مطلق مدبر دی، نه مقيد مدبر وَفِي الْمُطْلَقِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په مطلق مدبر کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في سننه في كتاب الأحكام، ابواب العتق، باب امهات الأولاد، حديث رقم: ۲۵۱۶.

دی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْعَتَاقِ او هغه مونږ په كتاب العتاق كي ذكر كړی دی.

**اللغات**: ﴿أم الولد﴾ هغه مينځي ته وايي چي خپل مالك (مولیٰ) جماع ور سره كړې وي او د جماع په نتيجه كي له هغې څخه بچی پيدا سوی وي، ﴿مُدبّر﴾ هغه غلام ته وايي چي مالك ور ته ويلي وي: زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې!؛ مدبر پر دوه قسمه دی: ① مطلق مدبر، ② مقيد مدبر، مطلق هغه مدبر ته وايي چي مالك له يو شرط څخه بغير د هغه آزادي پر خپل مرګ معقله كړې وي، يعني مالك مطلقاً داسي ويلي وي: ته زما تر مرګ وروسته آزاد يې!، او مقيد هغه مدبر ته وايي چي مالك د هغه آزادي پر يو مخصوص مرګ يا پر مخصوصه واقعه معلق كړی وي، مثلاً داسي يې ويلي وي: كه زه په فلاني سفر كي مړ سوم نو ته آزاد يې!، يا كه زه په دې مرض كي مړ سوم نو ته آزاد يې!.

﴿مكاتب﴾ هغه غلام ته وايي چي خپل مالك ور ته ووايي: ته ما ته دومره پيسې راوړه! (مثلاً پنځه سوه درهمه راوړه!) نو ته آزاد يې!، او غلام دا معامله منظور كړي، نو دغه غلام ته مكاتب وايي او دې معاملې ته كتابت وايي، ﴿أعتقها﴾ د افعال ماضي ده: آزاد ول، ﴿الحرية﴾ آزادي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د أم ولد، مدبر او مكاتب بيع فاسده ده؛ فرمايي چي له فاسد څخه مراد باطل دي، يعني د دې كسانو بيع باطله ده، صاحب د هدايې ځكه د فاسد تفسير په باطل سره كړی دی چي له فاسد ويلو څخه دا وهم كيدی چي په قبضه كولو سره په دې كسانو كي د مشتري ملكيت ثابتيږي، حالانكي داسي نه ده بلكي د دوی بيع بالكل د ملكيت فايده نه وركوي كه څه هم مشتري قبضه پر وكړي، او كومه بيع چي بالكل د ملكيت فايده نه وركوي دا د بيع د باطلوالي علامت دی (يعني هغه بيع باطل ده)، نو ځكه صاحب د هدايې د فاسد تفسير په باطل سره وكړی چي د دې كسانو بيع باطله ده؛ او د بطلان دليل دا دی چي د أُم ولد لپاره د آزادېدلو استحقاق ثابت سو، يعني أُم ولد د آزادۍ مستحق كيږي؛ ځكه كله چي د رسول الله ﷺ مينځي "ماريه قبطيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا" بچی (ابراهيم) وزېږوی، نو نبي ﷺ ته وويل سوه: "أَلا تُعْتِقُهَا" (ايا ته هغه نه آزادوې)، نو نبي كريم ﷺ وفرمايل: "أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا" (هغه خپل بچي د آزادۍ مستحقه كړه)، د حديث حقيقي معنیٰ كه څه هم دا ده چي: هغه خپل بچي آزاده كړه، لېكن دا معنیٰ يې بالاتفاق مراد نه ده، بلكي مجازي معنیٰ يې مراد ده چي: هغه خپل بچي د آزادۍ مستحقه كړه، لنده دا چي دا ثابته سوه چي أُم ولد د آزادۍ مستحق كيږي.

او د مدبر په حق كي في الحاله د آزادۍ (حريت) سبب ثابت دی؛ ځكه كه في الحاله سبب ثابت نه سي نو بيا دوه صورتونه دي يا خو به مطلقاً ثابت نه وي يا به د مالك تر مرګ وروسته ثابتيږي، اول

صورت خو باطل دی ځکه چي په دې صورت کي د یو عاقل او بالغ کس د کلام مهمل کېدل او لغو کېدل لازمیږي، حالانکي اعمال یعني پر یو معنیٰ حمل کول اولیٰ دي په نسبت د مهمل کولو او لغو کولو، او دویم صورت ځکه باطل دی چي تر مرګ وروسته د اهلیت د باطلېدلو حالت دی (یعني تر مرګ وروسته د مالک د آزادولو اهلیت ختمیږي، ځکه چي مرګ د اهلیت منافي دی)، نو که د مالک تر مرګ وروسته د مدبر د آزادی سبب ثابت ومنل سي نو تر مرګ وروسته به هم د (مالک د آزادولو) اهلیت پاتېدل لازم سي، حال دا چي مرګ د اهلیت منافي دی، نو ثابته سوه چي د مدبر په حق کي في الحاله د آزادی سبب ثابت دی. او مکاتب په خپل ذات کي د تصرف کولو مستحق دی، که څه هم دا تصرف د مالک په حق کي لازم دی او د مکاتب په حق کي غیر لازم دی، د مالک په حق کي ځکه لازم دی چي مالک د هغه له رضا څخه بغیر کتابت نه سي فسخ کولای لېکن مکاتب یې فسخ کولای سي (په هغه وخت کي کله چي مکاتب د پیسو له ورکولو څخه عاجز سي)، نو اوس که د مذکوره کسانو د بیع په وجه د مشتري لپاره ملکیت ثابت سي، یعني مشتري د ام ولد، مدبر او مکاتب مالک سي، نو د ام ولد د آزادی مستحقوالی او د مدبر د آزادی سبب او د مکاتب په خپل ذات کي د تصرف کولو حق دا ټوله به باطل سي؛ ځکه چي د ام ولد د آزادی د مستحقوالي او د مشتري د ملکیت ثابتېدلو په مینځ کي منافات دی همدارنګه د مدبر په حق کي د آزادی د سبب او د مشتري د ملکیت په مینځ کي او د مکاتب د تصرف کولو د حق او د مشتري د ملکیت په مینځ کي منافات دی، او قاعده دا ده چي د "أَحَدُ الْمُتَنَافِيَيْن" له ثابتېدلو څخه وروسته دویم یو منتفي کیږي (یعني که دوه شیان یو د بل سره منافي وي او په هغوی کي یو ثابت سي نو دویم یو منتفي کیږي)، لهذا که د مشتري لپاره ملکیت ثابت سي نو دا د آزادی مستحقوالي او د آزادی سبب او د تصرف حق به ټوله باطل سي، حال دا چي دا درې سره شیان باطل نه دي بلکي ثابت دي لکه څه مخکي چي په دلائلو سره معلومه سوه، او کله چي دا درې سره شیان ثابت دي نو د مشتري لپاره به ملکیت نه ثابتیږي؛ ځکه دوه متنافي شیان یو د بل سره جمع کېدل محال او ناممکن دي، او کله چي د مشتري لپاره ملکیت ثابت نه سو نو معلومه سوه چي د دوی بیع مفید الملک نه ده (یعني د ملکیت فایده نه ورکوي)، او کومه بیع چي مفید الملک نه وي هغه باطله ده، نو ځکه به د دې مذکوره کسانو بیع باطله وي.

**ولو رضي إلخ:** فرمایي که مکاتب په خپله پر خپل بیع راضي سي، نو په دې باره کي دوه روایتونه دي. (۱) یو روایت د عدم جواز دی (۲) او دویم روایت د جواز دی، او همدا دویم رویت زیات ظاهر او راجح دی؛ ځکه چي عدم جواز د مکاتب د حق په وجه وو، لېکن کله چي هغه په خپل رضا سره خپل حق ساقط کړی نو کتابت فسخ سو او بیع جائز سوه.

والمراد إلخ: فرمايي چې په متن کې له مدبر څخه مراد مطلق مدبر دی يعنې د مطلق مدبر بيع باطله ده؛ ځکه چې د مقيد مدبر بيع بالاتفاق جائز ده. لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله د مطلق مدبر بيع هم جائز ګرځولې ده؛ د هغه دليل دا دی چې د مطلق مدبر آزادي د مالک پر مرګ معلقه سوې ده، او آزادي پر يو شرط معلق کول (مثلاً داسي ويل: إن دخلتَ الدّار فأنت حُر [که ته کور ته داخل سوې نو آزاد يې!]) د بيع او هبې لپاره مانع نه دي بلکي تر دې وروسته هم د غلام خرڅول او هبه کول جائز دي؛ نو ځکه به د مطلق مدبر خرڅول او هبه کول هم جائز وي.

زموږ دليل دا حديث دی: "المدبر لايُباع ولا يُوهب ولا يُورث" (يعني مدبر غلام به نه خرڅول کيږي او نه به هبه کول کيږي او نه به په ميراث کې ورکول کيږي [يعني ميراث هم نه پکښې جاري کيږي])، په دې حديث کې نبي کريم ﷺ د مدبر يادونه (تذکره) مطلق کړې ده، او قاعده دا ده چې "المطلق إذا أطلق يُراد به الفرد الكامل" او کامل صرف مطلق مدبر دی، نو ځکه به صرف هغه مراد وي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله قياس به قابل قبول نه وي.

او شوافع چې کوم دا خبره کوي چې له نبي کريم ﷺ څخه د مدبر خرڅول ثابت دي، نو د دې جواب دا دی چې له هغه څخه مراد مقيد مدبر وو، نه مطلق مدبر، او د مقيد بيع خو موږ هم جائز ګڼو. د تفصيل لپاره په کتاب العتاق کې باب التدبير ته رجوع وکړئ!.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

قال: وَإِنْ مَاتَتْ أُمُّ الْوَلَدِ أَوِ الْمُدَبَّرُ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي فرمايي: او که أم ولد يا مدبر د مشتري په قبضه کې مړه سي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه ضمان نسته وَقَالَا ۞: عَلَيْهِ قِيمَتُهُمَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې پر هغه د دواړو قيمت واجب دی وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْهُ او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه هم يو روايت دی لَهُمَا: أَنَّهُ مَقْبُوضٌ بِجِهَةِ الْبَيْعِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې هغه [يعني په مدبر او أم ولد کې هر يو] بجهت البيع مقبوض دی [يعني پر مدبر او أم ولد د بيع په جهت سره قبضه سوې ده] فَيَكُونُ مَضْمُونًا عَلَيْهِ كَسَائِرِ الْأَمْوَالِ لهذا د نورو مالونو په شېر

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، قال العلامة ابن نجيم رَحِمَهُ الله: واختار شمس الائمة السرخسي رَحِمَهُ الله وغيره الضمان بالمثل أو بالقيمة... وفي شرح الجامع الصغير لقاضي خان: ومشائخنا صححوا هذه الرواية (البحر الرائق ج:۶، ص:۷۲).
[القول الراجح ج:۲، ص:۳۸]

به د هغه هم ضمان واجب وي وَهٰذَا لِأَنَّ الْمُدَبَّرَ وَأُمَّ الْوَلَدِ يَدْخُلَانِ تَحْتَ الْبَيْعِ او دا [مقبوض بجهت البيع] ځکه دي چي مدبر او اُم ولد دواړه تر بيع لاندي راځي حَتّٰى يَمْلِكَ مَا يُضَمُّ إِلَيْهِمَا فِي الْبَيْعِ همدا وجه ده چي کوم شی [غلام] د هغوی سره په بيع کي يو ځای کړل سي هغه [د مشتري] مملوک کيږي [يعني مشتري د هغه مالک کيږي] بِخِلَافِ الْمُكَاتَبِ لِأَنَّهُ فِي يَدِ نَفْسِهِ په خلاف د مکاتب: ځکه چي هغه د خپل ځان په قبضه کي دی [يعني د هغه ذات د هغه په قبضه کي دی] فَلَا يَتَحَقَّقُ فِي حَقِّهِ الْقَبْضُ نو ځکه د هغه په حق کي [د مشتري] قبضه نه سي ثابتېدای وَهٰذَا الضَّمَانُ بِهِ حالانکي دا ضمان د قبضه په وجه دی [يعني دلته د قبضه په وجه ضمان واجبيږي] وَلَهُ: أَنَّ جِهَةَ الْبَيْعِ إِنَّمَا تَلْحَقُ بِحَقِيقَتِهِ فِي مَحَلٍّ يَقْبَلُ الْحَقِيقَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د بيع جهت د بيع د حقيقت سره په داسي محل کي لاحق کيږي کوم چي حقيقت قبلوي وَهُمَا لَا يَقْبَلَانِ حَقِيقَةَ الْبَيْعِ حالانکي دا دواړه [يعني اُم ولد او مدبر] د بيع حقيقت نه قبلوي فَصَارَا كَالْمُكَاتَبِ نو هغوی دواړه [هم] د مکاتب په شېر سول وَلَيْسَ دُخُولُهُمَا فِي الْبَيْعِ فِي حَقِّ أَنْفُسِهِمَا او په بيع کي د هغوی داخلېدل په خپله د هغوی د ذات په حق کي نه دي وَإِنَّمَا ذٰلِكَ لِيَثْبُتَ حُكْمُ الْبَيْعِ فِيمَا ضُمَّ إِلَيْهِمَا بلکي صرف په دې وجه [او د دې لپاره] دي چي په هغه شي [غلام] کي د بيع حکم ثابت سي کوم چي د هغوی سره [په بيع کي] يو ځای کړی سوی وي فَصَارَ كَمَالِ الْمُشْتَرِي لَا يَدْخُلُ فِي حُكْمِ عَقْدِهِ بِانْفِرَادِهِ نو دا [دخول] داسي سو لکه د مشتري مال چي د هغه د بيع په حکم کي تنها [يوازي] نه داخليږي وَإِنَّمَا يَثْبُتُ حُكْمُ الدُّخُولِ فِيمَا ضَمَّهُ إِلَيْهِ بلکي د دخول [داخلېدلو] حکم صرف په هغه شي [او هغه مال] کي ثابتيږي کوم چي بائع د مشتري د مال سره يو ځای کړی وي كَذَا هٰذَا نو همداسي به دا وي [يعني همداسي به دا حکم په اُم ولد او مدبر کي هم وي].

**اللغات**: ﴿يُضَمّ﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: (دوه شيان) سره يو ځای کول، (جوختول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که اُم ولد يا مُدبر د مشتري په قبضه کي مړ سي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر مشتري هيڅ ضمان نه واجبيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر مشتري د قيمت ضمان واجبيږي (يعني هغه به بائع ته د اُم ولد يا مدبر قيمت ورکوي). همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی. د هدايې له عبارت څخه دا ښکاره کيږي چي په مدبر او اُم ولد دواړو کي له امام

صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي: يو روايت د ضمان نه واجبېدلو او بل روايت د ضمان واجبېدلو، حالانكي دا غلطه ده. او صحيح دا ده چي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه صرف د مدبر په حق كي دوه روايتونه دي. يعني كه د مشتري په قبضه كي مدبر مړ سي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله يو روايت دا دی چي پر مشتري ضمان نه واجبيږي، او دويم روايت يې دا دی چي ضمان بالقيمة پر واجبيږي، او د اُم ولد په حق كي چي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه كوم روايات نقل سوي دي هغوی ټوله پر ضمان نه واجبېدلو متفق دي، يعني كه د مشتري په قبضه كي اُم ولد مړه سي نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه صرف دا روايت دی چي پر مشتري ضمان نه واجبيږي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي پر اُم ولد او مدبر د مشتري قبضه د بيع په جهت سره وي، او د بيع په جهت سره ځكه وي چي اُم ولد او مدبر دواړه په عقد بيع كي داخليږي. همدا وجه ده كه د اُم ولد او مدبر سره يو ځای بل غلام خرڅ كړی سي نو مشتري د هغه غلام مالک كيږي (او د هغه غلام چي څومره قيمت وي هغه پر مشتري لازميږي)، نو كه اُم ولد او مدبر په عقد بيع كي نه داخلېدای نو كوم غلام چي د هغوی سره يو ځای خرڅ كړی سوي وي مشتري به هيڅكله د هغه نه مالک كېدای. لكه يو څوک چي آزاد كس او غلام يو ځای سره خرڅ كړي نو بيع نه صحيح كيږي يعني مشتري د غلام نه مالک كيږي، ځكه آزاد كس (چي د هغه سره غلام خرڅ كړی سوی دی) په بيع كي نه داخليږي.

لنډه دا چي ثابته سوه چي اُم ولد او مدبر د بيع په عقد كي داخليږي. او كوم شی چي په عقد بيع كي داخليږي، پر هغه د مشتري قبضه د بيع په جهت سره (بجهت البيع) وي. او كوم شی چي بجهت البيع مقبوض وي (يعني پر كوم شي چي د بيع په جهت سره قبضه وسي) هغه مضمون كيږي، يعني د هغه د هلاكېدلو په صورت كي پر قبضه كونكي سړي د هغه ضمان واجبيږي. لكه څرنگه چي مقبوض على سوم الشراء او داسي نور مالونه هم مضمون كيږي (ځكه چي هغه بجهت البيع مضمون وي). نو ځكه موږ وايو چي كه مدبر يا اُم ولد د مشتري په قبضه كي مړه سي نو پر مشتري د هغه ضمان واجبيږي.

**بخلاف المكاتب إلخ**: دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله له طرفه د يو مقدر سوال جواب دی (كوم چي د دوی پر دليل واردېږي)، سوال دا دی چي كله اُم ولد او مدبر په عقد بيع كي د داخلېدلو په وجه مقبوض بجهة البيع دي او د دوی په مړه كېدلو سره پر مشتري ضمان واجبيږي، نو همداسي خو مكاتب هم په عقد بيع كي داخليږي همدارنگه كه د هغه سره يو ځای غلام خرڅ كړی سي نو مشتري د غلام هم مالک كيږي. لهذا پكار دا ده چي د مكاتب په مړه كېدلو سره هم پر مشتري ضمان واجب سي، حالانكي ستاسو (د صاحبينو) په نېز د مكاتب د مړه كېدلو په صورت كي پر مشتري ضمان نه واجبيږي.

د جواب حاصل دا دی چي د ضمان واجبېدلو دار ومدار په عقد بيع کي پر داخلېدلو نه دی. بلکي د مشتري پر قبضه دی. او څرنګه چي د مکاتب قبضه پر خپل ذات وي (يعني د هغه خپل ذات د هغه په قبضه کي وي)، نو ځکه پر هغه د مشتري قبضه نه سي ثابتېدای، نو په دې وجه د مکاتب د مړه کېدلو په صورت کي پر مشتري هيڅ ضمان نه واجبيږي؛ ځکه پر کوم شي چي د ضمان واجبېدلو مدار دی (يعني د مشتري قبضه) هغه دلته نسته. (شارح د أحسن الهدايې وايي چي دا جواب ما ته اطمينان نه راکوي: ځکه د اُم ولد او مدبر په حق کي چي د ضمان واجبېدلو کوم دليل بيان سو هغه ټوله د دې خبري سره متعلق دی چي هغوی په عقد بيع کي داخليږي او هغوی مقبوض بجهة البيع دي. لهذا صرف پر قبضه د ضمان واجبېدلو يا نه واجبېدلو حکم لګول بالکل زماله پوهي څخه وتلې خبره ده (أحسن الهدايه)).

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي د بيع جهت په هغه مالونو کي مُوجب د ضمان دی چي په هغوی کي د بيع جهت د حقيقت سره لاحق کېدای سي. او د بيع جهت د بيع د حقيقت (حقيقي بيع) سره په هغه مالونو کي لاحق کيږي کوم مالونه چي د بيع حقيقت قبلوي. او څرنګه چي اُم ولد او مدبر د مکاتب په څېر د بيع حقيقت نه قبلوي. نو ځکه د هغوی په حق کي د بيع جهت د حقيقة البيع سره نه سي لاحق کېدای. او کله چي د هغو په حق کي جُهت البيع د حقيقة البيع سره نه سي لاحق کېدای نو جهت البيع به مُوجب د ضمان هم نه وي. او کله چي دلته جهت البيع مُوجب د ضمان نه دی، نو ځکه موږ وايو چي که اُم ولد او مُدبر د مشتري په قبضه کي مړه سي نو پر مشتري د هغو ضمان نه واجبيږي.

وليس دخولهما في البيع إلخ: دا د صاحبينو د دليل جواب دی. د جواب حاصل دا دی چي اُم ولد او مدبر د بيع محل نه دي، نو هغوی په عقد بيع کي د خپل ذات په حق کي نه داخليږي بلکي صرف په دې وجه او د دې لپاره په بيع کي داخليږي چي کوم شی (يعني غلام) د هغوی سره يو ځای خرڅ کړی سوی وي په هغه کي د بيع حکم يعني د مشتري ملکيت ثابت سي. او داسي کېدل مستعبد او محال نه دي بلکي په شريعت کي د دې مثال سته. مثلاً که زيد خپل غلام او د خالد غلام دواړه يو ځای پر خالد خرڅ کړي نو خالد د زيد د غلام مالک کيږي (او پر هغه د زيد د غلام قيمت واجبيږي)، نو د بائع (زيد) د غلام په حق کي عقد بيع صحيح سو او د مشتري يعني د خالد غلام که څه هم په عقد بيع کي د خپل ذات په حق کي داخل نه سو. لېکن د بائع يعني د زيد په غلام کي د بيع د حکم (يعني د مشتري د ملکيت) ثابتولو لپاره په بيع کي داخل سو، همدارنګه دلته اُم ولد او مدبر که څه هم د خپل ذات په حق کي په عقد بيع کي داخل نه دي، لېکن کوم غلام چي د دوی سره يو ځای خرڅ کړی سوی دی په هغه کي د مشتري د ملکيت ثابتولو لپاره دوی په عقد بيع کي داخل دي. لهذا کله چي اُم ولد او مدبر د

خپل ذات په حق کي په بيع کي داخل نه دي نو پر دوی به د مشتري قبضه بجهت البيع هم نه وي، او کله چي دوی بجهت البيع مقبوض نه سوه بلکي هسي د مالک په اجازه سره مقبوض سول نو د دوی د مړه کېدلو په صورت کي به پر مشتري ضمان هم نه واجبيږي؛ ځکه چي ضمان د مقبوض بجهت البيع په صورت کي واجبيږي.

## د غير مملوک شي بيع

قال: وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ السَّمَكِ قَبْلَ أَنْ يُصْطَادَ فرمايي: او له ښکارولو څخه مخکي د ماهي بيع جائز نه ده لِأَنَّهُ بَاعَ مَا لَا يَمْلِكُهُ ځکه چي بائع داسي شی خرڅ کړی چي دئ د هغه مالک نه دی وَلَا فِي حَظِيرَةٍ إِذَا كَانَ لَا يُؤْخَذُ إِلَّا بِصَيْدٍ او په بند [او حوض] کي هم د ماهي بيع جائز نه ده، کله چي له ښکار څخه بغير د هغه نيول ممکن نه وي لِأَنَّهُ غَيْرُ مَقْدُورِ التَّسْلِيمِ ځکه چي [د هغه] ورسپارل [د بائع] په قدرت کي نه دي وَمَعْنَاهُ: إِذَا أَخَذَهُ ثُمَّ أَلْقَاهُ فِيهَا او د دې مطلب دا دی: چي کله بائع هغه [ماهيان] ونيسي او په حظيره [بند] کي يې واچوي وَلَوْ كَانَ يُؤْخَذُ مِنْ غَيْرِ حِيلَةٍ او که له څه حيلې څخه بغير ماهيان نيول کېدای سي جَازَ نو بيع جائز ده إِلَّا إِذَا اجْتَمَعَتْ فِيهَا بِأَنْفُسِهَا وَلَمْ يَسُدَّ عَلَيْهَا الْمَدْخَلَ مګر دا چي ماهيان په خپله په حظيره [بند] کي جمع سي او بائع د داخلېدلو لاره بنده نه کړي [نو بيا د هغوی بيع جائز نه ده] لِعَدَمِ الْمِلْكِ د ملکيت د نشتوالي په وجه [يعني ځکه چي په دې صورت کي بائع د هغوی مالک نه دی] قال: وَلَا بَيْعُ الطَّيْرِ فِي الْهَوَاءِ فرمايي: او نه په هوا کي د مرغه بيع جائز ده لِأَنَّهُ غَيْرُ مَمْلُوكٍ قَبْلَ الْأَخْذِ ځکه چي هغه تر نيولو مخکي غير مملوک دی [يعني بائع د هغه مالک نه دی] وَكَذَا لَوْ أَرْسَلَهُ مِنْ يَدِهِ او همدارنګه کله چي بائع هغه له خپل لاس څخه ايله کړي لِأَنَّهُ غَيْرُ مَقْدُورِ التَّسْلِيمِ ځکه چي [په دې صورت کي د هغه] ورسپارل [د بائع] په قدرت کي نه دي.

**اللغات**: ﴿سمك﴾ ماهی (کب)، ﴿يُصطاد﴾ د افتعال له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: ښکارول (ښکار کول). ﴿حظيرة﴾ د ماهيانو د ساتلو کوچنی حوض او تالاب، بند. تفصيلي معنی به يې په تشريح کي ذکر سي. ﴿صيد﴾ د ضرب مصدر دی: ښکارول. ﴿لم يسدّ﴾ د نصر له بابه د جحد صيغه ده: بندول. ﴿أرسل﴾ د افعال ماضي ده: پرېښوول، ايله کول.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوې دي. د هغوی له تشريح څخه مخکې تاسې دا په ياد لرئ! چې نه د غير مملوک شي بيع صحيح ده او نه د غير مقدورُ التسليم. يعني انسان چې د کوم شي مالک نه وي هغه هم نه سي خرڅولای او د کوم شي پر ورسپارلو چې قدرت نه لري هغه هم نه سي خرڅولای.

د اولې مسئلې حاصل دا دی که يو څوک د درياب يا د يو غټ حوض ماهيان له ښکارولو څخه مخکې خرڅ کړي نو دا بيع جائز نه ده؛ ځکه چې د بيع د جواز لپاره دا ضروري دي چې مبيع به د بائع په ملکيت کې وي. او د درياب او داسې نورو ماهيان د هيچا په ملکيت کې نه وي. او هر څوک هغه نيولای او په خپل ملکيت کې يې راوستلای سي. نو ځکه دا د غير مملوک شي بيع سوه. او د غير مملوک شي بيع جائز نه ده. نو ځکه به دا بيع هم جائز نه وي.

**ولا في حظيرة إلخ:** حظيره هغه ځای ته وايي کوم چې د څارويو د اوسېدلو لپاره شاوخوا لرګي پر راګرځول سوي او تيار سوی وي. دلته له حظيره څخه مراد هغه بند، کډې يا حوض دی چې په هغه کې ماهيان بندي (مقيد) کړل سي. صورت د مسئلې دا دی که يو څوک له درياب څخه ماهيان ونيسي او په يو بند (حظيره) کې يې واچوي يا په درياب کې يو بند او د حوض په څېر ځای جوړ کړي او په هغه کې ماهيان راوګرځوي بيا هغوی خرڅ کړي. نو د دې دوه صورتونه دي: که حظيره کوچنۍ وي او له څه تکلف او حيلې څخه بغير په هغه کې د ماهيانو نيول ممکن وي. نو بيع جائز او صحيح ده؛ ځکه چې دلته بائع د ماهيانو مالک هم دی او د هغوی پر ورسپارلو قادر هم دی (يعني ماهيان مملوک هم دي او مقدورُ التسليم هم دي).

لېکن که حظيره غټه وي او له تکلف او حيلې څخه بغير د ماهيانو نيول ناممکن وي، نو په دې صورت کې بيع جائز نه ده؛ ځکه که څه هم بائع په دې صورت کې د هغه ماهيانو مالک دی، لېکن د حظيره د غټوالي په وجه هغه د ماهيانو پر ورسپارلو قادر نه دی. او تاسو ته معلومه ده چې د غير مقدورُ التسليم شي بيع صحيح نه ده. نو ځکه په دې صورت کې د هغوی بيع نه صحيح کيږي.

**ومعناه إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چې د حظيره په صورت کې د بيع د جواز او عدم جواز مسئله په هغه صورت کې ده کله چې بائع په خپله له درياب څخه ماهيان نيولي وي او په حظيره کې يې اچولي وي. لېکن که په دې کې د بائع د عمل هيڅ دخل نه وي (يعني بائع په حظيره کې ماهيان نه وي اچولي) بلکې ماهيان په خپله په هغه کې جمع سوي وي او بائع د هغه لاره هم بنده کړې نه وي، نو څرنګه چې په دې صورت کې بائع د هغه ماهيانو مالک نه دی، نو ځکه د هغوی بيع نه صحيح کيږي.

**قال: ولا بيع الطير إلخ:** د دې حاصل دا دی چې که مرغه په هواء کې الوتی وي، نو د هغه بيع (خرڅول) هم نه صحيح کيږي، ځکه چې په دې حالت کې هغه غير مملوک دی. همدارنګه که څوک مرغه

ونيسي لېکن بيرته يې د لاس څخه ايله کړي او بيا يې خرڅ کړي، نو هم د هغه بيع نه صحيح کيږي. ځکه په دې صورت کي که څه هم بائع د مرغه مالک دی، لېکن د هغه پر ورسپارلو قادر نه دی. او د غير مقدورُ التسليم شي بيع نه صحيح کيږي.

## د حمل او نتاج د بيع حکم (اشرف)

قال: وَلَا بَيْعُ الْحَمْلِ وَلَا النِّتَاجِ فرمايي: او نه د حمل بيع جائز ده او نه د حمل، حمل لِنَهْيِ النَّبِيِّ ﷺ عَنْ بَيْعِ الْحَبَلِ وَحَبَلِ الْحَبَلَةِ [1] ځکه نبي کريم ﷺ د حمل او د حمل د حمل له بيع څخه منع کړې ده وَلِأَنَّ فِيهِ غَرَرًا او په دې وجه هم [جائز نه ده] چي په دې کي دوکه ده وَلَا اللَّبَنُ فِي الضَّرْعِ او نه په غولانځه کي د شيدو بيع جائز ده لِلْغَرَرِ د دوکې په وجه [يعني په دې کي هم دوکه راځي] فَعَسَاهُ انْتِفَاخٌ ځکه کېداى سي چي غولانځه [فقط] پړسېدلې وي وَلِأَنَّهُ يُنَازَعُ فِي كَيْفِيَّةِ الْحَلْبِ او په دې وجه هم چي د لوښلو په کيفيت کي به جنګ [او جنجال] وسي وَرُبَّمَا يَزْدَادُ فَيَخْتَلِطُ الْمَبِيعُ بِغَيْرِهِ او زياتره وخت [په غولانځه کي] شيدې زياتيږي [يعني نورې شيدې پکښي پيدا کيږي] نو مبيع به د غير مبيع سره ګډه سي.

**اللغات:** ﴿نِتَاج﴾ د حمل حمل (د بچي بچی)، ﴿غرر﴾ دوکه، فريب، چم (چل)، ﴿ضرع﴾ غولانځه، ﴿انتفاخ﴾ د افتعال مصدر دی: پړسېدل، ﴿حلب﴾ له نصر او ضرب دواړو څخه مصدر دی: لوښل، ﴿يختلط﴾ د افتعال مضارع ده: (يو شی د بل شي سره) ګډېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د څاروي په نس کي د موجود حمل خرڅول او رانيول، همدارنګه د حمل، حمل (نتاج) خرڅول او رانيول دواړه ناجائز دي (مثلاً بائع ووايي چي د دغه بزې په نس کي چي کوم حمل دی هغه زه پر تا په زر روپۍ خرڅوم. يا داسي ورته ووايي چي د دې بزې په نس کي که چيري ماده [مؤنث] بچی وي نو هغه ماده بچی چي کله غټ سي او په نس کي يې حمل پيدا سي زه هغه په دومره پيسو پر تا خرڅوم او مشتري دا قبول کړي. لکه څرنګه چي د جاهليت په زمانه کي داسي بيع رواج وه. نو فرمايي چي دا بيع ناجائز ده): ځکه نبي کريم ﷺ د حمل او د حمل د حمل له بيع څخه منع کړې ده. په صحيحينو کي له ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه روايت دی: "أنّ النبيّ ﷺ نهى عن بيع حبل الحبالة"، او عقلي دليل دا دی چي د حمل او داسي نورو په بيع کي دوکه راځي؛ ځکه ځيني واخت د څاروي نس هسي

---

[1] تخريج: أخرجه مالک في الموطأ، باب ما لا يجوز من بيع الحيوان، صفحه رقم: ۵۹۲.

پړسېدلې ښکاري (يعني په نس کې يې صرف باد وي يا څاروی ډېر چاغ وي) او له دننه څخه يې نس خالي وي. نو په دې صورت کې صرف د بائع فايده ده چې هغه به په جنګ او جنجال سره خپلې پيسې واخلي. لېکن د مشتري په حق کې دا فرېب او دوکه ده. او نبي کريم ﷺ له دوکې څخه منع کړې ده.

## ﴿په غولانځه کې د شيدو د بيع حکم﴾

قال: ولا اللبن في الضرع إلخ: د دې حاصل دا دی چې د څاروي په غولانځه کې د موجوده شيدو خرڅول هم ناجائز دي؛ صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د دې لپاره درې دليلونه ذکر کړي دي: ①... اول دليل دا دی چې په دې بيع کې دوکه راځي؛ ځکه کېدای سي چې غولانځه د باد په وجه پړسېدلې وي. او مشتري به پر هغه د شيدو خيال کوي، حالانکې هغه شيدې نه دي بلکې باد دی. او د فرېب او دوکې له بيع څخه نبي کريم ﷺ منع کړې ده. نو ځکه د غولانځې د شيدو بيع ناجائز ده.

②... دويم دليل دا دی چې د لوښلو په کيفيت کې به اختلاف او نزاع واقع سي. مشتري به غواړي چې ټوله شيدې ولوښي او يو څاڅکی (قطره) هم نه پرېږدي، او د بائع خواهش به دا وي چې مشتري څه شيدې په غولانځه کې پرېږدي او په پوره توګه غولانځه نه ونستېږي. نو په دې توګه به جنجال او نزاع واقع سي. او په مُفضي الى النزاع صورت کې هم بيع ناجائز ده.

③... درېيم دليل دا دی چې شيدې په غولانځه کې په څاڅکې، څاڅکې سره پيدا کېږي او جمع کېږي، لهذا د شيدو د خرڅولو او د هغوی د لوښلو په دوران کې به هم څه نا څه شيدې پيدا سي، او تر خرڅولو وروسته چې کومې شيدې په غولانځه کې پيدا سي هغه غيرِ مبيع دي او د بائع په ملکيت کې دي. او کومې شيدې چې د خرڅولو په وخت کې په غولانځه کې موجوده وي هغه مبيع دي او د مشتري په ملکيت کې دي. او شيدې سره جلا کول ناممکن دي، لهذا په دې بيع کې به مبيع او غير مبيع داسې سره ګډ سي چې يو له بل څخه به يې جلا کول ناممکن وي. او مبيع د غيرِ مبيع سره داسې ګډېدل چې د هغوی جلا کول ناممکن وي بيع باطلوي. نو په دې وجه هم دا بيع ناجائز ده.

## د څاروي پر شا د اوړي د بيع حکم

قال: وَلَا الصُّوفُ عَلَى ظَهْرِ الْغَنَمِ فرمايي: او نه د پسه پر شا د وړي بيع جائز ده لِأَنَّهُ مِنْ أَوْصَافِ الْحَيَوَانِ ځکه چې وړی د حيوان له اوصافو څخه دي وَلِأَنَّهُ يَنْبُتُ مِنْ أَسْفَلَ او په دې وجه هم چې وړی لاندې طرف څخه راشنه کېږي فَيَخْتَلِطُ الْمَبِيعُ بِغَيْرِهِ نو مبيع به د غيرِ مبيع سره ګډه سي بِخِلَافِ الْقَوَائِمِ په خلاف د درختي د ښاخونو لِأَنَّهَا تَزِيدُ مِنْ أَعْلَى ځکه چې هغه د لوړ طرف څخه غټېږي

وَبِخِلَافِ الْقَصِيْلِ او په خلاف د خسيلو لِأَنَّهُ يُمْكِنُ قَلْعُهُ ځکه چې هغه له بېخه کښل ممکن دي وَالْقَطْعُ فِي الصُّوفِ مُتَعَيِّنٌ او په وړۍ کې پرېکول متعين دي فَيَقَعُ التَّنَازُعُ فِيْ مَوْضِعِ الْقَطْعِ نو ځکه د پرېکولو په ځای کې به جنګ [او اختلاف] واقع سي وَقَدْ صَحَّ أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ نَهٰى [1] عَنْ بَيْعِ الصُّوفِ عَلٰى ظَهْرِ الْغَنَمِ وَعَنْ لَبَنٍ فِيْ ضَرْعٍ وَسَمْنٍ فِيْ لَبَنٍ او په صحيح توګه دا ثابت دي [يعني په صحيح روايت کې دي] چې نبي کريم ﷺ د پُسه پر شا دوړۍ له بيع څخه او په غولانځه کې د شيدو له بيع څخه او په شيدو کې د کوچې له بيع څخه منع کړې ده. وَهُوَ حُجَّةٌ عَلٰى أَبِيْ يُوسُفَ فِيْ هٰذَا الصُّوفِ او دا حديث د دغه وړۍ په هکله د امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللهُ په خلاف حجت دی حَيْثُ جَوَّزَ بَيْعَهُ فِيْمَا يُرْوٰى عَنْهُ ځکه امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د وړۍ بيع جائز ګرځولې ده په يوه روايت کې کوم چې له هغه څخه روايت سوی [نقل سوی] دی.

**اللغات:** ﴿صوف﴾ وړۍ، ﴿قوائم﴾ جمع د قائمةٌ ده: مراد ځني د درختي ښاخونه دي، ﴿قصيل﴾ خسيل، د څارويو لپاره د شنو اوربشو او غنمو رېبل سوې برخه (يعني د اُوربشو او غنمو کښت چې اُوم او شين [ناپوخ] وي او وږي يې راوتلي نه وي، که هغوی هغسې شنه اومه پرېکړل سي نو هغوی ته قصيل [خسيل] وايي). ﴿سمن﴾ کوچې، لاسي غوړي (له ويلي کړل سوو کوچيو څخه ترلاسه کړل سوي غوړي چې په عامه اصطلاح لاسي غوړي ورته وايي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د پُسه، بزې او داسې نورو پر شا چې کوم وړۍ او ورېښته وي د هغوی تنها خرڅول جائز نه دي؛ ځکه چې تر پرېکولو مخکې هغوی د حيوان له اوصافو څخه يو وصف وي، او وصف د موصوف تابع وي، او تاسي ته معلومه ده چې له موصوف او متبوع څخه بغير د تابع هيڅ حيثيت نسته، نو ځکه له څاروي څخه بغير يوازې وړۍ خرڅول جائز نه دي، دويم دليل دا دی چې وړۍ د لاندې طرف څخه راشنه کېږي او غټېږي، او د دې دليل دا دی چې که پُسه په رنګ ولړل سي يعني د هغه وړۍ په رنګ ورنګول سي او څو ورځې پرېښوول سي نو د وړۍ پورتنۍ حصه به رنګداره پاته وي او د وړۍ بېخ به بې رنګه وي، له دې څخه معلومه سوه چې وړۍ د لاندې طرف څخه راشنه کېږي، لهذا د وړۍ تر خرڅولو وروسته او د هغوی تر پرېکولو مخکې چې په وړۍ کې کومه لږ غوندې اضافه راسي هغه غير مبيع سوه، نو دلته مَبيع او غيرِ مبيع داسې سره ګډ سوه چې د هغوی جلا کول ناممکن دي، او کله چې مبيع د غيرِ مبيع سره داسې ګډ سي نو بيع باطلېږي، نو ځکه د پُسه او داسې نورو پر شا د وړۍ خرڅول ناجائز او باطل دي.

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في سننه، كتاب البيوع، باب ما جاء في النهي عن بيع الصوف، حديث رقم: ۱۰۸۵۷.

بخلاف القوائم إلخ: لېکن پر درخته چې کوم ښاخونه موجود وي د هغوی خرڅول جائز دي: ځکه چې د درختي ښاخونه د لوړ طرف څخه غځيږي، نه د لاندې طرف څخه. ځکه که د درختي پر ښاخ تار غوټه کړل سي او څو ورځي وروسته وکتل سي نو تار به خاص پر هغه فاصله وي پر کومه فاصله چې هغه د غوټه کولو په ورځ وو او ښاخ به مخته تللی وي. له دې څخه معلومه سوه چې د درختي ښاخونه د لوړ طرف څخه غځيږي، او د ښاخونو لوړه او پورتنۍ حصه د مشتري ملکيت ده. لهذا اوس چې کومه اضافه په هغوی کې راځي هغه د مشتري په ملکيت کې راځي، نو ځکه په دې صورت کې د مبيع سره د غير مبيع ګډېدل نه لازميږي، او کله چې اختلاط او ګډون نه راځي، نو بيع به هم نه باطليږي، ځکه چې بيع د مبيع او غيرِ مبيع د اختلاط په وخت کې باطليږي.

وبخلاف القصيل إلخ: همدارنګه د خسيلو بيع هم جائز ده؛ که څه هم خسيل او شين (نا رسېدلی) کښت د وړی په څېر دی. خو د هغه بيع ځکه جائز ده چې خسيل او شين کښت له بېخه کښل ممکن دي (يعني که د بائع او مشتري په مينځ کې نزاع واقع سي نو د مشتري لپاره خسيل له بېخه کښل ممکن دي. ځکه چې خسيل له بېخ څخه د مشتري دی)، او وړی له بېخه نه سي کښل کېدای بلکې په هغه کې پرېکول مُتعيّن دي، نو د پرېکولو په ځای کې به اختلاف او نزاع واقع سي، مشتري به غواړي چې وړی خاص په بېخ کې پرېکړي او بائع به غواړي چې څه لوړې پرېکړي، او مُفضي الی النزاع صورت بيع فاسدوي، نو ځکه د پُسه پر شا د وړی بيع ناجائز ده، او د خسيلو بيع جائز ده.

وقد صح إلخ: له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې د پُسه پر شا د وړی بيع جائز ده؛ د هغه دليل دا دی چې وړی متقوم، مُنتَفع به او مقدورُ التسليم مال دی، او کوم شی چې متقوم او مقدورُ التسليم وي د هغه بيع جائز وي، نو ځکه د پُسه پر شا د وړی بيع جائز ده؛ لېکن په عبارت کې ذکر سوی حديث د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی.

## په بام کې د تير (شاتير) او په کپړه کې د يوه ګز د بيع حکم

قال: وَجِذْعٍ فِيْ سَقْفٍ وَذِرَاعٍ مِنْ ثَوْبٍ او د تير [شاتير] بيع په بام کې او د کپړې د يوه ګز بيع ناجائز ده ذَكَرَا الْقَطْعَ أَوْ لَمْ يَذْكُرَاهُ برابره ده بائع او مشتري [د کپړې / د پرېکولو / ځای] ذکر کړی وي او که نه وي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ التَّسْلِيمُ إِلَّا بِضَرَرٍ ځکه چې له نقصان څخه بغير د هغه ورسپارل ممکن نه دي بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ مِنْ نُقْرَةِ فِضَّةٍ په خلاف د هغه صورت کله چې د سپينو زرو له ټوټې څخه

لس درهمه سپين زر رانيسي لِأَنَّهُ لَا ضَرَرَ فِي تَبْعِيضِهِ ځکه چي د سپينو زرو د ټوټې په ټوکړه کولو او ماتولو اکي هيڅ نقصان نسته وَلَوْلَمْ يَكُنْ مُعَيَّنًا او كه اتيريا گزا مُعين نه وي لَا يَجُوزُ نو هم بيع جائز نه ده لِمَا ذَكَرْنَا وَلِلْجَهَالَةِ أَيْضًا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ اوس ا ذکر کړی او ا د مبيع ا د مجهول والي په وجه هم وَلَوْقَطَعَ الْبَائِعُ الذِّرَاعَ أَوْ قَلَعَ الْجِذْعَ قَبْلَ أَنْ يَفْسَخَ الْمُشْتَرِيْ او که د مشتري تر فسخ کولو مخکي بائع گز پرېکړي يا تير وکاږي يَعُودُ صَحِيحًا نو بيع [بيرته] صحيح راګرځي لِزَوَالِ الْمُفْسِدِ ځکه چي فاسدونکی شی زائل سو بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ النَّوٰى فِي التَّمَرِ أَوِ الْبَذْرَ فِي الْبِطِّيخِ په خلاف د هغه صورت کله چي په خرما کي موجوده مندکي [تاکی] خرڅي کړي، يا په خټکي کي موجود تخم [زوني] خرڅي کړي حَيْثُ لَا يَكُونُ صَحِيحًا نو دا بيع نه صحيح کيږي وَإِنْ شَقَّهُمَا وَأَخْرَجَ الْمَبِيْعَ که څه هم بائع هغوی دوه ځايه کړيَ او مبيع [مندکي او زوني] ځني راوباسي لِأَنَّ فِي وُجُودِهِمَا احْتِمَالًا ځکه چي د هغوی په موجودېدلو کي احتمال دی [چي آيا په خرما او خټکي کي مندکي او زوني سته، که نه] أَمَّا الْجِذْعُ فَعَيْنٌ مَوْجُودٌ او کوم چي تير [شاتير] دی نو هغه مُعيّن او موجود دی.

**اللغات**: ﴿جذع﴾ د خرما د درختي تنه، تير، شاتير، ﴿ذراع﴾ يو گز، ﴿تبعيض﴾ د تفعيل مصدر دی: حصه، حصه کول، ټوکړه، ټوکړه کول، ﴿نوٰی﴾ د خرما مندکه، تاکی، ﴿تمر﴾ خرما، کجوره، ﴿بطيخ﴾ خټکی، هندوانه، پر دواړو يې اطلاق کيږي (المعجم العربي الميسر)، ﴿شقّ﴾ د نصر ماضي ده: څيرل، دوه ځايه کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي هغه تير کوم چي په بام (چت) کي لګېدلی وي د هغه خرڅول جائز نه دي، همدارنګه له داسي کپړې څخه صرف يو گز خرڅول چي هغې ته پرېکول نقصان کوي جائز نه دي، برابره ده بائع او مشتري د پرېکولو ځای بيان کړی وي، که نه وي، ځکه چي له نقصان او ضرر څخه بغير (د بائع لپاره) د کپړې ورسپارل ممکن نه دي (ځکه چي دا يو گز کپړه د بائع د کپړې سره مبنتې ده نو د هغه په پرېکولو او راجلا کولو کي خامخا د بائع مال [کپړې] ته نقصان رسيږي)، او نقصان برداشت کول (زغمل) د عقد له مقتضا څخه نه دي، نو ځکه دا بيع ناجائز ده.

بخلاف ما إذا باع إلخ: لېکن که يو څوک د سپينو زرو له ټوټې څخه د لسو درهمو په اندازه سپين زر رانيسي نو دا جائز دي؛ ځکه چي ټوکړه. ټوکړه کول او يوه حصه را جلا کول د سپينو زرو ټوټې ته هيڅ نقصان نه رسوي.

ولو لم يكن إلخ: او که په بام کي تېر او په کپړه کي ګز مُتعيّن نه وي نو بيا بيع په دوو (۲) وجهو سره ناجائز ده؛ يو خو په پورتنۍ وجه سره چي له نقصان او ضرر څخه بغير د مبيع ورسپارل ممکن نه دي. دويم ځکه چي په دې صورت کي مبيع مجهوله ده، او د مبيع د مجهول والي په صورت کي بيع فاسديږي، نو ځکه په دې صورت کي بيع ناجائز ده.

ولو قطع إلخ: او که بائع غير مُتعيّن تير يا په کپړه کي غير مُتعيّن ګز خرڅ کړي، او بيا بائع بيداري وکړي او د مشتري له طرفه د بيع تر فسخ کېدلو مخکي هغه تير له بام څخه راوکاږي، يا ګز له کپړې څخه پريکړي، نو دا بيع که څه هم اولاً فاسده سوې وه، خو د بائع د دغه فعل په وجه هغه بيرته صحيح راو ګرځېده؛ ځکه چي مفسد (يعني د مبيع مجهول والی) ختم سو او د جواز مانع زائل سو. او قاعده دا ده چي "إذا زال المانع عاد الممنوع"، نو ځکه په دې صورت کي بيع صحيح او جائز ده.

بخلاف ما إذا باع النوى إلخ: ها! که څوک په خرما کي دننه مندکي (تاکۍ) يا په ختکي او هندوانه کي دننه زوڼي خرڅي کړي نو دا بيع صحيح نه ده؛ که څه هم د مشتري له طرفه د بيع تر فسخ کېدلو مخکي بائع هغه مندکي او زوڼي را وکاږي؛ ځکه چي دلته مندکي او زوڼي د خرڅولو په وخت کي له نظر څخه غائب وه، نو ځکه د هغوی په وجود کي احتمال وو چي شايد په ختکي او خرما کي بالکل زوڼي او مندکي موجوده نه وي يا موجوده خو به وي لېکن هغوی به خراب وي، نو په دې صورت کي ګواکي بيع له مبيع څخه بغير وسوه، او بلا مبيع بيع باطليږي، نو ځکه په خرما کي دننه د مندکو بيع او په ختکي او هندوانې کي دننه د زوڼو بيع باطله ده، او بيع باطل په صحيح کولو سره هم نه صحيح کيږي، نو ځکه موږ وويل چي که بائع مندکي يا زوڼي هم را وکاږي، نو هم بيع نه صحيح کيږي. پاته سو په بام کي تير او په کپړه کي يو ګز، نو هغه خو په مشاهده سره معلوم او موجود وي، نو ځکه د هغوی بيع نه باطليږي بلکي د غير مقدور التسليم کېدلو په وجه صرف فاسديږي، او څرنګه چي د مُفسد په ختمېدلو او زائلېدلو څخه سره فساد ختميږي، نو ځکه د تير او يوه ګز بيع د مُفسد تر ختمېدلو وروسته صحيح کيږي.

## په جال کي د نيول کېدونکي ښکار د بيع حکم

قال: وَضَرْبَةِ الْقَانِصِ او يو وار د جال غورځولو بيع جائز نه ده وَهُوَ مَا يَخْرُجُ مِنَ الصَّيْدِ بِضَرْبِ الشَّبَكَةِ مَرَّةً او هغه دا ده چي يو وار د جال په غورځولو سره کوم ښکار حاصل سي [د هغه خرڅول] لِأَنَّهُ مَجْهُولٌ ځکه چي [په دې بيع کي] ښکار [مبيع] مجهول دی وَلِأَنَّ فِيهِ غَرَرًا او ځکه چي په دې کي دوکه [هم] ده.

**اللغات**: ﴿ضربة﴾ يو وار وهل، يو وار غورځول (يو ځل غورځول)، ﴿القانص﴾ ښکاري. ﴿شبكة﴾ د ښکار کولو جال، ﴿غرر﴾ دوکه، فريب.

**تشريح**: فرمايي چي د ضربة القانص بيع هم ناجائز ده، د ضربة القانص بيع دا ده چي يو سړی داسي ووايي: زه دا جال يو وار اوبو ته غورځوم او په هغه کي چي څومره ماهيان راسي هغه په دومره قيمت (مثلا په پنځه درهمه) پر تا خرڅوم، يا داسي ووايي: زه يو وار دا جال دروم او په هغه کي چي څومره مرغان ونيول سي هغه په دومره قيمت درکوم (أثمار الهدايه)، دا بيع ناجائز ده؛ ځکه چي په داسي بيع کي مبيع مجهوله وي، يعني دا معلومه نه ده چي په جال کي به څومره ماهيان يا مرغان ونيول سي، او دويم دليل دا دی چي په دې بيع کي دوکه راځي؛ ځکه کېدای سي چي په جال کي به هيڅ ماهي او مرغه نه راسي يا ډېر لږ به پکښې راسي (او د مشتري پنځه درهم به هسي مفت ضايع سي)، او په حديث شريف کي د فرېب او دوکې له بيع څخه منع سوې ده، نو په دې وجه هم دا بيع ناجائز ده.

## د بيع مزابنه او بيع محاقله تعريف او حکم

قال: وَبَيْعُ الْمُزَابَنَةِ فرمايي: او بيع مزابنه جائز نه ده وَهُوَ بَيْعُ الثَّمَرِ عَلَى النَّخِيلِ بِتَمْرٍ مَجْذُوذٍ مِثْلِ كَيْلِهِ خَرْصًا او هغه [مزابنه] خرڅول دي پر درختو د موجوده [الګېدلي] ميوې، د شکول سوي خرما په عوض کي د هغوی د کَيل [او وزن] په برابر په اټکل [اندازه] سره لِأَنَّهُ ﷺ نَهَى [1] عَنِ الْمُزَابَنَةِ وَالْمُحَاقَلَةِ ځکه نبي کريم ﷺ له بيع مزابنه او محاقله څخه منع کړې ده فَالْمُزَابَنَةُ مَا ذَكَرْنَا او مزابنه هغه ده کوم چي موږ [اوس] ذکر کړه وَالْمُحَاقَلَةُ بَيْعُ الْحِنْطَةِ فِي سُنْبُلِهَا بِحِنْطَةٍ مِثْلِ كَيْلِهَا خَرْصًا او محاقله خرڅول دي د غنمو په خپلو وږو کي په اټکل سره د داسي [صفا] غنمو په عوض کي کوم

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب البيوع، باب النهي عن المحاقلة والمزابنة، حديث رقم: ٨١

چي د هغوی د کَيل [او وزن] په برابر وي وَلِأَنَّهُ بَاعَ مَكِيْلًا بِمَكِيْلٍ مِنْ جِنْسِهِ او په دې وجه هم [دا بيوع ناجائز دي] چي بائع کَيلي شی د هغه د همجنس کَيلي شي په عوض کي خرڅ کړی دی فَلَا تَجُوزُ بِطَرِيقِ الْخَرْصِ نو ځکه په اټکل [او اندازه] سره به دا بيع جائز نه وي كَمَا إِذَا كَانَا مَوْضُوعَيْنِ عَلَى الْأَرْضِ لکه څرنګه چي په هغه صورت کي [جائز نه ده] کله چي دواړه جنسونه پر ځمکه [کوړه] ايښوول سوي وي وَكَذَا الْعِنَبُ بِالزَّبِيبِ عَلَى هٰذَا او همدارنګه انګور د کشمشو په عوض کي پر دې طريقه خرڅول [هم] ناجائز دي وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ: يَجُوزُ فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا بيع [مزابنه او محاقله] له پنځو څخه په کمو وسقو کي جائز ده لِأَنَّهُ عليه السلام [2] نَهَى عَنِ الْمُزَابَنَةِ وَرَخَّصَ فِي الْعَرَايَا ځکه چي نبي کريم ﷺ له مزابنه څخه منع کړې ده [لېکن] د عرايا اجازت يې ورکړی دی وَهُوَ أَنْ يُبَاعَ بِخَرْصِهَا تَمْرًا فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ او بيع عرايا دا ده چي له پنځو وسقو څخه کم پر درختو موجوده خرما په اټکل سره د شکول سوي خرما په عوض کي خرڅه کړل سي

قُلْنَا: الْعَرِيَّةُ الْعَطِيَّةُ لُغَةً موږ [په جواب کي ورته] وايو: چي عريه په لغت کي عطيه [هبه] ته وايي وَتَأْوِيلُهُ: أَنْ يَبِيعَ الْمُعْرَى لَهُ مَا عَلَى النَّخِيلِ مِنَ الْمُعْرِيْ بِتَمْرٍ مَجْذُوذٍ او د دې حديث تأويل دا دی: چي عطيه اخيستونکی [يعني چا ته چي عطيه (هبه) ورکول سوې وي هغه] پر درختو موجوده خرما خرڅه کړي پر عطيه ورکونکي باندي د شکول سوي خرما په عوض کي [مطلب دا چي عطيه ورکونکی سړی د درختو د خرما په عوض کي وعطيه اخيستونکي ته شکول سوې خرما ورکړي] وَهُوَ بَيْعٌ مَجَازًا او دا مجازاً بيع ده لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهُ ځکه چي عطيه اخيستونکی د هغه خرما [کوم چي ده ته په عطيه کي ورکول سوې وه] مالک نه دی فَيَكُونُ بِرًّا مُبْتَدَأً نو ځکه به دا نوی [جديد] احسان وي [يعني د عطيه ورکونکي له طرفه وعطيه اخيستونکي ته شکول سوې ميوه ورکول نوې عطيه او نوی احسان سو].

**اللغات**: ﴿مزابنه﴾ د مزابنه او محاقله تعريف به په تشريح کي ذکر سي. ﴿نخيل﴾ د خرما درختي. ﴿تمر﴾ خرما. ﴿مجذوذ﴾ د مفعول صيغه ده: شکول سوې مېوه (خرما). پرېکړل سوې مېوه.

---

[2] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب البيوع، باب تحريم بيع الرطب، حديث رقم: ٦٧.

﴿کَيل﴾ پيمانه کول، کَيل کول، ﴿خرص﴾ اندازه، اټکل، ﴿سنبل﴾ وږی (د غنمو وږی، د غنمو وابنکی)، واحد: سُنْبُلَةٌ، ﴿عنب﴾ انګور، ﴿زبيب﴾ کشمش (وچ کړي انګور، وڅکي)، ﴿عطية﴾ ورکړه، يعني يو شی مفت ورکول، بخشش، هبه، هديه، ﴿وسق﴾ يو وسق (۶۰) شپېته صاعه کيږي، او يو صاع دري نيم کيلو کيږي (په پاکستاني کېلو سره)، نو په دې اعتبار سره پنځه وسقه يو زر او پنځوس (۱۰۵۰) کېلو کيږي.

**تشريح**: د عبارت له تشريح څخه مخکې تاسي د "مزابنه" او "محاقله" په معنیٰ ځان پوه کړئ!، د "مزابنه" لغوي معنیٰ ده "مدافعة" (يو له بل څخه دفع کول، صاحب د بنايې ليکلي دي چي دې بيع ته ځکه مزابنه وايي چي دا نزاع او تدافع ته رسول کوي)، د "مزابنه" اصطلاحي معنیٰ ده: "پر درختو لګېدلې خرما (کجوري) د هغه خرما په عوض کي خرڅول کوم چي له درختو څخه شکول سوې وي په دې توګه چي شکول سوې خرما د هغه خرما په اندازه او اټکل سره پيمانه کړي يا يې وتلي کوم چي پر درختو لګېدلې وي"، مثلاً يو عاقد (بائع) دا اندازه ولګوي چي پر درختو لګېدلې خرما لس منه ده نو له دويم عاقد (مشتري) څخه د هغه په عوض کي لس منه خرما په کَيل يا وزن سره واخلي (يعني په پيمانه کولو يا تللو سره يې واخلي). او د "محاقله" لغوي معنیٰ ده "غنم په خپل وږي کي خرڅول"، او اصطلاحي معنیٰ يې ده: "په وږو (وابنکيو) کي موجود غنم د هغه غنمو په عوض کي په اټکل او اندازه سره خرڅول کوم چي له وږو څخه رايستل سوي او صفا کړل سوي وي"، مثلاً يو عاقد دا اټکل او اندازه ولګوي چي په دې وږو کي لس منه غنم سته نو له دويم عاقد څخه د هغه په عوض کي لس منه غنم په وزن سره واخلي.

**صورت د مسئلې**: دا دی چي بيع مزابنه او بيع محاقله ناجائز ده، او امام شافعي رَحِمَهُ الله له پنځو څخه په کمو وسقو کي بيع مزابنه او محاقله جائز ګرځولې ده او له پنځو وسقو څخه په زياتو کي يې ناجائز ګرځولې ده (يعني د هغه په نېز که دا بيع له پنځو وسقو څخه په کمه خرما يا غنمو کي وسي نو بيع جائز ده، او که هغوی تر پنځو وسقو زيات وي نو بيع ناجائز ده)، او په پنځو وسقو کي له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه دوه قوله نقل سوي دي: يو د جوز او بل د عدم جواز. (عنايه)

**زموږ دليل**: دا دی چي بيع مزابنه او محاقله د جاهليت د زمانې بيوع دي، نبي کريم ﷺ له هغوی څخه منع کړې ده، لکه څرنګه چي په صحيحينو کي د جابر رضي الله عنه حديث دی: "نَـهٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَـنِ الْمُزَابَنَةِ وَالْمُحَاقَلَةِ".

**دويم دليل:** دا دی چي په بيع مزابنه او بيع محاقله کي اتحاد الجنس هم دی او اتحاد القدر (کيل) هم دی (يعني په مزابنه او محاقله کي د دواړو عوضونو جنس هم يو دی او د هغوی اندازه او کَيل هم يو او سره برابر دی. ځکه چي دواړو طرفونو ته غنم يا خرماوي ذي او دواړه په يوه قدر سره ورکول کيږي)، او د اتحاد الجنس او اتحاد القدر په صورت کي په اټکل او اندازه سره خرڅول او رانيول جائز نه دي؛ ځکه چي په دې صورت کي په اټکل سره په خرڅولو او رانيولو کي د ربوا (سود) شبهه راځي، او شبهة الربوا داسي حرامه ده لکه حقيقي ربوا چي حرامه ده، نو ځکه دا بيوع جائز نه دي، لکه څرنګه چي په هغه وخت کي هم په اټکل او اندازه سره خرڅول او رانيول ناجائز دي کله چي خرما يا غنم پر ځمکه ايښوول سوي وي.

همدارنګه که انګور پر خپله درخته وي نو هغوی هم په اټکل او اندازه سره د شکول سوو انګورو په عوض کي په وزن يا کَيل سره خرڅول ناجائز دي، ځکه چي دا هم د بيع مزابنه او محاقله له قبيلې څخه دي.

**د امام شافعي دليل:** دا حديث دی: "أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهٰى عَنْ بَيْعِ الْمُزَابَنَةِ وَرَخَّصَ فِي الْعَرَايَا".

عَرَايَا جمع د عَرِيَّةٌ ده، او امام شافعي رَحِمَهُ الله د عَرِيَّةٌ دا معنیٰ کړې ده چي له پنځو وسقو څخه کمه پر درختو لګېدلې خُرما په اټکل سره د شکول سوي خرما په عوض کي خرڅول. يعني عاقد پر درختو لګېدلې خرما ته اندازه او اټکل ولګوي چي هغه له پنځو وسقو څخه دومره قدر کمه ده نو بيا د هغه په عوض کي شکول سوې خرما د هغه په اندازه وزن کړي يا يې کَيل کړي او سودا سره وکړي نو دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز "عريه" ده ، په دې حديث کي نبي کريم ﷺ له بيع مزابنه څخه منع کړې ده او د عرايا اجازت يې ورکړی دی، نو معلومه سوه چي له پنځو څخه په کمو وسقو کي داسي بيع کول جائز دي، د دې تائيد د ابو هريره رضي الله عنه په هغه حديث سره هم کيږي کوم چي په صحيحينو کي ذکر سوی دی. حديث دا دی: "أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ رَخَّصَ فِيْ بَيْعِ الْعَرَايَا بِخَرْصِهَا فِيْمَا دُوْنَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ أَوْ فِيْ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ (يعني رسول الله ﷺ له پنځو څخه په کمو وسقو يا په پنځو وسقو کي په اټکل سره د بيع عرايا اجازت ورکړی دی).

**قلنا: العرية العطية إلخ:** زموږ له طرفه جواب دا دی چي صحيح ده نبي کريم ﷺ په حديث کي د عريه اجازت ورکړی دی او هغه موږ په سر او سترګو منو. لېکن د عرايا معنیٰ هغه نه ده کوم چي تاسو بيان کړې ده، بلکي صفا خبره دا ده چي عَرِيَّة په لغت کي د عطيه او هبه په معنیٰ سره ده، او د دې حديث تفصيلي تأويل دا دی چي: په عربو کي دا عادت وو چي د باغ مالک به يو غريب سړي ته پر درختو

لګېدلې خرما عطيه کړه (يعني مفته به يې ورکړه. لکه څرنګه چې د نبي کريم ﷺ په زمانه کې هم داسې عطيه کېدل)، نو هغه غريب سړی به د دې خرما لپاره هر وخت باغ ته تللې راتلې (او خپله کورنۍ به يې هم هلته بېول) او خرما ته به ډېر په انتظار وو، او د هغه په تګ راتګ سره به د باغ مالک (واهب) په تکليف وو، او ځيني وخت به داسې کېدل چې هغه غريب سړي ته به فوراً د څه خرما ضرورت پيښ سو، نو د باغ مالک به د تکليف ليرې کولو يا د غريب سړي د ضرورت پوره کولو لپاره به هغه ته شکول سوې خرما ورکړه، چې هغه به په اټکل او اندازه کې د هغه درختو د خرما سره برابره وه کوم چې يې هغه غريب ته عطيه کړې وه، د دې لپاره چې خپله وعده پوره کړي او د غريب سړي تګ راتګ بند سي او ضرورت يې پوره سي؛ نو په حديث کې همدا خبره بيان سوې ده چې داسې معامله له پنځو څخه په کمو وسقو کې جائز ده، او د حديث مطلب دا نه دی چې له پنځو څخه په کمو وسقو کې بيع (مزابنه او محاقله) جائز ده؛ ځکه چې دا معامله (يعني د باغ د مالک [واهب] له طرفه د درختو د خرما په عوض کې غريب سړي ته شکل سوې خرما ورکول دا) هم يو نوی احسان او نوې عطيه ده، بيع نه ده، خو څرنګه چې دا معامله په صورت کې د بيع په څېر ده (ځکه دا داسې ښکاري لکه غريب سړي [مُعرى لهٗ] چې د درختو خرما د باغ پر مالک [مُعري] باندې د شکول سوي خرما په عوض کې خرڅه کړه) نو ځکه مجازاً داسې معاملې ته بيع ويل سوي دي، کنې دا بيع بالکل نه ده؛ ځکه چې عطيه يو هبه ده او په هبه کې چې مُعرى لهٗ (موهوب لهٗ) پر عطيه (هبه) قبضه نه وکړي تر هغه وخته پورې معرى لهٗ د هغه موهوب شي (خرما) نه مالک کيږي؛ ځکه چې په هبه کې قبضه بالاتفاق شرط وي او دلته د موهوب لهٗ قبضه متحقق نه سوه؛ ځکه چې دا خرما تر اوسه د معرى (هبه کونکي) يعني د باغ د مالک پر درختو ده او شکول سوې نه ده. لهذا کله چې موهوب لهٗ د هغه خرما مالک نه سو نو د باغ د مالک له طرفه هغه ته شکول سوې خرما ورکول داسې دي لکه پر هغه چې نوی احسان وکړي، نو ځکه پر درختو د لګېدلي خرما په عوض کې شکول سوې خرما ورکول حقيقتاً بيع نه ده بلکې دا له نوي سره عطيه او هبه ده.

نو د حديث او مراد او مطلب دا دی چې داسې عطيه او هبه له پنځو څخه په کمو وسقو کې جائز ده، او دا يې بالکل مطلب نه دی چې له پنځو څخه په کمو وسقو کې بيع جائز ده، ځکه چې عرايا عطيه ته وايي چې د هغه تفصيل اوس موږ بيان کړی، بيع ته نه وايي، نو ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله لپاره دا حديث له پنځو څخه په کمو وسقو کې د بيع مزابنه او محاقله پر جواز پېشول صحيح نه دي.

## د جاهليت يو څو بيوع

قال: وَلَايَجُوزُ الْبَيْعُ بِإِلْقَاءِ الْحَجَرِ وَالْمُلَامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ فرمايي: او د ډبري غورځولو او د مسه کولو او د مبيع غورځولو په ذريعه بيع کول جائز نه دي وَهٰذِهِ بُيُوعٌ كَانَتْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ او دا بيوع د جاهليت په زمانه کي رواج وه وَهُوَ أَنْ يَتَرَاوَضَ الرَّجُلَانِ عَلَى سِلْعَةٍ أَيْ يَتَسَاوَمَانِ او د هغه صورت دا دی چي دوه خلک د يوه سامان د بيع په باره کي خبري کوي يعني د قيمت فيصله سره کوي [چي په دومره يې درکوم او په دومره يې رانيسم] فَإِذَا لَمَسَهَا الْمُشْتَرِي أَوْ نَبَذَهَا إِلَيْهِ الْبَائِعُ أَوْ وَضَعَ الْمُشْتَرِي عَلَيْهَا حَصَاةً نو کله چي [په دې دوران کي] مشتري سامان مسه کړي، يا بائع د مشتري وطرف ته سامان وغورځوي، يا مشتري پر سامان شګه [کوچنۍ ډبرا کښيږدي لَزِمَ الْبَيْعُ نو بيع لازمه سوه فَالْأَوَّلُ بَيْعُ الْمُلَامَسَةِ وَالثَّانِي الْمُنَابَذَةُ وَالثَّالِثُ إِلْقَاءُ الْحَجَرِ نو اول بيع ملامسه ده او دويم بيع منابذه ده او دريم بيع القاء الحجر ده وَقَدْ نَهَى النَّبِيُّ عليه السلام [1] عَنْ بَيْعِ الْمُلَامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ او نبي کريم ﷺ له بيع ملامسه او بيع منابذه څخه منع کړې ده وَلِأَنَّ فِيهِ تَعْلِيقًا بِالْخَطَرِ او په دې وجه هم [دا بيوع ممنوع دي] چي په هغوی کي [تمليک] پر خطرې معلق کول دي [يعني په دې بيعو کي تمليک پر يو نامعلوم او متردّد کار باندي معلق سوی دی].

**اللغات**: ﴿إلقاء﴾ د افعال مصدر دی: اچول (يو شی پر ځمکه غورځول). ايله کول. ﴿منابذة﴾ د مفاعلې مصدر دی، لغوي معنی يې ده: غورځول. ﴿يتراوض﴾ د تفاعل مضارع ده: يو د بل سره د خرڅولو او رانيولو خبره کول. ﴿يتساومان﴾ يو د بل سره د نرخ او قيمت په باره کي خبره کول، د قيمت فيصله کول، نرخ ټاکل. ﴿حصاة﴾ شګه، کوچنۍ ډبره (کوچنۍ کاڼی). ﴿الخطر﴾ د خطرې کار، هلاکت ته نژدې کارې، مراد څني داسي کار دی چي د هغه کېدل او نه کېدل نامعلوم او شکمن وي څکه دا نامعلومه او په شک کي ده چي پر سامان به ډبره ولګيږي، که نه.... نو د خطر معنی سوه: متردّد امر (شکمن کار).

**تشريح**: د جاهليت په زمانه کي به ډول، ډول خرافات رواج وو، له اخلاق او عقائدو څخه پرته په معاملاتو او بيوعاتو کي هم د دې خرافاتو اثر ښکاره وو، نو په دې عبارت کي د بيع يو څو اقسام

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب البيوع، باب ابطال بيع الملامسة والمنابذة، حديث رقم:۳.

بیانوي كوم چي د جاهليت په زمانه كي رواج وه، لېكن اسلام پر هغوی پابندي ولګول او مسلمانان يې له هغه څخه منع كړل:

**بيع ملامسة**: د دې صورت دا وو چي كله به بائع او مشتري د سامان د بيع په باره كي خبري كولې (چي په دومره يې دركوم او په دومره يې رانيسم)، نو په دې دوران كي به مشتري هلته يو اینبول سوي سامان ته لاس ور وړی او مسه به يې كړی، او كوم سامان چي به يې مسه كړی په هغه كي به بيع پوره كېدل او لازمېدل (يعني تر دې وروسته به يوه ته هم د بيع د ماتولو اختيار نه وو) كه څه هم بائع به په دې راضي نه وو. (يا كله چي به سامان ته ډېر مشتريان ولاړ ول، نو كه بائع به يو مشتري ته لاس ور وړی نو پر هغه به د مبيع اخيستل ضروري وو، دا دواړه صورتونه په بيع ملامسه كي داخل دي).

**بيع منابـذه**: د دې صورت دا وو چي د بيع په دوران كي به بائع د مشتري وطرف ته يو سامان ور وغورځوی، او د هغه سامان اخيستل به پر مشتري ضروري وو، او مشتري ته به د بيع ماتولو هيڅ اختيار نه وو.

**بيع بإلقاء الحجر**: د دې صورت دا وو چي كله به بائع او مشتري د سامان د بيع په باره كي خبري كولې، نو مشتري به د يو سامان وطرف ته كوچنۍ ډبره وغورځوله، هغه ډبره چي به پر كوم سامان ولګېدل، په هغه كي به بيع پوره كېدل او لازمېدل، كه څه هم بائع به په دې راضي نه وو.

دا درې سره بيع د جاهليت په زمانه كي رواج وې، لېكن اسلام هغه په دوو (۲) وجهو سره ممنوع ګرځولي دي: ①... يو دا چي نبي كريم ﷺ له ملامسه او منابذه څخه منع كړې ده، او څرنګه چي د القاء الحجر صورت هم دغسي دی، نو ځكه بيع القاء الحجر هم د هغوی په ضمن كي ممنوع ده.
②... او دويم دا چي په بيع كي تمليک مقصود دي، يعني په بيع سره مشتري د مبيع مالک كيږي او بائع د ثمن مالک كيږي، او څرنګه چي په دې صورتونو كي تمليک پر يو موهوم او نامعلوم كار او متردد امر باندي مبني دی (چي كېداسي مشتري به د غير جنس سامان ته لاس ور وړي [يعني سامان به له هغه جنس څخه نه وي كوم چي د ده او بائع مطلوب وي]، يا كېداى سي د بائع له طرفه غورځول سوی سامان ولوېږي او مات سي. يا كېداى سي د مشتري ډبره پر سامان نه ولګيږي). او دا معلومه خبره ده چي پر متردد امر او موهوم كار باندي تمليكات معلق كول باطل دي؛ ځكه چي په دې كي د خمار معنیٰ موجوده ده، او شريعت خمار او داسي نور حرام ګرځولي دي، نو ځكه په داسي توګه د بيع معامله كول هم حرام او باطل دي.

## په دوو کپړو کي د يوې کپړې د بيع حکم

قال: وَلَايَجُوزُ بَيْعُ ثَوْبٍ مِنْ ثَوْبَيْنِ فرمايي: او له دوو کپړو څخه يوه [غير متعينه] کپړه خرڅول جائز نه دي لِجَهَالَةِ الْمَبِيْعِ ځکه چي مبيع مجهوله ده وَلَوْقَالَ: عَلٰى أَنَّهُ بِالْخِيَارِ فِي أَنْ يَأْخُذَ أَيَّهُمَا شَاءَ او که بائع ووايي: چي مشتري ته اختيار دی چي په دواړو کپړو کي هره يوه د ده خوښه وي هغه دي واخلي جَازَ الْبَيْعُ اسْتِحْسَانًا نو [بيا] استحساناً بيع جائز ده وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ بِفُرُوعِهِ او موږ دا مسئله [مخکي] د خپل فروعاتو سره ذکر کړې ده.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي له تعيين څخه بغير په دوو، يا درېو کپړو کي يوه کپړه خرڅول جائز نه دي؛ ځکه چي مبيع مجهوله ده، او جهالت هم داسي دی کوم چي مُفضي الی النزاع دی؛ ځکه کپړې د ماليت په اعتبار سره متفاوت وي (يعني د هغوی په قيمت کي ډير فرق او تفاوت وي)، او د مبيع داسي مجهول والی کوم چي مُفضِي الی النزاع وي بيع فاسدوي، نو ځکه په دې صورت کي بيع ناجائز او فاسد ده.

ها! که بائع داسي ووايي چي مشتري ته په دې کپړو کي د هغه يوې کپړې د مُتعيّنولو اختيار سته يا مشتري ووايي چي ما ته د يوې کپړې د مُتعيّنولو اختيار سته نو دا بيع استحساناً جائز ده. صاحب د هدايې فرمايي چي موږ دا مسئله د خپل فروعاتو او جزئياتو سره په "باب خيار الشرط" کي ذکر کړې ده.

## د چراګاه د بيع او اجارې حکم

قال: وَلَايَجُوزُ بَيْعُ الْمَرَاعِيْ وَلَا إِجَارَتُهَا فرمايي: د چراګاه وو خرڅول او په اجاره ورکول جائز نه دي وَالْمُرَادُ الْكَلَأُ او [له چراګاه څخه] مراد [د چراګاه] وابنه دي أَمَّا الْبَيْعُ فَلِأَنَّهُ وَرَدَ عَلٰى مَا لَا يَمْلِكُهُ کوم چي [د وابنو] بيع ده نو ځکه [ناجائز ده] چي هغه [دلته] پر داسي شي وارد سوې ده کوم چي هيڅوک د هغه مالک نه دی [يعني د چراګاه د وابنو هيڅ مالک نسته] لِاشْتِرَاكِ النَّاسِ فِيْهِ بِالْحَدِيْثِ [1] ځکه چي په هغه کي د حديث شريف پر بناء ټوله خلک شريک دي وَأَمَّا الْإِجَارَةُ فَلِأَنَّهَا عُقِدَتْ عَلٰى اسْتِهْلَاكِ عَيْنٍ

[1] دا حديث په ابن ماجه شريف کي دی (ابن ماجه، باب المسلمون شركاء في ثلاث، ص:۳۵۴، حديث رقم:۲۴۲۷)، حديث به په تشريح کي ذکر سي، او د دې په معنی سره بل حديث په ابو داؤد شريف کي هم ذکر سوی دی (ابو داؤد، باب في منع الماء، ص:۵۰۲، حديث رقم:۳۴۷۷)

مُبَاحٍ او کوم چي [د واښو] اجاره ده نو ځکه [ناجائز ده] چي هغه [دلته] د يو غير مملوک مال پر هلاکولو [تلفولو] واقع سوې ده [له مُباح څخه مراد غيرِ مملوک دی] وَلَوْعُقِدَتْ عَلَى اسْتِهْلَاكِ عَيْنٍ مَمْلُوكٍ حال دا چي که اجاره د يو مملوک مال پر تلفولو منعقد [واقع] سي [نو هم جائز نه ده] بِأَنْ اِسْتَأْجَرَ بَقَرَةً لِيَشْرَبَ لَبَنَهَا په دې توگه چي [يو څوک] غوا د دې لپاره په اُجرت واخلي چي د هغې شيدې وچيښي لَايَجُوْزُ نو [هم] اجاره جائز نه ده فَهٰذَا أَوْلٰى نو دا [دغير مملوک مال په صورت کي] خو به په درجه اولیٰ [اجاره] جائز نه وي.

**اللغات:** ﴿مراعي﴾ جمع د مَرْعٰی ده: چراگاه، څرې ځای، د څارويو د پوولو ځای، هغه صحرا او ميدان چي واښه او بوټي پکښي راشنه وي او خلک څاروي پر څروي (يعني پسونه او داسي نور هغه واښو ته بيايي او هغه په خوري). ﴿کلأ﴾ واښه (د څارويو د خوړلو واښه). ﴿إجارة﴾ په اجاره ورکول، يعني په کرايه ورکول، په اُجرت کول. ﴿استهلاك﴾ د استفعال مصدر دی: هلاکول، تلفول (له منځه وړل، مراد ځني د وښو رېبل او څارويو خوړل دي). ﴿مُباح﴾ د مُباح معنیٰ ده: روا؛ مراد ځني غيرِ مملوک دی نو د "عينِ مُباح" معنیٰ ده: غيرِ مملوک شی او مال، او له دې څخه د چراگاه واښه مراد دي، ځکه چي هغه د هيچا په ملکيت کي نه دي او هر چا لپاره روا دي. ﴿استأجر﴾ د استفعال ماضي ده: په کرايه اخيستل، په اُجرت اخيستل. (په کرايه نيول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د چراگاه واښه خرڅول يا په اجاره ورکول جائز نه دي.

صاحب د هدايې ځکه د "مراعي" تفسير په واښو سره کړی دی چي د "مراعي" د لفظ څخه دا هم کيږي چي د چراگاه ځمکه خرڅول يا په اجاره ورکول جائز نه دي، حالانکي دا غلطه ده؛ ځکه چي د چراگاه د ځمکي خرڅول او په اجاره ورکول دواړه جائز دي، برابره ده په هغې کي واښه وي، که نه وي، نو په دې وجه يې د "مراعي" تفسير په واښو سره وکړی چي صرف د چراگاه واښه خرڅول ناجائز دي؛ او دا ځکه ناجائز دي چي د چراگاه په وښو کي ټوله خلک شريک وي (يعني د چراگاه په حلودو کي چي کوم خلک اوسيږي، هغوی ټوله په دې کي شريک وي)، په حديث شريف کي ذکر سوي دي: "اَلْمُسْلِمُوْنَ شُرَكَاءُ فِيْ ثَلَاثٍ: فِي الْمَاءِ، وَالنَّارِ وَالْكَلَأِ" (ابن ماجه)، يعني په اور، اوبه او واښو کي ټوله مسلمانان شريک دي، نه څوک پر هغه قبضه کولای سي او نه بل څوک ځني منع کولای سي. له دې حديث شريف څخه معلومه سوه چي د چراگاه پر وښو د هيچا ملکيت نسته، اوس که يو څوک دا

خرڅ کړي، نو ښکاره خبره ده چې هغه يو غير مملوک شی خرڅ کړی، او د غير مملوک شي خرڅول جائز نه دي، نو ځکه به د چراګاه وابنه خرڅول هم جائز نه وي.

وأما الإجارة إلخ: او د چراګاه وابنه په اجاره ورکول په دوو (۲) وجهو سره ناجائز دي: ①... يو خو ځکه چې د چراګاه وابنه غير مملوک دي (يعني د هيچا په ملکيت کې نه دي)، او د غير مملوک شي اجاره نه صحيح کيږي، نو ځکه به د چراګاه وابنه په اجاره ورکول ناجائز وي، ②... دويم ځکه چې اجاره "استهلاک المنافع" ته وايي، نه "استهلاک العين" ته، يعني څوک چې يو شی په اجاره اخلي نو صرف د هغه منافع تلفوي (يعني صرف نفع ځني اخلي)، او د هغه شی عَين نه تلفوي (يعني خاص هغه شی نه اخلي)، بلکې هغه عَين بيرته د مالک لپاره پاتيږي (مثلاً که څوک موټر په أجرت [کرايه] واخلي نو له هغه څخه صرف د سپرتيا کار اخلي. عَين (موټر) نه اخلي، بلکې څه وخت چې د اجارې مودت پوره سي. نو موټر بيرته مالک ته ورکول کيږي)، او دلته اجاره د غير مملوک شي د عَين پر تلفولو واقع سوې ده، يعني وابنه کوم چې غير مملوک دي (ځکه چې د چراګاه وابنه غير مملوک وي) د هغه پر تلفولو (رېبلو) اجاره واقع سوې ده، حالانکې که اجاره د يو مملوک شي د عَين پر تلفولو واقع سي نو هم اجاره ناجائز ده، مثلاً که يو څوک غوا د شيدو چيښلو لپاره په أجرت واخلي (چې زه به د غوا شيدې چيښم او تا ته به خپل أجرت او کرايه درکوم) نو په دې صورت کې هم اجاره ناجائز او باطله ده، لهذا کله چې د مملوک شي د عَين تلفولو په صورت کې اجاره ناجائز ده، نو د غير مملوک شي د عَين تلفولو په صورت کې خو به په درجه اولیٰ ناجائز وي.

## د مچمچې د بيع حکم

قال: وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ النَّحْلِ فرمايي: او د مچمچيو بيع جائز نه ده وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ ❀: يَجُوزُ إِذَا كَانَ مُحْرَزًا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: که چيري مچمچې د بائع په حفاظت کې محفوظه وي نو [د هغوی] بيع جائز ده وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّهُ حَيَوَانٌ مُنْتَفَعٌ بِهِ حَقِيقَةً وَشَرْعًا ځکه چې مچمچې يو داسې حيوان [ساکښ] دی چې هغه حقيقتاً او شرعاً د انتفاع قابل دی [يعني هم په حقيقت کې له هغه څخه نفع اخيستل ممکن دي، او هم په شرعي اعتبار سره] فَيَجُوزُ بَيْعُهُ نو ځکه به د هغې بيع جائز وي وَإِنْ كَانَ لَا

❀ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما قال في الهندية: بيع النحل يجوز عند محمد رَحِمَهُ الله، وعليه الفتوى (الهندية ج:۳، ص:۱۱۴)، وكذا في الدر المختار (ج:۴، ص:۱۲۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۹]

يُؤْكَلُ كَالْبَغْلِ وَالْحِمَارِ كه څه هم هغه نه خوړل کيږي لكه غاتره او خر وَلَهُمَا: أَنَّهُ مِنَ الْهَوَامِّ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى: چي مچمچى له خزندو [حشراتو] څخه ده فَلَا يَجُوزُ بَيْعُهُ كَالزَّنَابِيْرِ نو ځكه د غالبوزي په څېر به د هغې بيع جائز نه وي وَالِانْتِفَاعُ بِمَا يَخْرُجُ مِنْهُ لَا بِعَيْنِهِ او نفع خو له هغه شي څخه اخيستل كيږي كوم چي له مچمچى څخه راوځي [يعني شات]، نه د مچمچى له ذات څخه فَلَا يَكُونُ مُنْتَفَعًا بِهِ قَبْلَ الْخُرُوجِ نو ځكه [د شاتو] له راوتلو څخه مخكي به هغه د انتفاع قابل نه وي حَتَّى لَوْ بَاعَ كُوَّارَةً فِيهَا عَسَلٌ بِمَا فِيهَا مِنَ النَّحْلِ تر دې كه څوک داسي چتـه چي شات پكښي وي د هغه مچمچيو سره خرڅه كړي كوم چي په چته كي موجوده وي يَجُوزُ تَبَعًا لَهُ نو د شاتو په متابعت كي د هغه مچمچيو بيع هم جائز ده كَذَا ذَكَرَهُ الْكَرْخِيُّ همداسي امام كرخي رَحِمَهُ الله ذكر كړي دي.

**اللغات:** ﴿نحل﴾ د شاتو مچمچى، واحد يې "نَحْلَةٌ" راځي، ﴿مُحرز﴾ د افعال له بابه مفعول دى: محفوظ (خوندي)، جمع كړل سوى، ذخيره كړل سوى، ﴿هوام﴾ د ځمكي خزندې، حشرات الارض، ﴿زنابير﴾ جمع د زُنْبُور ده: غالبوزه (مشهوره خزنده ده)، ﴿كُوارة﴾ د مچمچيو هغه كور چي هغوى پكښي عسل باسي، چي دې ته په پښتو كي د مچمچيو تخته يا چته وايي، ﴿عسل﴾ شات، گبين.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دى چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د مچمچيو بيع ناجائز ده، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي كه هغوى د بائع په حفاظت كي وي نو بيع يې جائز ده، همدا د امام مالک، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله قول دى.

**د امام محمد دليل:** دا دى چي مچمچى داسي حيوان دى چي له هغه څخه حقيقتاً هم نفع اخيستل كېداى سي او شرعاً هم، حقيقتاً په دې توگه چي له مچمچى څخه كوم شات (عسل) او موم راوځي، انسانان له هغه څخه كار اخلي (ځكه شات الله ﷻ د انسانانو لپاره د شفاء ذريعه گرځولې ده، فرمايي: فِيهِ شِفَاءٌ لِلنَّاسِ. او موم هغه غوړه او نرمه ماده ده كوم چي په اول كي له شاتو څخه راوځي او په ځينو شيانو كي پكار راځي).

او شرعاً په دې توگه له مچمچى څخه نفع اخيستل كېداى سي چي شريعت له هغې څخه هيڅ ممانعت نه دى كړى، او كوم شى چي حقيقتاً او شرعاً د انتفاع قابل وي (يعني په حقيقي او شرعي توگه دواړو نفع ځني اخيستل كېداى سي) د هغه بيع جائز وي، نو ځكه به د مچمچيو بيع هم جائز وي.

**وإن كان لايؤكل إلخ**: فرمايي دا اعتراض دي نه کيږي چي د مچمچۍ غوښې نه خوړل کيږي، نو د هغې بيع به څنګه وي؟ ځکه په دنيا کي ډېر داسي شيان سته چي هغوی غير ماکول دي لېکن د هغوی بيع بالاجماع جائز ده لکه خر، غاتره او داسي نور چي دا حيوانان غير ماکول دي. نو همداسي به مچمچۍ که څه هم غير ماکول ده لېکن د هغې بيع به جائز وي.

**د شيخينو دليل**: دا دی چي مچمچۍ د حشرات الارض له قبيلې څخه ده (يعني د ځمکي له خزندو څخه يو خزنده ده)، او د حشراتو بيع مثلاً د غالبوزي، لړم، مار او داسي نورو بيع ناجائز ده، نو ځکه به د مچمچيو بيع هم ناجائز وي.

**والانتفاع إلخ**: او پاته سوه د امام محمد رَحِمَهُ اللهِ دا خبره چي له مچمچيو څخه نفع اخيستل کېدای سي نو شيخين رَحِمَهُمَا الله د هغه په جواب کي فرمايي چي نفع له مچمچيو څخه نه اخيستل کيږي بلکي کوم شی چي د هغوی څخه راوځي له هغه څخه نفع اخيستل کيږي يعني شات او موم، نو ځکه د شات او موم له راوتلو څخه مخکي مچمچۍ د انتفاع قابل نه دي، او کله چي هغوی د انتفاع قابل (منتفع به) نه دي نو مال به هم نه وي، او کله چي هغوی مال نه دي نو بيع به يې هم جائز نه وي.

همدا وجه ده که څوک داسي ځته خرڅه کړي چي په هغې کي شات هم وي او مچمچۍ هم وي، نو د شاتو په متابعت کي د مچمچيو بيع هم جائز ده (يعني په دې بيع کي مچمچۍ د شاتو تابع کيږي او د شاتو بيع جائز ده نو ځکه د شاتو سره د هغې بيع هم جائز ده) همداسي امام کرخي رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي، لهذا که مچمچۍ په خپله مال وای نو د هغې د تابع کېدلو څه ضرورت وو، معلومه سوه چي مچمچۍ په خپله مال نه دي، نو ځکه به يوازي د هغې بيع جائز نه وي، لېکن د شاتو په متابعت کي به جائز وي.

## د وربښمو د چينجي د بيع حکم

وَلَايَجُوزُ بَيْعُ دُوْدِ الْقَزِّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د وربښمو د چينجو بيع جائز نه ده لِأَنَّهُ مِنَ الْهَوَامِّ ځکه د وربښمو چينجی [هم] له خزندو څخه دی وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يَجُوزُ إِذَا ظَهَرَ فِيهِ الْقَزُّ تَبَعًا لَهُ او د امام ابويوسف رَحِمَهُ الله په نېز چي کله په هغه کي وربښم ښکاره سي نو د وربښمو په متابعت کي د هغه بيع هم جائز ده وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ ❁ يَجُوزُ كَيْفَمَا كَانَ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د

---

❁ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما قال ابن الهمام رَحِمَهُ الله: وفي الخلاصة: الفتوىٰ على قول محمد، وكذا في الدر المختار (ج۴، ص:۱۲۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۴۰]

هغه بيع [په هر حالت کي] جائز ده، هغه که هر څنګه وي [يعني په هغه کي ورېښم ښکاره سوي وي، که نه وي] لِكَوْنِهِ مُنْتَفَعًا بِهِ ځکه چي هغه د انتفاع قابل [حيوان] دئ [يعني نفع څني اخيستل کېدای سي] وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ بَيْضِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه د هګيو بيع جائز نه ده وَعِنْدَهُمَا ❁❁ يَجُوزُ لِمَكَانِ الضَّرُورَةِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د ضرورت په وجه جائز ده وَقِيلَ: أَبُو يُوسُفَ مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ او ويل سوي دي چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی كَمَا فِي دُودِ الْقَزِّ لکه څرنګه چي د ورېښمو د چينجو [په مسئله کي] دی وَالْحَمَامُ إِذَا عُلِمَ عَدَدُهَا وَأَمْكَنَ تَسْلِيمُهَا او د کوترو تعداد چي کله معلوم وي او د هغوی ورسپارل ممکن وي جَازَ بَيْعُهَا نو [بيا] د هغوی بيع جائز ده لِأَنَّهُ مَالٌ مَقْدُورُ التَّسْلِيمِ ځکه چي [په دې صورت کي] هغه داسي مال دی چي ورسپارل يې ممکن دي.

**اللغات:** ﴿دُوْد﴾ چينجي، واحد يې "دُوْدَةٌ" راځي، ﴿قَزّ﴾ ورېښم، رېښم، ابريشم، ﴿بيض﴾ هګی، واحد يې بيضةٌ راځي، مراد څني د ورېښمو د چينجي هګی (تخم) دي، (کله چي د هغه پر هګی پنځلس ورځي تيري سي نو چينجی څني راوځي، او هغه چينجی چي کله د پنځلس يا شل ورځو سي نو بيا هغه د غني (عنکبوت) په څېر تار باسي او خپل شاوخوا يو ځالګی جوړوي، همدغه تار ته "قزّ" [ورېښم] وايي). ﴿حَمَام﴾ کوتري، واحد يې حَمَامَةٌ راځي (پر او نر او ماده دواړو يې اطلاق کيږي)، او حَمَّام (د ميم په شد سره) غسلخانې ته وايي.

**تشريح:** په دې عبارت کي درې مسئلې بيان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د ورېښمو د چينجو بيع جائز نه ده؛ ځکه چي د مچمچی په څېر هغوی هم له حشرات الارض څخه دي، او تاسي ته معلومه ده چي د حشراتو بيع ناجائز ده، نو ځکه به د هغوی بيع هم ناجائز وي.

---

❁❁ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال في الهندية: وبيع بذر القز (بيض القز) يجوز عند أبي يوسف ومحمد رَحِمَهُمَا الله وعليه الفتوى (ج:۴، ص:۱۱۴)، وكذا في الدر المختار: ويُباع دودُ القز وبيضه... إلى أن قال: وبه يفتى (الدر المختار ج:۴، ص:۱۲۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۴۰]

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې که په چينجو کې ورېښم ښکاره سوي وي، نو د ورېښمو په متابعت کې د هغوی بيع جائز ده. لکه څرنګه چې د شاتو په متابعت کې د مچمچی بيع جائز ده. (او که پر هغوی ورېښم نه وي نو بيا امام ابو يوسف د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی، يعني په دې ضورت کې د هغه په نېز هم بيع ناجائز ده).

د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې د مچمچيو په څېر د ورېښمو چينجي هم د انتفاع قابل دي، نو ځکه په هر حالت کې د هغوی بيع جائز ده، برابره ده په هغوی کې ورېښم ښکاره سوي وي. که نه وي.

ولايجوز بيع بيضه إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د ورېښمي چنجو د هګيو بيع جائز نه ده؛ ځکه چې د نفع او فايدې تعلق د هګۍ سره نه دی، بلکې د ورېښمو سره دی کوم چې له چيجني څخه راوځي، او په هګۍ کې نه ورېښم سته او نه چينجي (ځکه چې له هګۍ څخه پنځلس ورځې وروسته چينجی پيدا کيږي، او له دې څخه شل يا پنځلس وروسته چې کله هغه غټ سي نو بيا ورېښم پيدا کيږي). مطلب دا چې په هګۍ کې دواړه شيان معدوم دي، او د معدوم شي بيع صحيح نه ده، نو ځکه به د هګيو بيع هم صحيح نه وي؛ ځکه چې هغه بالکل د انتفاع قابل نه دي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې د هګيو بيع جائز ده؛ ځکه چې هغه ته د خلګو ضرورت دی، ځکه له همدې هګيو څخه چينجي او ورېښم تياريږي، لهذا که د هغه پر هګيو پابندي ولګول سي نو د ورېښمو وجود به کم سي، نو ځکه د عوامو خلګو د ضرورت په خاطر موږ د هغه د هګيو بيع جائز ګرځوو؛ لأن الضرورات تبيح المحظورات.

وقيل: أبويوسف إلخ: ځيني مشائخو ويلي دي چې د هګيو د بيع په عدمِ جواز کې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی (يعني د هغه په نېز هم د هګيو بيع جائز نه ده)، لکه څرنګه چې په هغه صورت کې امام بويوسف رَحِمَهُ الله د بيع په عدمِ جواز کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی کله چې پر چينجو ورېښم ښکاره سوي نه وي.

## ﴿د کوترو د بيع حکم﴾

والحمام إلخ: (۳) درېيمه مسئله: کوترې پر دوه قسمه دي: ①... يو کورنی کوترې دي کوم چې په کور کې اوسيږي او مملوک وي (يعني د يو چا په ملکيت کې وي) او د هغوی ورسپارل ممکن وي، نو داسې کوترو بيع (خرڅول) جائز دي؛ ځکه چې هغوی داسې مملوک مال دی چې ورسپارل يې ممکن دي، او د هغوی شمېر هم معلوم دی. ②... دويم وحشي او دباندينی کوترې دي، که هغوی يې څوک ونيسي او په خپل ملکيت کې يې راولي او په ورسپارلو باندي يې قادر وي، نو د هغوی خرڅول جائز دي، لېکن که هغوی نه ونيول سي بلکې تر اوسه دباندې الوزي، نو د هغوی خرڅول جائز نه دي؛ ځکه چې هغوی اوس نه مملوک دي، او نه مقدورُ التسليم دي.

## د تښتېدلي غلام (آبق) د بيع حکم

وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الْآبِقِ او د تښتېدلي غلام بيع جائز نه ده لِنَهْيِ النَّبِيِّ ﷺ [1] عَنْهُ ځکه نبي کريم ﷺ د هغه له بيع څخه منع کړې ده وَلِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهِ او په دې وجه هم [د هغه بيع جائز نه ده] چې بائع د هغه پر ورسپارلو قادر نه دی [يعني بائع مشتري ته د هغه پر ورسپارلو قدرت نه لري] إِلَّا أَنْ يَبِيعَهُ مِنْ رَجُلٍ زَعَمَ أَنَّهُ عِنْدَهُ خو دا چې بائع پر يو داسې سړي دا آبق غلام خرڅ کړي کوم چې دعوىٰ کوي چې غلام زما سره دی لِأَنَّ الْمَنْهِيَّ عَنْهُ بَيْعُ آبِقٍ مُطْلَقٍ ځکه [په حديث کې] چې له کوم شي څخه منع سوې ده هغه د مطلق [کامل] آبق بيع ده وَهُوَ أَنْ يَكُونَ آبِقًا فِي حَقِّ الْمُتَعَاقِدَيْنِ او مطلق آبق هغه دی کوم چې د بائع او مشتري دواړو په حق کې آبق [تښتېدلی] وي وَهٰذَا غَيْرُ آبِقٍ فِي حَقِّ الْمُشْتَرِيْ او دا غلام د مشتري په حق کې آبق نه دی وَلِأَنَّهُ إِذَا كَانَ عِنْدَ الْمُشْتَرِيْ او په دې وجه هم چې کله دا غلام د مشتري په قبضه کې وي اِنْتَفَى الْعَجْزُ عَنِ التَّسْلِيمِ نو [د غلام] له ورسپارلو څخه عاجز کېدل [هم] منتفي سو وَهُوَ الْمَانِعُ او همدا [عجز عن التسليم له عقد څخه] مانع وو ثُمَّ لَا يَصِيرُ قَابِضًا بِمُجَرَّدِ الْعَقْدِ إِذَا كَانَ فِي يَدِهِ وَكَانَ أَشْهَدَ عِنْدَ أَخْذِهِ بيا مشتري [په هغه وخت کې] محض په عقد سره قبضه کونکی نه ګرځي کله چې غلام د مشتري په لاس [قبضه] کې وي او د هغه د نيولو په وخت کې مشتري هغه ګواه جوړ کړي وي لِأَنَّهُ أَمَانَةٌ عِنْدَهُ ځکه چې [په دې صورت کې] غلام د هغه سره امانت دی وَقَبْضُ الْأَمَانَةِ لَا يَنُوبُ عَنْ قَبْضِ الْبَيْعِ او د امانت قبضه د بيع د قبضې قائم مقام کېدلای نه سي وَلَوْ كَانَ لَمْ يُشْهِدْ او که مشتري [د غلام د نيولو په وخت کې] ګواه نه وي جوړ کړي يَجِبُ أَنْ يَصِيرَ قَابِضًا نو ضروري ده چې مشتري قبضه کونکی وګرځي [يعني په دې صورت کې هغه په عقد سره قبضه کونکی ګرځي] لِأَنَّهُ قَبْضُ غَصْبٍ ځکه چې دا د غصب قبضه ده وَلَوْ قَالَ: هُوَ عِنْدَ فُلَانٍ او که يو څوک ووايي چې آبق غلام د فلانکي سره دی فَبِعْهُ مِنِّيْ نو ته هغه پر ما خرڅ کړه! فَبَاعَهُ او بائع هغه خرڅ کړي لَا يَجُوزُ نو دا بيع [هم] جائز نه ده لِأَنَّهُ آبِقٌ فِي حَقِّ الْمُتَعَاقِدَيْنِ ځکه چې [دلته] دا غلام د بائع او

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب التجارات، باب النهي عن شراء ما في بطون الأنعام، حديث رقم: ۲۱۹۶.

مشتري دواړو په حق کي آبق دی وَلِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهِ او په دې وجه هم چي مشتري د هغه پر ورسپارلو قادر نه دی وَلَوْ بَاعَ الْآبِقَ ثُمَّ عَادَ مِنَ الْإِبَاقِ او که بائع تښتېدلی غلام خرڅ کړي بيا هغه له تښتېدلو څخه راوګرځي [يعني واپس راسي] لَا يَتِمُّ ذٰلِكَ الْعَقْدُ نو دا عقد نه پوره کيږي لِأَنَّهُ وَقَعَ بَاطِلًا لِانْعِدَامِ الْمَحَلِّيَّةِ ځکه چي دغه عقد د محل د نشتوالي په وجه باطل واقع سوی وو كَبَيْعِ الطَّيْرِ فِي الْهَوَاءِ لکه په هواء کي د مرغه د بيع مسئله وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ أَنَّهُ يَتِمُّ الْعَقْدُ إِذَا لَمْ يُفْسَخْ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي که عقد فسخ کړی سوی نه وي نو هغه پوره کيږي لِأَنَّ الْعَقْدَ انْعَقَدَ لِقِيَامِ الْمَالِيَّةِ ځکه چي عقد د ماليت د موجود والي په وجه منعقد سوی وو وَالْمَانِعَ قَدِ ارْتَفَعَ وَهُوَ الْعَجْزُ عَنِ التَّسْلِيمِ او مانع يعني عجز التسليم [هم] ختم سو كَمَا إِذَا أَبَقَ بَعْدَ الْبَيْعِ لکه په هغه صورت کي [چي عقد پوره کيږي] کله چي تر بيع وروسته غلام تښتېدلی وي وَهٰكَذَا يُرْوٰى عَنْ مُحَمَّدٍ همداسي له امام محمد رَحِمَهُ الله [هم] څخه روايت سوی دی.

**اللغات:** ﴿آبق﴾ تښتېدلی غلام، ﴿تسليم﴾ د تفعيل له بابه مصدر دی: ورسپارل، حواله کول، ﴿لا ينوب﴾ د نصر له بابه د نفي صيغه ده: نائب کېدل، قائم مقام کېدل، ﴿طير﴾ مرغه، مارغه (الوتونکی ساکښ)، ﴿ارتفع﴾ د افتعال ماضي ده: پورته کېدل، ختمېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کي د تښتېدلي غلام د بيع په هکله څو مسئلې ذکر سوي دي، لېکن صاحب د هدايې دلائل په مختلط ډول سره بيان کړي دي، چي د هغه په وجه د مسئلو او دلائلو په مېنځ کي ربط څه مشکل دی، موږ به په ترتيب سره ټولي مسئلې بيان کړو:

(۱)... اوله مسئله دا ده چي (مثلاً) که د زيد غلام وتښتيږي، نو هغه دا غلام نه سي خرڅولای؛ ځکه په حديث کي د تښتېدلي غلام له بيع څخه منع سوې ده، او بله وجه دا ده چي د بيع د صحيح کېدلو لپاره دا ضروري ده چي مبيع به مقدورُ التسليم وي، لېکن کله چي غلام د مالک له قبضې څخه

---

❁ القول الراجح: هو ظاهر الرواية أى لا يتم العقد، كما قال العلامة الحصكفى رَحِمَهُ الله: وقيل لا يتم على القول ببطلانه، وهو الأظهر من الرواية وبه كان يفتي البلخى وغيره (الدر المختار ج:۴، ص:۱۲۶)، وكذا فى مجمع الأنهر: فإن عاد قبل الفسخ، لا ينقلب صحيحاً، وهو ظاهر الروايه وبه كان يفتى ابو عبد الله البلخى، لكونه وقع باطلاً (مجمع الأنهر ج:۳، ص:۵۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۴۱]

وتښتي، نو ښکاره خبره ده چې هغه د غلام پر ورسپارلو قادر نه وي، او عجز عن التسليم له عقد څخه مانع دی (یعني د مبیع له ورسپارلو څخه عاجز کېدل عقد منع کوي)، نو په دې وجه هم په دې صورت کې د غلام بیع نه جائز کېږي.

(۲)... که د زید غلام وتښتېږي او خالد هغه ونيسي او د ځان سره یې وساتي، نو په دې صورت کې که د زید خوښه وي نو دا غلام پر خالد خرڅولای سي؛ ځکه په حدیث شریف کې د آبق له بیع څخه منع سوې ده، او آبق مطلق هغه غلام ته وايي کوم چې د دواړو عاقدینو په حق کې تښتېدلی وي (یعني د بائع او مشتري دواړو په حق کې آبق وي) او د یوه په قبضه کې هم نه وي، او دلته غلام د مشتري یعني د خالد په قبضه کې دی، نو ځکه اوس د ده په حق کې هغه آبق نه دی، او په اوله مسئله کې د عجز عن التسلیم په وجه بیع جائز نه وه او دلته غلام بالکل د مشتري په قبضه کې دی، نو دا عجز هم زائل سو، خلاصه دا چې د تښتېدلي غلام د بیع د نه جائز کېدلو دواړه دلیلونه دلته نسته، نو ځکه به په دې صورت کې بیع جائز وي.

ثم لا یصیر الخ: فرمایي چې په دې صورت کې خو بیع جائز کېږي، لېکن آیا د مشتري یعني د خالد اوله قبضه به د بیع قبضه شمارل کېږي، او که هغه به غلام بائع (زید) ته واپس وکوي او له نوي سره به پر غلام قبضه کوي. (یعني خالد چې کله غلام ونیوی او قبضه یې پر وکړه، آیا هغه قبضه د بیع د پوره کېدلو لپاره کافي ده، او که خالد به غلام زید ته واپس کوي او له نوي سره به پر هغه قبضه کوي).

په دې باره کې تفصيل دا دی چې که مشتري (خالد) د نیولو په وخت کې دا غلام پر دې خبره ګواه جوړ کړي وي چې زه تا ځکه نیسم چې خپل مالک (زید) ته دې واپس کړم، نو په دې صورت کې د ده (خالد) اوله قبضه د بیع قبضه نه شمارل کېږي (یعني خالد چې کوم اول وار پر غلام قبضه کړې ده. هغه قبضه کافي نه ده، بلکې له نوي سره به پر غلام قبضه کوي، بیا بیع پوره کېږي او صحیح کېږي)؛ ځکه چې د هغه اوله قبضه د امانت قبضه وه (همدا وجه ده که دا غلام د مالک [زید] وطرف ته له واپس کولو څخه مخکې هلاک سي، نو پر قابض [خالد] هیڅ ضمان نسته)، او تر عقد وروسته چې کومه قبضه وسي هغه ته د بیع قبضه وايي، او د بیع قبضه د امانت له قبضې څخه اقوی ده؛ ځکه چې د بیع قبضه مضمون کېږي، او د امانت قبضه نه مضمون کېږي (یعني که څوک تر بیع وروسته پر یو شي قبضه وکړي او هغه هلاک سي نو پر هغه د شي ضمان واجبېږي، لېکن د امانت شي په هلاکېدلو سره ضمان نه واجبېږي)، او تاسي ته معلومه ده چې اقوی خو د ادنی نیابت کولای سي، لېکن ادنی د اقوی نیابت نه سي کولای، نو ځکه په دې صورت کې د امانت قبضه کوم چې ادنی ده هغه به د بیع د قبضې نه قائم مقام کېږي (ځکه چې هغه اقوی ده) او مشتري به له نوي سره پر غلام قبضه کوي.

او که مشتري (خالد) دا غلام د نیولو په وخت کې پر دې خبره ګواه نه وي جوړ کړی چې زه تا خپل مالک ته واپس کوم، نو په دې صورت کې به د هغه دا قبضه د بیع د قبضې قائم مقام کیږي؛ ځکه چې د ګواه نه جوړولو په وجه د هغه اوله قبضه د غصب قبضه سوه (یعني د غصب د قبضې په څېر سوه). او څرنګه چې د بیع قبضه مضمون کیږي همداسي د غصب قبضه هم مضمون کیږي. لنډه دا چې دا دواړه قبضې په درجه کې سره برابري دي او یوه پر بله هیڅ فوقیت نه لري؛ نو ځکه به یوه د بلې قائم مقام کیږي او د مشتري (خالد) اوله قبضه به کافي وي او له نوي سره به پر غلام د قبضې کولو ضرورت نه وي.

ولوقال هوعند فلان إلخ: (۳)... درېیمه مسئله دا ده که یو بل څوک مثلاً عمر د تښتېدلي غلام مالک (زید) ته ووايي چې ستا غلام د خالد په قبضه کې دی، ته داسې وکړه چې هغه پر ما خرڅ کړه!، او مالک (زید) پر هغه دا غلام خرڅ کړي، نو په دې صورت کې هم بیع نه جائز کیږي؛ ځکه چې په دې مسئله کې هم د اولې مسئلې په څېر دواړه خرابیاني سته، یعني غلام د دواړو په حق کې آبق دی او بائع د هغه پر ورسپارلو قادر هم نه دی.

(۴)... د عبارت څلورمه مسئله دا ده که یو څوک خپل تښتېدلی غلام خرڅ کړي بیا غلام واپس راسي او بائع هغه مشتري ته وسپاري، نو آیا مخکنی عقد (بیع) پوره کیږي او که له نوي سره به نوی عقد کوي، په دې سلسله کې ظاهر روایت دا دی چې مخکنی عقد نه پوره کیږي، بلکې له نوي سره به عقد کوي؛ ځکه چې د عقد د صحیح کېدلو لپاره دا ضروري ده چې د بیع محل (یعني مبیع) به موجود او مقدورُ التسلیم وي. او څرنګه چې دلته د عقد په وخت کې د بیع محل یعني غلام معدوم او غیر مقدورُ التسلیم وو، نو ځکه دا عقد بالکل باطل واقع سوی وو. او د باطل په هکله حکم دا دی چې "البَاطِلُ لَا يَعُوْدُ إِلَى الصِّحَّةِ وَالْجَوَاز"، نو ځکه به نوی عقد کول ضروري وي.

لکه څرنګه چې یو څوک په هوا کې الوتی مرغه خرڅ کړي او بیا په هغه مجلس کې (یعني د بیع په مجلس کې) مرغه ونیسي او مشتري ته یې وسپاري، نو ښکاره خبره ده چې د غه عقد اول باطل واقع سوی وو، نو ځکه وروسته د هغه په ورسپارلو سره عقد جائز نه ګرځي. همداسې دلته به هم د عقد تر باطلېدلو وروسته د غلام په ورسپارولو سره دا عقد جائز او صحیح نه ګرځي.

وعن أبي حنيفة إلخ: په دې سلسله کې له طرفینو رَحِمَهُمَا الله څخه یو روایت دا نقل سوی دی چې که په دغه مسئله کې عقد د قاضي او داسې نورو له طرفه نه وي فسخ کړی سوی، نو مخکنی عقد پوره کیږي او له نوي سره د عقد کولو ضرورت نسته؛ ځکه چې په تښتېدلي غلام کې مالیت موجود دی؛

همدا وجه که چيري د تښتېدلو (اباق) په حالت کي مالک هغه آزاد کړي يا هغه مدبر جوړ کړي، نو د مالک دا فعل صحيح کيږي، لهذا کله چي په تښتېدلي غلام کي ماليت موجود دی، نو په هغه کي د عقد (بيع) د نه جائز کېدلو علت صرف دا وو چي هغه غیر مقدور التسليم وو، لو کله چي هغه واپس راغلی نو دا ممانعت هم ختم سو، نو ځکه به مخکنی عقد پوره کيږي او صحيح کيږي؛ ځکه اصول دا دی "إِذَا زَالَ الْمَانِعُ عَادَ الْمَمْنُوعُ" چي د مانع تر ختمېدلو وروسته ممنوع شی واپس راګرځي.

او لکه څرنګه چي يو څوک غلام خرڅ کړي او تر خرڅولو وروسته او له قبضې څخه مخکي غلام وتښتي (يعني مشتري پر غلام قبضه نه وي کړې او په همدې دوران کي هغه وتښتيږي) او بيا واپس راسي. نو څرنګه چي په دې صورت کي مخکنی عقد پوره کيږي او د نوي عقد ضرورت نسته. همداسي په دلته هم مخکنی عقد پوره کيږي او د نوي عقد ضرورت به نه وي. (او راجح قول ظاهر روايت دی)[*].

## د ښځي د شيدو بيع (احسن)

قَالَ: وَلَا بَيْعُ لَبَنِ امْرَأَةٍ فِي قَدَحٍ فرمايي: او د ښځي د هغه شيدو بيع [هم] جائز نه ده کوم چي په پياله کي وي [يعني کوم چي لوښل سوي او له سينې څخه را ايستل سوي وي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوزُ بَيْعُهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه بيع جائز ده لِأَنَّهُ مَشْرُوبٌ طَاهِرٌ ځکه چي هغه يو پاک د چيښلو شی دی وَلَنَا: أَنَّهُ جُزْءُ الْآدَمِيِّ او زموږ دليل دا دی: چي شيدې د انسان جزء دي وَهُوَ بِجَمِيعِ أَجْزَائِهِ مُكَرَّمٌ او انسان د خپلو ټولو اجزاؤ سره معزز [د عزت او احترام قابل] دی مَصُونٌ عَنِ الِابْتِذَالِ بِالْبَيْعِ [او] د بيع په ذريعه له ذليل کېدلو څخه محفوظ [خوندي] دی وَلَا فَرْقَ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ بَيْنَ لَبَنِ الْحُرَّةِ وَالْأَمَةِ او په ظاهر روايت کي د آزادي ښځي او مينځي په شيدو کي هيڅ فرق نسته وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَجُوزُ بَيْعُ لَبَنِ الْأَمَةِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي د مينځي د شيدو بيع جائز ده لِأَنَّهُ يَجُوزُ إِيرَادُ الْعَقْدِ عَلَى نَفْسِهَا ځکه چي د مينځي پر ذات عقد واردول [يعني مينځه خرڅول] جائز دي فَكَذَا عَلَى جُزْئِهَا نو همداسي به د هغې پر جزء هم عقد واردول جائز وي. قُلْنَا: الرِّقُّ قَدْ حَلَّ نَفْسَهَا موږ [په جواب کي ورته] وايو: چي د مينځي په ذات کي رقيت سرايت

[*] القول الراجح: هو ظاهر الرواية، كما قال العلامة أكمل الدين رَحِمَهُ الله: ولا فرق بين لبن الحرة والأمة...إلخ (العناية ج:۶، ص:۶۱)، وكذا في الدر المختار (ج:۴، ص:۱۲۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۴۲]

کړې دی فَأَمَّا اللَّبَنُ فَلَا رِقَّ فِيهِ لېکن په شيدو کي هيڅ رقيت نسته لِأَنَّهُ يَخْتَصُّ بِمَحَلٍّ يَتَحَقَّقُ فِيهِ الْقُوَّةُ الَّتِيْ هِيَ ضِدُّهُ ځکه چي رقيت د داسي محل سره خاص دی چي په هغه کي هغه قوت ثابتېدای سي کوم چي د رقيت ضد وي [يعني د داسي محل سره خاص دی چي په هغه کي آزادي ثابتېدای سي] وَهُوَ الْحَيُّ او داسي محل ژوندی کس دی [مطلب دا چي آزادي په هغه محل او هغه شي کي ثابتيږي چي په هغه کي ژوندون وي] وَلَا حَيَاةَ فِي اللَّبَنِ او په شيدو کي هيڅ ژوندون نسته.

**اللغات**: ﴿قَدَح﴾ (د قاف او دال په فتحه سره): گيلاس، پياله، هغه لوښی چي اوبه او داسي نور پکي چيښل کيږي، "قدح" خالي گيلاس ته وايي، يعني کله چي په گيلاس کي اوبه نه وي، لېکن کله چي په هغه کي اوبه (شيدې او داسي نور) وي، نو "کأس" ورته ويل کيږي (مصباح اللغات)، ﴿مصون﴾ د نصر له بابه مفعول دی: محفوظ، خوندي، ساتل سوی، ﴿ابتذال﴾ د افتعال مصدر دی: د عزت خلاف کار کول، رذالت، ذليل کېدل، سپکاوی، ﴿رق﴾ رقيت، غلامتوب، غلاموالی، ﴿حياة﴾ ژوند، ژوندون، زندگي.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي زموږ د جمهورو په نېز د ښځي د شيدو بيع (خرخول) جائز نه دي، برابره ده ښځه آزاده وي او که مينځه وي، او برابره ده شيدې په سينه (تيو) کي وي او که را ايستل سوي وي، يعني په يو لوښي کي لوېشل سوي وي.

ځرنګه چي د غوا، ګاميښي او داسي نورو د شيدو بيع په هغه وخت کي جائز ده کله چي په يو لوښي کي ولوېشل سي، نو ځکه له دې څخه دا وهم کېدای سو چي که د ښځي شيدې هم په يو لوښي کي ولوېشل سي نو د هغه بيع به جائز وي، صاحب د کتاب د "في قدح" په قيد سره دغه وهم ليري کوي فرمايي چي دا وهم صحيح نه دی، د ښځي شيدې که په سينه کي وي يا د باندي وي په هر صورت کي د هغه بيع جائز نه ده.

وقال الشافعي إلخ: د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د ښځي د شيدو بيع جائز ده، برابره ده هغه مينځه وي او که آزاده وي؛ د امام شافعي دليل دا دی چي شيدې د چيښلو قابل شی دی (يعني چيښل کېدای سي) او هغه طاهر او پاکي هم دي (د طاهر په قيد سره يې له شرابو څخه احتراز وکړی، ځکه هغه که د چيښلو قابل شی دي لېکن پاک نه دي)، او د داسي شيانو بيع صحيح ده کوم چي پاک او د چيښلو قابل (مشروب) وي، نو ځکه به د شيدو بيع هم صحيح وي.

ولنا إلخ: زموږ دلیل دا دی چي شیدې د انسان جزء دي، او الله تعالیٰ انسان مکرم او محترم ګرځولی دی د خپلو ټولو اجزاؤ سره، اوس که د انسان د یوه جزء د بیع اجازت ورکول سي نو د هغه اکرام او احترام به تر پښو لاندي سي؛ ځکه چي پر یو شي د بیع واردېدل د هغه د ټیټوالي، اهانت او نا محترم والي دلیل دی؛ نو ځکه د انسان د کرامت او شرافت په خاطر به د هغه د هیڅ جزء بیع هم جائز نه وي.

ولا فرق إلخ: فرمایي چي په ظاهر روایت کي خو د آزادي ښځي او مینځي د شیدو د بیع ممانعت برابر دی (یعني د دواړو شیدې خرڅول ناجائز دي) او هیڅ فرق پکښې نسته، لېکن د نوادر په روایت کي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چي هغه د مینځي په شیدو کي د بیع اجازت ورکړی دی او دا دلیل یې وړاندي کړی دی چي شیدې د مینځي یو جزء او حصه ده، او د حکم مدار پر کل وي، او د مینځي کل یعني د هغې ذات خرڅول صحیح دي، نو د هغې بعض (جزء) خرڅول به ولي صحیح نه وي!؟.

قلنا إلخ: زموږ (د جمهورو) له طرفه امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله ته جواب دا دی چي د مینځي په ذات او کل کي ځکه بیع جائز ده چي په هغه کي رقیت (غلامتوب) موجود دی، لېکن د هغې په جزء یعني په شیدو کي رقیت نسته (لنډه دا چي د مینځي په ذات کي د بیع د جائز کېدلو علت د رقیت موجودېدل دي او د هغه په شیدو کي رقیت نسته)؛ ځکه چي د رقیت محل ژوندون دی، او په شیدو کي هیڅ ژوند او زندګي نه وي، نو کله چي د هغې په شیدو کي د بیع د جائز کېدلو علت (رقیت) نسته، نو بیا به یې بیع هم صحیح نه وي؛ ځکه قاعده دا ده چي د علت په منتفي کېدلو سره حکم هم منتفي کیږي.

**د امام شافعي د دلیل جواب**: صاحب د هدایې خو د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دلیل جواب نه دی ورکړی، لېکن په بنایه، فتح القدیر او داسي نورو کي د هغه جواب ذکر سوی دی، د جواب حاصل دا دی چي تاسي (امام شافعي رَحِمَهُ الله) چي شیدو ته مشروب ویلي دي، له هغه څخه ستاسي مراد مطلقاً مشروب دی، او که د ضرورت په وخت کي مشروب دی، که مو له هغه څخه مطلقاً مشروب مراد وي، نو دا موږ نه تسلیموو؛ ځکه د ښځي شیدې صرف د رضاعت په مودت کي حلالي وي، نه تر هغه وروسته. لهذا مطلقاً مشروب مرادول صحیح نه دي، او که تاسي د ضرورت په وخت کي هغه مشروب ګڼئ نو موږ هم دا خبره تسلیموو. ځکه چي د ښځي شیدې د ضرورت په وخت کي یعني د رضاعت په مودت کي د بچي غذا ده (او بچي ته د هغه ورکول حلال دي)، لېکن د ضرورت په وخت کي د غذا کېدلو څخه دا نه لازمیږي چي هغه دي مال وي؛ لکه څرنګه چي د مردار سوي حیوان غوښې د ضرورت او اضطرار په وخت کي غذا ده. لېکن مال نه دي. لهذا کله چي د ښځي شیدې مال نه دي نو د هغه بیع به هم جائز نه وي.

## د خنزير د وربښتانو (وژغنو) بيع

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ شَعْرِ الْخِنْزِيرِ فرمايي: او د خنزير د وربښتو بيع جائز نه ده لِأَنَّهُ نَجِسُ الْعَيْنِ ځکه چي خنزير نجسُ العين دى فَلَا يَجُوزُ بَيْعُهُ إِهَانَةً لَهُ نو د هغه د سپکاوي کولو لپاره به يې بيع جائز نه وي وَيَجُوزُ الِانْتِفَاعُ بِهِ لِلْخَرْزِ لِلضَّرُورَةِ [ليکن] د ضرورت په وجه [يعني د ضرورت په وخت کي] د هغه له وربښتو څخه نفع اخيستل جائز دي فَإِنَّ ذَلِكَ الْعَمَلَ لَا يَتَأَتَّى بِدُونِهِ ځکه چي د ګنډلو کار له هغه څخه بغير نه حاصليږي [يعني څپلې او داسي نور صرف د خنزير په وربښتو سره مضبوط ګنډل کيږي. او نور تارونه دېر دوام نه کوي (ځکه پخوا به نور ټينګ تارونه موجود نه وو)] وَيُوجَدُ مُبَاحَ الْأَصْلِ او [څرنګه چي] د خنزير وربښته په مباح [روا] توګه پيدا کيږي [يعني مفت ترلاسه کيږي] فَلَا ضَرُورَةَ إِلَى الْبَيْعِ نو ځکه د هغه بيع ته ضرورت نسته وَلَوْ وَقَعَ فِي الْمَاءِ الْقَلِيلِ او که د خنزير وربښته په لږ اوبو کي ولويږي أَفْسَدَهُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ ❁ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز هغه اوبه مرداروي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَا يُفْسِدُهُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز يې نه مرداروي لِأَنَّ إِطْلَاقَ الِانْتِفَاعِ بِهِ دَلِيلُ طَهَارَتِهِ ځکه چي د خنزير له وربښتو څخه د نفع اخيستلو اجازت د هغوى د پاکوالي دليل دى [يعني د ضرورت په وخت کي له هغوى څخه د نفع اخيستلو جائز کېدل د دې دليل دى چي هغوى پاک دي] وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ الْإِطْلَاقَ لِلضَّرُورَةِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي [د انتفاع] اجازت د ضرورت په وجه دى فَلَا تَظْهَرُ إِلَّا فِي حَالَةِ الِاسْتِعْمَالِ نو دا ضرورت به د استعمال [نفع اخيستلو] له حالت څخه بغير [په جلا بل حالت] کي نه ښکاره کيږي وَحَالَةُ الْوُقُوعِ تُغَايِرُهَا او [په اوبو کي] د لوېدلو حالت د استعمال له حالت څخه مغاير [جلا] دى.

**اللغات**: ﴿شعر﴾ وربښته، وربښتان، ﴿إهانة﴾ د افعال مصدر دى: سپکاوى کول، توهين کول، ذليل کول، ﴿خرز﴾ څپلې ګنډل، بخيې کول (بخيې پرلګول)، ﴿مباح الأصل﴾ هغه شى کوم چي په اصل کي مباح (روا) او غير مملوک وي (يعني هغه شى کوم چي د چا په ملکيت کي نه وي او د هغه اخيستل او په خپل قبضه کي راوستل روا وي، لکه د صحرا بوټي او داسي نور).

---

❁ **القول الراجح**: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: وقد كان ابن سيرين لا يلبس خفا خرز بشعر الخنزير...إلى أن قال: قال أبو يوسف: أنه لو وقع في ماء قليل أفسده... والصحيح قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:۶، ص:۲۶)، وكذا في الدر المختار: ويفسد الماء على الصحيح (ج:۴، ص:۱۲۷). [القول الراجح ج:۲، ص:۴۳]

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې الله تعالیٰ خنزير ناپاک او نجس العين ګرځولی دی، نو ځکه خنزير د خپلو ټولو اجزاؤ سره ذليل او واجب الاهانة دی، او د مسلمان لپاره نه د عين خنزير بيع جائز ده، او نه د هغه د يوه جزء بيع جائز ده، لکه ورېښته او داسې نور.

دلته تاسې په دې خبره ځان پوه کړئ! چې صاحب د هدايې په دې مسئله کې د خنزير د ورېښتو د بيع د نه جائز کېدلو علت د هغه اکرام او احترام ګرځولی دی، يعنې که د هغه بيع جائز وګرځول سي نو د خنزير اکرام او احترام به لازم سي، لېکن له دې څخه په مخکنۍ مسئله کې د شيدو د بيع د ناجائز کېدلو علت د انسان اهانت او ټيټوالی ګرځول سوی دی، يعنې که د ښځې د شيدو بيع جائز وګرځول سي نو دا د انسان د ټيټوالي او نا محترم والي دليل دی. لنډه دا چې صاحب د هدايې په اوله مسئله کې بيع د اهانت او ذلت دليل ګرځولې ده، او په دغه دويمه مسئله کې يې بيع د اکرام او احترام دليل ګرځولې ده، او په دې دواړو خبرو کې تضاد دی (ځکه داسې نه سي کېدای چې يو شی دې هم د ذلت او ټيټوالي دليل وي او هم دې د عزت او اکرام دليل وي).

علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله په فتح القدير کې د دې جواب دا بيان کړی دی چې يو شی په يوه مسئله کې د ذلت دليل او په بله مسئله کې د عزت او احترام دليل خو نه سي کېدای، لېکن د نسبت او اضافت په اعتبار سره په يوه شي کې دا دواړه طرفونه (ذلت او عزت) سره جمع کېدای سي، مثلاً که باچا خپلو مزدورانو ته ووايي چې تاسې نن په دربار کې زما د خلکو سره کښېنئ!، نو ښکاره ده چې د باچا دغه خبره د مزدورانو په حق کې ډېر اکرام او احترام دی، لېکن که باچا يو قاضي ته يا داسې بل د غټ منصب والا سړي ته د خلکو سره په دربار کې د کښېنستلو حکم وکړي، نو دا د هغه په حق کې اهانت او ذلت دی، نو تاسې اوګورئ! چې د نسبت په وجه د کښېنستلو حکم په يوه ځای کې د اکرام او احترام سبب دی او په بل ځای کې د اهانت او ذلت سبب دی، همدغه ډول دلته هم په دواړو کې فرق دی، ځکه انسان ډېر مکرم او محترم دی، نو د هغه خرڅول د هغه په حق کې اهانت او ذلت دی، او خنزير ډېر نجس او مردار حيوان دی، نو د هغه خرڅول (او په عوض کې يې دراهم او دنانير اخيستل) د هغه په حق کې يو ډول د عزت او کرامت سبب دی، لهذا که څه هم په دواړو مسئلو کې په ښکاره توګه تعارض او تضاد سته، لېکن د نسبت او اضافت په اعتبار سره يوه له بلې څخه جلا ده. لنډه دا چې د خنزير د ورېښتو بيع ناجائز او حرام ده.

لېکن د ضرورت په وخت کې د څپلی او داسې نورو د ګنډلو په کار کې د هغه له ورېښتو څخه نفع اخيستل جائز دي، ځکه په عامه توګه په دې کار کې د خنزير ورېښته استعماليږي (لکه پخوا چې به دا عادت وو، ځکه چې په هغه سره به څپلی او داسې نور ښه مضبوطېدل)، لېکن که د خنزير د ورېښتو څخه

بغير په نورو تارونو سره د ګنډلو کار کېداى سي (لکه زموږ په اوسني زمانه کي چي د دې لپاره هر ډول مضبوط تارونه سته)، نو بيا يې استعمالول صحيح نه دي.

ويوجد إلخ: په دې سره د يو سوال جواب ورکوي، سوال دا دى چي کله د ضرورت په وخت کي د خنزير له ورېښتو څخه نفع اخيستل جائز دي، نو د هغوى بيع هم جائز کېدل پکار دي، حالانکي داسي نه ده؟

نو د همدغه سوال په جواب کي فرمايي چي د خنزير ورېښته مباح الاصل دي يعني له پيسو څخه بغير مفت ترلاسه کېږي، نو ځکه د هغوى د بيع جائز ګرځولو ته هيڅ ضرورت نسته، لېکن که له پيسو او رانيولو څخه بغير نه ترلاسه کېږي (او له هغوى څخه بغير بل هيڅ د ګنډلو تار هم نه وي) نو بيا د هغوى بيع او شراء جائز ده، لکه څرنګه چي فقيه ابو الليث رَحِمَهُ الله فرمايلي دي.

ولو وقع إلخ: مسئله دا ده که د خنزير ورېښته په لږ اوبو کي ولوېږي (کوم چي جاري نه وي)، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز اوبه مردارېږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز نه مردارېږي؛ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دى چي د څپليو او داسي نورو په ګنډلو کي د خنزير له ورېښتو څخه د نفع اخيستلو اجازت د هغوى د پاکوالي دليل دى، او د پاک شي په لوېدلو سره اوبه نه مردارېږي، نو ځکه به د خنزير د ورېښتو په لوېدلو سره اوبه نه مردارېږي.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دى چي د خنزير له ورېښتو څخه د نفع اخيستلو اجازت د ضرورت په وجه ثابت دى او کوم شى چي ضرورتاً ثابت وي د هغه حکم د بل جلا شي وطرف ته نه متعدي کېږي، نو ځکه د خنزير د ورېښتو ضرورت به صرف د ګنډلو د کار سره خاص وي او له هغه څخه بغير به د بل جلا (مغاير) شي سره خاص نه وي، او څرنګه چي په اوبو کي د ورېښتو د لوېدلو حالت جلا دى يعني دا حالت د ورېښتو د استعمالولو (نفع اخيستلو) له حالت څخه جلا او مغاير دى، نو ځکه په اوبو کي د لوېدلو په حالت کي به د خنزير د ورېښتو ضرورت او د هغوى طهارت نه ښکاره کېږي او کله چي په دې حالت کي د هغوى طهارت ښکاره نه سو، نو د هغوى په لوېدلو سره به اوبه مردارېږي.

## د انسان د وړېښتانو بيع

وَلَايَجُوزُ بَيْعُ شُعُوْرِ الْإِنْسَانِ وَلَا الِانْتِفَاعُ بِهَا او د انسان د وړېښتو بيع [خرڅول] او له هغوی څخه نفع اخيستل جائز نه دي لِأَنَّ الْآدَمِيَّ مُكَرَّمٌ لَا مُبْتَذَلٌ ځکه چې انسان معزز [او محترم] دی ذليل [سپک او بې وقاره] نه دی فَلَا يَجُوزُ أَنْ يَكُوْنَ شَيْءٌ مِنْ أَجْزَائِهِ مُهَانًا وَمُبْتَذَلًا نو ځکه دا جائز نه دي چې د هغه له اجزاؤ څخه هيڅ جزء سپک او ذليل وګرځول سي [يعني د هغه د هيڅ جزء سپکاوی او بې احترامي کول جائز نه دي] وَقَدْ قَالَ [1] عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: لَعَنَ اللهُ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ او نبي کريم ﷺ [هم] فرمايلي دي: الله دي لعنت وکړي پر هغه ښځي کوم چې [د نورو ښځو په سرو کې] وړېښتان ور لګوي او پر هغه ښځي کوم چې [په بلي ښځي سره] وړېښتان لګوي [ځکه چې وړېښتان د انسان يو جزء دی] وَإِنَّمَا يُرَخَّصُ فِيمَا يُتَّخَذُ مِنَ الْوَبَرِ فَيَزِيدُ فِي قُرُوْنِ النِّسَاءِ وَذَوَائِبِهِنَّ او صرف د هغه وړېښتو اجازت سته کوم چې له اوبن [او داسي نورو] څخه اخيستل کيږي چې هغوی د ښځو په چوټيو او پېکيو کې زياتوب [اوږدوالی او ګڼوالی] راولي.

**اللغات:** ﴿مکرّم﴾ د عزت او احترام والا، ﴿مُبتذل﴾ سپک او ذليل، بې وقار (کوم چې څه وقار او عزت نه لري)، ﴿مُهان﴾ سپک، بې عزته. ﴿الواصلة﴾ د "فَاعِلَةٌ" پر وزن د مؤنث اسم فاعل صيغه ده: هغه ښځه کوم چې د نورو ښځو په سر او وړېښتو کې خپل وړېښتان يا د بلي ښځي وړېښتان لګوي (لکه د ځينو سيمو په ښځو کې چې دا عادت دی چې د خپلو وړېښتو د ښکلا، اوږدوالي او ګڼوالي لپاره د نورو ښځو ښکلي وړېښتان استعمالوي)، ﴿المستوصلة﴾ د "مستفعلة" پر وزن مخکنۍ صيغه ده: هغه ښځه کوم چې له بلي ښځي څخه د دې کار طلب کوي يعني دا حکم ورته کوي چې زما په سر (وړېښتو) کې د بلي ښځي وړېښته ولګوه!، ﴿وبر﴾ د اوبن وړېښته، د اوبن وړی، لکه څرنګه چې د پسه وړېښتو (وړی) ته "صُوْف" وايي، ﴿قرون﴾ جمع د قَرْنٌ ده، قَرْن ښکر ته وايي، دلته ځني مراد چوټي او داسي نور دي، يعني هغه وړېښتان کوم چې يې ښځه سره جمع کړي او يو ځای يې سره وتړي، ﴿ذوائب﴾ جمع د ذُؤَابَةٌ ده: هغه وړېښتان کوم چې پر تندي را ايله وي، يعني پېکی، وربل.

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب النكاح، باب الواصلة والواشمة، حديث رقم:۱۹۸۷. والبخاري، باب وصل الشعر، حديث رقم:۵۹۳۶. ومسلم، باب تحريم فعل الواصلة والمستوصلة، حديث رقم:۵۵۶۵/۲۱۲۲.

**تشريح : مسئله** : دا ده چي نه د انسان د وریښتو بیع جائز ده او نه له هغه څخه فایده اخیستل جائز دي؛ ځکه چي انسان د خپلو ټولو اجزاؤ او اعضاؤ سره مکرم او محترم دی. اوس که د انسان د یوه جزء د خرڅولو او استعمالولو اجازت ورکول سي نو په دې سره به د انسان کرامت او شرافت زخمي سي. کوم چي صحیح نه دي او د الله تعالیٰ د دې فرمان ﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْ آدَمَ...إلخ﴾ منافي دي. او بل دا چي د انساني وریښتو د استعمالولو پر ممانعت د نبي کریم ﷺ دا حدیث هم دلیل دی چي الله تعالیٰ پر هغه ښځي لعنت کړی دی کوم چي د ښځو په سرونو (وریښتو) کي خپل وریښته یا د بلي ښځي وریښته لګوي او پر هغه ښځي یې هم لعنت کړی دی. کوم چي د دې کار حکم کوي (چي زما په سر کي نور وریښته ولګوه!)؛ له دې حدیث څخه دا ښکاره کیږي چي له انساني وریښتو څخه هیڅ ډول فایده اخیستل صحیح نه دي.

ها! که یو ښځه پورتنی کار کول غواړي نو د اوښ، بزې یا داسي نور وریښته دي استعمال کړي، فقهاؤ د دې اجازت ورکړی دی چي ښځه د خپل چوټي او وریښتو د اوږدولو لپاره د اوښ او داسي نورو وریښته کارولای سي.

## د مردار سوي خاروي د اجزاؤ بیع

قَالَ: وَلَا بَيْعُ جُلُوْدِ الْمَيْتَةِ قَبْلَ أَنْ تُدْبَغَ فرمايي: او له دباغت ورکولو څخه مخکي د مردار خاروي د پوستونو بیع جائز نه ده لِأَنَّهُ غَيْرُ مُنْتَفَعٍ بِهِ ځکه چي [تر دباغت مخکي] هغه د نفع اخیستلو قابل نه وي [یعني له هغه څخه نفع نه سي اخیستل کېدای] قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: لَا تَنْتَفِعُوْا مِنَ الْمَيْتَةِ بِإِهَابٍ او نبي کریم ﷺ فرمايلي دي: چي د مردار خاروي له اُوم پوست څخه نفع مه اخلئ! وَهُوَ اسْمٌ لِغَيْرِ الْمَدْبُوْغِ او "إهاب" د نا رنګول سوي [نا پوخ کړل سوي] پوست نوم دی عَلٰى مَا عُرِفَ فِيْ كِتَابِ الصَّلَاةِ لکه څرنګه چي په کتاب الصلاة کي وپېژندل سوه وَلَا بَأْسَ بِبَيْعِهَا وَالِانْتِفَاعِ بِهَا بَعْدَ الدِّبَاغِ او له دباغت څخه وروسته د هغه په بیع [خرڅولو] او له هغه څخه په نفع اخیستلو کي هیڅ پروا نسته لِأَنَّهَا طَهُرَتْ بِالدِّبَاغِ ځکه چي په دباغت سره هغه پاک سو وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِيْ كِتَابِ الصَّلَاةِ او موږ په کتاب الصلاة کي دا ذکر کړي دي وَلَا بَأْسَ بِبَيْعِ عِظَامِ الْمَيْتَةِ وَعَصَبِهَا وَصُوْفِهَا وَقَرْنِهَا وَشَعْرِهَا وَوَبَرِهَا وَالِانْتِفَاعِ بِذٰلِكَ كُلِّهِ او د مردار خاروي د هډوکو، او د هغه د پلو، او د هغه د وړیو او د هغه د ښکرو او د هغه د وریښتو په بیع کي او له دې ټولو څخه په نفع اخیستلو کي هیڅ پروا

[1] قد تقدم في الطهارت، أنظر هنا.

نسته لِأَنَّهَا طَاهِرَةٌ لَا يَحِلُّهَا الْمَوْتُ لِعَدَمِ الْحَيَاةِ ځکه دا شيان پاک دي او په هغوی کي د ژوند د نشتوالي په وجه مرګ حلول [سرايت] نه کوي وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او موږ مخکي [هم] دا بيان کړي دي وَالْفِيلُ كَالْخِنْزِيرِ نَجِسُ الْعَيْنِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ او فيل د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د خنزير په څير نجس العين دی وَعِنْدَهُمَا بِمَنْزِلَةِ السِّبَاعِ ۞ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د درندګانو په درجه کي دی حَتَّى يُبَاعُ عَظْمُهُ وَيُنْتَفَعُ بِهِ تر دې چي د هغه هډوکي [هم] خرڅول کيدای سي او له هغه څخه نفع [هم] اخيستل کيدای سي.

**اللغات**: ﴿جُلُود﴾ جمع د جِلْدٌ ده: پوست، څرمن، ﴿ميتة﴾ په طبعي مرګ مردار سوی څاروی، يعني هغه څاروی کوم چي په خپله مړ (مردار) سي، (څاروی هغه حيوان ته وايي کوم چي واښه خوري لکه بزه، پسه. غوا، اوښ او داسي نور. ﴿تدبغ﴾ له فتح، نصر او ضرب څخه مضارع مجهوله ده: پوست (څرمن) ته رنګ ورکول، يعني پوست وچول او پخول (د مسالې اوداسي نورو شيانو په ذريعه د پوست لوندوالی او بدبويي ورختمول). ﴿إِهَاب﴾ اوم پوست (اومه څرمن)، نا پوخ کړل سوی پوست، ﴿عَصَب﴾ پله، جمع يې أَعْصَاب راځي، ﴿وبر﴾ د اوښ وريښته (د اوښ اوړی)، ﴿سِبَاع﴾ جمع د سُبُعٌ ده: درنده، داړونکی او شيرونکی حيوان.

**تشريح**: په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده چي له دباغت (رنګولو) څخه بغير د مردار سوي څاروي د پوست بيع ناجائز ده؛ ځکه له دباغت څخه بغير هغه نجس وي او د نفع اخيستلو قابل نه وي، او د مسلمان لپاره نجس او غير منتفع شی استعمالول جائز نه دي، او بل دا چي په حديث کي د "إِهَاب" له استعمالولو څخه منع سوې ده، او "إِهَاب" په لغت کي غير مدبوغ (نا رنګول سوي) پوست ته وايي؛ نو ځکه له دباغت څخه مخکي به د هغه بيع هم صحيح نه وي او له هغه څخه نفع او فايده اخيستل به هم صحيح نه وي.

خو څرنګه چي په دباغت سره پوست پاک او د استعمالولو قابل ګرځي؛ نو ځکه تر دباغت وروسته به د مردار څاروي د پوست بيع او له هغه څخه نفع اخيستل (استعمالول) جائز وي؛ ځکه اوس مانع زائل سو؛ او أصول دا دی چي "إِذَا زَالَ الْمَانِعُ عَادَ الْمَمْنُوعُ" يعني د مانع تر زوال وروسته

۞ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: ونقل السائحاني رَحِمَهُ الله من الهندية: ويجوز بيع سائر الحيوانات سوى الخنزير وهو المختار (رد المحتار ج:۴، ص:۱۲۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۴۴]

ممنوع شی واپس راګرځي. صاحب د هدايې فرمايي چې موږ دا ټول تولي مسئلې په كتاب الصلاة كې بيان كړي دي (دا مسئلې په كتابُ الصلاة كې نه، بلكې په كتابُ الطهارة كې بيان سوي دي. او دا د كاتب سهو ده. يا په حواله پېښولو كې تېروتنه سوې ده).

ولا بأس ببيع عظام إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده چې د مردار ښاروي د هډوكو، ښكرونو، ورېښتو او داسې نورو اجزاو بيع او د هغوى استعمالول صحيح دي؛ ځكه دا شيان پاک وي؛ ځكه چې په هغوى كې ژوند نه وي، همدا وجه ده چې پر هغوى د مرګ اثر نه پرېوځي، لهذا د ښاروي په مرګ سره د هغوى د مردار پدلو (ناپاک كېدلو) خطره نسته، بلكې هغوى همېشه پاک پاتېږي، او له پاكو شيانو څخه نفع اخيستل صحيح دي، نو ځكه به د دې شيانو بيع او استعمالول هم جائز وي (د پورتنى حوالې په څېر دا حواله هم غلطه ده. دا مسئله هم په كتابُ الطهارة كې بيان سوې ده).

والفيل إلخ: (۳)... دريمه مسئله دا ده چې امام محمد رَحِمَهُ الله فيل د خنزير په څېر نجس العين ګرځولى دى، لهذا د خنزير په څېر نه د هغه له يو جزء څخه نفع اخيستل جائز دي او نه د هغه بيع (خرڅول) جائز دي. او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز فيل د درندګانو په درجه كې دى، او د درنده هډوكي او داسې نور اجزاء خرڅول او له هغوى څخه نفع اخيستل جائز دي، نو ځكه به د فيل له هډوكو څخه هم نفع اخيستل او د هغوى خرڅول او رانيول جائز وي.

## د كور او مكان د پورتنى حصې (چت) بيع

قال: وَإِذَا كَانَ السُّفْلُ لِرَجُلٍ وَعُلْوُهُ لِآخَرَ فرمايي: او كله چې لاندينى ځاى د يوه سړي وي او پورتنى ځاى [بالاخانه] د بل سړي وي فَسَقَطَا أَوْ سَقَطَ الْعُلْوُ وَحْدَهُ بيا دواړه ځايونه و نړېږي يا صرف پورتنى ځاى [بالاخانه] ونړېږي فَبَاعَ صَاحِبُ الْعُلْوِ عُلْوَهُ بيا د پورتني ځاى مالک خپل د علو [تعلى] حق خرڅ كړي [يعني هغه چې كوم د پورتني ځاى (چت) جوړولو حق لري. دا حق پر بل چا خرڅ كړي] لَمْ يَجُزْ نو دا جائز نه دي لِأَنَّ حَقَّ التَّعَلِّي لَيْسَ بِمَالٍ ځكه چې د تعلى حق [يعني د پورتني ځاى جوړولو حق] مال نه دى لِأَنَّ الْمَالَ مَا يُمْكِنُ إِحْرَازُهُ ځكه چې مال هغه دى چې محفوظ كول [خوندي كول] يې ممكن وي وَالْمَالُ هُوَ الْمَحَلُّ لِلْبَيْعِ او همدا مال د بيع محل دى [يعني بيع صَرف په مال كې جائز ده. نه په غير مال كې] بِخِلَافِ الشِّرْبِ په خلاف د حق الشرب حَيْثُ يَجُوزُ بَيْعُهُ تَبَعًا لِلْأَرْضِ بِاتِّفَاقِ الرِّوَايَاتِ ځكه د هغه بيع د ځمكې په متابعت كې جائز ده په ټولو رواياتو كې [يعني كه د ځمكې سره يو ځاى حق

الشرب هم خرڅ کړل سي نو دا په ټولو روایاتو کي جائز دي] وَمُنْفَرِدًا فِي رِوَايَةٍ او یوازي د هغه بیع [هم] جائز ده په یوه روایت کي وَهُوَ اخْتِيَارُ مَشَايِخِ بَلْخَ او همدا د بلخ د مشائخو رَحِمَهُمُ الله اختیار کړل سوی روایت دی لِأَنَّهُ حَظٌّ مِنَ الْمَاءِ ځکه چي حق الشرب د اوبو یو حصه ده وَلِهٰذَا يُضْمَنُ بِالْإِتْلَافِ همدا وجه ده چي هغه په تلفولو [ضایع کولو] سره مضمون کیږي [یعني که څوک حقُ الشرب ضایع کړي (مثلاً د بل چا حقُ الشرب واخلي) نو پر هغه ضمان واجبیږي] وَلَهُ قِسْطٌ مِنَ الثَّمَنِ او [همدا وجه ده] چي د حق الشرب لپاره د ثمن [قیمت] یوه حصه وي [یعني حقُ الشرب په قیمت کي خپله حصه لري] عَلَىٰ مَا نَذْكُرُهُ فِي كِتَابِ الشِّرْبِ لکه په کتاب الشرب کي چي به موږ دا [بحث] ذکر کړو.

**اللغات**: ﴿سفل﴾ په دې لفظ کي دوه لغات دي: سُفْل، سِفْل: لاندي پوړ (لاندینی ځای، لاندینی چت) ﴿علو﴾ په دې لفظ کي درې لغات دي: عُلو، عَلو، عِلو: پورتنی پوړ (پورتنی [لوړ] ځای، بالاخانه)، ﴿تعلّي﴾ د تفعّل مصدر دی: لوړ ختل، د "حق التعلی" معنیٰ به په تشریح کي ذکر سي، ﴿إحراز﴾ د افعال مصدر دی: ذخیره کول، محفوظ کول، خوندي کول، ﴿شِرْب﴾ د اوبو حصه، کښت ته د اوبه ورکولو حق (حق الشرب)، ﴿حظّ﴾ حصه، برخه.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که یو ځای دومنزله (دوچته) وي یعني پر سریې بل ځای وي، لاندي ځای د زید وي او لوړ پورتنی ځای (چت) د خالد وي، او بیا دواړه ځایونه ونړیږي یا صرف لوړ ځای ونړیږي، بیا د لوړ ځای مالک (خالد) پر یو بل چا خپل د تعلی حق (یعني پورتنی فضا) خرڅه کړي (یعني د چت جوړولو خپل حق خرڅ کړي، مطلب پر بل سړي خپل د چت ځمکه خرڅه کړي)، نو دا بیع ناجائز ده؛ ځکه چي په دې صورت کي مبیع د تعلی حق دی، او د تعلی حق (حق التعلی) مال نه دی، ځکه چي د تعلی حقُ د هوا او پورتنی فضا سره متعلق دی، او هوا (فضا) مال نه دی، ځکه مال هغه شي ته وایي چي پر هغه قبضه کول او د هغه ساتل (محفوظ کول) او ذخیره کول ممکن وي، لېکن هوا (فضا) داسي نه ده، نو د هوا مال نه کېدل ثابت سو، او کله چي هوا مال نه ده نو کوم شی چي د هوا سره متعلق دی یعني د تعلی حق، هغه به هم مال نه وي، او کله چي د تعلی حق مال نه دی نو د هغه بیع (خرڅول) به هم جائز نه وي؛ ځکه چي د بیع محل مال وي، نه غیر مال. ها! که چیري (خالد) خپل لوړ ځای له نړېدلو څخه مخکي خرڅ کړي نو جائز دي؛ ځکه په دې صورت کي مبیع د تعلی حق نه دی، بلکي په خپله د لوړ ځای عمارت مبیع دی، او عمارت (یعني جوړ سوی ځای) په یقیني توګه

مال دی، نو ځکه به د هغه بيع جائز وي. او که د مشتري تر قبضه کولو مخکي لوړ ځای ونړيږي، نو بيع باطليږي؛ ځکه چي تر قبضه کولو مخکي مبيع هلاکه سوه، او که د مشتري تر قبضې مخکي مبيع هلاکه سي نو بيع باطليږي، نو ځکه به په دې صورت کي هم بيع باطليږي.

**بخلاف الشرب إلخ:** دا د يو مقدر سوال جواب دی، (اول تاسي په شرب "حق الشرب" ځان پوه کړئ!. په کښت (کېټی) کي يو کوچنی نالی او لښتی وي چي په هغه کي کښت ته د اوبه ورکولو (سېرابولو) لپاره اوبه راځي، هغه ته حقُ الشرب وايي. که څوک دغه نالی د اوبه ورکولو د حق (حق الشرب) سره خرڅوي، نو دا په ټولو رواياتو کي جائز دي، ځکه چي هغه صرف د اوبه ورکولو حق نه خرڅوي بلکي نالی هم خرڅوي کوم چي ځمکه ده. نو ځکه دا جائز دي، او که نالی نه خرڅوي بلکي صرف په هغه کي د اوبو بهېدلو حق يعني کښت ته د اوبه ورکولو حق (حق الشرب) خرڅوي، نو دا هم په يوه روايت کي جائز دي او همدا روايت د بلخ مشائخو اختيار کړی دی).

**سوال:** اوس سوال دا دی چي "حقُ الشرب" د ځمکي يو حق دی، خو بيا هم د هغه بيع جائز ده، لکه څرنګه چي اوس موږ وويل چي د ځمکې (نالی) په متابعت کي د هغه بيع په ټولو رواياتو کي جائز ده، او له ځمکي (نالی) څخه بغير يوازي د حق الشرب بيع هم په يوه روايت کي جائز ده چي هغه د بلخ د مشائخو مختار روايت دی، لهذا څرنګه چي د حق الشرب بيع (خرڅول) جائز دي حال دا چي هغه د ځمکي حق دی، همداسي بايد د حق التعلی (يعني پر چت باندي د ځای جوړولو د حق) بيع هم جائز کېدل پکار دي، يا دواړه ناجائز کېدل پکار دي، لېکن حکم داسي نه دی، نو ولي د دواړو په مينځ کي دا فرق سته سره د دې چي دواړه حقوق دي!؟.

**جواب:** د دې سوال په جواب کي فرمايي چي حق الشرب د اوبو د يو حصې نوم دی (ځکه چي له اوبو څخه بغير د کښت بيع ناممکن ده، او له حق الشرب څخه بغير کښت ته اوبه رسول او هغه ته اوبه ورکول ناممکن دي) او اوبه مال دي، نو ځکه حق الشرب هم مال دی، همدا وجه ده که څوک د بل چا حق الشرب ضايع کړي، يعني بشير د زيد په حق الشرب سره خپل کښت ته اوبه ورکړي نو پر بشير ضمان لازميږي، او ضمان د مال په ضايع کولو سره لازميږي، نو ثابته سوه چي حق الشرب مال دی. او د حق الشرب د مال کېدلو دويم دليل دا دی چي د حق الشرب په مقابله کي د ثمن يوه حصه راځي، مثلاً که يو څوک د خپلي ځمکي سره حق الشرب هم خرڅ کړي، وروسته حق الشرب د بل چا مستحق وخيږي (يعني بل څوک دعوی وکړي چي په دې نالی کي د اوبه راوستلو حق زما دی په دې سره زه خپل کښت اوبه کوم، او دا دعوی ثابته کړي)، نو د حق الشرب چي څومره قيمت او ثمن وي مشتري به هغه له بائع څخه اخلي، له دې څخه معلومه سوه چي د حق الشرب په مقابله کي ثمن راځي، او د کوم شي په مقابله کي چي ثمن راځي، هغه د مال له قبيلې څخه وي، نو ثابته سوه چي حق الشرب مال دی، او د مال بيع جائز ده، نو

ځکه د حق الشرب بيع به هم جائز وي. او پاته سوه د تعلى حق (حق التعلى) نو مخکي ذکر سوه چي هغه مال نه دی، نو ځکه د هغه بيع به جائز نه وي. او د حق الشرب د مسئلې پوره تفصيل به انشاء الله په کتاب الشرب کي ذکر سي.

## د لاري او د اوبو بهېدلو (تېرېدلو) د ځای بيع (اشرف)

قال: وَبَيْعُ الطَّرِيْقِ وَهِبَتُهُ جَائِزٌ فرمايي: د لاري خرڅول او هبه کول جائز دي وَبَيْعُ مَسِيْلِ الْمَاءِ وَهِبَتُهُ بَاطِلٌ او د اوبو بهېدلو نالی [لښتی] خرڅول او هغه هبه کول باطل دي وَالْمَسْأَلَةُ تَحْتَمِلُ وَجْهَيْنِ: بَيْعُ رَقَبَةِ الطَّرِيْقِ وَالْمَسِيْلِ او دا مسئله د دوو صورتونو احتمال لري: [يو صورت دا چي] عين لاره خرڅول او عين د بهېدلو نالی خرڅول وَبَيْعُ حَقِّ الْمُرُوْرِ وَالتَّسْيِيْلِ او [دويم صورت دا چي] پر لاره د تېرېدلو حق خرڅول او د اوبو بهېدلو [تېرېدلو] حق خرڅول فَإِنْ كَانَ الْأَوَّلُ فَوَجْهُ الْفَرْقِ بَيْنَ الْمَسْأَلَتَيْنِ أَنَّ الطَّرِيْقَ مَعْلُوْمٌ که چيري اول صورت وي نو په دواړو مسئلو کي د فرق وجه دا ده چي لاره يو معلوم شی دی لِأَنَّ لَهُ طُوْلًا وَعَرْضًا مَعْلُوْمًا ځکه چي د لاري اوږدوالی او بر [پلنوالی] معلوم وي وَأَمَّا الْمَسِيْلُ فَمَجْهُوْلٌ او کوم چي مسيل دی نو هغه يو مجهول شی دی لِأَنَّهُ لَا يُدْرٰى قَدْرُ مَا يَشْغَلُهُ مِنَ الْمَاءِ ځکه دا معلومه نه چي اوبه به څومره ځای ونيسي وَإِنْ كَانَ الثَّانِيْ او که دويم صورت وي [يعني د تېرلو حق او د اوبو بهېدلو حق خرڅول] فَفِيْ بَيْعِ حَقِّ الْمُرُوْرِ رِوَايَتَانِ نو د تېرېدلو د حق په خرڅولو کي دوه روايتونه دي وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلٰى إِحْدَاهُمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ حَقِّ التَّسْيِيْلِ او په هغه دوو روايتونو کي د يوه روايت مطابق د تېرېدلو د حق او د بهېدلو د حق په مينځ کي [يعني په کوم روايت کي چي د تېرېدلو حق خرڅول جائز دي او د اوبو بهېدلو حق خرڅول باطل دي د هغه مطابق په دوی کي] د فرق وجه دا ده أَنَّ حَقَّ الْمُرُوْرِ مَعْلُوْمٌ چي پر لاره د تېرېدلو حق معلوم دی لِتَعَلُّقِهِ بِمَحَلٍّ مَعْلُوْمٍ وَهُوَ الطَّرِيْقُ ځکه د هغه تعلق د يو معلوم ځای سره دی چي هغه لاره ده أَمَّا الْمَسِيْلُ عَلَى السَّطْحِ فَهُوَ نَظِيْرُ حَقِّ التَّعَلِّيْ او پاته سو پر چت [بام] د اوبه بهېدلو حق نو هغه د حق التعلى په څېر دی وَعَلَى الْأَرْضِ مَجْهُوْلٌ او پر ځمکه هغه مجهول دی لِجَهَالَةِ مَحَلِّهِ ځکه چي محل [يعني د اوبو بهېدلو ځای] مجهول دی [ځکه اوبه

کله لږ بهيږي او کله ډيري | وَوَجْهُ الْفَرْقِ بَيْنَ حَقِّ الْمُرُورِ وَحَقِّ التَّعَلِّيْ عَلَى إِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ او په دوو روايتونو کي د يوه روايت مطابق د حق المرور او حق التعلى په مينځ کي د فرق وجه دا ده أَنَّ حَقَّ التَّعَلِّيْ يَتَعَلَّقُ بِعَيْنٍ لَا تَبْقَى چي حق التعلى د داسي عَين سره تعلق لري کوم چي باقي نه پاتيږي وَهُوَ الْبِنَاءُ او هغه [لاندينى] بناء ده [يعني له عَين څخه مراد لاندينى ځاى دى (لاندينى کمره)] فَأَشْبَهَ الْمَنَافِعَ نو حق التعلى د منافعو سره مشابه سو [او د منافعو بيع جائز نه ده] أَمَّا حَقُّ الْمُرُورِ يَتَعَلَّقُ بِعَيْنٍ تَبْقَى لېکن حق المرور د داسي عَين سره تعلق لري کوم چي باقي پاتيږي وَهُوَ الْأَرْضُ او هغه ځمکه ده فَأَشْبَهَ الْأَعْيَانَ نو هغه د اعيانو سره مشابه سو [او د أعيانو بيع جائز ده].

**اللغات**: ﴿مسيل﴾ د اوبو بهېدلو ځاى، د اوبو بهېدلو (تېرېدلو) نالى. تفصيلي معنى به يې په تشريح کي ذکر سي. ﴿رقبة﴾ د دې لفظ لغوي معنى ده: غاړه، او ځيني وخت د انسان پر ټوله ذات د دې اطلاق کيږي. "رقبة الطريق" د دې معنى ده: عَين لاره. اصل لاره. (يعني د لاري حق نه خرڅول، بلکي عَين لاره خرڅول).

﴿مرور﴾ د نصر مصدر دى: تېرېدل. ﴿تسييل﴾ د تفعيل مصدر دى: بهېدل. ﴿عَين﴾ کوم شى چي موجود وي او په لاس سره مسه کېداى سي او محفوظ کېداى سي، لکه ځمکه، آس او داسي نور، نو هغه ته "عين" (عين شى) وايي، جمع يې "أعْيَان" راځي. ﴿منافع﴾ جمع د مَنْفَعَةٌ ده: نفع، فايده. منفعة غير موجود شى دى. يعني هغه چي مسه کېداى او محفوظ کېداى نه سي، لکه پر آس سپرېدل او داسي نور. د اعيانو بيع (خرڅول) جائز دي، لېکن د منافعو بيع (يعني د يو شي منفعة خرڅول او هغه شى نه خرڅول) جائز نه دي، منافع صرف په اجاره (کرايه) باندي ورکول کېداى سي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چي امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي فرمايلي دي: لاره خرڅول او هبه کول جائز دي، او د اوبو بهېدلو او تېرېدلو نالى (مسيل) خرڅول او هبه کول ناجائز دي. (دا خبره په ياد لرئ چي له مسيل څخه مراد د نالى [النبتي] دومره اندازه ځاى دى چي په هغه کي اوبه بهيږي [تيرېږي]. او د هغه اندازه نامعلومه [مجهوله] ده، ځکه چي اوبه پر يوه اندازه نه بهيږي، يعني کله ډيري بهيږي او کله لږ. همدارنګه هغه لاره [پراخ لنبتى] چي اوبه پکښي راځي، په هغه کي هم د اوبو راتللو او بهېدلو اندازه نامعلومه ده، ځکه اوبه پر يوه اندازه نه بهيږي. نو ځکه د مسيل بيع ناجائز ده. موږ د آسانى لپاره د مسيل ترجمه په نالى [النبتي] سره کړې ده).

صاحب د هدايې فرمايي چي د جامع صغير دا مسئله د دوو صورتونو احتمال لري: ① يو دا چي د "طريق" مطلب دا دى چي اصل لاره خرڅول پر کوم چي انسان تيرېږي او کور ته پر داخليږي، او د

"مسيل" (نالی) مطلب دا دی چي اصل نالی خرڅول په کوم کي چي اوبه تيريږي. ② دويم صورت دا چي له "طريق" څخه مراد حق المرور دی، يعني پر لاره د تيرېدلو حق خرڅول، او له "مسيل" څخه مراد حقُ التسييل دی، يعني په نالی کي (يا پر چت [بام]) د اوبو بهېدلو او تيرېدلو حق خرڅول.

که اول صورت وي، يعني له طريق څخه مراد لاره وي او له مسيل څخه مراد نالی وي (يعني د عبارت مطلب دا وي چي د لاري خرڅول يا هبه کول جائز دي او د نالی خرڅول يا هبه کول ناجائز دي). نو په دې دواړو مسئلو کي (چي د لاري خرڅول يا هبه کول جائز دي او د نالی د ناجائز دي) د فرق وجه دا ده چي لاره يو معلوم شی دی، ځکه د لاري اوږدوالی (طول) او بر (عرض) معلوم دی، ځکه چي انسان په يو مُتعيَن حد کي ځي او له هغه څخه تجاوز نه کوي، او که دا حد مُتعيّن کړی سوی نه وي نو هم په شريعت کي د لاري حد (طول او عرض) مُتعيّن دی او هغه دا چي د لاري بر (عرض) د کور د دروازې (ګېټ) په برابر دی او د لاري اوږدوالی د کور له دروازې څخه واخله تر عام سړک پوري دی (مثلاً که څوک لاره خرڅه کړي او حدّ يې مُتعيّن نه کړي نو په شريعت کي د هغه حدّ دومره دی کوم چي اوس موږ بيان کړی، يعني د ګېټ د بر [عرض] په اندازه او له ګېټ څخه تر عام سړک او کوڅې پوري دا ځمکه د مشتري په قبضه کي داخليږي. او دا تقريباً هر چا ته معلومه ده). لهذا کله چي لاره (يعني د تيرېدلو ځمکه) معلومه ده او حدود يې مُتعيّن دي، نو ځکه په هغه کي به هيڅ نزاع او جنګ نه واقع کيږي، او کله چي هيڅ نزاع نه واقع کيږي، نو ځکه په دې صورت کي (يعني د طريق په مسئله کي) به بيع جائز کيږي. او پاته سو د اوبو بهېدلو نالی (مسيل) په کوم کي چي اوبه تيريږي هغه مجهول دی، يعني د اوبو بهېدلو (تيرېدلو) د ځای اندازه پکښي مجهوله ده، يعني دا معلومه نه ده چي څومره اوبه به پکښي تيريږي او نالی به څومره ډکيږي، اوبه به څومره ځای نيسي (دا نا معلومه ده)، او کله چي د اوبو بهېدلو د ځای اندازه معلومه نه ده، نو مبيع مجهوله سوه، او د مبيع د مجهول والي په وخت کي بيع نه صحيح کيږي، نو ځکه به په دې دويم صورت کي (يعني د مسيل په مسئله کي) بيع ناجائز وي. لېکن دا په ياد لرئ! چي په دې صورت کي بيع هغه وخت ناجائز ده کله چي د اوبو بهېدلو (تيرېدلو) د ځای اندازه نه وي مُتعيّن کړل سوې، لېکن که د اوبو بهېدلو د ځای اندازه او حدود مُتعيّن وي نو بيا د مسيل بيع جائز ده.

وإن كان الثاني إلخ: او که له عبارت څخه دويم صورت مراد وي، يعني له طريق څخه مراد حق المرور وي (يعني صرف پر لاره د تيرېدلو حق خرڅول، او اصل لاره نه خرڅول)، او له مسيل څخه مراد حق التسييل وي (يعني صرف د اوبو بهېدلو حق خرڅول، او مسيل [نالی] نه خرڅول)، نو د حق المرور په خرڅولو کي دوه روايتونه دي: ① د ابن سماعه رَحِمَهُ الله روايت دا دی چي حق المرور خرڅول جائز دي، ② او د

زيادات روايت دا دی چي خرڅول يې ناجائز دي، امام کرخي او فقيه ابو الليث رَحِمَهُ الله همدغه د زيادات روايت صحيح ګرځولی دی او دا دليل يې پېش کړی دی چي حق المرور يو حق دی، او تنها حقوقو بيع جائز نه ده (يعني يوازي د شي حق خرڅول او هغه شی نه خرڅول ناجائز دي). نو ځکه به د حق المرور بيع هم ناجائز وي. او د حق التسييل بيع (يعني دابو بهېدلو حق خرڅول) په ټولو رواياتو کي ناجائز دي يعني د هغه پر عدمِ جواز ټوله روايتونه متفق دی، نو ځکه د زيادات د روايت مطابق د حق المرور په بيع کي او د حق التسييل په بيع کي هيڅ فرق نسته، ځکه چي دواړه ناجائز دي. لېکن دابن سماعه د روايت مطابق په حق المرور او حق التسييل کي فرق دی، ځکه چي د هغه په روايت کي د حق المرور بيع جائز ده او د حق التسييل بيع ناجائز ده، نو د هغه د روايت مطابق په حق المرور او حق التسييل کي د فرق وجه دا ده چي حق المرور يو معلوم شی دی، ځکه د هغه تعلق د يو معلوم ځای سره دی چي هغه د کور لاره ده، او د کور د لاري اندازه تقريباً هر چا ته او په شريعت کي معلومه ده چي د هغې بر (عرض) به د کور د دروازې (ګېټ) په اندازه وي او اوږدوالي به يې تر عام سړک او کوڅې پوري وي. لنډه دا چي لاره معلومه او مُتعيّنه ده. او کله چي لاره معلومه ده نو پر هغه باندي د تېرېدلو حق به هم معلوم وي، او کله چي حق المرور معلوم دی، نو د هغه بيع به هم جائز وي (ځکه کله چي مبيع معلومه وي، نو بيع جائز کيږي).

او پاته سو حق التسييل يعني د اوبو بهېدلو (تېرېدلو) حق، نو د هغه دوه صورتونه دي: ① اوبه به پر چت بهيږي (تيرېږي)، ② يا به پر ځمکه بهيږي (يعني يا به په نالی کي تيرېږي)، که چيري هغه پر چت (بام) بهيږي، نو په دې صورت کي د حق التسييل بيع په دوو وجهو سره ناجائز ده، يو دا چي په دې صورت کي حق التسييل د "حق التعلی" په څېر دی (يعني د تسييل حق داسي دی لکه پر چت د ځای جوړولو حق)، ځکه څرنګه چي د حق التعلی تعلق د هوا (فضا) سره دی همداسي دلته د حق التعلی تعلق هم د هوا سره دی (او څرنګه چي د تعلی حق غيرِ محفوظ (غيرِ محرز) دی همداسي په دې صورت کي حقُ التسييل هم غيرِ محفوظ دی)، او د حق التعلی بيع ناجائز ده (لکه مخکي چي ذکر سوه) نو ځکه به د حق التسييل بيع هم ناجائز وي، دويمه وجه دا ده چي په دې صورت کي حق التسييل (د بهېدلو حق) مجهول دی، ځکه دا معلومه نه ده چي څومره باران به اوسي او څومره اوبه به وبهيږي، مطلب دا چي د باران د ډېرښت او کمښت په وجه به د اوبو بهېدل مختلف وي، او کله چي بهېدل (تسييل) مختلف او مجهول دي نو حق التسييل به هم مجهول وي، لهٰذا د حق التسييل د مجهول والي په وجه به بيع ناجائز وي (ځکه مبيع چي مجهوله وي نو بيع نه جائز کيږي).

او که اوبه پر ځمکه (يعني په نالی کي) بهيږي نو په دې صورت کي هم تسييل (بهېدل) او حق التسييل مجهول دی؛ ځکه چي د اوبو بهېدلو او تېرېدلو ځای مجهول دی، يعني دا معلومه نه ده چي

او به ځومره ځای نیسي او نالي به ځومره ډکیږي، او کله چي حق التسییل مجهول دی نو د هغه بیع به هم جائز نه وي.

ووجه الفرق بين حق المرور إلخ: څرنګه چي د ابن سماعه د روایت مطابق د حق المرور بیع جائز ده، او د حق التعلي بیع په ټولو روایاتو کي ناجائز ده (لکه څرنګه چي د حقُ التسییل بیع په ټولو روایاتو کي ناجائز ده) نو د هغه د روایت مطابق په حق المرور او حق التعلي کي د فرق وجه دا ده چي د حق التعلي تعلق د داسي عَین (ځای) سره دی کوم چي بقاء نه لري یعني زیات وخت نه پاتیږي، او هغه عَین لاندي ځای (لاندي کمره) او د لاندي ځای بام دی (ځکه یو ځای [کمره] او بام د همېشه لپاره نه پاتیږي بلکي خامخا یو وخت نړیږي [خصوصاً د پخوانی زماني وداني او بامونه])، نو ځکه حق التعلي د منافعو سره مشابه سو، ځکه چي منافع هم ډېر وخت نه پاتیږي (بلکي شی موجود وي او منافع يې ختم سي)، او د منافعو بیع جائز نه ده، نو ځکه د حق التعلي بیع به هم جائز نه وي. او پاته سو حق المرور نو د هغه تعلق د داسي عَین سره دی کوم چي بقاء لري او پاتیږي، او هغه عَین ځمکه ده (یعني له عَین څخه مراد ځمکه ده؛ ځکه ځمکه د همېشه لپاره پاتیږي او له منځه نه ځي)، نو حق المرور د اعیانو سره مشابه سو، یعني څرنګه چي عَین شی پاتیږي همداسي حق المرور هم پاتیږي، او د اعیانو بیع جائز ده، نو ځکه د حق المرور بیع به هم جائز وي.

## که څوک مینځه، یا پُسه خرڅ کړي لیکن هغه غلام، یا مېږه وخیږي (تفصیلي بحث)

قال: وَمَنْ بَاعَ جَارِيَةً فرمایي: او که څوک مینځه خرڅه کړي فَإِذَا هُوَ غُلَامٌ لیکن هغه غلام وخیږي فَلَا بَيْعَ بَيْنَهُمَا نو د بائع او مشتري په مینځ کي بیع نسته [یعني دا بیع نه صحیح کیږي] بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ كَبْشًا په خلاف د هغه صورت کله چي پُسه [مړ] خرڅ کړي فَإِذَا هُوَ نَعْجَةٌ لیکن هغه مېږه وخیږي حَيْثُ يَنْعَقِدُ الْبَيْعُ نو بیع منعقد کیږي وَيَتَخَيَّرُ او مشتري ته به [د بیع فسخ کولو] اختیار وي وَالْفَرْقُ يَنْبَنِي عَلَى الْأَصْلِ الَّذِي ذَكَرْنَاهُ فِي النِّكَاحِ لِمُحَمَّدٍ او دا فرق پر هغه اصل مبني دی کوم چي موږ په کتاب النکاح کي د امام محمد رَحِمَهُ الله لپاره ذکر کړی وَهُوَ أَنَّ الْإِشَارَةَ مَعَ التَّسْمِيَةِ إِذَا اجْتَمَعَتَا او هغه دا چي کله اشاره د تسمیې سره جمع سي [یعني مشارٌ إلیه او مسمیٰ سره جمع سي] فَفِي مُخْتَلِفِي الْجِنْسِ يَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ بِالْمُسَمَّى نو د جنس د مختلف کېدلو په صورت کي به عقد د مسمیٰ سره

متعلق کیږي وَيَبْطُلُ لِانْعِدَامِهِ او د مسمیٰ په معدوم کېدلو سره به عقد باطليږي وَفِي مُتَّحِدِ الْجِنْسِ يَتَعَلَّقُ بِالْمُشَارِ إِلَيْهِ او د جنس د متحد کېدلو په صورت کي به عقد د مشار اليه سره متعلق کیږي وَيَنْعَقِدُ لِوُجُودِهِ او د هغه د موجودېدلو په وجه به بيع منعقد کیږي وَيَتَخَيَّرُ لِفَوَاتِ الْوَصْفِ او د وصف د فوتېدلو په وجه به مشتري ته اختيار وي كَمَنِ اشْتَرَى عَبْدًا عَلَى أَنَّهُ خَبَّازٌ لکه يو څوک چي غلام پر دې شرط رانيسي چي هغه ډوډۍ پخونکي دی [يعني ډوډۍ پخولای سي] فَإِذَا هُوَ كَاتِبٌ لېکن هغه ليکونکی وخيږي [يعني وروسته معلومه سي چي هغه صرف په خط پوهيږي. ډوډۍ نه سي پخولای. نو په دې صورت کي بيع صحيح کیږي. لېکن مشتري ته به اختيار وي] وَفِي مَسْأَلَتِنَا الذَّكَرُ وَالْأُنْثَى مِنْ بَنِي آدَمَ جِنْسَانِ او زموږ په مسئله کي د انسان نر او ماده دوه [مختلف] جنسونه دي لِلتَّفَاوُتِ فِي الْأَغْرَاضِ ځکه چي د دوی په اغراضو [مقاصدو] کي تفاوت دی وَفِي الْحَيَوَانَاتِ جِنْسٌ وَاحِدٌ او په حيوانانو کي نر او ماده يو جنس دی لِلتَّقَارُبِ فِيهَا ځکه چي د هغوی په اغراضو کي تقارب [نژدېکت] دی وَهُوَ الْمُعْتَبَرُ فِي هٰذَا دُونَ الْأَصْلِ او همدا د غرض متفاوت کېدل په دې کي [يعني په اختلافُ الجنس او اتحادُ الجنس] کي معتبر دي، او په اصل [ماهيت] کي [تفاوت] معتبر نه دی [يعني د اختلافُ الجنس او اتحادُ الجنس مدار پر دې خبره دی چي کله د دوو شيانو اغراض متفاوت وي. نو هغوی دوه مختلف جنسونه شمارل کیږي. که څه هم د هغوی اصل او ماده يوه وي] كَالْخَلِّ وَالدِّبْسِ جِنْسَانِ لکه سرکه او شيره [د انګورو] دوه [مختلف] جنسونه دي وَالْوَذَارِيُّ وَالزَّنْدَنِيجِيُّ عَلَى مَا قَالُوا جِنْسَانِ او "وذاري" کپړه او "زندنيجي" کپړه د مشائخو د قول پر بناء دوه [مختلف] جنسونه دي مَعَ اتِّحَادِ أَصْلِهِمَا سره د دې چي د دوی دواړو اصل يو دی [يعني سرکه او شېره دواړه له انګورو څخه جوړ دي. او "وذاري" او "زندنيجي" دواړه له پمبه وو څخه جوړ دي].

**اللغات**: ﴿مسمّٰی﴾ د تفعيل اسم مفعول دی: نوم اخيستلی سوی، ټاکل سوی، يعني په بيع کي چي د کوم شي نوم واخيستل سي (وټاکل سي) چي دا شی خرڅوم. ﴿مشار إليه﴾ کوم شي ته چي اشاره وسي، (مثلاً که يو سړی ووايي چي دا مينځه پر تا خرڅوم. او هغه غلام وخيږي. نو دلته مينځه مسمیٰ ده ځکه چي سړي د مينځي نوم اخيستی دی لېکن اشاره غلام ته سوې ده. ځکه هغه مينځه نه ده بلکي غلام دی. نو مشار إليه

غلام دی)، ﴿كبش﴾ نر پسه، مږ، ﴿نعجة﴾ مېږه، ﴿خبّاز﴾ نانوای، ډوډۍ پخونکی. ﴿خَلّ﴾ سرکه،
﴿دِبْس﴾ د انګورو شېره (څوښا)، د انګورو رس چي له هغه څخه شراب جوړېږي. ﴿وَذاری﴾ دا د يو کپړې (ټوکر) نوم دی کوم چي په سمرقند کي د "وذر" علاقې ته منسوب دی، په "وذر" علاقه کي به دا کپړه جوړېده، سمرقند اوس په "روس" کي واقع دی. ﴿الزندنيجي﴾ دا د بخارا د "زندنه" علاقې ته منسوب دی چي په هغه کي به دا کپړه جوړېده، بخارا هم په "روس" کي واقع ده. (اثمار الهدايه)

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی که يو سړی مينځه خرڅه کړي او مشتري يې قبوله کړي، لېکن وروسته معلومه سي چي هغه خو مينځه نه ده بلکي غلام دی، نو بيع نه صحيح کيږي، او که پسه خرڅ کړي او مشتري يې قبول کړي، لېکن وروسته معلومه سي چي هغه پسه نه دی بلکي مېږه ده، نو بيع صحيح کيږي، لېکن مشتري ته به د بيع فسخ کولو اختيار وي.

په دې دوو مسئلو کي د فرق وجه څه ده؟ د فرق له وجهي څخه مخکي تاسي په دې دريو خبرو ځان پوه کړئ:

①... اول دا چي په انسان کي نر او ماده دوه مختلف (جلا) جنسونه دي، او په څارويو کي نر او ماده صرف يو جنس دی، ځکه چي د اختلاف الجنس او اتحاد الجنس مدار پر دې خبره دی چي که د دوو شيانو اغرض سره متفاوت او جلا وي، نو هغوی دواړه دوه مختلف جنسونه شمارل کيږي، که څه هم د دواړو اصل يو وي، او که اغرض يې سره متفاوت نه وي، نو هغوی دواړه يو جنس شمارل کيږي، مثلاً د انګورو سرکه او د انګورو شېره ده، که څه هم د دوی دواړو اصل يو انګور دی، خو د تفاوت فی الاغراض په وجه دوی دوه مختلف (جلا) جنسونه شمارل کيږي، او "وذاري" کپړه او "زندنيجي کپړه که څه هم د دواړو اصل پمبه ده (او دواړه کپړې دي)، خو د تفاوت فی الاغرض په وجه دوه مختلف جنسونه شمارل کيږي. او څرنګه چي د انسان د نر او ماده اغرض هم سره متفاوت دي، نو ځکه به دوی دوه مختلف جنسونه شمارل کيږي، او د دوی اغراض ځکه متفاوت دي چي د غلام مقصد او غرض دا دی چي مالک په هغه سره غټ خدمت او له کور څخه دباندينی خدمت کوي، او د مينځي مقصد دا دی چي د هغه سره جماع کوي، د بچي طلب ځني کوي، کورنی او کوچنی خدمت په کوي (لنډه دا چي د غلام مقصد له کور څخه دباندينی خدمت وي. او د مينځي مقصد جماع کول، بچي زېږول او کورنی خدمت کول وي)، لېکن په حيوانانو کي د نر او ماده ټولو مقصد (غرض) سره نژدې دی، يعني د هغوی غوښي خوړل، پر هغوی سپرېدل، بار پر وړل، نو ځکه به د څارويو نر او ماده صرف يو جنس وي.

②... دریم دا چي کله مشار الیه او مسمیٰ دواړه سره جمع سي او د دواړو جنس سره مختلف وي، نو عقد د مسمیٰ سره متعلق کیږي او که د دواړو جنس سره متحد وي، نو عقد د مشار الیه سره متعلق کیږي.

③... دریم دا چي که مبیع معدومه وي (یعني موجوده نه وي) نو بیع باطلیږي، او که مبیع موجوده وي، خو مرغوب فیه وصف پکښي معدوم وي (یعني د کوم وصف په وجه چي مشتري مبیع ته رغبت کړی وي او مبیع یې رانیولې وي، هغه وصف په مبیع کي موجود نه وي) نو بیع صحیح کیږي، لیکن مشتري ته به د بیع فسخ کولو اختیار وي.

له پورتني دریو خبرو څخه وروسته اوس د فرق وجهي ته ګورئ!

**د فرق وجه:** دا ده چي په اوله مسئله کي مشار الیه غلام دی او مسمیٰ مینځه ده (یعني په اوله مسئله کي مشتري نوم د مینځي اخیستی دی یعني په بیع کي یې مینځه ټاکلې ده، لیکن هغه غلام دی)، او د غلام او مینځي دواړو جنس سره مختلف دی، لکه په اوله خبره کي چي د دې تفصیل تېر سو، نو ځکه به عقد د مسمیٰ سره متعلق وي (ځکه کله چي مسمیٰ او مشار الیه سره جمع سي او جنس یې مختلف وي، نو عقد د مسمیٰ سره متعلق کیږي)، او دلته مسمیٰ مینځه ده، حال دا چي مسمیٰ یعني مینځه معدومه ده، او د معدوم شي بیع باطلیږي، نو ځکه به په دې صورت کي بیع جائز نه وي. او څرنګه چي په دویمه مسئله کي مشار الیه مېږه ده او مسمیٰ پسه دی، او په دوی دواړو کي اتحاد الجنس دی، لهذا عقد به د مشار الیه یعني د مېږي سره متعلق وي، او مېږه موجوده ده، نو ځکه به په دویمه مسئله کي بیع جائز وي، خو څرنګه چي په هغه کي مرغوب فیه وصف یعني "نر والی" فوت سو، نو ځکه مشتري ته به د بیع فسخ کولو اختیار حاصل وي.

## د "بیع عینه" بیان او حکم

قال: وَمَنِ اشْتَرٰى جَارِيَةً بِأَلْفِ دِرْهَمٍ حَالَّةً أَوْ نَسِيئَةً فرمایي: او که څوک یو مینځه د زرو درهمو په عوض کي په نغدو یا په قرض سره رانیسي فَقَبَضَهَا او مشتري پر هغې قبضه وکړي ثُمَّ بَاعَهَا مِنَ الْبَائِعِ بِخَمْسِمِائَةٍ قَبْلَ أَنْ يَنْقُدَ الثَّمَنَ الْأَوَّلَ بیا هغه له ثمن اداء کولو څخه مخکي دا مینځه د پنځه سوه درهمو په عوض کي پر بائع خرڅه کړي لَا يَجُوزُ الْبَيْعُ الثَّانِي نو دویمه بیع جائز نه ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوزُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چي جائز ده لِأَنَّ الْمِلْكَ قَدْ تَمَّ فِيهَا بِالْقَبْضِ ځکه چي په قبضه کولو سره په مینځه کي ملکیت پوره سوه فَصَارَ الْبَيْعُ مِنَ الْبَائِعِ وَمِنْ غَيْرِهِ سَوَاءً نو ځکه

[اوس] پر بائع خرڅول او پر غیر بائع [بل چا] خرڅول سره برابر سو وَصَارَ كَمَا لَوْ بَاعَ بِمِثْلِ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ أَوْ بِالزِّيَادَةِ أَوْ بِالْعَرَضِ او دا داسې سو لکه مشتري چي د اول ثمن په برابر، يا له اول ثمن څخه د زياتو په عوض کي، يا د يو سامان په عوض کي [ مينځه پر بائع] خرڅه کړي وَلَنَا قَوْلُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لِتِلْكَ الْمَرْأَةِ وَقَدْ بَاعَتْ بِسِتِّمِائَةٍ بَعْدَمَا اشْتَرَتْ بِثَمَانِمِائَةٍ او زموږ دليل د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا فرمان دی (وهغه ښځي ته چي هغې د اته سوه [۸۰۰] درهمو په عوض کي [يو مينځه] رانيوله او د شپږ سوه [۶۰۰] درهمو په عوض کي يې خرڅه کړه) بِئْسَمَا شَرَيْتِ وَاشْتَرَيْتِ [فرمان دا دی: اې ښځي!] تا ډېر بد خرڅول او رانيول وکړه أَبْلِغِي زَيْدَ بْنَ أَرْقَمَ أَنَّ اللهَ تَعَالَى أَبْطَلَ حَجَّهُ وَجِهَادَهُ مَعَ رَسُولِ اللهِ ﷺ إِنْ لَمْ يَتُبْ [او] ته زيد بن ارقم ته زما دا پيغام ورسوه! چي که هغه توبه نه وکړي نو کوم حج او جهاد چي يې د رسول الله ﷺ سره کړي دي الله تعالیٰ به هغه باطل [ضايع] کړي وَلِأَنَّ الثَّمَنَ لَمْ يَدْخُلْ فِي ضَمَانِهِ او ځکه چي ثمن [تر اوسه] د بائع په ذمه واري [قبضه] کي نه دي داخل سوي فَإِذَا وَصَلَ إِلَيْهِ الْمَبِيعُ وَوَقَعَتِ الْمُقَاصَّةُ نو کله چي [په دې حالت کي] هغه ته مبيع ورسېده او مقاصه [د ادل بدل معامله] وسوه بَقِيَ لَهُ فَضْلُ خَمْسِمِائَةٍ نو د بائع لپاره پنځه سوه درهمه زيات [اضافه] پاته سو وَذَلِكَ بِلَا عِوَضٍ او دا زياتوب بېله عوضه دی [يعني د هغه په مقابله کي هيڅ عوض نسته، او بېله عوضه زياتوب ربوا ده] بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ بِالْعَرَضِ په خلاف د هغه صورت کله چي يې د سامان په عوض کي خرڅ کړي لِأَنَّ الْفَضْلَ إِنَّمَا يَظْهَرُ عِنْدَ الْمُجَانَسَةِ ځکه چي زياتوب د مجانست په وخت کي ښکاره کيږي [يعني کمي او زياتوب هغه وخت ښکاره کيږي کله چي د دواړو ثمنينو جنس يو وي].

**اللغات:** ﴿نسيئةً﴾ په تاخير سره يعني په قرض سره (په پور)، ﴿أبلغي﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث امر حاضر صيغه ده: خبر رسول، پيغام رسول، ﴿عَرَض﴾ سامان، ﴿مقاصة﴾ د مفاعلې مصدر دی: يو شی د بل شي سره مقابله کول، ادل بدل کول (مثلاً پر زيد د خالد لس درهمه قرض باندي وي، او بيا د خالد هم پر زيد لس درهمه قرض باندي سي، نو دوی خپل قرضونه سره مقابله او ادل بدل کړي، دې ته مقاصه وايي)، تبادله کول، په برابرۍ سره يو شی د بل شي په مقابله کي راتلل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی (مثلا زيد) د زرو (۱۰۰۰) درهمو په عوض کې مينځه په قرض يا په نغدو سره خرڅه کړي، او مشتري پر مينځه قبضه وکړي. بيا مشتري تر ثمن اداء کولو مخکې دا مينځه پر خپل بائع (زيد) د پنځه سوه (۵۰۰) نغدو درهمو په عوض کې خرڅه کړي، نو دا دويمه بيع زموږ په نيز ناجائز ده، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز جائز ده. دلته د مينځې او د پنځه سوه درهمو قيد اتفاقي دی، لهذا که له مينځې څخه بغير يو بل سامان مبيع وي نو هم دغه حکم دی، همدارنګه که مشتري له اول ثمن (زرو درهمو) څخه د کمو درهمو په عوض کې پر خپل بائع مينځه (يا سامان) خرڅ کړي، برابره ده له اول ثمن څخه پنځه سوه درهمه کم وي يا نور څه کم وي. مثلاً د اول ثمن (زرو درهمو) تر اداء کولو مخکې مشتري د نهه سوه نهه نيوي (۹۹۹) درهمو په عوض کې مينځه (يا سامان) پر خپل بائع خرڅ کړي، نو بيا هم دغه حکم دی چې زموږ په نيز دا بيع ناجائز ده او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز جائز ده. د فقهاؤ په نيز د دې بيع عنوان دی: "شراءُ ما باعَ بأقلّ مما باعَ قبل نقد الثمن" (يعني [د مشتري] تر ثمن اداء کولو مخکې خپل خرڅ کړی سوی شی له هغه قيمت څخه په کمه رانيول په کوم قيمت سره چې يې خرڅ کړی وي). همدې ته "بيعِ عِيْنه" وايي.

په عقلي توګه د دې مسئلې څو صورتونه دي: څکه بائع به خپل خرڅ کړی سامان يا مينځه له مشتري څخه بلا واسطه رانيولی وي يا به يې د بل سړي په واسطه سره رانيولی وي، د بل سړي د واسطې مطلب دا دی چې مشتري پر بل چا (يعني له خپل بائع څخه بغير پر بل چا) مينځه يا سامان خرڅ کړي او له هغه څخه يې بائع رانيسي، نو د بائع دا رانيول بالاتفاق جائز دي، برابره ده بائع د اول ثمن په عوض کې رانيولی وي، يا يې له اول ثمن څخه د کم يا د زياتو په عوض کې رانيولی وي، يا يې د يو سامان مثلاً د غنمو په عوض کې رانيولی وي (دا ټوله اقسام جائز دي). ليکن که بائع له مشتري څخه بلا واسطه رانيولی وي، نو بائع به له اول ثمن څخه د کمو درهمو په عوض کې رانيولی وي يا د نور څه په عوض کې به يې رانيولی وي، دويم صورت (يعني چې د نور څه په عوض کې يې رانيولی وي) د خپلو ټولو اقسامو سره جائز دی، يعني برابره ده د اول ثمن په عوض کې يې رانيولی وي، يا يې له اوّل ثمن څخه د زياتو په عوض کې رانيولی وي، يا يې د يو سامان په عوض کې رانيولی وي، په دې دريو سره اقسامو کې بالاتفاق بيع جائز ده.

او اول صورت (يعني چي بائع له اول ثمن څخه د کمو درهمو په عوض کي رانيولي وي) مختلف فيه دی، زموږ په نيز ناجائز دی او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز جائز دی، او همدغه صورت ته "بيع عينه" وايي، او د همدې عنوان دی: "شراء ما باع بأقل مما باع قبل نقد الثمن".

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي کله مشتري پر مبيع قبضه وکړه، نو د هغه ملکيت پوره سو، او د ملکيت پوره کېدلو په وخت کي پر غير بائع شی خرڅول بالاتفاق جائز دي، نو پر دې باندي په قياس کولو سره پر بائع به هم د شي خرڅول جائز وي. او څرنګه چي د اول ثمن په عوض کي يا له هغه څخه د زياتو په عوض کي يا د يو سامان په عوض کي پر خپل بائع خرڅول جائز دي، همداسي به له اول ثمن څخه د کم په عوض کي هم خرڅول جائز وي. لنډه دا چي امام شافعي رَحِمَهُ الله دغه مختلف فيه صورت پر نورو متفق عليها صورتونو قياس کړی دی.

**زموږ دليل:** د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا أثر دی: "أَنَّ امْرَأَةً سَأَلَتْهَا فَقَالَتْ: إِنِّي اشْتَرَيْتُ مِنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ جَارِيَةً بِثَمَانِ مِائَةِ دِرْهَمٍ إِلَى الْعَطَاءِ ثُمَّ بِعْتُهَا مِنْهُ بِسِتِّ مِائَةِ دِرْهَمٍ قَبْلَ مَحَلِّ الْأَجَلِ، فَقَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا: بِئْسَمَا شَرَيْتِ وَبِئْسَمَا اشْتَرَيْتِ، أَبْلِغِي زَيْدَ بْنَ أَرْقَمَ أَنَّ اللهَ أَبْطَلَ حَجَّهُ وَجِهَادَهُ مَعَ رَسُولِ اللهِ ﷺ إِنْ لَمْ يَتُبْ، فَأَتَاهَا زَيْدُ بْنُ أَرْقَمَ مُعْتَذِرًا".

(يعني يوې ښځي له أم المؤمنين عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه پوښتنه وکړه او ويې ويل: چي ما له زيد بن ارقم رضي الله عنه څخه يوه مينځه د اته سوو (۸۰۰) درهمو په عوض کي په دې وعده سره په قرض رانيوله چي کله ما ته له بيتُ المال څخه وظيفه راکول سي نو بيا به ستا قرض اداء کړم، بيا د ميعاد (مياد) له پوره کېدلو څخه مخکي ما بيرته دا مينځه پر زيد بن ارقم د شپږ سوو (۶۰۰) درهمو په عوض کي په نغدو خرڅه کړه، نو حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل چي تا ډېر بد خرڅول او رانيول وکړه، زيد بن ارقم ته زما دا پيغام ورسوه! چي که هغه توبه نه وکړي نو کوم حج او جهاد چي يې د رسول الله ﷺ سره کړي دي الله به هغه باطل (ضايع) کړي، بيا زيد بن ارقم حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته عذر کوونکی راغلی، يعني په دې باره کي يې عذر پېش کړی او توبه يې وکړه).

په دې أثر سره موږ په دې توګه دليل نيسو چي حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د پورتني عقد د کولو جزاء (سزاء) د حج او جهاد باطلېدل وګرځول، او د افعالو جزاء په رايه او عقل سره نه سي معلومېدای، نو ځکه حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا چي څه فرمايلي دي هغه به يې له رسولُ الله ﷺ

ځخه اوړېدلي وي. او دا خبره هم تسليم سوې ده چي دا ډول وعيد او سزا پر صحيح عقد نه واردېږي بلکي پر فاسد عقد واردېږي، نو ثابته سوه چي دغه عقد (بيع عينه) يعني "شراء ما باع بأقل مما باع قبل نقد الثمن" فاسد او ناجائز دی، (ځکه په دې بيع کي يعني په "شراء ما باع..إلخ" کي ربوا (سود) راځي. او ربوا فاسده او باطله ده. نو ځکه ذا عقد هم فاسد او باطل دی).

**زموږ عقلي دليل:** ولأن الثمن لم يدخل إلخ: د دې بيع د نه جائز کېدلو عقلي دليل دا دی چي ثمن تر اوسه د بائع په قبضه کي نه دی راغلی، نو اوس چي کله بائع ته (د پنځو سوو درهمو په عوض کي) مبيع واپس حاصله سوه يعني دويمه بيع وسوه، او مقاصه واقع سوه يعني له دواړو طرفونو ځخه د تبادلې معامله وسوه (يعني د بائع چي پر مشتري کوم زر درهمه واجب وه. له هغوی ځخه د پنځه سوه درهمو په بدله کي دا پنځه سوه درهمه واقع سوه کوم چي د دويمي بيع په وجه د مشتري پر بائع واجب سوه). نو باقي نور پنځه سوه درهم د بائع لپاره زائد پاته سوه کوم چي له ځه بدلې ځخه بغير دي يعني په بدله کي يې هيڅ عوض نسته، او په دې کي سود او ربوا ده، نو ځکه دا دويمه بيع ناجائز ده. (لنډه دا چي د اولي بيع په وجه پر مشتري د بائع زر درهمه واجب سوه او د دويمي بيع په وجه پر بائع د مشتري پنځه سوه درهمه واجب سوه او مبيع صحيح سلامت بائع ته ورسېده. نو اوس پنځه سوه درهمه سره مقاصه کړل سوه (يعني په برابری سره ادل بدل کړل سوه) چي د بائع له غاړي ځخه د مشتري پنځه سوه درهمه ساقط سوه او د مشتري له غاړي ځه د بائع پنځه سوه درهمه ساقط سوه. لېکن باقي نور پنځه سوه درهمه د بائع پر مشتري زائد پاته سوه، او دا زائد درهمونه بلاعوضه دي (يعني د هغوی په مقابله کي هيڅ عوض نسته)، او بلا عوضه زياتوب (زيادت) ربوا ده. نو ځکه به دا زائد درهمونه ربوا وي، او ربوا ناجائز ده، نو ځکه به دا دويمه بيع ناجائز وي).

بخلاف إلخ: او که مشتري له بائع ځخه هغه مينځه ديو سامان په عوض کي رانيسي، نو که ځه هم د سامان قيمت له اول ثمن يعني له زرو (١٠٠٠) درهمو ځخه کم وي، بيا هم دا دويمه بيع جائز ده؛ ځکه چي کمي او زياتوب هغه وخت ښکاره کېږي کله چي دواړه ثمنين (يعني د اولي بيع ثمن او د دويمي بيع ثمن) له يوه جنس ځخه وي، او که له يوه جنس ځخه نه وي نو بيا زياتوب او کمي نه ښکاره کېږي، د مثال په توګه که يو شوک سوال وکړي چي عقل غټ دی که فيل؟ نو معلومه خبره ده چي دا سوال مهمل او بي معنیٰ دی، ځکه غټ او کوچنی د يوه جنس په شيانو کي ښکاره کېږي، د اختلافُ الجنس په صورت کي غټ او کوچنی نه ښکاره کېږي، او د عقل او فيل جنسونه سره مختلف (جلا) دي، نو ځکه په دوی کي نه يو کوچنی دی او نه يو غټ دی. لنډه دا چي کله دواړه ثمنونه له مختلف جنس ځخه وي نو زياتوب نه ښکاره کېږي، او کله چي زياتوب ښکاره نه سو، نو

ربوا هم نه راغله، او کله چې په دې صورت کې ربوا نسته، نو ځکه د سامان په عوض کې به خرڅول ناجائز نه وي (ځکه خرڅول د ربوا په وجه ناجائز وو. او دلته ربوا نسته).

او که مشتري له خپل بائع څخه بغير پر بل چا هغه خرڅ کړي نو دا ځکه جائز دي چې په دې صورت کې نفع بائع ته حاصله نه سوه بلکې بل چا ته حاصله سوه. لهذا په دې صورت کې د ربوا معنیٰ نه راغله. او که مشتري د اول ثمن په عوض کې پر خپل بائع هغه خرڅ کړي نو دا ځکه جائز دي چې په دې صورت کې هم ربوا نسته، او که له اول ثمن څخه يې د زياتو په عوض کې خرڅ کړي نو ځکه جائز دي چې په دې صورت کې نفع مشتري ته حاصله سوه او مبيع د بائع په قبضه کې داخله سوه. نو دا نفع بلا عوض نه ده بلکې د مبيع په عوض کې ده. او بالعوض نفع ربوا نه ده. نو ځکه به دا صورت هم جائز وي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

قال: وَمَنِ اشْتَرٰى جَارِيَةً بِخَمْسِمِائَةٍ فرمايي: او که څوک يوه مينځه د پنځه سوه درهمو په عوض کې رانيسي ثُمَّ بَاعَهَا وَأُخْرٰى مَعَهَا مِنَ الْبَائِعِ قَبْلَ أَنْ يَنْقُدَ الثَّمَنَ بِخَمْسِمِائَةٍ بيا د ثمن تر اداء کولو مخکې هغه مينځه او د هغې سره [خپل] بله مينځه د پنځه سوه درهمو په عوض کې پر بائع خرڅه کړي فَالْبَيْعُ جَائِزٌ فِي الَّتِي لَمْ يَشْتَرِهَا مِنَ الْبَائِعِ نو بيع په هغه مينځه کې جائز ده کوم چې يې له بائع څخه نه ده رانيولې [يعني د مشتري په خپل مينځه کې بيع جائز ده] وَيَبْطُلُ فِي الْأُخْرٰى او په بله [دويمه] مينځه کې بيع باطله ده لِأَنَّهُ لَا بُدَّ أَنْ يُجْعَلَ بَعْضُ الثَّمَنِ بِمُقَابَلَةِ الَّتِي لَمْ يَشْتَرِهَا مِنْهُ ځکه دا ضروري ده چې د ثمن بعضې حصه د هغه مينځې په مقابله کې وګرځول سي کوم چې يې له بائع څخه نه ده رانيولې [يعني د مشتري والا د مينځې په مقابله کې د ثمن (۵۰۰ درهمو) بعضې حصه راتلل ضروري دي] فَيَكُونُ مُشْتَرِيًا لِلْأُخْرٰى بِأَقَلَّ مِمَّا بَاعَ نو ځکه بائع به له هغه ثمن څخه په کمه د بلې مينځې رانيونکی وګرځي په کوم ثمن سره يې چې هغه خرڅه کړې ده [يعني په څومره قيمت چې يې خپله مينځه خرڅه کړې ده. له هغه څخه د کم قيمت په عوض کې به د هغې رانيونکی سي] وَهُوَ فَاسِدٌ عِنْدَنَا او دا زموږ په نيز فاسد دي وَلَمْ يُوجَدْ هٰذَا الْمَعْنٰى فِي صَاحِبَتِهَا او دا معنیٰ د دې مينځې په ملګرې کې [يعني د مشتري والا په مينځه کې] موجوده نه ده وَلَا يَشِيعُ الْفَسَادُ او فساد نه غوړيږي [يعني د بائع والا د مينځې

فساد د مشتري والا په مېنځه کي سرايت نه کوي] لِأَنَّهُ ضَعِيفٌ فِيهَا ځکه چي دا فساد په هغې کي [يعني د بائع والا په مېنځه کې] کمزوری دی لِكَوْنِهِ مُجْتَهِدًا فِيهِ ځکه چي دا [بيع] مختلف فيه ده أَوْ لِأَنَّهُ بِاعْتِبَارِ شُبْهَةِ الرِّبَا يا ځکه چي فساد د ربوا [سود] د شبهي په وجه دی أَوْ لِأَنَّهُ طَارِئٌ يا ځکه چي فساد طاري دی لِأَنَّهُ يَظْهَرُ بِانْقِسَامِ الثَّمَنِ أَوِ الْمُقَاصَّةِ ځکه چي هغه د ثمن په تقسيمولو سره [يعني تر ثمن تقسيمولو وروسته] ښکاره کيږي، يا په مقاصه [ادل بدل] کولو سره ښکاره کيږي فَلَا يَسْرِي إِلَىٰ غَيْرِهَا نو ځکه د بلي مېنځي وطرف ته به سرايت نه کوي.

**اللغات**: ﴿أُخْرَىٰ﴾ بله (دويمه) مېنځه، ﴿لا يشيع﴾ د ضرب له بابه د نفي صيغه ده: غوړېدل، خپرېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که يو سړی د پنځه سوه (٥٠٠) درهمو په عوض کي مېنځه رانيسي، بيا دا سړی تر ثمن اداء کولو مخکي د هغه مېنځي سره خپل بله مېنځه يو ځای کړي او دواړي پر خپل بائع د پنځه سوه درهمو په عوض کي خرڅي کړي، نو کومه مېنځه چي يې له بائع څخه نه وي رانيولې (يعني د سړي خپل مېنځه)، د هغې بيع جائز کيږي، او کومه مېنځه چي يې له بائع څخه رانيولې وي (يعني د بائع والا مېنځه)، د هغې بيع باطليږي.

دليل دا دی چي دلته سړي (مشتري) پر خپل بائع دوې مېنځي په پنځه سوه (٥٠٠) درهمه خرڅي کړي دي، نو ځکه دا پنځه سوه درهمه به د دواړو مېنځو په مقابله کي وي، يعني له پنځو سوو درهمو څخه به بعضي د هغه مېنځي ثمن وي کوم چي يې له بائع څخه نه وي رانيولې (يعني د مشتري خپل مېنځه)، او بعضي به د هغه مېنځي ثمن وي کوم چي يې له بائع څخه د پنځو سوو درهمو په عوض کي رانيولي وي، لهذا اوس بائع تر ثمن اداء کولو مخکي له پنځه سوه درهمو څخه په کمه د خپل مېنځي رانيونکی وګرځېدی کوم چي يې په پنځه سوه درهمه خرڅه کړې وه، يعني بائع چي کومه مېنځه په پنځه سوه درهمه خرڅه کړې وه په هغې کي "شِراء ما باع بأقل مما باع قبل نقد الثمن" لازم سو، او زموږ په نېز "شراء ما باع بأقل...إلخ" فاسد دي، نو ځکه به د دې مېنځي بيع فاسد او ناجائز وي. او څرنګه چي په دويمه مېنځه کي (کوم چي د مشتري خپل مېنځه ده) د "شراء ما باع بأقلّ مما باع قبل نقد الثمن" معنیٰ نسته، نو ځکه به د هغې بيع جائز وي.

ولايشيع الفساد إلخ: په دې سره دیو شبهې جواب ورکوي، شبهه دا ده چې کله د بائع والا په مینځه کې بیع فاسد او ناجائز ده، نو دویمه مینځه کوم چې بائع نه ده خرڅه کړې (بلکې د مشتري خپل مینځه ده) په هغې کې هم بیع فاسد کېدل او ناجائز کېدل پکار دي، ځکه چې دواړې مینځې په یوه صفقه کې رانیول سوي دي (مطلب دا چې بائع دواړې په یوه وار رانیولي دي).

د دې په جواب کې فرمايي چې د بائع والا مینځه (کوم چې بائع د پنځو سوو درهمو په عوض کې خرڅه کړې وه) د هغې په بیع کې چې کوم فساد دی هغه د بلې مینځې وطرف ته سرایت نه کوي، ځکه د بائع والا په مینځه کې دا فساد ضعیف او کمزوری دی، او ضعیف شی د بل چا وطرف ته نه متعدي کیږي.

پاته سوه دا خبره چې دا فساد ولې کمزوری دی، نو د دې څو وجهې دي:

①... یوه وجه دا ده چې د "شراء ما باع بأقل مما باع قبل نقد الثمن" په جواز او نه جواز کې د مجتهدینو اختلاف دی، ځکه زموږ په نیز دا ناجائز دي او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز جائز دي، او په کوم شي کې چې اختلاف وي د هغه فاسد کېدل (ناجائز کېدل) کمزوري کیږي، نو ځکه به دا فساد ضعیف او کمزوری وی.

②... دویمه وجه دا ده چې د بائع والا مینځه (یعني کومه مینځه چې بائع د پنځو سوو درهمو په عوض کې خرڅه کړې ده) هغه تر ثمن اداء کولو مخکې له اول ثمن څخه د کمو درهمو په عوض کې رانیول د شبهةُ الربوا په وجه فاسد اوناجائز دي، او دا ښکاره خبره ده چې شبهةُ الربوا د حقیقي ربوا په مقابله کې کمزورې ده، نو ځکه د دې مینځې په بیع (رانیولو) کې چې کوم فساد دی هغه به کمزوری او ضعیف وي.

③... دریمه وجه دا ده چې د بائع والا د مینځې په بیع کې چې کوم فساد دی (یعني تر ثمن اداء کولو مخکې له اول ثمن څخه د کمو درهمو په عوض کې چې د هغې په بیع کې کوم فساد دی) هغه د عقد په ابتداء کې نه دی، بلکې تر عقد وروسته طاري سوی (واقع سوی) دی. او دا فساد په دوو توګو سره طاري دی، یو خو په دې توګه چې کله مشتري دوې مینځې د پنځو سوو درهمو په عوض کې خرڅې کړې دي، نو دا پنځه سوه درهمه د دواړو مینځو په مقابله کې ګرځول صحیح دي، ځکه مشتري دا نه دي ویلي چې د کومې مینځې په مقابله کې به څومره ثمن وي (لېکن تر دې وروسته به دا پنځه سوه درهمه پر دواړو مینځو تقسیمیږي. د هغوی د قیمت په اعتبار سره). نو ځکه له پنځه سوه درهمو څخه به بعضې د هغه مینځې ثمن ګرځول کیږي کوم چې بائع (د پنځو سو درهمو په عوض کې) خرڅه کړې وي (یعني د بائع خپل

مينځه)، او بعضي به د هغه مينځي ثمن ګرځول کيږي کوم چي بائع نه وي خرڅه کړې (يعني د مشتري والا مينځه)، نو اوس معلومه سوه چي بائع خپل خرڅه کړل سوې مينځه له اول ثمن څخه د کمو درهمو په عوض کي رانيولې ده، نو ځکه دا فساد طاري دی (يعني د عقد په ابتداء کي نه دی واقع سوی. بلکي تر عقد وروسته واقع سوی دی).

او دويم په دې توګه دا فساد طاري دی چي د مشتري پر ذمه د بائع پنځه سوه درهمه د يوې مينځي عوض واجب دی (يعني بائع چي کومه مينځه پر مشتري خرڅه کړې ده، د هغې ۵۰۰ درهم پر مشتري واجب وو)، بيا همدا مينځه (د بلې مينځي سره) د بائع په قبضه کي راغله او د مشتري پنځه سوه درهمه پر بائع واجب سوه (يعني په دويمه بيع سره بيا د مشتري پر بائع ۵۰۰ درهم واجب سو)، نو دا پنځه سوه درهم سره مقاصه کړل سوه (يعني سره ادل بدل کړل سوه)، يعني د مشتري له ذمې څخه پنځه سوه درهم ساقط سوه د هغه پنځو سوو درهمو په بدله کي کوم چي د مشتري پر بائع واجب وه. او د بائع له ذمې څخه پنځه سوه درهم ساقط سوه د هغه پنځو سوو درهمو په بدله کي کوم چي د بائع پر مشتري واجب وه، لېکن پاته يوه مينځه بائع ته مفت (بلا عوضه) حاصله سوه. نو يوه مينځه مفت حاصلېدل د عقد تر جواز وروسته د فساد طاري کېدل (واقع کېدل) دي (مطلب دا چي کله هغه ته يوه مينځه مفت په لاس ورغله، نو په دې سره عقد (بيع) فاسد سو. لهذا فساد تر عقد وروسته طاري سوی دی). او طاري فساد کمزوری وي، نو ځکه دا فساد کمزوری دی، او کمزوری فساد د بل ځا وطرف ته نه متعدي کيږي. نو ځکه د بائع والا د مينځي د بيع په فاسدېدلو سره به د بلې مينځي بيع نه فاسديږي (يعني کله چي د بائع والا په مينځه کي بيع فاسده او باطله سوه، نو په دې سره به د مشتري والا په مينځه کي بيع نه فاسديږي؛ ځکه د بائع والا مينځي د بيع فساد کمزوری دی).

## د بيع فاسد يو صورت

قال: وَمَنِ اشْتَرَى زَيْتًا عَلَى أَنْ يَّزِنَهُ بِظَرْفِهِ فرمايي: او که څوک پر دې شرط د زيتون تېل رانيسي چي بائع به هغه د مشتري په لوښي سره وزن کوي فَيَطْرَحَ عَنْهُ مَكَانَ كُلِّ ظَرْفٍ خَمْسِينَ رِطْلًا بيا بائع د هر لوښي پر ځای له مشتري څخه پنځوس رطله کم کړي فَهُوَ فَاسِدٌ نو دا بيع فاسده ده وَلَوِ اشْتَرَى عَلَى أَنْ يَطْرَحَ عَنْهُ بِوَزْنِ الظَّرْفِ او که پر دې شرط يې رانيسي چي بائع به له مشتري څخه د لوښي د وزن په برابر [رطلونه] کموي جَازَ نو دا جائز دي لِأَنَّ الشَّرْطَ الْأَوَّلَ لَا يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ ځکه چي عقد د اول شرط تقاضا نه کوي وَالثَّانِيَ يَقْتَضِيهِ او د دويم شرط تقاضا کوي.

**اللغات**: ﴿زيت﴾ د زيتون تېل. د زيتون روغن. ﴿يزن﴾ د ضرب مضارع ده: وزن کول، تلل. ﴿ظرف﴾ لوښی. ﴿يطرح﴾ کمول، ځني غورځول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی پر دې شرط د زيتون تېل (روغن) رانيسي چې بائع به د هغه په لوښي کې د زيتون تېل ورکوي او په هغه سره به يې وزن کوي (يعني مشتري وبائع ته ووايي چې تېل به زما په لوښي کې تلې)، او بائع شرط ومني ليکن د هر لوښي په بدل کې يو معلوم مقدار مثلاً پنځوس رطله کموي حال دا چې د لوښي صحيح وزن معلوم نه وي، نو دا بيع فاسده ده. د مثال په توګه يو سړی زر رطله د زيتون تېل رانيسي او دا سړی (مشتري) وبائع ته يو لوښی ورکړي چې په دې کې تېل اچوه! او په دې سره يې وزن کوه!، او بائع چې په هغه لوښي کې تېل وزن وکړي، نو د تېل او لوښي دواړو (مجموعتا) وزن سل (۱۰۰) رطله سي، بيا بائع ووايي چې زه د دې لوښي وزن پنځوس رطله شمارم! يعني د هر لوښي پر ځای پنځوس رطله تېل کموم (او پنځوس رطله درکوم) او مشتري يې قبول کړي، حال دا چې د لوښي صحيح وزن معلوم نه وي، نو دا عقد فاسد دی؛ ځکه چې دا شرط د عقد د مقتضا خلاف دی، ځکه کېدای سي چې د لوښي وزن له پنځوس رطلو څخه کم وي او دا هم کېدای سي چې له پنځوس رطلو څخه زيات وي، لهذا د معلوم مقدار شرط لګول د عقد د مقتضا خلاف دي، او د عقد د مقتضا خلاف شرط لګول عقد فاسدوي، نو ځکه به په دې صورت کې عقد فاسديږي.

او که چيري د زيتون تېل پر دې شرط رانيسي چې د لوښي څومره وزن دی هغومره دې کم کړل سي (مثلاً بائع ومشتري ته ووايي چې ستا د لوښي چې څومره وزن دی، د هغه په اندازه رطلونه په هر لوښي کې تېل کموم)، نو دا شرط د عقد د مقتضا موافق دی (ځکه چې دلته بائع د لوښي اصلي وزن کموي)، نو ځکه به دا بيع جائز وي.

## که بائع او مشتري د لوښي په مقدار کې اختلاف، نو د چا قول به معتبر وي؟

قال: وَمَنِ اشْتَرَى سَمْنًا فِي زِقٍّ فرمايي: او که چا په يو ژي کې غوړي رانيول [يعني غوړي په ژي کې وه او ده رانيول] فَرَدَّ الظَّرْفَ وَهُوَ عَشَرَةُ أَرْطَالٍ بيا ده [و بائع ته] ژی واپس کړي او هغه لس رطله وو فَقَالَ: الْبَائِعُ: الزِّقُّ غَيْرُ هٰذَا وَهُوَ خَمْسَةُ أَرْطَالٍ نو بائع وويل: چې [زما] ژی له دې څخه بغير وو او هغه پنځه رطله وو فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِيْ نو قول به مشتري معتبر وي لِأَنَّهٗ إِنِ اعْتُبِرَ اخْتِلَافًا فِي تَعْيِيْنِ الزِّقِّ الْمَقْبُوْضِ ځکه که دا اختلاف د قبضه کړل سوي ژي په تعيين کې وي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْقَابِضِ نو د قبضه کونکی قول به معتبر وي ضَمِيْنًا كَانَ أَوْ أَمِيْنًا برابره ده قبضه کونکی ضامن [ضمانت والا] وي او که امين [امانت والا] وي وَإِنِ اعْتُبِرَ اخْتِلَافًا فِي السَّمْنِ او که دا اختلاف د غوړي په مقدار کې وي

فَهُوَ فِي الْحَقِيقَةِ اخْتِلَافٌ فِي الثَّمَنِ نو دا په حقيقت کي په ثمن کي اختلاف دی فَيَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَ الْمُشْتَرِي نو ځکه قول به د مشتري معتبر وي لِأَنَّهُ يُنْكِرُ الزِّيَادَةَ ځکه چي هغه د زياتوب انکار کوي.

**اللغات**: ﴿سمن﴾ غوړي (لاسي غوړي)، ﴿زق﴾ له چمړې (څرمن) څخه جوړ هغه لوښی او خلته چي په هغه کي خلک بهېدونکي شیان ساتي، (لکه غوړي، تېل، شراب او داسي نور)، ژی.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که خالد په يو ژي کي غوړي خرڅ کړه، او د دواړو مجموعتاً وزن سل (١٠٠) رطله وو، او مشتري پر هغه قبضه وکړه، بيا چي مشتري ژی خالي کړی او بائع (خالد) ته يې واپس کړی، نو د دې خالي کړل سوي ژي وزن لس رطله وو (نو د دې مطلب دا سو چي د غوړي وزن ٩٠ رطله وو)، ليکن بائع دعویٰ وکړه چي ما په کوم ژي کي غوړي در کړل هغه دا نه وو، د هغه وزن پنځه رطله وو (نو د دې مطلب دا سو چي د غوړي وزن ٩٥ رطله وو)، غرض دا چي مشتري کوم ژی واپس کړی د هغه وزن لس رطله وو او بائع وايل چي په کوم ژي کي غوړي وه د هغه وزن پنځه رطله وو، نو په دې صورت کي که د بائع سره ګواه (بيّنه) نه وي نو د مشتري قول د قسم (يمين) سره معتبر دی.

دليل دا دی چي د بائع او مشتري اختلاف به يا د ژي (زق) په تعيين کي وي او يا به د غوړي په مقدار کي وي، که اول صورت وي نو د مشتري قول ځکه معتبر دی چي مشتري قابض دی، او مسئله دا ده چي که بيّنه نه وي نو د قابض قول به معتبر وي، برابره ده هغه د ضمانت په توګه قبضه کونکی وي لکه د غاصب قبضه چي د ضمانت په توګه وي (چي که د غاصب په لاس کي شی هلاک سي نو پر هغه ضمان واجبيږي)، او برابره ده هغه د امانت په توګه قبضه کونکی وي، لکه هغه کس کوم ته چي امانت ايښول سوی وي.

او که اختلاف د غوړي په مقدار کي وي نو دا په حقيقت کي اختلاف په ثمن کي دی، يعني بائع د پنځه رطله زياتو غوړيو د ثمن دعویٰ کوي (مطلب دا چي بائع وايي: غوړي ٩٥ رطله وه) او مشتري د دغه زياتوب انکار کوي (يعني مشتري وايي چي: غوړي ٩٠ رطله وه)، او مسئله دا ده چي که د مدعی سره بيّنه نه وي نو د منکر قول به مع اليمين معتبر وي، نو ځکه به دلته د مشتري قول مع اليمين معتبر وي.

## د يو کافر په ذريعه شراب او خنزير رانيول يا خرڅول

قال: وَإِذَا أَمَرَ الْمُسْلِمُ نَصْرَانِيًّا بِبَيْعِ خَمْرٍ أَوْ بِشِرَائِهَا فرمايي: او کله چي مسلمان يو نصراني د شرابو په خرڅولو يا رانيولو سره امر کړي [يعني يو نصراني د شرابو د خرڅولو يا رانيولو وکيل جوړ کړي] فَفَعَلَ بيا نصراني دا کار وکړي جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز جائز دي وَقَالَا ۞: لَا يَجُوزُ عَلَى الْمُسْلِمِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر مسلمان جائز نه دي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ الْخِنْزِيرُ او پر همدغه اختلاف خنزير دی وَعَلَى هٰذَا تَوْكِيلُ الْمُحْرِمِ غَيْرَهُ بِبَيْعِ صَيْدِهِ او پر همدغه اختلاف دي د محرم لپاره بل څوک د خپل ښکار د خرڅولو وکيل جوړول لَهُمَا: أَنَّ الْمُوَكِّلَ لَا يَلِيهِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي مؤکل [وکيل جوړونکی] په خپله د دې کار ولي [او مالک] نه دی فَلَا يُوَلِّيهِ غَيْرَهُ نو ځکه بل څوک هم د هغه ولي نه سي جوړولای وَلِأَنَّ مَا يَثْبُتُ لِلْوَكِيلِ يَنْتَقِلُ إِلَى الْمُوَكِّلِ او ځکه چي کوم حکم د وکيل لپاره ثابتيږي هغه د مؤکل وطرف ته منتقل کيږي فَصَارَ كَأَنَّهُ بَاشَرَهُ بِنَفْسِهِ نو دا داسي سو لکه مؤکل چي په خپله هغه کار وکړی فَلَا يَجُوزُ نو ځکه به دا جائز نه وي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْعَاقِدَ هُوَ الْوَكِيلُ بِأَهْلِيَّتِهِ وَوِلَايَتِهِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي وکيل په خپل اهليت او ولايت سره په خپله عقد کونکی دی وَانْتِقَالُ الْمِلْكِ إِلَى الْآمِرِ أَمْرٌ حُكْمِيٌّ او د امر کونکي [مؤکل] وطرف ته د ملکيت منتقل کېدل حکمي [غير اختياري] امر دی فَلَا يَمْتَنِعُ بِسَبَبِ الْإِسْلَامِ نو ځکه د اسلام په وجه نه منع کيږي كَمَا إِذَا وَرِثَهُمَا لکه کله چي مسلمان د شراب او خنزير وارث سي [يعني مسلمان ته په ميراث کي پاته سي] ثُمَّ إِنْ كَانَ خَمْرًا يُخَلِّلُهَا بيا که شراب وي نو له هغه څخه به سرکه جوړوي وَإِنْ كَانَ خِنْزِيرًا يُسَيِّبُهُ او که خنزير وي نو هغه به ايله کوي.

**اللغات:** ﴿خمر﴾ شراب، ﴿توکيل﴾ د تفعيل مصدر دی: وکيل جوړول (يعني يو څوک د يو کار وکيل کول. کار بل چا ته سپارل). ﴿مُحرِم﴾ احرام تړونکی (هغه کس چي احرام يې تړلی وي). ﴿لا يليه﴾ د ضرب

۞ القول الراجح: قول الصاحبيْن رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۴، ص:۱۳۵)، وكذا في الشرنبلالية (ج:۲، ص:۱۷۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۴۵]

له بابه د نفي صیغه ده: ولي کېدل، متصرف کېدل (دیو شي مالک کېدل). ﴿لا یولّیه﴾ د تفعیل له بابه د نفي صیغه ده: بل څوک ولي جوړول (بل څوک دیو شي مالک کول). ﴿باشر﴾ د مفاعلې ماضي ده: یو کار په خپله کول (دا باب نوري معناوي هم لري، خو دلته همدا معنیٰ مراد ده).

**تشریح**: په دې عبارت کې درې مسئلې ذکر سوي دي (دا مسئلې پر دې اُصول مبني دي چي: که مسلمان په خپله د شریعت په اعتبار سره یو کار نه سي کولای، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه یو داسي سړی د دې کار وکیل جوړولای سي کوم چي دا کار کولای سي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز یې نه سي جوړولای).

(۱)... اوله مسئله دا ده چي مسلمان یو نصراني د شرابو د خرڅولو یا رانیولو وکیل جوړ کړي (چي دا شراب خرڅ کړه یا یې رانیسه!).

(۲)... مسلمان یو نصراني د خنزیر د خرڅولو یا رانیولو وکیل جوړ کړي.

(۳)... یو سړی له احرام تړلو څخه مخکي ښکار وکړي، بیا احرام وتړي او داسي سړی د هغه ښکار د خرڅولو یا رانیولو وکیل جوړ کړي کوم چي احرام نه وي تړلی (یعني هغه یو غیر محرم سړی د ښکار د خرڅولو وکیل کړي).

دا درې سره صورتونه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز ناجائز دي.

**د صاحبینو دلیل**: دا دی چي مؤکل (وکیل جوړونکی) په خپله د دې تصرف مالک نه دی (یعني په اولو دوو صورتونو کي مسلمان او په دریم صورت کي محرم [احرام تړونکی] په خپله د تصرف اختیار او ملکیت نه لري) ځکه مسلمان د خنزیر او شرابو د خرڅولو او رانیولو مالک نه دی، او محرم له احرام څخه مخکي د ښکار کړي حیوان د خرڅولو مالک نه دی، او انسان چي په خپله د یو شي مالک نه وي، بل څوک د هغه مالک کولای نه سي، نو ځکه به په پورتني دریو صورتونو کي وکیل جوړول جائز نه وي.

دویم دلیل دا دی چي کوم حکم د وکیل لپاره ثابتیږي هغه د مؤکل (وکیل جوړونکي) وطرف ته منتقل کیږي، لهذا د وکیل یعني د نصراني شراب خرڅول یا رانیول به د مؤکل یعني د مسلمان وطرف ته منتقل سي او د غیر محرم خرڅول به د محرم وطرف ته منتقل سي، نو دا داسي سو لکه په خپله چي مؤکل دا کار وکړي، او څرنګه چي د مؤکل لپاره یعني په اولو دوو صورتونو کي د مسلمان

لپاره د خنزير او شرابو خرڅول او رانيول او په دريم صورت کي د محرم لپاره د ښکار حيوان خرڅول جائز نه دي، نو ځکه به د مؤکل لپاره بل څوک د هغه وکيل جوړول هم جائز نه وي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي په دې باب کي دوه اهليتونه معتبر دي (يعني که دا دواړه موجود وي نو بيا توکيل [وکيل جوړول] صحيح کيږي)، يو د وکيل اهليت او بل د مؤکل اهليت. د وکيل يعني د عاقد لپاره د تصرف اهليت ضروري دی، او د تصرف کولو اهليت په نصراني کي موجود دی، ځکه چي هغه آزاد، عاقل او بالغ دی، نو د عاقل، بالغ کېدلو په وجه نصراني په ماموربه کار کي د تصرف کولو اهل دی، او د مؤکل لپاره دومره اهليت ضروري دی چي د عقد حکم يعني د مبيع يا د ثمن ملکيت د هغه وطرف ته منتقل سي، او د توکيل په مسئله کي "ملکيت" په غير اختياري توګه د مؤکل وطرف ته منتقل کيږي او ثابتيږي، او مؤکل يعني مسلمان په غير اختياري توګه د شراب (او داسي نورو) د ملکيت منتقل کېدلو اهل دی، لکه څرنګه چي د ميراث په صورت کي د شراب (او داسي نورو) ملکيت د مسلمان وطرف ته منتقل کيږي، د ميراث صورت دا دی چي د يو نصراني سره شراب او خنزير وي او بيا هغه مسلمان سي، او د هغه زوی له مخکي څخه مسلمان وي، اوس که دا نوی مسلمان نصراني مړ سي، نو د هغه مسلمان زوی د شراب او خنزير مالک کيږي، ځکه چي د شراب او خنزير ملکيت د دغه مسلمان زوی لپاره په غير اختياري توګه ثابت سو، او دئ د هغه اهل دی، همدغه ډول د وکيل (نصراني) تر خرڅولو يا رانيولو وروسته (يعني د شراب او خنزير تر خرڅولو يا رانيولو وروسته) د شراب او خنزير ملکيت يا د هغوی د ثمن ملکيت د مؤکل يعني د مسلمان وطرف ته منتقل کيږي، ځکه چي د ملکيت منتقل کېدل غير اختياري دي، او د مسلمان وطرف ته په غير اختياري توګه د شراب او خنزير ملکيت يا د هغوی د ثمن ملکيت منتقل کېدای او ثابتېدای سي.

خلاصه دا سوه چي په وکيل او مؤکل دواړو کي اهليت موجود دی، نو ځکه به دا توکيل (يعني وکيل جوړول) هم جائز وي.

**سوال**: او که څوک سوال وکړي چي کله د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا توکيل جائز دی او د دې په نتيجه کي مؤکل يعني مسلمان د خنزير او شرابو مالک کيږي، نو هغه به په خنزير او شرابو څه کوي؟

**جواب**: صاحب د هدايې د دې په جواب کي فرمايي چي که د مسلمان په ملکيت کي شراب وي نو مسلمان به له هغه څخه سرکه جوړوي، او که دده په ملکيت کي خنزير وي نو هغه به ايله کوي، او که دده په ملکيت کي د هغوی ثمن وي نو هغه به صدقه کوي؛ ځکه په دې ثمن کي خبث دی، ځکه چي دا خنزير او شرابو عوض دی، او په کوم مال کي چي خبث وي، د هغه صدقه کول واجب وي، نو ځکه د خنزير او شرابو د ثمن صدقه کول واجب دي.

## د بيع الشرط بيان

قال: وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا عَلَىٰ أَنْ يُعْتِقَهُ الْمُشْتَرِیْ أَوْ يُدَبِّرَهُ أَوْ يُكَاتِبَهُ او كه څوک خپل غلام پر دې شرط خرڅ کړي چې مشتري به هغه آزادوي يا هغه به مدبر کوي يا هغه به مكاتب کوي أَوْ أَمَةً عَلَىٰ أَنْ يَسْتَوْلِدَهَا يا مينځه پر دې شرط خرڅه کړي چې مشتري به هغه أم ولد کوي فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو په دې ټولو صورتونو کې [بيع فاسده ده لِأَنَّ هٰذَا بَيْعٌ وَشَرْطٌ ځکه چې دا بيع ده او شرط دی وَقَدْ نَهَى النَّبِيُّ ﷺ عَنْ بَيْعٍ وَشَرْطٍ [1] او نبي کريم ﷺ له بيع او شرط څخه منع کړې ده ثُمَّ جُمْلَةُ الْمَذْهَبِ فِيهِ أَنْ يُقَالَ كُلُّ شَرْطٍ يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ بيا د مذهب حاصل [او أصول] په دې کې دا دې چې هر داسې شرط چې عقد د هغه تقاضا نه کوي كَشَرْطِ الْمِلْكِ لِلْمُشْتَرِیْ مثلاً د مشتري لپاره د ملكيت شرط لګول لَا يُفْسِدُ الْعَقْدَ نو [هغه شرط] عقد نه فاسدوي لِثُبُوتِهِ بِدُوْنِ الشَّرْطِ ځکه چې د مشتري ملکيت له شرط څخه بغير ثابت دی وَكُلُّ شَرْطٍ لَا يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ او هر داسې شرط چې عقد د هغه تقاضا نه کوي وَفِيهِ مَنْفَعَةٌ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ او په هغه کې د يوه عاقد [يعني د بائع يا د مشتري] نفع وي أَوْ لِلْمَعْقُودِ عَلَيْهِ وَهُوَ مِنْ أَهْلِ الِاسْتِحْقَاقِ يا په هغه کې د معقود عليه [مبيع] نفع وي او معقود عليه د مستحق کېدلو اهل وي [يعني د خپل حق مطالبه کولای سي] يُفْسِدُهُ نو [داسې شرط] عقد فاسدوي كَشَرْطِ أَنْ لَا يَبِيعَ الْمُشْتَرِی الْعَبْدَ الْمَبِيعَ لکه دا شرط چې مشتري به مبيع غلام نه خرڅوي [يعني پر مشتري دا شرط لګول چې ته به رانيول سوی غلام نه خرڅوې] لِأَنَّ فِيهِ زِيَادَةً عَارِيَةً عَنِ الْعِوَضِ ځکه په دې کې داسې زياتوب دی کوم چې له عوض څخه خالي دی فَيُؤَدِّیْ إِلَى الرِّبَا نو ځکه دا به سُود ته رسول وکړي [يعني د سود سبب به جوړ سي] أَوْ لِأَنَّهُ يَقَعُ بِسَبَبِهِ الْمُنَازَعَةُ يا ځکه چې د دې شرط په سبب سره جنګ [او جنجال] پيښيږي فَيَعْرَى الْعَقْدُ عَنْ مَقْصُودِهِ نو ځکه عقد به له خپل مقصود څخه خالي وي إِلَّا أَنْ يَكُونَ مُتَعَارَفًا مګر دا چې شرط متعارف وي لِأَنَّ الْعُرْفَ قَاضٍ عَلَى الْقِيَاسِ ځکه چې عُرف پر

[1] تخريج: انظر مجمع الزوائد (ج:۴، ص:۸۵)، رواه الطبراني في معجمه الأوسط.

قياس غالب دی وَلَوْ كَانَ لَا يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ او كه شرط داسي وي چي عقد د هغه تقاضا نه كوي وَلَا مَنْفَعَةَ فِيهِ لِأَحَدٍ او په هغه كي د هيچا نفع هم نه وي لَا يُفْسِدُهُ نو هغه عقد نه فاسدوي وَهُوَ الظَّاهِرُ مِنَ الْمَذْهَبِ او همدا ظاهر مذهب دی كَشَرْطٍ أَنْ لَا يَبِيعَ الْمُشْتَرِي الدَّابَّةَ الْمَبِيعَةَ لكه دا شرط چي مشتري به رانيول سوی څاروی نه خرڅوي لِأَنَّهُ انْعَدَمَتِ الْمُطَالَبَةُ ځكه چي مطالبه معدوم سوه [يعني ځكه چي څاروی د خپل حق مطالبه نه سي كوي كولای] فَلَا يُؤَدِّيْ إِلَى الرِّبَا نو ځكه دا به نه د سود وطرف ته رسول كوي وَلَا إِلَى الْمُنَازَعَةِ او نه به د جنګ وطرف ته [رسول كوي].

**اللغات:** ﴿يستولد﴾ د استفعال مضارع ده: اُم ولد جوړول، اُم ولد كول. ﴿جملة﴾ خلاصه، ﴿يعرٰی﴾ له سمع څخه د مضارع صيغه ده: لڅېدل، خالي كېدل، له عيب او داسي نورو څخه پاكېدل. ﴿رِبَا﴾ سود. ﴿متعارف﴾ د تفاعل مفعول دی: په عُرف كي رواج.

**تشريح: مسئله:** دا ده كه څوک پر دې شرط خپل غلام خرڅ كړي چي مشتري به هغه آزادوي، يا پر دې شرط چي مشتري به هغه مدبر كوي، يا پر دې شرط چي مشتري به هغه مكاتب كوي، يا څوک خپله مينځه پر دې شرط خرڅه كړي چي مشتري به هغه خپل اُم ولد كوي، نو په دغه ټولو صورتونو كي بيع فاسديږي.

دليل دا دی چي دا بيع مع الشرط ده (يعني په دې بيع كي شرط لګول سوی دی)، او له بيع مع الشرط څخه نبي كريم ﷺ منع كړې ده، نو ځكه په پورتني شرطونو سره به بيع فاسديږي.

ثم جملة المذهب إلخ: صاحب د هدايې د بيع و شرط په سلسله كي يو اُصول او قاعده بيان كړې ده، د اُصول حاصل دا دی چي شرط پر څو قسمه دی:

①... هغه شرط چي عقد د هغه تقاضا كوي، يعني داسي شرط چي د هغه په لګولو سره همغه فايده حاصليږي كوم چي په مطلق عقد سره ثابتيږي، لكه يو څوک چي پر دې شرط غلام خرڅ كړي چي مشتري به د غلام مالک كيږي، ښكاره خبره ده كه دا شرط نه ولګول سي نو بيا به هم مشتري د غلام مالک كيږي، يا مثلاً بائع داسي ووايي چي غلام پر دې شرط خرڅوم چي مشتري به ما ته ثمن (پيسې) سپاري، يا مشتري ووايي چي غلام پر دې شرط رانيسم چي بائع به ما ته غلام سپاري، ښكاره خبره ده چي كه دا شرط نه وي نو بيا به هم پر مشتري د ثمن ورسپارل او پر بائع د مبيع ورسپارل واجب وي. د شرط په دغه قسم كي بيع جائز ده او دا شرط يو زائد (اضافي) شی دی، يعني د

شرط وجود او نه وجود دواړه سره برابر دي، ځکه هغه په حقيقت کي شرط نه دی بلکي د هغه او د عقد مطلب سره يو دی.

②... دويم هغه شرط دی چي عقد د هغه تقاضا نه کوي، او په دغه شرط کي د بائع نفع وي، يا د مشتري نفع وي، يا د معقود عليه (مبيع) نفع وي په دې شرط چي معقود عليه د استحقاق اهل وي، يعني معقود عليه انسان وي چي د خپل حق مطالبه کولای سي. مثلاً بائع غلام خرڅ کړي او دا شرط ولګوي چي مشتري به غلام نه خرڅوي، په دې شرط کي د مقعود عليه يعني د غلام نفع ده، ځکه غلام له دې شخه بد وړي (او دا بده ګڼي) چي ډېر واره خرڅ کړل سي او د مختلفو خلکو غلام جوړ سي، او غلام د دې مطالبه هم کولای سي. همدارنګه که څوک کپړه پر دې شرط رانيسي چي بائع به هغه ګنډي نو په دې کي د مشتري نفع ده. او که څوک کور پر دې شرط خرڅ کړي چي زه به هغه کي يوه مياشت اوسېږم، نو په دې کي د بائع نفع ده. د شرط په دغه قسم کي بيع فاسديږي.

د فساد يوه وجه يې دا ده چي کله بائع او مشتري مبيع او ثمن سره مقابله کړل يعني مشتري بائع ته ثمن ورکړی او بائع د ثمن په عوض کي مبيع ورکړه، نو شرط له عوض څخه خالي پاته سو، او دا سي زياتوب ته ربوا (سود) وايي کوم چي له عوض څخه خالي وي، نو ځکه د دې شرط په وجه به ربوا (سود) لازم سي، او ربوا ناجائز ده، او کوم شی چي ناجائز لره شامل وي هغه په خپله ناجائز کيږي، نو ځکه به دا بيع ناجائز او فاسد وي.

د فساد دويمه وجه يې دا ده چي د دې شرط په وجه جنګ او تنازع پيدا کيږي، نو د عقد چي کوم مقصود دی يعني بغير له جنګ څخه نفع حاصلېدل، له هغه څخه به دا عقد خالي وي، نو ځکه به دا شرط مُفسد (د بيع فاسدونکی) وي.

③... درېيم هغه شرط دی چي په هغه کي د يوه عاقد نفع وي (يعني صرف د بائع يا صرف د مشتري نفع پکښي وي) او هغه شرط د عقد د مقتضا خلاف هم وي، لېکن هغه متعارف وي يعني په عُرف عام کي رواج او معمول به وي، مثلاً څوک پر دې شرط څپلۍ رانيسي چي بائع به په هغوی کي تسمه لګوي، نو دا بيع نه فاسديږي: ځکه کوم شی چي په عُرف سره ثابت وي ګواکي هغه په شرعي دليل سره ثابت دی، ځکه شارع ﷺ فرمايلي دي: "مَا رَآهُ الْمُسْلِمُوْن حَسَنًا فَهُوَ عِنْدَ اللهِ حَسَنٌ". (يعني په عمومي توګه مسلمانان چي کوم شی خوښ کړي هغه د الله په نېز هم خوښ او غوره دی). يا ځکه چي کوم حکم په عرف سره ثابت وي هغه په اجماع سره ثابت دی، او اجماع له شرعي حجتونو څخه يو حجت دی. نو ځکه د عُرف او قياس په مينځ کي د تعارض په صورت کي به عُرف ته پر قياس ترجيح حاصله وي.

(۴)... څلورم هغه شرط دی چي عقد د هغه تقاضا نه کوي لېکن په هغه کي د هيچا هيڅ نفع هم نه وي، لکه بائع چي پر دې شرط يو څاروی (حيوان) خرڅ کړي چي مشتري به هغه نه خرڅوي، په دې صورت کي ظاهر مذهب دا دی چي بيع صحيح کيږي او شرط لغو کيږي، يعني شرط لره به اعتبار نه وي؛ ځکه چي مبيع يعني څاروی د دې مطالبه نه سي کولای، ځکه څاروی د مطالبې د استحقاق اهل نه دی، او کله چي هغه مطالبه نه کوي نو د ربوا (سود) معنیٰ به هم نه لازميږي او نه به څه جنګ واقع کيږي، او همدغه دوه شيان د بيع فاسدونکي وو، لهذا کله چي په دې صورت کي دا دواړه شيان (سود او جنګ) موجود نه سوه، نو بيع به هم نه فاسديږي. او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي په دې صورت کي بيع فاسديږي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

إِذَا ثَبَتَ هٰذَا کله چي دا اُصول ثابت سو فَنَقُولُ: إِنَّ هٰذِهِ الشُّرُوطَ لَا يَقْتَضِيهَا الْعَقْدُ نو موږ وايو: چي عقد د دې شرطونو تقاضا نه کوي لِأَنَّ قَضِيَّتَهُ الْإِطْلَاقُ فِي التَّصَرُّفِ وَالتَّخْيِيرُ لَا الْإِلْزَامُ حَتْمًا ځکه چي د عقد تقاضا دا ده چي په تصرف کولو کي اطلاق او اختيار وي، نه حتماً [خامخا] لازمول [يعني لازمي إلزام د عقد تقاضا نه ده] وَالشَّرْطُ يَقْتَضِي ذٰلِكَ حال دا چي شرط د دې [الزام] تقاضا کوي وَفِيهِ مَنْفَعَةٌ لِلْمَعْقُودِ عَلَيْهِ او په دې شرط کي د معقود عليه [مبيع] نفع [هم] ده [نو ځکه به بيع ناجائز وي] وَالشَّافِعِيُّ وَإِنْ كَانَ يُخَالِفُنَا فِي الْعِتْقِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله که څه هم د آزادولو په شرط کي زموږ مخالف دی وَيَقِيسُهُ عَلَى بَيْعِ الْعَبْدِ نَسَمَةً او هغه دا قياسوي د نسمه په توګه د غلام پر خرڅولو [يعني هغه دا پر "بيع نسمه" باندي قياسوي] فَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا ذَكَرْنَاهُ [لېکن] د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف هغه حديث حجت دی کوم چي موږ ذکر کړی وَتَفْسِيرُ الْبَيْعِ نَسَمَةً أَنْ يُبَاعَ مِمَّنْ يَعْلَمُ أَنَّهُ يُعْتِقُهُ او د "بيع نسمه" تفسير دا دی: چي غلام پر داسي سړي خرڅ کړل سي چي د هغه په باره کي اشتري ته [دا معلوميږي چي هغه به غلام آزاد کړي لَا أَنْ يَشْتَرِطَ فِيهِ [او د "بيع نسمه" تفسير] دا نه دی چي په بيع کي د آزادولو شرط ولګوي فَلَوْ أَعْتَقَهُ الْمُشْتَرِي بَعْدَمَا اشْتَرَاهُ بِشَرْطِ الْعِتْقِ يا که چيري مشتري د آزادولو پر شرط د غلام تر رانيولو وروسته هغه آزاد کړي صح البيع حتى يجب عليه

الثَّمَنُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز بيع صحيح کيږي تر دې چې پر هغه ثمن واجبيږي وَقَالَا ❁: يَبْقَى فَاسِدًا حَتَّى يَجِبَ عَلَيْهِ الْقِيمَةُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې بيع فاسد پاتيږي تر دې چې پر هغه قيمت واجبيږي لِأَنَّ الْبَيْعَ قَدْ وَقَعَ فَاسِدًا ځکه چې بيع فاسده واقع سوې وه فَلَا يَنْقَلِبُ جَائِزًا نو ځکه [بيرته] به جائز نه ګرځي كَمَا إِذَا تَلِفَ بِوَجْهٍ آخَرَ لکه هغه غلام چې په يو بله وجه ضايع سوی [هلاک سوی] وي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ شَرْطَ الْعِتْقِ مِنْ حَيْثُ ذَاتِهِ لَا يُلَائِمُ الْعَقْدَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د آزادۍ شرط لګول د خپل ذات په اعتبار د عقد مناسب نه دی عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ لکه موږ چې ذکر کړه وَلَكِنْ مِنْ حَيْثُ حُكْمِهِ يُلَائِمُهُ ليکن د حکم په اعتبار د عقد مناسب دی لِأَنَّهُ مُنْهٍ لِلْمِلْكِ ځکه چې آزادول د ملکيت پوره کونکي [او ختمونکي] دي وَالشَّيْءُ بِانْتِهَائِهِ يَتَقَرَّرُ او شی په خپل پوره کېدلو [او انتهاء ته په رسېدلو] سره مستحکم کيږي [مضبوطيږي] وَلِهَذَا لَا يَمْنَعُ الْعِتْقُ الرُّجُوعَ بِنُقْصَانِ الْعَيْبِ او له همدې کبله آزادول رجوع بنقصان العيب نه منع کوي فَإِذَا تَلِفَ مِنْ وَجْهٍ آخَرَ نو کله چې په بله وجه غلام ضايع سي لَمْ تَتَحَقَّقِ الْمُلَاءَمَةُ نو مناسبت نه ثابتيږي فَيَتَقَرَّرُ الْفَسَادُ نو ځکه فساد [د بيع فاسدېدل] به مستحکم سي وَإِذَا وُجِدَ الْعِتْقُ او کله چې آزادي موجوده سي تَحَقَّقَتِ الْمُلَاءَمَةُ نو مناسبت به هم ثابت سي فَيُرَجَّحُ جَانِبُ الْجَوَازِ نو د جواز جانب به راجح سي فَكَانَ الْحَالُ قَبْلَ ذَلِكَ مَوْقُوفًا نو ځکه تر دې مخکي حالت به موقوف وي [يعني تر دې مخکي به عقد موقوف وي].

**اللغات**: ﴿قضيّة﴾ تقاضا. ﴿لا يلائم﴾ د مفاعلې له بابه د نفي صيغه ده: موافق کېدل، مناسب کېدل. (احسن الهدايه)

**تشريح**: فرمايي کله چې د شرط په هکله مخکښې اُصول تاسي ته معلوم سو، نو اوګورئ! چې په متن کي کوم شرطونه ذکر سوي دي هغوی ټوله د عقد د مقتضا خلاف دي، ځکه عقد دا غواړي چې

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأنه استحسان كما في الدر المنتقى مع مجمع الأنهر، وكذا في الهندية: ولو قبضه ثم أعتقه ينقلب العقد جائزا استحسانا في قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله حتى يلزمه الثمن (الهندية ج:۳، ص:۱۳)، وكذا في حاشية الزيلعي (ج:۴، ص:۵۷). [القول الراجح ج:۲، ص:۴۶]

مشتري ته د هر ډول تصرف کولو اجازه وي او هغه ته د آزادولو يا نه آزادولو پوره اختيار وي. او عقد دا نه غواړي چي پر مشتري آزادول او داسي نور واجب وي، لېکن شرط دا غواړي چي پر مشتري آزادول او داسي نور واجب وي (يعني په شرط کي د مشتري اختيار سلبيږي) او په دې شرط کي د معقود عليه يعني د غلام نفع هم ده، نو د عقد په تقاضا او د شرط په تقاضا کي منافات واقع سو، او په دواړو کي يوه ته هم ترجيح حاصله نه ده، نو ځکه موږ په دواړو عمل وکړی او دا فيصله مو وکړه چي دا بيع فاسده ده، يعني د ذات په اعتبار سره مشروع او جائز ده او د وصف په اعتبار سره غير مشروع او ناجائز ده، ځکه څرنګه چي په دې بيع کي د بيع رکن موجود سو نو ځکه دا بيع مشروع ده، او څرنګه چي په دې کي د عقد د مقتضا خلاف شرط هم موجود سو نو ځکه دا بيع غيرِ مشروع ده، او کومه بيع چي د ذات په اعتبار سره مشروع وي او د وصف په اعتبار سره غيرِ مشروع وي هغه فاسده وي، نو ځکه به دا بيع فاسده وي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله د مدبر کولو، اُم ولد کولو او مکاتب کولو په شرط سره د بيع په فاسدېدلو کي زموږ سره دی، لېکن د آزادولو په شرط کي (يعني په بيع بشرط العتق کي) هغه زموږ خلاف دی؛ ځکه د هغه څخه يو روايت سوی دی چي د آزادولو په شرط سره خرڅول جائز دي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله دا بيع پر "بيع العبد نسمة" باندي قياس کړې ده، او په مبسوط کي د "بيع العبد نسمة" تفسير په "بيع بشرط العتق" سره سوی دی، يعني د "بيع العبد نسمة" تعريف او تفسير دا دی چي غلام د آزادولو په شرط سره خرڅ کړل سي، نو د دې مطلب دا سو چي امام شافعي بيع بشرط العتق پر بيع بشرط العتق باندي قياسوي (يعني شي پر خپل نفس قياسوي)، او قياسُ الشي على نفسه باطل وي، نو ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله قياس باطل دی.

**سوال:** که څوک ووايي چي حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د آزادولو پر شرط حضرت بريره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا رانيولې وه او بيا د الله رسول ﷺ دا بيع جائز وګرځوله، نو له دې څخه ثابته سوه چي د غلام بيع "بشرط العتق" جائز ده.

**جواب:** دا دی چي حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حضرت بريره له يو شرط څخه بغير مطلق رانيولې وه، لېکن د هغې سره يې د آزادولو وعده کړې وه چي بريره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راضي سي، او وجه دا وه چي حضرت بريره مکاتبه وه، او د مکاتب بيع د هغه له رضا څخه بغير جائز نه وي، نو ځکه حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د آزادولو په وعده سره اول حضرت بريره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راضي کړه، بيا يې د هغې له

مالک څخه هغه رانیوله او خپل د آزادولو وعده یې پوره کړه. او دې ته د آزادولو په شرط سره رانیول نه وايي. (عنايه)

**فالحجة عليه:** او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف هغه حديث حجت دى كوم چې موږ ذكر كړى يعني: "نَهَى النَّبِيُّ ﷺ عَنْ بَيْعٍ وَشَرْطٍ"، او عقلي دليل هم د هغه په خلاف حجت دى.

**عقلي دليل:** دا دى چې دا شرط د جنګ او نزاع سبب جوړيږي، او د "بيع العبد نسمة" تفسير دا دى چې غلام پر داسې سړي خرڅ کړل سي چې د هغه له حال څخه معلوميږي چې غلام به آزاد کړي. دا مطلب یې بالکل نه دى چې بائع د غلام آزادولو شرط ولګوي. او په دې تفسير سره د غلام په خرڅولو کې هيڅ حرج نسته، د دې د جواز خو موږ هم قائل يو.

**فلو أعتقه المشتري بعد ما إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چې که څه هم بيع بشرط العتق ناجائز ده، لېکن بيا هم که څوک د آزادولو په شرط سره غلام خرڅ کړي او مشتري هغه آزاد هم کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا بيع صحيح کيږي تر دې چې پر مشتري ثمن واجبيږي، ځکه د بيع صحيح کېدلو په صورت کې ثمن واجبيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا بيع فاسده پاتيږي تر دې چې پر مشتري قيمت (بازاري ريټ) واجبيږي؛ ځکه د بيع فاسد بدلو په صورت کې پر مشتري قيمت واجبيږي. (ثمن د يو شي هغه قيمت او نرخ ته وايي کوم چې يې بائع او مشتري په خپل مينځ کې وټاکي. او قيمت هغه نرخ ته وايي کوم چې په بازار کې د شي لپاره ټاکل سوى وي)

**د صاحبينو دليل:** دا دى چې دا بيع د عقد د مخالف شرط لګولو په وجه ابتداءً فاسده واقع سوه، او قاعده دا ده چې "الفَاسِدُ لَا يَنْقَلِبُ جَائِزًا" (يعني کومه بيع چې فاسده منعقد سي هغه بيرته جائز نه ګرځي)، لکه څرنګه چې دا غلام که له آزادولو څخه بغير په بله وجه هلاک سي، مثلاً تر قبضه کولو وروسته د مشتري سره مړ سي يا قتل کړى سي، نو په دې صورت کې بيع فاسده پاتيږي او پر مشتري قيمت واجبيږي، همداسې به د مشتري د آزادولو په صورت کې هم بيع فاسده پاتيږي، او لکه څرنګه چې څوک د مدبر کولو يا مکاتب کولو يا اُم ولد کولو په شرط سره غلام يا مينځه خرڅه کړي او مشتري دا شرط پوره هم کړي نو بيع فاسده پاتيږي او جائز نه ګرځي او پر مشتري قيمت واجبيږي، همداسې به د آزادولو په صورت کې هم بيع فاسده پاتيږي او پر مشتري به قيمت واجب وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دى چې د آزادۍ شرط لګول د خپل ذات په اعتبار سره د دې عقد مناسب نه دى لکه مخکې چې موږ ذکر کړه چې د آزادولو شرط او قيد د مشتري د مختار کېدلو مغاير او مخالف دى (يعني په دې شرط کې د مشتري اختيار سلبيږي)، لېکن د خپل حکم په اعتبار سره دا شرط د عقد

مناسب دی، ځکه چي آزادي د مشتري ملکيت لره پوره کونکې ده (يعني د مشتري ملکيت انتهاء ته رسوي او پوره کوي)، او شی چي خپل انتهاء ته ورسيږي نو مستحکم او مضبوط گرځي. همدا وجه ده که مشتري د غلام تر آزادولو وروسته په هغه کي يو عيب ووينې، نو مشتري ته دا اختيار سته چي له خپل بائع څخه د عيب نقصان واپس واخلي، نو د غلام آزادولو باوجود د عيب د نقصان واپس اخيستلو اختيار پاتېدل د دې خبرې دليل دی چي د مشتري ملکيت نه دی ختم سوی، بلکي خپل انتهاء ته رسېدلی او مستحکم سوی دی.

خلاصه دا چي که غلام د مرگ يا د قتل او داسي نورو په وجه هلاک سو، نو د عقد سره د شرط (شرطُ العتق) مناسب کېدل ثابت نه سو (يعني شرط د عقد مناسب نه سو)، بلکي فساد نور مضبوط سو، او کله چي عتق موجود سو (يعني غلام آزاد کړل سو) نو د عقد سره د شرط مناسب کېدل ثابت سو، او د جواز اړخ د فساد پر اړخ راجح سو، نو ځکه له آزادولو څخه مخکي به د بيع حال موقوف پاته وي، يعني که څوک د آزادولو پر شرط غلام خرڅ کړي نو د بيع جواز او فساد به موقوف پاته وي، نو که تر دې وروسته غلام له آزادولو څخه بغير په يو بله وجه هلاک سي، نو د بيع فساد (فاسدېدل) به مستحکم وگرځي، او که مشتري هغه آزاد کړي نو بيع به پوره سي او جائز به وگرځي (ابتدائي فساد به ختم سي).

## غلام د خدمت اخيستلو په شرط، او کور د اوسېدلو يا په يو بل شرط سره خرڅول

قال: وَكَذٰلِكَ لَوْ بَاعَ عَبْدًا عَلٰى أَنْ يَّسْتَخْدِمَهُ الْبَائِعُ شَهْرًا فرمايي: او همدارنگه که غلام پر دې شرط خرڅ کړي چي بائع به له هغه څخه يوه مياشت خدمت اخلي أَوْ دَارًا عَلٰى أَنْ يَسْكُنَهَا يا کور پر دې شرط خرڅ کړي چي بائع به په هغه کي [مثلا يوه مياشت] اوسيږي أَوْ عَلٰى أَنْ يُقْرِضَهُ الْمُشْتَرِيْ دِرْهَمًا يا پر دې شرط چي مشتري به بائع ته يو درهم قرض ورکوي أَوْ عَلٰى أَنْ يُهْدِيَ لَهُ هَدِيَّةً يا پر دې شرط چي مشتري به بائع ته هديه [تحفه] ورکوي لِأَنَّهُ شَرْطٌ لَا يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ وَفِيهِ مَنْفَعَةٌ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ ځکه چي دا يو داسي شرط دی چي عقد د هغه تقاضا نه کوي او په هغه کي د يوه عاقد نفع ده وَلِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهٰى عَنْ بَيْعٍ وَسَلَفٍ [1] او ځکه چي نبي ﷺ له بيع او قرض څخه منع کړې ده وَلِأَنَّهُ لَوْ كَانَ الْخِدْمَةُ وَالسُّكْنٰى يُقَابِلُهُمَا شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ او ځکه که چيري [د غلام] د خدمت او [په کور

[1] تخريج: أخرجه النسائي في كتاب البيوع، باب بيع ما ليس عند البائع، حديث رقم: ۴۶۱۵.

کي | د اوسېدلو په مقابله کي د ثمن څه حصه وي يَكُونُ إِجَارَةً فِي بَيْعٍ نو دا به په بيع کي اجاره وي |يعني دا به د بيع سره اجاره هم وګرځي| وَلَوْ كَانَ لَا يُقَابِلُهُمَا او که د خدمت او اوسېدلو په مقابله کي د ثمن څه حصه نه وي يَكُونُ إِعَارَةً فِي بَيْعٍ نو دا به په بيع کي اعاره وي وَقَدْ نَهَى النَّبِيُّ ﷺ عَنْ صَفْقَتَيْنِ فِي صَفْقَةٍ ❶ حال دا چي نبي کريم ﷺ په يوه معامله کي له دوو معاملو څخه منع کړې ده |يعني په يوه معامله کي يې د بلي معاملې له داخلولو څخه منع کړې ده|.

**اللغات**: ﴿يستخدم﴾ د استفعال مضارع ده: خدمت اخيستل، ﴿يسكن﴾ د نصر مضارع ده: اوسېدل، استېدل، ﴿يقرض﴾ د افعال مضارع ده: قرض ورکول، پور ورکول، ﴿يهدى﴾ دا هم مضارع ده: تحفه ورکول، هديه کول، ډالۍ کول، ﴿سلف﴾ قرض، پور، ﴿إعارة﴾ د افعال مصدر دی: عارتاً ورکول (دې ته وايي چي يو څوک خواست وکړي چي مثلاً دا شی ما ته امانتاً او په قرض حسنه يو څو وخت راکړه زما ضروري پکار دی، نو که هغه ته شی ورکول سي نو دې ته "عارتاً ورکول" وايي).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که څوک پر دې شرط غلام خرڅ کړي چي هغه به يوه مياشت زما خدمت کوي، يا کور پر دې شرط خرڅ کړي چي زه يوه مياشت په هغه کي اوسيږم، يا پر دې شرط يو شی خرڅ کړي چي مشتري به ما ته يو درهم په قرض راکوي، يا يې پر دې شرط خرڅ کړي چي مشتري به ما ته يو تحفه راکوي، په دې ټولو صورتونو کي بيع فاسده ده.

دليل دا دی چي دا ټوله شرطونه د عقد د مقتضا خلاف دي، او په دې شرطونو کي د يوه عاقد يعني د بائع نفع هم ده، او کوم شرط چي د عقد د مقتضا خلاف وي او په هغه کي د احد العاقدين نفع وي نو هغه بيع فاسدوي، نو ځکه به په دې شرطونو سره بيع فاسديږي.

دويم دليل دا دی چي نبي کريم ﷺ د بيع او قرض له جمع کولو څخه منع کړې ده، يعني له داسي بيع څخه يې منع کړې ده چي په هغه کي شرط لګېدلی وي چي مشتري به بائع ته قرض هم ورکوي.

درېيم دليل دا دی چي د غلام د خدمت کولو او په کور کي د اوسېدلو په مقابله کي به ثمن وي يا به نه وي؟ که د هغوی په مقابله کي ثمن وي نو دا به په بيع کي اجاره وي، او که د هغوی په مقابله کي ثمن نه وي نو دا به په بيع کي اعاره وي، يعني په بيع کي به اجاره داخله سي يا اعاره، حال دا چي نبي کريم په يوه معامله کي دننه له دوو معاملو څخه منع کړې ده. يعني له دې څخه يې منع کړې ده چي يوه معامله په بله معامله کي داخله کړی سي او دواړې سره جمع کړل سي. نو له دې حديث څخه ثابته سوه چي د خدمت اخيستلو او په کور کي د اوسېدلو شرط لګول فاسد دي، نو ځکه به بيع فاسديږي.

---

❶ تخريج: أخرجه النسائي في كتاب البيوع، باب بيعتين في بيعة، حديث رقم: ۴۶۳۶.

## په بيع کي د شرط لګولو يو بل صورت

قال: وَمَنْ بَاعَ عَيْنًا عَلَىٰ أَنْ لَا يُسَلِّمَهُ إِلَىٰ رَأْسِ الشَّهْرِ فرمايي: او که څوک يو عين شی پر دې شرط خرڅ کړي چي هغه به [مشتري ته] د مياشتي تر اول تاريخ پوري هغه نه سپاري فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسده ده لِأَنَّ الْأَجَلَ فِي الْمَبِيعِ الْعَيْنِ بَاطِلٌ ځکه چي په عَين مبيع [معيّنه مبيع] کي ميعاد باطل دی فَيَكُونُ شَرْطًا فَاسِدًا نو ځکه دا شرط به فاسد وي وَهٰذَا لِأَنَّ الْأَجَلَ شُرِعَ تَرْفِيهًا او دا په دې وجه چي ميعاد د آسانی لپاره مشروع سوی دی فَيَلِيقُ بِالدُّيُونِ دُونَ الْأَعْيَانِ نو هغه د قرضونو لائق [مناسب] دی، نه د اعيانو.

**اللغات:** ﴿عين﴾ له دراهم او دنانير څخه بغير بل مُعيّن (معلوم) شی، جمع يې "أَعْيَان" راځي، او له "دُيُوْن" څخه مراد دراهم او دنانير دي، ﴿أجل﴾ ميعاد (مياد)، ټاکل سوی مودت، نېټه، ﴿ترفيه﴾ د تفعيل مصدر دی: آساني او فراخي راوستل، آساني کول، ﴿يليق﴾ د ضرب مضارع ده: مناسب کېدل، لائق کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی عَين مال يعني له دراهم او دنانيرو څخه بغير بل مُعيّن او موجود شی پر دې شرط خرڅ کړي چي زه به تا ته د مياشتي په اول تاريخ يا په آخري تاريخ کي مبيع سپارم، نو دا بيع فاسديږي.

دليل دا دی چي مهلت او ميعاد ټاکل د آسانی لپاره مشروع سوی دی، يعني ميعاد د دې لپاره مشروع سوی دی چي په ټاکل سوي مودت کي د شي حاصلول آسانه سي (يعني د کوم شي په باره کي چي ميعاد او مودت ټاکل سوی دی د هغه تر لاسه کول او اخيستل په هغه مودت کي بې تکلفه او آسانه وي)، نو ځکه "ميعاد" د دَين يعني د دراهم او دنانيرو مناسب دی، د اعيانو مناسب نه دی؛ ځکه عَين مال خو بالفعل موجود وي، او دراهم او دنانير انسان په کراره، کراره تلاش کوي او پيدا کوي، نو کوم شی چي بالفعل موجود وي، په هغه کي د ميعاد ټاکلو ضرورت نسته، کنې تحصيل د حاصل به لازم سي، ها! کوم شی چي بالفعل موجود نه وي، په هغه کي ميعاد او مهلت ورکول مفيد دي، لهذا کله چي ميعاد د اعيانو مناسب نه دی، نو ځکه د مبيع په عَين يعني په مُعيّنه او موجوده مبيع کي به د ميعاد او مودت ذکر کول باطل وي او د ميعاد شرط لګول به فاسد وي، او څرنګه چي په فاسد شرط سره بيع فاسديږي، نو ځکه به په دې شرط سره بيع فاسديږي.

## د مینځي په بیع کې حمل مستثنیٰ کول

قال: وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً إِلَّا حَمْلَهَا فرمايي: او كه څوک د مينځي له حمل څخه بغير [يوازي] مينځه خرڅه كړي فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسده ده وَالْأَصْلُ أَنَّ مَا لَا يَصِحُّ إِفْرَادُهُ بِالْعَقْدِ لَا يَصِحُّ اسْتِثْنَاؤُهُ مِنَ الْعَقْدِ او قاعده دا ده چې د كوم شي تنها [يوازې] عقد كول صحيح نه وي [يعني كوم شی چې تنها خرڅول صحيح نه وي] له عقد څخه د هغه استثناء كول هم صحيح نه دي وَالْحَمْلُ مِنْ هٰذَا الْقَبِيلِ او حمل [هم] له دغه قبيلې څخه دی وَهٰذَا لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ أَطْرَافِ الْحَيَوَانِ او دا ځكه چې حمل د اطرافو [اعضاؤ] په درجه كې دی لِاتِّصَالِهِ بِهِ خِلْقَةً ځكه چې حمل د مبيع [حامل] سره په پيدايشي توګه متصل وي وَبَيْعُ الْأَصْلِ يَتَنَاوَلُهُمَا او د اصل بيع اطرافو ته شامليږي فَالِاسْتِثْنَاءُ يَكُونُ عَلٰى خِلَافِ الْمُوْجِبِ نو ځكه استثناء كول به د عقد د مُوجب [تقاضا] خلاف وي فَلَا يَصِحُّ او نه به صحيح كيږي فَيَصِيْرُ شَرْطًا فَاسِدًا نو استثناء به يو فاسد شرط وګرځي وَالْبَيْعُ يَبْطُلُ بِهِ او په فاسد شرط سره بيع باطليږي وَالْكِتَابَةُ وَالْإِجَارَةُ وَالرَّهْنُ بِمَنْزِلَةِ الْبَيْعِ او كتابت، اجاره او رهن د بيع په درجه كې دي لِأَنَّهَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوْطِ الْفَاسِدَةِ ځكه چې دا عقدونه [هم] په فاسدو شرطونو سره باطليږي غَيْرَ أَنَّ الْمُفْسِدَ فِي الْكِتَابَةِ مَا يَتَمَكَّنُ فِي صُلْبِ الْعَقْدِ مِنْهَا لېكن د كتابت فاسدونكی شرط هغه دی كوم چې د عقد د قيمت [عوض] په ذات كې وي وَالْهِبَةُ وَالصَّدَقَةُ وَالنِّكَاحُ وَالْخُلْعُ وَالصُّلْحُ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ لَا تَبْطُلُ بِاسْتِثْنَاءِ الْحَمْلِ او هبه، صدقه، نكاح، خلع او صلح عن دم العمد د حمل په استثناء كولو سره نه باطليږي بَلْ يَبْطُلُ الِاسْتِثْنَاءُ بلكې [په خپله] استثناء باطليږي لِأَنَّ هٰذِهِ الْعُقُودَ لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوْطِ الْفَاسِدَةِ ځكه چې دا عقدونه په فاسدو شرطونو سره نه باطليږي وَكَذَا الْوَصِيَّةُ لَا تَبْطُلُ بِهِ او همدارنګه وصيت هم د حمل په استثناء كولو سره نه باطليږي لٰكِنْ يَصِحُّ الِاسْتِثْنَاءُ لېكن استثناء صحيح كيږي حَتّٰى يَكُوْنَ الْحَمْلُ مِيْرَاثًا وَالْجَارِيَةُ وَصِيَّةً تر دې چې حمل به ميراث وي او مينځه به وصيت وي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ أُخْتُ الْمِيْرَاثِ ځكه چې وصيت د ميراث خور ده وَالْمِيْرَاثُ

يَجْرِي فِيمَا فِي الْبَطْنِ او په هغه شي کي کوم چي په نس کي وي [يعني په حمل کي] ميراث جاري کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا اسْتَثْنَى خِدْمَتَهَا په خلاف د هغه صورت کله چي د مينځي د خدمت استثناء وکړي لِأَنَّ الْمِيرَاثَ لَا يَجْرِي فِيهَا ځکه چي په خدمت کي ميراث نه جاري کيږي.

**اللغات:** ﴿أطراف﴾ جمع د طَرَف ده: اړخ، مراد ځني اعضاء (اندامونه) دي، ﴿إفراد﴾ د افعال مصدر دي: يوازي کول، تنها کول، جلا کول، ﴿يتناولها﴾ د تفاعل مضارع ده: شاملېدل، ﴿موجب﴾ تقاضا، ﴿إجارة﴾ د افعال مصدر دي: په کرايه ورکول، ﴿دم العمد﴾ قصداً قتل (هغه قتل کوم چي يو انسان قصداً وکړي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی مينځه خرڅه کړي لېکن د هغې د حمل استثناء وکړي، نو دا بيع فاسده ده. صاحب د هدايې چي د دې کوم تفصيل ذکر کړی دی، د هغه حاصل دا دی چي په کوم عقد کي استثناءِ وسي، هغه پر درې قسمه دی:

①... يو هغه دی چي په هغه کي عقد او استثناء دواړه فاسديږي.

②... دويم هغه دی چي عقد پکښي صحيح کيږي او استثناء باطليږي.

③... دريم هغه عقد دی چي عقد او استثناء دواړه پکښي صحيح کيږي.

**اول قسم:** لکه بيع، اجاره، کتابت او رهن. يعني مثلاً يو څوک مينځه خرڅه کړي لېکن د هغې حمل خرڅ نه کړي (يعني د هغې د حمل استثناء وکړي)، يا خپل غلام مکاتب جوړ کړي او په "بدل کتابت" کي مينځه ورکړي (يعني غلام ته ووايي چي د مکاتب جوړولو په عوض کي به ما ته يوه مينځه راکوې) لېکن د هغې حمل په بدل کتابت کي شامل نه کړي، يا خپل کور په کرايه ورکړي او په کرايه کي مينځه وټاکي (چي ما ته به مينځه راکوې) لېکن د هغې حمل په کرايه کي شامل نه کړي، يا خپله مينځه يو چا ته په رهن کي ورکړي لېکن د هغې حمل په رهن کي ورنه کړي، نو په دې ټولو صورتونو کي بيع فاسديږي؛ ځکه چي دا عقدونه په فاسد شرط سره باطليږي، او دوی (يعني کتابت، اجاره او رهن) ځکه په فاسد شرط سره باطليږي چي دوی د معاوضې عقدونه (عقود معاوضه) دي نو په دې وجه د بيع په معنیٰ سره دي (يعني د عقد معاوضه کېدلو په وجه دوی درې سره د بيع په معنیٰ سره دی)، او بيع په فاسد شرط سره باطليږي لکه مخکي چي د دې بيان تېر سو. نو ځکه کوم عقدونه چي د بيع په معنیٰ سره وي هغوی به هم په فاسد شرط سره باطليږي. او کوم شی چي تنها (يوازي) خرڅول جائز نه وي (لکه حمل) نو له عقد څخه د هغه استثناء کول هم جائز نه دي، او حمل هم له دغه قبيلې څخه دی. يعني

حمل تنها خرڅول جائز نه دي، او د حمل تنها بيع ځکه جائز نه ده چي هغه د حيوان د اطرافو (اندامونو) په درجه کي دی، يعني څرنګه چي د حيوان اطراف په پيدايشي توګه د حيوان سره متصل وي، همداسي حمل هم د حامل [ماده] سره متصل وي، او د حيوان بيع اطرافو ته شامليږي، نو ځکه د اطرافو استثناء کول به د عقد (بيع) د مُوجب خلاف وي، نو همداسي به د حمل استثناء کول هم د عقد د مُوجب خلاف وي، او کوم شی چي د عقد د مُوجب خلاف وي هغه صحيح نه دي بلکي يو فاسد شرط دی، نو ځکه د حمل استثناء کول به فاسد شرط وي، او په فاسد شرط سره بيع باطليږي، نو ځکه د حمل په استثناء سره به بيع باطليږي. او څرنګه چي کتابت، اجاره او رهن د بيع په معنیٰ سره دي لکه اوس چي دا خبره تېره سوه، نو ځکه به داعقود هم په فاسد شرط سره باطليږي. ها! دومره فرق ضرور پکښي سته چي بيع مطلقاً په فاسد شرط سره باطليږي، برابره ده شرط د بيع په ذات کي داخل وي او که داخل نه وي. او کتابت په داسي فاسد شرط سره باطليږي کوم چي د عقد کتابت په ذات کي داخل وي، مثلاً مسلمان مالک (مولیٰ) خپل غلام د شراب يا خنزير په عوض کي مکاتب جوړ کړي (چي ته به ما ته شراب يا خنزير راکوې)، يعني "بدل کتابت" شراب يا خنزير وټاکي. او که فاسد شرط د عقد کتابت په ذات کي داخل نه وي، مثلاً مالک پر مکاتب دا شرط شرط ولګوي چي هغه به له کندهار څخه دباندي نه وځي، نو په دې صورت کي عقد کتابت صحيح کيږي او شرط باطليږي يعني مکاتب ته به له کندهار څخه د وتلو اجازه وي؛ د دې دليل دا دی چي عقد کتابت انتهاءً (په آخر کي) د بيع سره مشابه دی، ځکه مکاتب د مالک په حق کي مال دی، همدا وجه ده چي مالک د مکاتب په عوض کي مال يعني بدل کتابت حاصلوي، او عقد کتابت د نکاح سره هم مشابه دی، ځکه مکاتب په خپل حق کي مال نه دی، همدا وجه ده چي مکاتب ته د بدل کتابت په عوض کي هيڅ مال نه حاصليږي، نو ځکه موږ کتابت په هغه شرط کي د بيع سره لاحق کړی کوم چي د عقد کتابت په ذات کي داخل وي، يعني څرنګه چي د فاسد شرط په وجه بيع باطليږي، همدارنګه د هغه فاسد شرط په وجه به عقد کتابت باطليږي کوم چي د کتابت په ذات کي وي. او په هغه شرط کي کوم چي د کتابت په ذات کي داخل نه وي موږ کتابت د نکاح سره لاحق کړی، يعني څرنګه چي نکاح په فاسد شرط سره نه باطليږي بلکي په خپله شرط باطليږي، همدا ډول به په هغه شرط سره کوم چي د کتابت په ذات کي نه وي عقد کتابت نه باطليږي، بلکي په خپله شرط به باطليږي.

**دويم قسم:** (چي په هغه کي عقد صحيح کيږي او استثناء باطليږي) لکه هبه، صدقه، نکاح، خلع او صلح عن دم العمد. مثلاً مالک خپله مينځه يو چا ته هبه کړي لېکن د هغې حمل هبه نه کړي، يا مينځه صدقه کړي لېکن د هغې حمل صدقه نه کړي، يا مينځه په مهر کي وټاکي او د هغې حمل

مستثنیٰ کړي، یا یو ښځه د خپل خاوند سره خلع وکړي او خپله مینځه په "بدل خلع" کې ورکړي لېکن د هغې حمل په "بدل خلع" کې شامل نه کړي، یا عمداً قتل کونکی (قاتل) پر مینځه صلح وکړي لېکن د هغې حمل په "بدل صلح" کې شامل نه کړي، دا ټوله عقدونه د حمل په استثناء کولو سره نه باطلیږي، بلکې خودي استثناء باطلیږي، او په عقد کې حمل او د هغه مور دواړه داخلیږي.

دلیل دا دی چې دا عقود په فاسد شرط سره نه باطلیږي، ځکه په اول قسم کې ځکه عقد باطلېدی چې هلته شرط مفضي الی الربوا دی (یعني په اول قسم کې شرط د سود سبب ګرځي)، او ربوا صرف په معاوضاتو کې ثابتیږي، او په دویم قسم کې چې کوم عقود (صدقه او داسې نور) ذکر سوي دي دا ټوله د تبرعاتو او اسقاطاتو له قبیلې څخه دي، معاوضات نه دي او په دوی کې هیڅ ربوا نه ثابتیږي، نو کله چې په دې عقدونو کې د فساد وجه موجود نه سوه، نو ځکه د فاسد شرط په وجه به دا عقدونه نه باطلیږي بلکې په خپله فاسد شرط به باطلیږي. ها! هبه که څه هم د تملیکاتو له قبیلې څخه ده لېکن په فاسد شرط سره د هبې نه باطلېدل په نص سره معلوم سوي دي، ځکه نبي کریم ﷺ هبه په هغه صورت کې هم جائز ګرځولې ده کله چې په هغې کې دا شرط ولګول سي چې د "موهوب لهٗ" تر مرګ وروسته به "موهوب شی" د هبه کونکي (واهب) وطرف ته واپس کیږي، نو دا هبه صحیح ده او شرط باطل دی، یعني د موهوب لهٗ تر مرګ وروسته به موهوب شی د موهوب لهٗ وارثانو ته ورکول کیږي، نه واهب ته (یعني واهب ته به نه ورکول کیږي). له دې حدیث څخه معلومه سوه چې هبه که څه هم د تملیکاتو له قبیلې څخه ده لېکن هغه په فاسد شرط سره نه باطلیږي بلکې فاسد شرط په خپله باطلیږي.

**دریـم قسم:** (چې په هغه کې عقد او استثناء دواړه صحیح کیږي) وصیت دی، مثلاً یو سړی په مرضُ الموت کې د بل چا لپاره د خپلې مینځې وصیت وکړي (چې زما تر مرګ وروسته دا مینځه ستا ده) او د هغې حمل مستثنیٰ کړي یعني د حمل وصیت نه وکړي، نو د حمل په استثناء سره وصیت نه باطلیږي او استثناء هم صحیح کیږي، نو مینځه به د موصیٰ لهٗ وي (یعني د چا لپاره چې وصیت سوی دی مینځه به د هغه وي) او حمل یعني پیدا کېدونکی بچی به د وارثانو وي؛ وصیت ځکه نه باطلیږي چې هغه عقد معاوضه نه دی، او کله چې وصیت عقد معاوضه نه دی نو ځکه د فاسد شرط په وجه به نه باطلیږي، او استثناء ځکه صحیح کیږي چې وصیت د میراث خور یعني د میراث سره مشابه ده، ځکه چې دواړه تر مرګ وروسته نافذیږي، او میراث په هغه شي کې هم جاري کیږي کوم چې په نس

کې وي يعني حمل، ځکه چې حمل "عين شی" دی او په اعيانو کې ميراث جاري کيږي، نو ځکه په حمل کې به ميراث جاري کيږي.

د دې په خلاف که څوک د يو چا لپاره د مينځې وصيت وکړي او د هغې د خدمت استثناء وکړي، نو دا استثناء صحيح نه ده، ځکه چې خدمت عَين شی نه دی نو په دې وجه په هغه کې ميراث نه جاري کيږي (يعني د عين نه کېدلو په وجه په خدمت کې ميراث نه جاري کيږي)، او کله چې ميراث نه پکښې جاري کيږي نو ځکه د مينځې د خدمت مستحق به موصیٰ لهٗ وي، نه وارثان.

## کپړه د ګنډلو په شرط سره رانيول

قال: وَمَنِ اشْتَرٰى ثَوْبًا عَلٰى أَنْ يَقْطَعَهُ الْبَائِعُ وَيَخِيْطَهُ قَمِيْصًا أَوْ قَبَاءً فرمايي: او که څوک کپړه پر دې شرط رانيسي چې بائع به هغه پرېکوي او کميس يا چپنه به ځنې جوړوي فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسده ده لِأَنَّهٗ شَرْطٌ لَا يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ ځکه چې دا يو داسې شرط دی چې عقد د هغه تقاضا نه کوي وَفِيهِ مَنْفَعَةٌ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ او په دې کې د يوه عاقد نفع [هم] ده وَلِأَنَّهٗ يَصِيْرُ صَفْقَةً فِيْ صَفْقَةٍ او ځکه چې دا به په يوه معامله کې بله معامله کول وګرځي عَلٰى مَا مَرَّ لکه [مخکې] چې تېر سو.

**اللغات:** ﴿يخيط﴾ د ضرب مضارع ده: ګنډل (کالي يا داسې بله جامه جوړول)، ﴿قباء﴾ جبه، چپنه، ﴿صفقة﴾ عقد، معامله.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک کپړه رانيسي او دا شرط ولګوي چې بائع به له دې کپړې څخه کميس جوړوي، يا به چپنه ځنې جوړوي (يا به سدری ځنې جوړوي)، نو دا بيع فاسده ده؛ ځکه چې دا شرط د عقد د مُوجب او مقتضا خلاف هم دی او په دې کې د احد العاقدين يعنې د مشتري نفع هم ده، او کوم شرط چې د عقد د مقتضا خلاف وي او په هغه کې د احد العاقدين نفع وي په هغه سره بيع فاسديږي، نو ځکه به په دې شرط سره بيع فاسديږي.

ولأنه يصير إلخ: دويم دليل دا دی چې د کپړې پرېکولو او کميس جوړولو په مقابله کې به ثمن وي، يا به نه وي؟ که د هغه په مقابله کې ثمن وي نو اجاره به په بيع کې داخله سي (يعنې دا صورت به د بيع سره، سره اجاره هم وګرځي)، او که د هغه په مقابله کې ثمن نه وي، نو اعاره به په بيع کې داخله سي، او نبي کريم ﷺ له دې څخه منع کړې ده چې يوه معامله په بله معامله کې داخله کړی سي. نو ځکه به دا عقد فاسد او ناجائز وي. (بنايه)

## څمږه د څپلۍ جوړولو په شرط سره رانيول

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى نَعْلًا عَلَى أَنْ يَحْذُوَهُ الْبَائِعُ أَوْ يُشَرِّكَهُ فرمايي: او که څوک څپلۍ [څمږه] پر دې شرط رانيسي چې بائع به هغه پرېکوې [يعني برابره څپلۍ به ځني جوړوي] يا به په هغې کي تسمه لګوي فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسده ده قَالَ: مَا ذَكَرَهُ جَوَابُ الْقِيَاسِ مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي: کوم څه چې امام قدوري رَحِمَهُ الله [په متن کي] ذکر کړه هغه د قياس حکم دی وَوَجْهُهُ مَا بَيَّنَّا او د دې دليل هغه دی کوم چې موږ بيان کړی وَفِي الِاسْتِحْسَانِ يَجُوزُ لېکن استحساناً دا صورت جائز دی لِلتَّعَامُلِ فِيهِ ځکه چې په دې کي د خلکو تعامل دی فَصَارَ كَصَبْغِ الثَّوْبِ نو دا د کپړې رنګولو په څېر سو وَلِلتَّعَامُلِ جَوَّزْنَا الِاسْتِصْنَاعَ او د همدې تعامل په وجه موږ په اړر سره جوړول جائز ګرځولي دي.

**اللغات:** ﴿نعل﴾ څپلۍ، ﴿يحذو﴾ د نصر مضارع ده: څپلۍ پر يو خاص طرز پرېکول او جوړول، څپلۍ تيارول، برابرول، ﴿يشرک﴾ د تفعيل مضارع ده: څپلۍ ته تسمه وراچول، تسمه پکښي لګول، ﴿تعامل﴾ د تفاعل مصدر دی: يو د بل سره معامله کول، عرب وايي: تعامل القوم بهذا (خلک د دې په ذريعه يو د بل سره معامله کوي، يعني په دې سره معامله کول په خلکو کي رواج او متعارف دي)، ﴿استصناع﴾ د استفعال مصدر دی: يو چا ته د شي جوړولو ويل، په اړر سره جوړول، په فرمائش سره جوړول (مثلاً چا ته اړر کول چې ما ته دومره صندوخ را جوړ کړه!، نو دلته که څه هم مبيع (صندوخ) معدوم دی، لېکن د تعامل په وجه د دې بيع اجازت ورکول سوی دی).

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که يو سړی څمږه (څرمن) پر دې شرط رانيسي چې بائع به له هغې څخه څپلۍ جوړې، يا څپلۍ پر دې شرط رانيسي چې بائع به په هغوی کي تسمه لګوي. نو د قياس مطابق دا بيع فاسده ده؛ ځکه دا شرط د عقد د مقتضا خلاف هم دی او په دې کي د مشتري نفع هم ده. ها! د خلکو د تعامل په وجه استحساناً دا بيع جائز ګرځول سوې ده. لکه څرنګه چې د کپړې د رنګولو لپاره يو څوک (رنګرېز) په اُجرت نيول ناجائز دي لېکن استحساناً د خلکو د تعامل په وجه دا جائز ګرځول سوي دي (چې د کپړې رنګولو لپاره رنګرېز په اُجرت ونيول سي)، او د همدغه تعامل په وجه په اړر سره د شي جوړول هم جائز ګرځول سوي دي حال دا چې دا د معدوم بيع ده او ناجائز کېدل پکار دي، لېکن د خلکو د تعامل په وجه هغه جائز ګرځول سوې ده. او تعامل او عُرف ته پر قياس ترجيح حاصله وي، نو ځکه په دې مسئلو کي د تعامل پر بناء د جواز فتویٰ ورکول سوې ده که څه هم قياساً ناجائز دي.

## نو روز، مهرجان او غیر اسلامي ورځې په عقد کې میعاد ټاکل

قال: وَالْبَيْعُ إِلَى النَّيْرُوْزِ وَالْمِهْرَجَانِ وَصَوْمِ النَّصَارٰى وَفِطْرِ الْيَهُوْدِ إِذَا لَمْ يَعْرِفِ الْمُتَبَايِعَانِ ذٰلِكَ فَاسِدٌ او تر نو روز، مهرجان، او د نصارىٰ وو تر روژې او د یهودو تر اختره پورې بیع کول فاسد دي کله چې بائع او مشتري هغه نه پېژني لِجَهَالَةِ الْأَجَلِ ځکه چې میعاد مجهول دی وَهِيَ مُفْضِيَةٌ إِلَى الْمُنَازَعَةِ فِي الْبَيْعِ او دا جهالت په بیع کې جنګ ته رسونکې دی لِابْتِنَائِهَا عَلَى الْمُمَاكَسَةِ ځکه چې هغه پر ټال متال مبني دی إِلَّا إِذَا كَانَا يَعْرِفَانِهِ مګر دا چې بائع او مشتري هغه پېژني لِكَوْنِهِ مَعْلُوْمًا عِنْدَهُمَا ځکه چې [په دې صورت کې] بائع او مشتري ته میعاد معلوم دی أَوْ كَانَ التَّأْجِيْلُ إِلَى فِطْرِ النَّصَارٰى بَعْدَمَا شَرَعُوْا فِي صَوْمِهِمْ یا میعاد د نصارىٰ وو د روژې تر شروع کولو وروسته د هغوی د اختر تر ورځې پورې وي لِأَنَّ مُدَّةَ صَوْمِهِمْ مَعْلُوْمَةٌ بِالْأَيَّامِ ځکه چې د هغوی د روژو مودت د ورځو په ذریعه معلوم دی فَلَا جَهَالَةَ فِيْهِ نو ځکه دا صورت به له جهالت څخه خالي وي.

**اللغات:** ﴿نیرو﴾ نو روز، د لمریز کال لومړۍ ورځ، د مجوسیانو د خوشالۍ غټه ورځ (ملي ورځ)، ﴿مهرجان﴾ دا په اصل کې مهرګان دی (ځکه په عربي کې ګاف په جیم سره بدلیږي): د منې د موسم اوله (د میلې) ورځ، ﴿فِطر﴾ د افطار ورځ، د اختر ورځ، ﴿مماکسة﴾ د مفاعلې مصدر دی: ټال متال، ټال متهول کول، یوه او بلې ورځې ته قرض ځنډول، څوک په تمه کول (په حیلو او بانو کنبېباسل)، ﴿تأجیل﴾ مودت ټاکل، وخت مقرر کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک یو شی رانیسي او د ثمن اداء کولو لپاره د "نو روز" ورځ یا د "مهرجان" ورځ مقرره کړي، یا داسې ووايي چې په کومه ورځ نصارىٰ روژې شروع کړي په هغه ورځ ثمن درکوم، یا د یهودو د اختر په ورځ ثمن درکوم، نو په دې ټولو صورتونو کې بیع فاسدیږي، لېکن په دې صورتونو کې هغه وخت بیع فاسدیږي کله چې بائع او مشتري ته د دغه ورځو علم (خبر) نه وي، او که هغوی دا ورځې پېژني نو بیا بیع نه فاسدیږي.

او د فساد وجه یې دا ده چې کله بائع او مشتري ته د دې ورځو علم نه وي نو د ثمن میعاد مجهول سو، او په بیع کې د میعاد جهالت پر ټال متال (مماطلت) مبني دی، نو ځکه د میعاد جهالت به مفضي الی النزاع وي، او کوم جهالت چې مفضي الی النزاع وي هغه بیع فاسدوي، نو ځکه به، په دې صورت

کي بيع فاسديږي. او که چيري بائع او مشتري دغه ورځي پېژني نو بيع ځکه نه فاسديږي چي په دې صورت کي بائع او مشتري ته ميعاد معلوم دی. او که چيري څوک د نصاریٰ (عيسايانو) د روژو تر شروع کولو وروسته معامله وکړي او د نصاریٰ وو د اختر ورځ ميعاد وټاکي، نو هم بيع نه فاسديږي؛ ځکه چي په دې صورت کي هم ميعاد او مودت معلوم دی (يعني د هغو د روژو شمېر د ورځو په ذريعه معلومېدای سي)، او د ميعاد د معلوم والي په صورت کي بيع نه فاسديږي، نو ځکه به په دې صورت کي بيع نه فاسديږي.

پاته سوه دا خبره چي د نصاریٰ وو د روژو تر شروع کولو وروسته به د هغوی د اختر ورځ څرنګه معلوميږي، نو په دې باره کي عرض دا دی چي د راجح قول مطابق نصاریٰ پنځوس (۵۰) روژې نيسي، لهذا که د نصاریٰ وو د روژې په اوله معامله وسي نو يو پنځوسمه ورځ به د ميعاد ورځ وي، او که په مينځ کي معامله وسي نو په حساب او شمېر سره دې د اختر او ميعاد ورځ معلومه کړی سي (مثلا که بائع او مشتري د نصاریٰ وو د روژې پر شلمه معامله وکړي، نو يو دېرشمه ورځ به د ميعاد وي، يعني په يو دېرشمه ورځ به مشتري خپله وعده پوره کوي او بائع ته به ثمن ورکوي)، خلاصه دا چي دا صورتونه له جهالت څخه خالي دي، نو ځکه په دوی کي بيع صحيح ده.

## غير معين مودت په عقد کي ميعاد ټاکل

قال: وَلَا يَجُوزُ الْبَيْعُ إِلَى قُدُوْمِ الْحَاجِّ فرمايي: او د حاجيانو تر راتګ پوري بيع کول جائز نه دي وَكَذٰلِكَ إِلَى الْحَصَادِ وَالدِّيَاسِ وَالْقِطَافِ وَالْجِزَازِ او همدارنګه د لو تر وخته پوري او د غوبل تر وخته پوري او د انګورو د شکولو تر وخته پوري او د وړی د پرېکولو [سکستلو] تر وخته پوري [بيع کول جائز نه دي] لِأَنَّهَا تَتَقَدَّمُ وَتَتَأَخَّرُ ځکه چي دا شيان مخکي کيږي او وروسته کيږي [يعني د موسم د بدلون او اختلاف په سبب کله مخکي وي او کله وروسته وي] وَلَوْ كَفَّلَ إِلَى هٰذِهِ الْأَوْقَاتِ او که [يو څوک] تر دې وختونو پوري د قرض کفالت [ضمانت] واخلي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ الْجَهَالَةَ الْيَسِيرَةَ مُتَحَمَّلَةٌ فِي الْكَفَالَةِ ځکه چي په کفالت کي معمولي جهالت برداشت کيږي وَهٰذِهِ الْجَهَالَةُ يَسِيرَةٌ مُسْتَدْرَكَةٌ او دغه جهالت معمولي [هم] دی او د هغه تدارک [هم] ممکن دی لِاخْتِلَافِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُمْ فِيهَا ځکه چي په دا ډول مجهول مودت کي د صحابه وو اختلاف وو وَلِأَنَّهُ

مَعْلُومُ الْأَصْلِ او په دې وجه [هم] چې د دَین [قرض] اصل معلوم دی أَلَا تَرَى أَنَّهَا تَحْتَمِلُ الْجَهَالَةَ فِي أَصْلِ الدَّيْنِ آيا ته نه ګورې! چې کفالت په اصل قرض کې جهالت برداشتوي بِأَنْ تَكَفَّلَ بِمَا ذَابَ عَلَى فُلَانٍ په دې توګه چې [يو څوک] د هغه قرض کفيل سي کوم چې پر فلانکي ثابت [واجب] وي [يعني يو سړی بل سړي ته ووايي چې پر تا کوم قرض واجب دی زه د هغه کفيل او ذمه وار يم] فَفِي الْوَصْفِ أَوْلَى نو په وصف کې به په درجه اولی سره [جهالت برداشت کيږي] بِخِلَافِ الْبَيْعِ فَإِنَّهُ لَا يَحْتَمِلُهَا فِي أَصْلِ الثَّمَنِ په خلاف د بيع؛ ځکه چې بيع د ثمن په اصل کې [يعني په اصل ثمن کې] جهالت نه برداشتوي فَكَذَا فِي وَصْفِهِ نو همداسې به د ثمن په وصف کې هم جهالت نه برداشتوي بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ مُطْلَقًا ثُمَّ أَجَّلَ الثَّمَنَ إِلَى هٰذِهِ الْأَوْقَاتِ په خلاف د هغه صورت کله چې مطلق بيع وکړي بيا بائع تر دغه وختونو پورې د ثمن موده وټاکي حَيْثُ جَازَ نو دا جائز دي لِأَنَّ هٰذَا تَأْجِيلٌ فِي الدَّيْنِ ځکه چې دا په قرض کې د مودې مهلت [ميعادي مهلت] دی وَهٰذِهِ الْجَهَالَةُ فِيهِ مُتَحَمَّلَةٌ بِمَنْزِلَةِ الْكَفَالَةِ او داسې جهالت د کفالت په څېر په قرض کې هم برداشت کيږي وَلَا كَذٰلِكَ اشْتِرَاطُهُ فِي أَصْلِ الْعَقْدِ او په اصل عقد کې د مودې شرط لګول داسې نه دي [يعني هغه نه برداشت کيږي] لِأَنَّهُ يَبْطُلُ بِالشَّرْطِ الْفَاسِدِ ځکه چې عقد [بيع] په فاسد شرط سره باطليږي.

**اللغات**: ﴿حصاد﴾ لو کول، فصل ريبل (کښت ريبل)، ﴿دياس﴾ غوبل کول، له وږو څخه دانې (يعني غنم او داسې نور) را ايستل. ﴿قطاف﴾ مېوه شکول، انګور شکول، د انګورو د شکولو موسم، ﴿جزاز﴾ وړۍ سکستل، پرېکول. ﴿کفل﴾ د تفعيل ماضي ده: کفالت (ضمانت) اخيستل، ضامن کېدل. ﴿مستدرکة﴾ د استفعال مفعول دی: هغه نقصان او جهالت چې تدارک (تلافي) يې ممکن وي. ﴿تکفّل﴾ کفيل کېدل، ضامن کېدل (ذمه وار کېدل، يو شی په خپله ذمه اخيستل). ﴿ذاب﴾ د نصر ماضي ده: د دغه باب ډېرې معناوې دي، دلته يې معنیٰ ده: ثابتېدل (واجبېدل). (مصباح اللغات)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک يو شی رانيسي او دا ووايي چې ثمن په هغه وخت کې اداء کوم (درکوم) کله چې حاجيان راسي، يا کله چې فصلونه ريبل کيږي نو ثمن اداء کوم (يعني د لو

وخت ميعاد وټاکي)، يا وو ايي چې د غوبل په وخت کې ثمن اداء کوم، يا يې د انګورو د پرېکېدلو په وخت کې اداء کوم، يا يې په هغه وخت کې اداء کوم کله چې د پسونو وړۍ پرېکول کېږي (سکستل کيږي)، نو په دې ټولو صورتونو کې بيع فاسديږي؛ ځکه چې د موسم په بدلون او د يخ او ګرمۍ د تګ راتګ په اختلاف سره په مذکوره شيانو کې تقدم او تاخر راځي (يعني کله مخکې وي. کله وروسته وي. يعني موده يې سم معلوم نه وي). لهذا که دا وختونه د ثمن اداء کولو ميعاد وګرځول سي نو په عاقدينو کې به اختلاف او نزاع راسي، او کوم شی چې ملفضي الى النزاع وي هغه عقد فاسدوي. نو ځکه به په دې صورتونو کې هم عقد فاسديږي.

د دې په خلاف که څوک په دغه وختونو کې د بل چا د قرض اداء کولو کفالت او ضمانت واخلي، نو کفالت صحيح کيږي. په دواړو صورتونو کې د فرق وجه دا ده چې کفالت معمولي جهالت برداشت کوي (يعني په کفالت کې معمولي [لږ] جهالت برداشت کيږي)، او د دې پورتني وختونو جهالت معمولي دی: ځکه چې په دې هکله په صحابه کې وو اختلاف وو (چې دا وختونه ميعاد ګرځول جائز دي. که نه)، حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به "بيع إلى العطاء" جائز ګڼل (يعني دا يې جائز بلل چې له بيت المال څخه حاصلېدونکې وظيفه [تنخا] ميعاد وټاکل سي)، حال دا چې د وظيفې حاصلېدلو موده به کله مخکې وو او کله وروسته (يعني د بيت المال د وظيفې په موده به کې تقدم او تأخر راتلی)، د دې په خلاف ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا به دا ناجائز ګڼل. لنډه دا چې په دا ډول مجهوله ميعادونو کې به د صحابه واختلاف وو، او په اختلاف سره مسئله سپکيږي او کمزوري کيږي، نو ځکه به د دې ميعادونو جهالت هم معمولي وي او په کفالت کې به هغه برداشت کيږي.

ولأنه معلوم الأصل إلخ: په کفالت کې د معمولي جهالت برداشت کولو دويم دليل دا دی چې په دې صورت کې د دين (قرض) اداء کولو اصل معلوم دی يعني دا خبره په يقيني توګه معلومه ده چې سږ کال حاجيان راځي، فصل رېبل کيږي او داسي نور، ليکن صرف وصف مجهول دی يعني په يقيني توګه دا معلومه نه ده چې دا شيان به کله واقع سي (يعني حاجيان به په کومه ورځ راسي او داسي نور؟) او د کفالت حکم دا دی چې د اصل دين جهالت هم په کفالت کې برداشت کيږي، مثلاً که کفيل و مکفول له ته ووايي چې پر فلانکي سړي چې ستا کوم دين (قرض) باندي دی زه د هغه کفيل يم (نو دا صحيح دي)، ښکاره خبره ده چې د "کوم دين" تعيين او حقيقت مجهول دی او دا د أصل دين جهالت دی. لهذا کله چې په کفالت کې د اصل دين جهالت برداشت کيږي. نو د وصفُ الدين جهالت به په درجه اولیٰ سره برداشت کيږي: ځکه چې وصف د اصل تابع وي.

او پاتـه سوه د بيع مسئله، نو څرنګه چي په بيع کي د اصل ثمن جهالت نه برداشت کيـږي (يعني کـهٔ ثمن معلوم او مُتعيَن نه وي نو عقد [ بيع ] نه صحيح کيږي)، نو ځکه د وصف جهالت (يعني د ثمن اداء کولو د مودت مجهول والى) به هم نه برداشت کيږي؛ ځکه چي وصف د اصل تابع وي او د دواړو حکم يو وي.

ها! که عقد مطلق وسي او د ثمن اداء کولو هيڅ ميعاد نه وټاکل سي، او بيا بائع له مذکوره پورتني وختونو څخه تر يو وخت پوري مشتري ته د ثمن اداء کولو مهلت ورکړي (مثلا د حاجيانو د راتګ تر وخته پوري مهلت ورکړي)، نو دا مهلت ورکول جائز دي؛ ځکه چي دا د ثمن اداء کولو لپاره ميعاد نه دى بلکي د قرض په اداء کولو کي وخت او ډيل ورکول دي، او څرنګه چي په کفالت کي داسي جهالت برداشت کيـږي، همداسي به دلته هم دغه جهالت يسيره برداشت کيږي. ليکن که په اصل عقد (بيع) کي د مودت او مهلت شرط ولګول سي (چي مثلا زه د حاجيانو د راتګ په وخت کي ثمن اداء کوم)، نو دا ځکه نه برداشت کيږي او ځکه صحيح نه دي چي په دې صورت کي به هغه شرط وګرځي او فاسد شرط بيع فاسدوي، نو ځکه به په دې صورت کي بيع فاسديږي.

## په پورتنى مسئله کي د ميعاد پر ساقطولو د عاقدينو متفق کېدل (حکم او اختلاف)

وَلَوْ بَاعَ إِلَى هٰذِهِ الْآجَالِ او که څوک تر دې مودتونو پوري بيع وکړي ثُمَّ تَرَاضَيَا بِإِسْقَاطِ الْأَجَلِ قَبْلَ أَنْ يَأْخُذَ النَّاسُ فِي الْحَصَادِ وَالدِّيَاسِ وَقَبْلَ قُدُوْمِ الْحَاجِّ بيا بائع او مشتري دواړه د خلکو د لوْ کولو، او د غوبل کولو او د حاجيانو د راتګ څخه مخکي د ميعاد په ساقطولو راضي سي جَازَ الْبَيْعُ أَيْضًا نو هم بيع جائز ده وَقَالَ زُفَرُ ✱ : لَا يَجُوْزُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز نه ده لِأَنَّهُ وَقَعَ فَاسِدًا ځکه چي دا بيع [اول] فاسد واقع سوې وه. فَلَا يَنْقَلِبُ جَائِزًا نو ځکه هغه به [بيا] جائز نه ګرځي وَصَارَ كَإِسْقَاطِ الْأَجَلِ فِي النِّكَاحِ إِلَى أَجَلٍ او دا داسي سو لکه په ميعادي [مودتي] نکاح [نکاح متعه] کي مودت ساقطول وَلَنَا: أَنَّ الْفَسَادَ لِلْمُنَازَعَةِ زموږ دليل دا دى: چي د بيع فاسدېدل د جنګ په وجه وو وَقَدِ ارْتَفَعَ قَبْلَ تَقَرُّرِهِ حال دا چي [بيا] نزاع له ثابتېدلو څخه مخکي ختم سوه وَهٰذِهِ الْجَهَالَةُ فِي شَرْطٍ زَائِدٍ لَا فِي صُلْبِ الْعَقْدِ او دغه جهالت په يو زائد شرط کي وو، په نفس عقد [احدُ العوضَين] کي

---

✱ القول الراجح: هو قولنا، كما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: وجه الصحة أن الفساد كان للتنازع وقد ارتفع قبل تقرره...إلخ (رد المحتار ج:۴، ص:۱۳۴)، وكذا في العناية (ج:۶، ص:۸۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۴۷]

نه وو فَيُمْكِنُ إِسْقَاطُهُ نو ځکه د هغه ساقطول به ممکن وي بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ الدِّرْهَمَ بِالدِّرْهَمَيْنِ ثُمَّ أَسْقَطَا الدِّرْهَمَ الزَّائِدَ په خلاف د هغه صورت کله چي [يو څوک] يو درهم د دوو درهمونو په عوض کي خرڅ کړي بيا بائع او مشتري دواړه زائد درهم ساقط کړي لِأَنَّ الْفَسَادَ فِي صُلْبِ الْعَقْدِ ځکه چي [دلته] فساد په نفس عقد [احدُ العوضَين] کي دی وَبِخِلَافِ النِّكَاحِ إِلَى أَجَلٍ او په خلاف د ميعادي نکاح [نکاحِ متعه] لِأَنَّهُ مُتْعَةٌ ځکه چي هغه متعه ده وَهُوَ عَقْدٌ غَيْرُ عَقْدِ النِّكَاحِ او متعه له عقد نکاح څخه بغير بل [جلا] عقد دی وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ "ثُمَّ تَرَاضَيَا" خَرَجَ وِفَاقًا او په قدوري [متن] کي د ماتن رَحِمَهُ الله دا قول "ثُمَّ تَرَاضَيَا" په اتفاقي توګه صادر سوی دی [يعني دا اتفاقي قيد دی] لِأَنَّ مَنْ لَهُ الْأَجَلُ يَسْتَبِدُّ بِإِسْقَاطِهِ ځکه ميعاد چي د کوم يوه لپاره [ټاکل سوی] وي هغه يوازي [هم] هغه ساقطولای سي لِأَنَّهُ خَالِصُ حَقِّهِ ځکه چي ميعاد خالص د هغه حق وي.

**اللغات:** ﴿آجال﴾ جمع د أَجَل ده: ټاکل سوی مودت، ميعاد، ﴿صُلب﴾ د ملا هډوکی، احد البدلين (احدُ العوضَين)، ﴿يستبدّ﴾ د استفعال مضارع ده: په يو کار کي يوازينی کېدل (مستقل کېدل)، عرب وايي: اِسْتَبَدَّ بِالْأَمْرِ: يعني فلانکی په دې کار کي مستقل او يوازينی دی، او بل څوک د هغه سره په دې کي شريک نه دی، لکه څرنګه چي صاحب د مصباح ذکر کړي دي: اِسْتَبَدَّ بِالْأَمْرِ: أَي اِنْفَرَدَ بِهِ مِنْ غَيْرِ مُشَارِكٍ لَهُ فِيهِ.

**تشريح:** د دې عبارت حاصل دا دی چي نو روز او داسي نوري ورځي د ثمن اداء کولو لپاره ميعاد ټاکل او بيع کول صحيح نه دي، لېکن که څوک له دغه وختونو څخه يو وخت ميعاد وټاکي بيا د هغه وخت له راتګ څخه مخکي عاقدين (بائع او مشتري) ميعاد ساقط کړي او خپله معامله صفا کړي، نو په دې صورت کي زموږ په نېز بيع جائز کيږي؛ لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز نه جائز کيږي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي کله دلته په ابتداء کي بيع فاسده واقع سوه، نو وروسته دا فساد په جواز سره نه بدليږي (لأن الفاسد لا ينقلب صحيحاً)، همدارنګه هغه فرمايي چي تاسي څنګه دا بيع جائز ګرځوی، حال دا چي که يو څوک ميعادي نکاح وکړي (يعني د يو څه مودت لپاره د ښځي سره نکاح وکړي) او بيرته ميعاد (مودت) ساقط کړي نو تاسي هغه ته د نکاح ته د متعه نوم ورکوی او ناجائز يې ګرځوی، او پورتنۍ مسئله خو هم دغه ډول ده، نو تاسي ولي هغه جائز ګرځوی؟

**زموږ دليل**: دا دی چې د ميعاد د مجهول والي په صورت کې بيع ځکه فاسديږي چې د هغه په وجه د بائع او مشتري په مينځ کې د نزاع (جنګ) او اختلاف کولو امکان سته. او نزاع هغه وخت پيدا کيږي او ثابتيږي کله چې د ميعاد پوره کېدلو وخت راسي، لېکن کله چې بائع او مشتري دواړه د ميعاد له پوره کېدلو څخه مخکې دغه مجهول ميعاد ساقط کړي، نو مُفسد (د بيع فاسدونکی شی) يعنې نزاع به له ثابتېدلو څخه مخکې ختم سي، او کله چې مُفسد ختم سي نو فساد به هم ختم سي او عقد به د صحت او جواز وطرف ته راوګرځي، ځکه قاعده دا ده چې: إذا زال المانع عاد الممنوع.

وهذه الجهالة إلخ: او څرنګه چې دغه د ميعاد جهالت له اصل عقد څخه نه دی، بلکې يو خارج او زائد شرط دی يعنې له اجل (ميعاد) څخه دی، نو ځکه د هغه ساقطول مکمن هم دي. په اصل کې دا عبارت د هغه سوال جواب دی کوم چې پر بيع الدرهم بالدرهمين قياس کړی سوی او وارد سيوی دی، د سوال تفصيل دا دی چې که څوک يو درهم د دوو درهمونو په عوض کې خرڅ کړي او بيا عاقدين (بائع او مشتري) زائد درهم ساقط کړي، نو بيع نه صحيح کيږي، لهذا همداسې د "بيع إلى النيروز" او داسې نورو په صورت کې د ميعاد له راتګ څخه مخکې د ميعاد ساقطولو په صورت کې هم بيع جائز کېدل پکار نه دي. نو د همدې سوال په جواب کې فرمايي چې دا قياس صحيح نه دی؛ ځکه چې په دې مسئله کې جهالت په اصل عقد کې نه وي چې د هغه زائلول او ساقطول دې ناممکن وي، بلکې دا جهالت او دا د فساد وجه په زائد شرط کې وي چې د هغه زائلول ممکن دي، او څرنګه چې د بيعُ الدرهم بالدرهم په صورت کې د فساد وجه په اصل عقد يعنې په "أحدُ البدلين" (أحد العوضين) کې وي، نو ځکه د هغه زائلول او ساقطول هم ناممکن وي.

وبخلاف النكاح إلخ: دا د امام زفر رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی، حاصل يې دا دی چې پر "نکاح إلى الأجل" (ميعادي نکاح) قياس کول صحيح نه دي؛ ځکه چې نکاح إلى الأجل له عقد نکاح څخه بغير په خپله يو بل (جلا) عقد دی يعنې "عقد متعه" دی، لهذا کله چې دا په خپله يو جلا عقد دی، نو ځکه د فساد د وجهې په ساقطولو سره دا عقد په بل عقد سره (يعنې په صحيح نکاح سره) نه سي بدلېدای، ځکه چې نکاح سنت ده او متعه ناجائز او حرام ده، او د دواړو حقيقت سره بدل او جلا دی، لهذا کله چې يو له بل څخه بالکل جلا دي، نو يو پر بل به قياسول څنګه صحيح وي!؟.

د دې په خلاف که بيع تر فاسدېدلو وروسته جائز وګرځول سي (يعنې د بيع فساد په جواز سره بدل سي) نو دا نه د ماهيت بدلون لره مستلزم دي او نه په دې صورت کې عقد بدليږي؛ ځکه په دواړو صورتونو کې عقد "بيع" ده، نو ځکه په دې صورت کې د فساد د وجهې په ساقطولو سره به بيع

صحيح کيږي او د نکاح په صورت کي به د ميعاد د ساقطولو باوجود "نکاح متعه" په "صحيح نکاح" سره نه بدليږي.

وقوله في الکتاب إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چي په قدوري (متن) کي د "ثُمَّ تَرَاضَيَا" قيد (يعني د بائع او مشتري په رضا سره د ميعاد ساقطولو قيد) اتفاقي دی، احترازي نه دی، يعني د ميعاد ساقطولو لپاره د بائع او مشتري دواړو رضا شرط نه ده، بلکي ميعاد چي د چا لپاره وي هغه يوازي هم ميعاد ساقطولای سي؛ ځکه چي ميعاد خالص د هغه حق دی، لهذا د ساقطولو حق به هم صرف د هغه وي او هغه چي کله هم وغواړي ميعاد به ساقطولای سي.

## آزاد او غلام يا مذبوح او مردار سوي غلام يو ځای سره خرڅول

قال: وَمَنْ جَمَعَ بَيْنَ حُرٍّ وَعَبْدٍ أَوْ شَاةٍ ذَكِيَّةٍ وَمَيْتَةٍ فرمايي: او څوک چي غلام او آزاد په بيع کي سره جمع کړي يا ذبح کړی سوی پُسه او مردار سوی پُسه [په بيع کي سره جمع کړي] بَطَلَ الْبَيْعُ فِيهِمَا نو په دواړو کي بيع باطليږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ۞ او دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَ: أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: إِنْ سَمّٰى لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ثَمَنًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي که بائع د هر يوه لپاره [جلا] ثمن بيان کړي جَازَ فِي الْعَبْدِ وَالشَّاةِ الذَّكِيَّةِ نو په غلام او مذبوح پُسه کي بيع جائز ده وَإِنْ جَمَعَ بَيْنَ عَبْدٍ وَمُدَبَّرٍ أَوْ بَيْنَ عَبْدِهِ وَعَبْدِ غَيْرِهِ او که [يو څوک] غلام او مدبر، يا خپل غلام او د بل چا غلام په بيع کي سره جمع کړي صَحَّ الْبَيْعُ فِي الْعَبْدِ بِحِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ عِنْدَ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ نو زموږ د دريو علماؤ په نيز د غلام بيع د هغه د ثمن د حصې په عوض کي جائز ده وَقَالَ زُفَرُ: فَسَدَ فِيهِمَا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دواړو کي بيع فاسد ده وَمَتْرُوكُ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا كَالْمَيْتَةِ او پر کوم ښکار چي [د ذبح کولو په وخت کي] قصداً بسم الله پرېښوول سوې وي هغه د مردار سوي ښکار په څېر دی وَالْمُكَاتَبُ وَأُمُّ الْوَلَدِ كَالْمُدَبَّرِ او مکاتب او اُم ولد د مدبر په څېر دي لَهُ الِاعْتِبَارُ بِالْفَصْلِ الْأَوَّلِ د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل پر اولي مسئلې قياس دی إِذْ مَحَلِّيَّةُ الْبَيْعِ مُنْتَفِيَةٌ بِالْإِضَافَةِ إِلَى

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ظهر من دأب المصنف رَحِمَهُ الله، وكذا في فتح القدير (ج:۶، ص:۸۹)، والكفاية (ج:۶، ص:۸۹). [القول الراجح ج:۲، ص:۴۸]

الْكُلِّ ځکه چې د تمام وطرف ته په نسبت کولو سره د بيع محل منتفي دی وَلَهُمَا: أَنَّ الْفَسَادَ بِقَدْرِ الْمُفْسِدِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې فساد د فاسدونکي شي په اندازه وي فَلَا يَتَعَدَّى إِلَى الْقِنِّ لهذا دا فساد به د خالص غلام وطرف ته نه متعدي کيږي كَمَنْ جَمَعَ بَيْنَ الْأَجْنَبِيَّةِ وَأُخْتِهِ فِي النِّكَاحِ لکه په هغه صورت کې کله چې يو شوک اجنبي [ پردی ] ښځه او خپله خور په نکاح کې سره جمع کړي بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يُسَمِّ ثَمَنَ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا په خلاف د هغه صورت کله چې يې د هر يوه ثمن [جلا] بيان کړی نه وي لِأَنَّهُ مَجْهُولٌ ځکه چې [په هغه صورت کې] ثمن مجهول دی وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله وَهُوَ الْفَرْقُ بَيْنَ الْفَصْلَيْنِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل (او همدا د دواړو مسئلو په مينځ کې فرق هم دی) دا دی أَنَّ الْحُرَّ لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْعَقْدِ أَصْلًا چې آزاد بالکل تر عقد لاندې نه داخليږي [يعني آزاد بالکل په بيع کې نه داخليږي] لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالٍ ځکه چې آزاد مال نه دی وَالْبَيْعُ صَفْقَةٌ وَاحِدَةٌ او [څرنگه چې] بيع يوه صفقه [يو معامله] ده فَكَانَ الْقَبُولُ فِي الْحُرِّ شَرْطًا لِلْبَيْعِ فِي الْعَبْدِ نو ځکه په آزاد کې د بيع قبلول به په غلام کې د بيع [د صحيح کېدلو] لپاره شرط وي وَهَذَا شَرْطٌ فَاسِدٌ او دا فاسد شرط دی بِخِلَافِ النِّكَاحِ په خلاف د نکاح لِأَنَّهُ لَا يَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ ځکه چې نکاح په فاسدو شرطونو سره نه باطليږي وَأَمَّا الْبَيْعُ فِي هَؤُلَاءِ مَوْقُوفٌ ليکن په دې کسانو [يعني په مدبر. مکاتب او داسي نورو] کې بيع موقوف ده وَقَدْ دَخَلُوا تَحْتَ الْعَقْدِ لِقِيَامِ الْمَالِيَّةِ او د ماليت د موجودېدلو په وجه دوی په بيع کې داخل سوه وَلِهَذَا يَنْفُذُ فِي عَبْدِ الْغَيْرِ بِإِجَازَتِهِ نو په همدې وجه به د بل چا په غلام کې د هغه په اجازت سره بيع نافذيږي وَفِي الْمُكَاتَبِ بِرِضَاهُ فِي الْأَصَحِّ او د صحيح قول مطابق په مکاتب کې د هغه په رضا سره بيع نافذيږي وَفِي الْمُدَبَّرِ بِقَضَاءِ الْقَاضِي او په مدبر کې د قاضي په قضاء [فيصلې] سره بيع نافذيږي وَكَذَا فِي أُمِّ الْوَلَدِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او همدارنگه په أم ولد کې هم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز [د قاضي په قضاء سره بيع نافذيږي] إِلَّا أَنَّ الْمَالِكَ بِاسْتِحْقَاقِهِ الْمَبِيعَ وَهَؤُلَاءِ بِاسْتِحْقَاقِهِمْ أَنْفُسَهُمْ رَدُّوا الْبَيْعَ مگر دا چې مالک د مبيع [غلام] د مستحق کېدلو په وجه او

دې کسانو [يعني مدبر او داسي نورو] د خپل ذات د مستحق کېدلو په وجه بيع رد کړه فَكَانَ هٰذَا إِشَارَةً إِلَى الْبَقَاءِ نو ځکه دا د بيع د پاتېدلو وطرف ته اشاره ده [يعني ودې طرف ته اشاره ده چي د دې کسانو بيع پاته ده] كَمَا إِذَا اشْتَرَى عَبْدَيْنِ وَهَلَكَ أَحَدُهُمَا قَبْلَ الْقَبْضِ لکه څوک چي دوه غلامان رانيسي او [بيا] تر قبضې مخکي له هغوی څخه يو هلاک سي وَهٰذَا لَا يَكُونُ شَرْطَ الْقَبُولِ فِي غَيْرِ الْمَبِيعِ وَلَا بَيْعًا بِالْحِصَّةِ اِبْتِدَاءً او دا [د مدبر او غلام او داسي نورو يو ځای سره خرڅول] په غير مبيع کي [د بيع] د قبلولو شرط هم نه دی او نه "بيع بالحصة ابتداءً" ده وَلِهٰذَا لَا يُشْتَرَطُ بَيَانُ ثَمَنِ كُلِّ وَاحِدٍ فِيهِ او له همدې کبله په دې کي د هر يوه ثمن بيانول شرط نه دي.

**اللغات:** ﴿ذكية﴾ ذبح کړی سوی (حلال کړی سوی) څاروی، ﴿سمّٰى﴾ د تفعيل ماضي ده: نوم اخيستل، ذکر کول، بيانول، ﴿قنّ﴾ خالص غلام (کوم چي مدبر، مکاتب او داسي نور نه وي).

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي او پر دواړو تفصيلي بحث سوی دی:

(۱)... د اولي مسئلې حاصل دا دی که څوک د غلام سره آزاد کس يو ځای کړي او دواړه يو ځای سره خرڅ کړي يا د مردار سوي پسه سره ذبح کړی سوی (مذبوح) پسه يو ځای کړي او خرڅ يې کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په دواړو صورتونو کي مطلقاً بيع باطله ده، برابره ده بائع د هر يوه ثمن جلا، جلا بيان کړی وي او که يې نه وي بيان کړی (يعني د آزاد او غلام ثمن، او د هر پسه ثمن يې جلا بيان کړی وي او که نه). د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي که بائع د آزاد او غلام يا د مذبوح او مردار پسه ثمن جلا، جلا بيان کړی وي، نو په غلام او مذبوح پسه کي بيع جائز ده، او په آزاد او مردار پسه کي بيع باطله ده، لېکن که د هر يوه ثمن يې نه وي بيان کړی، نو بيا په دواړو صورتونو کي د دوی په نيز بيع باطلېږي. امام مالک رَحِمَهُ الله د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی، امام احمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په يوه روايت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دي او په بل روايت کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله سره دي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چي که څوک خالص غلام او مدبر غلام يو ځای سره خرڅ کړي، يا د خپل غلام سره د بل چا غلام (عبد الغير) يو ځای کړي او خرڅ يې کړي، نو په دواړو صورتونو کي د خالص غلام او د خپل غلام بيع (د هغوی د ثمن د حصې په عوض کي) جائز ده. او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز په دواړو صورتونو کي بيع ناجائز او فاسد ده.

ومتروك التسمية إلخ: فرمايي چې پر کوم څاروي قصداً بسم الله نه وويل سي هغه د مردار څاروي په څېر دی، او څرنګه چې د مردار پُسه او مذبوح پُسه د يوځای خرڅولو په صورت کې بيع فاسديږي، همداسي که "متروک التسمية عامدًا" پُسه او مذبوح پُسه يو ځای سره خرڅ کړی سي، نو هم بيع فاسديږي.

او مکاتب او أم ولد د مدبر په حکم کې دي، يعني څرنګه چې د مدبر او خالص غلام د يو ځای خرڅولو په صورت کې (د غلام د ثمن د حصې په عوض کې) د غلام بيع جائز ده، همداسي که د خالص غلام سره أم ولد يا مکاتب يو ځای خرڅ کړل سي، نو هم به په غلام کې (د هغې د حصې په عوض کې) بيع جائز وي.

له الاعتبار بالفصل الأول: څه مخکې ذکر سوه چې د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز په دواړو صورتونو کې بيع فاسده ده، د امام زفر رَحِمَهُ الله د دليل دار ومدار د مخکې په څېر دلته هم پر قياس دی، هغه فرمايي چې څرنګه په اوله مسئله کې يعنې د "جمع بين العبد والحر" په صورت کې تاسي (امام صاحب او صاحبين) بيع باطل ګرځوی، همداسي به په دې صورتونو کې هم بيع باطليږي؛ ځکه څرنګه چې په اول صورت کې آزاد او مردار د بيع محل نه دي، همداسي په دې صورتونو کې هم مدبر، مکاتب، أم ولد او د بل چا غلام د بيع محل نه دي، لهذا کله چې د بيع په محل نه کېدلو کې دوی ټوله سره برابر دي، نو په حکم کې به هم ټوله سره برابر وي، او څرنګه چې په اوله مسئله کې بيع باطله ده، همداسي به په دې صورتونو کې هم بيع باطله وي.

ولهما أن الفساد إلخ: مخکې ذکر سوه چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په اوله مسئله کې د ثمن د جلا بيانولو په صورت کې بيع جائز ده، د هغوی دليل دا دی چې فساد د فاسدونکې امر (مفسد) په اندازه وي، يعنې تر کوم ځايه چې فاسدونکی شی موجود وي فساد هغومره ثابتيږي (يعني صرف تر هغه ځايه فساد محدود وي، او مخته نه متعدي کيږي)، او څرنګه چې په دې مسئله کې د بيع د محل نه کېدلو په وجه صرف په آزاد کس او مردار پُسه کې فساد سته، نو ځکه به مُفسد صرف تر هغوی پوري محدود وي، او په غلام او مذبوح پُسه کې به فساد هيڅ اثر نه کوي او د هغوی بيع به صحيح او جائز وي، لکه يو څوک چې په خپل نکاح کې د اجنبي (پردۍ) ښځې سره خپله خور هم جمع کړي (يعني اول يې د داسي ښځې سره نکاح کړې وي کوم چې د ده لپاره حلاله وي بيا د خپلې خور سره هم نکاح وکړي)، نو هلته هم فساد صرف د خور سره خاص دی، ځکه صرف هغه د نکاح محل نه ده، او دا فساد د اجنبي ښځې وطرف ته نه متعدي کيږي، ځکه چې هغه خو د نکاح محل ده، نو ځکه د هغې نکاح صحيح کيږي.

لېکن که د هر یوه ثمن جلا بیان نه کړی سي نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي به مبیع او غیرِ مبیع سره ګډ سي، لهذا د ثمن د جهالت په وجه به عقد فاسدېږي.

**ولأبي حنيفة وهو الفرق إلخ:** او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل (کوم چي په حقیقت کي د آزاد او غلام او د مدبر او غلام د یو ځای خرڅولو په مینځ کي د فرق وجه هم ده) دا دی چي کله آزاد او مردار پسه د مال نه کېدلو په وجه په عقد کي نه داخلیږي نو اوس که د آزاد سره غلام یا د مردار پسه سره مذبوح پسه یو ځای کړی سي او خرڅ کړل سي، نو د مبیع سره به د غیرِ مبیع خرڅول لازم سي، او څرنګه چي هغوی په یوه صفقه کي خرڅ کړل سوي دي، نو ځکه په مبیع کي (یعني په غلام او مذبوح پسه کي) به د بیع د صحیح کېدلو لپاره په غیرِ مبیع کي (یعني په آزاد او مردار پسه کي) د بیع قبلول شرط وي (په دې توګه چي مشتري داسي نه سي کولای چي په یوه کي بیع قبول کړي او په بل کي بیع رد کړي)، او دا شرط فاسد شرط دی، او فاسد شرط بیع فاسدوي، نو ځکه به د آزاد او غلام یا د مردار او مذبوح پسه په صورتونو کي بیع فاسدیږي.

**بخلاف النكاح إلخ:** څه مخکي ذکر سوه چي صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په دې صورتونو کي د بیع جائز کېدل پر "جمع بين الأجنبية والأخت في النكاح" باندي قیاس کړي دي، صاحب د هدایې له دې ځایه د هغوی د قیاس جواب ورکوي، فرمایي چي ستاسي دغه قیاس "قیاس مع الفارق" دی، ځکه چي په بیع او نکاح کي فرق سته، بیع په فاسد شرط سره فاسدیږي، لېکن نکاح په فاسد شرط سره نه فاسدیږي، بلکي په خپله شرط فاسدیږي، نو ځکه د دومره فرق باوجود به یو پر بل قیاس څنګه صحیح وي!؟.

پاته سوه دویمه مسئله، یعني د مدبر، عبد الغیر، مکاتب او اُم ولد په صورت کي د بیع جائز کېدلو مسئله، نو هغه ځکه جائز ده چي په دوی (مدبر، مکاتب او داسي نورو) کي مالیت موجود دی، ځکه چي په هغوی کي د مالیت دار ومدار پر غلامتوب (رقیت) او تقوّم باندي دی، او دا دواړه شیان په هغوی کي موجود دي، لهذا کله چي په هغوی کي مالیت او رقیت موجود دی نو هغوی به د بیع محل هم وي او په بیع کي به هم داخلیږي. لېکن بیع د هغوی پر خوښی او رضا موقوف کیږي، او په عبد الغیر (یعني د بل چا په غلام) کي که مالک وروسته د بیع اجازت ورکړي، یا مکاتب پر خپل بیع راضي سي. یا په مدبر او اُم ولد کي قاضي د بیع نافذېدلو حکم وکړي، نو د دې ټولو بیع به نافذیږي او صحیح به ګرځي. یا که د عبد الغیر مالک او دا کسان (مدبر، مکاتب او ام ولد) د بیع ردول وغواړي نو بیع ردولای سي، ځکه چي مالک پر خپل غلام حق لري، او مدبر او داسي نور پر خپل ذات حق لري،

نو ځکه د دوی "رد" به هم صحيح وي (يعني که دوی بيع رد کړي نو دا به صحيح وي او بيع به رد کيږي)، او د "رد" صحيح کېدل دا په خپله په دوی کې د بيع پاتېدلو دليل دی (يعني د دې خبرې دليل دی چې په دوی کې هم بيع موجود ده، فسخ سوې نه ده)، لهذا کله چې په دوی کې بيع هم موجود ده او په عقد کې دوی داخل هم دي، نو اوس د غلام په څېر دوی هم مبيع وګرځېدل، او هغه شرط چې د هغه په وجه د آزاد او غلام بيع فاسده وه (يعني په مبيع کې د بيع د صحيح کېدلو لپاره په غير مبيع کې د بيع قبلولو شرط) دلته موجود نه دی، او همدا شرط د بيع فاسدونکی وو، لهذا کله چې هغه نسته، نو ځکه به د دوی بيع صحيح او جائز وي.

ولا بيعًا إلخ: د دې حاصل دا دی چې کله د غلام سره مدبر او داسي نور په عقد (بيع) کې داخليږي، نو په دوی کې د "بيع بالحصة ابتداءً" خرابي هم نه لازميږي، يعني د عقد په ابتداء کې به پر هر يوه د ثمن تقسيمولو ضرورت نه وي، بلکې دا مرحله خو تر قبضې او داسي نورو بعد ده او دې ته "بيع بالحصة بقاءً" وايي، او بيع بالحصة بقاءً جائز ده، لهذا دا صورتونه به له يوې بلې خرابۍ يعني له "بيع بالحصة ابتداءً" څخه خالي وي او صحيح به وي.

کما إذا اشترٰی إلخ: صاحب د هدايې د يو مثال په ذريعه د دې وضاحت کوي فرمايي چې که يو څوک په يوه صفقه (يوه معامله) کې دوه غلامان رانيسي، بيا تر قبضې مخکې يو غلام هلاک سي، نو په دويم غلام کې به (د هغه د ثمن د حصې په عوض کې) بيع جائز وي؛ ځکه چې دلته دواړه غلامان دي (يعني داسي نه ده چې يو غلام دی او بل آزاد دی)، نو ښکاره خبره ده چې دواړه مبيع دي او په عقد (بيع) کې داخل هم دي، نو ځکه په دوی کې نه اوله خرابي (يعني په مبيع کې د بيع د صحيح کېدلو لپاره په غير مبيع کې د بيع قبلول) لازميږي، او نه دويمه خرابي (يعني بيع بالحصة ابتداءً) لازميږي، لهذا څرنګه چې دغه صورت له مذکوره دواړو خرابيو څخه د پاکېدلو په وجه صحيح او جائز دی، همداسي به د غلام، مدبر او مکاتب د يو ځای خرڅولو صورتونه هم له مذکوره دواړو خرابيو څخه د پاکېدلو او خالي کېدلو په سبب صحيح او جائز وي؛ فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# فَصْلٌ فِي أَحْكَامِهِ

(دا) فصل د "بیع فاسد" داحکامو په بیان کې دی

**تشریح:** مخکې تر دې صاحب د هدایې بیع فاسد او د هغې ټوله قسمونه بیان کړل، اوس له دې ځایه د بیع فاسد او د هغې د فروعاتو احکام بیانوي. ښکاره دې وي چې أَحْكَام جمع د حُکم ده، او "حکم" پر یو شي مُرتّب کېدونکې اثر ته وایي، او څرنګه چې دا ترتب د شي تر وجود وروسته وي (یعني اول شی په وجود کې راځي بیا پر هغه اُثر [حکم] مُرتّب کیږي)، نو ځکه صاحب د کتاب د ترتیب په رعایت کولو سره اول بیعَ فاسد بیان کړه، او اوس د هغې احکام بیانوي.

## په بیع فاسد کې پر مبیع د قبضه کولو حکم

وَإِذَا قَبَضَ الْمُشْتَرِيْ الْمَبِيْعَ فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ بِأَمْرِ الْبَائِعِ او کله چې مشتري په بیع فاسد کې د بائع په حکم [اجازت] سره پر مبیع قبضه وکړي وَفِي الْعَقْدِ عِوَضَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَالٌ او په دې عقد کې دواړه عوضونه مال وي مَلَكَ الْمَبِيْعَ وَلَزِمَتْهُ قِيْمَتُهُ نو مشتري د هغه مبیع مالک کیږي او پر مشتري د هغه قیمت لازمیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَمْلِكُهُ وَإِنْ قَبَضَهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې مشتري د هغه نه مالک کیږي که څه هم پر مبیع قبضه وکړي لِأَنَّهُ مَحْظُوْرٌ ځکه چې بیع فاسد ممنوع ده فَلَا يُنَالُ بِهِ نِعْمَةُ الْمِلْكِ لهذا د هغې په ذریعه د ملکیت نعمت نه سي حاصلېدای وَلِأَنَّ النَّهْيَ نَسْخٌ لِلْمَشْرُوْعِيَّةِ او ځکه چې نهي د مشروع کېدلو لپاره ناسخ دي لِلتَّضَادِّ ځکه چې [په دوی دواړو] کې تضاد دی وَلِهٰذَا لَا يُفِيْدُهُ قَبْلَ الْقَبْضِ او له همدې کبله له قبضې څخه مخکې دا بیع ملکیت نه فایده کوي وَصَارَ كَمَا إِذَا بَاعَ بِالْمَيْتَةِ او دا داسې سو لکه [یو څوک] چې د مردار سوي څاروي په عوض کې [یو شی] خرڅ کړي أَوْ بَاعَ الْخَمْرَ بِالدَّرَاهِمِ یا لکه شراب چې د درهم په عوض کې خرڅ کړي وَلَنَا: أَنَّ رُكْنَ الْبَيْعِ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ مُضَافًا إِلَى مَحَلِّهِ زموږ دلیل دا دی: چې د بیع رکن له خپل اهل څخه صادر سو په داسې حال کې چې د خپل محل وطرف ته منسوب دی

فَوَجَبَ الْقَوْلُ بِانْعِقَادِهِ نو ځکه د دې بیع د منعقد کېدلو قائل کېدل ضروري دي ایعني د دې بیع انعقاد منل ضروري دي] وَلَا خَفَاءَ فِي الْأَهْلِيَّةِ وَالْمَحَلِّيَّةِ او په اهل کېدلو او محل کېدلو کې هیڅ پټوالي نسته وَرُكْنُهُ: مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ او د بیع رکن مال په مال سره بدلول دي [یعني مال د مال په عوض کې ورکول دي] وَفِيهِ الْكَلَامُ او [زموږ] کلام په همدې باره کې دی وَالنَّهْيُ يُقَرِّرُ الْمَشْرُوعِيَّةَ عِنْدَنَا او زموږ په نېز "نهي" مشروعیت مستحکم کوي لِاقْتِضَائِهِ التَّصَوُّرَ ځکه چې "نهي" د منهي عنهٔ فعل د متصور کېدلو تقاضا کوي فَنَفْسُ الْبَيْعِ مَشْرُوعٌ لهذا نفس بیع مشروع ده وَبِهِ تُنَالُ نِعْمَةُ الْمِلْكِ او په همدې نفس بیع سره د ملکیت نعمت حاصلیږي وَإِنَّمَا الْمَحْظُورُ مَا يُجَاوِرُهُ او ممنوع صرف هغه شی دی کوم چې د بیع سره متصل دی كَمَا فِي الْبَيْعِ وَقْتَ النِّدَاءِ لکه د جمعې د اذان په وخت کې بیع کول وَإِنَّمَا لَا يَثْبُتُ الْمِلْكُ قَبْلَ الْقَبْضِ كَيْلَا يُؤَدِّيَ إِلَى تَقْرِيرِ الْفَسَادِ الْمُجَاوِرِ او له قبضې څخه مخکې ملکیت ځکه نه ثابتیږي چې دا د متصل فساد د مستحکم کولو سبب جوړ نه سي إِذْ هُوَ وَاجِبُ الرَّفْعِ بِالِاسْتِرْدَادِ ځکه چې [له مشتري څخه د مبیع] په واپس اخیستلو سره د فساد لیرې کول ضروري دي فَبِالِامْتِنَاعِ عَنِ الْمُطَالَبَةِ أَوْلَى نو له مطالبې څخه [د متشري] په منع کېدلو سره د فساد لیرې کول به په درجه اولیٰ ضروري وي وَلِأَنَّ السَّبَبَ قَدْ ضَعُفَ لِمَكَانِ اقْتِرَانِهِ بِالْقَبِيحِ او ځکه چې سبب د قبیح [منهي عنهٔ] سره د متصل کېدلو په وجه کمزوری سو فَيُشْتَرَطُ اعْتِضَادُهُ بِالْقَبْضِ فِي إِفَادَةِ الْحُكْمِ نو ځکه په افادة الحکم [مفید الملک کېدلو] کې د قبضې په ذریعه د دې سبب قوي کول شرط دي بِمَنْزِلَةِ الْهِبَةِ لکه څرنګه چې په هبه کې دي وَالْمَيْتَةُ لَيْسَتْ بِمَالٍ او مردار څاروی مال نه دی فَانْعَدَمَ الرُّكْنُ نو ځکه [هلته] د بیع رکن معدوم سو وَلَوْ كَانَ الْخَمْرُ مُثَمَّنًا فَقَدْ خَرَّجْنَاهُ او که شراب مبیع وي نو موږ اد باب بیع الفاسد په شروع کې] د هغه توجیه بیان کړې ده وَشَيْءٌ آخَرُ او [دلته] دویمه خبره هم سته وَهُوَ أَنَّ فِي الْخَمْرِ الْوَاجِبَ هُوَ الْقِيمَةُ او هغه دا چې د شرابو په صورت کې صرف قیمت واجبیږي وَهِيَ تَصْلُحُ ثَمَنًا لَا مُثَمَّنًا او قیمت [صرف] ثمن جوړېدای سي، مبیع نه سي جوړېدای.

**اللغات**: ﴿مَالٌ﴾ په عربي ژبه کي د مال څو تعريفونه سوي دي، چي له هغوی څخه ځيني دا دي: ① هر هغه شی چي له هغه څخه نفع اخيستل ممکن وي او شريعت په هغه سره نفع اخيستل روا کړي وي. ② مال په اصل کي هر هغه شي ته وايي کوم ته چي فطرت او طبيعت ميلان کوي او د هغه ساتل (خوندي کول) ممکن وي. ③ هر هغه شی کوم چي په مال او پيسو سره انسان ترلاسه کړی وي (معجم لغة الفقهاء)، مراد څني متقوم (قيمت لرونکی) شی دی. ﴿محظور﴾ ممنوع، نا روا، ﴿لا يُنَال﴾ د فتح له بابه د نفي مجهول صيغه ده: حاصلول، ترلاسه کول، ﴿يُجَاوِر﴾ د مفاعلې له بابه د مضارع معلوم صيغه ده: متصل کېدل، ورسره لګېدل، ﴿اعتضاد﴾ د افتعال مضارع ده، د دغه باب په صله کي چي باء راسبي نو د مضبوطېدو او قوي کېدو په معنیٰ سره راځي (مصباح اللغات)، ﴿خرّجنا﴾ د تفعيل ماضي ده، دلته يې معنیٰ ده: توجيه کول، توجيه بيانول (وجه او دليل بيانول).

**تشريح**: د عبارت له حل څخه مخکي مختصراً په دې ځان پوه کړئ! چي په عبارت کي د "فاسد" په قيد سره بيع باطل ايستلی سوې ده لِأنّه لا يُفيد الملك أصلًا، او د "بأمر البائع" څخه مراد د بائع اجازت دی، برابره ده هغه دلالتاً وي او که صراحتاً، او د عوضَينو مال کېدل ځکه ضروري دي چي که احدُ العوضَين له مال څخه بغير بل شی وي مثلاً خنزير يا مردار څاروی وي، نو بيع باطلېږي. اوس صورت د مسئلې ته ګورئ!.

**صورت د مسئلې**: دا دی چي زموږ په نېز که په بيع فاسد کي مشتري د بائع په اجازت سره پر مبيع قبضه وکړي او په عقد کي دواړه عوضونه مال وي، نو هغه د مبيع مالک کيږي او هغه به د مبيع قيمت (بازاري رېټ) اداء کوي. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي تر قبضه کولو وروسته هم هغه د مبيع نه مالک کيږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي بيع فاسد يو ممنوع امر او معامله ده، او د ملکيت په څېر غټ نعمت د ممنوع امر په ذريعه نه سي حاصلول کېدای.

د هغه دويم دليل دا دی چي شريعت بيع فاسد منسوخ کړې ده، او د هغې منسوخ کېدل د هغې د مشروعيت پر ممنوع والي دليل دی (يعني د بيع فاسد منسوخ کېدل د دې خبري دليل دی چي هغه بالکل مشروع او ناجائز ده)، ځکه چي په مشروعيت او منسوخيت کي واضح تضاد دی، هغه په دې توګه چي مشروعيت د حسن تقاضا کوي، لېکن منسوخيت د قبح تقاضا کوي، نو کله چي د نسخ او شرع په تقاضاوو کي تضاد دی، نو د هغوی په وجود کي به هم تضاد وي او منسوخ کېدل به د مشروعيت پر

ختمېدلو دليل وي (احسن الهدايه). د بيع فاسد د مشروعيت د ختمېدلو يوه بله وجه دا هم ده چي بيع فاسد له قبضې څخه مخکي هم ملکيت نه فايده کوي (يعني له قبضې څخه مخکي هم هغه مفيدُ الملک نه ده او ملکيت نه ثابتوي)، که د هغې مشروعيت باقي واى، نو د بيع صحيح په څېر به هغه له قبضې څخه مخکي هم ملکيت فايده کولاى، حالانکي داسي نه ده، نو معلومه سوه چي بيع فاسد من کُلِ وجه ممنوع ده، لهٰذا کله چي هغه ممنوع ده نو د هغې په ذريعه به ملکيت هم نه سي حاصلول کېداى.

وصار إلخ: له دې ځايه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس بيان دى، فرمايي څرنګه چي يو څوک د مردار څاروي په عوض کي يو شى خرڅ کړي يا د درهم او دينار په عوض کي شراب خرڅ کړي نو د مشتري قبضه ملکيت نه فايده کوي (يعني که مشتري پر هغه شي يا پر درهم او دينار قبضه وکړي، نو بيا هم مشتري د هغه نه مالک کيږي، بلکي بيع باطليږي)، همداسي په بيع فاسد کي به هم د مشتري قبضه ملکيت نه فايده کوي.

**زموږ دليل**: د احنافو د دليل حاصل دا دى چي د بيع د صحيح کېدلو لپاره چي څو مره شيان ضروري دي، هغه ټوله په دې بيع (بيع فاسد) کي موجود دي، ځکه دا بيع له خپل اهل يعني له عاقل، بالغ او آزاد کس څخه صادر سوې ده او د خپل محل يعني د عوضَينو د مال کېدلو وطرف ته منسوب ده، لهٰذا کله چي په دې بيع کي د بيع د صحت ټوله شرائط موجود دي، نو ځکه به هغه صحيح وي. او د عاقدَينو اهليت او د مبيع محليت خو واضح دى، او د عوضَينو د مال کېدلو په وجه "مبادلة المال بالمال" هم متحقق دى، او په بيع کي همدا مقصود وي، ځکه چي دا د بيع رکن دى، نو ځکه به دا بيع منعقد کيږي او صحيح کيږي، او مِنعقده بيع ملکيت فايده کوي، نو ځکه به دا بيع هم د ملکيت فايده ورکوي.

والنهي يقرر إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دى، سوال دا دى چي کله بيع فاسد منهي عنهٗ ده (يعني د هغې په باره کي نهي وراد سوې دي او منهي عنهٗ شى نه سي مشروع کېداى، ځکه نهي له مشروع کېدلو څخه مانع دي)، نو بيع فاسد د منهي عنهٗ کېدلو باوجود څنګه مشروع کېداى سي !؟

د دې په جواب کي فرمايي چي زموږ په نېز پر شرعي امر واردېدونکي نهي "قبيح لغيره" دي، او دا نهي د منهي عنهٗ د موجودېدلو او متصوَر کېدلو تقاضا هم کوي، د دې لپاره چي مبتلیٰ به د ترک او اختيار په نفع او ضرر واقف سي، نو ځکه د نهي د وارد ېدلو باوجود به نفس بيع مشروع پاته وي، لېکن دا نهي به صرف د بيع پر وصف اثر کوي، او د وصف په وجه به دا بيع غير مشروع وي، لکه څرنګه چي بيع کول (معامله کول) في نفسه جائز او مشروع امر دى، لېکن د جمعې د اذان په وخت کي مکروه

دي، نو دلته هم د نهي اثر پر وصف وسو، نه پر ذات، او دغه نهي د بيع مشروعيت مستحکم او مضبوط کړي. همداسي د بيع فاسد په مسئله کي به هم نهي د بيع مشروعيت مستحکم کوي، کنې! پر هغې به د نهي د واردېدلو مطلب څه وي!؟. لنډه دا چي نهي مشروعيت نه منسوخ کوي بلکي هغه مستحکم کوي. لهذا کله چي په نهي سره د نفس بيع مشروعيت ثابت او مستحکم ګرځي نو په همدې سره ملکيت حاصلېږي. او په مشروع امر سره د ملکيت حصول (حاصلول) صحيح دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره مُوږ هم تسليموو چي په ممنوع امر سره د ملکيت حصول ممنوع دی. لېکن د بيع فاسد په صورت کي د ملکيت حصول په ممنوع امر سره نه دی. بلکي په نفس بيع سره دی کوم چي مشروع ده او د وصف په مقابله کي قوي او مضبوط هم ده. لهذا ملکيت په هغه سره حاصلول کيږي، نه په وصف سره.

وإنما لا يثبت إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی، حاصل يې دا دی چي ستاسي دا خبره "چي څرنګه بيع فاسد له قبضې څخه مخکي ملکيت نه فايده کوي، همداسي به له قبضې څخه وروسته هم ملکيت نه فايده کوي" صحيح نه ده. يعني د بعد القبض والا صورت پر قبل القبض والا صورت باندي قياسول صحيح نه دي، ځکه چي په بيع فاسد کي قبل القبض په دې وجه ملکيت نه ثابتيږي چي دا ثبوت د فساد د مستحکم کولو ذريعه جوړه نه سي، ځکه که قبل القبض ملکيت ثابت سي نو د عقد حکم پوره کول به (يعني پر بائع به د مبيع ورسپارل او پر مشتري به د ثمن اداء کول) لازم سي، او کله چي بائع او مشتري د عقد حکم پوره کړي نو ښکاره خبره ده چي فساد به مستحکم وګرځي، حالانکي له قبضې څخه وروسته هم فساد ليري کول واجب دي، يعني که مشتري پر مبيع قبضه وکړي نو هم له هغه څخه مبيع واپس اخيستل او عقد فسخ کول ضروري دي، لهذا کله چي بعد القبض فساد ليري کول ضروري دي نو قبل القبض خو به په درجه اولیٰ ضروري وي، ځکه چي د قبل القبض په صورت کي د مبيع او ثمن د واپس کولو ضرورت هم نه پيښيږي، نو په همدې وجه موږ قبل القبض دا بيع مفيد الملک نه منو او بعد القبض يې مفيد الملک منو (يعني په دې وجه موږ وايو چي دا بيع له قبضې څخه وروسته ملکيت فايده کوي)؛ ځکه چي ملکيت د قبضې وطرف ته منسوب کيږي او قبضه د ضمان مُوجب وي، يعني که بعد القبض مبيع هلاکه سي نو پر مشتري د هغه ضمان واجبيږي. او دا د ضمان واجبېدل په خپله د ملکيت منتقل کېدلو (انتقال الملک) دليل دی. کنې صرف د يوه کس (يعني د بائع) په قبضه کي به د دواړو عوضونو (مبيع او ثمن) جمع کېدل لازم سي، په دې توګه چي د ثمن مالک خو هغه (بائع) دی. او س که د مبيع ملکيت هم د مشتري وطرف ته منتقل نه سي. نو ښکاره خبره ده چي مبيع او ثمن به دواړه صرف د يوه کس (بائع) په ملکيت کي

جمع سي، او مخکي تېر سو چي دواړه عوضونه دیوه کس په قبضه کي جمع کېدل ناجائز دي، نو ځکه بعد القبض خو به د مشتري ملکیت خامخا ثابتیږي: ځکه چي په دې صورت کي اجتماع العوضین لازمیږي، لېکن قبل القبض دا اجتماع نه لازمیږي. نو ځکه قبل القبض د مشتري د ملکیت په نه ثابتولو کي هیڅ حرج نسته.

ولأن السبب إلخ: دا د قبل القبض ملکیت نه ثابتېدلو دویم دلیل دی. فرمایي کله چي د ملکیت د وجوب د سبب سره (یعني د بیع فاسد سره) قبیح امر (منهيٌ عنهُ) مقترن او متصل دی، نو ښکاره خبره ده چي په دې سبب کي ضعف او کمزوري پیدا سوه. او د سبب د مفید الحکم کېدلو لپاره دغه کمزوري لیرې کول ضروري دي (یعني د دې لپاره چي دا سبب (بیع فاسد) د حکم فایده ورکړي د پیداکېدونکي ضعف لیرې کول او ختمول ضروري دي). او د دې یوازینۍ لاره دا ده چي د دې سبب (بیع فاسد) سره قبضه لاحق کړی سي، د دې لپاره چي په هغه کي قوت او مضبوطي پیدا سي، او څرنګه چي قبضه هبه مضبوط او مکمل ګرځوي، همداسي به هغه بیع فاسد هم مضبوط او مکمل ګرځوي او دا بیع فاسد به په قبضې سره مفید الملک ګرځي، نو ځکه د قبضې په ذریعه د دغه ضعف په لیرې کولو سره به بعد القبض د بیع فاسد د مفید الملک کېدلو حکم کیږي.

والمیتة إلخ: څه مخکي ذکر سوه چي امام شافعي رَحِمَهُ الله د بیع فاسد نه منعقد کېدل د شراب او مردار څاروي د بیع پر نه منعقد کېدلو قیاسوي، په دې عبارت سره د هغه جواب ورکوي چي د مردار څاروي په عوض کي د بیع کولو په صورت کي بیع ځکه باطلیږي او ملکیت نه فایده کوي چي مردار څاروی بالکل مال نه دی. او دا معلومه خبره ده چي که احدُ العوضَین مال نه وي نو د بیع رکن یعني "مبادلة المال بالمال" له منځه ځي، نو ځکه دا بیع نه منعقد کیږي او ملکیت نه فایده کوي، او بیع فاسد خو منعقد کیږي، لېکن د یو بل سبب په وجه په هغې کي فساد راځي، لهذا منعقد سوې بیع پر غیر منعقد بیع باندي قیاسول صحیحٌ نه دي.

او پر بیعُ الخمر بالدرهم باندي ځکه د بیع فاسد قیاسول صحیح نه دي چي په بیع کي به خمر (شراب) یا مبیع وي، یا به ثمن وي (یعني په بیع کي د شرابو دوه حالتونه دي: ① هغه به مبیع وي. ② یا به ثمن وي). او دا دواړه باطل دي، اول صورت ځکه باطل دی چي که شراب مبیع وي نو په دې صورت کي د هغه عزت او اکرام لازمیږي؛ ځکه چي په بیع کي صرف مبیع مقصود وي، حال دا چي شریعت د شرابو د تذلیل او سپکاوي حکم کړی دی. الله تعالیٰ فرمایي: "إِنَّمَا الْخَمْرُ... رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ" [المائدة: ٩٠]. نو ځکه دا صورت خو باطل دی. او که شراب ثمن وي نو دا هم صحیح نه

دي؛ ځکه چي د مسلمان لپاره د شرابو اخيستل او ورسپارل (تسلم او تسليم) صحيح نه دي، نو ځکه د شرابو د ثمن کېدلو په صورت کي د شرابو قيمت واجبيږي، او قيمت ثمن جوړېداى سي لېکن مبيع نه سي جوړېداى، حال دا چي دلته هغه مبيع جوړيږي، ځکه چي د هغه په مقابله کي دراهم او دنانير دي (يعني کله چي شراب ثمن وي نو معلومه خبره ده چي د هغوی په مقابله کي دراهم يا دنانير وي. او دراهم او دنانير په خپله ثمن دي. نو ځکه به شراب مبيع ګرځول کيږي. ځکه د دراهمو او دنانيرو په مقابله کي چي کوم شی وي هغه مبيع وي. نو د شرابو چي کوم قيمت پر بائع واجبيږي. هغه مبيع سو)، حال دا چي په شريعت کي قيمت ثمن جوړېداى سي لېکن مبيع نه سي جوړېداى، نو په دې صورت کي د مشروع امر بدلول (متغير کول) لازم سو، او د مشروع امر متغير کول ناجائز دي، نو ځکه دا صورت هم باطل دی.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

ثُمَّ شَرَطَ أَنْ يَكُونَ الْقَبْضُ بِإِذْنِ الْبَائِعِ بيا امام قدوري رَحِمَهُ الله دا شرط لګولی دی چي قبضه به د بائع په اجازت سره وي وَهُوَ الظَّاهِرُ او همدا ظاهر روايت دی إِلَّا أَنَّهُ يُكْتَفٰى بِهِ دَلَالَةً لېکن پر دلالتاً اجازت [هم] اکتفاء کېداى سي كَمَا إِذَا قَبَضَهُ فِيْ مَجْلِسِ الْعَقْدِ اِسْتِحْسَانًا لکه کله چي مشتري د عقد په مجلس کي [د بائع په موجوديت کي] پر مبيع قبضه وکړي نو استحساناً [پر هغه اکتفاء کيږي] وَهُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح دي لِأَنَّ الْبَيْعَ تَسْلِيطٌ مِنْهُ عَلَى الْقَبْضِ ځکه چي بيع کول [خرڅول] د بائع له طرفه پر قبضه کولو قدرت ورکول دي [يعني بائع چي شی خرڅ کړي نو دا مشتري ته پر مبيع د قبضه کولو قدرت ورکول دي] فَإِذَا قَبَضَهُ بِحَضْرَتِهِ قَبْلَ الْاِفْتِرَاقِ لهذا کله چي د جلا کېدلو څخه مخکي د بائع په حضور [موجوديت] کي مشتري پر مبيع قبضه وکړي وَلَمْ يَنْهَهُ او بائع هغه منع نه کړي كَانَ بِحُكْمِ التَّسْلِيطِ السَّابِقِ نو دا قبضه به د مخکني قدرت ورکولو په حکم سره وي وَكَذَا الْقَبْضُ فِي الْهِبَةِ فِي مَجْلِسِ الْعَقْدِ يَصِحُّ اسْتِحْسَانًا او همدارنګه په هبه کي د عقد په مجلس کي قبضه کول هم [له صراحتاً اجازت څخه بغير] جائز دي وَشَرَطَ أَنْ يَكُونَ فِي الْعَقْدِ عِوَضَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَالٌ او امام قدوري رَحِمَهُ الله دا شرط [هم] لګولی دی چي په عقد کي به له دواړو عوضونو څخه هر عوض مال وي لِيَتَحَقَّقَ رُكْنُ الْبَيْعِ وَهُوَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ د دې لپاره چي د بيع رکن يعني "مال په مال سره بدلول" ثابت سي فَيَخْرُجُ عَلَيْهِ الْبَيْعُ بِالْمَيْتَةِ وَالدَّمِ وَالْحُرِّ وَالرِّيحِ وَالْبَيْعُ مَعَ نَفْيِ الثَّمَنِ نو په دې شرط

سره د مردار ښاروي او د وينې او د آزاد او هوا په عوض كي بيع كول او د ثمن د نفي كولو سره بيع كول [دغه ټوله صورتونه په دې شرط سره] خارج كيږي [ځكه چي په دغو ټولو كي مبادلة المال بالمال نه ثابتيږي] وَقَوْلُهُ "لَزِمَتْهُ قِيمَتُهُ" فِي ذَوَاتِ الْقِيَمِ او د امام قدوري رحمه الله دا قول "لَزِمَتْهُ قِيمَتُهُ" د ذواتُ القيم په باره كي دى فَأَمَّا فِي ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ فَيَلْزَمُهُ الْمِثْلُ ليكن په ذواتُ الامثال كي پر مشتري مثل واجبيږي لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ بِنَفْسِهِ بِالْقَبْضِ ځكه چي مثلي شى په قبضه سره بذات خود مضمون كيږي فَشَابَهُ الْغَصْبَ نو دا د غصب سره مشابه سو وَهٰذَا لِأَنَّ الْمِثْلَ صُورَةً وَمَعْنًى أَعْدَلُ مِنَ الْمِثْلِ مَعْنًى او دا حكم ځكه دى چي هغه مثلي شى كوم چي د صورت او معنىٰ دواړو په اعتبار سره مثلي وي له مثل معنوي [قيمت] څخه زيات برابري ثابتونكى دى.

**اللغات**: ﴿تسليط﴾ د تفعيل مصدر دى: مسلط كول (ګومارل)، قدرت وركول، اختيار وركول، ﴿حضرة﴾ حضور، موجودګي، موجوديت. ﴿افتراق﴾ د افتعال مصدر دى: جلا كېدل، ﴿ريح﴾ هوا، باد. ﴿أعدل﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات انصاف والا، زيات برابري كونكى.

**تشريح**: په دې عبارت كي صاحب د هدايې د هغه قيدونو تفصيل بيانوي كوم چي د تېر عبارت په متن (قدوري) كي ذكر سوي دي، فرمايي چي په قدوري كي د بائع په اجازت سره قبضه كول شرط دي، او همدا ظاهر روايت دى. او په دې اجازت كي صراحتاً او دلالتاً دواړه اجازتونه داخل دي، صراحتاً اجازت خو ښكاره دى، او د دلالتاً اجازت صورت دا دى چي تر معامله كولو وروسته د عقد په مجلس كي مشتري او بائع دواړه موجود وي او مشتري د بائع په موجوديت كي پر مبيع قبضه وكړي او بائع چپ پاته سي (هيڅ نه ووايي)، د بائع د موجوديت او چپ پاتېدلو په وخت كي دا قبضه دلالتاً اجازت لره شامله ده، ځكه چي د بائع له طرفه اقدام على البيع په خپله پر قبضه د قدرت وركولو دليل دى (يعني پر بيع د بائع إقدام كول دا په خپله د تسليط على القبض (مشتري ته پر قبضې د قدرت وركولو) دليل دى)، لهذا څرنګه چي په صراحتاً اجازت كي اقدام "تسليط القبض" منل كيږي (يعني كه بائع صراحتاً اجازت وركړي نو معلومه خبره ده چي هغه مشتري ته پر مبيع د قبضې كولو قدرت وركوي [چي ته پر مبيع قبضه وكړه!])، همداسي په دلالتاً اجازت كي به هم هغه تسليط على القبض وي او قبضه به معتبره وي، همدا استحسان دى او همدا صحيح دي. صاحب د هدايې د "هو الصحيح" په قيد سره و دې طرف ته اشاره كړې ده چي د صاحب الايضاح او داسي نورو دا خبره چي كه له صراحتاً اجازت څخه بغير قبضه وسي نو هغه كالعدم ده (يعني هغه داسي ده لكه نه قبضه) او مفيد الملک نه ده، نو صاحب د هدايې

فرمايي چي دا قول صحيح نه دی، بلکي صحيح قول هغه دی کوم چي د استحسان پر بناء موږ بيان کړی او د هغه دليل مو هم بيان کړی، يعني اقدام البيع د تسليط على القبض دليل دی، او تسليط چي څرنګه په صراحتاً اذن (اجازت) کي ثابتيږي همداسي په دلالتاً اجازت کي هم ثابتيږي.

فرمايي چي همدا حال په هبه کي د قبضې هم دی (يعني د هبې د قبضې هم دغه حکم دی) چي که موهوب لهٔ د هبې په مجلس کي او د واهب په موجوديت کي پر موهوب شي قبضه وکړي او واهب چپ پاته سي، نو دا هم استحساناً صحيح او جائز ګرځول سوي دي، همداسي به د عبارت په مسئله کي هم د بيع دلالتاً اجازت او قبضه صحيح وي.

وشرط أن يكون إلخ: فرمايي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله دا شرط هم لګولی دی چي عوضين به دواړه مال وي، او په دې شرط سره د هغه مقصد دا دی چي د بيع رکن يعني "مبادلة المال بالمال" ثابت سي، او چيري چي "مبادلة المال بالمال" ثابت سي هلته بيع هم منعقد کيږي، او چيري دا رکن معدوم سي هلته بيع هم معدوم کيږي، نو که د مردار څاروي، وينې، آزاد او داسي نورو په عوض کي يو شی رانيول سي يا خرڅ کړی سي نو بيع باطليږي؛ ځکه چي د بيع د انعقاد لپاره د "مبادلة المال بالمال" ثابتېدل ضروري دي، او مذکوره شيان مال نه دي، نو ځکه په هغوی کي د بيع رکن معدوم سو، او کله چي د بيع رکن معدوم سي، بيع باطليږي، نو ځکه به په دې صورتونو کي بيع باطليږي.

والبيع مع نفي الثمن: او د نفی الثمن په شرط سره د بيع کولو په باره کي (يعني که څوک ووايي چي زه دا شی پر دې شرط رانيسم چي د هغه ثمن به نه درکوم. نو په دې باره کي) دوه قولونه دي:

①... اول قول دا دی چي د ثمن د نفي کولو په صورت کي هم بيع باطليږي؛ ځکه په دې صورت کي خو بالکل احدُ العوضَين يعني ثمن معدوم سو، د هغه مال کېدل يا نه کېدل خو هلته پريږده!، نو ځکه به دلته په درجه اولىٰ سره بيع باطليږي.

②... دوېم قول دا دی چي د نفی الثمن سره د بيع کولو په صورت کي قيمت واجبيږي؛ ځکه چي د بيع د انعقاد لپاره د عوضَينو (ثمن او مبيع) موجودېدل ضروري دي. او دلته له سره بالکل عوض نسته، لهذا څرنګه چي له مهر څخه بغير د نکاح کولو په صورت کي مهرِ مثل واجبيږي، همداسي له ثمن څخه بغير د بيع کولو په صورت کي به قيمت واجبيږي او دا عقد به صحيح او جائز وي.

وقوله لزمته إلخ: فرمايي چي د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول "لَزِمَتْهُ قِيْمَتُه" يعني که په بيع فاسد کي بعد القبض مبيع هلاکه سي نو پر مشتري د هغه قيمت لازميږي، دا حکم د ذواتُ القيم په اعتبار سره دی. يعني که مبيع قيمتي شی وي يعني له ذواتُ القيم څخه وي، نو قيمت لازميږي، لکه پسونه او

غوایان او هغه اعداد چي په هغوی کي زیات تفاوت وي (لکه هندوانې او داسي نور). لېکن که مبیع مثلي شی وي یعني له ذوات الامثال څخه وي، نو په دې صورت کي پر مشتري د هغه مثل لازمیږي، لکه مکیلات، موزونات او هغه اعداد چي په هغوی کي کم تفاوت وي؛ ځکه ذوات الامثال شیان په نفس قبضه سره په خپله مضمون کیږي، یعني که د مشتري په قبضه سره یو مثلي شی هلاک سي، نو پر مشتري د هغه مثل ورکول لازمیږي، او دا د غصب سره مشابه دي، یعني کله چي د غاصب سره مغصوب شی هلاک سي نو که هغه قیمتي وي، نو غاصب به د شي قیمت اداء کوي. لېکن که مغصوب شی مثلي وي، نو غاصب به د هغه مثل اداء کوي. لهذا همداسي به په مثلي مبیع کي هم د مثل اداء کول ضروري وي، په قیمت سره کار نه کیږي.

وهذا إلخ: فرمایي چي دا حکم ځکه دی (یعني د مثلي کېدلو په صورت کي مثل ځکه واجبیږي) چي د عوض یا ضمان مقصد دا وي چي حقدار ته خپل حق حاصل سي، او د مثلي شي په صورت کي مثلي شی اداء کول دغه حق مؤکد او مضبوط کوي؛ ځکه کوم شی چي د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار سره مثلي وي، ښکاره خبره ده چي دا به له هغه حق او هغه مثلي شي څخه لوړ او غوره وي کوم چي صرف د معنیٰ په اعتبار سره (معناً) مثلي وي یعني قیمت، نو ځکه که مبیع مثلي وي نو د هغه مثل اداء کول به واجب وي، او که مثلي نه وي نو مثل معنوي یعني قیمت به واجب وي.

## په بیع فاسد کي د عاقدینو لپاره د فسخ حق

قال: وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْمُتَعَاقِدَيْنِ فَسْخُهُ رَفْعًا لِلْفَسَادِ فرمایي: چي په عاقدینو کي هر یوه ته د فساد لیري کولو لپاره د بیع فاسد د فسخ کولو اختیار سته. وَهٰذَا قَبْلَ الْقَبْضِ ظَاهِرٌ او دا اختیار له قبضه کولو څخه مخکي خو ښکاره دی لِأَنَّهُ لَمْ يُفِدْ حُكْمَهُ ځکه چي بیع فاسد [له قبضې څخه مخکي] د بیع د حکم فایده نه ورکوي فَيَكُونُ الْفَسْخُ امْتِنَاعًا مِنْهُ نو ځکه فسخ کول به له دې حکم څخه منع کېدل وي وَكَذَا بَعْدَ الْقَبْضِ إِذَا كَانَ الْفَسَادُ فِي صُلْبِ الْعَقْدِ او همدارنګه له قبضې څخه وروسته کله چي فساد په صلب العقد کي وي لِقُوَّتِهِ ځکه چي دا فساد قوي دی وَإِنْ كَانَ الْفَسَادُ بِشَرْطٍ زَائِدٍ او که چیري فساد په زائد شرط کي وي فَلِمَنْ لَهُ الشَّرْطُ ذٰلِكَ نو "من له الشرط" ته د فسخ کولو اختیار سته دُونَ مَنْ عَلَيْهِ نه "من علیه الشرط" ته [یعني د کوم عاقد لپاره چي د شرط نفع وي د فسخ کولو اختیار

صرف هغه ته سته. او هغه عاقد ته اختيار نسته چې د شرط نفع د هغه لپاره نه وي بلکې شرط پر هغه لازم وي! لِقُوَّةِ الْعَقْدِ ځکه چې عقد قوي دی إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَتَحَقَّقِ الْمُرَاضَاةُ فِي حَقِّ مَنْ لَهُ الشَّرْطُ مګر دا چې د ''من له الشرط'' په حق کې رضا ثابته نه سوه.

**اللغات**: ﴿فسخ﴾ د فتح مصدر دی: بيع ماتول، ختمول. ﴿مراضاة﴾ د مفاعلې مصدر دی: رضا، خوښي.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې بيع فاسد فساد لره شامله او پر فساد مشتمله وي، نو ځکه د شريعت په حکم سره دا فساد ليري کول ضروري دي، اوس د دې دوه صورتونه دي: ① پر مبيع به مشتري قبضه کړې وي، ② يا به يې نه وي کړې، که چيري مشتري قبضه نه وي کړې نو بيا هر عاقد (يعني بائع هم او مشتري هم) د فسخ او رفع مالک دی (يعني هر يو بيع فسخ کولای او فساد ختمولای سي)؛ ځکه چې بيع فاسد له قبضې څخه مخکې (قبل القبض) ملکيت نه فايده کوي، نو د قبل القبض فسخ کولو په صورت کې له مالک جوړېدلو څخه منع کېدل دي (يعني له قبضې څخه مخکې چې بيع فاسد فسخ کړې نو د دې مطلب دا دی چې هغه دا نه غواړي چې د مبيع مالک سي) او په دې امتناع کې بائع او مشتري دواړه برابر دي، يعني هر يوه ته دا حق سته چې هغه د ثمن او مبيع مالک نه سي.

که چيري مشتري پر مبيع قبضه کړې وي، نو د دې هم دوه صورتونه دي: ① فساد به په صلب العقد کې وي، يعني په احدُ العوضَين کې به فساد وي، لکه بيع الدرهم بالدرهمين، او بيع الثوب بالخمر. ② يا فساد به په زائد شرط کې وي، مثلاً بيع بشرط القرض والهديه (يعني پر دې شرط يو شی خرڅول چې مشتري به ما ته قرض يا تحفه راکوي). که چيري اول صورت وي يعني په صلب العقد کې فساد وي نو په دې صورت کې هم هر عاقد ته د فسخ اختيار سته، ځکه چې د صلب العقد فساد زيات قوي دی او د هغه ليري کول زيات ضروري دی، نو ځکه هر عاقد ته به د دې اختيار ورکول کيږي، لېکن د طرفينو رَحِمَهُمَاالله په نيز د فساد ليري کولو (رفع الفساد) لپاره د دويم عاقد موجوديت ضروري دی (يعني د دوی په نيز يو عاقد هغه وخت دا فساد ليري کولای سي کله چې بل عاقد موجود وي)؛ ځکه چې د دويم عاقد په ناموجوديت کې د عقد په فسخ کولو سره پر هغه (دويم عاقد) الزام او تهمت لازميږي، ځکه انسان عقد په هغه وخت کې فسخ کوي کله چې په عقد کې ضرر محسوس کړي، نو ګواکې فسخ کونکي عاقد پر خپل ملګري (دويم عاقد) د ضرر رسولو تهمت لګولی دی، او پر عاقد د الزام او تهمت لګولو لپاره دا ضروري دي چې هغه ته هم معلومه وي چې پر ما الزام لګول سوی دی، نو ځکه د

فسخ په وخت کې د هغه موجودېدل ضروري دي. او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د دویم عاقد موجودیت ضروري نه دی، که چیري هغه موجود وي نو ښه خبره ده، که نه وي فلا حرج؛ ځکه کله چي فسخ د شریعت حق دی، نو د شریعت په حق باندي د عمل کولو لپاره به د بل چا موجودیت ولې ضروري وي؟.

او که دویم صورت وي یعني فساد په زائد شرط کې وي، نو په دې وخت کې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز "من له الشرط" ته د فسخ کولو اختیار دی (یعني د چا لپاره چي د شرط نفع وي هغه ته د فسخ اختیار دی. مثلاً د بیع بشرط القرض والهدیه په صورت کې به بائع ته د فسخ کولو اختیار وي) لېکن د "من علیه الشرط" موجودیت ضروري دی؛ ځکه چي د زائد شرط په فساد سره په عقد کې قوت راځي او عقد قوي کېږي، او څرنګه چي دا شرط د هغه (من له الشرط) له طرفه لګول سوی دی، نو ځکه د دې شرط او د دې عقد د فسخ کولو ذمه واري به هم پر هغه وي.

د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کې هم هر عاقد ته د فسخ کولو اختیار دی؛ ځکه چي د زائد شرط په وجه دا عقد غیر لازم سو، او د دې فسخ کول د شریعت حق سو، او غیر لازم عقد او د شریعت حق فسخ کول د هر عاقد ذمه واري ده (یعني هر عاقد هغه فسخ کولا سي)، نو ځکه دوی دواړه به په دې کې برابر شریک وي.

إلّا أنّه إلخ: دا د یو اعتراض جواب دی. اعتراض دا دی چي کله په زائد شرط کې د فساد په وجه عقد قوي کېږي. نو یوه عاقد ته هم د فسخ اختیار حاصلېدل پکار نه دي.

د دې په جواب کې فرمایي چي د فسخ دا اختیار نه حاصلېدلو په صورت کې د "من له الشرط" رضا نه ثابتیږي. نو ځکه د هغه د شرط په لحاظ کولو سره به هغه ته د فسخ اختیار ورکول کېږي. (أحسنُ الهدایة)

## په بیع فاسد سره د رانیول سوي شي د خرڅولو حکم

قال: فَإِنْ بَاعَهُ الْمُشْتَرِیْ فرمایي: او که مشتري دا [د بیع فاسد] مبیع خرڅه کړي نَفَذَ بَیْعُهُ نو د هغه بیع نافذیږي لِأَنَّهُ مَلَکَهُ ځکه چي مشتري د هغه مالک سو فَمَلَکَ التَّصَرُّفَ فِیهِ نو ځکه په هغه کې به د تصرف کولو مالک [هم] وي وَسَقَطَ حَقُّ الِاسْتِرْدَادِ او [د اول بائع] د استرداد حق [یعني د مبیع واپس اخیستلو حق] ساقط سو لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْعَبْدِ بِالثَّانِيْ ځکه چي د دویمي بیع سره د بنده حق

متعلق سو وَنَقْضُ الْأَوَّلِ لِحَقِّ الشَّرْعِ او د اولي بيع ماتول [فسخ کول] د شريعت د حق په وجه وو وَحَقُّ الْعَبْدِ مُقَدَّمٌ لِحَاجَتِهِ او د بنده حق د هغه د محتاج کېدلو په خاطر [پر حق الشرع] مخکې دی وَلِأَنَّ الْأَوَّلَ مَشْرُوعٌ بِأَصْلِهِ دُونَ وَصْفِهِ او په دې وجه [هم] چې اوله بيع د خپل ذات په اعتبار سره مشروع ده، نه د وصف په اعتبار سره وَالثَّانِيَ مَشْرُوعٌ بِأَصْلِهِ وَوَصْفِهِ او دويمه بيع د خپل ذات او وصف دواړو په اعتبار سره مشروع ده فَلَا يُعَارِضُهُ مُجَرَّدُ الْوَصْفِ لهذا صرف وصف به د دويمې بيع نه معارض کيږي وَلِأَنَّهُ حَصَلَ بِتَسْلِيطٍ مِنْ جِهَةِ الْبَائِعِ او په دې وجه [هم] چې دويمه بيع د اول بائع له طرفه د قدرت ورکولو په ذريعه [يعني د اول بائع په قدرت ورکولو سره] حاصله سوې ده بِخِلَافِ تَصَرُّفِ الْمُشْتَرِي فِي الدَّارِ الْمَشْفُوعَةِ په خلاف د شفعي والا په کور کې د مشتري د تصرف کولو لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حَقُّ الْعَبْدِ ځکه چې له هغوی څخه هر يو د بنده حق دی وَيَسْتَوِيَانِ فِي الْمَشْرُوعِيَّةِ او هغوی دواړه په مشروع کېدلو کې سره برابر دي وَمَا حَصَلَ بِتَسْلِيطٍ مِنَ الشَّفِيعِ او دا [تصرف] د شفيع له طرفه د قدرت ورکولو په ذريعه حاصل سوی [هم] نه دی.

**اللغات:** ﴿استرداد﴾ د استفعال مصدر دی: واپس اخيستل (واپس غوښتل)، رجوع کول. ﴿مجرد﴾ محض، صرف (فقط)، ﴿يعارض﴾ د مفاعلې له بابه د مضارع صيغه ده: معارض کېدل، مقابل کېدل، ﴿تسليط﴾ قدرت ورکول، ﴿الدار مشفوعة﴾ د شفعي والا کور، په کوم کور چې د شفعي د حق دعوی وسي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که مشتري په بيع فاسد سره يو شی رانيسي او د بائع په اجازت سره پر هغه قبضه وکړي، بيا مشتري هغه شی پر بل چا خرڅ کړي، نو د مشتري دا بيع نافذيږي. ځکه مشتري د بائع په اجازت سره پر مبيع قبضه وکړه نو ځکه د مبيع مالک سو (ځکه زموږ په نيز په بيع فاسد کې د بائع په اجازت په قبضه کولو سره مشتري د مبيع مالک کيږي). او په خپل مملوک شي کې د هر ډول تصرف کولو اختيار سته، نو ځکه مشتري به په دغه مبيع کې د تصرف کولو مالک وي. برابره ده هغه د خرڅولو تصرف وي او که د صدقه کولو، يا هبه کولو، ها! که چيري مبيع د خوراک شی وي نو د مشتري لپاره د هغه خوړل حلال نه دي، او که مينځه وي نو د هغې سره وطي کول حلال نه دي (بنايه)، او د شمس الائمه حلواني رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې وطي کول حرام نه دي لېکن مکروه دي. لنډه دا چې

مشتري د دغه مقبوضه مبيع د خرڅولو ملکيت او اختيار لري، لهذا که مشتري دا مبيع خرڅه کړي نو اول بائع ته به دا حق نه وي چي دويمه بيع باطله کړي او مبيع واپس واخلي، بلکي پر اول مشتري به د مبيع قيمت واجب وي که چيري مبيع له ذواتُ القيم شخه وي، او که مبيع له ذواتُ الامثال څخه وي نو پر اول مشتري به د هغه مثل واجب وي، او د دويم مشتري لپاره به دا مبيع حلاله او پاکه وي. ځکه چي دويم مشتري په صحيح عقد سره د هغه مالک سوی دی، او اول مشتري په فاسد عقد سره د هغه مالک سوی دی، نو ځکه د هغه لپاره به مبيع حلاله نه وي.

پاتهٔ سوه دا پوښتنه چي د مشتري له خرڅولو څخه وروسته اول بائع ته د مبيع واپس اخيستلو حق ولي نسته؟ نو د دې لپاره درې (۳) درليلونه ذکر سوي دي:

**اول دليل**: دا دی چي د دويمي بيع سره د بنده حق يعني د دويم مشتري حق متعلق سو، او اوله بيع د فساد په وجه فسخ کول د شريعت حق دی، يعني د بنده (دويم مشتري) حق دا تقاضا کوي چي بيع نافذ کړی سي او د شريعت حق دا تقاضا کوي چي بيع فسخ کړی سي، او قاعده دا ده چي کله حقُ الشرع او حقُ العبد سره جمع سي نو حقُ العبد مخکي کيږي؛ ځکه چي شارع يعني الله تعالیٰ غنی او بې نيازه دی، او بنده محتاج دی، او محتاج د رعايت زيات مستحق دی په نسبت وغني ته؛ نو ځکه د بنده يعني د دويم مشتري حق به مخکي وي، او د دويم مشتري حق تقاضا کوي چي بيع فسخ نه کړی سي، نو ځکه په دې صورت کي به بيع نه فسخ کيږي يعني مبيع به د اول بائع وطرف ته نه واپس کيږي.

**دويم دليل**: دا دی چي اوله بيع د خپل ذات په اعتبار سره مشروع ده، يعني اوله بيع فاسده ده او دويمه بيع صحيح ده، او فاسد د صحيح نه سي معارض کېدلای، نو ځکه د اولي بيع (بيع فاسد) په وجه دويمه صحيح بيع نه سي ختمول کېدای (ځکه چي دوی يو د بل معارض نه دي)، او کله چي دويمه بيع نه سي ختمول کېدای، نو د اول بائع د استرداد (واپس اخيستلو) حق به هم ساقطيږي.

**دريم دليل**: دا دی چي پر دويمه بيع اول مشتري ته د اول بائع له طرفه قدرت حاصل سوی دی (يعني اول مشتري ته د دويمي بيع د کولو قدرت د اول بائع له طرفه حاصل سوی دی)، ځکه چي مشتري د اول بائع په اجازت سره قبضه کړې ده، نو د اول بائع لپاره د مبيع واپس اخيستل د هغه بيع ختمول دي چي هغه په خپله د اول بائع له طرفه مکمل سوې ده (يعني اوس که اول بائع مبيع واپس اخلي نو ګواکي دا دويمه بيع هغه ختمه کړه حال دا چي دا بيع په خپله د هغه له طرفه پوره سوې ده) او دا باطل دي، نو ځکه اول بائع ته به د مبيع واپس اخيستلو حق او اختيار نه وي.

بخلاف تصرف المشتري إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دى، سوال دا دى چي که څوک يو کور رانيسي او بيا شفيع په هغه کي د شفعي د حق دعوىٰ او طلب وکړي، لېکن مشتري دا کور پر بل چا خرڅ کړي، نو په دې صورت کي د مشتري دغه عقد نه نافذيږي بلکي فسخ کول کيږي او شفيع ته حق ورکول کيږي، حال دا چي په دغه صورت کي هم د دويم مشتري (بنده) حق د عقد سره متعلق سو. نو ددې په جواب کي فرمايي چي په دغه صورت کي (يعني د شفعي په صورت کي) دواړو طرفونو ته حقُ العبد دى، يعني د دويم مشتري حق او د شفيع حق حقُ العبد دى، نو ځکه په دوى کي به يو هم مقدم نه وي. ځکه د بندګانو حق په مشروعيت او نفاذ کي سره برابر وي او په هغوى کي يوه ته تقدم حاصل نه وي، بلکي کوم حق چي مخکي ثابت سوى وي صرف هغه مقدم او راجح وي، او څرنګه چي په شفعه کي د شفيع حق مخکي ثابتيږي، نو ځکه هغه به مقدم او مخکي وي، او بيع به فسخ کول کيږي او هغه ته به حق ورکول کيږي. او په شفعه کي دا خبره هم نسته چي پر دويمه بيع اول مشتري ته د شفيع له طرفه قدرت حاصل سوى دى، ځکه چي قدرت خو يا په اجازت سره حاصليږي او يا د ملکيت په ثابتولو سره حاصليږي، او دلته په دغو دواړو کي يو شى هم نسته، ځکه چي شفيع نه مشتري ته د تصرف (دويمي بيع) اجازت ورکړى دى، او نه يې د مشتري دا سي ملکيت تسليم کړى دى چي هغه د ده (مشتري) تصرف جائز کړي، نو کله چي مشتري ته د شفيع له طرفه د تصرف (دويمي بيع) قدرت نه دى حاصل سوى، نو ځکه د مشتري تصرف به فسخ کول کيږي او شفيع ته به حق ورکول کيږي.

## په بيع فاسد سره د رانيول سوي غلام د آزادولو، خرڅولو او هبه کولو حکم

| قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى عَبْدًا بِخَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ فرمايي: او که څوک د شراب يا خنزير په عوض کي غلام رانيسي فَقَبَضَهُ وَأَعْتَقَهُ أَوْ بَاعَهُ أَوْ وَهَبَهُ وَسَلَّمَهُ او پر غلام قبضه وکړي [بيا] هغه آزاد کړي، يا يې خرڅ کړي، يا يې [يو چا ته] هبه کړي او هغه ته يې وسپاري فَهُوَ جَائِزٌ نو دا [تصرف] جائز دى وَعَلَيْهِ الْقِيمَةُ او پر مشتري د هغه غلام قيمت واجب دى لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّهُ مَلَكَهُ بِالْقَبْضِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړى چي مشتري په قبضه سره د هغه مالک سو فَيَنْفُذُ تَصَرُّفَاتُهُ نو ځکه د هغه تصرفات به نافذيږي وَبِالْإِعْتَاقِ قَدْ هَلَكَ او په آزادولو سره غلام هلاک سو فَتَلْزَمُهُ الْقِيمَةُ نو ځکه پر مشتري به د هغه قيمت لازم وي وَبِالْبَيْعِ وَالْهِبَةِ انْقَطَعَ الِاسْتِرْدَادُ او په خرڅولو او هبه کولو سره |
|---|

د واپسۍ حق [د مبيع واپس اخيستلو حق] ختم سو عَلٰى مَا مَرَّ لکه مخکې چې تېر سو وَالْكِتَابَةُ وَالرَّهْنُ نَظِيْرُ الْبَيْعِ او کتابت او رهن د بيع مشابه دي [يعني د بيع په څېر دي] لِأَنَّهُمَا لَازِمَانِ ځکه چې دوی دواړه [د بيع په څېر] لازم دي إِلَّا أَنَّهُ يَعُوْدُ حَقُّ الْاِسْتِرْدَادِ بِعَجْزِ الْمُكَاتَبِ وَفَكِّ الرَّهْنِ مګر دا چې د مکاتب په عاجز کېدلو سره او د رهن په خلاصولو سره د واپسۍ حق واپس راګرځي لِزَوَالِ الْمَانِعِ ځکه چې مانع زائل سو وَهٰذَا بِخِلَافِ الْإِجَارَةِ او دا حکم د اجارې په خلاف دی لِأَنَّهَا تُفْسَخُ بِالْأَعْذَارِ ځکه چې اجاره د عذرونو په وجه فسخ کېږي وَرَفْعُ الْفَسَادِ عُذْرٌ او فساد لېرې کول [هم] يو عذر دی وَلِأَنَّهَا تَنْعَقِدُ شَيْئًا فَشَيْئًا او ځکه چې اجاره په کراره کراره [په لږ لږ توګه] منعقد کېږي فَيَكُوْنُ الرَّدُّ امْتِنَاعًا نو ځکه [د مبيع] واپس اخيستل به [له اجارې څخه] منع کېدل وي.

**اللغات:** ﴿فَكَّ﴾ د نصر مصدر دی: خلاصول، آزادول، (رهن د مرتهن د لاس څخه خلاصول. يعني رهن څني اخيستل)، ﴿شيئًا فشيئًا﴾ په کراره، کراره، په لږ، لږ توګه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک په بيع فاسد سره يو غلام رانيسي، مثلاً د شراب يا خنزير په عوض کي غلام رانيسي او د بائع په اجازت سره پر هغه قبضه وکړي، بيا هغه آزاد کړي، يا يې خرڅ کړي، يا يې هبه کړي او موهوب لهٔ ته يې وسپاري، نو د مشتري دا تصرفات جائز دي، او پر مشتري د دې مبيع غلام قيمت (بازاري رېټ) واجب دی؛ د مشتري دا تصرفات ځکه جائز دي چې کله مشتري د بائع په اجازت سره پر مبيع قبضه وکړه، نو مشتري د مبيع مالک سو. ځکه زموږ په نيز د بائع په اجازت سره د قبضه کولو په صورت کي بيع فاسد مفيد الملک ګرځي (يعني ملکيت فايده کوي او ثابتوي). نو کله چې مشتري د مبيع مالک سو نو په مبيع کي د دنه د هغه ټوله تصرفات به نافذيږي. او پر مشتري قيمت ځکه واجبيږي چې د بيع فاسد په صورت کي مبيع "مضمون بنفسه" وي. د مضمون بنفسه مطلب دا دی چې که مبيع له ذوات الامثال څخه وي نو د مبيع مثل واجبيږي، او که له ذوات القيم څخه وي نو د هغه قيمت واجبيږي، او څرنګه چې په دې مسئله کي مبيع غلام دی او غلام له ذوات القيم څخه دی، نو ځکه پر مشتري به د غلام قيمت واجبيږي.

**وبالإعتاق قد هلك إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چې د بيع فاسد په صورت کي چې کله مشتري پر غلام قبضه وکړه او هغه يې آزاد کړی نو د غلام ماليت (مال کېدل) ختم سو. او کله چې د غلام ماليت

ختم سو نو ګواکي غلام هلاک سو، او د هلاک سوي غلام قيمت واجبيږي، نو ځکه په دې صورت کي به پر مشتري د غلام قيمت واجبيږي، لکه مغصوب شی چي کله د غاصب سره هلاک سي، نو پر غاصب د هغه قيمت واجبيږي.

او که چيري مشتري دا غلام خرڅ کړي يا يې هبه کړي او موهوب لهٔ ته يې وسپاري، نو په دغو دواړو صورتونو کي د اول بائع اختيار (يعني د هغه د بيع فسخ کولو او مبيع واپس اخيستلو اختيار) ختميږي، د بيع په صورت کي خو د اختيار ختمېدل ښکاره دي (لکه په تېر عبارت کي چي د دې بيان وسو). او د هبې په صورت کي هم د موهوب لهٔ حق (د موهوب شي سره) متعلق سوی دی، او مخکي تېر سوه چي حقُ العبد پر حقُ الشرع مقدم وي، لنهه دا چي د دويم مشتري او د موهوب لهٔ د حق متعلق کېدلو په وجه به بيع فاسد نه فسخ کول کيږي يعني مبيع به اول بائع ته نه واپس کيږي.

والكتابة إلخ: فرمايي چي کتابت او رهن دواړه د بيع په شېر دي، يعني که مشتري په بيع فاسد سره يو غلام رانيسي او قبضه پر وکړي، او بيا مشتري دا غلام مکاتب کړي يا مشتري هغه يو چا ته په رهن کي ورکړي، نو څرنګه چي د مشتري د غلام خرڅولو په صورت کي د اول بائع د "استرداد" (واپس اخيستلو) حق ساقطيږي، همداسي د رهن او کتابت په صورت کي هم د اول بائع د استرداد حق ساقطيږي؛ ځکه چي کتابت او رهن دواړه د بيع په شېر لازم دي، ځکه کله چي مرتهن پر مرهون شي قبضه وکړي نو "رهن" د راهن په حق کي لازميږي او کتابت د مالک (مولی) په حق کي لازميږي. او د کتابت په صورت کي د مکاتب حق د هغه د ذات سره متعلق کيږي او د رهن په صورت کي د مرتهن حق (د مرهون شي سره) سره متعلق کيږي، نو د مرتهن او مکاتب د حق متعلق کېدلو په وجه به بيع فاسد نه فسخ کول کيږي او مبيع به د اول بائع وطرف ته نه واپس کيږي. ها! که چيري مکاتب د "بدل کتابت" له اداء کولو څخه عاجز سي، يا راهن قرض اداء کړي او خپل مرهون شی واپس واخلي، نو د بائع د استرداد حق بيرته راګرځي، ځکه کوم شی چي د "حق الاسترداد" له راګرځېدلو څخه مانع وو "يعني د مبيع سره د بنده حق متعلق کېدل" هغه زائل سو، او کله چي مانع ائل سو نو ځکه د بائع د بيع فسخ کولو او د مبيع واپس اخيستلو حق به واپس راګرځي.

بخلاف الإجارة إلخ: فرمايي چي اجاره د دې (آزادولو، خرڅولو او هبه کولو) په خلاف ده، يعني که څوک په بيع فاسد سره يو شی رانيسي او قبضه پر وکړي، او بيا هغه شی په اجاره ورکړي، نو د هغه د اجارې په وجه د بائع د استرداد حق نه ساقطيږي، بلکي اوس هم بائع ته د بيع فاسد د فسخ کولو او د مبيع واپس اخيستلو اختيار سته؛ ځکه اجاره د عذر په وجه فسخ کول کېدای سي، او فساد ليري

کول یو قوي عذر دی، نو ځکه د دې عذر په وجه به اجاره فسخ کیږي، او کله چې اجاره فسخ سوه نو ځکه اوس بائع بیع فاسد فسخ کولای او مبیع واپس اخیستلای سي.

ولأنها تنعقد إلخ: دویم دلیل دا دی چې اجاره د شي د منافعو پر حصول منعقد کیږي (د شي پر عین نه منعقد کیږي. مثلاً که څوک یو کور یا آس په اجاره [کرایه] واخلي، نو هغه له کور او آس څخه صرف د اوسېدلو او سپرېدلو کار او منفعت اخلي. کور او آس نه اخلي بلکي څه مودت وروسته کور او آس بیرته خپل مالک ته واپس کوي)، او منافع ټوله په یوه وار نه پیدا کیږي (یعني په یوه ځل ټوله نه حاصلیږي) بلکي په کراره. کراره او په لږ. لږ توګه پیدا کیږي. نو د هغوی موافق اجاره هم په کراره، کراره او په لږ، لږ توګه منعقد کیږي. لهذا په کوم وخت کي چې اجاره فسخ کول کیږي او شی واپس اخیستل کیږي نو دا به د هغه منفعت په حق کي له اجارې څخه منع کېدل وي کوم منفعت چې تر دې وروسته پیدا کیږي، او له اجارې څخه د منع کېدلو اختیار هر وخت هغه ته سته (یعني مشتري [مالک] ته هر وخت دا اختیار سته چې شی په اجاره نه ورکړي او له دې څخه منع سي او خپل شی واپس واخلي)، نو ځکه په دې صورت کي به اجاره فسخ کول کیږي او مبیع به د بائع وطرف ته واپس کیږي.

## په بیع فاسد کي د مبیع واپس اخیستلو حکم

قَالَ: وَلَيْسَ لِلْبَائِعِ فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ أَنْ يَأْخُذَ الْمَبِيعَ حَتَّى يَرُدَّ الثَّمَنَ فرمایي: او په بیع فاسد کي بائع ته دا حق نسته چې مبیع واپس واخلي تر دې چې [مشتري ته] ثمن واپس کړي لِأَنَّ الْمَبِيعَ مُقَابَلٌ بِهِ ځکه چې مبیع د هغه [ثمن] په مقابله کي وي فَيَصِيرُ مَحْبُوسًا بِهِ نو ځکه مبیع به د ثمن په عوض کي [د مشتري سره] محبوس پاتیږي كَالرَّهْنِ لکه رهن [یعني لکه په رهن کي چې مرهون شی د مرتهن سره محبوس (بندي) پاتیږي] وَإِنْ مَاتَ الْبَائِعُ فَالْمُشْتَرِي أَحَقُّ بِهِ او که بائع مړ سي نو مشتري د مبیع زیات حقدار دی حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الثَّمَنَ تر دې چې خپل پوره ثمن حاصل کړي [واخلي] لِأَنَّهُ يُقَدَّمُ عَلَيْهِ فِي حَيَاتِهِ ځکه چې مشتري پر بائع د هغه په ژوند کي مخکي وي فَكَذَا عَلَى وَرَثَتِهِ وَغُرَمَائِهِ بَعْدَ وَفَاتِهِ نو همداسي به د بائع تر مرګ وروسته هم د هغه پر وارثانو او قرض غوښتونکو مخکي وي كَالرَّاهِنِ لکه راهن [چې کله مړ سي] ثُمَّ إِنْ كَانَتْ دَرَاهِمُ الثَّمَنِ قَائِمَةً بیا که چیري د ثمن دراهم [بعینه] موجود وي يَأْخُذُهَا بِعَيْنِهَا نو مشتري به بعینه [خاص] هغه اخلي لِأَنَّهَا تَتَعَيَّنُ فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ ځکه چې

دراهم په بيع فاسد کي په مُتعينېدلو سره مُتعين کيږي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا صحيح قول دی لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْغَصْبِ ځکه چي بيع فاسد د غصب په درجه کي ده وَإِنْ كَانَتْ مُسْتَهْلَكَةً او که د ثمن دراهم ضايع سوي وي أَخَذَ مِثْلَهَا نو مشتري به د هغوی مثل اخلي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي مو ږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿محبوس﴾ د ضرب مفعول دی: راګرځول سوی (منع کړی سوی)، بندي، قيدي. ﴿ثمن﴾ هغه رېټ (نرخ) کوم چي يې بائع او مشتري په خپل مينځ کي مُتعين کړي، او ''قيمة'' بازاري رېټ ته وايي (يعني شی چي په بازار کي په کوم رېټ سره خرڅيږي هغه ته قيمت وايي. او پر کوم رېټ چي بائع او مشتري فيصله وکړي هغه ته ثمن وايي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله په بيع فاسد کي بائع وغواړي چي له مشتري څخه مبيع واپس واخلي، نو بائع به اول د مشتري ثمن واپس کوي (يعني بائع چي کوم شی له مشتري څخه د مبيع په عوض کي اخيستی وي. اول به هغه شی مشتري ته واپس کوي). ځکه چي مبيع د ثمن په مقابله کي وي (يعني مشتري د مبيع په مقابله کي بائع ته ثمن ورکړی وي او د ثمن په عوض کي يې پر مبيع قبضه کړې وي)، نو ځکه د ثمن په وجه به هغه راګرځول کيږي، يعني تر څو چي بائع د مبيع عوض واپس نه کړي، تر هغه وخته پوري به بائع ته د مبيع واپس اخيستلو حق نه حاصليږي، لکه څرنګه چي مرهون شی د قرض په مقابله کي وي او د قرض په عوض کي مرتهن هغه راګرځولی وي، يعني تر څو چي راهن قرض اداء کړی نه وي تر هغه وخته پوري مرتهن ته د مرهون شي د راګرځولو حق حاصل وي.

وإن مات إلخ: د دې خلاصه دا ده چي که (د بيع فاسد په صورت کي) بائع مړ سي نو مشتري د مبيع زيات حقدار دی د بائع تر وارثانو او قرض غوښتونکو، او تر څو چي هغه خپل ټوله ثمن (له وارثانو څخه) نه واخلي، تر هغه وخته پوري هغه د مبيع راګرځولو حقدار دی؛ ځکه کله چي مشتري د بائع په ژوند کي د مبيع زيات حقدار وو، نو د بائع تر مرګ وروسته به هم د بائع د وارثانو او قرض غوښتونکو په مقابله کي زيات حقدار وي، لکه څرنګه چي راهن مړ سي نو مرتهن د مرهون شي تر ټولو زيات حقدار وي، يعني تر څو چي خپل ټوله قرض نه واخلي تر هغه وخته پوري مرتهن ته د مرهون شي د راګرځو حق وي، همداسي به مشتري هم د دې حقدار وي.

ثم إن كانت إلخ: فرمايي مشتري چي کوم دراهم يا دنانير (نغدي) بائع ته د بيع په عوض کي ورکړي وي، که چيري هغه د بائع سره موجود وي نو مشتري به خاص (بعينه) هغه اخلي، او که چيري هغه

ضائع سوي وي نو د هغوی مثل به اخلي؛ ځکه چي دراهم او دنانير که څه هم په صحيح عقد کي په متعينولو سره نه متعين کيږي، لېکن په فاسد عقد کي په متعينولو سره متعين کيږي، او په فاسد عقد کي ځکه په متعينولو سره متعين کيږي چي بيع فاسد د غصب په درجه کي ده، يعني پر مبيع د مشتري قبضه د غصب په توګه ده او پر ثمن د بائع قبضه د غصب په توګه ده، نو څرنګه چي د غصب په صورت کي پر غاصب خاص (بعينه) د مغصوب شي واپس کول واجب دي او د مغصوب شي د ضايع کېدلو په صورت کي د هغه مثل واجب دی، همداسي به دراهم يا دنانير هم که د بائع سره موجود وي نو خاص هغه به واپس کوي، او که ضايع سوي وي نو د هغوی مثل به واپس کوي.

**فايده:** صاحب د عنايې ليکلي دي چي په متن کي له ثمن څخه (يعني په "حتی يرد الثمن" کي له ثمن څخه) مراد قيمت دی؛ ځکه په بيع فاسد کښ پر مشتري د مبيع قيمت واجبيږي، ثمن نه واجبيږي (د ثمن او قيمة فرق په لغاتو کي ذکر سو). او علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي له دې څخه مراد هغه شی دی کوم چي مشتري د مبيع په عوض کي بائع ته ورکړی وي، برابره ده هغه نقود (دراهم يا دنانير) وي يا سامان او داسي نور وي، او برابره ده نقود د ثمن په توګه وي يا د قيمت په توګه وي، نو مصنف رَحِمَهُ الله ته داسي ويل پکار وو چي" په بيع فاسد کي بائع ته د مبيع واپس اخيستلو حق نسته تر دې چي بائع هغه شی واپس کړي کوم چي يې د مبيع په عوض کي له مشتري څخه اخيستی وي". (عنايه، فتح القدير)

## په بيع فاسد سره په رانيول سوي کور يا ځمکه کي د ودانۍ جوړولو او د درختو لګولو حکم

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ دَارًا بَيْعًا فَاسِدًا او څوک چي په بيع فاسد سره يو کور رانيسي فَبَنَاهَا الْمُشْتَرِیْ بيا مشتري په هغه کي ودانۍ [نوی ځای] جوړ کړي فَعَلَيْهِ قِيْمَتُهَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر مشتري د هغه کور قيمت واجب دی وَرَوَاهُ يَعْقُوْبُ عَنْهُ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ ثُمَّ شَكَّ بَعْدَ ذٰلِكَ فِي الرِّوَايَةِ او دا روايت له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يعقوب [يعني امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله] په جامع صغير کي نقل کړی دی. وَقَالَا[۞]: يُنْقَضُ الْبِنَاءُ وَتُرَدُّ الدَّارُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي:

---

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في فتح القدير (ج:۶، ص:۱۰۳)، وكذا في الدر المختار (ج:۴، ص:۱۴۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۴۹]

چي [د مشتري جوړه سوې] ودانۍ به ماتول کيږي او کور به بائع ته واپس کيږي وَالْغَرْسُ عَلىٰ هٰذَا الاِخْتِلَافِ او [د درختو او بوټو] شنه کول [لګول] هم پر دغه اختلاف دي لَهُمَا: أَنَّ حَقَّ الشَّفِيعِ أَضْعَفُ مِنْ حَقِّ الْبَائِعِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا اللهُ دليل دا دی: چي د شفيع حق د بائع له حق څخه کمزوری دی حَتّٰى يَحْتَاجُ فِيهِ إِلَى الْقَضَاءِ همدا وجه ده چي شفيع د خپل حق په اخيستلو کي د قاضي قضاء [فيصلې] ته محتاج وي اځيني شارحينو دلته د حتىٰ اصطلاحي ترجمه په "همدا وجه ده" سره کړې ده] وَيَبْطُلُ بِالتَّأْخِيرِ او [همدا وجه ده چي] په تاخير کولو سره [د هغه] حق باطليږي بِخِلَافِ حَقِّ الْبَائِعِ په خلاف د بائع د حق ثُمَّ أَضْعَفُ الْحَقَّيْنِ لَا يَبْطُلُ بِالْبِنَاءِ بيا چي کله په دې دواړو حقونو کي کمزوری حق [يعني د شفيع حق] په ځای [ودانۍ] جوړولو سره نه باطليږي فَأَقْوَاهُمَا أَوْلىٰ نو په هغوی کي قوي حق خو به په درجه اولیٰ نه باطليږي وَلَهُ: أَنَّ الْبِنَاءَ وَالْغَرْسَ مِمَّا يُقْصَدُ بِهِ الدَّوَامُ د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ دليل دا دی: چي ځای [ودانۍ] جوړول او [درختي] شنه کول داسي شی دی چي په هغه سره همېشتوب مقصود وي [يعني څوک چي نوی ځای او ودانۍ جوړوي يا درختي لګوي نو د هغه مقصد دا وي چي دا شيان همېشه پاته وي، او د هغه مقصد د دې شيانو ماتول او کښل نه وي] وَقَدْ حَصَلَ بِتَسْلِيطٍ مِنْ جِهَةِ الْبَائِعِ او دا [بناء او غرس] د بائع له طرفه د قدرت ورکولو په ذريعه حاصل سوي دي فَيَنْقَطِعُ حَقُّ الاِسْتِرْدَادِ نو ځکه [د بائع] د واپسۍ حق به ختميږي كَالْبَيْعِ لکه [د مشتري] په خرڅولو سره [چي د بائع د واپسۍ حق ختميږي] بِخِلَافِ حَقِّ الشَّفِيعِ په خلاف د شفيع د حق لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدْ مِنْهُ التَّسْلِيطُ ځکه چي [هلته] د شفيع له طرفه "قدرت ورکول" نه دي موجود سوي وَلِهٰذَا لَا يَبْطُلُ بِهِبَةِ الْمُشْتَرِيْ وَبَيْعِهِ او له همدې کبله د مشتري په هبه کولو او خرڅولو سره د شفيع حق نه باطليږي فَكَذَا بِبِنَائِهِ نو همداسي به د مشتري په ځای جوړولو سره هم نه باطليږي وَشَكَّ يَعْقُوبُ فِي حِفْظِهِ الرِّوَايَةَ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او امام ابو يوسف له امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ څخه د خپل روايت په يادولو کي شک کړی دی [چي آيا ما دا روايت له امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ څخه اورېدلی دی. که نه؟] وَقَدْ نَصَّ مُحَمَّدٌ عَلَى الاِخْتِلَافِ فِيْ كِتَابِ الشُّفْعَةِ حال دا

چي امام محمد رَحِمَهُ الله په کتاب الشفعه کي د اختلاف تصريح کړې ده فَإِنَّ حَقَّ الشُّفْعَةِ مَبْنِيٌّ عَلَىٰ انْقِطَاعِ حَقِّ الْبَائِعِ بِالْبِنَاءِ ځکه چي د شفعي حق [يعني د شفيع حق] په ځای جوړولو سره د بائع د حق پر ختمېدلو مبني دی وَثُبُوتُهُ عَلَى الِاخْتِلَافِ او د شفعي د حق په ثابتېدلو کي اختلاف دی.

**اللغات**: ﴿بناها﴾ د ضرب ماضي ده: ځای جوړول، تعميرول. ﴿ينقض﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: ماتول (نړول). ﴿البناء﴾ جوړ سوی ځای، وداني، عمارت. ﴿الغرس﴾ غَرَسَ يَغْرِسُ غَرْسًا: درخته او بوټی. شنه کول (لګول)، په ځمکه کي نيالګی ايښول (لګول). الغرس: لګول سوې درخته او بوټی، (نيالګی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک په بيع سره يو کور او مکان رانيسي او په هغه کي نوی ځای (وداني) جوړه کړي (يعني خوني يا داسي بله وداني پکښي جوړه کړي)، يا په بيع فاسد سره په رانيول سوې ځمکه کي درختي شنې کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د بائع د استرداد حق نه ساقطيږي بلکي پر مشتري خپل نوی ځای (وداني) نړول او کور واپس کول او خپلي درختي کښل او ځمکه واپس کول واجب دي، صاحب د هدايې فرمايي چي د امام د صاحب رَحِمَهُ الله دا روايت په جامع صغير کي امام محمد له امام ابو يوسف څخه او امام ابو يوسف له امام صاحب څخه نقل کړی دی، لېکن تر دې وروسته امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په خپل روايت کي شکمن وو چي آيا ما دا روايت له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه اورېدلی دی، که نه؟ خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب همدغه دی چي بائع مبيع واپس نه سي اخيستلای بلکي پر مشتري د هغه قيمت واجب دی، يعني که څه امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ته په خپل روايت کولو کې شک دی لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په دې مذهب کي شک نسته.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي که څوک کور او ځمکه رانيسي په هغه کي نوی ځای (وداني) جوړه کړي يا ځمکه رانيسي په هغه کي درختي ولګوي، او په دې کور يا ځمکه کي يو څوک د شفعي حق لري، نو د مشتري په جوړولو او درختو لګولو سره د شفيع حق نه ساقطيږي، بلکي پر مشتري خپل ځای نړول او درختي کښل او د شفيع حق يعني کور يا ځمکه هغه ته واپس کول واجب دي، حال دا چي د شفيع حق د بائع د استرداد له حق څخه کمزوری دی، ځکه چي شفيع د خپل حق په اخيستلو کي د قاضي فيصلې يا د مشتري رضا ته مجبور وي، همدا ډول که شفيع د خپل حق په مطالبه کولو کي تاخير وکړي نو د هغه حق باطليږي، او که شفيع مړ سي نو د شفعي حق د هغه د وارثانو لپاره نه.

ثابتیږي، د دې په خلاف په بیع کي د بائع د استرداد حق نه د قاضي پر حکم موقوف وي او نه د مشتري پر رضا موقوف وي، او د مبیع واپس کولو په مطالبه کي په تاخیر کولو سره هم د بائع حق باطلیږي، او که بائع مړ سي نو د هغه دا حق د وارثانو لپاره ثابتیږي، نو کله چي د شفیع دغه کمزوری حق د مشتري په ځای جوړولو او درختو لګولو سره نه باطلیږي بلکي پر مشتري ځای نړول او درختي کښل او شفیع ته مبیع سپارل واجبیږي. نو د بائع دا قوي حق (حق الاسترداد) به په درجه اولیٰ د ځای او درختو په وجه نه باطلیږي بلکي په دې صورت کي به پر مشتري په درجه اولیٰ واجب وي چي خپل ځای ونړوي، درختي وکاږي او مبیع بائع ته واپس کړي.

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چي په ځای جوړولو او درختي لګولو سره د مشتري مقصود د هغوی باقي ساتل او همېشه پاتېدل وي، او د هغوی نړول او کښل یې مقصود نه وي، او مشتري ته د ځای جوړولو او درختي لګولو قدرت هم بائع ورکړی دی په دې ته چي مشتري د بائع په اجازت سره پر مبیع قبضه کړې ده، او د مشتري هر هغه تصرف کوم چي د بائع په قدرت ورکولو سره حاصل سوی وي د هغه په وجه د بائع حق الاسترداد (د مبیع واپس اخیستلو حق) ساقطیږي، لکه کله چي مشتري پر بل چا مبیع خرڅه کړي یا یې هغه ته هبه کړي، نو د بائع حق الاسترداد ساقطیږي، همداسي به په مبیع کور کي د مشتري په ځای جوړولو سره او په مبیع ځمکه د درختو په لګولو سره د بائع حق الاسترداد ساقطیږي.

بخلاف حق الشفیع إلخ: ها! د مشتري په ځای جوړولو او درختي لګولو سره ځکه د شفیع حق نه باطلیږي (که څه هم د شفیع حق د بائع له حق څخه کمزوری دی. د دې وجه دا ده) چي د شفیع له طرفه مشتري ته د تصرف کولو هیڅ قدرت نه دی حاصل سوی، او کله چي د شفیع له طرف مشتري ته د تصرف کولو هیڅ قدرت حاصل نه دی، نو د مشتري په تصرف کولو سره به د شفیع د شفعي حق هم نه باطلیږي. او کله چي د شفیع حق نه باطلیږي نو ځای (ودانې) او درختي به له منځه ایستل کیږي او د شفیع حق به ورکول کیږي. او څرنګه چي د مشتري په تصرف کولو سره د شفیع حق نه باطلیږي نو په همدې وجه که مشتري مبیع ځمکه هبه کړي او موهوب لهٗ ته یې وسپاري یا یې خرڅه کړي نو د شفیع حق نه باطلیږي بلکي د هبې په صورت کي به شفیع موهوبه ځمکه له موهوب لهٗ څخه اخلي او د بیع صورت کي به هغه له دویم مشتري څخه اخلي، نو څرنګه چي د هبې او بیع په وجه د شفیع حق نه باطلیږي، همداسي به په ځای جوړولو او درختي لګولو سره هم د شفیع حق نه باطلیږي.

وشك يعقوب إلخ: صاحب د هدايې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د شک کولو وضاحت کوي فرمايي چې د شک کولو مطلب دا دی چې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ته په دې خبره کې شک وو چې ما دا روايت له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه اورېدلی دی، که نه؟، او د هغه په دې مذهب کې هيڅ شک نسته، د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلکٌ خو په يقيني توګه همدا دی کوم چې بيان سو چې که مشتري يو ځمکه رانيسي او په هغه کې ځای جوړ کړي يا درختي ولګوي نو په دې سره د بائع د استرداد حق ساقطيږي او پر مشتري د ځمکي قيمت واجبيږي.

او دليل پر دې خبره "چې دغه مذکور حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دی" هغه اختلاف دی کوم چې امام محمد رَحِمَهُ الله په کتاب الشفعه کې بيان کړی دی، او هغه دا دی چې که څوک په بيع فاسد سره ځمکه رانيسي او په هغه کې نوی ځای او وداني جوړه کړي يا درختي پکښې ولګوي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دې ځمکه کې شفيع ته د شفعي حق حاصليږي او ثابتيږي، يعني شفيع ته دا حق سته چې د قاضي وطرف ته رجوع وکړي، د شفعي دعویٰ وکړي او دا مشفوعه ځمکه واخلي، او پر مشتري واجب دي چې هغه خپل ځای ونړوي او درختي وکاږي او دا ځمکه شفيع ته حواله کړي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کې شفيع ته هيڅ د شفعي حق نه حاصليږي، د امام صاحب او صاحبينو په مينځ کې دغه اختلاف په اصل کې پر هغه اختلاف مبني دی چې د مشتري په ځای جوړولو او درختي لګولو سره د بائع د استرداد حق ساقطيږي او که نه؟ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د بائع د استرداد حق (د مبيع واپس اخيستلو حق) ساقطيږي، ځکه چې د هغه په نېز د شفيع لپاره د شفعي حق ثابتيږي، او حق الاسترداد او حق الشفعه دواړه نه سي سره جمع کېدای، يعني دا نه سي کېدای چې د شفيع لپاره دي حق شفعه هم ثابت وي او د بائع د استرداد حق دي هم باقي پاته وي، نو ځکه په دې مسئله کې د شفيع لپاره حق الشفعه ثابتېدل د دې خبري دليل دی چې د بائع د استرداد حق ساقطيږي، او کله چې د بائع حق الاسترداد ساقطيږي نو بائع به له مشتري څخه د مبيع قيمت اخلي، نه ثمن؛ ځکه چې د بيع فاسد په صورت کې پر مشتريٌ د مبيع قيمت واجبيږي، ثمن نه واجبيږي. لنډه دا چې له دغه تفصيل څخه معلومه سوه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب همدا دیٓ چې د مشتري د ځای جوړولو او درختي لګولو په وجه د بائع حق الاسترداد ساقط سي او پر مشتري د مبيع قيمت واجب سي، او څرنګه چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې مسئله

کي د شفیع لپاره حق الشفعه نه ثابتیږي، نو معلومه سوه چي د هغوی په نېز د بائع حق الاسترداد هم نه ختمیږي (ځکه چي اوس د حق الاسترداد او حق الشفعه اجتماع نه لازمیږي)، نو ځکه پر مشتري واجب دي چي خپل ځای (ودانی) ونړوي او درختي وکاږي او مبیع بائع ته وسپاري.

## په بیع فاسد سره د رانیول سوي مینځي پر خرڅولو د حاصل شده نفع حکم

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى جَارِيَةً بَيْعًا فَاسِدًا فرمايي: او څوک چي په بیع فاسد سره مینځه رانیسي وَتَقَابَضَا او بائع او مشتري دواړه قبضه [هم] وکړي فَبَاعَهَا وَرَبِحَ فِيهَا بیا مشتري هغه خرڅه کړي او په هغې سره نفع حاصله کړي [یعني د هغې په بیع کي ګټه وکړي] تَصَدَّقَ بِالرِّبْحِ نو مشتري دي نفع [ګټه] صدقه کړي [یعني دا نفع د مشتري لپاره حرامه ده او پر هغه د دې صدقه کول واجب دي] وَيَطِيْبُ لِلْبَائِعِ مَا رَبِحَ فِي الثَّمَنِ او [اول] بائع چي په ثمن سره کومه نفع حاصله کړې وي هغه د ده لپاره حلال ده وَالْفَرْقُ أَنَّ الْجَارِيَةَ مِمَّا يَتَعَيَّنُ او [په دواړو کي] فرق دا دی چي مینځه له هغو شیانو څخه ده کوم چي [په مُتعینولو سره] مُتعین کیږي فَيَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ بِهَا نو ځکه عقد [بیع] به د هغې د ذات سره متعلق وي فَيَتَمَكَّنُ الْخُبْثُ فِي الرِّبْحِ نو په نفع کي به خبث ځای ونیسي [یعني أثر او سرایت به پکښي وکړي] وَالدَّرَاهِمُ وَالدَّنَانِيرُ لَا تَتَعَيَّنَانِ عَلَى الْعُقُودِ او [څرنګه چي] دراهم او دنانیر په عقودو کي [په مُتعینولو سره] نه مُتعین کیږي فَلَمْ يَتَعَلَّقِ الْعَقْدُ الثَّانِي بِعَيْنِهَا نو ځکه دویم عقد به د هغوی د ذات سره متعلق نه وي فَلَمْ يَتَمَكَّنِ الْخُبْثُ نو خبث به ځای نه [پکښي] ونیسي فَلَا يَجِبُ التَّصَدُّقُ نو ځکه [د دراهم او دنانیرو د نفع] صدقه کول به واجب نه وي وَهٰذَا فِي الْخُبْثِ الَّذِي سَبَبُهُ فَسَادُ الْمِلْكِ او دا فرق په هغه خبث کي دی چي د هغه سبب د ملکیت فاسدېدل وي [یعني چي هغه د ملکیت فاسدېدلو په وجه پیدا سوی وي] أَمَّا الْخُبْثُ لِعَدَمِ الْمِلْكِ او پاته سو هغه خبث کوم چي د ملکیت د نشتوالي په وجه [پیدا سوی] وي فَعِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ يَشْمَلُ النَّوْعَيْنِ نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه دواړو قسمونو ته شاملیږي لِتَعَلُّقِ الْعَقْدِ فِيمَا يَتَعَيَّنُ حَقِيقَةً ځکه چي د عقد تعلق د مُتعینو شیانو [یعني د مینځي او داسي نورو] سره حقیقتًا وي وَفِيمَا لَا يَتَعَيَّنُ شُبْهَةً او د غیر مُتعینو شیانو [دراهم او دنانیرو] سره

شبهة وي مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ يَتَعَلَّقُ بِهِ سَلَامَةُ الْمَبِيعِ أَوْ تَقْدِيرُ الثَّمَنِ په دې اعتبار چې د هغوی [دراهمو] سره د مبيع سلامتي يا د ثمن اندازه كول متعلق وي وَعِنْدَ فَسَادِ الْمِلْكِ تَنْقَلِبُ الْحَقِيقَةُ شُبْهَةً او د ملكيت فاسدېدلو په وخت كې حقيقت په شبهې سره بدلېږي وَالشُّبْهَةُ تَنْزِلُ إِلَى شُبْهَةِ الشُّبْهَةِ او شبهه د شبهة الشبهه و درجې ته راكښته كېږي [لاندې كېږي] وَالشُّبْهَةُ هِيَ الْمُعْتَبَرَةُ دُونَ النَّازِلِ عَنْهَا او [په شريعت كې صرف] شبهه معتبر ده، نه هغه كوم چې له شبهې څخه لاندې وي [يعني شبهة الشبهه معتبر نه ده].

**اللغات**: ﴿تقابضا﴾ د تفاعل مضارع ده: يو د بل قبضه سره كول. (يو تر بله قبضه سره كول يعني پر مبيع د مشتري قبضه كول او پر ثمن د بائع قبضه كول). ﴿ربح﴾ نفع، ګټه. ﴿يطيب﴾ د ضرب مضارع ده: حلال كېدل، پاكېدل. ﴿خبث﴾ بدي، خرابي، نجاست. (مراد ځنې د حرمت [حرام كېدلو] بدي او خرابي ده) ﴿تنقلب﴾ د انفعال مضارع ده: بدلېدل، اوښتل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه يو څوک په بيع فاسد سره مينځه رانيسي او پر مينځې قبضه وكړي او بائع پر ثمن قبضه وكړي، بيا مشتري مينځه خرڅه كړي او په هغې سره نفع (ګټه) حاصله كړي، نو پر مشتري د نفع مقدار صدقه كول واجب دي (يعني حاصله سوې نفع د مشتري لپاره حرامه ده او د هغه صدقه كول واجب دي)، لېكن كه بائع د دې مينځې په ثمن سره يو شی رانيسي او په هغه سره نفع حاصله كړي، نو د بائع لپاره دا نفع جائز ده او د هغه صدقه كول واجب نه دي.

په دې دوو صورتونو كې د فرق له وضاحت څخه مخكې تاسو په دې ځان پوه كړئ! چې مالونه (اموال) پر دوه قسمه دي: ①... يو هغه مالونه دي كوم چې په عقد كې په مُتعيّنولو سره مُتعيّن كېږي لكه له دراهم او دنانيرو څخه بغير نور شيان كپړه، مينځه او داسې نور، نو كه يو څوک معلومه (متعينه) مينځه رانيسي يا يو معلومه كپړه رانيسي، نو د بائع لپاره د هغه پر ځاى د بلې مينځې او كپړې وركول جائز نه دي (يعني د بائع لپاره دا جائز نه دي چې له هغه څخه بغير مشتري ته بله مينځه او كپړه وركړي. ځكه چې دا شيان په مُتعيّنولو سره مُتعيّن كېږي)، ②... دويم قسم هغه مالونه دي كوم چې په عقد كې په مُتعيّنولو سره نه مُتعيّن كېږي، لكه دراهم او دنانير. نو كه مشتري د مُتعيّنو (معلومو) دراهمو په عوض كې يو شی رانيسي، نو مشتري ته دا اختيار سته چې د هغه پر ځاى بائع ته نور دراهم وركړي، او بائع ته د انكار كولو اختيار نسته (يعني له دې څخه انكار نه سي كولاى چې زه دا نور دراهم نه غواړم) بلكې هغه به د دې دراهمو پر اخيستلو مجبورول كېږي. دا مذهب له احنافو څخه د ائمه ثلاثه وو دی

يعني د امام صاحب، امام ابو يوسف او امام محمد رَحِمَهُمُ الله ، کښې د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز دراهم او دنانير هم په مُتعيّنولو سره مُتعيّن کيږي، نو که مشتري د مُتعيّنو دراهمو په عوض کې شی رانيسي او د هغه پر ځای بائع ته نور دراهم ورکړي، نو د دې حضراتو په نېز بائع د هغه له اخيستلو څخه انکار کولای سي، او که چيرې هغه مُتعيّن دراهم هلاک سي نو د دوی په نېز بيع باطليږي، لکه د مُتعيّنه مبيع د هلاکېدلو په صورت کې چې بيع باطليږي، لېکن د ائمه ثلاثه وو په نېز د مُتعيّنو دراهمو په هلاکېدلو سره بيع نه باطليږي،

او دا خبره هم په ياد لرئ! چې خبث هم پر دوه قسمه دی: ① ... يو هغه خبث دی کوم چې د "فسادُالملک" په وجه وي، يعني "د ملکيت فاسدېدلو" په وجه پيدا سوی وي، مثلاً په بيع فاسد سره د يو شي مالک کېدل، ② ... دويم هغه خبث دی کوم چې د "عدم الملک" په وجه وي، يعني "د ملکيت د نشتوالي" په وجه پيدا سوی وي، مثلاً د مغصوب شي ملکيت. اول خبث په هغه شيانو کې مؤثر کيږي کوم چې په مُتعيّنولو سره مُتعيّن کيږي (يعني هغه حرام ګرځوي)، لېکن په هغه شيانو کې نه مؤثر کيږي کوم چې په مُتعيّنولو سره نه مُتعيّن کيږي (يعني د فسادُالملک والا خبث په "ما يتعين" کې مؤثر کيږي، لېکن په "ما لا يتعين" کې نه مؤثر کيږي). او دويم خبث په دواړو کې مؤثر کيږي. (عنايه)

اوس د دواړو صورتونو فرق ته ګورئ! فرق يې دا دی چې مينځه داسې شی ده کوم چې په مُتعيّنولو سره مُتعيّنه کيږي، او کله چې مينځه مُتعيّنه ده نو دويم عقد (يعني کله چې يې مشتري تر رانيولو وروسته خرڅه کړي، دغه عقد) به د هغې د ذات سره متعلق وي، او دا مينځه د بيع فاسد په ذريعه د مشتري په ملکيت کې راغلې ده (يعني د مشتري ملکيت "فاسد ملکيت" (ملک فاسد) دی)، نو په هغې سره نفع حاصلول په ملک فاسد سره نفع حاصلول دي، او کومه نفع چې په ملک فاسد سره حاصليږي په هغه کې خبث (يعني د حرام کېدلو بدي او نجاست) مؤثر کيږي، او په کوم شي کې چې خبث پيدا سي د هغه صدقه کول واجب دي او د هغه استعمالول حلال نه دي، نو ځکه مشتري چې د مينځې په خرڅولو سره کومه نفع حاصله کړې ده د هغه صدقه کول پر مشتري واجب دي. او څرنګه چې دراهم او دنانير زموږ په نېز په مُتعيّنولو سره نه مُتعيّن کيږي، نو ځکه دويم عقد به د هغه دراهمو د ذات سره متعلق نه وي کوم دراهم چې د مينځې په عوض کې بائع ته حاصل سوي دي، لهذا بائع چې په هغوی سره کوم شی رانيولی وي د هغه دا رنيول به د هغه دراهمو د ذات سره متعلق نه وي، ځکه چې دراهم او دنانير د مُتعيّنولو باوجود نه مُتعيّن کيږي، او کله چې دا عقد يعني د بائع رانيول د هغه دراهمو د ذات سره متعلق نه سو کوم چې بائع ته د مينځې په عوض کې حاصل سوي دي، نو د دې عقد په وجه چې

کومه نفع حاصله سي په هغه کي به خبث هم نه وي، او کله چي په هغه نفع کي خبث نسته، نو صدقه کول به يې واجب هم نه وي.

**وهذا في الخبث الذي إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چي د "ما يتعيّن" او "ما لا يتعين" په مينځ کي فرق (يعني کوم شيان چي په متعيّنولو سره مُتعين کيږي او کوم چي نه مُتعين کيږي د هغوی په مينځ کي) فرق په هغه خبث کي دی کوم چي د ملکيت فاسدېدلو (فساد الملک) په وجه وي، يعني که د فساد الملک په وجه په "ما يتعيّن" کي خبث پيدا سي نو هغه حلال نه دی (يعني نفع يې حلال نه ده) بلکي د هغه صدقه کول واجب دي، او که په "ما لا يتعيّن" کي د فساد الملک په وجه خبث پيدا سي نو هغه حلال دی او د هغه صدقه کول واجب نه دي، لکه مخکي چي تفصيل تېر سو.

لېکن که په نفع کي د عدم الملک (د ملکيت د نشتوالي) په وجه خبث پيدا سي، مثلاً يو سړی مينځه غصب کړي او مالک ته د هغې ضمان ورکړي، بيا يې خرڅه کړي او نفع حاصله کړي، يا مثلاً دراهم غصب کړي او مالک ته د هغه دراهمو ضمان ورکړي، بيا په هغوی سره يو شی رانيسي، خرڅ يې کړي او نفع حاصله کړي، نو د طرفينو په نېز په دواړو صورتونو کي دا نفع د غاصب لپاره حرامه ده او د هغې صدقه کول واجب دي، ځکه کله چي د عدم الملک په وجه خبث پيدا سي نو هغه په "ما يتعيّن" او "ما لا يتعيّن" دواړو کي مؤثر کيږي. لېکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا نفع د غاصب لپاره حلال ده.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي کله غاصب و مالک ته د مغصوب شي ضمان ورکړی نو هغه د شي مالک سو، لهذا هغه له خپل مملوک شي څخه نفع حاصله کړې ده، نه له غير مملوک شي څخه، او له خپل مملوک شي څخه نفع اخيستل جائز دي، نو ځکه به دا نفع د غاصب لپاره حلاله وي او صدقه کول به يې واجب نه وي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چي عقد د "ما يتعيّن" سره متعلق کيږي، يعني کله چي مينځه غصب کړي او خرڅه يې کړي، نو دا عقد (خرڅول) د همدې مغصوبه مينځي سره متعلق کيږي؛ ځکه چي د بائع لپاره د دې مينځي پر ځای بله مينځه ورکول جائز نه دي. او کله چي عقد حقيقتاً د مغصوبه مينځي سره متعلق دی، نو په دې عقد سره چي کومه نفع حاصله سي په هغه کي به هم حقيقتاً خبث وي، او څرنګه چي حقيقتاً خبث حلال نه دی، نو ځکه د هغه نفع صدقه کول به واجب وي. او د "ما لا يتعين" سره د عقد تعلق شبهة وي. يعني کله چي څوک دراهم غصب کړي او په هغوی سره يو شی رانيسي، نو دا رانيول د هغه دراهمو سره شبهة متعلق کيږي، ځکه کله چي په مغصوبه دراهمو سره يو شی رانيسي نو د دې دوه صورتونه دي، يا خو غاصب

په همدغه مغصوبه دراهم ثمن ګرځولی وي (یعني خاص په مغصوبه دراهمو به یې شی رانیولی وي)، یا به یې د مغصوبه دراهمو وطرف ته اشاره کړې وي (یعني په هغومره دراهمو به یې شی رانیولی وي) او د مغصوبه دراهمو پر ځای به یې نور دراهم ورکړي وي، په اول صورت کې د مغصوبه دراهمو سره د مبیع سلامتیا متعلق ده (یعني په اول صورت کې خاص په مغصوبه دراهمو سره مبیع د غاصب په ملکیت کې راغلې ده او د بل چا ملکیت ته تللې نه ده بلکې صحیح سالمه ده)، ځکه کله چې مغصوبه دراهم په ثمن کې ورکول سي نو خاص د هغوی په وجه به مبیع د غاصب لپاره سلامت پاته وي (یعني مبیع به د بائع وي، د بل چا به نه وي)، لهذا کله چې مغصوبه دراهم د مبیع د سلامتیا سبب وګرځېدل، نو اوس د هغوی سره که څه هم عقد حقیقتاً متعلق نه دی (ځکه چې دراهم او دنانیر په مُتعیّنولو سره نه مُتعیّن کیږي) لېکن څرنګه چې هغوی د مبیع د سلامتیا ذریعه ده نو ځکه د هغوی سره به شبهة خامخا عقد متعلق وي (یعني د هغوی سره به د عقد تعلق شبهةً خامخا وي). او په دویم صورت کې (یعني کله چې غاصب د مغصوبه دراهمو وطرف ته اشاره کړې وي، په دې صورت کې) د مغصوبه دراهمو سره د ثمن تقدیر او اندازه متعلق ده. یعني په دویم صورت کې که څه هم غاصب خاص مغصوبه دراهم نه دي ورکړي خو په هغوی سره یې ثمن اندازه کړی دی، ځکه چې (داشاره کولو په وخت کې) د ثمن د جنس، وصف او مقدار بیانولو ته ضرورت وي، او دا ټوله شیان مغصوبه دراهمو ته د اشاره کولو په ذریعه معلوم سوي دي، نو ځکه د مغصوبه دراهمو سره به عقد شبهة متعلق وي، لنډه دا چې په یو صورت کې دغه مغصوبه دراهم د مبیع د سلامتیا سبب دي او په بل صورت کې دا دراهم د ثمن د تقدیر سبب دي، او د سبب سره د شي تعلق که څه هم حقیقتاً نه وي، مګر شبهة خامخا وي. لهذا کله چې د عقد تعلق د دراهمو سره شبهة دی، نو په دې عقد سره چې کومه نفع حاصله سي په هغه کې خبث به هم شبهة وي، او څرنګه چې حقیقتاً خبث او شبهة خبث دواړه حلال نه دي، نو ځکه د دواړو صدقه کول واجب دي، او د دې دواړو د نه حلال والي دلیل دا حدیث دی: "أنّ النبيّ ﷺ نهی عن الربوا والریبة" یعني نبي کریم ﷺ له "ربوا" او "شبهةُ الربوا" دواړو څخه منع کړې ده.

وعند فساد الملك إلخ: دا د یو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چې څرنګه د "عدم الملک" والا د خبث په صورت کې تاسو په "مایتعیّن" او "ما لایتعیّن" دواړو کې نفع حرامه ګڼی او د هغه صدقه کول واجب ګرځوی. همداسې د "فسادُ الملک" والا د خبث په صورت کې هم تاسو ته پکار دي چې په دواړو ځایونو کې نفع حرامه کړئ! او د هغه صدقه کول واجب وګرځوئ!. حال دا چې په دې صورت کې تاسي په "ما لا یتعیّن" کې نفع جائز ګڼی او د هغه صدقه کول نه واجبوی، آخر د دې فرق وجه څه ده؟

نو د دې په جواب کې فرمایي چې د فسادُ الملک په صورت کې که څه هم ملکیت فاسد وي، مګر هلته نفع د بل چا په مال سره نه حاصلیږي بلکې په خپل مال سره حاصلیږي، نو ځکه هلته به په "مایتعیّن" کې حقیقتاً خبث په شبهة خبث سره بدلیږي، او په "ما لا یتعیّن" کې به شبهةُ الخبث

په شبهه شبهة الخبث سره بدليږي، حاصل دا چي د فساد الملک په صورت کي به په "ما يتعين" کي شبهة الخبث پيدا سي، او په "ما لا يتعين" کي به شبهه شبهة الخبث پيدا سي (ځکه که څه هم مخکي موږ وويل چي د فساد الملک والا خبث په "ما لا يتعين" کي نه مؤثر کيږي. خو بيا هم د هغه په وجه په "ما لا يتعين" کي شبهه شبهة الخبث خامخا پيدا کيږي)، او په شريعت کي صرف شبهة الخبث معتبر ده لېکن تر هغه لاندي شبهه يعني شبهه شبهة الخبث معتبر نه ده (يعني په شريعت کي له شبهه څخه د ځان ساتلو حکم سوی دی، او له شبهة الشبهه څخه د ځان ساتلو حکم نه دی سوی، کنې د تجارت او کاروبار دورازه به بالکل بنده سي)، نو ځکه د فساد الملک والا د خبث په صورت کي په "ما يتعين" کي د نفع صدقه کول واجب دي، لېکن په "ما لا يتعين" کي د نفع صدقه کول واجب نه دي.

## د درواغو په دعوې سره د حاصل کړده مال د منافعو حکم

قَالَ: وَكَذٰلِكَ إِذَا ادَّعٰى عَلٰى آخَرَ مَالًا فرمايي: او همدارنګه که څوک په بل چا د مال [دراهمو] دعوىٰ وکړي فَقَضَاهُ إِيَّاهُ او مدعىٰ عليه هغه مال اداء کړي ثُمَّ تَصَادَقَا أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ شَيْءٌ بيا دواړه رښتيا سره ووايي [يعني يو د بل تصديق وکړي] چي پر مدعىٰ عليه هيڅ مال نه وو وَقَدْ رَبِحَ الْمُدَّعِيْ فِي الدَّرَاهِمِ حال دا چي مدعي په هغه دراهمو سره نفع حاصله کړې وي يَطِيْبُ لَهُ الرِّبْحُ نو د مدعي لپاره نفع حلال ده لِأَنَّ الْخُبْثَ لِفَسَادِ الْمِلْكِ هٰهُنَا ځکه چي دلته خبث د ملکيت فاسدېدلو په وجه دی لِأَنَّ الدَّيْنَ وَجَبَ بِالتَّسْمِيَةِ ځکه چي قرض [د مدعي] په دعوىٰ کولو سره واجب سو دی ثُمَّ اُسْتُحِقَّ بِالتَّصَادُقِ بيا د دواړو په تصديق سره دا قرض مستحق سو [يعني کله چي دوی يو د بل تصديق وکړی نو دا قرض داسي سو لکه يو څوک چي د هغه د استحقاق دعوىٰ وکړي چي دا قرض (مال) زما دی] وَبَدَلُ الْمُسْتَحَقِّ مَمْلُوْكٌ او د دې مستحق قرض بدل مملوک دی [يعني بدل يې د مدعي په ملکيت کي دی] فَلَا يَعْمَلُ فِيْمَا لَا يَتَعَيَّنُ نو ځکه خبث به په غير مُتعيّن [دراهمو] کي عمل [اثر] نه کوي.

**اللغات**: ﴿ادّعٰی﴾ دعوىٰ کول، ﴿قضٰی﴾ د ضرب ماضي ده: اداء کول، ﴿تصادقا﴾ د تفاعل مضارع ده: يو بل ته رښتيا ويل (يو تر بله رښتيا سره ويل)، پر يو خبره اتفاق کول.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که زيد پر خالد (مثلاً) د پنځه سوه روپو دعوىٰ وکړي چي ما پر تا پنځه سوه روپۍ قرض باندي دی، لهذا ته ما ته پنځه سوه روپۍ راکړه!، او خالد د هغه دعوىٰ

تصديق وکړي او پنځه سوه روپۍ ورکړي، بيا وروسته معلومه سي چي پر خالد (مدعیٰ عليه) د زيد هيڅ قرض نسته او دوی دواړه پر دې خبره متفق سي چي پر خالد هيڅ قرض واجب نه دی، حال دا چي په دې لږ مودت کي زيد د خالد په پنځه سوه روپو سره ګټه وکړي يعني نفع په حاصله کړي، نو دا نفع د خالد لپاره حلال ده او د هغې صدقه کول واجب نه دي؛ ځکه چي دلته خبث د ملکيت فاسدېدلو (فساد الملک) په وجه دی، او خبث ځکه د ملکيت فاسدېدلو په وجه دی چي کله مدعی عليه (خالد) اول د مدعي (زيد) د دعویٰ تصديق وکړی او هغه ته يې پنځه سوه روپۍ ورکړې، نو دا پنځه سوه روپۍ د قرض بدل سو؛ ځکه چي قرض "ما وجب في الذمه" ته وايي (يعني قرض [دَين] هغه حق ته وايي کوم چي د مقروض [مديون] پر ذمه واجب وي) نو کوم مال چي مقروض اداء کوي هغه د قرض بدل وي، لنډه دا چي دا پنځه سوه روپۍ د قرض بدل سو، لېکن بيا چي کله مدعي او مدعیٰ عليه (زيد او خالد) يو د بل تصديق وکړی يعني پر دې خبره يې اتفاق وکړی چي پر مدعیٰ عليه (زيد) هيڅ قرض واجب نه دی، نو اوس ګواکي دا قرض مستحق سو يعني دا سي سو لکه يو څوک چي د هغه د استحقاق دعویٰ وکړي (چي دا پنځه سوه روپۍ خو زما دي او هغه خپله دعویٰ ثابته هم کړي، لنډه دا چي دا قرض د مدعیٰ عليه مستحق سو) او کله چي دا قرض مستحق ثابت سو، نو د دې قرض په بدل يعني (د خالد) په پنځه سوه روپۍ کي د مدعي (زيد) ملکيت هم فاسد سو (حاصل دا چي که څه هم دا پنځه سوه روپۍ [د نفع کولو پر موقع] د زيد په ملکيت کي دي خو په هغوی کي د زيد ملکيت فاسد [ملک فاسد] دی) او په فاسد ملکيت سره چي کومه نفع حاصله سي په هغه کي خبث وي، نو مدعي (زيد) چي په پنځه سوه روپو سره کومه نفع حاصله کړې ده، هغه خبث ده او صدقه کول يې واجب دي لېکن څرنګه چي روپۍ يعني دراهم په مُتعيّنولو سره نه مُتعيّن کيږي نو ځکه په هغوی کي به خبث نه مؤثر کيږي، ځکه کوم خبث چي د فساد الملک (ملکيت فاسدېدلو) په وجه پيدا سوی وي هغه په "ما لا يتعين" کي (يعني په روپو [دراهمو] کي) نه مؤثر کيږي، لهذا کله چي دلته په نفع کي خبث مؤثر نه سو، نو ځکه هغه به د مدعي لپاره حلاله وي او صدقه کول به يې واجب نه وي.

احقر حبيب الرحمٰن مدني

عفی الله عنه وعن والديه



# فَصْلٌ فِيْمَا يُكْرَهُ

(دا) باب د خيار عيب (د احكامو په بيان كې) دى

**تشريح**: د مكروه درجه له فاسد څخه كمه ده، لېكن هغه د فاسد يو قسم او حصه ده، نو ځكه صاحب د كتاب د بيع فاسد له بيان څخه وروسته اوس مكروه بيع بيانوي.

مكروه: له "كَرِهَ يَكْرَهُ" (سمع) څخه د اسم مفعول صيغه ده چې د هغه معنىٰ ده: نا خوښه شي، او د شريعت په اصطلاح كې مكروه "ما هو راجح الترک" ته وايي (يعني هغه كار چې نه كول يې غوره وي تر كولو).

د مكروه او فاسد په مېنځ كې فرق دا دى چې كه د شي قُبح او بدوالي د مجاور امر (نژدې امر) په وجه وي نو هغه مكروه دى، او كه د شي قُبح د هغه سره د متصل وصف په وجه وي نو هغه فاسد دى.

بيا مكروه پر دوه قسمه دى: ① مكروه تحريمي، له دې څخه مراد هغه مكروه دى كوم چې حرام ته نژدې وي، ② مكروه تنزيهي، له دې څخه مراد هغه مكروه دى كوم چې حلال ته نژدې وي.

د مكروه تحريمي حكم دا دى چې بېله عذره د هغه كوونكى ګنهكار او د عذاب او سزا مستحق دى. او د مكروه تنزيهي حكم دا دى چې د هغه پرېښوونكى د ثواب مستحق دى، او كوونكى يې د سزا مستحق نه دى.

## د "بيع نجش" تعريف او حكم

قَالَ: وَنَهٰى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] عَنِ النَّجْشِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او رسول الله ﷺ له نجش څخه منع كړې ده وَهُوَ أَنْ يَزِيدَ فِي الثَّمَنِ وَلَا يُرِيدُ الشِّرَاءَ او نجش دا دى چې [يو څوک] په ثمن كې اضافه وكړي حال دا چې هغه د رانيولو اراده نه لري لِيُرَغِّبَ غَيْرَهُ د دې لپاره چې نورو خلكو ته [د رانيولو] ترغيب وركړي قَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ: "لَا تَنَاجَشُوا" نبي ﷺ فرمايلي دي چې: نجش مه كوئ! قَالَ:

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب البيوع، باب النهي للبائع أن لا يحفل، حديث رقم: ۲۱۵۰.

وَعَنِ السَّوْمِ عَلٰى سَوْمِ غَيْرِهٖ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او [رسولُ الله ﷺ] د بل چا پر سودا باندي له سودا کولو څخه [هم منع کړې ده] قَالَ الْعَلَیْهِ السَّلَامُ [2]: "لَا يَسْتَامُ الرَّجُلُ عَلٰى سَوْمِ أَخِيْهِ نبي ﷺ فرمايلي دي چي: "د خپل ورور پر سودا دي سړی سودا نه کوي وَلَا يَخْطُبُ عَلٰى خِطْبَةِ أَخِيْهِ" او نه دي د خپل ورور د نکاح پر پيغام سړی د نکاح پيغام استوي" وَلِأَنَّ فِي ذٰلِكَ إِيْحَاشًا وَإِضْرَارًا او ځکه چي په داسي کولو کي [بل مسلمان] په غم مبتلا کول دي او [هغه ته] نقصان رسول دي وَهٰذَا إِذَا تَرَاضَى الْمُتَعَاقِدَانِ عَلٰى مَبْلَغِ ثَمَنٍ فِي الْمُسَاوَمَةِ او دا کراهت په هغه وخت کي دی کله چي عاقدين په قيمت ټاکلو [سودا] کي د ثمن پر يو مقدار راضي سي فَأَمَّا إِذَا لَمْ يَرْكَنْ أَحَدُهُمَا إِلَى الْآخَرِ لېکن که په هغوی کي يو د بل وطرف مائل نه سي فَهُوَ بَيْعُ مَنْ يَزِيْدُ نو دا "بيع من يزيد" ده وَلَا بَأْسَ بِهٖ عَلٰى مَا نَذْكُرُهُ او په "بيع من يزيد" کي هيڅ حرج نسته چي [څه وروسته] به موږ به هغه ذکر کړو وَمَا ذَكَرْنَاهُ مَحْمَلُ النَّهْيِ فِي النِّكَاحِ أَيْضًا او کوم څه چي موږ ذکر کړه هغه په نکاح کي هم د نهي [منع] محمل دی [يعني په نکاح کي هم دا حکم دی چي که ښځه د سړي وطرف ته مائله نه سي، نو بيا پيغام استول مکروه نه دي].

**اللغات**: ﴿سوم﴾ د نصر مصدر دی: قيمت ټاکل (رېټ لګول)، د بيع طلب کول، سودا سره کول، همداد "يستأم" معنیٰ ده. ﴿لا يخطب﴾ د نصر له بابه د نفي صيغه ده: د نکاح پيغام استول (مرکه استول). ﴿إيحاش﴾ د افعال مصدر دی: په وحشت کي اچول، په غم او پرېشاني مبتلا کول. ﴿اضرار﴾ دا هم د افعال مصدر دی: ضرر او تکليف رسول، نقصان رسول. ﴿مساومة﴾ د مفاعلې مصدر دی: نرخ او قيمت ټاکل، د نرخ او رېټ لګولو سودا. ﴿لم يركن﴾ د جحد صيغه ده، له نصر او سمع دواړو څخه راځي: مائل کېدل، ميلان کول. ﴿بيع من يزيد﴾ په ږغ او بولۍ سره خرڅول، دليلام په توګه خرڅول. يعني چي بائع ږغ او نعره وکړي چي دا شی څوک رانيسي يو سړی ووايي چي زه يې په دومره رانيسم. بيا بائع ږغ وکړي "مَنْ يَزِيْدُ" چي تر دې يې څوک په زيات قيمت رانيسي. او څوک چي يې په زيات قيمت رانيسي بائع يې پر هغه خرڅ کړي، دې ته "بيع من يزيد" وايي.

---

[2] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب البيوع، باب لا يبع على بيع أخيه، حديث رقم: ٢١٣٩.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې په بیع کې نجش مکروه دی، او د نجش آسانه مطلب دا دی چې څوک په خپله شی نه رانیسي لېکن د دې لپاره د شي په قیمت کې اضافه کوي چې بل حاضر سړی یې ګران رانیسي (یعني د شي قیمت مثلاً څلور سوه روپۍ وي او یو سړی د هغه رانیول غواړي. لېکن په دې مینځ کې بل سړی ووايي چې زه دا شی [مثلاً] په څلورنیم سوه رانیسم، او په دې سره د هغه مطلب دا وي چې مشتري او نور خلک هغه شي په ګران قیمت رانیسي او رانیولو ته یې رغبت وکړي، دې ته نجش وايي او دا مکروه دي. لېکن که څوک دا شی ډېر ارزانه رانیسي مثلاً په درې سوه یې رانیسي او بل سړی په پیسو کې اضافه وکړي او د هغه شي د قیمت په اندازه پیسې ذکر کړي چې زه یې په څلور سوه رانیسم حال دا چې د هغه اراده د رانیولو نه وي نو دا جائز دي. ځکه چې په دې کې د یو مسلمان یعني د بائع نفع ده بغیر له دې چې مشتري ته نقصان ورسیږي. او مکروه صرف نجش دی). د نجش د مکروه کېدلو دوې وجهې دي: ① په حدیث شریف کې له دې څخه منع سوې ده، نبي ﷺ فرمايي: "لَا تَنَاجَشُوا"، ② او دویمه وجه د نجش د مکروه والي دا ده چې په فاسد نیت سره په ثمن کې اضافه کول دا د مشتري او خلکو سره دوکه ده، او مسلمان ته دوکه ورکول ممنوع دي، لېکن څرنګه چې دا دوکه د عقد په ذات (صلب العقد) کې نه ده، بلکې له عقد څخه خارج ده او صرف د عقد مجاور ده (یعني یو داسې امر دی کوم چې د عقد مجاور دی)، نو ځکه به دا عقد (بیع) مکروه وي، او فاسد به نه وي.

وعن السوم إلخ: د "سوم علی السوم" مطلب دا دی چې که مشتري او بائع په سودا سره لګیا وي، د شي د قیمت په باره کې خبرې سره کوي، او چې رانیولو ته نږدې سي نو په دې مینځ کې دریم سړی د هغوی په سودا کې وخیږي او د بائع سره بعینه د هغه شي سودا په زیات قیمت شروع کړي (یعني په قیمت کې اضافه وکړي)، یا دا چې د بائع او مشتري د سودا په مینځ کې دریم سړي راسي مشتري ته ووايي چې زه خاص دغه شی تر دې په کم قیمت درکوم، دا مکروه دي، او د دې هم دوې وجهې دي:
① یو دا چې په حدیث کې په واضحه توګه د "لا یستام الرجل علی سوم أخیه" څخه منع سوې ده،
② او دویمه وجه دا چې په دې فعل سره مسلمان ته غم او نقصان رسیږي (او هغه پرېشانه کیږي) او مسلمان ته نقصان رسول صحیح نه دي، خو څرنګه چې دغه دوه قبیح شیان یعني ایحاش (په غم مبتلا کول) او اضرار (نقصان رسول) له عقد څخه جلا او خارج دي، نو ځکه به دا عقد مکروه وي.

همدا حکم د نکاح د پیغام هم دی، یعني که سړی یو ښځې ته د نکاح پیغام (مرکه) واستوي، او ښځه د سړي وطرف ته مائله هم سي او نکاح یې خوښه سي، نو اوس د بل سړي لپاره هغه ښځې ته د نکاح پیغام استول مکروه دي: ځکه په حدیث شریف کې له دې څخه منع سوې ده، نبي ﷺ فرمايي: "لا یخطب الرجل علی خطبة أخیه".

وهذا إلخ: فرمايي چي سوم علی السوم او د نکاح پر پيغام، پيغام استول په هغه وخت کي مکروه دي کله چي په بيع کي عاقدين (بائع او مشتري) د ثمن پر يو معلوم مقدار اتفاق وکړي، او همدارنګه په نکاح کي ښځه د پيغام استونکي وطرف ته ميلان وکړي، ليکن که په بيع کي فقط د سودا خبره وسي او د ثمن پر مقدار عاقدين متفق نه سي، يا په نکاح کي ښځه د سړي وطرف ته مائله نه سي، نو بيا سوم علی السوم او د نکاح پر پيغام، پيغام استول مکروه نه دي، ځکه چي د ثمن پر مقدار د عاقدينو د نه متفق کېدلو په صورت کي که دريم سړی په قيمت کي اضافه وکړي نو دا سوم علی السوم نه دی، بلکي دا "بيع من يزيد" ده، او له نبي کريم ﷺ څخه دا بيع ثابته ده، نو ځکه په داسي صورت کي قيمت زياتول او د نکاح پيغام استول صحيح دي. (د "بيع من يزيد" تفصيل به څه وروسته ذکر سي).

## د "تلقي الجلب" حکم

قَالَ: وَعَنْ تَلَقِّي الْجَلَبِ فرمايي: او [رسول الله ﷺ] له تلقي الجلب څخه [هم منع کړې ده] وَهٰذَا إِذَا كَانَ يَضُرُّ بِأَهْلِ الْبَلَدِ او دا حکم په هغه وخت کي دی کله چي "تلقي الجلب" د ښار خلکو ته نقصان کوي ايعني کله چي په "تلقي" سره ښاريانو ته ضرر او نقصان رسيږي] فَإِنْ كَانَ لَا يَضُرُّ ليکن که "تلقي الجلب" نقصان نه کوي فَلَا بَأْسَ بِهِ نو [بيا] په هغه کي هيڅ حرج نسته إِلَّا إِذَا لَبَّسَ السِّعْرَ عَلَى الْوَارِدِينَ مګر دا چي کله [تاجران] پر راتلونکو خلکو [يعني د قافلې پر خلکو] نرخ پټ کړي فَحِينَئِذٍ يُكْرَهُ نو په دې وخت کي [تلقي الجلب] مکروه دی لِمَا فِيهِ مِنَ الْغُرُورِ وَالضَّرَرِ ځکه چي په دې کي دوکه او نقصان دی.

**اللغات**: ﴿تلقّي﴾ د تفعّل مصدر دی: يو ځای کېدل، ملاقات کول. ﴿جلب﴾ د ضرب مصدر دی: راکشول (نفع راکشول)، د "تلقي الجلب" مطلب دا دی چي کله ښار ته قافله او سوداګران را روان وي نو د ښار تاجران او سوداګران د هغو سره ملاقات وکړي او په ارزانه قيمت ټوله سامان رانيسي، د دې لپاره چي هغه سامان په ګران قيمت د ښار پر خلکو خرڅ کړي، دې ته "تلقي الجلب" وايي. ﴿لبّس﴾ د تفعيل ماضي ده: خلط ملط کول، مشتبه کول، پټول. ﴿سعر﴾ نرخ، ربټ. ﴿غُرور﴾ د نصر مصدر دی: دوکه ورکول. (مصباح اللغات)

**تشريح**: د "تلقي الجلب" څلور صورتونه دي:

① .... يو دا چي په ښار کي قحط وي (يعني په ښار کي غله [غنم او داسي نور] ډير کم وي او خلک ډير ورته مجبوره وي)، نو په داسي وخت کي چي د ښار ځيني تاجران د غلې د قافلې په راتګ خبر سي (چي قافله را روانه ده او غله يې را اخيستې ده)، نو دا تاجران له ښار څخه د باندي ووځي او له قافلې والا څخه ټوله غله په ارزانه قيمت رانيسي، د دې لپاره چي په ښار کي يې ګرانه خرڅه کړي.

②... دویم دا چې په ښار کې د غلې کمښت نه وي، او څه تاجران له ښار څخه ووځي او د قافلې ټوله غله رانیسي.

③... دریيم دا چې دا تاجران له قافلې څخه په ارزانه قیمت غله رانیسي، لیکن د ښار په نرخ د قافلې والا خبر نه کړي او قافلې والا هم په خپله د ښار په نرخ خبر نه وي.

④... څلورم دا چې غله خو په ارزانه قیمت رانیسي، لیکن د ښار په نرخ قافلې والا خبر کړي.

په دغو صورتونو کې اول او دریيم صورت مکروه دی، اول خو ځکه چې په دې صورت کې د ښار خلک د قحط او د غلې د کمښت په وجه په ضرر او پرېشانۍ مبتلا دي. او د تاجرانو په دې عمل سره د ښار د خلکو پرېشاني نوره زیاتیږي. او څوک په پرېشانۍ مبتلا کول قبیح امر دی، لیکن دا قبیح امر داسې دی کوم چې له بیع څخه جلا دی (یعني په صلبُ العقد کې نه دی)، نو ځکه د هغه په وجه به دا بیع مکروه وي. او په دریيم صورت کې د قافلې خلکو ته د نرخ خبر نه دي ورکول سوی بلکې تاجرانو هغه پټ کړی دی نو څرنګه چې دا د قافلې خلکو ته دوکه ورکول دي او دوکه ورکول یو قبیح امر دی، نو ځکه به په دې صورت کې هم بیع مکروه وي. او څرنګه چې په پاته دوو صورتونو کې دا خرابیاني نشته، نو ځکه په هغوی کې به بېله کراهته بیع صحیح وي.

## د "بیع الحاضر للبادي" حکم

قَالَ وَعَنْ بَيْعِ الْحَاضِرِ لِلْبَادِيْ فرمایي: او [رسول الله ﷺ] د بدوي [صحرایي] لپاره د ښاري له خرڅولو څخه [هم منع کړې ده] فَقَدْ قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: "لَا يَبِيْعُ الْحَاضِرُ لِلْبَادِيْ" [ځکه] نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې: "ښاري سړی دې د بدوي لپاره خرڅول نه کوي" وَهٰذَا إِذَا كَانَ أَهْلُ الْبَلَدِ فِيْ قَحْطٍ وَعَوَزٍ او دا حکم په هغه وخت کې دی کله چې د ښار خلک په قحط او تنګۍ [محتاجي] کې وي وَهُوَ يَبِيْعُ مِنْ أَهْلِ الْبَدْوِ طَمْعًا فِي الثَّمَنِ الْغَالِيْ او [په هغه وخت کې دی کله چې] ښاري سړی د ګران قیمت په طمع د صحرا پر خلکو خرڅول کوي لِمَا فِيْهِ مِنَ الْإِضْرَارِ بِهِمْ ځکه چې په دې کې د ښار خلکو ته نقصان رسول دي أَمَّا إِذَا لَمْ يَكُنْ كَذٰلِكَ لیکن که حالت داسې نه وي فَلَا بَأْسَ بِهِ نو [بیا] په دې کې هیڅ حرج نشته لِانْعِدَامِ الضَّرَرِ ځکه چې [اوس] نقصان نشته.

**اللغات:** ﴿البَادِی﴾ د نصر له بابه د اسم فاعل صیغه ده: هغه کس کوم چې په صحرا کې اوسیږي، صحرایي، بدوي، کوچی، ﴿البَدْو﴾ او البَادِيَة صحرا ته وایي، (هغه صحرا چې په هغه کې واښه او اوبه وي، کوم چې د صحرا خلک او کوچیان پر هغه خپلې رمې ساتي)، ﴿قحط﴾ وچکالي، بارانونه

[1] تخریج: أخرجه البخاري في كتاب البيوع، باب من كره أن يبيع حاضر لباد، حديث رقم: ۲۱۵۹.

بندېدل، ځمکه وچېدل. مراد ځني د غلې (غنمو او داسي نورو) کخت والي دی. ﴿عوز﴾ تنګي، محتاجي، ﴿غالی﴾ ګران، قيمتي، ﴿إضرار﴾ نقصان رسول.

**تشريح**: فرمايي چي "بيع الحاضر للبادي" مکروه ده؛ ځکه رسول الله ﷺ له دې څخه منع کړې ده چي "لَا يَبِيْعُ الحَاضِرُ لِلْبَادِيْ". د حديث او متن د دغه جملې دوه صورتونه دي:

①... يو دا چي په "لِلْبَادِيْ" کي لام د "مِنْ" په معنیٰ سره وي. نو په دې صورت کي د حديث او مطلب دا دی چي يو ښاري سړی غله لري. لېکن هغه يې د ښار پر خلګو نه خرڅوي بلکي صحرا ته ځي او هلته يې د صحرا پر خلکو (بدويانو) او کوچيانو خرڅوي او په دې سره د هغه مقصد زيات قيمت اخيستل وي؛ ځکه د ښار خلګ په نرخ او معامله سره د واقف کېدلو پر بناء په زيات قيمت رانيولو ته تيار نه وي، او د صحرا خلګ د خپل ساده والي او نا واقفيت پر بناء په آساني سره د ښاري سړي په دام کي نيول کيږي. نو داسي بيع په هغه وخت کي مکروه ده کله چي د ښار خلګ په قحط او تنګی کي وي (يعني په ښار کي غله کمه او کخته وي او د ښار خلګ غلې ته سخت مجبوره وي) او د هغه په دې عمل سره ښاريانو ته ضرر او نقصان رسيږي. لېکن که په ښار کي قحط او تنګي نه وي او په دې عمل سره هغوی ته هيڅ نقصان نه رسيږي، نو بيا په دې کي هيڅ حرج نسته.

②... دويم صورت دا دی چي په "لِلْبَادِيْ" کي لام پر خپل اصل وي، نو د دې مطلب دا دی چي ښاري سړی دې د بدوي (صحرايي) له طرفه خرڅول نه کوي، د دې صورت دا دی چي بدوي له صحرا څخه غله ښار ته راوړي. نو يو ښاري سړی هغه ته ووايي چي ته د ښار په معاملاتو او عاداتو خبر نه يې! زه ډېر په خبريم. نو زه به يې درخرڅه کړم، او په دې توګه دغه ښاري سړی د بدوي له طرفه وکيل جوړ سي او په ګران قيمت د هغه غله خرڅه کړي. نو دا هم مکروه دي؛ ځکه چي په دې صورت کي هم د ښار خلګو ته ضرر او نقصان رسيږي. ځکه که بدوي هغه په خپله خرڅه کړې وای نو په خپل حساب سره به يې خرڅه کړې وای او ارزانه به يې خرڅه کړې وای؛ لکه څرنګه چي د رسول الله ﷺ فرمان دی: "دَعُوا النَّاسَ يَرْزُقُ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ مِنْ بَعْضٍ" (يعني خلګ پرېږدئ! الله تعالیٰ په هغوی کي بعضي ته د بعضو په ذريعه رزق ورکوي). يعني په خپله کاروبار کولو ته هغوی پرېږدئ! ځکه چي يو انسان د بل انسان د رزق او روزۍ ذريعه وي.

## د جمعې د اذان په وخت کې بيع کول او د بيع من يزيد حکم

قَالَ: وَالْبَيْعُ عِنْدَ أَذَانِ الْجُمُعَةِ فرمايي: او د جمعې د اذان په وخت کې بيع مکروه ده قَالَ اللهُ تَعَالَىٰ: وَذَرُوا الْبَيْعَ [سورة الجمعة: ٩] الله تعالىٰ فرمائي: او تاسي [په دې وخت کې] بيع پرېږدئ! ثُمَّ فِيهِ إِخْلَالٌ بِوَاجِبِ السَّعْيِ عَلَىٰ بَعْضِ الْوُجُوهِ بيا په ځينو صورتونو کې په داسي بيع سره په واجب سعى کې خلل پيدا کيږي وَقَدْ ذَكَرْنَا الْأَذَانَ الْمُعْتَبَرَ فِيهِ فِي كِتَابِ الصَّلَاةِ او کوم اذان چې په دې هکله معتبر دی هغه مونږ په کتاب الصلاة کې ذکر کړی دی قَالَ: وَكُلُّ ذَلِكَ يُكْرَهُ لِمَا ذَكَرْنَا فرمايي: او دا ټوله بيوع مکروه دي د هغه دليل په وجه کوم چې مونږ ذکر کړی وَلَا يَفْسُدُ بِهِ الْبَيْعُ [لېکن] په دې کراهت سره بيع نه فاسديږي لِأَنَّ الْفَسَادَ فِي مَعْنًى خَارِجٍ زَائِدٍ ځکه چې فساد په داسي معنىٰ کې دی کوم چې [له عقد څخه] خارجه او زائده ده لَا فِي صُلْبِ الْعَقْدِ په صلب العقد کې [فساد] نه دی وَلَا فِي شَرَائِطِ الصِّحَّةِ او نه د [عقد] صحيح کېدلو په شرطونو کې دی قَالَ وَلَا بَأْسَ بِبَيْعِ مَنْ يَزِيدُ فرمايي: او په "بيع من يزيد" کې هيڅ حرج نسته وَتَفْسِيرُهُ مَا ذَكَرْنَا او د "بيع من يزيد" وضاحت هغه دی کوم چې مونږ [مخکې] ذکر کړی وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ[1] بَاعَ قَدَحًا وَحِلْسًا بِبَيْعِ مَنْ يَزِيدُ او په صحيح روايت سره ثابت دي [يا په صحيح روايت کې دي] چې نبي کريم ﷺ يو ګيلاس او يوه سترنجي د "بيع من يزيد" په توګه خرڅ کړل وَلِأَنَّهُ بَيْعُ الْفُقَرَاءِ او ځکه چې دا د غريبانو بيع ده وَالْحَاجَةُ مَاسَّةٌ إِلَيْهِ او داسي بيع ته ضرورت دی.

**اللغات:** ﴿بيع من يزيد﴾ د مَنْ يَزِيدُ معنىٰ ده: څوک قيمت زياتوي، يعني څوک يې په زيات قيمت رانيسي، د "بيع من يزيد" مختصر تعريف دا دی: په ږغ او بولۍ سره خرڅول "يعني د خلګو په مجمع کې ږغ کول (بولۍ لګول) چې دا مبيع څوک په زيات قيمت رانيسي؟ اِو" او څوک چې يې په زيات قيمت رانيسي پر هغه يې خرڅه کړي، دې ته "بيع من يزيد" وايي. ﴿قدح﴾ ګيلاس (د چينلو لوښی). ﴿حلس﴾ سترنجي، درۍ (پوست پند فرش).

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الزكاة، باب ما تجوز فيه المسألة، حديث رقم: ١٦٤١.

**تشريح**: په دې عبارت کې درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چې د جمعې تر اذان وروسته بيع (خرڅول او رانيول) مکروه دي. الله تعالیٰ فرمايي "کله چې د جمعې اذان وسي نو د جمعې د لمانځه او خطبې وطرف ته ولاړ سئ او کاروبار بند کړئ!". په دې کې قباحت دا دی چې کوم څوک تر اذان وروسته کاروبار او بيع وکړي نو "سعی الی الجمعه" کوم چې واجب ده په هغه کې به خلل واقع سي، او په واجب امر کې خلل واقع کېدل يو قبيح امر دی، نو ځکه د دې قبيح امر په وجه به د جمعې تر اذا وروسته بيع مکروه وي. هـا! که چيري د جمعې مسجد ته د تګ او روانتيا په حالت کې بيع وکړي، نو په دې کې هيڅ حرج نسته، ځکه چې په دې صورت کې د بيع په وجه په "سعی الی الجمعه" کې خلل نه پيدا کيږي.

او پاته سوه دا خبره چې په آيت کې له اذان څخه کوم اذان مراد دی، نو په کتاب الصلاة کې تېر سو چې له دې څخه مراد اول اذان دی، په دې شرط چې تر زوال وروسته وسي.

(۲)... دويمه مسئله (کوم چې په حقيقت کې د مخکنی ټولو مسئلو وضاحت دی) دا ده چې د فصل له شروع څخه تر دې ځايه پوري چې څومره بيوع ذکر سوې، دا ټوله مکروه دي، لېکن د کراهت په وجه دا بيوع نه فاسديږي؛ ځکه چې دلته فساد يعني قبح په داسي معنیٰ کې ده کوم چې له عقد څخه خارج ده، خو د عقد مجاور ده، او د عقد په ذات او د هغه د صحت په شرائطو کې هيڅ قباحت نسته. او کوم قباحت چې په خارجي مجاوره معنیٰ کې وي، د هغه په وجه بيع مکروه کيږي، فاسديږي نه، نو ځکه به په دې ټولو صورتونو کې بيع مکروه وي، فاسده به نه وي.

(۳)... درېيمه مسئله دا ده چې "بيع من يزيد" جائز ده. او هغه په دوو (۲) وجهو سره جائز ده:

①... يو دا چې په حديث کې له نبي کريم ﷺ څخه داسې بيع کول ثابت دي، حديث په ابو داؤد او ترمذي کې له حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت سوی دی چې نبي کريم ﷺ ته يو سړی راغلی خواست يې وکړی (يعني خيرات يې وغوښتی)، نو رسول الله ﷺ پوښتنه ځني وکړه چې آيا ستا سره په کور کې هيڅ هم نسته؟. هغه وويل چې يوه سترنجي سته چې د هغه بعضي حصه موږ هوارو، او بعضي حصه يې پر ځان اچوو. او بل يو ګيلاس سته چې په هغه کې موږ اوبه چيښو. نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل چې هغه سترنجي او ګيلاس ما ته راوړه!. کله چې هغه سړي دا شيان راوړل نو نبي ﷺ د صحابه وو په مجمع کې وفرمايل چې دا دوه شيان څوک رانيسي، يوه سړي وويل چې دا زه په يوه درهم رانيسم. نبي کريم ﷺ وفرمايل: "مَنْ يَزِيدُ" (يعني څوک يې تر دې په زيات قيمت رانيسي؟) او دا خبره يې دوه، درې واره وکړه. بيا يو سړي وويل چې زه يې په دوه درهمه رانيسم. نو نبي کريم ﷺ پر هغه خرڅ کړل، او سړي ته يې وفرمايل چې په يوه درهم د کور لپاره غله رانيسه او په

بل درهم تبر رانیسه. او په صحرا کي بوټي او لرګي پرېکوه او په بازاره کي يې خرڅوه (نو په دې توګه سړی له خواست او خیرات څخه خلاص سو او په خپل کاوبار مصروف سو). لنډه دا چي له دې حدیث څخه معلومه سوه چي "بیع من یزید" جائز ده.

(۲)... دویم دلیل د "بیع من یزید" د جائز کېدلو دا دی چي غریبان او مسکینان هم مال ته ضرورت لري او هغوی هم تجارت کول غواړي. او څرنګه چي هغوی د مالدارنو په مقابله کي نفع او ګټي ته زیات محتاج وي (یعني دې ته محتاج وي چي د هغوی شي په زیات قیمت خرڅ کړی سي). او د دې آسانه لاره "بیع من یزید" ده. نو څکه د غریبانو او مساکینو د حاجت او ضرورت په خاطر اسلام دا بیع جائز ګرځولې ده.

## دوه ذی رحم محرم کوچني غلامان سره جلا کول

نَوْعٌ مِنْهُ د بیع مکروه د یو قسم بیان قَالَ: وَمَنْ مَلَكَ مَمْلُوكَيْنِ صَغِيرَيْنِ أَحَدُهُمَا ذُوْ رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنَ الْآخَرِ فرمایي: که یو سړی د داسي دوو کوچني [نابالغو] غلامانو مالک سي چي هغوی یو د بل ذي رحم محرم [نژدې قریبان] وي لَمْ يُفَرِّقْ بَيْنَهُمَا نو د هغوی په مینځ کي دي جدایي نه راولي وَكَذٰلِكَ إِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا كَبِيرًا او همداسي که له هغوی څخه یو بالغ وي وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ ﷺ: "مَنْ فَرَّقَ[1] بَيْنَ وَالِدَةٍ وَوَلَدِهَا فَرَّقَ اللهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَحِبَّتِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ" او اصل په دې مسئله کي د نبي ﷺ دا فرمان دی: څوک چي د مور او د هغې د بچي په مینځ کي جدایي راولي نو الله تعالیٰ به د هغه او د هغه د ګرانو ملګرو په مینځ کي جدایي راولي وَوَهَبَ النَّبِيُّ ﷺ[2] لِعَلِيٍّ رضي الله عنه غُلَامَيْنِ أَخَوَيْنِ صَغِيرَيْنِ او [بل دا چي] نبي کریم ﷺ دوه کوچني [نابالغه] غلامان کوم چي سره ورڼه ول حضرت علي رضي الله عنه ته هبه کړل ثُمَّ قَالَ لَهُ: مَا فَعَلَ الْغُلَامَانِ؟ بیا یې [څه وخت وروسته] حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمایل: چي هغه دوه هلکانو [غلامانو] څه وکړه؟ [یعني هغوی څه سول؟] فَقَالَ: بِعْتُ أَحَدَهُمَا نو حضرت علي رضي الله عنه وفرمایل: چي ما له هغوی څخه یو خرڅ کړی فَقَالَ: أَدْرِكْ أَدْرِكْ وَيُرْوَى: أُرْدُدْ أُرْدُدْ نو نبي ﷺ وفرمایل: هغه ترلاسه کړه! هغه ترلاسه کړه! او روایت سوی دی [یعني په بل روایت کي ذکر سوي دي]: هغه واپس واخله! هغه واپس واخله! وَلِأَنَّ الصَّغِيرَ يَسْتَأْنِسُ بِالصَّغِيرِ وَبِالْكَبِيرِ او څکه چي یو کوچنی په بل کوچني سره او په غټ [بالغ] سره

[1] تخریج: أخرجه الترمذي في كتاب البيوع، باب ما جاء في كراهية الفرق بين الأخوين، حديث رقم: ۱۲۸۳.
[2] تخریج: أخرجه الترمذي في كتاب البيوع، باب ما جاء في كراهية الفرق بين الأخوين، حديث رقم: ۱۲۸۴.

انس حاصلوي [يعني دوی يو د بل سره د زړه مينه او علاقه لري. او يو په بل خوشحاله وي] وَالْكَبِيرُ يَتَعَاهَدُهُ او غټ [بالغ غلام] پر کوچني پام کوي [يعني د هغه نګراني او ساتنه کوي] فَكَانَ فِي بَيْعِ أَحَدِهِمَا قَطْعُ الِاسْتِئْنَاسِ وَالْمَنْعُ مِنَ التَّعَاهُدِ نو په هغوی کې د يوه په خرڅولو سره د انس ختمول او د پاملرنې [نګرانۍ] منع کول لازميږي وَفِيهِ تَرْكُ الْمَرْحَمَةِ عَلَى الصِّغَارِ او په دې کې پر بچيانو د رحم [او شفقت] پرېښوول لازميږي وَقَدْ أُوعِدَ عَلَيْهِ حال دا چې پر دې وعيد وارد سوی دی ثُمَّ الْمَنْعُ مَعْلُولٌ بِالْقَرَابَةِ الْمُحَرِّمَةِ لِلنِّكَاحِ بيا [له تفريق څخه] د منع علت هغه قرابت دی کوم چې د نکاح حرامونکی وي حَتَّى لَا يَدْخُلَ فِيهِ مَحْرَمٌ غَيْرُ قَرِيبٍ وَلَا قَرِيبٌ غَيْرُ مَحْرَمٍ تر دې چې په دې منع کې نا قريب محرم او نامحرم قريب نه داخليږي وَلَا يَدْخُلُ فِيهِ الزَّوْجَانِ او په دې کې ښځه او خاوند [هم] نه داخليږي حَتَّى جَازَ التَّفْرِيقُ بَيْنَهُمَا تر دې چې د هغوی په مينځ کې تفريق کول جائز دي لِأَنَّ النَّصَّ وَرَدَ بِخِلَافِ الْقِيَاسِ ځکه چې دا حديث خلاف القياس وارد سوی دی فَيَقْتَصِرُ عَلَى مَوْرِدِهِ نو ځکه هغه به پر خپل مورد منحصر وي وَلَا بُدَّ مِنْ اجْتِمَاعِهِمَا فِي مِلْكِهِ او د مالک په ملکيت کې د دواړو غلامانو جمع کېدل ضروري دي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی حَتَّى لَوْ كَانَ أَحَدُ الصَّغِيرَيْنِ لَهُ وَالْآخَرُ لِغَيْرِهِ تر دې که يو کوچنی [نابالغ] غلام د هغه په ملکيت وي او بل يو د بل چا په ملکيت کې وي لَا بَأْسَ بِبَيْعِ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو [بيا] له هغوی څخه د يوه په خرڅولو کې هيڅ حرج نسته وَلَوْ كَانَ التَّفْرِيقُ بِحَقٍّ مُسْتَحِقٍّ او که چيري تفريق کول د يو واجب حق په وجه وي لَا بَأْسَ بِهِ نو په هغه کې هيڅ حرج نسته كَدَفْعِ أَحَدِهِمَا بِالْجِنَايَةِ مثلاً په هغوی دوو [نابالغو غلامانو] کې يو د جنايت په وجه ورکول وَبَيْعِهِ بِالدَّيْنِ [يا] يو د قرض په بدله کې خرڅول وَرَدِّهِ بِالْعَيْبِ [يا] يو د عيب په وجه واپس کول لِأَنَّ الْمَنْظُورَ إِلَيْهِ دَفْعُ الضَّرَرِ عَنْ غَيْرِهِ لَا الْإِضْرَارُ بِهِ ځکه چې [په دې صورتونو کې] کې له صغير څخه بغير [يعني له بل چا (مالک) څخه] نقصان ليري کول دي. نه دا چې صغير ته نقصان رسول.

**اللغات**: ﴿لم يفرّق﴾ د تفعيل له بابه د جحد صيغه ده: جلا کول، جدايي راوستل، تفريق واقع کول. ﴿أحبّة﴾ جمع د "حَبِيْبٌ" ده: محبت والا (هغه چې انسان محبت ورسره لري) ، ګران ملګری،

﴿أدرك﴾ د افعال له باب څخه د واحد مذکر امر حاضر صیغه ده: حاصلول (ترلاسه کول)، پیدا کول. د شي طلب کول او هغه ته رسېدل (مصباح)، مراد ځني واپس اخیستل دي (یعني هغه غلام واپس ځني واخله!). ﴿أردد﴾ د نصر له بابه مخکښۍ صیغه ده: واپس کول، نه قبلول، مراد ځني واپس اخیستل دي. ﴿یستأنس﴾ د استفعال مضارع ده: انس او مینه حاصلول، په یو شي سره زړه ته سکون او تسلي حاصلېدل، د یو شي سره د زړه علاقه او مینه لرل. ﴿یتعاهد﴾ د تفاعل مضارع ده: خیال ساتل، پام کول، نګراني او ساتنه کول. ﴿أوعد﴾ د افعال له بابه د ماضي مجهولي صیغه ده: وعید واردېدل، وعید بیانول، دمکي ورکول. ﴿معلول﴾ خلاف القیاس د تفعیل له بابه استعمالیږي: علت بیان کړی سوی، هغه شی چې وجه او علت یې بیان کړی سي. ﴿یقتصر﴾ د افتعال مضارع ده: منحصر کېدل، په یو شي اکتفاء کول او له هغه څخه تجاوز (تېری) نه کول. ﴿مورد﴾ د اسم ظرف صیغه ده: د واردېدلو ځای، یقتصر علی مورده: دا یو محاوره ده، مطلب یې دا دی چې په حدیث کې چې څه ثابت دي پر هغه به اکتفاء کیږي، یعني حدیث به فقط تر هغه پوري محدود او خاص وي.

**تشریح**: مخکې چې د بیع د کراهت په هکله کومې مسئلې ذکر سوې، په هغوی کې د کراهت اسباب مختلف وو، او له دې ځایه چې کومې مسئلې ذکر کیږي په هغوی کې د کراهت سبب صرف یو دی یعني "تفریق"، نو ځکه صاحب کتاب دغه سبب جلا بیانوي.

**صورت د مسئلې**: دا دی که دوه داسې نابالغه غلامان یا یو بالغ او بل نابالغ غلام د یو سړي په ملکیت کې جمع سي چې هغوی یو د بل ذي رحم محرم قریبان وي، نو د هغوی دوو په مینځ کې د بیع یا هبه کولو په ذریعه جدایي راوستل مکروه دي، یعني داسې بیع او هبه که څه هم جائز ده خو د تفریق کولو په وجه به سړی ګنهګار وي او د همدې تفریق په وجه دا بیع او هبه مکروه ده. ها! که چیرې غلامان دواړه بالغ وي، نو د هغوی په مینځ کې تفریق کول (جدایي راوستل) مکروه نه دي.

په دې مسئله کې اصل دا حدیث دی چې نبي کریم ﷺ فرمایلي دي "څوک چې د مور او د هغې د بچي په مینځ کې جدایي راولي، "الله تعالیٰ دې د قیامت په ورځ د هغه او ګرانو ملګرو په مینځ کې جدایي راولي")، دا د نبي کریم ﷺ له طرفه ښېرا (ښرا) ده. او که د حدیث دا جمله خبر ومنل سي نو بیا یې ترجمه دا ده چې "الله تعالیٰ به د قیمت په ورځ د هغه او د ګرانو ملګرو په مینځ کې جدایي راولي" نو بیا دا جمله د سزا په توګه ده، ځکه چې د ګرانو ملګرو فراق سزا ده. لنډه دا چې دا حدیث د مور او خپل بچي په مینځ کې د تفریق کونکي لپاره وعید دی، او دا وعید د تفریق په وجه وارد سوی

دی، او د کوم شي په باره کي چي وعيد وارد سوی وي هغه ناجائز وي، نو ځکه د مور او خپل بچي په مينځ کي به تفريق کول ناجائز وي. او څرنګه چي تفريق کول يو داسي قبيح امر دی کوم چي د بيع سره متصل دی او له عقد څخه جلا کېدای هم سي، نو ځکه د هغه په وجه به بيع خو فاسد نه وي لېکن مکروه به وي.

او دويم حديث دا دی چي نبي کريم ﷺ دوه نابالغه غلامان کوم چي سره وروڼه وه حضرت علي رضي الله عنه ته هبه کړل، بيا څو ورځي وروسته نبي ﷺ پوښتنه وکړه چي هغه غلامان څه سول، حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل چي ما له هغوی څخه يو خرڅ کړی، نو نبي ﷺ په ټينګار سره وفرمايل چي هغه واپس ځني واخله!، حاصل دا چي بيع فسخ کړه او تفريق ختم کړه! (دواړه وروڼه سره جمع کړه!)، دا حديث هم د صغيرينو (يعني د دوه نابالغه غلامانو) د تفريق پر ناجائز کېدلو دلالت کوي، او څرنګه چي دا تفريق د بيع په وجه پيدا سوی دی، نو ځکه دا بيع مکروه ده.

ولأن الصغير إلخ: عقلي دليل دا دی چي يو کوچنی په بل قريب کوچني خوشحاله کيږي او دوی يو د بل سره انس او علاقه لري، همدارنګه که يو غلام بالغ (کبير) وي نو هغه پر خپل کوچني قريب پام کوي او د هغه خيال ساتي، نو که له صغيرينو څخه يو خرڅ کړل سي، نو د تفريق په وجه به د دواړو په مينځ کي انس، مينه او علاقه ختمه سي او وحشت به پيدا سي، او که په صغير او کبير کي يو خرڅ کړل سي، نو د انس ختمېدلو سره، سره به هغه پاملرنه او ساتنه هم ختمه سي کوم چي يې کبير پر صغير کوي، او د انس او پاملرني په زائلېدلو کي (پر بچيانو) د شفقت او رحم پرېښوول لازميږي، او د بچيانو د شفقت او رحم پرېښوولو په باره کي وعيد راغلی دی، نبي کريم ﷺ فرمايي: "مَنْ لَمْ يَرْحَمْ صَغِيْرَنَا وَلَمْ يَعْرِفْ حَقَّ كَبِيْرِنَا فَلَيْسَ مِنَّا" (ابو داؤد)، يعني څوک چي پر بچو رحم نه کوي او د مشرانو حق نه پېژني، هغه زموږ څخه نه دی. او وعيد د ناجائز شي په باره کي راځي، نو معلومه سوه چي د صغيرينو په مينځ کي تفريق کول (کوم چي د شفقت او رحم سبب دی) ناجائز دي.

ثم المنع إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چي د صغيرينو په مينځ کي د تفريق ممانعت معلول دی، او د هغه علت داسي قرابت دی کوم چي په ابدي توګه د نکاح حرامونکی وي، يعني صغيرين يو د بل ذي رحم محرم قريبان وي، مثلاً دوه حقيقي وروڼه، يا دوې حقيقي خوندي، يا مور او زوی، يا زوی او پلار، يا ماما او خوريی او داسي نور، لېکن که په دواړو کي محرميت وي او قرابت نه وي، مثلاً رضاعي وروڼه، يا رضاعي خوندي، يا قرابت وي او محرميت نه وي، لکه د اکا زامن يا د اکالوڼي، يا د امه زامن او لوڼي، نو هغه په دې حکم کي نه داخليږي، يعني داسي دوه نابالغه بچيان سره جلا کول

جائز دی: ځکه چې د ممانعت علت د قرابت او محرمیت دواړو مجموعه ده. او په مذکوره دوو صورتونو کې یو سته او بل نسته. یعني په اول صورت کې محرمیت سته. قرابت نسته. او په دویم صورت کې قرابت سته، محرمیت نسته. نو ځکه په دې دوو صورتونو کې به د صغیرینو په مینځ کې تفریق کول ممنوع نه وي.

ولا یدخل فیه الزوجان إلخ: او په دې حکم کې خاوند او ښځه نه داخلیږي. یعني که خاوند او ښځه د یو سړي په ملکیت کې وي او هغوی صغیرین وي، نو د دې سړي (مولی) لپاره تفریق جائز دی. یعني له هغوی ځخه یو خرڅولای او هبه کولای سي.

لأن النص إلخ: صاحب د هدایې په مخکني دوو صورتونو کې (یعني د رضاعي ورونو او د اکا د زامنو) او په ښځه او خاوند کې د تفریق جائز کېدلو دلیل بیانوي فرمایي چې دا حدیث "مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ وَالِدَةٍ وَوَلَدِهَا" او دا حدیث "أَدْرِكْ. أَدْرِكْ" خلاف القیاس وارد سوی دی. ځکه د قیاس تقاضا خو دا ده چې مالک ته د هر ډول تصرف کولو اختیار وي. برابره ده هغه که دواړه نابالغه غلامان (صغیرین) سره یو ځای کوي او که یې سره جلا کوي. لکه په بالغو غلامانو کې چې هغه ته اختیار دی. لنډه دا چې دا دواړه حدیثونه خلاف القیاس وارد سوي دي. او کوم نص چې خلاف القیاس وارد سي هغه پر خپل مَوْرِد منحصر وي (یعني د خپل مورد سره خاص وي). او دلته د اول حدیث مَوْرِد زوي او مور دي. او د دویم حدیث مَوْرِد ورونه دي. یعني دواړه حدیثونه پر دې دلالت کوي چې که په دوو نابالغو غلامانو کې قرابت او محرمیت موجود وي، نو د هغوی په مینځ کې تفریق کول ممنوع دي، او که یو موجود نه وي نو بیا په تفریق کولو کې هیڅ حرج نسته.

ولا بد من اجتماعهما إلخ: فرمایي چې له دوو نابالغو غلامانو ځخه د یوه خرڅول هغه وخت مکروه دي کله چې دواړه غلامان د یوه سړي په ملکیت کې وي لکه مخکني دوه حدیثونه چې هم پر دې دلالت کوي. لېکن که یو غلام د یوه سړي په ملکیت کې وي او یو د بل سړي په ملکیت وي، نو بیا د یوه په خرڅولو کې حرج نسته، ځکه چې په دې صورت کې تفریق نه ثابتیږي.

ولو کان إلخ: فرمایي که چیري د واجب حق او لازمي امر په وجه تفریق کول ضروري وي، نو بیا په تفریق کولو کې هیڅ حرج نسته. مثلاً د یو سړي (مالک) په ملکیت کې دوه نابالغه غلامان وي او د هغوی په مینځ کې قرابت محرمه هم وي. بیا په هغوی کې یو قتل وکړي یا د بل چا مال هلاک کړي، نو د مالک لپاره جائز دي چې دا جنایت کونکی غلام هغه سړي ته ورکړي چې د هغه په حق کې یې د

نفس جنايت يا د مال جنايت كړې وي، يا مثلاً د يو سړي په ملكيت كې دوه غلامان وروڼه وي. په هغوی كې يو صغير او بل كبير وي، او مالك كبير غلام ته د تجارت اجازه وركړې وي. نو كه دا كبير (مأذون لهٗ فی التجارة) غلام د خپل قيمت په برابر مقروض سي (يعني پر هغه دومره قرض باندې سي كوم چې د هغه د قيمت په اندازه وي). نو مالك هغه د قرض په بدله كې خرڅولای سي، يا مثلاً يو څوک دوه غلامان وروڼه رانيسي او له رانيولو څخه وروسته په يوه غلام كې عيب ښكاره سي نو د خيارِ عيب پر بناء مشتري هغه يو غلام واپس كولای سي. په دې دريو صورتونو كې كه څه هم تفريق كول موجود سو خو بيا هم دا صورتونه جائز دي؛ ځكه چې په دې تفريق سره د مالک مقصد له خپل ځان څخه نقصان او ضرر ليرې كول دي. نه يو غلام ته نقصان رسول. او له خپل ځان څخه د نقصان ليرې كولو اجازت هر چا ته سته. نو ځكه دغه تفريق هيڅ پروا نه لري.

## د پورتنی مسئلې يو بل صورت

قَالَ فَإِنْ فَرَّقَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: كه چيرې هغه تفريق وكړي كُرِهَ لَهُ ذٰلِكَ نو دا فعل د هغه په حق كې مكروه دی وَجَازَ الْعَقْدُ او عقد جائز دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ۞ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي قَرَابَةِ الْوِلَادَةِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د ولادت په قرابت كې دا عقد جائز نه دی وَيَجُوزُ فِي غَيْرِهَا او له هغه څخه بغير په بل قرابت كې جائز دی وَعَنْهُ: أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه [دويم روايت دا] دی: چې په دې ټولو صورتونو كې عقد جائز نه دی لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه كوم چې موږ روايت كړی فَإِنَّ الْأَمْرَ بِالْإِدْرَاكِ وَالرَّدِّ لَا يَكُونُ إِلَّا فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ ځكه چې د "تر لاسه كولو" او "واپس اخيستلو" امر صرف په "بيع فاسد" كې وي وَلَهُمَا: أَنَّ رُكْنَ الْبَيْعِ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ فِي مَحَلِّهِ او د طرفينو دليل دا دی: چې د بيع ركن له خپل اهل څخه د بيع په محل كې صادر سوی دی وَإِنَّمَا الْكَرَاهَةُ لِمَعْنًى مُجَاوِرٍ او كراهت خو صرف د مجاوره معنی په وجه دی فَشَابَهُ كَرَاهَةَ الِاسْتِيَامِ نو دا د "سوم علی السوم" د كراهت سره مشابه سو وَإِنْ كَانَا كَبِيرَيْنِ او كه دواړه غلامان بالغ وي فَلَا بَأْسَ بِالتَّفْرِيقِ بَيْنَهُمَا نو بيا د هغوی په مينځ كې په تفريق كولو كې هيڅ حرج نسته لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي مَعْنٰى مَا وَرَدَ بِهِ النَّصُّ ځكه چې دا [بالغ غلامان] په هغه معنی

۞ القول الراجح: هو قول الطرفين رحمهما الله، كما ظهر من دأب المصنف رحمه الله. [القول الراجح ج:۲، ص:۵۰]

سره نه دي چي د هغه په باره کي حديث ارد سوی دی [ځکه په حديث کي خو د نابالغه غلامانو له تفريق ځخه منع سوې ده] وَقَدْ صَحَّ أَنَّهُ الطَّيْلاً [1] فَرَّقَ بَيْنَ مَارِيَةَ وَسِيْرِيْنَ او په صحيح روايت سره ثابت دي چي نبي کريم ﷺ د ماريه او سيرين په مينځ کي تفريق وکړی وَكَانَتَا أَمَتَيْنِ أُخْتَيْنِ حال دا چي هغوی دواړه مينځي سره خوندي وې.

**اللغات**: ﴿فرّق﴾ د تفعيل ماضي ده: جلا کول، تفريق کول. ﴿قرابة الولادة﴾ پيدايښي قرابت، دولادت قرابت، لکه د پلار او زوی يا د مور او زوی په مينځ کي، يا لکه د پلار او لور يا د مور او لور په مينځ کي.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي که مسلمان مالک د دوو داسي نابالغو بچيانو په مينځ يا د داسي بالغ او نابالغ بچي په مينځ کي تفريق وکړي چي په هغوی کي قرابت محرمه موجود وي، نو دا تفريق کول د مالک په حق کي مکروه دي، برابره ده تفريق د بيع په ذريعه وي، يا د هبه کولو، صدقه کولو، غنيمت تقسيمولو يا د ميراث په ذريعه وي.

ها! تفريق کول که څه هم بالاجماع مکروه دي، لېکن د بيع په جواز او نه جواز کي اختلاف دی. د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا بيع جائز ده، او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله يو قول دی، او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ځخه په دې باره کي دوه روايتونه دي: ① ... يو روايت دا دی چي که د غلامانو په مينځ کي "د ولادت قرابت" وي (لکه د پلار او خپل بچي په مينځ کي، د مور او خپل بچي په مينځ کي)، نو بيا په هغوی کي د تفريق کولو په صورت کي بيع ناجائز ده. همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله اصح قول دی، او که د هغوی په مينځ کي د ولادت قرابت نه وي (مثلاً دوه ورونه)، نو په هغوی کي د تفريق کولو په صورت کي بيع ناجائز نه ده؛ بلکي بيع جائز او صحيح ده. ② ... او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دويم روايت دا دی چي په هر صورت کي بيع ناجائز ده، برابره ده د هغوی په مينځ کي د ولادت قرابت وي او که نه وي. همدا د امام زفر، حسن بن زياد او امام احمد رَحِمَهُمُ الله قول دی.

**د امام ابو يوسف دليل**: دا دی چي د حضرت علي رضي الله عنه حديث کوم چي مخکي تېر سو په هغه کي ذکر سوي دي چي کله حضرت علي رضي الله عنه نبي ﷺ ته وويل چي ما له دوو نابالغو غلامانو ځخه يو خرڅ کړی نو نبي ﷺ وفرمايل: "أَدْرِكْ أَدْرِكْ" يا "أُرْدُدْ أُرْدُدْ"، او د نبي کريم ﷺ مراد او مقصد دا وو چي دغه بيع ردّ کړه!، او ښکاره خبره ده چي د بيع د ردّ کولو او واپس کولو حکم په بيع فاسد کي کيږي، نه په بيع صحيح کي، نو ثابته سوه چي دا بيع فاسد او ناجائز ده.

**د طرفينو دليل**: دا دی چي په دې بيع کي د بيع رکن يعني ايجاب او قبول له خپل اهل يعني له عاقل او بالغ (عاقدينو) ځخه صادر سوی دی او د بيع د محل يعني د مملوک غلام وطرف ته منسوب دی، لهذا کله چي په

[1] تخريج. أخرجه أبو داود في كتاب الجهاد بمعناه، باب الرخصة في المدركين، حديث رقم: ٢٦٩٧.

دواړه عاقدينو کي د بيع اهليت ستة او په مبيع کي د محل کېدلو صلاحيت ستة . نو بيا به د بيع په صحيح کېدلو او منعقد کېدلو کي څه حرج او اشکال وي؟ بلکي هغه به صحيح او جائز وي. ها! صرف دا خبره ستة چي کراهت د مجاوره معنیٰ په وجه راغلی دی، او مجاوره معنیٰ "د شفقت پرېښوول او د صغيرينو په زړه کي وحشت پيدا کول" دي، نو دا د "سوم علی السوم" سره مشابه سو، يعني څرنګه چي "سوم علی السوم" د مجاوره معنیٰ په وجه مکروه دي، همداسي به د دوو نابالغو غلامانو په مينځ کي چي د تفريق کولو په وجه کوم شفقت او رحم پرېښوول کيږي د هغه په وجه به دا بيع هم مکروه وي.

وإن کانا کبيرين إلخ : فرمايي که غلامان دواړه بالغ وي او په دواړو کي قرابت محرمه هم موجود وي، نو بيا په تفريق کولو کي هيڅ کراهت او بدي نسته، ځکه چي د دوی په باره کي حديث نه دی وارد سوی، ځکه د حضرت علي ﷺ حديث خو د صغيرينو په باره کي وارد سوی دی، او له هغه څخه مخکي حديث د مور او زوی يعني د کبير او صغير په باره کي وارد سوی دی، او مخکي دا معلومه سوه چي دا دواړه حديثونه خلاف القياس وارد سوي دي، او کوم شی چي خلاف القياس ثابت وي هغه د خپل مورد سره خاص وي او پر هغه بل شی قياسول جائز نه وي. نو ځکه د صغيرينو په مينځ کي او د صغير او کبير په مينځ کي به واقعي تفريق کول مکروه وي لېکن د کبيرينو په مينځ کي به تفريق کول مکروه نه وي.

همدارنګه د صغيرينو او د صغير او کبير په مينځ کي چي په تفريق کولو سره کوم د شفقت او نګرانی د پرېښوولو خرابي راځي، هغه د کبيرينو په مينځ کي په تفريق کولو سره هم نه راځي، ځکه کبير (بالغ غلام) نه ديو چا شفقت ته محتاج وي او نه نګراني او پاملرني ته محتاج وي.

د کبيرينو په مينځ کي د تفريق نه مکروه کېدلو واضح دليل دا دی چي د اسکندريه باچا "مقوقس" د نبي ﷺ په خدمت کي د تحفې په توګه دوې مينځې او يوه غاتره واستول، او هغه مينځې دواړي بالغه او يو تر بله سکه خوندي وې، د يوې نوم ماريه وه او د بلې نوم سيرين وو، ماريه نبي کريم ﷺ د ځان لپاره انتخاب کړه (چي له هغې څخه ابراهيم پيدا سو)، او سيرين يې حسان بن ثابت ﷺ ته په تحفه کي ورکړه. نو د رسول الله ﷺ له دې عمل څخه هم دا ثابتيږي چي د کبيرينو په مينځ کي تفريق کول بېله کراهته جائز دی که څه هم د هغوی په مينځ کي قرابت محرمه موجود وي. فقط والله اعلم وعلمه اتم



# بَابُ الْإِقَالَةِ

(دا) باب د "اقالې" (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح**: ځیني حضرات وایي چې "اقاله" له "قول" څخه مشتق ده او د همزه د "سلب" لپاره ده، نو معنیٰ یې دا ده "مخکنی قول سلبول او زائلول" (یعني خپله مخکنی خبره [او بیع] زائلول).

لېکن د هدایې دوو غټو شارحینو علامه ابن الهمام او علامه عیني رَحِمَهُمَا الله تر ژور تحقیق وروسته ویلي دي چې "اقاله" له "قیل" څخه مشتق ده (یعني د اقالې اصل ماده: "ق، ي، ل" ده) چې د هغه معنیٰ ده "بیع ماتول" لکه څرنګه چې د "قِلْتُ الْبَيْعَ" معنیٰ ده "ما بیع ماته کړه". او دلیل پر دې خبره چې اقاله له "قیل" څخه مشتق ده، دا دی چې "قِلْتُ الْبَيْعَ" د قاف په کسره سره ویل کېدای سي، نه په ضمه سره، او د قاف کسره د اجوف یایي په صورت کي راځي، نه د اجوف واوي په صورت کي، ځکه د اجوف واوي په صورت کي د فاء کلمه مضمومه وي لکه "صُمْتُ". همدارنګه د لغت په زیاتره غټو کتابونو کي اقاله د قاف مع الیاء په فصل کي ذکر سوې ده، نو دا هم پر دې خبره دلالت کوي چې اقاله له "قیل" څخه مشتق ده. لنډه دا چې د اقالې لغوي معنیٰ ده: ماتول. او د شریعت په اصطلاح کي یې معنیٰ ده: "رَفْعُ عَقْدِ الْبَيْعِ وَإِزَالَتُه" (یعني بیع ختمول او زائلول [پښېمانه کېدل]).

یعني د اقالې مطلب دا دی چې له رانیولو څخه وروسته مشتري پښېمانه سي او بائع ته ووایي چې خپل شی (مبیع) واپس واخله! او ثمن راکړه! او بائع هم داسي وکړي نو دې ته "اقاله" وایي، یا بائع د شي له خرڅولو څخه وروسته پښېمانه سي او مشتري ته ووایي چې ما ته خپل شی واپس کړه! او ثمن واپس واخله! او مشتري داسي وکړي، نو دې ته "اقاله" وایي.

او صاحب د کتاب ځکه اقاله له بیع فاسد او بیع مکروه څخه وروسته ذکر کړې ده چې بیع فاسد او بیع مکروه د معصیت او ګناه په وجه فسخ کول ضروري دي، او د فسخ کولو آسانه لاره "اقاله" ده. نو ځکه یې تر بیع فاسد او مکروه وروسته د اقالې بحث ذکر کړی دی.

## د "اقالې" حکم او فضیلت

الْإِقَالَةُ جَائِزَةٌ فِي الْبَيْعِ بِمِثْلِ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ اقاله په بیع کي د اول ثمن د مثل په عوض کي جائز ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَام: "مَنْ أَقَالَ [1] نَادِمًا بَيْعَتَهُ ځکه رسول الله ﷺ فرمایلي دي: "څوک چي دیو پښېمانه کس د بیع اقاله وکړي [یعني د هغه سره بیع ماته کړي] أَقَالَ اللهُ عَثَرَاتِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ" الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ د هغه خطاګاني لیري کړي وَلِأَنَّ الْعَقْدَ حَقُّهُمَا او ځکه چي عقد [بیع] د دواړو عاقدَینو حق دی فَيَمْلِكَانِ رَفْعَهُ دَفْعًا لِحَاجَتِهِمَا نو ځکه هغوی دواړه به د خپل ضرورت لیري کولو په خاطر د عقد د لیري کولو [ختمولو] اختیار لري.

**اللغات**: ﴿إقاله﴾ د بیع ختمولو عقد. ﴿عثرات﴾ جمع د عَثْرَة ده: تېروتني، خطاګاني. ﴿يملكان﴾ له ضرب څخه د مضارع غائب تثنیه صیغه ده: مالک کېدل، ملکیت لرل، اختیار لرل.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي اقاله د اول ثمن د مثل په عوض کي جائز ده. د اقالې پر جواز د ټولو مسلمانانو اجماع ده؛ دلیل د رسول الله ﷺ دا حدیث دی: "مَنْ أَقَالَ نَادِمًا بَيْعَتَهُ أَقَالَ اللهُ عَثَرَاتِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ" (یعني که څوک له بیع کولو څخه وروسته پر خپل فعل پښېمانه سي او د اقاله کولو اراده ښکاره کړي، نو که دویم عاقد د هغه د بیع اقاله وکړي یعني بیع فسخ کړي، نو الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ د هغه [دویم عاقد] تېروتني او خطاګاني معاف کړي). ګواکي پر اقاله کولو رسول الله ﷺ د ثواب خبر ورکړی دی، یا د ثواب دعاء یې کړې ده، او دا دواړه پر مشروع امر مُرتّب کیږي، نه پر غیر مشروع امر (مطلب دا چي ثواب صرف په مشروع او جائز کار سره حاصلیږي). نو ثابته سوه چي اقاله مشروع ده.

ولأن العقد إلخ: دویم دلیل دا دی چي اقاله د عقد ختمولو (ماتولو) ته وي او عقد د عاقدَینو حق دی. ځکه چي عقد د هغوی دواړو په رضا سره منعقد سوی دی، لهذا کله چي عقد د عاقدَینو حق دی او د دوی په خوښې او رضا سره منعقد سوی دی، نو ځکه د ضرورت په وخت کي به دوی ته د هغه د ختمولو پوره، پوره اختیار هم وي.

---

[1] تخریج: أخرجه ابو داؤد في كتاب البيوع، باب في فضل الإقالة، حديث رقم: ۳۴۶۰.

## له اول ثمن څخه د زیات یا کم ثمن په عوض کې اقاله کول

فَإِنْ شَرَطَ أَكْثَرَ مِنْهُ أَوْ أَقَلَّ او که چیرې [یو عاقد] له اول ثمن څخه د زیات ثمن یا د کم ثمن شرط ولګوي فَالشَّرْطُ بَاطِلٌ نو دا شرط باطل دی وَيَرُدُّ مِثْلَ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ او بائع به د اول ثمن مثل واپس کوي [یعني په هر صورت کې به بائع د اول ثمن په اندازه ثمن واپس کوي. زیاتوب یا کمي به نه پکښې کوي]

وَالْأَصْلُ: أَنَّ الْإِقَالَةَ فَسْخٌ فِي حَقِّ الْمُتَعَاقِدَيْنِ بَيْعٌ جَدِيدٌ فِي حَقِّ غَيْرِهِمَا او اصل دا دی: چې اقاله د عاقدینو په حق کې فسخ ده [او] له هغوی څخه بغیر د بل چا په حق کې بیع جدید [نوې بیع] ده إِلَّا أَنْ لَا يُمْكِنَ جَعْلُهُ فَسْخًا مګر دا چې اقاله فسخ ګرځول ناممکن وي فَتَبْطُلُ نو [په دې صورت کې] به اقاله باطلیږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ هُوَ بَيْعٌ ۞ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز اقاله بیع ده إِلَّا أَنْ لَا يُمْكِنَ جَعْلُهُ بَيْعًا مګر دا چې هغه بیع ګرځول ممکن نه وي فَيُجْعَلُ فَسْخًا نو [بیا] به هغه [اقاله] فسخ ګرځول کیږي إِلَّا أَنْ لَا يُمْكِنَ لیکن که هغه [فسخ ګرځول هم] ممکن نه وي فَتَبْطُلُ نو هغه [اقاله] به باطلیږي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ هُوَ فَسْخٌ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز اقاله فسخ ده إِلَّا إِذَا تَعَذَّرَ جَعْلُهُ فَسْخًا مګر کله چې هغه فسخ ګرځول متعذر [ناممکن] وي فَيُجْعَلُ بَيْعًا نو [بیا] به هغه بیع ګرځول کیږي إِلَّا أَنْ لَا يُمْكِنَ لیکن که هغه [بیع ګرځول هم] ممکن نه وي فَتَبْطُلُ نو هغه به باطلیږي لِمُحَمَّدٍ: أَنَّ اللَّفْظَ لِلْفَسْخِ وَالرَّفْعِ د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې لفظ د "اقاله" [په لغت کې] د فسخ کولو او لیرې کولو لپاره دی [یعني د "اقاله" لغوي معنیٰ ده: فسخ کول او ختمول] وَمِنْهُ يُقَالُ: أَقِلْنِي عَثَرَاتِي او له همدې [معنیٰ] څخه ویل کیږي: زما خطاء [تېروتنه] لیرې کړه! [ختم کړه!] فَتُوَفِّرُ عَلَيْهِ قَضِيَّتَهُ نو ځکه لفظ د "اقاله" ته به هغه معنیٰ پوره ورکول کیږي کوم چې د لغت مقتضیٰ ده [یعني د اقالې لفظ ته به خپل هغه معنیٰ پوره ورکول کیږي کوم چې لغت د هغه تقاضا کوي. چې هغه فسخ کول او لیرې کول (ختمول) دي] وَإِذَا تَعَذَّرَ او کله چې دا

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: والصحيح قول الإمام أبي حنيفة رَحِمَهُ الله الخ. (رد المحتار ج:۴، ص:۱۶۲)، وكذا في الهندية (ج:۳، ص:۱۵۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۵۰]

معنیٰ متعذره سي يُحْمَلُ عَلٰى مُحْتَمَلِهٖ وَهُوَالْبَيْعُ نو اقاله به پر خپله محتمله معنیٰ يعني پر بيع حمل كيږي أَلَاتَرٰى أَنَّهٗ بَيْعٌ فِي حَقِّ الثَّالِثِ آيا ته نه ګورې! چې اقاله د دريم كس [يعني له عاقدينو څخه بغير د بل چا (شفيع)] په حق كي بيع ده وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّهٗ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ بِالتَّرَاضِي او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې اقاله په رضا سره مال په مال سره بدلول دي وَهٰذَا هُوَحَدُّ الْبَيْعِ او همدا د بيع تعريف دی وَلِهٰذَا يَبْطُلُ بِهَلَاكِ السِّلْعَةِ او له همدې كبله اقاله د سامان [مبيع] په هلاكېدلو سره باطليږي وَيُرَدُّ بِالْعَيْبِ وَتَثْبُتُ بِهِ الشُّفْعَةُ او [له همدې كبله په اقاله كې مبيع] د عيب په وجه واپس كيږي او د اقالې په ذريعه د شفعې حق ثابتيږي وَهٰذِهٖ أَحْكَامُ الْبَيْعِ او دا [تول] د بيع احكام دي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ اللَّفْظَ يُنْبِئُ عَنِ الرَّفْعِ وَالْفَسْخِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې لفظ د "اقاله" د ليرې كولو [ختمولو] او فسخ كولو خبر وركوي كَمَا قُلْنَا لكه [څه مخكې] چې موږ وويل وَالْأَصْلُ إِعْمَالُ الْأَلْفَاظِ فِي مُقْتَضَيَاتِهَا الْحَقِيقِيَّةِ او اصل دا دی چې الفاظو ته د هغوی د حقيقي مقتضا عمل وركول سي [يعني اصل دا دی چې الفاظو ته په خپله حقيقي معنیٰ كي عمل وركول سي] وَلَا يَحْتَمِلُ ابْتِدَاءُ الْعَقْدِ لِيُحْمَلَ عَلَيْهِ عِنْدَ تَعَذُّرِهٖ او لفظ د "اقاله" د عقد د ابتداء احتمال نه لري چې د فسخ د متعذر كېدلو په وخت كي لفظ د "اقاله" پر هغه حمل كړی سي لِأَنَّهٗ ضِدُّهٗ ځكه چې عقد [بيع] د فسخ ضد دی وَاللَّفْظُ لَا يَحْتَمِلُ ضِدَّهٗ او لفظ د خپل ضد احتمال نه لري فَتَعَيَّنَ الْبُطْلَانُ نو ځكه باطلېدل مُتعين سوه وَكَوْنُهٗ بَيْعًا فِي حَقِّ الثَّالِثِ أَمْرٌ ضَرُورِيٌّ او د دريم كس په حق كي د اقالې بيع كېدل يو ضروري امر دی [يعني د ضرورت پر بناء ثابت دی] لِأَنَّهٗ يَثْبُتُ بِهٖ مِثْلُ حُكْمِ الْبَيْعِ وَهُوَ الْمِلْكُ لَا مُقْتَضَى الصِّيْغَةِ ځكه چې په اقاله سره د بيع د حكم مثل يعني ملكيت ثابتيږي، نه د "اقاله" د لفظ مقتضا [يعني په هغه سره د "إقاله" د لفظ مقتضا نه ثابتيږي] إِذْ لَا وِلَايَةَ لَهُمَا عَلٰى غَيْرِهِمَا ځكه چې د بائع او مشتري لپاره [له خپل ځان څخه بغير] پر بل چا ولايت نسته.

**اللغات**: ﴿أصل﴾ قاعده، ضابطه، أصول. ﴿فَسْخ﴾ د فتح د باب مصدر دی: معامله او سودا ماتول، بيع ختمول. ﴿عثرة﴾ خطاء، تېروتنه، ګناه. ﴿تـوفر﴾ د تفعيل له بابه د مضارع صيغه ده: په پوره توګه وركول. ﴿قضيّة﴾ تقاضا، مقتضیٰ. فتوفر عليه قضيته: د دې مطلب دا دی چې د لفظ كومه

خپله (اصل) معنیٰ ده. لفظ به پر هغه حمل کیږي، یعني اقاله به پر فسخ حمل کیږي. ﴿محتمل﴾ لفظ چي د کومي معنیٰ احتمال لري، هغه ته "محتمل" وايي (يعني احتمالي معنیٰ). ﴿حد﴾ تعريف. ﴿ينبئ﴾ د افعال مضارع ده: خبر ورکول. ﴿مقتضى﴾ دا منطقي لفظ دی، د دې مطلب دا دی چي د لفظ خپله اصلي معنی يو څه وي ليکن د لفظ تقاضا بل څه وي (يعني لفظ د بلي معنیٰ تقاضا هم کوي) نو هغه ته مقتضیٰ (مقتضا) وايي. لکه څرنګه چي د "اقاله" معنیٰ ده: ليري کول (ختمول). ليکن د هغه مقتضا ده: د بائع ملکيت ثابتېدل (ثبوتُ الملک). ﴿الصيغة﴾ لفظ.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که په اقاله کي مشتري له اول ثمن څخه د زيات ثمن اخيستلو شرط ولګوي يا بائع له اول ثمن څخه د کم ثمن ورکولو شرط ولګوي نو دا شرط باطل دی، او پر بائع د اول ثمن واپس کول واجب دي. مثلاً بائع يو شی په پنځه سوه (۵۰۰) روپۍ خرڅ کړي او پر ثمن بائع قبضه وکړي، مشتري پر مبيع قبضه وکړي، بيا د دوی په مينځ کي اقاله واقع سي. نو پر بائع پنځه سوه روپۍ واپس کول واجب دي، له پنځه سو روپو څخه د زياتو يا کمو روپو شرط لګول صحيح نه دي، لهذا که بائع د څلور سوه ورکولو شرط ولګوي يا مشتري د پنځه نيم سوه اخيستلو شرط ولګوي، نو دا شرط باطل دی او پر بائع فقط پنځه سوه روپۍ واپس کول لازم دي.

**د امام صاحب مسلک:** والأصل إلخ: فرمايي چي د امام صاحب رحمه الله په نېز اقاله د عاقدَينو په حق کي فسخ ده (يعني کله چي دوی اقاله وکړي نو ګواکي هغوی په خپل مينځ کي بيع فسخ کړه). او له هغوی څخه بغير د بل چا په حق کي بيع جديد (نوې بيع) ده.

**اوله وجه:** د عاقدَينو په حق کي د بيع فسخ کېدلو اوله وجه دا ده چي پر بائع فقط د اول ثمن واپس کول واجب دي او د زائد يا کم ثمن چي کوم شرط لګول سوی وي هغه باطل دی، نو که چيري اقاله د عاقدَينو په حق کي فسخ نه وای بلکي بيع وای، نو کوم څه چي هغوی ټاکلی دي (برابره ده هغه له اول ثمن څخه زيات وي او که له اول ثمن څخه کم وي) نو هغه به واجب وای. ځکه په بيع کي چي عاقدين کوم ثمن وټاکي خاص هغه ثمن واجبيږي او له هغه څخه بغير نور ثمن نه واجبيږي. نو په اقاله کي پر بائع د اول ثمن واجبېدل او د عاقدَينو د ټاکل سوي ثمن نه واجبېدل د دې خبري دليل دی چي اقاله د عاقدينو په حق کي فسخ (فسخُ البيع) ده، او بيع جديد نه ده.

**دويمه وجه:** دا ده چي اقاله په فاسد شرط سره نه باطليږي، لهذا که اقاله د عاقدينو په حق کي بيع وای نو هغه به په فاسد شرط سره باطلېدای؟ لکه څرنګه چي بيع په فاسد شرط سره باطليږي، نو په

فاسد شرط سره د اقالې نه باطلېدل د دې خبري دلیل دی چې اقاله د عاقدَینو په حق کي فسخ ده، بیع نه ده.

**د ربیمه وجه**: دا ده چې که تر اقاله کولو وروسته بائع له مشتري څخه خپل مبیع واپس نه واخلي بلکي هغه پر مشتري خرڅه کړي، نو دا بیع جائز ده، له دې څخه هم معلومه سوه چې اقاله د عاقدَینو په حق کي فسخ ده؛ ځکه که اقاله د عاقدَینو په حق کي بیع وای نو دا صورت به جائز نه وای، ځکه چې دا به له قبضه کولو څخه مخکي د مبیع خرڅول وای، حال دا چې له قبضه کولو څخه مخکي د مشتري لپاره د مبیع خرڅول جائز نه دي.

او که چیري تر اقاله کولو وروسته بائع له مبیع قبضه کولو څخه مخکي پر بل چا مبیع خرڅه کړي (یعني له مشتري څخه بغیر پر بل چا یې خرڅه کړي)، نو دا جائز نه دي؛ ځکه له عاقدَینو څخه بغیر د بل چا په حق کي اقاله "بیع جدید" ده، او څرنګه چې بیع پر مبیع له قبضه کولو څخه مخکي جائز نه ده، نو ځکه موږ وایو چې که بائع (کوم چې په اقاله کي مشتري دی) پر مبیع له قبضه کولو څخه مخکي هغه خرڅه کړي نو دا جائز نه دي.

او د دې فایده چې "اقاله د بل چا په حق کي بیع جدید ده" په دې مثال کي ښکاره کیږي چې که څوک یو کور رانیسي، او شفیع د حق الشفعه مطالبه نه وکړي او خپل حق پرېږدي، بیا عاقدَین اقاله وکړي او کور د بائع په ملکیت کي راسي، بیا هغه شفیع د حق الشفعه (د شفعي د حق) مطالبه وکړي نو هغه ته د دې اختیار سته یعني اوس هم شفیع د شفعي طلب او دعویٰ کولای سي، ځکه چې د شفیع په حق کي اقاله بیع ده، یعني ګواکي مشتري پر بائع هغه کور خرڅ کړی کوم چې یې له هغه څخه رانیولی وو، او د بیع په صورت کي شفیع ته حق الشفعه حاصلیږي، نو ځکه د اقالې په صورت کي به هم شفیع ته حق الشفعه حاصلیږي او هغه ته به د حق الشفعه د طلب او دعویٰ اختیار وي. لنډه دا چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز اقاله د عاقدَینو په حق کي فسخ ده او له عاقدَینو څخه بغیر د بل چا په حق کي بیع جدید ده، لیکن که دا ممکنه نه وي چې اقاله فسخ وګرځول سي نو اقاله باطلیږي، مثلاً یو سړی مینځه خرڅه کړي او مشتري پر هغې قبضه وکړي، بیا له دې مینځي څخه بچی پیدا سي، نو اوس که د هغې عاقدَین اقاله کول وغواړي نو اقاله صحیح نه ده بلکي باطله ده؛ ځکه چې اقاله د عاقدَینو په حق کي فسخ (د بیع فسخ کول) دي، او په مبیع کي داسي زیاتوب کوم چې له مبیع څخه جلا وي (یعني منفصله زیاتوب) د بیع فسخ کول منع کوي، نو ځکه دغه منفصله زیاتوب یعني بچی به له فسخ البیع څخه مانع وي، لهذا کله چې د بچي په وجه د بیع فسخ کول ممکن نه سوه، نو ځکه اقاله به نه صحیح کیږي بلکي هغه به باطلیږي او اوله بیع به پر خپل مخکني حال پاتیږي.

**د امام ابو یوسف مسلک**: د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز اقاله بیع ده، لېکن که هغه بیع ګرځول ممکن نه وي نو فسخ (فسخُ البیع) به ګرځول کیږي، او که فسخ ګرځول ممکن نه وي نو اقاله باطلیږي، مثلاً یو سړی د پنځه سوه روپو په عوض کې غلام رانیسي، مشتري پر غلام قبضه وکړي او بیا دواړه اقاله وکړي، نو دا اقاله بیع ده، یعني ګواکې مشتري پر بائع هغه غلام خرڅ کړی کوم چې یې په پنځه سوه رانیولی وو. او که مشتري پر غلام له قبضه کولو څخه مخکې اقاله وکړي نو بیا اقاله بیع ګرځول ممکن نه دي؛ ځکه چې پر منقول شي له قبضه کولو څخه مخکې د هغه خرڅول جائز نه دي. او که څوک د پنځه سوه روپو په عوض کې غلام رانیسي او پر غلام له قبضه کولو څخه مخکې د لس منه غنمو په عوض کې اقاله وکړي نو دا اقاله نه بیع ګرځول ممکن دي؛ ځکه چې مشتري پر غلام له قبضه کولو څخه مخکې اقاله کړې ده، او نه دا اقاله فسخ ګرځول ممکن دي؛ ځکه چې فسخ (د بیع فسخ کول) د اول ثمن په عوض کې وي او دلته هغه د لس منه غنمو په عوض کې ده (یعني دلته دواړو عاقدَینو لس منه غنم ثمن ګرځولی دی) حال دا چې د اول ثمن له جنس څخه چې د کوم شي جنس خلاف وي د هغه په عوض کې بیع نه فسخ کیږي، لهذا کله چې دا اقاله نه بیع ګرځول ممکن دي او نه هغه فسخ ګرځول ممکن دي، نو ځکه په دې صورت کې به اقاله باطلیږي، او کله چې اقاله باطله سوه، نو اول عقد به پر خپل حال باقي پاتیږي.

**د امام محمد مسلک**: د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز اقاله فسخ (فسخُ البیع) ده، او که هغه فسخ ګرځول ممکن نه وي، نو بیع به ګرځول کیږي، او که هغه بیع ګرځول هم ممکن نه وي، نو اقاله باطلیږي؛ مثلاً یو سړی د پنځه سوه روپو په عوض کې مینځه رانیسي او پر مینځې قبضه وکړي، بیا پر پنځه سوه روپو اقاله وکړي، نو دا اقاله فسخ البیع ده (یعني ګواکې عاقدَینو بیع فسخ کړه)، او که هغه مینځه بچې وزېږوي نو بیا دا اقاله فسخ ګرځول ممکن نه دي؛ ځکه چې منفصله زیاتوب فسخ البیع منع کوي، لهذا کله چې په دې صورت کې فسخ ممکن نه ده نو هغه به بیع ګرځول کیږي، یعني دا به ویل کیږي چې مشتري مینځه او بچې دواړه د پنځه سوه روپو په عوض کې پر بائع خرڅ کړل. او که څوک د پنځه سوه روپو په عوض کې مینځه رانیسي او مشتري د مینځې له قبضه کولو څخه بغیر د لس منه غنمو په عوض کې اقاله وکړي، نو دا اقاله نه فسخ ګرځېدای سي او نه بیع، فسخ خو ځکه نه سي کېدلای چې فسخ د اول ثمن په عوض کې وي. نه د اول ثمن له جنس څخه د خلاف شي په عوض کې، حال دا چې دلته د اول ثمن له جنس څخه پر خلاف شي اقاله سوې ده، او بیع ځکه نه سي کېدلای چې پر مبیع له قبضه کولو څخه مخکې بیع نه جائز کیږي، حال دا چې دلته مشتري پر مبیع

(يعني پر مينځي) له قبضه کولو ځخه مخکي اقاله کړي ده، لهذا کله چي نه فسخ ممکن ده او نه بيع ممکن ده، نو اقاله به باطليږي، او کله چي اقاله باطله ده، نو اول عقد به پر خپل حال باقي پاتيږي.

**د امام محمد دليل**: دا دی چي د "اقاله" لغوي معنیٰ ده: فسخ کول او ليري کول (ختمول)، لکه ځرنګه چي په دعاء کي ويل کيږي: "أَقِلْنِيْ عَثْرَتِيْ" (اي الله! زما خطاء [ګناه] ختم کړه! [معاف کړه])، او د أصول الفقه په کتابونو کي ليکل سوي دي چي تر ځو په حقيقت عمل کول ممکن وي تر هغه وخته پوري به د مجاز وطرف ته رجوع نه کيږي، نو ځکه پر خپل حقيقي معنیٰ باندي د "اقاله" د لفظ په حمل کولو سره موږ وويل چي اقاله فسخ (فسخُ البيع) ده. ليکن کله چي پر حقيقي معنیٰ يعني پر فسخ حمل کول متعذر (ناممکن) وي، نو د هغه پر محتمله (احتمالي) معنیٰ به حمل کيږي، او د "اقاله" محتمله معنیٰ بيع ده، همدا وجه ده چي اقاله د بل چا (غيرِ عاقدَين) په حق کي بيع شمارل کيږي، لهذا کله چي لفظ د "اقاله" د بيع احتمال لري، نو ځکه د حقيقي معنیٰ د متعذر کېدلو په صورت کي به اقاله پر بيع حمل کيږي.

**د امام ابو يوسف دليل**: دا دی چي اقاله مبادلةُ المال بالمال بالتراضي ته وايي (يعني په رضا سره مال په مال سره بدلول)؛ ځکه چي په اقاله کي مشتري مبيع واپس کوي او خپل ثمن واپس اخلي، او همدا (مبادلة المال بالمال بالتراضي) د بيع تعريف دی، همدا وجه ده چي د مبيع په هلاکېدلو سره اقاله باطليږي لکه ځرنګه چي په بيع کي له مبيع ورسپارلو ځخه مخکي که مبيع د بائع په قبضه کي هلاکه سي نو بيع باطليږي، او د مشتري په قبضه کي که مبيع عيبداره سي (يعني په مبيع کي يو عيب پيدا سي) نو د اقالې په صورت کي بائع د مشتري وطرف ته مبيع واپس کولای سي، لکه ځرنګه چي په بيع کي مشتري د عيب په وجه مبيع د بائع وطرف ته واپس کولای سي، او ځرنګه چي په بيع کي شفيع ته حق الشفعه حاصليږي، همداسي په اقاله کي هم د شفيع لپاره حق الشفعه ثابتيږي، لهذا کله چي لفظ د "اقاله" د مبيع پر معنیٰ هم مشتمل دی او د اقالې لپاره د بيع احکام هم ثابت دي، نو اقاله کول په حقيقت کي بيع کول سوه، نو ځکه موږ وايو چي اقاله بيع ده. ليکن کله چي هغه بيع ګرځول متعذر سي، نو د لغو کېدلو ځخه د عاقدَينو د کلام ساتلو لپاره به اقاله پر فسخ حمل کيږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي د "اقاله" لغوي معنیٰ ده: فسخ کول او ليري کول، لکه د امام محمد رحمه الله د دليل په ضمن کي چي بيان سوه، او اصل (قاعده) دا ده چي الفاظ په خپله حقيقي معنیٰ کي استعمال کړل سي، او که په حقيقي معنیٰ کي استعمالول متعذر (ناممکن) وي، نو د مجاز

وطرف ته به رجوع کیږي، په دې شرط چې مجازي معنیٰ مرادول ممکن وي، نو د دغه اصل (قاعدې) مطابق به اقاله فسخ وي، لیکن د فسخ د متعذر کېدلو په صورت کې به اقاله بیع نه ګرځول کیږي: ځکه چې اقاله د زوال الملک (ملکیت زائلېدلو) لپاره وضع کړی سوې ده، او بیع د ثبوتُ الملک (ملکیت ثابتېدلو) لپاره وضع کړی سوې ده، او یو لفظ د خپل ضد احتمال نه لري (مطلب دا چې لفظ د هغه معنیٰ احتمال نه لري کوم چې د لفظ د معنیٰ سره ضد وي)، لهذا کله چې لفظ د "اقاله" ابتداءً د بیع احتمال نه لري نو ځکه د فسخ د متعذر کېدلو صورت کې اقاله پر بیع حمل کېدای نه سي، او کله چې اقاله پر بیع حمل کېدای نه سيٰ او فسخ متعذر ده، نو ځکه به اقاله باطلیږي.

وکونه بیعًا فی حق الثالث: په دې سره د یو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله دا خبره چې "په اقاله کې د بیع احتمال نسته" صحیح نه ده، ځکه که په اقاله کې د بیع احتمال نه وای لکه څرنګه چې امام صاحب فرمایي نو له عاقدَینو څخه بغیر د بل دریم کس یعنې د شفیع په حق کې اقاله بیع کېدل پکار نه وو، حال دا چې اقاله د دریم کس (شفیع) په حق کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بیع ده (لهذا د فسخ د متعذر والي په صورت کې اقاله باطلېدل پکار نه دي بلکې هغه به پر بیع حمل کیږي او بیع به ګرځول کیږي).

د دې سوال په جواب کې فرمایي چې له عاقدَینو څخه بغیر د بل چا په حق کې د اقالې بیع کېدل ضرورتاً ثابت دي، نه دا چې د اقالې د لفظ مقتضی بیع ده (یعنې هغه په دې وجه نه دي ثابت چې د "إقاله" لفظ د بیع احتمال لري)، تفصیل یې دا دی چې د بیع مقصد ملکیت ثابتېدل (ثبوتُ الملک) وي، او د ملکیت زائلېدل د هغه (ثبوتُ الملک) د لوازماتو څخه دي، یعنې کله چې د مشتري لپاره د مبیع ملکیت ثابت سي نو لازماً (خامخا) به له مبیع څخه د بائع ملکیت زائلیږي، او کله چې د بائع لپاره د ثمن ملکیت ثابت سي نو لازماً به له هغه څخه د مشتري ملکیت زائلیږي، او اقاله موضوع ده د زوال الملک او ابطالُ الملک لپاره، یعنې اقاله وضع کړی سوې ده له مبیع څخه د مشتري د ملکیت او له ثمن څخه د بائع د ملکیت زائلولو لپاره، لیکن ثبوتُ الملک د هغه د لوازماتو څخه دی، یعنې کله چې له مبیع څخه د مشتري ملکیت زائل سي نو خامخا به هغه د بائع لپاره ثابتیږي او کله چې له ثمن څخه د بائع ملکیت زائل سي نو خامخا به هغه د مشتري لپاره ثابتیږي.

حاصل دا چې په اقاله کې د بائع ملکیت په مبیع کې او د مشتري ملکیت په ثمن کې ضرورتاً ثابت سوی دی، نو ځکه د اقالې د مُوجب یعنې د فسخ او زوال الملک اعتبار د عاقدَینو په حق کې

سوی دی (ځکه چي د اقالې عاقدَینو ته پر خپل ځان ولایت حاصل دی. نو ځکه د هغوی په حق کي اقاله فسخ ګرځول سوې ده)، او کله چي د عاقدَینو په حق کي د اقالې د مُوجب یعني د فسخ اعتبار سوی دی نو له عاقدَینو څخه بغیر د بل دریم کس په حق کي به د اقالې د لازم (لازمي معنیٰ) یعني د ثبوتُ الملک اعتبار کیږي (ځکه چي عاقدَینو ته له خپل ځان څخه بغیر پر بل چا د فسخ کولو ولایت نه دی حاصل). او ثبوتُ الملک د بیع حکم دی، نو ثابته سوه چي له عاقدَینو څخه بغیر د بل چا په حق کي اقاله ضرورتاً بیع ده، او کوم شی چي ضرورتاً (د ضرورت په وجه) وي هغه د ضرورت مطابق ثابتیږي؛ ځکه همدا قاعده ده چي "اَلضَّرُوْرَةُ تَتَقَدَّرُ بِقَدَرِهَا"، لهذا د شفیع په حق کي خو به اقاله د بیع معنیٰ ورکوي لېکن د عاقدَینو په حق کي به هغه د بیع معنیٰ نه ورکوي، نو ځکه ستاسو دا اعتراض غلط دی چي "له عاقدَینو څخه بغیر د بل دریم کس په حق کي د اقالې بیع کېدل د دې خبري دلیل دی چي اقاله د بیع احتمال لري"، ځکه چي اقاله د بیع احتمال نه لري، بلکي له عاقدَینو څخه بغیر د بل چا (شفیع) په حق کي اقاله ضرورتاً بیع ګرځول سوې ده.

## له اول ثمن څخه د زیات ثمن د شرط لګولو حکم

إِذَا ثَبَتَ هٰذَا نَقُولُ إِذَا شَرَطَ الْأَكْثَرَ کله چي دا ثابته سوه نو موږ وایو: چي کله [یو عاقد] له اول ثمن څخه د زیات ثمن شرط ولګوي فَالْإِقَالَةُ عَلَى الثَّمَنِ الْأَوَّلِ نو اقاله به پر اول ثمن [واقع] وي [یعني اقاله (فسخ) به د اول ثمن په عوض کي وي] لِتَعَذُّرِ الْفَسْخِ عَلَى الزِّيَادَةِ ځکه چي فسخ پر زیاتوب [واقع کېدل] متعذر دي [یعني د زائد ثمن په عوض کي فسخ واقع کېدل ناممکن دي] إِذْ رَفْعُ مَا لَمْ يَكُنْ ثَابِتًا مُحَالٌ ځکه کوم شی چي ثابت نه وي د هغه لیري کول [ختمول] محال دي فَيَبْطُلُ الشَّرْطُ نو ځکه شرط به باطلیږي لِأَنَّ الْإِقَالَةَ لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ ځکه چي اقاله په فاسدو شرطونو سره نه باطلیږي بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بیع لِأَنَّ الزِّيَادَةَ يُمْكِنُ إِثْبَاتُهَا فِي الْعَقْدِ ځکه چي په عقد [بیع] کي زیاتوب ثابتول ممکن دي [یعني په بیع کي ثمن زیاتول ممکن دي] فَيَتَحَقَّقُ الرِّبَا نو ځکه ربوا [سود] به ثابت سي أَمَّا لَا يُمْكِنُ إِثْبَاتُهَا فِي الرَّفْعِ لېکن د عقد په لیري کولو [فسخ] کي زیاتوب ثابتول ممکن نه دي وَكَذَا إِذَا شَرَطَ الْأَقَلَّ او همدارنګه کله چي ه کم ثمن شرط ولګوي لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی إِلَّا أَنْ يَحْدُثَ فِي الْمَبِيعِ عَيْبٌ مګر دا چي په مبیع کي یو عیب پیدا سي

فَحِينَئِذٍ جَازَتِ الْإِقَالَةُ بِالْأَقَلِّ نو په دې وخت کې اقاله پر کمن ثمن [هم] جائز ده لِأَنَّ الْحَطَّ يُجْعَلُ بِإِزَاءِ مَا فَاتَ بِالْعَيْبِ ځکه چې [په دې صورت کې] د ثمن کموالی [کمول] به د هغه شي په مقابله کې ګرځول کیږي کوم چې د عیب په وجه فوت سوی وي وَعِنْدَهُمَا فِي شَرْطِ الزِّيَادَةِ يَكُونُ بَيْعًا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د زیاتوب [زائد ثمن] په شرط لګولو کې اقاله بیع ده لِأَنَّ الْأَصْلَ هُوَ الْبَيْعُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ ځکه چې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز خو اصل د اقالې بیع کېدل دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ جَعْلُهُ بَيْعًا مُمْكِنٌ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز اقاله بیع ګرځول ممکن دي فَإِذَا زَادَ لهذا کله چې هغه [پر ثمن] زیاتوب وکړي [یعني پر اول ثمن د زیاتوب کولو شرط ولګوي] كَانَ قَاصِدًا بِهَذَا الْبَيْعَ نو په دې سره به هغه د بیع اراده کونکی وي وَكَذَا فِي شَرْطِ الْأَقَلِّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ او همدارنګه له اول ثمن څخه د کم ثمن په شرط لګولو کې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز لِأَنَّهُ هُوَ الْأَصْلُ عِنْدَهُ ځکه چې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز د اقالې بیع کېدل اصل دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ الله هُوَ فَسْخٌ بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز هغه پر اول ثمن فسخ ده لِأَنَّهُ سُكُوتٌ عَنْ بَعْضِ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ ځکه چې په دې کې د اول ثمن له بعضې څخه سکوت [اختیار سوی] دی وَلَوْ سَكَتَ عَنِ الْكُلِّ وَأَقَالَ او که هغه له ټوله ثمن څخه سکوت کړي وای او اقاله یې کړې وای يَكُونُ فَسْخًا نو دا به فسخ وای فَهَذَا أَوْلَى نو دا [له بعضي ثمن څخه سکوت کول] به په درجه اولیٰ فسخ وي بِخِلَافِ مَا إِذَا زَادَ په خلاف د هغه صورت کله چې [پر اول ثمن] زیاتوب وکړي [یعني د زیاتوب شرط ولګوي] وَإِذَا دَخَلَهُ عَيْبٌ او کله چې په مبیع کې یو عیب داخل سي [یعني که چیرې د مشتري په قبضه کې په مبیع کې یو عیب پیدا سي] فَهُوَ فَسْخٌ بِالْأَقَلِّ نو دا [یعني له اول ثمن څخه د کمن ثمن والا اقاله] پر کم ثمن فسخ ده لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دلیل په وجه کوم چې مونږ بیان کړی.

**اللغات**: ﴿يحدث﴾ د نصر مضارع ده: پیدا کېدل، پېښېدل، ﴿حطّ﴾ د نصر مصدر دی: کمول، ساقطول، ﴿بإزاء﴾ په مقابله کې، په عوض کې، ﴿قاصد﴾ د نصر فاعل دی: قصد کونکی، اراده کونکی.

**تشريح**: صاحب د هدايې فرمايي چي كله دغه اصل او قاعده ثابته سوه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز اقاله فسخ البيع ده او كه اقاله فسخ گرځول ممكن نه وي نو اقاله باطليږي، نو د دغه اصل په رڼا كي موږ وايو چي كله په اقاله كي له اول ثمن څخه د زيات ثمن شرط ولگول سي مثلاً اول ثمن پنځه سوه روپۍ وي لېكن بائع او مشتري پر شپږ سوه روپو (يعني د شپږ سوه روپو په عوض كي) اقاله وكړي، مثلا مشتري دا شرط ولگوي چي بائع به د پنځه سوه پر ځای شپږ سوه واپس كوي (راكوي) او بائع دا شرط منظور كړي، نو اقاله صرف د پنځه سوه روپو په عوض كي صحيح كيږي او د پاته سلو روپو ذكر لغو كيږي.

دليل دا دی چي له اول ثمن څخه د زيات ثمن په عوض كي بيع كول ناممكن دي، ځكه چي د فسخ البيع معنیٰ ده: بيع پر هغه وصف ليري كول پر كوم وصف چي بيع مخكي سوې وي، او له اول ثمن څخه پر زيات ثمن فسخ كول داسي نه دي؛ ځكه له اول ثمن څخه پر زيات ثمن په فسخ كولو كي د هغه شي ليري كول لازميږي كوم چي مخكي ثابت نه وي، يعني پر شپږ سوه روپۍ د فسخ كولو په صورت كي د سلو روپو ليري كول لازميږي، او سل روپۍ مخكي په بيع كي ثابته نه دي، او كوم شی چي ثابت نه وي د هغه ليري كول محال او ناممكن دي، نو ځكه به د اول ثمن څخه د زيات ثمن شرط لگول باطل وي لېكن اقاله به باطله نه وي؛ ځكه چي اقاله په فاسدو شرطونه سره نه باطليږي. لېكن كه دا شرط په بيع كي ولگول سي نو بيع باطليږي، مثلاً پنځه درهمه د شپږو درهمو په عوض كي خرڅ كړل سي نو بيع باطليږي، ځكه چي بيع په فاسدو شرطونو سره باطليږي.

او د بيع فاسدېدلو بله وجه دا ده چي كله په بيع كي يو درهم زيات كړی سي نو په بيع كي دا زياتوب ثابتېدل (او د بيع سره دا زائد درهم لاحق كېدل) ممكن دي، او څرنگه چي دغه زائد درهم خالي عن العوض دی، نو ځكه دا د ربوا (سُود) سره مشابه سو. او د حقيقي ربوا په څېر شبهةُ الربوا هم بيع باطلوي، نو ځكه په دې صورت كي بيع باطليږي، د دې په خلاف اقاله نه باطليږي؛ ځكه اقاله خو نه په فاسد شرط سره باطليږي او نه په اقاله كي د دغه زياتوب ثابتېدل ممكن دي؛ ځكه چي اقاله محض د بيع سره مشابه ده. لهذا د بيع دا خرابي يعني شبهةُ الربوا په اقاله كي په شبهه شبهةُ الربوا سره بدليږي. او مخكي تاسو ووېل چي په شريعت كي شبهة الشبهه لره هيڅ اعتبار نسته (ځكه چي معتبر صرف شبهه ده)، نو ځكه به په اقاله كي په دې شرط سره هيڅ فرق نه راځي بلكي دا شرط به باطليږي او اقاله به صحيح وي.

وكذا إذا شرط الأقل إلخ: همدارنگه كه په اقاله كي له اول ثمن څخه د كم ثمن شرط ولگول سي، مثلاً اول ثمن پنځه سوه روپۍ وي، او د اقاله كولو په وخت كي بائع ووايي چي زه صرف درې سوه روپۍ

واپس کوم (يعني دوه سوه کموم)، نو دا شرط باطليږي او پر اول ثمن يعني پر پنځه سوه روپو اقاله صحيح کيږي؛ ځکه کوم شی چې مخکې ثابت نه وي د هغه ليري کول محال دي. او په بيع کې له اول ثمن څخه د کمولو شرط هم مخکې ثابت نه وو. نو ځکه د اقالې په ذريعه به د هغه ليري کول محال وي، او کله چې دا محال دي، نو ځکه شرط به باطليږي او اقاله به صحيح کيږي. ها! که چيري د مشتري په قبضه کې په مبيع کې يو عيب پيدا سي، نو په داسې صورت کې له اول ثمن څخه پر کم ثمن هم اقاله جائز ده؛ ځکه له اول ثمن څخه چې کوم مقدار کم کړی سوی دی مثلاً دوه سوه روپۍ، دا دوه سوه روپۍ به د مبيع د هغه جزء په مقابله کې ګرځول کيږي کوم جزء چې د مشتري په قبضه کې فوت سوی دی. يعني د عيب په وجه چې د مبيع کوم جزء فوت سوی دی بائع د هغه په مقابله کې د ثمن څه مقدار يعني دوه سوه روپۍ راګرځولي دي، او په دې کې هيڅ حرج نسته. د امام صاحب رَحِمَهُ الله د مذهب حاصل دا سو چې که څوک يو غلام په پنځه سوه روپۍ رانيسي او بيا پر پنځه سوه قاله وکړي (يعني د پنځه سوه روپو په عوض کې اقاله وکړي) نو اقاله صحيح ده، او که پر شپږ سوه اقاله وکړي نو پر پنځه سوه روپو اقاله صحيح ده او د سلو روپو شرط باطل دی (يعني د پنځه سوه روپو په عوض کې اقاله صحيح ده او د پاته سلو روپو شرط باطل دی)، او که پر درې سوه اقاله وکړي او په مبيع کې دننه يو عيب هم پيدا نه سي نو اقاله پر پنځه سوه روپو صحيح ده، او د کمۍ شرط (يعني د دوه سوه روپو شرط) باطل دی، او که په مبيع کې يو عيب پيدا سي نو په داسې صورت کې پر مشروط مقدار يعني پر درې سوه روپو اقاله صحيح ده.

وعندهما إلخ: او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز که په اقاله کې له اول ثمن څخه د زيات ثمن شرط ولګول سي مثلاً اول ثمن پنځه سوه روپۍ وي او مشتري دا شرط ولګوي چې بائع به شپږ سوه روپۍ واپس کوي، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا اقاله بيع ګرځي يعني دا به ويل کيږي چې مشتري چې کومه مبيع په پنځه سوه رانيولې وه هغه يې پر بائع په شپږ سوه خرڅه کړه؛ دليل دا دی چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز خو اصل د اقالې بيع کېدل دي (يعني د هغه په نيز اصل دا دی چې اقاله بيع ده)، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز اصل د اقالې فسخ کېدل دي، ليکن څرنګه چې د زياتوب پر شرط فسخ متعذر (ناممکن) ده، او که اقاله فسخ ګرځول ناممکن وي نو هغه بيع ګرځول کيږي، نو ځکه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز هم دا اقاله بيع ګرځي، لهذا کله چې پر اول ثمن د زياتوب شرط ولګوي نو څرنګه چې په حقيقت يعني په فسخ عمل کول متعذر سو، نو ځکه د لغو کېدلو څخه د عاقدينو د

کلام ساتلو لپاره به د مجاز یعني د بیع وطرف ته رجوع کیږي او دا به ویل کیږي چې په دې کلام سره د عاقدَینو مقصد بیع کول دي، نه د بیع فسخ کول.

وكذا في شرط الأقل إلخ: او که له اول ثمن څخه د کم ثمن شرط ولګول سي، مثلاً بائع ووایي چې ثمن کموم یعني د پنځه سوه روپو پر ځای درې سوه واپس کوم او مشتري دا شرط منظور کړي، نو څرنګه چې د امام ابویوسف رَحِمَهُ الله په نېز د اقالې بیع کېدل اصل دي نو ځکه د دې کمولو د شرط په صورت کې هم د هغه په نېز اقاله بیع ده، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دا اقاله پر اول ثمن فسخ ده، یعني پر بائع اول ثمن یعني پنځه سوه روپۍ واپس کول واجب دي او د کموکو شرط لګول باطل دي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې کله بائع دا وویل چې زه درې سوه روپۍ واپس کوم نو په دې کې د اول ثمن له یوې حصې څخه سکوت اختیار سو او که هغه له ټوله ثمن څخه سکوت کړی وای او اقاله یې کړې وای نو دا به پر ټوله ثمن فسخ وای، لهذا کله چې هغه دلته د اول ثمن له یوې حصې څخه سکوت کړی دی نو دا اقاله به په درجه اولیٰ سره فسخ وي، حاصل دا چې کله له اول ثمن څخه پر کم ثمن د اقاله کولو په صورت کې فسخ ممکن ده، نو ځکه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کې اقاله فسخ ده، او څرنګه چې له اول ثمن څخه پر زیات ثمن د اقاله کولو په صورت کې فسخ ممکن نه ده، نو ځکه په دې صورت کې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز اقاله بیع ده.

وإذا دخله عیب إلخ: صاحب د هدایې فرمایي چې که د مشتري په قبضه کې په مبیع کې یو عیب پیدا سي، نو په دې صورت کې دا له اول ثمن څخه پر کم ثمن اقاله کول پر کم ثمن فسخ ده، پر اول ثمن فسخ نه ده، یعني پر بائع مشروط مقدار یعني درې سوه روپۍ واپس کول واجب دي، پوره ثمن یعني پنځه سوه روپۍ پر واجب نه دي؛ د دې دلیل مخکې تېر سو.

## د اول ثمن له جنس څخه بغیر په بل شي سره د اقاله کولو حکم

وَلَوْ أَقَالَ بِغَيْرِ جِنْسِ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ او که د اول ثمن له جنس څخه بغیر پر بل جنس اقاله وکړي فَهُوَ فَسْخٌ بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر اول ثمن فسخ ده وَيُجْعَلُ التَّسْمِيَةُ لَغْوًا او [د هغه بل جنس] ذکر کول به لغو ګرځول کیږي وَعِنْدَهُمَا بَيْعٌ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا اقاله بیع ده لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړی وَلَوْ وَلَدَتِ الْمَبِيْعَةُ وَلَدًا

او که مبیعه مینځه بچی وزیږوي ثُمَّ تَقَايَلَا بیا دواړه عاقدین اقاله وکړي فَالْإِقَالَةُ بَاطِلَةٌ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز اقاله باطله ده لِأَنَّ الْوَلَدَ مَانِعٌ مِنَ الْفَسْخِ ځکه چي بچی له فسخ څخه مانع دی [یعني بچی د بیع فسخ کول منع کوي] وَعِنْدَهُمَا يَكُونُ بَيْعًا او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دا اقاله بیع ده وَالْإِقَالَةُ قَبْلَ الْقَبْضِ فِي الْمَنْقُولِ وَغَيْرِهِ فَسْخٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او په منقول او غیر منقول دواړو شیانو کي له قبضه کولو څخه مخکي اقاله د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز فسخ ده وَكَذَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ فِي الْمَنْقُولِ او همدارنګه په منقول شي کي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز [له قبضې څخه مخکي والا اقاله فسخ ده] لِتَعَذُّرِ الْبَيْعِ ځکه چي بیع متعذر ده وَفِي الْعَقَارِ يَكُونُ بَيْعًا عِنْدَهُ او په جایداد [یعني په غیر منقول شي] کي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز اقاله بیع ده لِإِمْكَانِ الْبَيْعِ ځکه چي بیع ممکن ده فَإِنَّ بَيْعَ الْعَقَارِ قَبْلَ الْقَبْضِ جَائِزٌ عِنْدَهُ ځکه چي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز له قبضې څخه مخکي د جایداد [غیر منقول شي] بیع جائز ده.

**اللغات**: ﴿التسمية﴾ د تفعیل مصدر دی: نوم اخیستل، ذکر کول، ټاکل، ﴿تقايلا﴾ د تفاعل ماضي ده: یو د بل سره اقاله کول (یو تر بله اقاله کول). ﴿عقار﴾ جایداد، هر هغه شی کوم چي پر خپل ځای ثابت قائم وي او بل ځای ته نقل کېدای نه سي لکه کور، ځمکه او داسي نور.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که له اول ثمن څخه بغیر پر بل جنس اقاله وسي، مثلاً اول ثمن "دراهم" وي او اقاله پر "دنانیرو" وسي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دا اقاله پر اول ثمن یعني د دراهمو په عوض کي فسخ (فسخُ البيع) ده او د دنانیرو ذکر لغوی دی، یعني پر بائع اول ثمن یعني دراهم واپس کول واجب دي او دنانیر واپس کول واجب نه دي او اقاله فسخ ده. او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دا اقاله د اول ثمن څخه بغیر پر بل جنس (دنانیرو) بیع ده، یعني دا به ویل کیږي چي مشتري هغه مبیع کوم چي یې له بائع څخه د دراهمو په عوض کي رانیولې وه هغه یې د دنانیرو په عوض کي پر بائع خرڅه کړه؛ د دواړو دلیل مخکي تېر سو، یعني د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز خود اقالې بیع کېدل اصل دي، نو ځکه د هغه په نیز دا اقاله بیع ده، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز اصل دا دی چي اقاله فسخ وي، لېکن کله چي د اول ثمن څخه بغیر د بل جنس د ذکر کولو په وجه فسخ متعذر (ناممکن) سوه، نو ځکه هغه به بیع ګرځول کیږي؛ ځکه هغه بیع ګرځول ممکن دي، او د امام محمد

رَحِمَهُ الله أصول هم دغه دی چي کله چي اقاله فسخ گرځول ممکن نه وي، نو هغه به بیع گرځول کیږي.

ولو ولدت المبيعة إلخ: صاحب د هدایې فرمایي چي که رانیول سوې مینځه د مشتري له قبضه کولو څخه وروسته بچی وزېږوي، بیا عاقدین اقاله وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا اقاله باطله ده؛ دلیل دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز اقاله فقط فسخ ده، او له قبضې څخه وروسته داسي زیاتوب پیدا کېدل کوم چي له مبیع څخه جلا وي (یعني منفصله زیاتوب) هغه فسخ منع کوي، او بچی هم منفصله زیاتوب دی، نو دا به هم فسخ منع کوي، او کله چي د منفصله زیاتوب په وجه فسخ ممنوع ده نو ځکه اقاله به باطلیږي او بیع به پر خپل حال پاتیږي. لېکن که رانیول سوې مینځه د مشتري له قبضه کولو څخه مخکي بچی وزېږوي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز اقاله صحیح کیږي؛ ځکه چي منفصله زیاتوب له قبضې څخه مخکي فسخ نه منع کوي. او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي که عاقدین د مینځې تر بچي زېږولو وروسته اقاله وکړي نو دا اقاله بیع ده؛ د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز خو ځکه چي د هغه په نېز د اقالې بیع کېدل اصل دي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز ځکه چي کله د منفصله زیاتوب په وجه فسخ ناممکن سوه، نو اقاله به بیع گرځول کیږي، ځکه هغه بیع گرځول ممکن دي، او همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله أصول دی چي که فسخ ممکن نه وي نو اقاله به بیع گرځول کیږي.

والإقالة قبل القبض في المنقول إلخ: د دې عبارت له حل څخه مخکي په دې ځان پوه کړئ! چي له قبضه کولو څخه مخکي د منقوله شیانو بیع (خرڅول) بالاجماع جائز نه ده، او د غیرِ منقوله شیانو بیع لکه د کور او ځمکي بیع له قبضه کولو څخه مخکي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز ده، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز ناجائز ده. اوس د عبارت حاصل دا دی چي مبیع برابره ده منقول شی وي او که غیرِ منقول شی وي که چیري مشتري د هغه له قبضه کولو څخه مخکي اقاله وکړي نو د طرفینو (یعني د امام صاحب او امام محمد رَحِمَهُمَا الله) په نېز دا اقاله فسخ (فسخُ البیع) ده؛ ځکه چي د دوی په نېز اصل همدا دی چي اقاله فسخ ده، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز که مبیع منقول شی وي نو اقاله فسخ ده؛ ځکه د هغه په نېز که څه هم د اقالې بیع کېدل اصل دي خو څرنگه چي دلته مشتري پر منقول شي له قبضه کولو څخه مخکي اقاله کړې ده او له قبضې څخه مخکي د منقول شي بیع ناجائز ده، نو ځکه دا

اقاله بيع ګرځول متعذر سوه، او کله چي اقاله بيع ګرځول متعذر سي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز هغه فسخ ګرځول کيږي، او که مبيع غيرِ منقول شی وي (لکه جايداد يعني کور او داسي نور) نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز اقاله بيع ده؛ ځکه چي د غيرِ منقول شي اقاله بيع ګرځول ممکن دي، او د غير منقول شي اقاله بيع ګرځول ځکه ممکن دي چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز له قبضې څخه مخکي د غيرِ منقول شي بيع جائز ده. (عيني شرحُ الهدايه)

## د ثمن يا مبيع د هلاکېدلو په صورت کي د اقالې حکم

قَالَ: وَهَلَاكُ الثَّمَنِ لَا يَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقَالَةِ فرمايي: او د ثمن هلاکېدل د اقالې صحيح والي نه منع کوي وَهَلَاكُ الْمَبِيعِ يَمْنَعُ مِنْهَا او د مبيع هلاکېدل له هغه څخه منع کوي [يعني له هغه څخه مانع دي] لِأَنَّ رَفْعَ الْبَيْعِ يَسْتَدْعِیْ قِيَامَهُ ځکه چي د بيع ليري کول د هغه د موجودېدلو تقاضا کوي وَهُوَ قَائِمٌ بِالْمَبِيعِ دُونَ الثَّمَنِ او بيع په مبيع سره قائم [ولاړه] ده، نه په ثمن سره [يعني د بيع وجود او قيام په مبيع سره دی] فَإِنْ هَلَكَ بَعْضُ الْمَبِيعِ او که د مبيع يوه حصه هلاکه سي جَازَتِ الْإِقَالَةُ فِي الْبَاقِيْ نو په پاته مبيع کي اقاله جائز ده لِقِيَامِ الْبَيْعِ فِيهِ ځکه چي په پاته مبيع کي [هم] بيع قائم [موجود] ده وَإِنْ تَقَايَضَا او که عاقدينو بيع مقايضه کړې وي تَجُوزُ الْإِقَالَةُ بَعْدَ هَلَاكِ أَحَدِهِمَا نو د يوه عوض تر هلاکېدلو وروسته [هم] اقاله جائز ده وَلَا تَبْطُلُ بِهَلَاكِ أَحَدِهِمَا او د يوه عوض په هلاکېدلو سره اقاله نه باطليږي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَبِيعٌ ځکه چي [په مبيع مقايضه کي] له دواړو عوضونو څخه هر يو مبيع دی فَكَانَ الْبَيْعُ بَاقِيًا نو ځکه به بيع پاته وي.

**اللغات**: ﴿يستدعی﴾ د استفعال مضارع ده: تقاضا کول، ﴿تقايضا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: بيع مقايضه کول، د سامان په بدله کي د سامان بيع کول، مطلب چي له دواړو طرفونو څخه سامان او متعين شی مبيع وي، مثلاً له يوه طرفه غنم وي او له بل طرفه وريجي وي، داسي بيع ته "بيع مقايضه" وايي.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که تر بيع کولو وروسته د بائع په قبضه کي ثمن هلاک سي، بيا مشتري او بائع اقاله کول وغواړي، نو اقاله صحيح کيږي، لېکن که مبيع هلاکه سي، نو اقاله نه صحيح کيږي. حاصل دا چي د ثمن هلاکېدل د اقالې د صحت (صحيح کېدلو) لپاره مانع نه دي، لېکن د مبيع

هلاکېدل د هغه لپاره مانع دي؛ دليل دا دی چي اقاله د بيع ليري کولو (ختمولو) ته وايي، او بيع په مبيع سره قائم او ولاړه وي، په ثمن سره قائم نه وي؛ ځکه چي په بيع کي اصل او مقصود مبيع وي، ثمن اصل نه وي، ثمن خو د وصف په درجه کي وي، همدا وجه ده چي که ثمن موجود نه وي نو بيا هم بيع صحيح کيږي، لېکن که مبيع موجود نه وي نو بيع نه صحيح کيږي، لهذا کله چي مبيع موجود نه وي نو بيع به موجود نه وي، او کله چي بيع موجود نه سي نو د هغې ليري کول (ختمول) يعني اقاله به هم صحيح نه وي، لېکن که ثمن موجود نه وي او مبيع موجود وي نو بيع به موجود وي، او کله چي بيع موجود سي نو د هغې ليري کول يعني اقاله به هم صحيح وي.

فإن هلك بعض المبيع إلخ: مسئله دا ده که د مبيع يوه حصه هلاکه سي، نو په پاته مبيع کي اقاله جائز ده. مثلاً که يو څوک لس منه غنم د لسو درهمو په عوض کي رانيسي هر من په يوه درهم. بيا له هغه شخصه څلور منه غنم استعمال کړي او په پاته شپږ منه غنمو کي مشتري او بائع اقاله وکړي، نو دا جائز دي؛ ځکه چي په پاته مبيع يعني په شپږ منه غنمو کي بيع موجوده ده. لهذا کله چي بيع موجوده ده نو د هغې اقاله به هم جائز وي. او که چيري "بيع مقايضه" وي يعني د سامان بيع د سامان په عوض کي وي، مثلاً يو څوک غنم د اوربشو په عوض کي رانيسي او بيا احدُ العوضَين هلاک سي (يعني اوربشي يا غنم هلاک سي)، نو هم اقاله جائز ده او د احدُ العوضَين په هلاکېدلو سره اقاله نه باطليږي؛ ځکه چي په "بيع مقايضه" کي هر عوض مبيع هم وي او ثمن هم وي (يعني هر عوض د مبيع او ثمن دواړو درجه لري)، نو کوم عوض چي هلاک سي هغه به ثمن گرځول کيږي او کوم يو چي موجود وي هغه به مبيع گرځول کيږي، او څرنگه چي د مبيع د موجودوالي په صورت کي بيع موجود پاتيږي، او د بيع د موجودوالي په صورت کي اقاله صحيح کيږي، نو ځکه په دې صورت کي به اقاله صحيح کيږي. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم



# بَابُ الْمُرَابَحَةِ وَالتَّوْلِيَةِ

(دا) باب د بيع مرابحه او بيع توليه (د احکامو په بيان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې د هغه بيوعو بيان وو چي د هغوی تعلق د مبيع سره وو، له دې ځايه هغه بيوع بيانوي چي د هغوی تعلق د ثمن سره دی، او ځرنګه چي اصل په بيع کي مبيع وي، نو ځکه يې د مبيع سره متعلقه بيوع د ثمن له متعلقه بيوعو څخه مخکي بيان کړي دي. په دغه باب کي دوه قسمه بيوع بيان سوي دي: ① مرابحه، ② توليه.

**د مرابحه او توليه لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: د مفاعلې د باب مصدر دی، لغوي معنیٰ يې ده: يو له بل څخه نفع اخيستل (ګټه اخيستل)، او د مرابحه اصطلاحي تعريف دا دی: "نَقْلُ مَا مَلَکَهُ بِالْعَقْدِ الأَوَّلِ بِالثَّمَنِ الأَوَّلِ مَعَ زِيَادَةِ رِبْحٍ"، يعني رانيول سوی شی د اول ثمن په عوض کي د نفع سره خرڅول.

**توليه**: د تفعيل د باب مصدر دی، لغوي معنیٰ يې ده: يو څوک ولي جوړول (مشر او ذمه وار ګرځول)، او د توليه اصلاحي تعريف دا دی: "نَقْلُ مَا مَلَکَهُ بِالْعَقْدِ الأَوَّلِ بِالثَّمَنِ الأَوَّلِ مِنْ غَيْرِ زِيَادَةِ رِبْحٍ"، يعني رانيول سوی شی د اول ثمن په عوض کي له نفع څخه بغير خرڅول.

خلاصه دا چي "د بيع مرابحه" مطلب دا دی چي بائع مثلاً په پنځوس روپۍ يو شی رانيولی وي او مشتري ته صفا ووايي چي ما په پنځوس روپۍ دا شي رانيولی دی، لس روپۍ نفع اخلم (يعني لس روپۍ ګټه پر اچوم) او پر تا يې په شپېته روپۍ خرڅوم. ځرنګه چي دلته بائع لس روپۍ نفع واخيستله (يعني لس روپۍ يې ګټه وکړه) نو ځکه دې ته مرابحه وايي. او که بائع نفع واخلي لېکن مشتري په خبر نه کړي چي ما په دومره رانيولی دی او دومره نفع اخلم نو دا عام بيع ده، دې ته مرابحه نه وايي، يعني په مرابحه کي اول قيمت وربښوول ضروري دي، دا ځکه چي مشتري پر بائع اعتماد وکړي او دوکه مينځ ته را نه سي.

او د "بيع توليه" مطلب دا دی چي مثلاً بائع مشتري ته ووايي ما دا شی په پنځوس روپۍ رانيولی دی او په هغه پنځوس روپۍ يې خرڅوم، يعني په څومره قيمت چي يې رانيولی دی په

هغومره قیمت مشتري د مبیع ولي جوړ کړي، دې ته تولیه وایي، او که په قیمت یې خبر نه کړي چې په څوېږي رانیولی دی، نو دا "تولیه" نه ده، بلکې عام بیع ده. (اثمار الهدایه)

## د بیع مرابحه او تولیه شرعي حیثیت

قَالَ: الْمُرَابَحَةُ نَقْلُ مَا مَلَكَهُ بِالْعَقْدِ الْأَوَّلِ بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ مَعَ زِيَادَةِ رِبْحٍ فرمایي: بیع مرابحه دا ده چې په اول عقد سره چې د کوم شی مالک سوی دی هغه د اول ثمن په عوض کي د نفع زیاتولو [انفع اچولو] سره منتقل کول وَالتَّوْلِيَةُ نَقْلُ مَا مَلَكَهُ بِالْعَقْدِ الْأَوَّلِ بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ مِنْ غَيْرِ زِيَادَةِ رِبْحٍ او بیع تولیه دا ده چې په اول عقد سره چې د کوم شي مالک سوی دی هغه د اول ثمن په عوض کي بغیر له نفع زیاتولو څخه منتقل کول وَالْبَيْعَانِ جَائِزَانِ او [دغه] دواړي بیعي جائز دي لِاسْتِجْمَاعِ شَرَائِطِ الْجَوَازِ ځکه چي [په دواړو کي] د جواز شرطونه جمع دي وَالْحَاجَةُ مَاسَّةٌ إِلَى هٰذَا النَّوْعِ مِنَ الْبَيْعِ او دا ډول بیع ته ضرورت [هم] سته لِأَنَّ الْغَبِيَّ الَّذِي لَا يَهْتَدِي فِي التِّجَارَةِ ځکه چي غبي [کم ذهنه] سړی کوم چي په تجارت کي واقفیت [او مهارت] نه لري يَحْتَاجُ إِلَى أَنْ يَعْتَمِدَ فِعْلَ الذَّكِيِّ الْمُهْتَدِي هغه دې ته محتاجه وي چي د ځیرک [ذهین] او واقف [ماهر] سړي پر فعل اعتماد وکړي وَيَطِيبُ نَفْسُهُ بِمِثْلِ مَا اشْتَرَى وَبِزِيَادَةِ رِبْحٍ او [په دې سره] د غبي زړه خوشحاله کیږي [مطمئن کیږي] چي په څومره ثمن سره چي هغه [ماهر سړي] شی رانیولی وي [په هغومره ثمن سره یې غبي رانیسي] یا د څه نفع په زیاتوب سره [یې رانیسي] فَوَجَبَ الْقَوْلُ بِجَوَازِهِمَا نو ځکه بیع مرابحه او تولیه ته جائز ویل واجب سو وَلِهٰذَا كَانَ مَبْنَاهُمَا عَلَى الْأَمَانَةِ وَالِاحْتِرَازِ عَنِ الْخِيَانَةِ وَعَنْ شُبْهَتِهَا او په همدې وجه د دې دواړو بیوعو بنیاد [مدار] پر امانت او له خیانت او شبهۀ خیانت څخه پر ځان ساتلو دی وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ لَمَّا أَرَادَ الْهِجْرَةَ او په صحیح روایت کي دي چي رسول الله ﷺ کله د هجرت اراده وکړه اِبْتَاعَ أَبُوبَكْرٍ رضي الله عنه بَعِيرَيْنِ نو ابو بکر رضي الله عنه دوه اوښان رانیول فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ ﷺ [1]: وَلِّنِي أَحَدَهُمَا نو هغه ته نبي کریم ﷺ وفرمایل: چي له دې دواړو څخه یو ما ته د بیع تولیه په توګه راکړه! فَقَالَ:

[1] تخریج: أخرجه البخاري في كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبي ﷺ، حديث رقم:۳۹۰۵.

هُوَلَكَ بِغَيْرِشَيْءٍ نو ابو بکر ؓ وفرمایل: چي هغه ستا لپاره بېله څه شي [بېله ثمنه] دی. فَقَالَ ﷺ: أَمَّا بِغَيْرِثَمَنٍ فَلَا نو نبي کريم ﷺ وفرمایل: که بېله ثمنه وي نو نه [يې غواړم].

**اللغات:** ﴿رِبح﴾ نفع، منفعت، ګټه. ﴿مَاسَّة﴾ داعي، بلونکی، متحقق. ﴿غبي﴾ کم ذهنه (پڅ ذهنه)، مراد ځني نا تجربه کار او نا واقف (نابلد) دی. ﴿لا يهتدي﴾ د افتعال له بابه د نفي صيغه ده: لار پيدا کول، مراد ځني واقفيت او مهارت نه لرل دي. ﴿المهتدی﴾ د افتعال فاعل دی: لاره پیدا کونکی، مراد ځني واقف او ماهر (تجربه کار) دی. ﴿ابتاع﴾ د افتعال ماضي ده: رانيول. ﴿وَلِّنِي﴾ د تفعيل له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده. وَلَّى يُوَلِّيْ تَوْلِيَةً: يو څوک ولي (مشر) جوړول، بيع توليه کول، د توليه په توګه ورکول.

**تشريح:** په دې عبارت کي امام قدوري رَحِمَهُ الله د بيع مرابحه او توليه تعريف کوي فرمايي "بيع مرابحه" دا ده چي مشتري د څومره ثمن په عوض کي يو سامان رانيولی وي پر هغه څه نفع واچوي او پر بل چا يې خرڅ کړي، مثلاً په پنځوس يې رانيولی وي او پر بل چا يې په شپېته خرڅ کړي (او په دې يې خبر کړي چي دا شی ما ته په پنځوس پروت دی، لس روپۍ مي نفع واخيستله، يا دا بل څوک په خپله خبر وي چي هغه شی په پنځوس روپۍ رانيولی دی او پر دې پنځوس نفع ورکړي او شی ځني رانيسي)، نو دې ته "بيع مرابحه" وايي، او "بيع توليه" دا ده چي د څومره ثمن په عوض کي يې شی رانيولی وي، بغير له نفع څخه هغه پر بل چا خرڅ کړي، مثلاً په پنځوس روپۍ يو شی رانيسي او په هغه پنځوس يې خرڅ کړي (يا مثلاً بل څوک په خپله خبر وي چي هغه دا شی په پنځوس روپۍ رانيولی دی، او د هغه پنځوسو په عوض کي يې رانيسي)، نو دې ته "بيع توليه" وايي.

صاحب د هدايې فرمايي چي دغه دواړي بيعي جائز دي؛ ځکه اول خو په دغو دواړو بيعو کي د جواز ټوله شرطونه موجود دي، او دويم دا چي په خلکو کي د داسي بيع تعامل او رواج هم سته، او درېيم دا چي داسي بيع ته ضرورت هم سته؛ ضرورت ځکه داسي بيع ته سته چي ځيني وخت يو سړی غبي وي او د تجارت په معاملاتو نا واقف وي، نو هغه دې ته مجبوره وي چي د واقف او ماهر سړي پر فعل اعتماد وکړي او خپل زړه ته دا ووايي (او داد ورکړي) چي ما دا سامان د هغومره ثمن په عوض کي رانيولی دی د څومره ثمن په عوض کي چي دغه واقف او ماهر سړي رانيولی وو، يا په هغومره ثمن مي خرڅ کړی او هغومره نفع مي پر واچوله څومره چي دغه ماهر سړي کړې وه، نو په دغو

ـوعو کي به غبي او ساده سړي ته د دوکه کېدلو شبهه نه وي، بلکي په دې وخت کي به هغه مطمئن او بې غمه وي. لنډه دا چي کله د جواز ټوله شرطونه هم موجود دي او د خلکو تعامل هم سته او ضرورت هم سته، نو بیا د دغو بیوعو په جواز کي څه شبهه سته!؟، بلکي یقیناً هغوی به جائز وي: همدا وجه ده چي د بیع مرابحه او تولیه مدار (بنیاد) پر دې خبره دی چي کوم کس چي د مرابحه او تولیه په توګه خرڅول کوي هغه به امین (امانتدار) وي او په بیع کي به له هغه شي څخه ځان ساتي چي په هغه کي خیانت یا د خیانت شبهه وي. د بیع تولیه جواز په حدیث سره هم ثابت دی، او هغه دا چي کله نبي کریم ﷺ د هجرات اراده وکړه نو ابو بکر رضي الله عنه دوه اوښان رانیول، رسول ﷺ ورته وفرمایل چي په دې دواړو کي یو اوښ ما ته د "تولیه" په توګه راکړه!، یعني په څومره قیمت چي دي رانیولی دی په هغومره قیمت یې پر ما خرڅ کړه!، ابو بکر رضي الله عنه فرمایل چي دا ستا لپاره مفت (بلا ثمنه) دي، نو رسول الله ﷺ وفرمایل چي بلا ثمنه خو یې زه نه اخلم. همدارنګه په مصنف ابن عبدالرزاق کي د سعید بن المسیب په حواله سره دا حدیث ذکر سوی دی: "أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ: التَّوْلِيَةُ وَالْإِقَالَةُ وَالشِّرْكَةُ فَلَا بَأْسَ بِهِ" یعني نبي ﷺ وفرمایل: چي تولیه، اقاله او شرکت دا ټوله جائز دي په دې کي هیڅ حرج نسته. او همدارنګه په بخاري شریف کي د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په حواله سره په یو حدیث کي ذکر سوي دي: "أَنَّ أَبَا بَكْرٍ قَالَ لِلنَّبِيِّ ﷺ: خُذْ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي إِحْدَى رَاحِلَتَيَّ هَاتَيْنِ. فَقَالَ ﷺ: بِالثَّمَنِ" یعني ابو بکر رسول الله ﷺ ته وویل چي زما مور او پلار دي تر تا قربان وي په دغه دوو اوښانو کي یو واخله!، نو نبي ﷺ وفرمایل چي د ثمن په عوض کي یې اخلم. (نبي کریم ﷺ چي کومه اوښه له ابو بکر رضي الله عنه څخه اخیستې وه د هغې نوم "قصواء" وو).

## په مرابحه او تولیه کي د عوضینو لازمي اوصاف

قَالَ: وَلَا تَصِحُّ الْمُرَابَحَةُ وَالتَّوْلِيَةُ حَتَّى يَكُونَ الْعِوَضُ مِمَّا لَهُ مِثْلٌ فرمایي: او بیع مرابحه او تولیه جائز نه ده تر دې چي عوض [ثمن] داسي شی وي چي د هغه مثل [موجود] وي یعني هغه به مثلي شی وي. یعني له ذوات الامثال څخه به وي| لِأَنَّهُ إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُ مِثْلٌ ځکه که د هغه مثل [موجود] نه وي لَوْ مَلَكَهُ مَلَكَهُ بِالْقِيمَةِ نو که چیري څوک د هغه مالک کیږي نو د قیمت په ذریعه به یې مالک کیږي ا ځکه کوم شی چي مثلي نه وي. د هغه قیمت واجبیږي| وَهِيَ مَجْهُولَةٌ او قیمت مجهول [نامعلوم] دی وَلَوْ كَانَ الْمُشْتَرِي بَاعَهُ مُرَابَحَةً مِمَّنْ يَمْلِكُ ذَلِكَ الْبَدَلَ او که چیري مشتري هغه شی د مرابحه په توګه پر

داسي كس خرڅ كړي كوم چي د دې بدل [عوض] مالک وي وَقَدْ بَاعَهُ بِرِبْحٍ دِرْهَمٍ أَوْ بِشَيْءٍ مِنَ الْمَكِيلِ مَوْصُوفٍ او مشتري هغه ديوه درهم [يا دڅو درهمو] يا ديو مُتعين كَيلي شي په عوض كي پر خرڅ كړي جَازَ نو دا جائز دي لِأَنَّهُ يَقْدِرُ عَلَى الْوَفَاءِ بِمَا الْتَزَمَ ځكه هغه [دويم كس (دويم مشتري)] د هغه شي [عوض] پر وركولو قادر دى كوم چي يې پر ځان لازم كړى دى [ځكه چي هغه خو د عوض مالک دى] وَإِنْ بَاعَهُ بِرِبْحٍ "دَهْ يَازْدَهْ" او كه مشتري هغه په "ده يازده" (يعني په لس فيصده نفع) سره خرڅ كړي لَا يَجُوزُ نو دا جائز نه دي لِأَنَّهُ بَاعَهُ بِرَأْسِ الْمَالِ وَبِبَعْضِ قِيمَتِهِ ځكه چي [په دې صورت كي] مشتري هغه د رأسُ المال او د هغه د بعضي قيمت په عوض كي خرڅ كړى دى لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ ځكه چي هغه له ذواتُ الامثال څخه نه دى.

**اللغات**: ﴿ربح﴾ نفع، ګټه. ﴿مكيل﴾ پيمانه كېدونكى شى، هغه شى كوم چي په پيمانه (لوښي) سره اندازه كيږي، لكه غنم، اوربشي، وريجي او داسي نور (ځكه پخوا به دا شيان په پيمانه سره اندازه كېدل). ﴿وفاء﴾ په پوره توګه اداء كول. ﴿ده يازده﴾ دا د فارسي لفظ دى (يعني د فارسي دوه اعداد دي). تفصيلي معنىٰ به يې په تشريح كي ذكر سي. ﴿ذواتُ الأمثال﴾ هغه شيان چي مثل يې موجود وي، لكه غنم، وريجي او داسي نور. دا ډول شي ته "مثلي شى" وايي. ذواتُ القِيَم: هغه شيان چي مثل يې موجود نه وي، لكه غوا، پسه او داسي نور. او د ډول شي ته "قيمتي شى" وايي.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دى چي بيع مرابحه او بيع توليه هغه وخت جائز ده كله چي ثمن مثلي وي يعني له ذواتُ الامثال څخه وي، لكه مكيلات يا موزونات. لېكن كه ثمن له ذواتُ القيم څخه وي، لكه څاروى، كپړه، غلام (مثال به يې څه وروسته ذكر سي). نو په دې صورت كي مرابحه يا توليه جائز نه ده. ځكه چي دلته ثمن يعني پسه له ذواتُ القيم څخه دى او غير مثلي دى؛ او په دغه صورت كي د مرابحه او توليه د نه صحيح كېدلو دليل دا دى چي كله ثمن مثلي نه وي (يعني له ذواتُ الامثال څخه نه وي بلكي له ذواتُ القيم څخه وي) نو په دې صورت كي كه څوک د مرابحه يا توليه په توګه مبيع رانيسي نو د هغه قيمت به اداء كوي. ځكه چي په غير مثلي شيانو كي قيمت واجبيږي، (د مثال په توګه زيد د پسه په عوض كي له عُمر څخه غلام رانيسي. او بيا زيد هغه غلام د مرابحه يا توليه په توګه پر خالد خرڅ كړي (يعني زيد خالد ته ووايي چي د دغه غلام په عوض كي يو پسه راكړه او دومره ګټه [نفع] راكړه!). نو څرنګه چي پسه له ذواتُ القيم څخه دى او غير مثلي دى نو ځكه خالد به د پسه قيمت وركوي. ځكه په داسي صورت كي د غير

مثلي شي (پُسه) قيمت واجبيږي. قيمت ځکه واجبيږي چې په غير مثلي شي کې غټ او کوچنی راځي يعني ځيني پُسونه غټ وي او ځيني کوچنی وي. نو خالد خاص د هغه پُسه مثل نه سي ورکولای. نو ځکه قيمت واجبيږي) او قيمت مجهول او نامعلوم دی. او په دغه صورت کې به هغه په اټکل او اندازه سره ټاکل کيږي (يعني خالد به د پُسه قيمت ته اندازه لګوي او د اندازې مطابق قيمت به ورکوي) او په اندازه کې د خطاء او غلطۍ قوي امکان سته. نتيجه دا چې په دې کې به شبهۀ خيانت (د خيانت شبهه) پيدا سي. حال دا چې مخکې تاسو وويل چې د بيع مرابحه او بيع توليه مدار پر امانت او له خيانت څخه پر ځان ساتلو دی. لهذا څرنګه چې په دغو بيوعو کې له خيانت څخه ځان ساتل (احتراز کول) ضروري دي. همداسي له شبهۀ خيانت څخه هم ځان ساتل ضروري دي. حال دا چې د ثمن د غير مثلي کېدلو په صورت کې له هغه څخه ځان ساتل ناممکن دي. نو ځکه په دې صورت کې بيع مرابحه او توليه نه صحيح کيږي.

ولوکان المشتري باعه إلخ: د دې حاصل دا دی چې که څه هم د ثمن د غير مثلي کېدلو په صورت کې مشتري د مرابحه يا توليه په توګه مبيع نه سي خرڅولای، لېکن يو صورت داسي دی چې هلته د ثمن د غير مثلي کېدلو باوجود هم مرابحه او توليه صحيح ده. او هغه صورت دا دی چې مثلاً زيد د پُسه په عوض کې له عمر څخه غلام رانيسي او زيد پر غلام قبضه وکړي او عمر پر پُسه قبضه وکړي، بيا عمر دا پُسه مثلاً حامد ته ورکړي. نو اوس زيد هغه غلام پر حامد د بيع مرابحه يا توليه په توګه خرڅولای سي، يعني که زيد هغه غلام پر حامد د هغه پُسه په عوض کې خرڅ کړي (توليةً) يا يې د هغه پُسه او پنځه دراهمو په عوض کې پر خرڅ کړي (مرابحةً) يا يې د هغه پُسه او دې سېره غنمو په عوض کې پر خرڅ کړي، نو دا جائز دي: ځکه چې حامد د هغه شي پر ورکولو قادر دی کوم چې يې پر ځان لازم کړی دی، يعني په اوله بيع کې چې کوم شی ثمن وو يعني پُسه حامد (دويم مشتري) د هغه پر ورکولو قادر دی (او دا پُسه د هغه غلام بدل او عوض دی) همدارنګه حامد د پنځه درهمو يا درې سېره غنمو پر ورکولو هم قادر دی. نو ځکه دا صورت جائز دی: ځکه چې په دې صورت کې پر حامد قيمت نه واجبيږي (ځکه هغه د بدل [پُسه] پر ورکولو قادر دی). لهذا د خيانت او شبهۀ خيانت خرابي په دې صورت کې نه سي راتلای. او مخکې موږ وويل چې د نه صحيح کېدلو مدار پر خيانت او شبهۀ خيانت دی. او هغه دلته نسته. نو ځکه په دې صورت کې بيع جائز ده. (باعه بربح درهم: يعني زيد هغه غلام پر حامد د پسه او يو څو متعين دراهمو په نفع سره خرڅ کړي. أو بشيئ من المکيل موصوف: يعني يا يې د پُسه او متعين کيلي شي په عوض کې پر خرڅ کړي. مثلاً درې سېره غنم. د موصوف معنیٰ ده: صفت بيان کړی سوی يعني د کيلي شي صفت بيان کړی چې هغه مثلاً غنم دي او دومره سېره دي).

وإن باعه بربح "ده یازده" إلخ: د عبارت له حل څخه مخکي په دې ځان پوه کړئ! چي "ده یازده" د فارسي لفظ دی. د "ده" معنیٰ ده: لس، او د "یازده" معنیٰ ده" یوولس"، او د دې مطلب دا دی چي پر لسو یوولس، یعني په لس روپۍ دي یوه روپۍ نفع اخیستل (پر لس فیصده یو فیصد نفع اخیستل)، اوس د عبارت حاصل دا دی چي که زید پر حامد د هغه پُسه او لس فیصده نفع په عوض کي غلام خرڅ کړي، یعني زید حامد ته ووایي چي د دې غلام په عوض کي پُسه راکړه! د لس فیصده نفع سره، نو د دې مطلب دا دی چي پُسه هم راکړه او د پُسه په لسمه حصه قیمت کي یوه حصه نفع هم راکړه (مثلا که د پُسه قیمت سل درهمه وي، نو لس درهمه نفع هم راکړه!)، نو دا بیع مرابحه جائز نه ده؛ ځکه که څه هم حامد د پُسه پر ورکولو قادر دی، لیکن د پُسه لسمه حصه د قیمت په اندازه کولو سره معلومیږي، او د پُسه قیمت د بیع کولو په وخت کي مجهول او نا معلوم دی چي څومره دی. لهذا کله چي د پُسه قیمت مجهول دی، نو ځکه د قیمت په اندازه کولو کي به خامخا شبهۀ خیانت ثابتیږي (یعني که څه هم خیانت به ثابت نه سي لیکن شبهۀ خیانت ضرور ثابتیږي)، او مخکي ذکر سوه چي په بیع مرابحه او تولیه کي له خیانت او شبهۀ خیانت دواړو څخه ځان ساتل ضروري دي، نو ځکه په دې صورت کي د شبهۀ خیانت په وجه بیع مرابحه ناجائز ده. (رأسُ المال اصل ثمن ته وایي، دلته ځني مراد پُسه دي کوم چي د حامد سره دي).

## په مرابحه او تولیه کي د رأسُ المال سره د أجرت یو ځای کولو (ضمولو) بیان

وَيَجُوزُ أَنْ يُضِيفَ إِلَى رَأْسِ الْمَالِ أُجْرَةَ الْقَصَّارِ وَالطِّرَازِ وَالصَّبْغِ وَالْفَتْلِ وَأُجْرَةَ حَمْلِ الطَّعَامِ او جائز دي چي د رأسُ المال سره یو ځای کړي [ضم کړي] أجرت د دوبي، او أجرت د نقش ونګار کونکي، او أجرت د رنګولو، او أجرت د رسۍ وودلو، او أجرت د غلې بارولو [وړلو] لِأَنَّ الْعُرْفَ جَارٍ بِإِلْحَاقِ هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ بِرَأْسِ الْمَالِ فِي عَادَةِ التُّجَّارِ ځکه چي د تاجرانو په عادت [رواج] کي د دې شیانو سره د رأسُ المال د یو ځای کولو [ضمولو] عُرف جَاري دی وَلِأَنَّ كُلَّ مَا يَزِيدُ فِي الْمَبِيعِ أَوْ فِي قِيمَتِهِ او ځکه هر هغه شی کوم چي په مبیع کي یا د هغې په قیمت کي اضافه وکړي [زیاتوب راولي] يُلْحَقُ بِهِ نو هغه د رأسُ المال سره یو ځای کېدای [ضمول کېدای] سي هٰذَا هُوَ الْأَصْلُ همدا اصل [قاعده] ده وَمَا عَدَدْنَاهُ بِهٰذِهِ الصِّفَةِ او کوم شیان چي موږ په متن کي اوشمارل هغه [هم] پر دغه صفت دي [یعني معنوی یا په مبیع (کپړه) کي اضافه راولي یا د هغې په قیمت کي اضافه راولي] لِأَنَّ الصَّبْغَ وَأَخَوَاتِهِ يَزِيدُ فِي الْعَيْنِ ځکه چي

رنګول او د هغه مشابه شيان [د مبيع] په عَين [ذات] کي اضافه کوي وَالْحَمْلَ يَزِيدُ فِي الْقِيمَةِ او بارول [وړل] په قيمت کي اضافه کوي إِذِ الْقِيمَةُ تَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمَكَانِ ځکه چي قيمت د ځای [علاقې] په بدلېدلو سره بدلیږي.

**اللغات:** ﴿رأس المال﴾ اصل ثمن، د مبيع قيمت. ﴿أجرة﴾ مزدوري، خرچه. ﴿قصار﴾ دوبي، کالي مینځونکی (هغه کس کوم چي په أجرت سره د خلکو کالي او کپړې پرېولي). ﴿طراز﴾ نقش ونګار کونکی (هغه کس کوم چي پر کپړه ښکلي نقشونه او ګلان نقش کوي). ﴿صبغ﴾ رنګول (کپړه او تو کر رنګول). ﴿فتل﴾ وودل، اوبدل (رسی او داسي نور وودل). ﴿الطعام﴾ غله، لکه غنم، اوربشي، وریجي او داسي نور، او د اهل حجاز او اهل عراق په نېز صرف د غنمو معنیٰ ورکوي (کله چي مطلق ذکر سي).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي د بيع مرابحه او توليه د کولو پر مهال د رأسُ المال يعني د ثمن سره د دوبي أجرت يو ځای کول (ضمول) جائز دي، مثلاً خالد يو تان (کپړه) په پنځوس درهمه رانيسي بيا دوبي ته د تان پرېولو پنځه درهمه أجرت ورکړي (او دوبي تان پرېولي) نو اوس خالد دغه تان مرابحةً يا توليةً خرڅولای سي (مرابحه دا ده چي پر پنځوس درهمو نفع واچوي مثلاً په پنځه پنځوس درهمه يې پر خرڅ کړي او توليه دا ده چي نفع نه پرواچوي او په هغه پنځوس درهمه يې پر خرڅ کړي)، همدارنګه که په کپړه کي نقش ونګار (او ګلان) جوړ کړي، نو د نقش ونګار کونکي سړي أجرت د رأسُ المال سره يو ځای کول جائز دي، همدارنګه د کپړې رنګولو أجرت د رأسُ المال سره ضمول جائز دي، او همداسي د رسی وودلو أجرت ور سره يو ځای کول جائز دي، مثلاً يو سړی په شل درهمه يوه چټايي (سترنجي) رانيسي، بيا په پنځه درهمه د چټايي په اطرافو کي رسی ولګوي (لکه پخوا چي به داسي کېدل)، نو اوس که دا سړی مرابحةً يا توليةً هغه خرڅول وغواړي نو د مرابحه په صورت کي به پر پنځويشت درهمو نفع اچوي، او د توليه په صورت کي به يې په پنځويشت درهمه خرڅوي، او همدارنګه له يوه ځای څخه بل ځای ته د غنمو د بارولو (وړلو) أجرت د رأسُ المال سره يو ځای کول جائز دي؛ مثلاً يو سړی په پاکستان کي پنځوس مڼه غنم د دوه سوه درهمو په عوض کي رانيسي، بيا بار وړونکي (ګاډي والا) ته شل درهمه أجرت ورکړي او افغانستان ته غنم په منتقل کړي، نو اوس که مشتري په افغانستان کي هغه غنم مرابحةً يا توليةً خرڅول وغواړي، نو د بار وړونکي أجرت يعني شل درهمه د رأسُ المال سره يو ځای کولای سي، لهذا د بيع مرابحه په صورت کي به پر دوه سوه شل درهمو نفع اچوي. او د بيع توليه په صورت کي به يې په دوه سوه شل درهمه خرڅوي. لنډه دا چي په

مرابحه او توليه کي د رأس المال سره د دوبي د پرېوللو، نقش و نګار کولو، رنګولو، وودلو او د غلې بارولو اُجرت يو ځای کول جائز دي.

دليل دا دی چي د تاجرانو په عُرف کي د دې شيانو اُجرت د رأس المال سره يو ځای کول جائز دي. او عُرف يو شرعي حجت دی، نو ځکه د دې شيانو اُجرت د رأس المال سره يو ځای کېدل جائز دي.

ولأن كل ما يزيد إلخ: دويم دليل کوم چي د فقهاؤ په نېز قاعده (ضابطه) هم ده، دا دی چي کوم شی په مبيع کي يا د مبيع په قيمت کي اضافه راولي، هغه د رأس المال سره يوځای کول جائز دي. او تاسي او ګورئ! چي کوم شيان په متن کي ذکر سول (يعني په دوبي سره پرېولل، نقش ونګار کول او داسي نور) هغه پر دغه صفت دي، ځکه چي د کېړې په پرېوللو سره په عَين مبيع کي زياتوب راځي (ځکه د دوبي په پرېوللو سره کېړه ښکلې او روښانه ګرځي) همدارنګه په نقش ونګار کولو، وودلو او رنګولو سره هم په عَين مبيع کي زياتوب راځي، او په بارولو (منتقل کولو) سره په قيمت کي زياتوب راځي، ځکه چي د ځای (علاقې) په بدلولو سره قيمت بدلېږي، همدا وجه ده چي د يو شي قيمت په يوه ځای (علاقه) کي کم وي او په بل ځای کي زيات وي.

صاحب د هدايې چي کوم اصل او قاعده بيان کړې ده هغه که څه هم صحيح ده لېکن ځيني وخت د هغه خلاف هم کېږي، يعني داسي کېږي چي له کوم ځای څخه غنم بار سوي (منتقل سوي) وي هلته قيمت زيات وي او کوم ځای ته چي يې راوړي وي هلته کم وي، نو په داسي صورت کي به د بارولو (منتقل کولو) قيمت د رأس المال سره نه يو ځای کېږي. نو ځکه په دې باره کي د تاجرانو عُرف بنياد ګرځول ډېر مناسب او غوره دي (لکه څرنګه چي زياتره فقهاؤ هم داسي کړي دي).

## په مرابحه او توليه کي به بائع کوم الفاظ استعمالوي؟

وَيَقُولُ: قَامَ عَلَيَّ بِكَذَا او داسي به وايي: [دا شی] ما ته په دومره [قيمت] پروت دی وَلَمْ يَقُلْ: اِشْتَرَيْتُه بِكَذَا او داسي به نه وايي چي: ما په دومره رانيولی دی كَيْلَا يَكُونَ كَاذِبًا د دې لپاره چي دروغجن نه سي وَسَوْقُ الْغَنَمِ بِمَنْزِلَةِ الْحَمْلِ او د پسونو بېول [له يوه ځای څخه بل ځای ته منتقل کول] د بار وړلو په څېر دي بِخِلَافِ أُجْرَةِ الرَّاعِيْ وَكِرَاءِ بَيْتِ الْحِفْظِ په خلاف د شپانه د اُجرت. او د ساتلو د خوني [حفاظت ځای] کرايه لِأَنَّهُ لَا يَزِيدُ فِي الْعَيْنِ وَالْمَعْنٰى ځکه چي دا [د مبيع] په ذات او [د هغې] په قيمت کي اضافه نه کوي وَبِخِلَافِ أُجْرَةِ التَّعْلِيمِ او په خلاف د تعليم د اُجرت لِأَنَّ ثُبُوتَ الزِّيَادَةِ

| |
|---|
| لِمَعْنًى فِيهِ ځکه چي [د تعليم په صورت کي د قيمت] د اضافه والي ثبوت د داسي معنیٰ په وجه دی کوم چي په خپله په مبيع [اغلام] کي دی وَهُوَحَذَاقَتُهُ او هغه د مبيع [اغلام] ذهانت دی. |

**اللغات**: ﴿قام على بكذا﴾ ما ته په دومره ولاړ دی، ما ته په دومره پروت دی. ﴿سوق﴾ د نصر مصدر دی: هشه کول، درمې (پسونو او داسي نورو) بېول (مراد ځني له يوه ځای او علاقې څخه بل ځای ته بېول دي).

﴿حمل﴾ د ضرب مصدر دی: باروِل، بار وړل (له يوه ځای څخه بل ځای ته شی منتقل کول). ﴿راعي﴾ شپانه (پوونکی، د پسونو څارونکی او کتونکی). ﴿كراء﴾ کرايه. ﴿حذاقة﴾ مهارت، ذکاوت او ذهانت.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي په کوم ځای کي د رأسُ المال يعني د ثمن سره اُجرت يو ځای کول (ضمول) جائز دي، په هغه ځای کي به د مرابحهٔ يا توليهٔ خرڅولو په وخت کي داسي وايي چي دا شی ما ته په دومره پروت دی، ځکه دا ډول ويل صداقت او رښتيا ګلوي ده. لېکن داسي به نه وايي چي ما دا شی په دومره رانيولی دی، ځکه دا دروغ دي، او دروغ ويل حرام دي. ها! که يو سړی په پنځوس درهمه يو سامان رانيسي بيا پر هغه سامان له ثمن (پنځوس درهمو) څخه زيات قيمت وليکي مثلاً اويا (۷۰) درهمه پر وليکي، بيا دا سړی پر ليکلي سوي قيمت مرابحه وکړي، مثلاً مشتري ته داسي ووايي چي کوم قيمت پر سامان ليکل سوی دی په لس درهمه نفع سره يې د هغه په عوض کي خرڅوم، يعني په اتيا (۸۰) درهمه يې خرڅوم، نو دا جائز دي، او په داسي صورت کي به نه دا وايي چي دا سامان ما ته په اويا درهمه پروت دی او نه به داسي وايي چي ما په اويا درهمه رانيولی دی، ځکه چي دا دواړي خبري دروغ دي، ها! دا به وايي چي پر سامان اويا درهمه ليکلي دي پر هغه زه لس روپۍ نفع اخلوم، په داسي ويلو کي دروغ نه راځي.

او که چا ته په ميراث، يا هبه، يا صدقه کي يو شی حاصل سي، بيا هغه د دې شي لپاره يو قيمت وټاکي او بيع مرابحه وکړي (يعني پر هغه نفع هم واچوي) نو دا هم جائز دي.

وسوق الغنم إلخ: فرمايي چي پسونه له يوه ځای څخه بل ځای ته بېول د بار وړلو په درجه کي دي، يعني څرنګه چي د بار وړلو (منتقل کولو) اُجرت د رأسُ المال سره يو ځای کول جائز دي، همداسي د پسونو د بېولو (منتقل کولو) اُجرت هم د رأسُ المال سره ضمول جائز دي، لېکن پسونه کتل او پوول داسي نه دي يعني شوک چي صحرا ته د وښو خوړلو لپاره پسونه بيايي (پووي) يعني شپانه د هغه اُجرت د پسونو د رأسُ المال سره يو ځای کول جائز نه دي، همدارنګه که د مبيع د حفاظت (ساتلو) لپاره يو ځای په کرايه ونيسي (مثلا د غنمو د حفاظت لپاره يوه خونه يا دوکان په کرايه ونيسي) نو د ځای کرايه هم د رأسُ المال سره يو ځای کول جائز نه دي؛ ځکه چي دا دواړه شيان (پوول او څرول)، او په ځای کي

ساتل) نه د مبيع په ذات کې څه اضافه کوي او نه د هغه په قيمت کې اضافه کوي: حال دا چې د همدغه دوو خبرو په سبب د رأسُ المال سره د اُجرت يو ځاى کول جائز دي، نو کله چې دا دواړوي خبري (په مبيع او ثمن کې اضافه کول) په دې شيانو کې نسته نو ځکه د شپانه اُجرت او د ساتلو د ځاى اُجرت به د رأسُ المال (ثمن) سره نه يو ځاى کيږي.

همدارنګه د تعليم اُجرت به هم د رأسُ المال سره نه يو ځاى کيږي، مثلاً که څوک يو غلام رانيسي، او په هغه سبق او درس ووايي او سم استاد او معلم ځني جوړ کړي، نو د هغه پر تعليم چې کومه خرچه سوې وي هغه به د اصل ثمن سره نه يو ځاى کيږي: ځکه که څه هم په دې صورت کې د غلام په قيمت او ماليت کې اضافه راغلې ده، لېکن دا اضافه د سبق او درس ويلو (تعليم) په وجه نه ده بلکې د هغه د ذهانت او ځراکت په وجه ده (يعني په دې کې غټ دخل د هغه د ذهانت او مهارت دی. همدا وجه ده که هغه ذهين او ځيرک نه واى، بلکې باوله او کم ذهنه واى نو دغه درجې ته به نه واى رسېدلاى. لهذا په دې کې د تعليم او تعلم دخل نسته)، نو ځکه د تعليم اُجرت به د غلام د رأسُ المال سره نه يو ځاى کيږي. هاٰ! که چيري د رأسُ المال سره د تعليم د اُجرت يو ځاى کېولو عُرف موجود وي (يعني د يو غلاقې خلک داسي کوي)، نو په دې کې هيڅ حرج نسته چې د رأسُ المال سره د تعليم اُجرت يو ځاى کړې سي.

## په مرابحه او توليه کې د خيانت ښکاره کېدلو بيان

فَإِنِ اطَّلَعَ الْمُشْتَرِيْ عَلٰى خِيَانَةٍ فِي الْمُرَابَحَةِ بيا که مشتري په بيع مرابحه کې په خيانت خبر سي فَهُوَ بِالْخِيَارِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ [۵] نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مشتري ته اختيار دی إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ بِجَمِيعِ الثَّمَنِ که وغواړي نو مبيع دي د ټوله ثمن په عوض کې واخلي وَإِنْ شَاءَ تَرَكَهُ او که وغواړي نو هغه دي پريږدي وَإِنِ اطَّلَعَ عَلٰى خِيَانَةٍ فِي التَّوْلِيَةِ او که په بيع توليه کې مشتري په خيانت خبر سي أَسْقَطَهَا مِنَ الثَّمَنِ نو د خيانت مقدار دې له ثمن څخه کم کړي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: يَحُطُّ فِيهِمَا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په مرابحه او توليه دواړو کې به د خيانت مقدار کموي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يُخَيَّرُ فِيهِمَا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دواړو کې به مشتري ته اختيار وي لِمُحَمَّدٍ: أَنَّ الاِعْتِبَارَ لِلتَّسْمِيَةِ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې معتبر هغه ثمن دی کوم چې

[۵] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: والمتون على قول الإمام (رد المحتار ج:۴، ص:۱۷۴)، وكذا في كنز الدقائق (ص:۳۲۳). [القول الراجح ج:۲، ص:۵۱]

بيان سوى [ذكر سوى] دى [يعني اعتبار بيان سوي ثمن لره دى] لِكَوْنِهِ مَعْلُومًا ځکه چې هغه معلوم دى

وَالتَّوْلِيَةُ وَالْمُرَابَحَةُ تَرْوِيجٌ وَتَرْغِيبٌ او د توليه او مرابحه ذكر د رواجولو او رغبت وركولو لپاره دى

فَيَكُونُ وَصْفًا مَرْغُوبًا فِيهِ نو ځكه هغه [يعني د توليه يا مرابحه ذكر] به مرغوب فيه وصف وي [يعني دا به د

رغبت والا وصف وي] كَوَصْفِ السَّلَامَةِ لكه [د مبيع] د سالموالي [روغوالي] وصف فَيَتَخَيَّرُ بِفَوَاتِهِ نو

ځکه د وصف په فوتېدلو سره به مشتري ته اختيار حاصلېږي وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ الْأَصْلَ فِيهِ كَوْنُهُ

تَوْلِيَةً وَمُرَابَحَةً او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې اصل په دې كې توليه كېدل او مرابحه

كېدل دي وَلِهَذَا يَنْعَقِدُ بِقَوْلِهِ: وَلَّيْتُكَ بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ أَوْ بِعْتُكَ مُرَابَحَةً عَلَى الثَّمَنِ الْأَوَّلِ او له همدې

كبله د بائع په دې قول سره: "وَلَّيْتُكَ بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ" يا په دې قول "بِعْتُكَ مُرَابَحَةً عَلَى الثَّمَنِ

الْأَوَّلِ" سره عقد [توليه او مرابحه] منعقد كېږي إِذَا كَانَ ذَلِكَ مَعْلُومًا كله چې ثمن معلوم وي فَلَا بُدَّ

مِنَ الْبِنَاءِ عَلَى الْأَوَّلِ نو ځکه پر اول عقد د دويم عقد [عقد ثاني] بناء كول ضروري دي وَذَلِكَ

بِالْحَطِّ او دا [د اضافه سوي مقدار] په كمولو سره كېږي غَيْرَ أَنَّهُ يُحَطُّ فِي التَّوْلِيَةِ قَدْرُ الْخِيَانَةِ مِنْ رَأْسِ

الْمَالِ مګر دا چې په بيع توليه كې به د خيانت مقدار له رأسُ المال څخه كمول كېږي وَفِي الْمُرَابَحَةِ

مِنْهُ وَمِنَ الرِّبْحِ او په مرابحه كې به له رأسُ المال او نفع دواړو څخه كمول كېږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ لَوْ

لَمْ يُحَطَّ فِي التَّوْلِيَةِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې كه په بيع توليه كې د خيانت مقدار كم نه

كړى سي لَا تَبْقَى تَوْلِيَةً نو هغه به توليه پاته نه سي لِأَنَّهُ يَزِيدُ عَلَى الثَّمَنِ الْأَوَّلِ ځکه چې دا مقدار به له

اول ثمن څخه زيات سي فَيَتَغَيَّرُ التَّصَرُّفُ نو تصرف به بدل سي فَتَعَيَّنَ الْحَطُّ نو ځکه كمول

مُتعيّن سو وَفِي الْمُرَابَحَةِ لَوْ لَمْ يُحَطَّ او كه په بيع مرابحه كې د خيانت مقدار كم نه كړى سي تَبْقَى

مُرَابَحَةً نو [بيا هم] هغه مرابحه پاتېږي وَإِنْ كَانَ يَتَفَاوَتُ الرِّبْحُ كه څه هم نفع متفاوت كېږي فَلَا

يَتَغَيَّرُ التَّصَرُّفُ نو تصرف به بدل نه سي فَأَمْكَنَ الْقَوْلُ بِالتَّخْيِيرِ نو ځکه [په دې صورت كې] مشتري

ته د اختيار وركولو خبره كول ممكنه ده [يعني په دې صورت كې مشتري ته اختيار وركول ممكن دي] فَلَوْ

هَلَكَ قَبْلَ أَنْ يَرُدَّهُ او که چیري له واپس کولو څخه مخکي مبیع هلاکه سي أَوْ حَدَثَ فِيهِ مَا يَمْنَعُ الْفَسْخَ یا په مبیع کي داسي عیب پیدا سي کوم چي فسخ منع کوي يَلْزَمُهُ جَمِيعُ الثَّمَنِ فِي الرِّوَايَاتِ الظَّاهِرَةِ نو په روایات ظاهره وو کي پر مشتري ټوله ثمن لازمیږي لِأَنَّهُ مُجَرَّدُ خِيَارٍ لَا يُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ ځکه چي مشتري ته محض [د مبیع واپس کولو] اختیار دی چي د هغه په مقابله کي ثمن نسته كَخِيَارِ الرُّؤْيَةِ وَالشَّرْطِ لکه خیار رؤیت او خیار شرط بِخِلَافِ خِيَارِ الْعَيْبِ په خلاف د خیار عیب لِأَنَّهُ الْمُطَالَبَةُ بِتَسْلِيمِ الْفَائِتِ ځکه چي هغه د فوت سوي جزء د سپارلو مطالبه وي [یعني په خیار عیب کي د مبیع د فوت سوي جزء د ورسپارلو مطالبه کیږي] فَيَسْقُطُ مَا يُقَابِلُهُ عِنْدَ عَجْزِهِ نو [د فوت سوي جزء له ورسپارلو څخه] د عاجز کېدلو په وخت کي چي د هغه په مقابله کي کوم ثمن وي هغه به ساقطیږي.

**اللغات**: ﴿یحط﴾ د نصر له بابه د مضارع صیغه ده: کمول (کم کول). ساقطول. ﴿بناء﴾ مبني کول، برقرار ساتل. ﴿رأس المال﴾ اصل ثمن. ﴿ترویج﴾ د تفعیل مصدر دی، د دې لفظ دوې معناوي دي: رواجول. ښایسته کول (ښکلی کول). ﴿مرغوب فیه﴾ داسي شی چي خلک هغه ته رغبت کوي. ﴿یتغیّر﴾ د تفعل مضارع ده: بدلېدل. (یعني تصرف به تولیه پاته نه سي بلکي مرابحه به وګرځي). ﴿مجرّد﴾ محض، صرف.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک یو شی مرابحةً خرڅ کړه، مثلاً داسي وایي چي دا غوبی ما په دوه نیم سوه درهمه رانیولی دی اوس زه هغه په پنځوس درهمه نفع سره خرڅوم (یعني پنځوس درهمه نفع پر اچوم او په درې سوه درهمه یې خرڅوم). او بل کس یعني مشتري دغه بیع مرابحه قبوله کړي، بیا مشتري ته معلومه سي چي زما بائع دا غوبی په دوه سوه درهمه رانیولی دی او هغه زما سره پنځوس درهمه خیانت کړی دی او مشتري ته دغه د خیانت علم یا د بائع په اقرار سره وسي، یعني بائع تر خرڅولو وروسته اقرار وکړي چي ما دا پسه په دوه سوه درهمه رانیولی وو. او یا دا چي مشتري د خیانت دعوی وکړي او پر خپله دعوی ګواهي پېش نه کړی سي نو له بائع څخه د قسم مطالبه وسي لېکن بائع هم له قسم څخه انکار وکړي. نو په دې صورت کي هم د بائع خیانت ثابتیږي، حاصل دا چي کله تر بیع مرابحه وروسته مشتري د بائع په خیانت خبر سي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مشتري ته دا اختیار سته چي رانیول سوې مبیع یعني غوبی د پوره دوه نیم سوه درهمو په عوض کي

واخلي يا بيع پرېږدي. او که مشتري په بيع توليه کي په خيانت خبر سي، مثلاً بائع داسي ووايي چي دا غوېى ما په دوه نيم سوه درهمه رانيولى دى او بغير له نفع څخه يې په دوه نيم سوه درهمه خرڅوم، دويم کس (مشتري) هغه رانيسي، بيا مشتري ته په مخکني طريقه سره (يعني يا د بائع په اقرار سره. يا د بائع د قسم په انکار سره مشتري ته) معلومه سي چي بائع دا غوېى په دوه سوه درهمه رانيولى دى او پنځوس روپۍ يې خيانت کړى دى، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دي مشتري له مسمىٰ (ټاکل سوي) مقدار يعني له دوه نيم سوه درهمو څخه د خيانت مقدار يعني پنځوس درهمه له بائع څخه واپس واخلي، او که تر اوسه مشتري ثمن ورکړى نه وي نو د خيامت مقدار دي کم کړي او پاته يو نيم سل درهمه دي بائع ته ورکړي، همدا يو قول د امام شافعي رَحِمَهُ الله دى، او همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله مسلک دى. او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي په بيع مرابحه او بيع توليه دواړو کي مشتري ته اختيار دى که د هغه زړه وغواړي مبيع دي د ټوله ثمن (دوه نيم سوه درهمو) په عوض کي واخلي او که زړه يې وغواړي نو بيع دي پرېږدي، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله يو قول دى.

**د امام محمد دليل:** دا دى چي په عقد (بيع) کي چي کوم ثمن بيان کړى سوى (ټاکل سوى) وي اعتبار هغه ثمن لره دى، ځکه چي هغه ثمن معلوم دى، حاصل دا چي د ثمن معلومېدل ضروري دي، او د ثمن معلومېدل په بيانولو سره کيږي، نو د ثمن بيانول معتبر سو، لهذا کله چي د ثمن بيانول معتبر دي نو عقد (بيع) به د هغه ثمن سره متعلق وي کوم چي ثمن بيان سوى وي (يعني کوم چي د ثمن په توګه ټاکل سوى وي)، او پاته سو د مرابحه يا توليه ذکر نو هغه صرف د رغبت ورکولو لپاره دى يعني د مرابحه او توليه ذکر داسي وصف دى چي د هغه په وجه (مبيع ته) رغبت کيږي، لکه څرنګه چي د مبيع د سالموالي وصف مرغوب فيه وصف دى، او د مرغوب فيه وصف د فوتېدلو په وجه مشتري ته د بيع د ختمولو او باقي ساتلو اختيار خو حاصليږي لېکن د مرغوب فيه وصف د فوتېدلو په وجه د ثمن کمولو اختيار هغه ته نه حاصليږي، لکه څرنګه چي د مبيع د معيوب کېدلو په صورت کي مشتري ته دا اختيار حاصليږي چي هغه د ټوله ثمن په عوض کي مبيع واخلي يا بيع رد کړي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دى چي د مرابحه په لفظ او د توليه په لفظ کي اصل دا دى چي عقد مرابحه او عقد توليه وي، د ثمن ذکر کول اصل نه دي، همدا وجه ده چي د "وَلَّيْتُكَ بِالثَّمَنِ الْأَوَّل" په ويلو سره عقد توليه او د "بِعْتُكَ مُرَابَحَةً عَلَى الثَّمَنِ الْأَوَّل" په ويلو سره عقد مرابحه منعقد کيږي لېکن شرط دا دى چي ثمن معلوم وي، نو دويم عقد يعني مرابحه او توليه د ثمن په حق کي پر اول عقد مبني کېدل ضروري دي، او څرنګه چي د خيانت مقدار يعني پنځوس درهمه په اول عقد کي ثابت نه

دي نو ځکه به هغه په دويم عقد کي هم ثابتول ممکن نه وي. او کله چي د خيانت مقدار په دويم عقد يعني په مرابحه او توليه کي ثابتول ممکن نه دي نو ځکه به هغه له ثمن څخه کمول کيږي. هو! دومره فرق ضرورسته چي په توليه کي به د خيانت مقدار صرف له رأسُ المال (ثمن) څخه کمول کيږي. او په مرابحه کي به له رأسُ المال او نفع دواړو څخه کمول کيږي. مثلاً په ذکر سوې مسئله کي دوه نيم سوه درهمه رأسُ المال دی او په هغوی کي پنځوس درهمه د خيانت مقدار دی. نو کله چي اول مشتري د دوه نيم سوه درهمو په عوض کي غوبی د بيع توليه په توګه خرڅ کړی نو له رأسُ المال يعني له دوه نيم سوه درهمو څخه به د خيانت مقدار کمول کيږي يعني پنځوس درهمه به ځني کمول کيږي او پاته دوه سوه درهمه به دويم مشتري و هغه (اول مشتري) ته ورکوي. او د بيع مرابحه صورت کي په به پنځوس درهمه (کوم چي د خيانت مقدار دی) له رأسُ المال څخه کمول کيږي او څرنګه چي د دغه (خيانت والا) پنځوس درهمو نفع لس درهمه ده (يعني نفع خو ټوله پنځوس درهمه ده لېکن هغه چي پر دوه نيم سوه درهمو تقسيم کړل سي نو د هر پنځوس درهمو نفع به لس درهمه وي). نو ځکه لس درهمه به له نفع (پنځوس درهمو) څخه کمول کيږي. او کله چي د خيانت مقدار يعني پنځوس درهمه له رأسُ المال څخه کم کړل سي او لس درهمه له نفع څخه کم کړل سي نو اوس به مشتري په دوه سوه څلوېښت درهمو غوبی اخلي. او د دې بل مثال دا دی چي که يو سړی په اته درهمه يو کپړه رانيسي او بل چا ته ووايي چي ما دغه کپړه په لس درهمه رانيولې ده او د بيع توليه په توګه يې زه پر تا په لس درهمه خرڅوم. او مشتري يې رانيسي. وروسته مشتري ته معلومه سي چي دا يې په اته درهمه رانيولې ده نو مشتري به دوه درهمه د خيانت مقدار کموي او په اته درهمه به کپړه اخلي. او که ورته ووايي چي په لس درهمه مي رانيولې ده او د مرابحه توګه يې په پنځلس درهمه پر تا خرڅوم (يعني پنځه درهمه نفع پر اچوم). او مشتري يې رانيسي. وروسته مشتري ته معلومه سي چي دا يې په اته درهمه رانيولې ده نو دوه درهمه (د خيانت مقدار) به له رأسُ المال څخه کمول کيږي او څرنګه چي د دغه (خيانت والا) دوو درهمو نفع يو درهم ده. نو ځکه يو درهم به له نفع څخه کمول کيږي. يعني له پنځلسو درهمو څخه به درې درهمه کمول کيږي او دويم مشتري به په دوولس درهمه کپړه اخلي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي که د بيع توليه په صورت کي د خيانت مقدار کم نه کړی سي نو توليه به باقي پاته نه سي: ځکه چي بيع توليه د اول ثمن په عوض کي وي او دلته داسي نه ده؛ ځکه چي اول ثمن دوه سوه درهمه دی او پنځوس درهمه اول مشتري خيانت کړی دی او په دوه نيم سوه درهمه يې غوبی خرڅ کړی دی. نو که د خيانت مقدار يعني پنځوس درهمه د بيع توليه په صورت کي کم نه کړی سي. نو دا بيع به د اول ثمن (دوه سوه درهمو) په عوض کي نه وي. او کله چي بيع د

اول ثمن په عوض کي پاتـه نه سوه نو دا بيع به بيع توليه هم نه وي، او کله چي بيع توليه پاتـه نـه سوه نو بالکل تصرف بدل سو يعني هغه (بيع توليه) بيع مرابحه وګرځېده. او تصرف بدلول ناجائز دي، نو ځکه په بيع توليه کي د خيانت مقدار يعني پنځوس درهمه کمول مُتعيّن دي، لېکه په بيع مرابحه کي که د خيانت مقدار يعني پنځوس درهمه کـم نـه کړل سي نو بيا هـم هغه مرابحه پـاتيږي او پـه تصرف کي تبديلي نه راځي، ها! صرف نفع متفاوت کيږي، يعني د دويم مشتري خيال دا وو چي اول مشتري زما څخه پنځوس درهمه نفع اخيستې ده، لېکن له خيانت ښکاره کېدلو څخه وروسته معلومه سوه چي اول مشتري لـه هغـه څخه سل درهمه نفع اخيستې، پنځوس درهمه د خيانت او پنځوس درهمه د نفع، نو دا اول مشتري د دغه فرېب او دوکه ورکولو پـه وجه به د دويـم مشتري رضا فوت سي، او د مشتري د رضا فوتېدلو په وخت کي مشتري تـه د بيع د ختمولو او باقي ساتلو اختيـار حاصليږي، نو ځکه دلته دويم مشتري ته د مرابحه پـه صورت کـي اختيـار ستـه چي کـه د هغه خوښه وي نو مبيع يعني غويى دي د ټوله ثمن په عوض کي واخلي يا بيع مرابحه دي پريږدي.

فلوهلك إلخ: فرمايي چي که په دوه سوه درهمه غويى رانيسي او بل چا ته ووايي چي ما دا غويى پـه دوه نيم سوه درهمه رانيولى دى يعني پنځوس درهمه خيانت وکړي او ووايي چي زه پـه پنځوس درهمه نفع سره هغه په درې سوه درهمه پـر تـا خرڅوم، او دويـم مشتري هغه رانيسي او لـه رانيولو څخه وروسته معلومه سي چي اول مشتري پنځوس درهمه خيانت کړى دى، اوله خيانت ښکاره کېدلو څخه وروسته مبيع يعنى غويى د دويم مشتري پـه قبضه کي هلاک سي يـا پـه هغه کي داسي عيب پيدا سي چي د هغه په وجه يې نه سي واپس کولاى، نو په دې صورت کـي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د خيانت مقدار له رأسُ المال او نفع دواړو څخه کمول کيږي يعني پنځوس درهمه به د خيانت مقدار کمول کيـږي او لـس درهمـه بـه لـه نفع څخه کمـول کيـږي، يعني دويـم مشتري بـه دوه سوه څلوېښت درهمه اول مشتري تـه سپاري، او د طرفينو (امام صاحب او امام محمـد) رَحِمَهُمَا الله پـه نېز ټوله ثمن يعني درې سوه درهمه پر دويم مشتري واجبيږي؛ ځکه چي د دوى په نېز له خيانت ښکاره کېدلو څخه وروسته دويم مشتري ته محض د مبيع واپس کولو اختيار وو، او د دغه اختيـار پـه مقابله کي د ثمن هيڅ حصه نه وي، نو کله چي د مبيع (غويي) د هلاکېدلو په وجه مبيع واپس کول متعذر سوه. نو د دويم مشتري اختيار هم ساقط سو او څرنګه چي د اختيار په مقابله کـي د ثمن هيڅ حصه نه وي نو ځکه د ثمن کمولو اختيار به هم نه وي، او کله چي د ثمن کمولو اختيـار نستـه نو ځکـه پـر دويم مشتري به ټوله ثمن يعني درې سره درهمه لازم وي، لکه څرنګه چي د خيارِ رؤيت او خيارِ شرط په مقابله کي د ثمن هيڅ حصه نـه وي، يعني کـه د خيـارِ شرط يا خيـارِ رؤيت پـه صورت کـي

مبيع د مشتري په قبضه کي هلاکه سي نو پر مشتري ټوله ثمن لازميږي، نو همداسي به لته هم پر دويم مشتري ټوله ثمن لازم وي.

ها! د خيار عيب په صورت کي پر مشتري ټوله ثمن نه واجبيږي، يعني که مشتري د مبيع په عيب خبر سي، بيا مبيع د مشتري په قبضه کي هلاکه سي، نو د عيب د حصې په مقابله کي چي کوم ثمن وي د مشتري له ذمې ځخه هغه ساقطيږي، د مثال په توګه د مبيع ثمن سل درهمه وي. او د عيب په وجه د هغې ثمن اتيا درهمه سي (نو د عيب په مقابله کي شل درهمه راغله) لهذا شل درهمه د مشتري له ذمې څخه ساقطيږي؛ ځکه د عيب په وجه چي د مبيع کوم جزء فوت سوی دی مشتري به له بائع څخه د هغه د سپارلو مطالبه کوي (چي ما ته هغه وسپاره) او بائع د فوت سوي جزء له ورسپارلو څخه عاجز دی، او مشتري د عيبداره مبيع د هلاکېدلو په وجه د مبيع له واپس کولو څخه عاجز دي. نو ځکه په داسي صورت کي به د ثمن هغه مقدار کوم چي د فوت سوي جزء په مقابله کي وي د مشتري له ذمې څخه ساقطيږي، يعني مشتري به شل درهمه کموي او پاته ثمن به بائع ته سپاري.

## د بيع مرابحه يو خاص صورت

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى ثَوْبًا فرمايي: او څوک چي يو تان [کپړه] رانيسي فَبَاعَهُ بِرِبْحٍ بيا هغه په نفع سره خرڅ کړي [يعني د مرابحه په توګه يې خرڅ کړي] ثُمَّ اشْتَرَاهُ بيا يې [بيرته] رانيسي فَإِنْ بَاعَهُ مُرَابَحَةً نو که هغه بيا دا تان د مرابحه په توګه خرڅ کړي [يعني وغواړي چي په نفع سره يې خرڅ کړي] طَرَحَ عَنْهُ كُلَّ رِبْحٍ كَانَ قَبْلَ ذَلِكَ نو له دې څخه مخکي چي کومه نفع حاصله سوې ده هغه دي [ټوله] له ثمن څخه ساقطه کړي فَإِنْ كَانَ اسْتَغْرَقَ الثَّمَنَ [لېکن] که نفع ټوله ثمن ونيسي لَمْ يَبِعْهُ مُرَابَحَةً نو بيا هغه دا [تان] په مرابحه سره نه سي خرڅولای وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دي وَقَالَا[۞]: يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً عَلَى الثَّمَنِ الْأَخِيرِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي هغه يې پر آخري ثمن په مرابحه سره خرڅولای سي صُورَتُهُ: إِذَا اشْتَرَى ثَوْبًا بِعَشَرَةٍ د دې [مسئلې] صورت دا دی چي کله [يو څوک] په لس درهمه يو تان رانيسي وَبَاعَهُ بِخَمْسَةَ عَشَرَ او هغه په پنځلس درهمه خرڅ کړي

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَاالله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۲، ص:۱۷۲)، وكذا في الهندية (ج:۲، ص:۱۶۲). وقال المفتي غلام قادر النعماني: وقولهما أوفق بأحوال الزمان. [القول الراجح ج:۲، ص:۵۳]

ثُمَّ اشْتَرَاهُ بِعَشَرَةٍ بيا يې [بيرته] په لس درهمه رانيسي فَإِنَّهُ يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً بِخَمْسَةٍ نو هغه دا تان مرابحة په پنځه درهمه خرڅولای سي وَيَقُولُ: قَامَ عَلَيَّ بِخَمْسَةٍ او داسي به وايي: چي دا [تان] ما ته په پنځه درهمه پروت دی. وَلَوِ اشْتَرَاهُ بِعَشَرَةٍ او كه په لس درهمه يې رانيسي وَبَاعَهُ بِعِشْرِينَ مُرَابَحَةً او مرابحة يې په شل درهمه خرڅ کړي ثُمَّ اشْتَرَاهُ بِعَشَرَةٍ بيا يې ابيرته| په لس درهمه رانيسي لَا يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً أَصْلًا نو [په دې صورت كي] هغه دا [تان] بالكل په مرابحه سره نه سي خرڅولای وَعِنْدَهُمَا يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً عَلَى الْعَشَرَةِ فِي الْفَصْلَيْنِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه دا [تان] په دواړو صورتونو کي پر لس درهمو په مرابحه سره خرڅولای سي لَهُمَا: أَنَّ الْعَقْدَ الثَّانِيَ عَقْدٌ مُتَجَدِّدٌ مُنْقَطِعُ الْأَحْكَامِ عَنِ الْأَوَّلِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي دويم عقد يو نوی عقد دی چي د هغه احكام له اولي بيع [اول عقد] څخه بالكل جلا دي فَيَجُوزُ بِنَاءُ الْمُرَابَحَةِ عَلَيْهِ نو ځكه پر هغه [يعني پر دويم عقد] د بيع مرابحة بناء كول جائز دي ايعني پر عقد ثاني مرابحه مبني كول جائز دي| كَمَا إِذَا تَخَلَّلَ ثَالِثٌ لكه په هغه صورت كي كله چي په مېنځ كي درېيم كس راسي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ شُبْهَةَ حُصُولِ الرِّبْحِ بِالْعَقْدِ الثَّانِي ثَابِتَةٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي په دويم عقد سره د نفع د حصول شبهه ثابته ده لِأَنَّهُ يَتَأَكَّدُ بِهِ ځكه [په اوله بيع سره چي كومه نفع حاصله سوې ده] هغه په دويم عقد سره مؤكده سوې ده بَعْدَمَا كَانَ عَلَى شَرَفِ السُّقُوطِ بِالظُّهُورِ عَلَى عَيْبٍ وروسته تر دې چي په عيب ښكاره كېدلو سره دا نفع ساقطېدلو ته نژدې وه [يعني د ساقطېدلو امكان يې وو. مطلب دا چي كه له دويم عقد (عقد ثاني) څخه مخكي په مبيع (تان) كي عيب ښكاره سوی وای نو د عيب په وجه به دا نفع ساقطه سوې وای. تفصيل به يې په تشريح كي ذكر سي| وَالشُّبْهَةُ كَالْحَقِيقَةِ فِي بَيْعِ الْمُرَابَحَةِ احْتِيَاطًا او په بيع مرابحه كي شبهه احتياطا د حقيقت په څېر ده [يعني د احتياط پر بناء د دواړو درجه يوه ده| وَلِهَذَا لَمْ تَجُزِ الْمُرَابَحَةُ فِيمَا أُخِذَ بِالصُّلْحِ او په همدې وجه مرابحه په داسي شئ كي جائز نه ده كوم چي د صلح په توګه اخيستل سوی وي لِشُبْهَةِ الْحَطِيطَةِ ځكه چي [په هغه كي] د قيمت كمولو شبهه ستته فَيَصِيرُ كَأَنَّهُ اشْتَرَى خَمْسَةً وَثَوْبًا بِعَشَرَةٍ نو امخكني صورت| به داسي وګرځي لكه بائع چي د لس

درهمو په عوض کې پنځه درهمه او تان دواړه رانیولي وي فَيُطْرَحُ عَنْهُ خَمْسَةٌ نو ځکه له هغه څخه په پنځه درهمه ساقطول کیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا تَخَلَّلَ ثَالِثٌ په خلاف د هغه صورت کله چې درېیم کس په مینځ کې راسي لِأَنَّ التَّأْكِيدَ حَصَلَ بِغَيْرِهِ ځکه چې [په هغه صورت کې] مؤکد کېدل له دویم عقد څخه بغیر [په بل شي سره] حاصل سوي دي [یعني ځکه چې په هغه صورت نفع له عقد ثاني څخه بغیر (د دریم کس په رانیولو) سره مؤکده سوې ده].

**اللغات:** ﴿ثوب﴾ کپړه، (په ځینو ځایو کې له "ثوب" څخه مراد د کپړې "تان" وي، دلته دواړه مراد کېدای سي. کپړه مرادول غوره دي خو موږ د آسانۍ لپاره تان مراد کړی دی)، ﴿طرح﴾ د فتح ماضي ده: غورځول، ساقطول، لیري کول، ﴿استغرق﴾ د استفعال ماضي ده: په پوره توګه نیول، په پوره توګه احاطه کول، ﴿تخلّل﴾ د تفعّل ماضي ده: په مینځ کې واقع کېدل، مینځ ته راتلل، ﴿شرف﴾ کناره، څنډه، ژۍ، عرب وايي: هُوَ عَلَى شَرَفِ الْهَلَاكِ، فلانکی د هلاکېدلو پر څنډه دی، یعني هلاکېدلو ته ډېر نږدې دی، ﴿حطیطة﴾ د حطّ مصدر دی: کمول (کم کول).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یوسړی د کپړې یو تان رانیسي، بیا هغه په نفع سره (مرابحة) خرڅ کړي او پر ثمن قبضه وکړي، او مشتري پر تان (مبیع) قبضه وکړي، بیا دغه سړی (بائع) بیرته هغه تان له مشتري څخه رانیسي. اوس که بیا بائع هغه په نفع سره (مرابحة) خرڅول وغواړي، نو له دې څخه مخکې چې یې کومه نفع حاصله کړې ده هغه دي ځني ساقطه کړي (یعني مخکنۍ نفع دې له ثمن څخه کمه کړي)، او که مخکنۍ نفع ټوله ثمن ونیسي نو بیا هغه دا تان په مرابحه سره (په نفع سره) نه سي خرڅولای، دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دی، او همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله قول دی. او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې پر آخري ثمن یې په مرابحه سره خرڅولای سي، همدا د امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمَا الله قول دی.

**صورت د مسئلې:** د پورتنۍ مسئلې صورت دا دی چې خالد یو تان په لس درهمه رانیوی او پر تان یې قبضه وکړه، بیا خالد دا تان په پنځلس درهمه پر حامد خرڅ کړی، حامد پر تان یعني پر مبیع قبضه وکړه او خالد پر پنځلس درهمو یعني پر ثمن قبضه وکړه، بیا خالد بیرته له حامد څخه دا تان په لس درهمه رانیوی پر هغه یې قبضه وکړه او حامد پر لس درهمو قبضه وکړه، اوس که خالد دغه تان د مرابحه په توګه خرڅول وغواړي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز چې خالد په اوله بیع کې کوم

پنځه درهمه نفع حاصله کړې ده هغه دي کمه کړي او پر پنځه درهمه دي مرابحه وکړي (يعني پر پنځه درهمه دي تان مرابحة خرڅ کړي) او داسي دي ووايي چي دا تان ما ته په پنځه درهمه پروت دی او په دومره نفع مثلاً په څلور درهمه نفع سره يې خرڅوم. او دا دي نه وايي چي ما دا تان په پنځه درهمه رانيولی دی. کنې دا به کذب او درواغ وي، او له درواغو څخه شريعت منع کړې ده.

او که چيري خالد تان په لس درهمه رانيسي او پر هغه قبضه وکړي بيا يې پر حامد په شل درهمه د بيع مرابحه په توګه خرڅ کړي، حامد پر مبيع (تان) اوخالد پر ثمن (شل درهمه) قبضه وکړي، بيا خالد له حامد څخه هغه په لس درهمه رانيسي قبضه پر وکړي، اوس که خالد دغه تان مرابحة خرڅول وغواړي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مرابحة دا تان خرڅول جائز نه دي؛ ځکه په اوله بيع کي چي خالد کوم لس درهمه نفع حاصله کړه هغه ټوله ثمن نيسي، يعني د هغه له کمولو څخه وروسته مخکنی ثمن باقي نه پاتيږي، او کله چي ثمن باقي پاته نه سي نو مرابحه به پر څه شي وکړي!؟، ها! که چيري خالد دا تفصيل ورته بيان کړي چي ما يو وار پر دغه تان لس درهمه نفع حاصله کړه (يعني په اول وار خرڅولو سره مي پر هغه لس درهمه ګټه وکړه)، اوس دوباره پر لسو درهمو دومره نفع اچوم او پر تا يې خرڅوم، نو دا جائز دي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز که نفع ټوله ثمن ونيسي، او که يې نه ونيسي په هر صورت کي له تفصيل بيانولو څخه بغير پر لسو درهمو مرابحه کولای سي، يعني پر لسو درهمو مُتعيَنه نفع اچولای او په نفع سره تان خرڅولای سي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي دويمه بيع (يعني خالد چي پر حامد تان خرڅ کړی دا بيع) يو نوی عقد دی چي د هغه احکام له اول عقد (اولي بيع) څخه بالکل جلا دي، او کله چي د عقد ثاني يعني د شراء ثاني (دويم وار رانيولو) احکام له عقد اول څخه جلا دي، نو پر عقد ثاني د مرابحې په مبني کولو کي هيڅ حرج نسته. يعني پر عقد ثاني مرابحه کول کېدای سي، يعني د خالد لپاره پر لسو درهمو نفع اچول او (په نفع سره) تان خرڅول جائز دي، لکه په هغه صورت کي چي جائز دي کله چي درېيم سړی په مينځ کي راسي، مثلاً خالد يو تان په لس درهمه رانيسي او د بيع مرابحه په توګه يې په شل درهمه پر حامد خرڅ کړي، بيا حامد هغهٔ په پنځلس درهمه پر عابد خرڅ کړي، بيا خالد له عابد څخه په لس درهمه هغه رانيسي، نو اوس که خالد پر لسو درهمو مرابحه کول وغواړي نو دا بالاتفاق جائز دي، نو همداسي که خالد له حامد څخه په لس درهمه تان رانيسي او پر لسو درهمو مرابحه کول وغواړي نو جائز دي يعني پر لسو درهمو نفع اچولای او په نفع سره تان خرڅولای سي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي د اول عقد په وجه چي کومه نفع حاصله سوې ده، يعني کله چي خالد په لس درهمه تان رانيوی او پر حامد يې په پنځلس درهمه خرڅ کړی، نو د دې اول عقد (عقد

اول) په وجه چې خالد کوم پنځه درهمه نفع حاصله کړه، د دغه نفع د حصول شبهه په عقد ثاني (دويم عقد) سره هم ثابته ده. هغه په دې توګه چې کله خالد عقد ثاني وکړي يعني کله چې خالد بيرته داغه تان له خپل مشتري حامد څخه په لس درهمه رانيوی نو هغه پنځه درهمه کوم چې خالد ته په نفع کې حاصل سوه ګواکې هغه په عقد ثاني سره ثابت سوه، ځکه چې تر عقد ثاني مخکې دهغه د ساقطيدلو امکان سته، په دې توګه چې که حامد په مبيع کې يعني په تان کې يو عيب وويني او د خيارِ عيب په وجه تان خالد ته واپس کړي او خپل پنځلس درهمه ځني واخلي، نو خالد ته چې کوم پنځه درهمه نفع حاصله سوې وه هغه به ساقطه سي، ليکن کله چې خالد دغه تان له حامد څخه په لس درهمه رانيوی نو د پنځه درهمو نفع د خالد لپاره مستحکم او مؤکد سوه، لهذا د پنځه درهمو نفع خو حقيقتاً په عقد اول سره حاصله سوې ده خو څرنګه چې په عقد ثاني سره د هغې استحکام سوی دی نو ځکه هغه شبهةً په عقد ثاني سره هم ثابته او حاصله سوې ده، او کله چې په عقد ثاني سره شبهةً هغه نفع يعني پنځه درهمه حاصل سوي دي نو دا ګواکې داسي سو لکه خالد چې په لسو درهمو له حامد څخه يو تان او پنځه درهمه رانيول (يعني ګواکې په پنځه درهمه يې تان ځني رانيوی او په پنځه درهمه يې نور پنځه درهمه ځني رانيول) نو دا پنځه درهمه د پنځه درهمو په عوض کې راغله او تان هم د پنځه درهمو په عوض کې راغلی (يعني ګواکې تان يې په پنځه درهمه رانيوی)، او کله چې تان د پنځه درهمو په عوض کې راغلی، نو ځکه اوس خالد صرف پر پنځه درهمو مرابحه کولای سي (يعني که هغه وغواړي چې تان مرابحةً خرڅ کړي نو په پنځه درهمه يې مرابحةً خرڅولای سي)، ځکه که پر لسو درهمو مرابحه وکړي نو د خيانت شبهه به پيدا سي، حال دا چې په بيع مرابحه کې د خيانت شبهه احتياطاً د حقيقي خيانت په څېر ده (لکه مخکې چې ذکر سوه)، نو په بيع مرابحه کې چې څرنګه له حقيقي خيانت څخه ځان ساتل ضروري دي همداسي احتياطاً له شبهۀ خيانت څخه هم ځان ساتل ضروري دي، د همدې احتياط په وجه که يو شی په صلح سره اخيستل سوی وي (يعني د صلح په عوض کې چا ته حاصل سوی وي) نو هغه مرابحةً خرڅول جائز نه دي، مثلاً پر زاهد د شاکر پنځه سوه درهمه قرض باندې وي، نو زاهد د شاکر سره پر يوه پُسه صلح وکړي يعني د پنځه سوه درهمو پر ځای يو پُسه شاکر ته ورکړي، نو اوس که شاکر وغواړي چې دا پُسه په پنځه سوه درهمه نفع سره خرڅ کړي (يعني پر پنځه سوه درهمه نوره نفع واچوي) نو دا جائز نه دي، ځکه چې صلح عموماً له قيمت څخه په کمه کيږي (يعني څومره قرض چې وي د هغومره قيمت شی نه ورکوي بلکې تر هغه کم شی ورکوي) نو په دې کې شبهه راغله چې پُسه به د پنځه سوه درهمو نه وي بلکې تر پنځه سوه درهمو به کم وي، نو له دغه شبهې څخه د ځان ساتلو لپاره دا پُسه مرابحةً خرڅول جائز نه دي. او د دې په خلاف چې کله دريم سړی

په مینځ کي راسي یعني خالد پر حامد تان خرڅ کړي او حامد یې پر بل چا (عابد) خرڅ کړي او له هغه څخه یې خالد رانیسي نو په دې صورت کي چي خالد ته کوم پنځه درهمه نفع سوې ده، د هغه استحکام د درېیم کس په رانیولو سره سوی دی (یعني د هغه په رانیولو سره مؤکد سوي دي) او خالد ته دا نفع په عقد ثاني سره نه ده حاصله سوې، لهذا کله چي دغه نفع په عقد ثاني (شراء ثاني) سره ثابته نه سوه نو د خیانت شبهه هم منتفي سوه، او کله چي د خیانت شبهه منتفي سوه نو ځکه اوس خالد هغه تان په لسو درهمو مرابحة خرڅولای سي (یعني پر لسو درهمو نفع اچولای او په نفع سره تان خرڅولای سي).

## د پورتني مسئلي بل صورت

قَالَ: وَإِذَا اشْتَرَى الْعَبْدُ الْمَأْذُونُ لَهُ فِي التِّجَارَةِ ثَوْبًا بِعَشَرَةٍ فرمایي: او کله چي "مأذون لهٔ فی التجارة" غلام یو تان په لس درهمه رانیسي وَعَلَيْهِ دَيْنٌ يُحِيطُ بِرَقَبَتِهِ او پر هغه دومره قرض باندي وي کوم چي د هغه پر ذات احاطه کوي فَبَاعَهُ مِنَ الْمَوْلَى بِخَمْسَةَ عَشَرَ بیا هغه غلام دا تان پر خپل مولیٰ [مالک] په پنځلس درهمه خرڅ کړي فَإِنَّهُ يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً عَلَى عَشَرَةٍ نو مولیٰ پر لسو درهمو هغه مرابحة خرڅولای سي وَكَذَلِكَ إِنْ كَانَ الْمَوْلَى اشْتَرَاهُ او همداسي [حکم دی] که چیري مالک دا تان رانیولی وي فَبَاعَهُ مِنَ الْعَبْدِ او پر خپل مأذون غلام یې [په پنځلس درهمه] خرڅ کړی وي لِأَنَّ فِي هَذَا الْعَقْدِ شُبْهَةَ الْعَدَمِ ځکه چي په دې عقد کي د نه کېدلو [نه جائز کېدلو] شبهه ده [یعني کوم عقد چي د مولیٰ او د هغه د مأذون غلام په مینځ کي سوی دی په هغه کي د نه جائز کېدلو شبهه سته] لِجَوَازِهِ مَعَ الْمُنَافِي ځکه چي دا عقد د منافي شي سره جائز دی فَاعْتُبِرَ عَدَمًا فِي حُكْمِ الْمُرَابَحَةِ نو ځکه د مرابحه په حکم کي دا عقد [بیع] معدوم وشمارل سو وَبَقِيَ الِاعْتِبَارُ لِلْأَوَّلِ او اول عقد لره اعتبار پاته سو [یعني صرف اوله بیع معتبر پاته سوه] فَيَصِيرُ كَأَنَّ الْعَبْدَ اشْتَرَاهُ لِلْمَوْلَى بِعَشَرَةٍ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ نو ځکه په اول صورت کي به [حالت] داسي وګرځي ګواکي مأذون غلام دا تان په لس درهمه د خپل مولیٰ لپاره رانیولی دی وَكَأَنَّهُ يَبِيعُهُ لِلْمَوْلَى فِي الْفَصْلِ الثَّانِي او په دویم صورت کي ګواکي مأذون غلام دا تان د خپل مولیٰ لپاره خرڅوي فَيُعْتَبَرُ الثَّمَنُ الْأَوَّلُ نو ځکه به [صرف] اول ثمن معتبر وي.

**اللغات**: ﴿العبد مأذون لهٔ فی التجارة﴾ کوم غلام ته چي د خپل مولیٰ له طرفه د تجارت کولو اجازه ورکول سوې وي، ﴿دین یحط برقبه﴾ داسي قرض چي د غلام پر ذات یې احاطه کړې وي، مثلاً د غلام قیمت څلور زره درهمه وي او پر هغه څلور نیم زره درهمه باندي وي، ﴿المنافی﴾ د مفاعلې اسم

فاعل دی؛ مخالف (کوم دوه شیان چي په خپل مینځ کي سره مخالف او نه سره جمع کېدونکي وي، نو هغوی ته یو د بل منافي وي).

**تشریح : صورت د مسئلې :** دا دی که مأذون لهٔ فی التجارة غلام یو تان په لس درهمه رانیسي، او پر دغه مأذون غلام د خلکو دومره قرضونه باندي وي چي هغه د ده پر ټوله مالیت احاطه کړې وي (یعني د ده چي څومره قیمت دی، قرض تر هغه زیات وي)، بیا دا مأذون غلام هغه تان پر خپل مولیٰ (مالک) په پنځلس درهمه خرڅ کړي، نو مولیٰ هغه تان صرف په لس درهمه مرابحةً خرڅولای سي، او په پنځلسو درهمو مرابحةً خرڅول د هغه لپاره جائز نه دي (یعني په څومره قیمت چي غلام تان رانیولی دی پر هغه قیمت مولیٰ نفع اچولای او اخیستلای سي لېکن پر پنځلسو درهمو دا نه سي کولای)، همدارنګه که مولیٰ یو تان په لس درهمه رانیسي او پر خپل مأذون لهٔ غلام یې په پنځلس درهمه خرڅ کړي، نو مأذون غلام دا تان صرف په لس درهمه مرابحةً خرڅولای سي، او پر پنځلسو درهمو مرابحه کول د هغه لپاره جائز نه دي.

دلیل دا دی چي په دغه عقد کي د غلام په خرڅولو کي او د مالک په خرڅولو کي د بیع نه جائز کېدلو شبهه سته، یعني حقیقتاً خو بیع جائز ده لېکن د نه جائز کېدلو شبهه پکښې سته، او حقیقتاً ځکه بیع جائز ده چي کله غلام په محیط قرض سره مقروض دی، نو غلام د قرض غوښتونکو حق سو، او کله چي غلام د قرض غوښتونکو (د قرض د مالکانو) حق سو، نو ګواکي دا غلام د خپل مولیٰ ملکیت پاته نه سو بلکي د قرض غوښتونکو ملکیت سو (یعني ګواکي دا غلام د مولیٰ له ملکیت څخه ووتی او د قرض غوښتونکو ملکیت ته نقل سو) لهذا کله چي هغه د قرض غوښتونکو ملکیت سو، نو د مولیٰ او د هغه په مینځ کي د مالک او مملوکیت نسبت پاته نه سو، بلکي اجنبیت (پردی والي) ثابت سو، او د دوو أجنبیانو په مینځ کي بیع جائز ده، نو ځکه به د مولیٰ او د هغه د مقروض غلام په مینځ کي بیع حقیقتاً جائز وي. او د بیع نه جائز کېدلو شبهه ځکه سته چي دا بیع د منافي شي باوجود جائز سوې ده، او منافي شی "غلام د خپل مولیٰ ملکیت کېدل" دي (یعني منافي شی دا دی چي غلام د خپل مولیٰ ملکیت دی [یعني د هغه په ملکیت کي دی])، ځکه تر څو چي قرض غوښتونکي (د قرض مالکان) دا غلام نه واخلي تر هغه وخته پوري غلام د خپل مولیٰ ملکیت پاتېږي، یا که چیري مولیٰ د ده قرض اداء کړي نو هم هغه د خپل مولیٰ ملکیت پاتېږي، لهذا کله چي هغه د خپل مولیٰ ملکیت دی نو داسي سو لکه مولیٰ چي خپل ملکیت رانیولی دی او په دویم صورت کي ګواکي مولیٰ خپل ملکیت په خپل لاس خرڅ کړی دی او ښکاره خبره ده چي دا صحیح نه دي، لنډه دا چي د غلام او

مولیٰ په مینځ کي دا بیع که څه هم د محیط قرض په وجه حقیقتاً جائز ده، لېکن په هغه کي د نه جائز کېدلو شبهه هم سته، او څرنګه چي په بیع مرابحه کي له شبهه څخه هم ځان ساتل ضروري دي، نو ځکه په بیع مرابحه کي د غلام او مولیٰ تر مینځ دغه واقع کېدونکې بیع معدوم (کالعدم) شمارل سوې ده او صرف د اولي بیع (عقد اول) اعتبار سوی دی او د مسئلې حالت داسي دی ګواکي په اول صورت کي غلام د خپل مولیٰ لپاره تان په لس درهمه رانیولی دی او په دویم صورت کي ګواکي هغه د خپل مولیٰ لپاره تان خرڅوي، لهذا کله چي دویمه بیع (عقد ثاني) معدوم دی او صرف اوله بیع معتبره ده نو ځکه مرابحه به پر هغه ثمن جائز وي کوم چي په اوله بیع کي ذکر سوی دی او کوم ثمن چي په دویمه بیع کي ذکر سوی دی پر هغه به مرابحه کول جائز نه وي، او څرنګه چي په اوله بیع کي ثمن لس درهمه دی نو ځکه پر لسو درهمو به مرابحه کول جائز وي.

## د پورتنۍ مسئلې یو بل صورت

قَالَ: وَإِذَا كَانَ مَعَ الْمُضَارِبِ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ بِالنِّصْفِ فرمايي: او که د مضارب سره د نیمایي نفع پر شرط لس درهمه وي فَاشْتَرَى ثَوْبًا بِعَشَرَةٍ بیا مضارب یو تان په لس درهمه رانیسي وَبَاعَهُ مِنْ رَبِّ الْمَالِ بِخَمْسَةَ عَشَرَ او پر ربُ المال یې په پنځلس درهمه خرڅ کړي فَإِنَّهُ يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً بِاثْنَيْ عَشَرَ وَنِصْفٍ نو [اوس] ربُ المال هغه تان په دوولس نیم درهمه مرابحةً خرڅولای سي لِأَنَّ هٰذَا الْبَيْعَ وَإِنْ قُضِيَ بِجَوَازِهِ عِنْدَنَا عِنْدَ عَدَمِ الرِّبْحِ ځکه چي د نفع د نشتوالي په صورت کي که څه هم زموږ په نېز ددې بیع د جائز کېدلو حکم سوی دی خِلَافًا لِزُفَرَ ❁ خو دا د امام زفر رَحِمَهُ الله په خلاف دي [یعني د هغه په نېز د نفع د نشتوالي په وخت کي دا بیع جائز نه ده] مَعَ أَنَّهُ اشْتَرَى مَالَهُ بِمَالِهِ ځکه ربُ المال خپل مال په خپل مال سره رانیولی دی لِمَا فِيهِ مِنِ اسْتِفَادَةِ وِلَايَةِ التَّصَرُّفِ ځکه چي په دې کي د تصرف د ولايت حصول دی وَهُوَ مَقْصُودٌ او همدا مقصود دي وَالِانْعِقَادُ يَتْبَعُ الْفَائِدَةَ او منعقد کېدل د فایدې پیروي کوي [یعني د بیع منعقد کېدل د فایدې لپاره وي، یعني په بیع سره مطلوب د فایدې حاصلول وي] فَفِيهِ

---

❁ القول الراجح: قول علمائنا الثلاثة، كما ذكر في فتح القدير (ج:٦، ص:٣١)، وإن شئت تفصيل هذه المسئلة، فعليك بمطالعة "منحة الخالق" (ج:٦، ص:١١٣). [القول الراجح ج:٢، ص:٥٤]

شُبْهَةُ الْعَدَمِ لېکن [بيا هم] په دغه عقد کي د نه کېدلو [نه جائز کېدلو] شبهه ده أَلَا تَرَى أَنَّهُ وَكِيلٌ عَنْهُ فِي الْبَيْعِ الْأَوَّلِ مِنْ وَجْهٍ آيا ته نګورې! چي مضارب په اوله بيع کي مِن وَجه د ربُ المال وکيل دی فَاعْتُبِرَ الْبَيْعُ الثَّانِيْ عَدَمًا فِي حَقِّ نِصْفِ الرِّبْحِ نو ځکه د نيمايي نفع په حق کي به دويمه بيع معدوم شمارل کېږي.

**اللغات**: ﴿ربُ المال﴾ مال والا، پيسو والا، په مضاربت کي چي مال او پيسې د کوم چا وي هغه ته ربُ المال وايي، مضاربت دې ته وايي چي پيسې د يوه سړي وي او تجارت او کار بل سړی کوي، کوم يو چي کار او تجارت کوي هغه ته مضارب وايي، او پيسې چي د چا وي هغه ته ربُ المال وايي.

﴿قُضِيَ﴾ د ضرب ماضي مجهوله ده: فيصله کول، حکم کول. ﴿يتبع﴾ د فتح مضارع ده: تابع کېدل، پيروي کول، په چاپسي (د شاله طرفه) تلل.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که يو سړی بل چا ته د مضاربت کولو لپاره لس درهمه ورکړي او د نيمايي نفع شرط ولګوي يعني هغه سړی (رب المال) دا شرط ولګوي چي دا مال څومره نفع وکړي هغه به د ربُ المال او مضارب په مينځ کي مشترکه وي، نيمه به د ربُ المال وي او نيمه به د مضارب وي، بيا مضارب په هغه لس درهمو کپړه رانيسي او په پنځلس درهمه يې بيرته پر ربُ المال خرڅه کړي، اوس که ربُ المال دغه کپړه د بيع مرابحه په توګه خرڅول وغواړي نو پر دولس نيم درهمو مرابحه کولای سي، پر پنځلس درهمو مرابحه کول جائز نه دي، يعني ربُ المال به داسي وايي چي دا کپړه ما ته په دولس نيم درهمه پرته ده او زه دومره نفع پر اچوم؛ دليل دا دی چي د بيع مرابحه بنياد له خيانت او شبهۀ خيانت څخه پر ځان ساتلو دی، نو که ربُ المال پر پنځلس درهمو مرابحه وکړي (يعني کپړه په پنځلس درهمو مرابحهٔ خرڅه کړي) نو په دې کي د خيانت شبهه راځي.

اولاً تاسي په دې ځان پوه کړئ! چي که په مال مضاربت سره نفع حاصله سوې وي نو په دې صورت کي دا بالاتفاق جائز دي چي مضارب پر ربُ المال شی خرڅ کړي او ربُ المال پر مضارب شی خرڅ کړي، او که څه نفع حاصله سوې نه وي (لکه دلته چي دا صورت دی) نو بيا هم زموږ په نېز دا جائز دي چي مضارب پر ربُ المال شی خرڅ کړي او ربُ المال يې پر مضارب خرڅ کړي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز دا ناجائز دي (نو ځکه زموږ په نېز پورتنۍ بيع جائز ده او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز ناجائز ده، ځکه په پورتني صورت کي تر اوسه مضارب په مال سره ګټه نه ده کړې).

مع أنه اشترىٰ ماله إلخ: د امام زفر دليل دا دی چي بيع مبادلةُ المال بالمال ته وايي (يعني مال په مال سره بدلول) او دا هغه وخت ثابتيږي کله چي انسان خپل مال د بل چا په مال سره بدل کړي او که خپل مال

په خپل مال سره بدل (مبادله) کړي نو بيع نه ثابتيږي. او دلته همدغه صورت دی: ځکه کله چي مضارب په لس درهمه تان رانيوی او پر ربُ المال يې خرڅ کړی او ربُ المال هغه څني رانيوی، نو ګواکي ربُ المال خپل مال د خپل مال په عوض کي رانيوی؛ ځکه تان هم د ربُ المال دی او هغه پنځلس درهمه چي په هغه سره يې تان رانيولی دی هغه هم د ربُ المال دی. نو ځکه د مضارب او ربُ المال په مينځ کي به دا بيع معدوم (غير موجود) وي.

او زموږ په نيز ځکه دا صورت جائز دی چي دا بيع پر يو فايده مشتمله ده. او هغه فايده دا ده چي کله ربُ المال مضارب ته لس درهمه ورکړه نو له هغه لسو درهمو څخه د ربُ المال د تصرف ولايت ختم سو، يعني هغه چي مضارب ته لس درهمه وسپارل نو تر دې وروسته په هغوی کي د ربُ المال لپاره د تصرف کولو هيڅ حق پاته نه سو، لېکن کله چي ربُ المال په هغه لسو درهمو رانيول سوې کپړه په پنځلس درهمه رانيوله، نو اوس ربُ المال ته د تصرف ولايت حاصل سو. او په بيع سره مقصود همدا تصرف وي، نو کله چي دا بيع پر فايده مشتمله ده نو ځکه به منعقد کيږي؛ ځکه چي د بيع له منعقد کېدلو څخه مطلوب هم د فايدې حاصلول وي (او په دې بيع کي فايده سته)، لېکن د دې باوجود د امام زفر رَحِمَهُ الله د بيان کړي سوي دليل په وجه د عدمِ جواز (نه جائز کېدلو) شبهه سته. او د عدمِ جواز شبهه په دې وجه هم سته چي په بيع مضاربت کي مضارب مِن وَجه د ربُ المال وکيل وي، يعني مضارب د خپل ځان لپاره هم کار کوي او د ربُ المال لپاره هم کار کوي. همدا وجه ده چي نفع د مضارب او ربُ المال دواړو لپاره وي، په خلاف د وکيل چي هغه فقط د مؤکل لپاره کار کوي او نفع هم خالص د مؤکل لپاره وي، نو څرنګه چي مضارب مِن وَجه د ربُ المال وکيل دی، نو ځکه به د مضارب او ربُ المال په مينځ کي بيع جائز نه وي، لکه څرنګه چي د وکيل او مؤکل په مينځ کي بيع نه جائز کيږي؛ لهذا کله چي د مضارب او ربُ المال په مينځ کي په واقع سوې بيع کي د عدمِ جواز شبهه سته. نو دويمه بيع (يعني چي ربُ المال په پنځلس درهمه له مضارب څخه تان رانيوی دغه بيع) به د نيمايي نفع يعني د دوه نيم درهمو په حق کي معدوم شمارل کيږي؛ ځکه چي دوه نيم درهمه د ربُ المال حق دی. نو د خيانت له شبهه څخه د ځان ساتلو لپاره به دوه نيم درهمه کمول کيږي؛ ځکه چي په اصل ثمن (يعني په لس درهمه) کي او د مضارب په حصه (يعني په دوه نيم درهمه کي) هيڅ شبهه نسته. نو په دې وجه ربُ المال پر دوولس نيم درهمو بيع مرابحه کولای سي، يعني داسي وېلای

سي چي دا کېږه ما ته په دوولس نيم درهمه پر ته ده او په دومره نفع يې خرڅوم (مثلا څلور درهمه نفع پر اچوم او په شپاړس نيم درهمه يې خرڅوم. داسي کول د ربُ المال لپاره جائز دي).

## د مبيع د وصف بدلېدلو په صورت کې د مرابحې حکم

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى جَارِيَةً فرمايي: او که څوک مينځه رانيسي فَاعْوَرَّتْ بيا هغه په يوه سترګه ړنده سي [يعني د يوې سترګي ديد يې ختم سي] أَوْ وَطِئَهَا وَهِيَ ثَيِّبٌ يا مشتري د هغې سره وطي وکړي حال دا چي هغه ثيّبه وي يَبِيعُهَا مُرَابَحَةً نو هغه دا مينځه مرابحةً خرڅولای سي وَلَا يُبَيِّنُ او [د دې شيانو] بيان دي نه کوي [مطلب دا چي مشتري د وطي او داسي نورو د تفصيل بيانولو څخه بغير هم دا مينځه په مرابحه سره خرڅولای سي] لِأَنَّهُ لَمْ يَحْتَبِسْ عِنْدَهُ شَيْءٌ يُقَابِلُهُ الثَّمَنُ ځکه چي [په دې صورت کې] د مشتري سره داسي شي نه دی محبوس [راګرځول سوی] چي د هغه په مقابله کي دي ثمن وي لِأَنَّ الْأَوْصَافَ تَابِعَةٌ لَا يُقَابِلُهَا الثَّمَنُ ځکه چي اوصاف تابع وي د هغوی په مقابله کي ثمن نه راځي وَلِهٰذَا لَوْ فَاتَتْ قَبْلَ التَّسْلِيمِ او همدا وجه ده که [مشتري ته] له ورسپارلو څخه مخکي د مينځي سترګه فوت سي [له منځه ولاړه سي] لَا يَسْقُطُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ نو له ثمن څخه هيڅ شی نه ساقطيږي وَكَذَا مَنَافِعُ الْبُضْعِ لَا يُقَابِلُهَا الثَّمَنُ او همدارنګه د بضع د منافعو په مقابله کي [هم] ثمن نه راځي وَالْمَسْأَلَةُ فِيمَا إِذَا لَمْ يُنْقِصْهَا الْوَطْءُ او دا مسئله په داسي صورت کي [وضع سوې] ده کله چي وطي مينځي ته نقصان نه وي رسولی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ﷺ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ او په اول صورت کي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی أَنَّهُ لَا يَبِيعُ مِنْ غَيْرِ بَيَانٍ چي مشتري به مينځه له بيان [تفصيل بيانولو] څخه بغير نه خرڅوي كَمَا إِذَا احْتَبَسَ بِفِعْلِهِ لکه په هغه صورت کي کله چي د مشتري په فعل سره يو شی محبوس سي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی فَأَمَّا إِذَا فَقَأَ عَيْنَهَا بِنَفْسِهِ لېکن که مشتري په خپله د مينځي سترګه وباسي أَوْ فَقَأَهَا أَجْنَبِيٌّ يا يو

---

۞ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة الحصكفي: وقال أبو يوسف رَحِمَهُ الله: لا بد من بيانه...وبه نأخذ، ورجحه الكمال...إلخ (رد المحتار ج:۴، ص:۱۷۶)، وكذا في البحر الرائق (ج:۶، ص:۱۱۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۵۴]

اجنبي [پردی] سړی د هغې سترګه وباسي فَأَخَذَ أَرْشَهَا او مشتري [له هغه څخه] د سترګي جرمانه واخلي لَمْ يَبِعْهَا مُرَابَحَةً نو [په دې صورت کې] مشتري دا مينځه په مرابحه سره نه سي خرڅولای حَتَّى يُبَيِّنَ تر دې چې [تفصيل] بيان کړي لِأَنَّهُ صَارَ مَقْصُودًا بِالْإِتْلَافِ ځکه چې [د سترګي] په ضايع کولو سره هغه [د ديد وصف] مقصود وګرځېدی فَيُقَابِلُهَا شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ نو ځکه د هغه په مقابله کي به د ثمن څه حصه وي وَكَذَا إِذَا وَطِئَهَا وَهِيَ بِكْرٌ او همدارنګه که مشتري د مينځي سره وطي وکړي حال دا چي هغه باکره وي لِأَنَّ الْعُذْرَةَ جُزْءٌ مِنَ الْعَيْنِ يُقَابِلُهَا الثَّمَنُ ځکه چي د بکارت پرده د مينځي د ذات يو جزء دی چي د هغه په مقابله کي ثمن راځي وَقَدْ حَبَسَهَا حال دا چي مشتري هغه [د ځان سره] محبوس کړی [راګرځولی] دی.

**اللغات:** ﴿اعورّت﴾ د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: د سترګي ديد ختمېدل، بينايي له منځه تلل. ﴿لم يحتبس﴾ د افتعال له بابه د جحد صيغه ده: بندول، راګرځول، منع کول. ﴿بضع﴾ شرمګاه (د ښځي فرج). ﴿فقأ﴾ د ماضي صيغه ده: سترګه وړباسل (پر سترګه داسي وهل چي د سترګي مواد را ووځي او ديد يې ختم سي). ﴿أرش﴾ جرمانه، تاوان. ﴿عُذْرة﴾ د عين په ضمه او د دال په سکون سره، د دې لفظ ډيري معناوي دي، دلته يې معنیٰ ده: د بکارت پرده، پيغلتوب.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک صحيح سالمه مينځه رانيسي، بيا دا مينځه د يو آسماني آفت يا د خپل يو فعل په وجه يا بغير له يو فعله (خود بخوده) په يوه سترګه بې ديده سي (يعني د يوې سترګي بينايي او ديد يې ختم سي)، يا مينځه ثيبه وي او مشتري د هغې سره وطي وکړي او د وطي په وجه په هغې کي هيڅ نقصان هم را نه سي، نو که مشتري دغه مينځه مرابحةً خرڅول وغواړي نو خرڅولای يې سي، او پر مشتري دا تفصيل بيانول (وضاحت کول) واجب نه دي چي دا مينځه مخکي صحيح سالمه وه او س زما په قبضه کي بې ديده سوه.

دليل دا دی چي په دې صورت کي مشتري د مبيع (مينځې) داسي هيڅ شی نه دی راګرځولی چي د هغه په مقابله کي دې ثمن وي؛ ځکه مخکي ذکر سوه چي د مبيع سالم کېدل او معيوب کېدل له اوصافو څخه دي، او اوصاف اصل نه دي بلکي د اصل (ذات) تابع دي نو د هغوی په مقابله کي ثمن نه راځي بلکي د اصل په مقابله کي ثمن راځي، او اصل شی يعني مينځه دلته موجوده ده، نو ځکه د سالموالي د وصف په فوتېدلو سره به د ثمن هيڅ حصه نه کمول کيږي، او کله چي د ثمن هيڅ

حصه کمه نه کړل سوه نو ځکه مشتري له بيان (وضاحت) څخه بغير پر تولـه ثمن مرابحه کولای سي؛ همدا وجه ده چي که مشتري ته له مبيع ورسپارلو څخه مخکي د بائع په قبضه کي د مبيع يو وصف فوت سي، نو په دې صورت کي مشتري ته د ثمن د هيڅ حصې د کمولو اختيار نسته، لېکن هغه ته صرف د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار سته، نو همدارنګه کله چي د مشتري په قبضه کي د مبيع يو وصف فوت سي نو هم به د ثمن هيڅ حصه نه کمول کيږي بلکي مشتري ته به پر تولـه ثمن د بيع مرابحه کولو اجازت وي. همدارنګه کله چي د بضع منافع هم مال نه دي، نو ځکه د هغوی په مقابله کي به هم ثمن نه وي، او د ثيبه مينځي سره د مشتري د وطي کولو په وجه به د مينځي له ثمن څخه هيڅ حصه نه کمول کيږي (په دې شرط چي د وطي کولو په وجه به په مينځه کي هيڅ نقصان راغلی نه وي) بلکي مشتري ته به پر تولـه ثمن د مرابحه کولو اجازت وي. ها! کـه چيري مينځه باکره وي او مشتري د هغې سره وطي وکړي نو په دې صورت کي د هغه له تفصيل بيانولو څخه بغير مشتري ته پر تولـه ثمن د مرابحه کولو اجازت نسته؛ ځکه چي د بکارت د ختمولو په وجه ګواکي مشتري د خپـل ځان سره د مبيع يـو جـزء راګرځولی دی، او کلـه چـي مشـتري د ځان سره د مبيع يـو جـزء را وګرځوي نو له ثمن څخه به د هغه جزء حصه يقيناً کمول کيږي، او کله چي له ثمن څخه يوه حصه کمه سوه، نو له تفصيل بيانولو څخه بغير پر تولـه ثمن مرابحه څنګه کېدلای سي!؟.

وعن أبي يوسف إلخ: له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي په اول صورت کي يعني کله چي يو څوک صحيح سالمه مينځه رانيسي او د مشتري په قبضه کي هغه په يوه سترګه بې ديده سي، نو په دې صورت کي به مشتري هغه له بيان څخه بغير د مرابحې په توګه نه خرڅوي بلکي دا تفصيل به بيانوي چي مينځه مخکي صحيح سالمه وه لېکن زما قبضې ته چي راغله نو بې ديده سوه. لکه څرنګه چي په هغه وخت کي پر مشتري تفصيل بيانول ضروري دي کله چي مشتري په خپل فعل سره د مينځي يو جزء فوت کړي (مثلاً بکارت يې ورختم کړي)، همدا د امام شافعي قول دی، د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز تفصيل بيانول ځکه ضروري دي چي د هغه په نيز د اوصافو په مقابله کي ثمن راځي برابره ده وصف د آسماني آفت په وجه فوت سوی وي يا د بنده په خپل فعل سره فوت سوی وي، لهذا د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به په هر صورت کي د وصف په فوتېدلو سره ثمن هم کمول کيږي او پر مشتري به وضاحت او تفصيل بيانول هم ضروري وي.

فأمّا إذا فقأ عينها إلخ: فرمايي که چيري مشتري مينځه پر سترګه ووهي او د هغې سترګه وباسي، يا يو اجنبي سړی د هغې سترګه وباسي، او مشتري لـه هغـه څخـه جرمانه او تـاوان هـم واخلي، نو په دې

صورت کې د مرابحۃ خرڅولو لپاره د سترګو د ایستلو (باسلو) ذکر کول واجب دي (یعني دا تفصیل بیانول ضروري دی چې ما یا بل چا د هغې سترګه ویستله...إلخ)؛ دلیل دا دی چې د سترګې د ضایع کولو په وجه د دید وصف (دلیدلو وصف) مقصود وګرځېدی، او د مقصوده اوصافو په مقابله کې ثمن راځي، نو مشتري د مینځې د سترګې په ضایع کولو سره ګواکې د مینځې یو جزء د ځان سره راګرځولی دی، او څرنګه چې د اجنبي سړي په صورت کې هم مشتري له هغه څخه جرمانه (بدل) اخیستی دی او د بدل اخیستل (راګرځول) داسې دي لکه د مقصود علیه جزء راګرځول، او په کوم صورت کې چې مشتري د مبیع یو جزء د ځان سره راګرځولی وي نو په هغه صورت کې له تفصیل بیانولو څخه بغیر مرابحه نه جائز کیږي، نو ځکه په دې صورت کې د سترګو د ایستلو ذکر کول (تفصیل بیانول) ضروري دي.

وکذا إذا وطئها إلخ: دا مسئله څه مخکې مونږ ذکر کړه چې که مشتري د باکره مینځې سره وطي وکړي نو هم له تفصیل بیانولو څخه بغیر مشتري ته د مرابحه کولو اجازت نسته؛ ځکه چې د بکارت پرده د مینځې د ذات یو جزء دی، او د ذات د جزء په مقابله کې ثمن راځي، حال دا چې په دغه صورت کې مشتري ګواکې دا جزء د خپل ځان سره راګرځولی دی، نو ځکه د مرابحه کولو په وخت کې به دا تفصیل ضرور بیانوي چې دا مینځه مخکې باکره وه او د هغې د بکارت پرده ما ورختمه کړه.

## د مبیع بدلېدلو په صورت کې د مرابحې حکم

وَلَوِ اشْتَرَى ثَوْبًا او که [یو څوک] کپړه رانیسي فَأَصَابَهُ قَرْضُ فَأْرٍ أَوْ حَرْقُ نَارٍ بیا کپړې ته د موږک پرېکول [سوری کول] یا د أور سوځل ورسیږي [یعني بیا یې موږکان وخوري یا یې أور وسوځي] يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً مِنْ غَيْرِ بَيَانٍ نو هغه دا کپړه له بیان [وضاحت] څخه بغیر په مرابحه سره خرڅولای سي وَلَوْ تَكَسَّرَ بِنَشْرِهِ وَطَيِّهِ او که د ده په غوړولو [خلاصولو] او پیچلو سره کپړه پرې سي لَا يَبِيعُهُ نو [په دې صورت کې] هغه دا کپړه [مرابحة] نه سي خرڅولای حَتَّى يُبَيِّنَ تر دې چې [تفصیل] بیان کړي وَالْمَعْنَى مَا بَيَّنَّاهُ او د دې وجه [دلیل] هغه دی کوم چې مونږ بیان کړی.

**اللغات**: ﴿قَرْض﴾ د ضرب مصدر دی: پرېکول، غوڅول (د موږک خوړل). ﴿فأر﴾ موږک، جمع: فِیْرَان. ﴿حرق﴾ د نصر مصدر دی: سوځول، (سوځل). ﴿تکسر﴾ د تفعل ماضي ده: ماتېدل،

پړېکېدل، څيري کېدل (احسن الهدايه)، ﴿لَنشر﴾ د نصر مصدر دی: غوړول، نشر کول (کپړه سره غوړول، خلاصول)، ﴿طيّ﴾ د ضرب ماضي ده: پېچل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک کپړه رانيسي او په کور کې يې محفوظه کړي، بيا هغه موږکان وخوري او سوري يې کړي، يا يې اور وسوځي، نو مشتري دا کپړه له تفصيل بيانولو څخه بغير د بيع مرابحه په توګه خرڅولای سي، يعني پر هغه دا تفصيل بيانول واجب نه دي چي دا کپړه د رانيولو په وخت کي صحيح سالمه وه، وروسته زما په قبضه کي موږکانو وخوړل يا په اور وسوځل.

او که چيري کپړه د مشتري د پېچلو يا خلاصولو په وجه پړې سي نو بيا د مرابحه کولو په وخت کي د هغه بيانول ضروري دي.

دليل مخکي تېر سو چي د مبيع د اوصافو په مقابله کي ثمن نه راځي، لېکن که اوصاف مقصود وګرځي نو بيا د هغوی په مقابله کي ثمن راځي؛ نو کله چي د پېچلو يا خلاصولو په وجه کپړه پړې سوه، نو د دې کپړې په پړېکولو کي د مشتري فعل داخل سو، نو ځکه د کپړې د سالموالي وصف د ضايع کولو په وجه مقصود وګرځېدی، او کله چي هغه مقصود وګرځېدی نو د هغه په مقابله کي به ثمن هم خامخا وي، او کله چي د وصف په مقابله کي ثمن راغلی نو ځکه به له تفصيل بيانولو څخه بغير مرابحة د دغه کپړې خرڅول جائز نه وي.

## په قرض سره د شي د رانيولو په صورت کي د بيع مرابحه بيان

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى غُلَامًا بِأَلْفِ دِرْهَمٍ نَسِيئَةً او که څوک يو غلام د زرو درهمو په عوض کي په قرض سره رانيسي فَبَاعَهُ بِرِبْحِ مِائَةٍ بيا يې په سل درهمه نفع سره خرڅ کړي وَلَمْ يُبَيِّنْ او [په قرض سره د رانيولو خبره] بيان نه کړي فَعَلِمَ الْمُشْتَرِيْ بيا مشتري ته دا [خبره] معلومه سي فَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ وَإِنْ شَاءَ قَبِلَ نو که د مشتري خوښه وي، نو هغه دي واپس کړي او که خوښه يې نو هغه دي قبول کړي لِأَنَّ لِلْأَجَلِ شِبْهًا بِالْمَبِيْعِ ځکه چي ميعاد د مبيع سره مشابه دی أَلَا يُرٰى أَنَّهُ يُزَادُ فِي الثَّمَنِ لِأَجْلِ الْأَجَلِ آيا هغه نه ګورې! چي د ميعاد په وجه په ثمن کي اضافه کول کيږي وَالشُّبْهَةُ فِيْ هٰذَا مُلْحَقَةٌ بِالْحَقِيْقَةِ او شبهه په دې باب کي د حقيقت سره لاحق کړل سوې ده فَصَارَ كَأَنَّهُ اشْتَرٰى شَيْئَيْنِ وَبَاعَ أَحَدَهُمَا مُرَابَحَةً بِثَمَنِهِمَا نو داسي سو ګواکي هغه دوه شيان رانيول او له هغوی څخه يې يو د هغوی دواړو په ثمن سره مرابحة خرڅ کړی وَالْإِقْدَامُ عَلَى الْمُرَابَحَةِ يُوْجِبُ السَّلَامَةَ عَنْ مِثْلِ هٰذِهِ الْخِيَانَةِ حال دا چي

پر مرابحه اقدام کول له دا ډول خيانت څخه سلامتيا [سالم پاتېدل] واجبوي فَإِذَا ظَهَرَتْ نو ځکه کله چي خيانت ښکاره سي يُخَيَّرُ نو مشتري ته به اختيار ورکول کيږي كَمَا فِي الْعَيْبِ لکه په عيب کي [چي ورکول کيږي] وَإِنِ اسْتَهْلَكَهُ او که [دويم] مشتري غلام ضايع کړي ثُمَّ عَلِمَ بيا هغه ته [د قرض خبره] معلومه سي لَزِمَهُ بِأَلْفٍ وَمِائَةٍ نو پر هغه د يوولس سوه درهمو په عوض کي غلام لازميږي لِأَنَّ الْأَجَلَ لَا يُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ ځکه چي د ميعاد په مقابله کي د ثمن هيڅ حصه نه راځي.

**اللغات**: ﴿نسيئةً﴾ په تاخير سره يعني په قرض، ﴿استهلكه﴾ د استفعال ماضي ده: هلاکول، ضايع کول، ﴿أجل﴾ تاکل سوي مودت، نېټه، ميعاد، مياد، (مراد ځني د قرض مودت دی).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که څوک يو غلام د زر (۱۰۰۰) درهمو په عوض کي په قرض سره رانيسي، بيا هغه سل درهمه نفع پر واچوي او په نغدو يې په يوولس سوه درهمو خرڅ کړي، او دا خبره بيان نه کړي چي ما هغه د زر درهمو په عوض کي په قرض رانيولی دی، بيا دويم مشتري ته معلومه سي چي اول مشتري (يعني زما بائع) هغه په قرض رانيولی دی، نو په داسي صورت کي دويم مشتري ته اختيار دی که وغواړي نو بيع مرابحه دي رد کړي، يا دي د ټوله ثمن يعني د يوولس سوه نغدو درهمو په عوض کي هغه قبوله کړي، همدا د امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَا الله قول دی.

دليل دا دی چي ميعاد (د قرض ټاکل سوی مودت) د مبيع سره مشابه دی؛ همدا وجه ده چي د ميعاد په وجه د شي په ثمن کي اضافه کول کيږي (يعني د قرض د ميعاد په وجه د شي قيمت گرانيږي)؛ مثلاً يو شی په نغدو په څلور سوه روپۍ ورکوي لېکن په قرض يې په پنځه سوه روپۍ ورکوي، گواکي د قرض د ميعاد په وجه د هغه شي په ثمن کي سل روپۍ اضافه راغله، او د مرابحې په باب کي شبهه احتياطاً د حقيقت سره لاحق ده (يعني په بيع مرابحه کي د احتياط پر بناء شبهه د حقيقت په درجه کي ده)، نو ځکه دلته به ميعاد (کوم چي شبهة مبيع ده) د حقيقي مبيع سره لاحقول کيږي، نو اوس دا مسئله داسي سوه گواکي اول مشتري د زرو درهمو په عوض کي دوه شيان رانيولي دي يو غلام او دويم شی ميعاد، او له هغوی څخه گواکي مشتري يو شی يعني غلام د سلو درهمو په نفع سره د دواړو شيانو د ثمن په عوض کي خرڅ کړی دی يعني زر درهمه خو د غلام او ميعاد دواړو ثمن دی لېکن مشتري فقط غلام د زرو درهمو په عوض کي خرڅ کړی دی (او ميعاد يې نه دی خرڅ کړی) او پر هغه يې سل درهمه نوره نفع هم اخيستې ده، او دا حرام او خيانت دی، او مخکي تېر سو چي په بيع مرابحه کي له خيانت او شبهۀ خيانت دواړو څخه احتراز کول (ځان ساتل) ضروري دي، نو په دې مسئله کي پر بيع مرابحه

اقدام کول (يعني مرابحه کول) له دا ډول خيانت څخه احتراز کول او سالم پاتېدل واجبوي. لېکن څرنګه چې مشتري دلته په بيع مرابحه کي تفصيل بيان نه کړی او وروسته خيانت ښکاره سو نو ځکه به مشتري ته اختيار وي چې دا بيع واپس کړي يا ديوولس سوه نغدو درهمو په عوض کي هغه قبوله کړي. لکه څرنګه چې په مبيع کي د عيب ښکاره کېدلو په صورت کي مشتري ته اختيار حاصلېږي.

وإن استهلكه إلخ: د دې حاصل دا دی چې که يو سړی د زرو درهمو په عوض کي يو غلام په قرض سره رانيسي بيا يې په نغدو سره د يوولس سوه درهمو په عوض کي د بيع مرابحه په توګه خرڅ کړي. او دغه سړی (اول مشتري) د خرڅولو په وخت کي دا تفصيل بيان نه کړي چې ما په قرض رانيولی دی، بيا دويم مشتري دا غلام ضايع کړي، يعني خرڅ يې کړي، يا يې آزاد کړي، يا يې قتل کړي، تر دې وروسته دويم مشتري ته معلومه سي چې اول مشتري دا غلام په قرض رانيولی وو او پر ما يې په نغدو خرڅ کړی، نو په دې صورت کي دويم مشتري ته (د بيع د واپس کولو يا قبلولو) اختيار نه حاصلېږي بلکي پر هغه پوره ثمن يوولس سوه درهم لازمېږي؛ ځکه حقيقت خو همدا دی چې د ميعاد په مقابله کي هيڅ ثمن نه راځي، لېکن شبهة هغه د مبيع قائم مقام منل کېږي او (د مبيع په قائم مقام کېدلو سره) په هغه کي ثمنيت (ثمن والي) ثابتېږي؛ نو ځکه د هغه ثمنيت (ثمن والي) به هلته معتبر وي چېري چې مبيع موجوده وي، او څرنګه چې په دې صورت کي مبيع ضايع سوې ده، نو ځکه اوس به نه مشتري ته د واپس کولو او قبلولو اختيار وي او نه به د ثمن هيڅ حصه ساقطېږي (ځکه چې اوس د ثمنيت اعتبار ختم سو).

## په قرض سره د رانيولو په صورت کي د بيع توليه بيان

قَالَ: فَإِنْ كَانَ وَلَّاهُ إِيَّاهُ وَلَمْ يُبَيِّنْ فرمايي: او که اول مشتري هغه غلام دويم مشتري ته د بيع توليه په توګه ورکړي او [د قرض خبره] بيان نه کړي رَدَّهُ إِنْ شَاءَ نو که خوښه يې وي هغه دي واپس کړي لِأَنَّ الْخِيَانَةَ فِي التَّوْلِيَةِ مِثْلُهَا فِي الْمُرَابَحَةِ ځکه په بيع توليه کي خيانت کول په بيع مرابحه کي د خيانت کولو په څېر دی لِأَنَّهُ بِنَاءٌ عَلَى الثَّمَنِ الْأَوَّلِ ځکه چې بيع توليه هم پر اول ثمن مبني کېږي وَإِنْ كَانَ اسْتَهْلَكَهُ او که دويم مشتري غلام ضايع کړی وي ثُمَّ عَلِمَ بيا هغه ته [د قرض خبره] معلومه سي لَزِمَهُ بِأَلْفٍ حَالَّةٍ نو پر هغه د زرو درهمو نغدو په عوض کي مبيع لازمېږي لِمَا ذَكَرْنَاهُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَرُدُّ الْقِيمَةَ وَيَسْتَرِدُّ كُلَّ الثَّمَنِ او له امام ابو يوسف

رَحِمَهُ اللهُ څخه روایت دی چي دویم مشتري به قیمت واپس کوي او ټوله ثمن به واپس اخلي وَهُوَ نَظِيرُ مَا إِذَا اسْتَوْفَى الزُّيُوفَ مَكَانَ الْجِيَادِ او دا حکم د دې صورت مشابه دی چي کله یو سړی [له خپل مدیون څخه] د کره [اصلي] دراهمو پر ځای کوټه ذرهم واخلي وَعَلِمَ بَعْدَ الْإِنْفَاقِ او [د دراهمو] تر خرچولو وروسته هغه ته معلومه سي [چي دا خو کوټه دراهم وه] وَسَيَأْتِيكَ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او دا مسئله به انشاء الله وروسته ژر تا ته راسي وَقِيلَ: يُقَوَّمُ بِثَمَنٍ حَالٍّ وَبِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ او ویل سوي دي: چي مبیع [غلام] به په نغد ثمن او د قرض والا په ثمن سره اندازه کیږي [یعني د غلام نغد ثمن او قرض ثمن ته به اندازه لګول کیږي] فَيَرْجِعُ بِفَضْلِ مَا بَيْنَهُمَا نو د هغوی دواړو په مینځ کي چي کوم تفاوت وي هغه به [له اول مشتري څخه] واپس اخلي وَلَوْلَمْ يَكُنِ الْأَجَلُ مَشْرُوطًا فِي الْعَقْدِ او که په عقد کي میعاد شرط کړی سوی نه وي وَلٰكِنَّهُ مُنَجَّمٌ مُعْتَادٌ لېکن په قسط [په کښت] سره اداء کول په عُرف کي عادت وي قِيلَ: لَا بُدَّ مِنْ بَيَانِهِ نو ویل سوي دي: چي د هغه بیانول [هم] ضروري دي لِأَنَّ الْمَعْرُوفَ كَالْمَشْرُوطِ ځکه چي معروف د مشروط په درجه کي دی [یعني کوم شی چي په عُرف سره ثابت وي هغه داسې دی لکه شرط کړی سوی] وَقِيلَ: يَبِيعُهُ وَلَا يُبَيِّنُهُ او ویل سوي دي: چي غلام به خرڅوي او [تفصیل] نه به بیانوي [یعني ځیني حضرت فرمایي چي تفصیل بیانول ضروري نه دي، بلکي له بیان څخه بغیرېې هم خرڅولای سي] لِأَنَّ الثَّمَنَ حَالٌّ ځکه چي [دلته] ثمن نغد دی.

**اللغات:** ﴿ولاه﴾ د تفعیل ماضي ده: بیع تولیه کول، د تولیه په توګه ورکول. ﴿یسترد﴾ د استفعال مضارع ده: واپس غوښتل، واپس اخیستل. ﴿قیمت﴾ د یو شي بازاري ربټ. ﴿ثمن﴾ هغه ربټ او قیمت کوم چي یې بائع او مشتري په خپل مینځ کي وټاکي. ﴿استوفیٰ﴾ په پوره توګه اخیستل. ﴿زیوف﴾ جمع د زَیْف ده: کوټه، ردي (جعلي). ﴿جیاد﴾ جمع د جَیِّدٌ: ښه، کره، اصلي. ﴿حال﴾ نقد، نغد. ﴿منجم﴾ قسطونو والا، کښتونو والا (په کښت سره اداء کېدونکی). قسط یا کښت هغه قرض ته وایي چي پر څو برخو ووېشل سي او هره برخه یې په یو ټاکلي مودت کي ورکول کیږي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک یو غلام د زرو درهمو په عوض کي په قرض سره رانیسي، بیا یې پر بل سړي د زرو درهمو په عوض کي د بیع تولیه په توګه خرڅ کړي او دا تفصیل بیان نه کړي چي ما دا غلام د زرو درهمو په عوض کي په قرض رانیولی دی، وروسته دویم مشتري ته معلومه سي چي اول مشتري خو هغه په قرض رانیولی دی او پر ما یې په نغدو خرڅ کړی دی، نو په دې صورت کي دویم مشتري ته اختیار دی که خوښه یې وي نو غلام دي واپس کړي او خپل ثمن دي واپس ځني واخلي؛ ځکه په بیع تولیه کي له

خیانت او شبهٔ خیانت څخه ځان ساتل داسي ضروري دي لکه په بیع مرابحه کي چي ضروري دي: او د دې وجه دا ده چي بیع تولیه پر اول ثمن (ثمن اول) مبني کیږي، نه پر هغه زیاتوب (اضافه) کیږي او نه کمي. او اول ثمن زر درهمه دي نو بیع تولیه به هم د زرو درهمو په عوض کي وي او د میعاد په وجه به د ثمن هیڅ حصه نه کمول کیږي؛ خو ځرنګه چي د میعاد په وجه د خیانت شبهه پیدا سوې ده، نو ځکه مشتري ته به دا اختیار وي چي که د ده خوښه وي نو د زرو درهمو په عوض کي دي بیع تولیه باقي پرېږدي او که خوښه یې نه وي نو هغه دي فسخ کړي.

او که چیري دویم مشتري غلام ضایع کړي، تر دې وروسته هغه ته معلومه سي چي اول مشتري خو هغه په قرض رانیولی وو، نو پر دویم مشتري دا بیع تولیه د زرو درهمو نغدو په عوض کي لازمیږي: دلیل مخکي تېر سو چي د میعاد په مقابله کي حقیقتاً د ثمن هیڅ حصه نه وي، نو ځکه د میعاد په وجه به د ثمن هیڅ حصه نه کمول کیږي، او د مبیع د ضایع کېدلو په وجه بیع تولیه فسخ کول هم ممکن نه دي، نو ځکه به دا بیع د نغدو زرو درهمو په عوض کي پر دویم مشتري لازمه وي.

وعن أبي یوسف إلخ: له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دا دی چي د غلام تر ضایع کېدلو روسته دي دویم مشتري د غلام قیمت واپس کړي او له اول مشتري څخه دي پوره ثمن واخلي، برابره ده د مبیع قیمت له ثمن څخه کم وي، یا زیات وي، یا ور سره برابر وي؛ د هغه دلیل دا دی چي د یو شي قیمت د هغه قائم مقام وي. نو قیمت واپس کول داسي دي لکه عَین شی واپس کول، لهذا کله چي دویم مشتري قیمت واپس کړي نو ګواکي هغه ضایع سوی غلام واپس وکړی نو ځکه به هغه خپل پوره ثمن اخلي؛ او د دې مثال دا دی چي خالد پر زید لس درهمه قرض باندي وو، بیا خالد له زید (مدیون) څخه خپل د قرض دراهم واخیستل خو زید هغه ته کوټه او ردي دراهم ور کړل لیکن خالد نه ولیدل او خرچ یې کړل، وروسته خالد ته معلومه سوه، نو په دې صورت کي حکم دا دی چي خالد دي هغومره کوټه دراهم زید ته واپس کړي او له هغه څخه دي خپل اصلي او کَرَه دراهم واخلي، نو همداسي په دې مسئله کي دي هم دویم مشتري د غلام قیمت اول مشتري ته ور کړي او له هغه څخه دي خپل ټول ثمن واخلي.

وقیل إلخ: په دې سلسله کي د فقیه ابو جعفر هندواني رَحِمَهُ الله رایه دا ده چي د غلام نقد ثمن او قرض ثمن ته دي اندزه ولګول سي (یعني دویم مشتري دي د غلام نغد قیمت او د غلام قرض قیمت دواړه سره موازنه کړي) او د هغوی دواړو په مینځ کي چي کوم تفاوت وي هغه دي له اول مشتري څخه واپس واخلي، مثلاً اول مشتري غلام د زرو درهمو په عوض کي په قرض سره رانیولی دی، او د غلام نغد قیمت اته سوه درهمه دی. نو دویم مشتري دي له اول مشتري څخه دوه سوه درهمه واپس واخلي.

ولو لم یکن الأجل إلخ: پورتني ټوله اقوال په هغه وخت کي دي کله چي د اول مشتري او د هغه د بائع په مینځ کي د میعاد شرط لګول سوی وي؛ او که د دوی په مینځ کي د میعاد (مودت) شرط نه وي لګول سوی، یعني

عرف اول مشتري د زرو درهمو په عوض کي غلام په قرض سره راپيولی وي او بائع دا شرط نه وي لګولی چي په فلانکي مودت کي به قرض راوړي. لېکن په قسط (په کښت) سره اداء کول د خلکو په عرف کي رواج وي (يعني په خلکو کي عادت او رواج دا وي چي د ميعاد شرط نه لګوي بلکي په کښت سره قرض اداء کوي. او تاجران په کښت سره شی ورکوي). نو که په دې صورت کي اول مشتري د مرابحه يا توليه په توګه هغه غلام په نغدو سره د زرو درهمو په عوض کي خرڅ کړي. نو په دې باره کي دوه قولونه دي: ①... اول قول دا دی چي په دې صورت کي هم پر اول مشتري د هغه بيانول ضروري دي (چي دا غلام ما په کښت سره راپيولی دی): ځکه کوم شی چي په عرف سره ثابت وي هغه د مشروط شي په درجه کي دی. نو ځکه د هغه بيانول ضروري دي: ②... دويم قول دا دی چي پر اول مشتري د هغه تفصيل بيانول ضروري نه دي: ځکه چي د ميعاد د نه ذکر کېدلو په وجه ثمن داسي دی لکه نغد (نقد) ثمن. او په نغد ثمن کي د هيڅ ډول تفصيل بيانولو ته ضرورت نه وي.

## پر "مَا قَامَ عَلَيَّ" بيع توليه کول

قَالَ: وَمَنْ وَلَّى رَجُلًا شَيْئًا بِمَا قَامَ عَلَيْهِ فرمايي: او که څوک پر يو سړي د بيع توليه په توګه په هغه قيمت سره يو شی خرڅ کړي په کوم قيمت سره چي هغه ته پروت وي وَلَمْ يَعْلَمِ الْمُشْتَرِيْ بِكَمْ قَامَ عَلَيْهِ او مشتري ته معلومه نه وي چي هغه ته په څومره قيمت پروت دی فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسده ده لِجَهَالَةِ الثَّمَنِ ځکه چي ثمن مجهول دی فَإِنْ أَعْلَمَهُ الْبَائِعُ فِي الْمَجْلِسِ [لېکن] که بائع هغه په مجلس کي (په قيمت سره) خبر کړي فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ وَإِنْ شَاءَ تَرَكَهُ نو مشتري ته اختيار دی که خوښه يې وي نو هغه دي واخلي او که خوښه يې نه وي نو هغه دي پرېږدي لِأَنَّ الْفَسَادَ لَمْ يَتَقَرَّرْ ځکه چي فساد تر اوسه مستحکم سوی نه دی فَإِذَا حَصَلَ الْعِلْمُ فِي الْمَجْلِسِ لهذا کله چي په مجلس کي (هغه ته) خبر حاصل سو جُعِلَ كَابْتِدَاءِ الْعَقْدِ نو دا د عقد د ابتداء په څېر وګرځول سو وَصَارَ كَتَأْخِيرِ الْقَبُولِ إِلَى آخِرِ الْمَجْلِسِ او داسي سو لکه د مجلس تر آخره پوري په قبول کي تاخير کول وَبَعْدَ الِافْتِرَاقِ قَدْ تَقَرَّرَ او (له مجلس څخه) تر جلا کېدلو وروسته فساد مستحکم سو فَلَا يَقْبَلُ الْإِصْلَاحَ نو ځکه به هغه اصلاح نه قبلوي. وَنَظِيرُهُ بَيْعُ الشَّيْءِ بِرَقْمِهِ او د دې مثال يو شی د خپل ليکل سوي قيمت په عوض کي خرڅول دي (يعني د دې مثال دا دی چي څوک يو سامان په هغه قيمت سره خرڅ کړي کوم چي يې پر سامان ليکلی وي) إِذَا عَلِمَ فِي الْمَجْلِسِ په دې شرط چي (د عقد) په مجلس کي (په قيمت) خبر سي وَإِنَّمَا يَتَخَيَّرُ لِأَنَّ الرِّضَا لَمْ يَتِمَّ قَبْلَهُ او مشتري ته به اختيار ځکه وي چي له ثمن معلومېدلو څخه مخکي (د هغه) رضا پوره نه وه لِعَدَمِ الْعِلْمِ ځکه چي (هغه ته د قيمت) خبر نه وو

فَيَتَخَيَّرُ نو ځکه به هغه ته اختيار وي كَمَا فِي خِيَارِ الرُّؤْيَةِ لکه په "خيار رؤيت" کي [چي اختيار ورکول کيږي]

**اللغات**: ﴿أعلمه﴾ دافعال ماضي ده: په خبرول، وربښوول. ﴿رقم﴾ ليکل سوی قيمت (ليکل سوی رېټ).

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که څوک يو سامان رانيسي او پر بل سړي يې د بيع توليه په توګه خرڅ کړي يعني داسي ووايي چي دا سامان ما ته په څومره قيمت پروت دی زه يې د هغه په عوض کي درباندي خرڅوم، لېکن هغه بل سړي (دويم مشتري) ته دا معلومه نه وي چي اول مشتري ته دا سامان په څومره قيمت پروت دی، نو په دې صورت کي دا بيع فاسديږي؛ ځکه چي په دې صورت کي ثمن مجهول دی، او د ثمن مجهول والی بيع فاسدوي، نو ځکه په دې صورت کي به بيع فاسديږي. لېکن که بائع (يعني اول مشتري) په مجلس کي دننه د ثمن په مقدار سره دويم مشتري خبر کړي، نو دا بيع جائز کيږي، لېکن دويم مشتري ته اختيار حاصليږي چي که خوښه يې وي نو هغه دي واخلي او که خوښه يې نه وي نو هغه دي پريږدي.

بيع خو ځکه جائز کيږي چي د مجلس نه بدلېدلو په وجه تر اوسه فساد مستحکم سوی نه دی، ځکه چي د مجلس په آخر کي د ثمن مقدار معلوم سو، او د مجلس ټوله ساعتونه د يوه ساعت په درجه کي دي لهذا کله چي د يوه مجلس ټوله ساعتونه د يوه ساعت په درجه کي دي نو د مجلس اول او آخر دواړه سره برابر دي، يعني څرنګه چي د مجلس په اول کي د ثمن معلومېدلو په صورت کي بيع جائز کيږي، همداسي د مجلس په آخر کي د معلومېدلو په صورت کي هم بيع جائز کيږي؛ او د دې مثال دا دی لکه يو څوک چي ووايي: "بِعتُ" (ما دا سامان په دومره خرڅ کړی) او د هغه مجلس په آخر کي مشتري "اِشْتَرَيْتُ" ووايي يعني مشتري د مجلس په آخر کي قبول وکړي نو جائز دي؛ لهذا څرنګه چي د مجلس تر آخره پوري په قبول کولو کي تاخير معاف دي، همداسي د ثمن په معلومېدلو کي هم د مجلس تر آخره پوري تاخير معاف دی.

لېکن که چيري له مجلس ختمېدلو څخه وروسته ثمن معلوم کړی سي نو بيع نه جائز کيږي؛ د دې مثال دا دی چي يو تاجر پر خپل سامان قيمت وليکي، بيا مشتري ته ووايي چي کوم قيمت پر ليکل سوی دی د هغه په عوض کي دا سامان درباندي خرڅوم، مشتري يې قبول کړي، لېکن مشتري په ليکل سوي قيمت خبر نه وي، اوس که د بيع په مجلس کي دننه مشتري په هغه قيمت خبر سي نو بيع جائز کيږي لېکن مشتري ته به د نه اخيستلو اختيار هم وي، او اختيار به ځکه ورته وي چي له ثمن معلومېدلو څخه مخکي د مشتري رضا نه ده پوره سوې، او کله چي د مشتري رضا پوره نه سوه نو ځکه بيع به نه پوره کيږي؛ او د بيع له پوره کېدلو څخه مشتري ته اختيار حاصليږي چي که هغه يې اخلي او که يې پريږدي، نو ځکه په دې صورت کي به مشتري ته اختيار حاصليږي، لکه يو څوک چي د ليدلو څخه بغير يو شی رانيسي نو تر ليدلو وروسته به مشتري ته د خيارِ رؤيت پر بناء د هغه شي د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار حاصليږي.



# فَصْلٌ

**تشريح:** په دې فصل کې هغه مسائل ذکر سوي دي کوم چي له بيع مرابحه او توليه څخه جلا دي، خو څرنګه چي دا مسائل د مرابحه او توليه په څېر په يو زائد قيد سره مقيد دي، نو ځکه يې هغوی تر مرابحه او توليه وروسته سمدستي ذکر کړي دي.

## له قبضې څخه مخکې د منقوله شيانو بيع

وَمَنِ اشْتَرَى شَيْئًا مِمَّا يُنْقَلُ وَيُحَوَّلُ او که څوک له هغو شيانو څخه يو شی رانيسي کوم چي [له يوه ځای څخه بل ځای ته] نقل کېدای سي لَمْ يَجُزْ لَهُ بَيْعُهُ حَتَّى يَقْبِضَهُ نو د مشتري لپاره د هغه خرڅول جائز نه دي تر دې چي پر هغه قبضه وکړي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ نَهَى[1] عَنْ بَيْعِ مَا لَمْ يُقْبَضْ ځکه رسول الله ﷺ د هغه شي له بيع څخه منع کړې ده کوم چي [تر اوسه] قبضه سوی نه وي وَلِأَنَّ فِيهِ غَرَرَ انْفِسَاخِ الْعَقْدِ عَلَى اعْتِبَارِ الْهَلَاكِ او ځکه چي په دې کې د هلاکت په اعتبار کولو سره د عقد فسخ کېدلو دوکه سته.

**اللغات:** ﴿يحوّل﴾ د تفعيل له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: اوښتل، بدلېدل، منتقل کېدل، ﴿غدر﴾ دوکه، فرېب، ﴿انفساخ﴾ د انفعال مصدر دی: فسخ کېدل (عقد ماتېدل، ختمېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که سړی يو منقولي شی رانيسي نو تر څو چي دا سړی (مشتري) پر هغه شي قبضه نه وکړي تر هغه وخته پوري د ده (مشتري) لپاره د هغه خرڅول جائز نه دي، يعني که چيري مبيع له منقولي شيانو څخه وي نو له قبضه کولو څخه مخکې د مشتري لپاره د هغه خرڅول جائز نه دي. ها ! د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز له قبضه کولو څخه مخکې هبه، صدقه او داسي نور تصرفات جائز دي، او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر مبيع له قبضه کولو څخه مخکې په هغه کې هر ډول تصرف کول جائز دي، يعني مشتري هغه خرڅولای هم سي، همدارنګه هبه کولای او

---

[1] تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب البيوع، باب في بيع الطعام قبل أن يستوفى، حديث رقم: ٣٤٩٧، ٣٤٩٩.

صدقه کولای يې هم سي. لېکن که مبيع غله (غنم او داسي نور) وي، نو له قبضه کولو څخه مخکي د هغه خرڅول د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز هم جائز نه دي.

**د امام مالک دليــل**: د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا حديث دی: "أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ: إِنِ اشْتَرَى أَحَدُكُمْ طَعَامًا فَلَا يَبِعْهُ حَتَّى يَقْبِضَهُ" (يعني که په تاسو کي څوک غله رانيسي نو هغه دي نه خرڅوي تر دې چي پر هغه قبضه وکړي)، او په بل روايت کي ذکر سوي دي "مَنِ ابْتَاعَ طَعَامًا فَلَا يَبِعْهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَه" (څوک چي غله رانيسي نو هغه دي نه خرڅوي تر دې چي په پوره توګه يې (له بائع څخه) واخلي)، په دې حديث کي خاص د غلې ذکر سوی دی. له دې څخه دا معلومېږي چي که له غلې څخه بغير يو بل شی مبيع وي نو له قبضه کولو څخه مخکي د هغه خرڅول جائز دي.

**د احنافو له طرفه جواب**: زموږ له طرفه د دې حديث جواب دا دی چي په خپله د دې حديث راوي ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي: "أَحْسَبُ كُلَّ شَيْءٍ مِثْلَ الطَّعَامِ" (زما ګومان دا دی چي هر شی د غلې په څېر دی) يعني څرنګه چي له قبضې څخه مخکي غله خرڅول جائز نه دي، همداسي نور شيان هم له قبضې څخه مخکي خرڅول جائز نه دي. لهذا کله چي د حديث د راوي ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا مذهب په خپله د هغه د روايت کړی سوي حديث مطابق نه دی. نو بيا به د امام مالک رَحِمَهُ الله لپاره د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په حديث سره دليل نيول څنګه صحيح وي!. بلکي دا به ويل کيږي چي د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په حديث کي د "طعام" لفظ په اتفاقي توګه ذکر سوی دی، او له هغه څخه د طعام تخصيص مراد نه دی.

**زموږ دليل**: دا دی چي رسول الله ﷺ د غير مقبوضه شيانو له بيع څخه منع کړې ده، د حکيم بن حزم د روايت الفاظ دا دي: "لَا تَبِيعَنَّ شَيْئًا حَتَّى تَقْبِضَهُ" (اې حکيم بن حزم! تر څو چي دي پر يو شي قبضه کړې نه وي. هغه مه خرڅوه!). په دې روايت او نورو رواياتونو کي د طعام او غير طعام هيڅ تفصيل نسته. بلکي د غير مقبوض شي له بيع څخه مطلقاً منع سوې ده هغه که د طعام بيع وي او که د غير طعام بيع وي.

ولأن فيه غرر إلخ: زموږ عقلي دليل دا دی چي له قبضې څخه مخکي د منقول شي په خرڅولو کي د عقد فسخ کېدلو دوکه سته، په دې توګه چي مثلاً که زيد له خالد څخه غلام رانيسوی. بيا زيد هغه له قبضه کولو څخه مخکي پر حامد خرڅ کړی، لېکن په دې دوران کي غلام د خالد سره هلاک سو نو دا عقد فسخ کيږي (کوم چي د زيد او حامد په مينځ کي وسو)؛ ځکه د زيد او خالد په مينځ کي چي کوم عقد سوی وو هغه فسخ سو. نو ثابته سوه چي له قبضه کولو څخه مخکي پر حامد د زيد خرڅول بنکاره

دوکه ده (يعني دا د حامد په حق کي ښکاره دوکه ده چي زيد له قبضې څخه مخکي پر هغه غلام خرڅ کړی)، او په کوم عقد او بيع کي چي دوکه وي هغه شرعاً ممنوع ده، نو ځکه به دا بيع هم ناجائز او ممنوع وي.

## له قبضې څخه مخکي د غير منقوله شيانو بيع

وَيَجُوزُ بَيْعُ الْعَقَارِ قَبْلَ الْقَبْضِ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ* او د غير منقوله جايداد بيع له قبضې څخه مخکي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز جائز ده وَقَالَ: مُحَمَّدٌ: لَا يَجُوزُ رُجُوعًا إِلَى إِطْلَاقِ الْحَدِيثِ وَاعْتِبَارًا بِالْمَنْقُوْلِ او امام محمد رَحِمَهُ الله د حديث د اطلاق وطرف ته په رجوع کولو سره او پر منقول شي باندي په قياس کولو سره فرمايلي دي: چي جائز نه ده وَصَارَ كَالْإِجَارَةِ او دا د اجارې په څېر سوه وَلَهُمَا: أَنَّ رُكْنَ الْبَيْعِ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ فِي مَحِلِّهِ او د شيخينو دليل دا دی: چي د بيع رکن له خپل اهل څخه په خپل محل کي صادر سوی دی وَلَا غَرَرَ فِيهِ او په دې کي هيڅ دوکه [هم] نسته لِأَنَّ الْهَلَاكَ فِي الْعَقَارِ نَادِرٌ ځکه چي په غير منقوله جايداد کي هلاکېدل نادر دي بِخِلَافِ الْمَنْقُوْلِ په خلاف د منقول شي وَالْغَرَرُ الْمَنْهِيُّ عَنْهُ غَرَرُ انْفِسَاخِ الْعَقْدِ او له کومي دوکې څخه چي منع سوې ده دا هغه دوکه ده چي په هغه کي د عقد د فسخ کېدلو بېره وي وَالْحَدِيْثُ مَعْلُوْلٌ بِهِ او [مخکي ذکر سوی] حديث په همدغه دوکه سره معلول دی عَمَلًا بِدَلَائِلِ الْجَوَازِ د جواز په دلائلو باندي په عمل کولو سره وَالْإِجَارَةِ قِيْلَ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ او ويل سوي دي چي اجاره هم پر دغه اختلاف ده وَلَوْ سُلِّمَ فَالْمَعْقُودُ عَلَيْهِ فِي الْإِجَارَةِ الْمَنَافِعُ او که [بيا هم] تسليم کړل سي نو په اجاره کي منافع معقود عليه [مبيع] وي وَهَلَاكُهَا غَيْرُ نَادِرٍ او د منافعو هلاکېدل نادر نه دي.

**اللغات**: ﴿عقار﴾ غير منقوله جايداد. هغه جايداد کوم چي له يوه ځای څخه بل ځای ته نقل کېدای نه سي، يعني ځمکه، کور او داسي نور. ﴿إجارة﴾ د افعال مصدر دی: په أجرت ورکول. په کرايه ورکول. ﴿معقود عليه﴾ پر کوم شي چي عقد واقع سوی وي، يعني مبيع.

* القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۴، ص:۱۸۱)، وكذا في الكفاية (ج:۶، ص:۱۳۹). [القول الراجح، ج:۲، ص:۵۵]

**تشريح : مسئله** : دا ده چې د شيخينو رَحِمَهُمَااللہ په نيز له قبضه کولو څخه مخکې د غير منقوله شيانو بيع جائز ده، او د امام محمد رَحِمَہُ اللہ په نيز ناجائز ده.

**د امام محمد دليل** : دا دی چې دا حديث "نَهٰى عَنْ بَيْعِ مَا لَمْ يُقْبَضْ" مطلق دی، يعني لفظ د "مَا" منقول او غير منقول دواړو شيانو لره عام دی، همدارنګه په حديث "لَا تَبِيْعَنَّ شَيْئًا حَتّٰى تَقْبِضَهُ" کې لفظ د "شَيْء" دواړو لره عام دی، نو له دې دوو حديثونو څخه معلومه سوه چې له قبضه کولو څخه مخکې نه د منقول شي بيع جائز ده او نه د غير منقول شي بيع جائز ده.

**دويم دليل** : د امام محمد رَحِمَہُ اللہ دويم دليل قياس دی يعني هغه غير منقوله شيان پر منقوله شيانو قياس کړي دي چې څرنګه له قبضې څخه مخکې د منقول شي بيع جائز نه ده، همداسې د غير منقول شي بيع هم جائز نه ده، او د دواړو په مينځ کې علت جامعه "د مبيع غير مقبوض کېدل" دي.

صاحب د هدايې فرمايي چې د غير منقوله جايداد بيع د اجارې په څېر سوه، يعني څرنګه چې غير منقول جايداد (کور، ځمکه او داسې نور) له قبضه کولو څخه مخکې په اجاره ورکول جائز نه دي، همداسې د هغوی خرڅول هم له قبضه کولو څخه مخکې جائز نه دي.

**د شيخينو دليل** : دا دی چې دلته د بيع رکن يعني ايجاب وقبول له خپل اهل يعني له عاقل بالغ څخه صادر سوی دی او د بيع په محل يعني په مملوک مال کې واقع سوی دی، او له قبضه کولو څخه مخکې د غير منقول شيانو په بيع کې هيڅ دوکه هم نسته؛ ځکه چې د غير منقول جايداد هلاکېدل نادر دي، او نادر کالمعدوم دي او هغه لره هيڅ اعتبار نه وي، لهذا کله چې د بيع رکن له اهل سړي څخه صادر سوی دی او د بيع وقوع پر داسې شي (مبيع) سوې ده کوم چې د بيع محل دی، يعني هغه مملوک مال دی او هيڅ دوکه هم نسته، نو بيا د بيع په جواز کې څه شبهه سته !؟، نو ځکه موږ ووېل چې د غير منقوله جايداد بيع له قبضه کولو څخه مخکې جائز ده، په خلاف د منقوله شيانو؛ ځکه چې له قبضه کولو څخه مخکې د هغوی په بيع کې دوکه سته، ځکه د هغوی هلاکېدل نادر نه دي.

**والغرر المنهي عنه غرر الخ** : دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چې له قبضه کولو څخه مخکې د غير منقوله جايداد په بيع کې هم دوکه سته په دې توګه چې يو څوک د استحقاق دعوىٰ وکړي (چې دا جايداد زما دی) او خپله دعوىٰ ثابته کړي او هغه واخلي.

د دې په جواب کې فرمايي چې په حديث کې چې له کوم فريب او دوکې څخه منع سوې ده له دې څخه مراد هغه دوکه ده چې په هغه کې د اول عقد د فسخ کېدلو ېره وي، حال دا چې غير منقوله

جايداد (کور، ځمکه او داسي نور) هر وخت د قبضې لپاره موجود وي، او په غيرِ منقوله جايداد کي د اول عقد د فسخ کېدلو هيڅ بيره نسته.

**د شيخينو له طرفه جواب:** او پاته سو د امام محمد رَحِمَهُ الله دا خبره چي دا حديث "نَهٰى عَنْ بَيْعِ مَا لَمْ يُقْبَضْ" مطلق دی، نو د هغه جواب دا دی چي د کتابُ الله، سنت رسول او د اجماعِ اُمت عموم پر دې لالت کوي چي له قبضه کولو څخه مخکي د منقول او غيرِ منقول دواړو شيانو بيع جائز ده؛ الله تعالیٰ فرمايلي دي: "أَحَلَّ اللهُ الْبَيْعَ". او په حديث کي ذکر سوي دي: "يَا مَعْشَرَ التُّجَّارِ إِنَّ الشَّيْطَانَ وَالإِثْمَ يَحْضُرَانِ الْبَيْعَ فَشُوْبُوْا بَيْعَكُمْ بِالصَّدَقَةِ" (اې تاجرانو! د بيع په وخت کي شيطان او ګناه دواړه حاضر وي، نو تاسي خپله بيع د صدقې سره يوځای کوئ!) يعني څه صدقه هم کوئ!. او اجماع دا ده چي د بعثت په زمانه کي (يعني د نبي کريم ﷺ د پېغمبر کېدلو په زمانه کي) به خلګو رانيول او خرڅول کول او نبي ﷺ به پر هغو هيڅ نکير نه کوی بلکي هغوی يې پر خپل عمل باقي پرېښوول او پر همدې باندي د امت اجماع ده. لنډه دا چي دا درې سره دليلونه د خپل عموم په وجه د منقول او غيرِ منقول دواړو شيانو د بيع پر جواز دلالت کوي، له قبضې څخه مخکي هم او له قبضې څخه وروسته هم، لېکن د الله تعالیٰ قول "وَحَرَّمَ الرِّبَوا" د بيع هغه قسم د دغه جواز له حکم څخه خاص کړی او جلا کړی دی چي په هغه کي جنس هم متحد وي او قدر هم متحد وي لېکن بيا هم تفاضل پکښي وسي (مطلب دا چي د الله تعالیٰ پورتني قول د دغه جواز له حکم څخه ربوا [سود] خاص کړی او ايستلی دی) نو ځکه دا قرآني نص أَحَلَّ اللهُ الْبَيْعَ او نبوي نص يَا مَعْشَرَ التُّجَّار "عام مخصوص منه البعض وګرځېدل"، او "عام مخصوص منه البعض" په خبر واحد سره خاص کول هم جائز دي، نو ځکه په دې حديث "نَهٰى عَنْ بَيْعِ مَا لَمْ يُقْبَضْ" سره د جواز نصوص خاص کړل سوه (يعني په دې سره پورتنی قرآني نص او نبوي نص خاص کړل سوه) او ويل سوه چي له قبضه کولو څخه مخکي بيع جائز نه ده، لېکن په دې حديث کي دا تعليل کيږي چي دغه حکم په داسي شي کي دی چي د هغه د هلاکېدلو غالب ګومان وي چي د دې په وجه د اول عقد د فسخ کېدلو خوف او دوکه وي، لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ په بل حديث کي فرمايلي دي: "نَهٰى عَنْ بَيْعِ الْغَرَرِ" او مخکي ذکر سوه چي د مبيع په هلاکېدلو سره د اول عقد د فسخ کېدلو دوکه په منقول شي کي راځي، نه په غيرِ منقول شي کي؛ نو ځکه له قبضه کولو څخه مخکي به د منقول شي بيع خو بېله شکه ناجائز وي، لېکن د غيرِ منقول شي بيع به ناجائز نه وي بلکي جائز به وي.

والإجارة قيل على هذا الخلاف إلخ: دا د امام محمد رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی، د جواب حاصل دا دی چې پر اجاره قياس کول صحيح نه دي؛ ځکه په اجاره کې هم هغه اختلاف دی کوم چې په بيع کې دی، يعني که مشتري يو کور رانيسي نو د کور له قبضه کولو څخه مخکې د مشتري لپاره هغه په اجاره ورکول د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز ناجائز دي او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز جائز دي. لهذا کله چې د بيع په څېر اجاره هم مختلف فيه ده نو بيع به پر اجاره قياسول څنګه صحيح وي!؟، او که بيا هم دا خبره تسليم کړل سي چې له قبضه کولو څخه مخکې اجاره بالاتفاق ناجائز ده او پر همدې فتویٰ ده، نو په دې صورت کې به جواب دا وي چې اجار "تمليک المنافع" ته وايي (يعني په اجاره کې څوک صرف د شي د منافعو مالک کيږي) يعني په اجاره کې صرف منافع معقود عليه (مبيع) وي او د منافعو هلاکېدل نادر نه دي بلکې د منقول شي په څېر د هغوی هلاکېدل هم غالب دي؛ حاصل دا چې د منافعو د هلاکېدلو په احتمال کې اجاره د منقول شي په څېر ده. لهذا څرنګه چې له قبضه کولو څخه د منقول شي بيع جائز نه ده همداسي به اجاره هم جائز نه وي.

## د مکيلي يا موزوني شي له رانيولو څخه وروسته احکام

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى مَكِيْلًا مُكَايَلَةً أَوْ مَوْزُونًا مُوَازَنَةً فرمايي: او که څوک يو مکيلي شي په کَيل [پيمانه] کولو سره رانيسي يا موزوني شي په وزن کولو سره رانيسي فَاكْتَالَهُ أَوِ اتَّزَنَهُ او هغه دا شی کَيل کړي يا يې وزن کړي ثُمَّ بَاعَهُ مُكَايَلَةً أَوْ مُوَازَنَةً بيا يې په کَيل کولو يا وزن کولو سره خرڅ کړي لَمْ يَجُزْ لِلْمُشْتَرِيْ مِنْهُ أَنْ يَبِيْعَهُ وَلَا أَنْ يَأْكُلَهُ نو د دويم مشتري لپاره د هغه خرڅول يا خوړل جائز نه دي حَتَّى يُعِيْدَ الْكَيْلَ وَالْوَزْنَ تر دې چې دويم مشتري کَيل او وزن را وګرځوي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ نَهٰى [1] عَنْ بَيْعِ الطَّعَامِ حَتّٰى يَجْرِيَ فِيهِ صَاعَانِ: صَاعُ الْبَائِعِ وَصَاعُ الْمُشْتَرِيْ ځکه نبي کريم ﷺ د غلې له بيع څخه منع کړې ده تر دې چې په هغې کې دوه صاعه جاري سي: يو د بائع صاع او بل د مشتري صاع وَلِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنْ يَزِيْدَ عَلَى الْمَشْرُوْطِ او ځکه چې مکيلي او موزوني شی دا احتمال لري چې پر مشروط مقدار به زيات [اضافه] سي وَذٰلِكَ لِلْبَائِعِ او زائد مقدار د بائع وي وَالتَّصَرُّفُ فِيْ مَالِ الْغَيْرِ حَرَامٌ او [څرنګه چې] د بل چا په مال کې تصرف کول حرام دي فَيَجِبُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ نو ځکه له هغه

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجة في كتاب التجارات، باب النهي عن بيع الطعام، حديث رقم: ۲۲۲۸.

ځکه ځان ساتل واجب دي بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَهُ مُجَازَفَةً په خلاف د هغه صورت کله چي مکیلي یا موزوني شی په اندازه [اټکل] سره خرڅ کړي لِأَنَّ الزِّيَادَةَ لَهُ ځکه چي [په دې صورت کي] زیاتوب [زائد مقدار] د مشتري دی وَبِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ الثَّوْبَ مُذَارَعَةً او په خلاف د هغه صورت کله چي کپړه په ګز سره خرڅه کړي لِأَنَّ الزِّيَادَةَ لَهُ ځکه چي زیاتوب د مشتري دی إِذِ الذَّرْعُ وَصْفٌ فِي الثَّوْبِ ځکه ګز په کپړه کي وصف دی بِخِلَافِ الْقَدْرِ په خلاف د مقدار وَلَا مُعْتَبَرَ بِكَيْلِ الْبَائِعِ قَبْلَ الْبَيْعِ او تر بیع مخکي د بائع کَیل کول [پیمانه کول] معتبر نه دي وَإِنْ كَانَ بِحَضْرَةِ الْمُشْتَرِي که څه هم د مشتري په موجودیت کي وي لِأَنَّهُ لَيْسَ صَاعَ الْبَائِعِ وَالْمُشْتَرِي ځکه چي دا د بائع او مشتري صاع نه دی وَهُوَ الشَّرْطُ حال دا چي همدا [د بائع او مشتري صاع] شرط دی وَلَا بِكَيْلِهِ بَعْدَ الْبَيْعِ بِغَيْبَةِ الْمُشْتَرِي او تر بیع وروسته د مشتري په ناموجودیت کي د بائع کَیل کول هم معتبر نه دي لِأَنَّ الْكَيْلَ مِنْ بَابِ التَّسْلِيمِ ځکه چي کَیل کول د ورسپارلو له قبیلې څخه دي لِأَنَّ بِهِ يَصِيرُ الْمَبِيعُ مَعْلُومًا ځکه د همدې [کَیل کولو] په ذریعه مبیع معلومیږي وَلَا تَسْلِيمَ إِلَّا بِحَضْرَتِهِ او ورسپارل نه ثابتیږي مګر د مشتري په موجودیت کي وَلَوْ كَالَهُ الْبَائِعُ بَعْدَ الْبَيْعِ بِحَضْرَةِ الْمُشْتَرِي او که چیري بائع تر بیع وروسته د مشتري په موجودیت کي کَیل وکړي فَقَدْ قِيلَ: لَا يُكْتَفَى بِهِ لِظَاهِرِ الْحَدِيثِ نو ویل سوي دي: چي د حدیث د ظاهر په وجه به په هغه اکتفاء نه کیږي [یعني هغه کافي نه دی] فَإِنَّهُ اعْتَبَرَ صَاعَيْنِ ځکه نبي کریم ﷺ د دوو صاعونو اعتبار کړی دی وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ يُكْتَفَى بِهِ او صحیح دا ده چي په هغه به اکتفاء کیږي [یعني تر بیع وروسته د مشتري په موجودیت کي د بائع کَیل کول کافي دي] لِأَنَّ الْمَبِيعَ صَارَ مَعْلُومًا بِكَيْلٍ وَاحِدٍ ځکه چي [په دې صورت کي] په یوه [وار] کَیل سره مبیع معلومه سوه وَتَحَقَّقَ مَعْنَى التَّسْلِيمِ او د ورسپارلو معنیٰ ثابته سوه وَمَحْمَلُ الْحَدِيثِ اجْتِمَاعُ الصَّفْقَتَيْنِ او د حدیث محمل دا دی چي دوې صفقې سره جمع سي [یعني دا حدیث پر هغه صورت حمل سوی دی کله چي دوه عقدونه سره جمع سي] عَلَى مَا نُبَيِّنُ فِي بَابِ السَّلَمِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى چي په باب السلم کي به هغه موږ انشاء الله بیان کړو وَلَوِ اشْتَرَى الْمَعْدُودَ عَدًّا او که [یو څوک] عددي شی په شمېر سره رانیسي

فَهُوَ كَالْمَذْرُوْعِ فِيمَا يُرْوٰى عَنْهُمَا نو هغه له صاحبينو څخه په نقل سوي روايت كي د مذروع شي په شېر دی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالِ الرِّبَا ځكه چي هغه د ربوا مال نه دی وَكَالْمَوْزُوْنِ فِيمَا يُرْوٰى عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله په نقل سوي روايت كي د موزوني شي په شېر دی لِأَنَّهُ لَا تَحِلُّ لَهُ الزِّيَادَةُ عَلَى الْمَشْرُوْطِ ځكه چي د مشتري لپاره پر مشروط مقدار زياتوب حلال نه دی.

**اللغات**: ﴿مكيل﴾ مكيلي شی (كيلي شی)، هغه شی كوم چي په پيمانه سره خرڅيږي، لكه غنم او داسي نور (ځكه غنم او داسي نور به پخوا په پيمانه سره خرڅېدل)، ﴿موزون﴾ موزوني شی، هغه شی كوم چي په وزن (تول) سره خرڅيږي، ﴿اكتال﴾ د افتعال ماضي ده: پيمانه كول، كَيل كول، همدا معنیٰ د "كَالَ" ده، ﴿اتزن﴾ د افتعال ماضي ده: وزن كول، تلل (تولول)، ﴿تحرز﴾ د تفعّل مصدر دی: ځان ساتل، احتراز كول، ﴿مجازفة﴾ په اټكل سره، په اندازه سره (بغير له پيمانه كولو او تللو)، ﴿ذراع﴾ گز، ﴿قدر﴾ مقدار، ﴿صفقة﴾ معامله، عقد، ﴿معدود﴾ د نصر له بابه د مفعول صيغه: شمېر والا شی، كوم چي شمارل كيږي او په شمار سره خرڅيږي، ﴿مذروع﴾ د فتح له بابه د مفعول صيغه ده: هغه شی كوم چي گزول كيږي او په گز سره خرڅيږي (يعني كپړه، ټوكر).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه مشتري يو مكيلي شی مثلاً غنم يا اوربشي د كَيل كولو (پيمانه كولو) په شرط سره رانيسي، مثلاً داسي ووايي چي زه دا غنم د سلو درهمو په عوض كي په دې شرط سره رانيسم چي دا به لس قفيزه وي، يا يو موزوني شی مثلاً اوسپنه يا سره زر د وزن كولو په شرط سره رانيسي، مثلاً داسي ووايي چي زه دا اوسپنه د سلو درهمو په عوض كي په دې شرط سره رانيسم چي دا به لس منه وي، حاصل دا چي مكيلي يا موزوني شی په اندازه سره نه رانيسي بلكي د كَيل كولو يا وزن كولو په شرط سره يې رانيسي، بيا مشتري هغه شی (مبيع) كَيل كړي، يا يې وزن كړي، او له قبضه كولو څخه وروسته مشتري هغه د كَيل كولو يا وزن كولو په شرط سره خرڅ كړي، نو دويم مشتري ته تر هغه وخته پوري په دې مبيع كي د تصرف كولو اجازت نسته تر څو چي دويم مشتري د كَيل يا وزن اعاده نه وكړي، يعني دويم مشتري ته له كَيل كولو يا وزن كولو څخه مخكي په مبيع كي د تصرف اجازت نسته؛ لهذا له كَيل او وزن څخه مخكي نه هغه مبيع خرڅولای سي، او نه يې خوړلای سي. حاصل دا چي څرنگه اول مشتري د ځان لپاره كَيل يا وزن كړی وو. همداسي به دويم مشتري هم د ځان لپاره كَيل يا وزن كوي؛ همدا د امام شافعي، امام مالك او امام احمد رَحِمَهُمُ الله قول دی.

دليل د حضرت جابر ﷺ حديث دى: "أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهٰى عَنْ بَيْعِ الطَّعَامِ حَتّٰى يَجْرِيَ فِيْهِ صَاعَانِ: صَاعُ الْبَائِعِ، وَصَاعُ الْمُشْتَرِيْ. (يعني نبي كريم ﷺ د غلې له بيع څخه منع كړې ده تر دې چې په هغې كې دوه واره صاع جاري نه سي يو وار د بائع صاع او بل وار د مشتري صاع) په دې حديث كې له "بائع" څخه مراد اول مشتري دى او له مشتري څخه مراد دويم مشتري دى، يعني كله چې بائع او مشتري دواړه د خپلو ځانو لپاره غله كَيل يا وزن كړي نو تر دې وروسته هغه پر بل چا خرڅولاى سي يا يې خوړلاى سي، او د دې حديث منشاء دا بالكل نه ده چې صرف په يوه بيع كې يو وار بائع كَيل يا وزن وكړي او دويم واره د هغه مشتري كَيل يا وزن وكړي؛ ځكه پر دې ټوله متفق دي چې يوازي په يوه عقد كې دوه واره د كَيل يا وزن كولو ضرورت نسته.

**دويم دليل**: دا دى چې په مكيلي او موزوني شي كې دا احتمال سته چې شايد هغه به له مشروط مقدار څخه زيات او اضافه وي، يعني كله چې اول مشتري د ځان لپاره كَيل يا وزن وكړي نو شايد هغه به په خپل كَيل او وزن كې دوكه سوى وي او تر ټاكلي مقدار به مبيع زياته وي (مثلا هغه به شل منه غنم رانيولي وي لېكن په كَيل كې به هغه خطا سوى وي او غنم به شل نيم منه وي)، او ښكاره خبره ده چې دا زياتوب د بائع يعني د اول مشتري مال دى، او د بل چا په مال كې تصرف كول حرام دى، لهذا د دويم مشتري لپاره په هغه كې تصرف نه كول واجب دي، او دا احتمال صرف هغه وخت ليرې كېداى سي كله چې دويم مشتري د ځان لپاره كَيل يا وزن وكړي او ځان مطمئن كړي.

له دې دليل څخه معلومه سوه چې دويم مشتري دې د خپل بائع يعني د اول مشتري په كَيل يا وزن اكتفاء نه كوي، بلكې په خپله هم كَيل كول يا وزن كول ضروري دي، ها! كه چيرې هغه په اندازه (اټكل) سره مكيلي يا موزوني شى رانيسي، نو په دې صورت كې له كَيل يا وزن كولو څخه مخكې هم د مشتري لپاره تصرف كول جائز دي، د دې يو صورت دا دى چې يو سړى د غنمو يوه كوړه (خره) محض په اندازه (اټكل) سره د سلو درهمو په عوض كې رانيسي، بيا هغه دا غنم پر بل چا په اندازه سره خرڅ كړي، نو په دې صورت كې نه پر اول مشتري كَيل يا وزن كول ضروري دي او نه پر دويم مشتري دا ضروري دي؛ ځكه چې په دې صورت كې د غنمو د كوړې مقدار معلومولو ته هيڅ احتياج نسته بلكې په كوړه كې چې څومره غنم دي هغه ټوله مبيع شمارل كيږي. او دويم صورت دا دى چې يو سړى په كَيل يا وزن سره غنم رانيسي، مثلاً د سلو درهمو په عوض كې لس منه غنم رانيسي او مشتري هغه وزن كړي او قبضه پر وكړي، بيا مشتري محض په اندازه (اټكل) سره هغه غنم خرڅ كړي، مثلاً داسي ووايي چې زه دا ټوله (لس منه غنم) د دومره ثمن په عوض كې خرڅوم او بل سړى (دويم مشتري) هغه رانيسي. نو پر دويم مشتري د غنمو كَيل كول يا وزن كول ضروري نه دي بلكې له

کیل او وزن څخه بغیر هم په هغه کې تصرف کولای سي: ځکه دا غنم کوم چې یې د لس منه په نامه خرڅ کړي دي که چیرې هغه د لسو منو څخه زیات وخیږي نو بیا هم هغه زیات سوي (اضافه سوي) غنم د دویم مشتري دي؛ ځکه د غنمو کومې کوړې ته چې اشاره سوې ده (چې زه دا ټوله غنم ادومره ثمن په عوض کې خرڅوم) هغه ټوله کوړه د مبیع کېدلو په وجه د دویم مشتري ملکیت ده. نو ځکه دویم مشتري په خپل ملکیت کې تصرف کونکی دی، نه د بل چا په ملکیت کې. او همدارنګه که د کپړې یو تان د ګزونو په شرط سره خرڅ کړي یعنې داسې ووایي چې زه دا لس ګزه تان د لسو درهمو په عوض کې خرڅوم، نو د تان له ګزولو څخه مخکې هم د مشتري لپاره په هغه کې تصرف کول جائز دي، ځکه ذراع (ګز) په کپړه کې وصف دی او وصف د مبیع تابع کیږي، نو ځکه که تان زیات سي مثلاً د لسو ګزونو پر ځای دوولس ګزه وخیږي، نو دا زیاتوب به د مشتري لپاره وي، نه د بائع لپاره، او کله چې زیاتوب د مشتري لپاره دی نو د بل چا په مال کې به تصرف کول نه لازمیږي، حال دا چې له ګزولو یا کیل او وزن کولو څخه مخکې تصرف کول د دې احتمال په وجه ناجائز وو چې په دې سره به د بل چا په مال کې تصرف کول لازم سي (او په پورتنی صورتونو کې دا احتمال نسته. نو ځکه به په هغوی کې له کیل کولو، وزن کولو یا ګزولو څخه مخکې تصرف کول جائز وي).

بخلاف المقدار إلخ: په خلاف د مقدار، ځکه چې په مکیلاتو او موزوناتو کې مقدار وصف نه وي بلکې اصل وي، نو په دې وجه موږ وایو چې که مکیلي او موزوني شی له مشروط مقدار څخه اضافه سي نو هغه زیاتوب د مشتري نه دی بلکې د بائع دی (یعنې هغه اضافه سوی مقدار د مشتري نه دی. بلکې د بائع دی)، لهذا که په دې صورت کې له کیل یا وزن کولو څخه مخکې مشتري ته د تصرف اجازت ورکول سي نو د بل چا په مال کې به تصرف کول لازم سي او دا ناجائز دي. لیکن که څوک د کپړې تان خرڅ کړي او د هر ذراع ثمن جلا بیان کړي، مثلاً داسې ووایي چې دا تان لس ګزه دی په سل درهمه او هر ګز په لس درهمه، نو په دې صورت کې د تان له ګزولو څخه مخکې د مشتري لپاره تصرف کول جائز نه دي؛ ځکه چې د هر ذراع لپاره د جلا ثمن ذکر کولو په وجه ذراع وصف پاتـه نـه سو بلکې اصل وګرځېدی، لکه څرنګه چې د کتاب البیوع په شروع کې دا بحث تېر سو.

ولا معتبر إلخ: صاحب د هدایې فرمایي چې له دویمې بیع څخه مخکې د بائع (یعنې د اول مشتري) کیل معتبر نه دی که څه هم د دویم مشتري په موجودیت کې یې وکړي، یعنې که څه هم بائع د هغه کس مخته کیل وکړي کوم چې غنم رانیسي او دویم مشتري جوړیږي؛ د دې وجه دا ده چې په دې حدیث "نَهَى عَنْ بَيْعِ الطَّعَامِ... إلخ" کې د بائع او مشتري صاع یعنې د بائع او مشتري کیل کول یا

...ن کول شرط دي. او دا (يعني له دويمي بيع څخه مخکي کيل کول) نه د بائع صاع دی او نه د مشتري: ځکه چي د بائع او مشتري تحقق خو تر عقد وروسته وي (يعني دوی هغه وخت بائع او مشتري گرځي کله چي بيع وکړي) حال دا چي تر اوسه عقد (بيع) موجود سوی نه دی. او کله چي عقد موجود نه دی نو بائع او مشتري هم موجود نه سول. او کله چي بائع او مشتري موجود نه سول نو ځکه دا صاع به د بائع نه وي. ځکه معتبر صرف د بائع يا د مشتري صاع وي. نه د بل چا.

او که چيري بائع يعني اول مشتري تر دويم عقد (دويمي بيع) وروسته د دويم مشتري په نا موجوديت کي کَيل وکړي. نو دا هم معتبر نه دي: ځکه چي مبيع (غنم) د کَيل کولو په ذريعه (مشتري ته) سپارل کيږي او د کَيل په ذريعه ځکه ورسپارل کيږي چي په کَيل کولو (پيمانه کولو) سره مبيع معلوميږي، او دا خبره تسليم سوې ده چي ورسپارل د مشتري په موجوديت کي کيږي نه د هغه په نا موجوديت کي. نو ځکه د دويم مشتري په ناموجوديت کي به کَيل کول معتبر نه وي.

او که چيري بائع يعني اول مشتري تر دويمي بيع وروسته د دويم مشتري په موجوديت کي يو وار کَيل وکړي. نو د ځيني حضراتو د قول مطابق صرف په هغه به اکتفاء نه کيږي بلکي د مشتري لپاره دويم وار کَيل کول ضروري دي: ځکه د دې حديث "حَتّٰى يَجْرِيَ فِيْهِ صَاعَانِ" له ظاهر څخه معلوميږي چي دوه صاعه معتبر دي، يو صاع د بائع يعني د اول مشتري او دويم صاع د دويم مشتري. لېکن صحيح خبره دا ده چي په دې صورت کي په يوه وار کَيل کولو اکتفاء کول جائز دي: ځکه په دې صورت کي په يوه وار کيلو کولو سره هم مبيع معلومه سوه او څرنګه چي دويم مشتري موجود (حاضر) دی نو ځکه هغه ته ورسپارل هم متحقق سو او له مشروط مقدار څخه د مبيع زياتېدلو احتمال هم منتفي سو. او پاته سو حديث نو دا حديث د هغه صورت په باره کي دی کله چي دوه عقدونه سره جمع سي لکه څرنګه چي په باب السلم کي بيان سوي دي چي که يو سړی يو کُر غنم رانيسي او بيا دا سړی (مُسْلَمْ إِلَيْه) صرف ربُ المال ته د قبضه کولو حکم وکړي نو دا قبضه خو معتبر نه ده لېکن که دا حکم ورته وکړي چي اول زما لپاره قبضه وکړه بيا د خپل ځان لپاره قبضه وکړه. او ربُ المال يو وار د مسلم اليه لپاره کَيل وکړي او بل وار د خپل ځان لپاره کَيل وکړي نو بيا دا صورت جائز کيږي: ځکه چي په دې صورت کي دوه عقدونه بشرط الکيل سره جمع سوي دي نو ځکه دوه واره کَيل کول ضروري دي.

ولواشترى المعدود الخ: او که چيري يو څوک داسي شی رانيسي کوم چي په شمار سره خرڅيږي، لکه هګۍ مثلاً داسي ووايي چي دا سل هګۍ د سلو درهمو په عوض کي خرڅوم، نو د صاحبينو

رَحِمَهُمَا الله په نيز هغه د مذروع شي په څېر دی، يعني که څوک د شمارلو په شرط سره هگۍ خرڅې کړي نو د دويم مشتري لپاره دويم ځل شمارل ضروري نه دي بلکې دويم مشتري له شمارلو څخه مخکې هم په هغوی کې تصرف کولای سي.

دليل دا دی چې د مذروعاتو په څېر دا شی (هگۍ) هم له "اموال ربوا" څخه نه دي، همدا وجه ده چې يوه هگۍ د دوو هگيو په عوض کې خرڅول جائز دي. لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه (معدودي شی) د موزوني شي په څېر دی، يعني څرنگه چې موزوني شی له مشروط مقدار څخه زيات د مشتري لپاره حلال نه دی، همداسې معدودي شی هم له مشروط مقدار څخه زيات حلال نه دی، لهذا که يو څوک د سلو درهمو په عوض کې سل هگۍ رانيسي بيا هغه هگۍ زياتې وخېژي (يعني تر سلو زياتې سي)، نو بائع به زيات سوی مقدار مشتري ته نه سپاري، او که هگۍ کمې وخېژي، نو مشتري به له بائع څخه د نقصان حصه واپس اخلي (يعني څومره هگۍ چې کمې سوې وي د هغه قيمت به واپس څني اخلي)؛ ځکه چې په معدودي شي کې له تصرف کولو څخه مخکې د هغه شمارل ضروري دي او له شمارلو څخه مخکې تصرف کول جائز نه دي، لکه په موزوني شي کې چې له وزن کولو څخه مخکې تصرف کول جائز نه دي.

## په ثمن کې قبل القبض تصرف جائز دی

قَالَ: وَالتَّصَرُّفُ فِي الثَّمَنِ قَبْلَ الْقَبْضِ جَائِزٌ فرمايي: او له قبضې څخه مخکې په ثمن کې تصرف کول جائز دي لِقِيَامِ الْمُطْلَقِ ځکه چې د تصرف جائز گرځونکی شي قائم [موجود] دی وَهُوَ الْمِلْكُ او هغه ملکيت دی [يعني په دې صورت کې ملکيت موجود دی] وَلَيْسَ فِيهِ غَرَرُ الِانْفِسَاخِ بِالْهَلَاكِ او په دې کې [د ثمن] په هلاکت سره د بيع فسخ کېدلو دوکه [هم] نسته لِعَدَمِ تَعَيُّنِهَا بِالتَّعْيِينِ ځکه چې ثمن په مُتعيّن کولو سره نه مُتعيّن کيږي بِخِلَافِ الْمَبِيعِ په خلاف د مبيع.

**اللغات**: ﴿مطلق﴾ د افعال فاعل دی: جائز کونکی، جائز گرځونکی (مراد څني پر ثمن د بائع ملکيت دی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې تر بيع کولو وروسته او د ثمن تر قبضه کولو مخکې د بائع لپاره په ثمن کې تصرف کول جائز دي، برابره ده ثمن نغدي وي لکه دراهم او دنانير (يعني د مالا يتعيّن له قبيلې څخه وي) او که مکيلي يا موزوني شی وي لکه غنم او داسې نور (يعني يا د مايتعيّن له قبيلې څخه وي)، مثلاً که څوک د سلو درهمو په عوض کې يا د سل منه غنمو په عوض کې يو اوبن خرڅ کړي، نو د بائع لپاره د دراهمو او غنمو په بدله کې بل شی اخيستل جائز دي (يعني د بائع لپاره دا جائز دي چې د دراهمو پر ځای دنانير واخلي يا د غنمو پر ځای اوربشې واخلي).

دلیل دا دی چي په ثمن کي د تصرف جائز گرځونکی شی ملکیت دی (یعني کوم شی چي په ثمن کي تصرف جائز گرځوي هغه ملکیت دی)، یعني مالک ته په خپل مملوک شي کي تصرف کول جائز دي. او تر بیع کولو وروسته بائع د ثمن مالک کیږي برابره ده پر هغه قبضه وکړي، که نه. او له تصرف کولو څخه مانع صرف دبیع دفسخ کېدلو دوکه وه (لکه مخکي چي ذکر سوه)، لېکن دلته د ثمن د هلاکېدلو په صورت کي دبیع د فسخ کېدلو دوکه هم نسته، ځکه چي ثمن په مُتعینولو سره نه مُتعین کیږي. په خلاف د مبیع (غنمو) چي هغه په مُتعینولو سره مُتعین کیږي؛ لهذا که ثمن هلاک سي نو مشتري د هغه پر ځای نور ثمن هم اداء کولای سي، او کله چي نور ثمن اداء کړل سي نو دبیع فسخ کېدلو امکان باقي نه پاتېږي. حاصل دا چي کله دلته د تصرف جائز گرځونکی شی یعني ملکیت موجود دی او هغه شی هم نسته کوم چي له تصرف څخه مانع وو (یعني دبیع فسخ کېدلو دوکه هم نسته)، نو بیا (په ثمن کي) د تصرف په جائز کېدلو کي څه شبه سته!؟. او د دې تائید دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په حدیث سره هم کیږي، حدیث دا دی: "قَالَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: كُنَّا نَبِيعُ الإِبِلَ فِي الْبَقِيعِ فَنَأْخُذُ مَكَانَ الدَّرَاهِمِ الدَّنَانِيرَ وَمَكَانَ الدَّنَانِيرِ الدَّرَاهِمَ وَكَانَ يُجَوِّزُهُ رَسُولُ اللهِ ﷺ"، د حدیث ترجمه بنکاره ده، دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا مطلب دا دی چي که په ثمن کي به دراهم تاکل سوي وه نو موږ به د هغه په بدله کي دنانیر اخیستل او که دنانیر به تاکل سوي وه نو موږ به د هغه په بدله کي دراهم اخیستل، او دا داسي دي لکه تر قبضه کولو مخکي په ثمن کي تصرف کول. نو ثابته سوه چي د ثمن تر قبضه کولو مخکي د بائع لپاره په هغه کي تصرف کول جائز دي.

## په مبیع یا ثمن کي د اضافه کولو بحث

قَالَ: وَيَجُوزُ لِلْمُشْتَرِي أَنْ يَزِيدَ لِلْبَائِعِ فِي الثَّمَنِ فرمایي: او د مشتري لپاره جائز دي چي د بائع لپاره په ثمن کي اضافه وکړي وَيَجُوزُ لِلْبَائِعِ أَنْ يَزِيدَ لِلْمُشْتَرِي فِي الْمَبِيعِ [همدارنګه] د بائع لپاره جائز دي چي د مشتري لپاره په مبیع کي اضافه وکړي وَيَجُوزُ أَنْ يَحُطَّ عَنِ الثَّمَنِ او دا [هم] جائز دي چي بائع له ثمن څخه څه [حصه] کم کړي وَيَتَعَلَّقُ الاسْتِحْقَاقُ بِجَمِيعِ ذَلِكَ او د دې ټولو سره استحقاق متعلق کیږي فَالزِّيَادَةُ وَالْحَطُّ يَلْتَحِقَانِ بِأَصْلِ الْعَقْدِ عِنْدَنَا نو اضافه کول او کمول زموږ په نېز د اصل عقد سره لاحق کیږي [یعني زموږ په نېز به اضافه سوی او کم کړل سوی مقدار د اصل عقد سره یو ځای کیږي] وَعِنْدَ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ لَا يَصِحَّانِ عَلَى اعْتِبَارِ الالْتِحَاقِ او د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نېز د

● القول الراجح: هو قولنا أن الزيادة والحط يلتحقان بأصل العقد أى استناداً، كما ذكر في الدر المختار (ج:۲، ص:۱۸۶)، كذا في البحر الرائق (ج:۶، ص:۱۳۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۵۷]

لاحقولو ایو ځای کولو) پر اعتبار [زیادة او حط] صحیح نه دي بَلْ عَلٰی اِعْتِبَارِ اِبْتِدَاءِ الصِّلَةِ بلکي د صلې [احسان] د ابتداء په اعتبار سره صحیح دي [یعني له نوي سره د احسان او هبه کېدلو پر بناء صحیح دي]

لَهُمَا: اَنَّهُ لَا يُمْكِنُ تَصْحِيحُ الزِّيَادَةِ ثَمَنًا د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چي زیاتوب [اضافه سوی مقدار] د ثمن په توګه صحیح ګرځول ممکن نه دي [یعني اضافه سوی مقدار ثمن ګرځول ممکن نه دي] لِاَنَّهُ يَصِيرُ مِلْكُهُ عِوَضَ مِلْكِهِ ځکه چي [په دې صورت کي] به د مشتري ملکیت د هغه د خپل ملکیت په عوض کي سي فَلَا يَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ نو ځکه به دا د اصل عقد سره نه لاحق کیږي [نه یو ځای کیږي] وَكَذَا الْحَطُّ او همدارنګه کمول [دا به هم د اصل عقد سره نه یو ځای کیږي] لِأَنَّ كُلَّ الثَّمَنِ صَارَ مُقَابَلًا بِكُلِّ الْمَبِيعِ ځکه چي ټوله ثمن د ټوله مبیع په مقابله کي دی فَلَا يُمْكِنُ إِخْرَاجُهُ نو ځکه د هغه ایستل [له ثمن څخه څه کمول] ممکن نه دي فَصَارَ بِرًّا مُبْتَدَأً نو ځکه دا ابتداءً [له نوي سره] احسان سو وَلَنَا: أَنَّهُمَا بِالْحَطِّ وَالزِّيَادَةِ يُغَيِّرَانِ الْعَقْدَ مِنْ وَصْفٍ مَشْرُوعٍ إِلَى وَصْفٍ مَشْرُوعٍ زموږ دلیل دا دی: چي بائع او مشتري په کمولو او اضافه کولو سره عقد له یوه مشروع وصف څخه د بل مشروع وصف وطرف ته متغیر کوي [بدلوي] وَهُوَ كَوْنُهُ رَابِحًا أَوْ خَاسِرًا أَوْ عَدْلًا او هغه [وصف] د بیع نفع مند کېدل یا نقصان مند کېدل یا برابر کېدل [درمیانه کېدل] دي وَلَهُمَا وِلَايَةُ الرَّفْعِ او بائع او مشتري لره [د عقد] د فسخ کولو اختیار سته فَأَوْلَى أَنْ يَكُونَ لَهُمَا وِلَايَةُ التَّغْيِيرِ نو هغوی ته به د متغییر کولو اختیار په درجه اولی وي وَصَارَ كَمَا إِذَا أَسْقَطَا الْخِيَارَ او دا داسي سو لکه هغوی [بائع او مشتري] چي خیار ساقط کړي أَوْ شَرَطَاهُ بَعْدَ الْعَقْدِ یا [لکه] هغوی [چي] تر عقد وروسته خیار شرط کړي [یعني تر بیع وروسته د خیار شرط ولګوي] ثُمَّ إِذَا صَحَّ يَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ بیا چي کله دا اضافه او کمي کول صحیح دي نو هغه به د اصل عقد سره نه لاحق کیږي لِأَنَّ وَصْفَ الشَّيْءِ يَقُومُ بِهِ لَا بِنَفْسِهِ ځکه چي د شي وصف د شي په ذریعه قائم کیږي، او وصف بذات خود نه قائم کیږي بِخِلَافِ حَطِّ الْكُلِّ په خلاف د ټوله ثمن د کمولو لِأَنَّهُ تَبْدِيلٌ لِأَصْلِهِ لَا تَغْيِيرٌ لِوَصْفِهِ ځکه چي دا د اصل عقد بدلول دي. د وصف متغیر کول نه دي فَلَا يَلْتَحِقُ بِهِ نو ځکه به هغه د اصل عقد سره نه لاحق کیږي وَعَلٰی

بهار الالتحاق لا تکون الزیادة عاقدا عن ملکه او د لاحق کولو پر اعتبار به زیاتوب اضافه سوی | مقدار | د مشتري د خپل ملکیت په عوض کي نه وي فیظهر حکم الالتحاق فی التولیة والمرابحة او د اصل عقد سره د لاحق کېدلو |یو ځای کېدلو| حکم به په بیع تولیه او بیع مرابحه کي ښکاره کیږي حتی یجوز علی الکل فی الزیادة تر دې چي د اضافه کولو په صورت کي به |د مشتري لپاره| پر ټوله ثمن |مرابحه او تولیه| جائز وي ویباشر علی الباقي في الحط او د کمولو په صورت کي به مشتري پر مابقی |مرابحه او تولیه| کوي وفی الشفعة او په شفعه کي |به هم ښکاره کیږي| حتی یأخذ بما بقي فی الحط تر دې چي د کمولو په صورت کي به شفیع |د شفعي مکان| د مابقي |ثمن| په عوض کي اخلي وانما کان للشفیع ان یأخذ بدون الزیادة لما فی الزیادة من ابطال حقه الثابت او د |اضافه کولو په صورت کي| د شفیع لپاره ځکه دا اختیار سته چي هغه له زیاتوب |اضافه| څخه بغیر |د شفعي مکان| واخلي ځکه چي د زیاتوب په صورت کي د شفیع د ثابت سوي حق باطلېدل لازمیږي فلا یملکانه نو ځکه بائع او مشتري به د هغه ملکیت |اختیار| نه لري ثم الزیادة لا تصح بعد هلاك المبیع علی ظاهر الروایة بیا د ظاهر روایت مطابق د مبیع تر هلاکېدلو وروسته اضافه کول صحیح نه دي لأن المبیع لم یبق علی حالة یصح الاعتیاض عنه ځکه چي |تر هلاکېدلو وروسته| مبیع پر داسي حالت نه پاتیږي چي د هغه عوض اخیستل دي صحیح وي والشيء یثبت ثم یستند ځکه شی اول ثابتیږي بیا |د بل شي وطرف ته| منسوب کیږي بخلاف الحط په خلاف د کمولو لأنه بحال یمکن اخراج البدل عما یقابله ځکه چي کمول پر داسي حالت دي چي د هغه له مقابل څخه بدل ایستل ممکن دي فیلتحق بأصل العقد استنادا نو ځکه به هغه د اصل عقد سره لاحق کیږي په منسوب کېدلو سره |د اصل عقد وطرف ته|.

**اللغات**: ﴿یحط﴾ د نصر مضارع ده: کمول، ساقطول. ﴿یغیّران﴾ د تفعیل له بابه د تثنیه مضارع غائب صیغه ده: بدلول، متغیر کول. ﴿التحاق﴾ د افتعال مصدر دی: لاحق کېدل، یو شی د بل شي سره یو ځای کېدل (متصل کېدل، جمع کېدل). ﴿رابح﴾ د سمع له بابه د فاعل صیغه ده: نفع والا بیع

(ګټي والا)، نفع منده بيع، ﴿خاسر﴾ د حسب له بابه د فاعل صيغه ده: نقصان او تاوان والا، خساري والا، نقصان مند. ﴿عدل﴾ د ضرب مصدر دی په معنیٰ سره د فاعل (عادل) دی: برابري والا، درميانه (کوم چي نه رابح وي او نه خاسر وي). ﴿اعتياض﴾ د افتعال مصدر دی: عوض اخيستل. ﴿يستند﴾ د استفعال مضارع ده: منسوب کېدل، مضاف کېدل. ﴿وصف الشئ يقوم به لا بنفسه﴾ دا يو منطقي قاعده ده. مطلب يې دا دی چي د يو شي صفت په خپله نه قائم کيږي (نه موجوديږي)، بلکي هغه د شي سره موښتی او په هغه سره قائم وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مشتري د بائع لپاره په ثمن کي څه اضافه وکړي، نو دا جائز دي؛ مثلاً يو غلام په سل درهمه رانيسي بيا لس درهمه اضافه ورکړي، نو دا اضافه کول جائز دي؛ همدارنګه که بائع په مبيع کي څه اضافه وکړي يا ثمن څه کم کړي، نو هم جائز دي؛ مثلاً په سل درهمه يو من غنم خرڅ کړي، بيا په هغه کي لس سېره غنم اضافه ورکړي، يا لس درهمه له ثمن څخه کم کړي، نو دا جائز دي. او استحقاق د اصل او اضافه دواړه سره متعلق کيږي، لهذا که په ثمن کي مشتري اضافه وکړي نو تر هغه وخته بائع ته د مبيع راګرځولو حق سته تر څو چي هغه اصل ثمن او اضافه سوی ثمن دواړه ترلاسه نه کړي، او همدارنګه مشتري ته تر هغه وخته د مبيع د مطالبه کولو حق نسته تر څو چي اصل ثمن او اضافه سوی ثمن بائع ته نه وسپاري، او که بائع ثمن کم کړي نو د ما بقي ثمن تر ورسپارلو وروسته مشتري ته د پوره مبيع د مطالبه کولو اختيار سته.

او که چيرې مبيع مستحق وخيږي يعني څوک د استحقاق دعویٰ وکړي (چي دا مبيع زما ده) او هغه مبيع له مشتري څخه واخلي نو د ثمن د اضافه کولو په صورت کي به مشتري له بائع څخه اصل ثمن او اضافه سوی ثمن دواړه واپس اخلي، او د ثمن د کمولو په صورت کي به مابقي ثمن واپس ځني اخلي.

حاصل دا چي زموږ په نېز په ثمن کي اضافه کول او کمي کول د اصل عقد سره يو ځاي کيږي (لاحق کيږي)، ګواکي اصل عقد پر همدغه اضافه يا کمي واقع سوی دی، لېکن د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نيز اضافه او کمي د اصل عقد سره يو ځای کول (لاحق کول) صحيح نه دي، بلکي په ثمن کي اضافه کول د مشتري له طرفه ابتداءً احسان کول او هبه کول دي، يعني تر بيع کولو وروسته ګواکي مشتري له نوي سره احسان کړی دی او له خپل طرفه يې بائع ته هبه کړې ده. او څرنګه چي د هبې د صحت (صحيح کېدلو) لپاره قبضه شرط ده، نو ځکه دا عقد او هبه هغه وخت صحيح کيږي کله چي پر اضافه سوي مقدار قبضه وسي. او که بائع په مبيع کي څه اضافه وکړي نو دا د بائع

له طرفه ابتداءً هبه ده، او که بائع څه ثمن کم کړي نو دا د بائع له طرفه مشتري د ثمن له څه حصې څخه بري کول دي (یعني دا د بائع له طرفه إبراء ده)، لهذا که مشتري هغه ردّ کړي نو هغه به رد کيږي (ځکه چي إبراء ردّ کېدلای سي) یعني که مشتري بائع ته ووایي چي ستا کمول زه نه قبلوم بلکي مشتري هغه واپس وکړي نو بیا به د بائع په کمولو سره ثمن نه کمیږي. لنډه دا چي د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز اضافه او کمي د اصل عقد سره نه یو ځای کیږي، بلکي اضافه له نوي سره احسان او هبه ده، او کمي د ثمن له یوې حصې څخه بري کول دي.

**د امام زفر او امام شافعي دليل**: دا دی چي اضافه سوی مقدار ثمن ګرځول او دې ته صحیح ويل ممکن نه دي؛ ځکه کله چي یو سړي د سل درهمو په عوض کي یو غلام رانیسي (یعني په سل درهمه یو غلام رانیسي) نو دا غلام د سل درهمو په عوض کي د هغه سړي (مشتري) په ملکیت کي داخل سو، یعني په سل درهمه مشتري د هغه غلام مالک سو، نو اوس که مشتري په ثمن کي اضافه وکړي مثلاً لس درهمه اضافه ورکړي او دا اضافه د اصل عقد سره یو ځای کړي (جمع کړي)، نو ګواکي د مشتري ملکیت یعني اضافه سوی ثمن په خپله د مشتري د ملکیت یعني د مبیع (غلام) په عوض کي راغلی، حالانکي دا ناجائز دي چي د یوه سړي ملکیت په خپله د هغه د ملکیت په عوض کي راسي، نو ځکه اضافه سوی ثمن به د اصل عقد سره نه یو ځای کول کیږي. همدارنګه که یو سړی د سل درهمو په عوض کي یو غلام خرڅ کړي نو دا ثمن د هغه سړي (بائع) په ملکیت کي داخل سو، اوس که بائع په مبیع کي اضافه وکړي نو د بائع ملکیت یعني اضافه سوی مقدار به په خپله د بائع د ملکیت یعني د ثمن په عوض کي راسي، حالانکي دا ناجائز دي؛ نو ځکه د مبیع اضافه سوی مقدار به د اصل عقد سره نه یو ځای کول کیږي. همدارنګه د مشتري له طرفه ثمن کمول به د اصل عقد سره نه یو ځای کیږي؛ ځکه چي ټوله ثمن د پوره مبیع په مقابله کي دی یعني هغه سل درهمه ټوله د یوه غلام په مقابله کي دي، لهذا اوس که لس درهمه کم کړل سي او هغه د اصل عقد سره یو ځای کړل سي نو د مبیع (غلام) یوه حصه به بلا عوض (بېله عوضه) پاته سي، حالانکي دا ناجائز دي؛ ځکه چي د مبیع هیڅ حصه بلا عوضه نه وي، نو ځکه د څه ثمن کمول ممکن نه دي، او تر کمولو وروسته یعني نیوي (۹۰) درهمه د پوره مبیع په مقابله کي ګرځول هم ممکن نه دي، ځکه تر ثمن کمولو وروسته بل داسي هیڅ جدید عقد نه دی سوی چي په هغه کي نیوي درهمه ثمن ګرځول سوي وي، لهذا کله چي اضافه او کمي د اصل عقد سره یو ځای کول ممکن نه دي، نو د اضافه کولو په صورت کي به اضافه سوی مقدار له نوي سره هبه او احسان ګرځول کیږي او د کمي کولو په صورت کي به کم سوی مقدار ابراء یعني "بري کول" شمارل کیږي.

**زموږ دليل**: دا دی چي بيع په درې ډوله (په درې دوله) مشروع شوې ده: ۱ خاسر. ۲ رابح. ۳ عادل.

"بيع خاسر" هغه بيع ته وايي چي نقصان پکښي وسي او "بيع رابح" هغه بيع ته وايي چي نفع (گټه) پکښي وسي او "بيع عادل" درميانه بيع ته وايي چي نه پکښي نقصان وي او نه نفع. نو مشتري که په ثمن کي اضافه وکړي نو دا اضافه "بيع خاسر" بيع عادل گرځوي او "بيع عادل" بيع رابح گرځوي. او که ثمن کم کړي نو دا کمي "بيع رابح" عادل گرځوي او "بيع عادل" خاسر گرځوي. همدارنگه که بائع په مبيع کي اضافه وکړي نو دا اضافه د مشتري په حق کي "بيع خاسر" عادل او "بيع عادل" رابح گرځوي او د بائع په حق کي "بيع رابح" عادل او "بيع عادل" خاسر گرځوي. لهذا کله چي بائع او مشتري تر عقد کولو (بيع کولو) وروسته په ثمن يا مبيع کي څه اضافه يا کمي وکړي. نو گواکي بائع او مشتري خپل عقد (بيع) له يوه مشروع وصف څخه په بل مشروع وصف بدل کړی يعني خاسر يې عادل وگرځوی يا عادل يې رابح وگرځوي. يا رابح يې عادل وگرځوی يا عادل يې خاسر وگرځوی. او بائع او مشتري ته د اصل عقد د فسخ کولو اختيار سته. لهذا کله چي هغوی ته د اصل عقد فسخ کولو اختيار هم سته نو له يوه وصف څخه وبل وصف ته د عقد بدلولو اختيار به په درجه اولی هغوی ته وي. ځکه چي د شي په وصف کي تصرف کول په اصل شي کي له تصرف کولو څخه ډېر سپک او اهون دي. او دا داسي سو لکه د يوه عاقد يا د دواړو عاقدينو لپاره چي د خيار شرط لګول سوی وي او بيا دواړه هغه ساقط کړي. يا دواړه عاقدين تر عقد وروسته د خيار شرط ولګوي يعني په اصل عقد کي خو د هغوی لپاره د خيار شرط نه وي بلکي تر عقد وروسته دواړه د هغه شرط ولګوي. نو په اول صورت کي عقد د غير لزوم وطرف ته او په دويم صورت کي د لزوم څخه د غير لزوم وطرف ته بدليږي. او دا بالاتفاق جائز دي، نو څرنگه چي دا بدلون جائز دی، همداسي به د ثمن يا مبيع د اضافه کولو او کمولو بدلون هم جائز وي، لنډه دا چي کله تر بيع کولو وروسته په ثمن کي اضافه او کمي کول صحيح دي نو هغه به د اصل عقد سره يوځای کول کيږي؛ ځکه چي د ثمن اضافه او کمي د ثمن وصف دی. او د شي وصف په هغه شي سره قائم وي. بذات خود نه قائم کيږي، نو ځکه د ثمن اضافه او کمي به په ثمن سره قائم وي او د ثمن سره به يوځای کيږي.

**بخلاف حطّ الكُل**: دا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي کله د بعضي ثمن کمول صحيح دي نو پر بعض د کل په قياسولو سره د ټوله ثمن کمول هم صحيح کېدل پکار وو. حال دا چي ټوله ثمن کمول صحيح نه دي.

د دې جواب دا دی چي کله بائع ټوله ثمن کم کړي نو بالکل اصل عقد بدل سو. ځکه کله چي ټوله ثمن کم کړل سي نو د ثمن د نشتوالي په وجه به يا بيع باطليږي يا مبيع به د بائع له طرفه د

مشتري لپاره هديه ( تحفه ) ګرځي. حال دا چې بائع او مشتري نه د بيع باطل اراده کړې ده او نه د هغوی مقصد د مبيع هديه کول دي (بلکې د هغوی مقصد په مبيع کې تجارت کول دي). حاصل دا چې د ټوله ثمن په کمولو سره اصل عقد بدليږي، نه وصف. او څرنګه چې د اصل عقد د بدلېدلو په صورت کې هيڅ شی باقي نه پاتيږي چې د هغه سره عقد يو ځای کړل سي. نو ځکه به د ټوله ثمن کمول د اصل عقد سره نه يوځای کول کيږي. او څرنګه چې د بعضي ثمن د کمولو په صورت کې اصل عقد باقي پاتيږي صرف د هغه وصف بدليږي، نو ځکه په هغه صورت کې به ثمن کمول د اصل عقد سره يو ځای کول کيږي.

وعلى اعتبار الالتحاق إلخ: دا د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله د دليل جواب دی. د جواب حاصل دا دی چې که اضافه سوی مقدار د اصل عقد سره يو ځای کړل سي نو د مشتري ملکيت د مشتري د ملکيت په عوض کې راتلل نه لازميږي، ځکه کله چې اضافه سوی ثمن د اصل عقد سره يوځای کړل سي نو داسي سو ګواکې هغه (اضافه سوی ثمن) د عقد په وخت کې موجود وو. مثلاً ثمن سل درهمه دی او مشتري لس درهمه اضافه کړل. نو دا لس درهمه چې کله د اصل عقد سره يو ځای کړل سوه نو داسي سو ګواکې مشتري ابتداءً مبيع په يو سل او لسو (١١٠) درهمو رانيولې ده. او کله چې مشتري ابتداءً (له نوي سره) مبيع د يو سل او لسو درهمو په عوض کې رانيولې ده نو په دې صورت کې د مشتري ملکيت د مشتري د ملکيت په عوض کې راتلل نه لازميږي. بلکې د بائع ملکيت "يعني مبيع" د مشتري د ملکيت "يعني د يو سل او لسو درهمو" په عوض کې راځي، او په دې کې هيڅ قباحت نسته.

ويظهر إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چې د اصل عقد سره د کمي و زياتوب د يوځای کولو حکم به په بيع مرابحه او بيع توليه کې ښکاره کيږي. يعني د ثمن اضافه کولو په صورت کې به مرابحه او توليه پر اصل ثمن او ضافه سوي ثمن دواړو واقع کيږي. مثلاً که يو سړی په نيوي (٩٠) درهمه يو غلام رانيسي بيا مشتري لس درهمه اضافه ورکړي. نو که مشتري دا غلام مرابحةً يا توليةً خرڅول وغواړي نو هغه به پر سل (١٠٠) درهمو مرابحه يا توليه کوي. او که بائع مثلاً له نيوي درهمو څخه لس درهمه کم کړي نو مشتري به پر اتيا (٨٠) درهمو مرابحه او توليه کوي.

او د اصل عقد سره د کمي و زياتوب د ځای کولو حکم به د شفعې په صورت کې هم ښکاره کيږي. يعني که يو څوک په زر (١٠٠٠) درهمه يو کور رانيسي. بيا بائع سل درهمه کم کړي نو که شفيع د شفعې دعوی وکړي او د هغه کور اخيستل وغواړي. نو هغه به د مابقي ثمن يعني د نهه سوه (٩٠٠) درهمو په عوض کې کور اخلي.

وإنما كان للشفيع أن يأخذ إلخ: دا د یومقدّر سوال جواب دی، سوال دا دی چې کله اضافه سوی ثمن د اصل عقد سره یو ځای کېدای سي، نو د اضافه کولو صورت کي شفیع ته د اصل ثمن او اضافه سوي ثمن دواړو په عوض کي کور اخیستل پکار دي، مثلاً یو څوک په زر درهمه یو کور رانیسي او سل درهمه اضافه ورکړي، نو اوس که شفیع دغه کور له مشتري څخه اخیستل وغواړي نو باید په یوولس سوه (۱۱۰۰) درهمو یې واخلي، حالانکي دا صحیح نه دي، بلکي حکم دا دی چې شفیع به دا کور په زر درهمه اخلي، او اضافه سوی ثمن پر هغه نه واجبیږي.

ددې جواب دا دی چې دلته د شفیع حق د اول عقد یعني د زرو درهمو سره متعلق سو، او که اضافه سوی ثمن یعني سل درهمه پر هغه واجب کړل سي نو په دې سره د هغه د ثابت سوي حق باطلول لازمیږي حال دا چې په دې کي د شفیع نقصان هم دی، او بائع او مشتري ته بالکل دا اختیار نسته چې د بل چا حق باطل کړي، نو ځکه به اضافه سوی ثمن (سل درهمه) د بائع او مشتري په حق کي خو د اصل عقد سره یو ځای کیږي، لېکن د شفیع په حق کي به هغه د اصل عقد سره نه یو ځای کیږي.

ثم الزيادة إلخ: صاحب د هدایې فرمایي چې پورتني ټوله تفصیلات هغه وخت دي کله چې مبیع موجوده وي، لېکن که مبیع هلاکه سي نو د ظاهر روایت مطابق په ثمن کي اضافه کول صحیح نه دي؛ ځکه چې تر هلاکېدلو وروسته مبیع پر داسي حالت نه پاتیږي چې د هغه عوض اخیستل دي صحیح وي؛ ځکه چې عوض د موجود شي په مقابله کي وي، د معدوم شي په مقابله کي عوض نه راځي، او قاعده دا ده چې شی اول په خپله ثابتیږي بیا د بل شي وطرف ته منسوب کیږي، حال دا چې دلته د مبیع د نه موجودېدلو په وجه اضافه سوی ثمن په خپله بالکل ثابت نه سو نو دا اضافه به د اصل عقد وطرف ته منسوب کیږي هم نه (یعني د هغه سره به یو ځای کیږي هم نه). ها! که د مبیع تر هلاکېدلو وروسته ثمن کم کړل سي نو دا کمي به د اصل عقد سره یو ځای کیږي؛ ځکه چې ثمن کمول د اسقاط (ساقطولو) له قبیلې څخه دي، او د ساقطولو لپاره د هغه مقابل موجودېدل ضروري نه دي (یعني د ساقط سوي مقدار په مقابله کي عوض راتلل ضروري نه دي)، نو ځکه به کمول في الحاله ثابتیږي او د اصل عقد سره به یو ځای کیږي.

# په نغد ثمن سره تر خرڅولو وروسته د ثمن اداء کولو لپاره مهلت ورکول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ بِثَمَنٍ حَالٍّ ثُمَّ أَجَّلَهُ أَجَلًا مَعْلُومًا فرمايي: او که څوک په نغد ثمن سره [يو شی] خرڅ کړي بيا [د مشتري لپاره] يو معلوم ميعاد [نېټه] وټاکي صَارَ مُؤَجَّلًا نو دا ثمن قرض [پور] ګرځي لِأَنَّ الثَّمَنَ حَقُّهُ ځکه چي ثمن د بائع حق دی فَلَهُ أَنْ يُؤَخِّرَهُ تَيْسِيرًا عَلَى مَنْ عَلَيْهِ نو ځکه هغه ته دا اختيار سته چي پر من عليه الحق [مشتري] د آساني کولو لپاره ثمن مؤخر کړي أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَمْلِكُ إِبْرَاءَهُ مُطْلَقًا آيا ته نه ګورې! چي بائع مطلقاً د مشتري د بري کولو ملکيت [اختيار] لري فَكَذَا مُؤَقَّتًا نو همداسي به هغه د ثمن مؤقت کولو [يعني تر معلوم وخت پوري د ثمن مؤخر کولو] ملکيت هم لري وَلَوْ أَجَّلَهُ إِلَى أَجَلٍ مَجْهُولٍ او که بائع [د مشتري لپاره] يو مجهول ميعاد وټاکي إِنْ كَانَتِ الْجَهَالَةُ مُتَفَاحِشَةً كَهُبُوبِ الرِّيحِ نو که جهالت فاحشه [زيات] وي لکه د هوا چلېدل [د ميعاد په توګه ټاکل] لَا يَجُوزُ نو جائز نه دی وَإِنْ كَانَتْ مُتَقَارِبَةً كَالْحَصَادِ وَالدِّيَاسِ او که جهالت قريب الفهم [يعني لږ] وي لکه لو کول او غوبل کول [د ميعاد په توګه ټاکل] يَجُوزُ نو جائز دي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْكَفَالَةِ ځکه چي دا د کفالې په درجه کي دي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او موږ مخکي د دې بيان کړی دی.

**اللغات:** ﴿حالّ﴾ نغد (نقد)، حالي (فی الحاله او فوراً اداء کېدونکی)، ﴿أَجّلَه﴾ د تفعيل ماضي ده: نېټه ټاکل (ميعاد مقرر کول)، مودت ټاکل، ﴿أَجَل﴾ ټاکل سوی مودت، ميعاد، نېټه، ﴿مؤجّل﴾ د کوم شي لپاره چي ميعاد (مودت) ټاکل سوی وي، پور، قرض، ﴿تيسير﴾ د تفعيل مصدر دی: آساني کول، ﴿إبراء﴾ د افعال مصدر دی: بري کول، معافول، ﴿متفاحشة﴾ د تفاعل مؤنث فاعل دی: ډېر بنکاره، ډېر زيات، ﴿متقاربة﴾ مخکنی صيغه ده: سره نږدې، قريب الفهم، مراد ځني لږ او معمولي (جهالت يسيره) دی، ﴿هبوب﴾ هوا چلېدل (بادرا الوتل)، ﴿حصاد﴾ لو کول، فصل رېبل، ﴿دياس﴾ غوبل کول (په غوايانو درمند [را تول سوي غنم] ميده کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د نغد ثمن په عوض کي شی خرڅ کړي، بيا هغه سړی (بائع) د ثمن اداء کولو لپاره يو ميعاد (نېټه) وټاکي، نو د دې دوه صورتونه دي: ميعاد به معلوم

وي. یا به مجهول وي. که چیري میعاد معلوم وي نو دا میعاد ټاکل جائز دي. همدا د امام مالک رحمه الله قول دی. او امام زفر او امام شافعي رحمهما الله فرمایي چي د میعاد په ټاکلو سره ثمن دین نه ګرځي که څه هم میعاد معلوم وي. نو د دوی په نیز بائع تر میعاد ټاکلو وروسته هم فوراً د ثمن مطالبه کولای سي (یعني له میعاد پوره کېدلو څخه مخکي هم هغه ته د ثمن د مطالبه کولو اختیار سته).

**د امام زفر او امام شافعي دلیل**: دا دی چي ثمن د مشتري پر ذمه دین وي. او دین پر قرض قیاس کړی سوی دی. یعني څرنګه چي د میعاد ټاکلو باوجود قرض نه مؤجل کیږي. همداسي به دین هم نه مؤجل کیږي. (د دین او قرض په مینځ کي فرق به د را روان عبارت په لغاتو کي ذکر سي).

**زموږ دلیل**: دا دی چي د بائع له طرفه د ثمن اداء کولو لپاره میعاد ټاکل داسي دي لکه د میعاد پوره کېدلو تر وخته پوري مشتري د ثمن له مطالبې څخه بري کول. او بائع ته دا اختیار هم سته چي بالکل له ثمن څخه مشتري بري کړي نو دا اختیار به هغه ته په درجه اولی وي چي تر یو ټاکلي وخت پوري مشتري د ثمن له مطالبې څخه بري کړي.

او که چیري میعاد مجهول وي نو د دې هم دوه صورتونه دي: جهالت به فاحشه (زیات) وي. یا به یسیره (معمولي) وي. که چیري جهالت فاحشه وي. مثلاً د ثمن اداء کولو لپاره بائع د هوا چلېدلو یا باران اوربدلو وخت میعاد وټاکي. نو دا جائز نه دي. یعني دغه میعاد معتبر نه دی بلکي بائع ته به هر وخت د مطالبه کولو اختیار وي. او که چیري جهالت یسیره وي. مثلاً د ثمن اداء کولو لپاره د لو یا غوبل وخت میعاد وټاکي. نو دا جائز دي. یعني د دغه میعاد تر پوره کېدلو مخکي به بائع ته د مطالبه کولو اختیار نه وي: دلیل دا دی چي تر بیع کولو وروسته ثمن مؤجل کول د کفالې په درجه کي دي. او مخکي ذکر سوه چي کفاله د جهالت یسیره په صورت کي صحیح کیږي لیکن د جهالت فاحشه په صورت کي نه صحیح کیږي: نو همداسي به د ثمن دین په جهالت یسیره سره مؤجل کول صحیح وي لیکن په جهالت فاحشه سره مؤجل کول به صحیح نه وي.

او که چیري په بیع کي اجل (میعاد) شرط ګرځول سوی وي. نو بیع د جهالت فاحشه او جهالت یسیره په دواړو صورتونو کي فاسدیږي. د دې تفصیل مخکي تېر سو.

## مدیون او مقروض ته د مهلت ورکولو (تأجیل) احکام

قَالَ: وَكُلُّ دَيْنٍ حَالٍّ إِذَا أَجَّلَهُ صَاحِبُهُ او هر حالي دین چي کله صاحبُ الدَین هغه مؤجل کړي صَارَ مُؤَجَّلًا نو هغه مؤجل ګرځي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی إِلَّا الْقَرْضَ فَإِنَّ تَأْجِيلَهُ لَا يَصِحُّ لیکن د قرض مؤجل کول صحیح نه دي لِأَنَّهُ إِعَارَةٌ وَصِلَةٌ فِي الِابْتِدَاءِ ځکه چي قرض په ابتداء کي اعاره او تبرع ده حَتَّى يَصِحَّ بِلَفْظَةِ الْإِعَارَةِ همدا وجه ده چي هغه د اعاره په لفظ

سره صحیح کیږي وَلَا يَمْلِكُهُ مَنْ لَا يَمْلِكُ التَّبَرُّعَ او [همدا وجه ده] چې څوک د تبرع ملکیت [اختیار] نه لري هغه د قرض ملکیت هم نه لري كَالْوَصِيِّ وَالصَّبِيِّ لکه وصي او کوچنی وَمُعَاوَضَةٌ فِي الِانْتِهَاءِ او قرض د انتهاء په اعتبار سره معاوضه ده فَعَلَى اعْتِبَارِ الِابْتِدَاءِ لَا يَلْزَمُ التَّأْجِيلُ فِيهِ نو د ابتداء په اعتبار کولو سره په هغه کې میعاد نه لازمیږي كَمَا فِي الْإِعَارَةِ لکه په اعاره کې [چې نه لازمیږي] إِذْ لَا جَبْرَ فِي التَّبَرُّعِ ځکه چې په تبرع کې هیڅ جبر نسته وَعَلَى اعْتِبَارِ الِانْتِهَاءِ لَا يَصِحُّ او د انتهاء په اعتبار کولو سره [په هغه کې] میعاد نه صحیح کیږي لِأَنَّهُ يَصِيرُ بَيْعَ الدَّرَاهِمِ بِالدَّرَاهِمِ نَسِيئَةً ځکه چې [په دې صورت کې] هغه د دراهمو بیع د دراهمو په عوض کې په پور [قرض] سره ګرځي وَهُوَ رِبًا او دا ربوا ده وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصَى أَنْ يُقْرَضَ مِنْ مَالِهِ أَلْفَ دِرْهَمٍ فُلَانًا إِلَى سَنَةٍ او دا حکم د هغه صورت په خلاف دی کله چې [یو څوک] دا وصیت وکړي چې د هغه له مال څخه دې فلانکي ته د یوه کال لپاره زر درهمه په قرض ورکول سي حَيْثُ يَلْزَمُ الْوَرَثَةَ مِنْ ثُلُثِهِ أَنْ يُقْرِضُوهُ وَلَا يُطَالِبُوهُ قَبْلَ الْمُدَّةِ ځکه [په دې صورت کې] پر وارثانو لازم دي چې د هغه د مال له دریمي حصې څخه فلانکي ته قرض ورکړي او له مودت [میعاد] څخه مخکې د هغه مطالبه نه وکړي لِأَنَّهُ وَصِيَّةٌ بِالتَّبَرُّعِ ځکه چې دا د تبرع کولو [احسان کولو] وصیت دی بِمَنْزِلَةِ الْوَصِيَّةِ بِالْخِدْمَةِ وَالسُّكْنَى لکه د غلام د خدمت وصیت او په ځای کې د اوسېدلو وصیت [چې د تبرع وصیت دی] فَيَلْزَمُ حَقًّا لِلْمُوصِي نو ځکه به دا د وصیت کوونکي [مړي] د حق په وجه لازم وي.

**اللغات:** ﴿دَيْن﴾ په عربي ژبه کې د قرض او دَين په مینځ کې فرق سته او هغه دا دی چې قرض هغه مال ته وایي چې انسان یې له خپل مال څخه جلا کړي بل چا ته یې (په قرضِ حسنه) ورکړي، او دَین هغه مال ته وایي کوم چې پر ذمه واجب سي، برابره ده د بیع کولو په وجه واجب سي یا د یو شي د هلاکولو په وجه (مطلب دا چې د رانیولو په وجه یا د یو شي د هلاکولو او ضایع کولو په وجه چې کومې پیسې د انسان پر ذمه واجب سي. هغه ته "دَین" وایي. او که څوک چا ته په قرضِ حسنه پیسې ورکړي. نو دې ته "قرض" وایي. قرض داسې دی لکه پر یو چا احسان کول. او دا خبره هم په یاد لرئ! چې په دَین کې میعاد تاکل کېدای سي. لیکن په قرض کې میعاد نه سي تاکل کېدای. یعني که بائع پر یو چا یو شی خرڅ کړي او مشتري بائع ته ووایي چې په یوه میاشت کې پیسې درکوم. نو اوس بائع تر یوې میاشتې مخکې د پیسو مطالبه نه سي کولای. او که زید مثلاً یو چا ته سل درهمه په قرضِ حسنه ورکړي او ووایي چې یوه میاشت وروسته دا قرض در څخه غوارم. نو بیا هم زید فوراً د

قرض مطالبه کولای سي)، په پښتو ژبه کي د هر ډول پور لپاره د قرض او پور الفاظ استعمالیږي.

﴿نسیئةً﴾ په تأخیر سره یعني په پور. ﴿تأجیل﴾ د تفعیل مصدر دی: میعاد (میاد) ټاکل، مودت ټاکل. ﴿إعارة﴾ د افعال مصدر دی: عاریتاً ورکول (یعني یو څوک خواست وکړي چي دا شی ما ته امانتاً او په قرض حسنه یو څو وخت راکړه زما ضرورت پکار دی، نو که هغه ته شی ورکول سي نو دې ته "إعاره" او "عاریتاً ورکول" وایي).

**تشریح: مسئله:** دا ده چي هر هغه "دَین" چي اداء کول یې في الحاله واجب وي، که چیري په هغه دَین کي صاحبُ الدَّین (د دَین مالک) د مدیون لپاره میعاد و ټاکي نو هغه دَین مؤجل ګرځي.

دلیل مخکي تېر سو چي دَین د صاحبُ الدَّین حق دی هغه خپل حق ساقطولای هم سي او د مدیون سره د ښه کولو لپاره د دَین مطالبه مؤخر کولای هم سي. لېکن که چیري څوک د "قرض" لپاره میعاد و ټاکي نو زموږ په نېز دا صحیح نه دي، بلکي تر میعاد ټاکلو وروسته هم صاحبُ القرض له قرضدار څخه فوراً مطالبه کولای سي، حاصل دا چي که په قرض کي میعاد و ټاکل سي نو زموږ په نېز قرض صحیح کیږي او میعاد باطلیږي. لېکن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز په قرض کي میعاد ټاکل صحیح دي.

د امام مالک رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي قرض د قرضدار (پور وړي) پر ذمه واجبیږي لکه څرنګه چي نور دُیون واجبیږي، نو څرنګه چي په نورو دُیون کي میعاد ټاکل صحیح دي، همداسي به په قرض کي میعاد ټاکل هم صحیح وي.

زموږ دلیل دا دی چي قرض خو ابتداءً اعاره او تبرّع (احسان) دی (یعني قرض د ابتداء په اعتبار سره د تبرّع له قبیلې څخه دی یعني یو چا ته د احسان او عاریت په توګه شی ورکول)، همدا وجه ده که قرض ورکوونکی د "أَقْرَضْتُكَ هٰذِهِ الْمِائَةَ" پر ځای "أَعَرْتُكَ هٰذِهِ الْمِائَةَ" ووایي نو صحیح کیږي، همدارنګه کوم کسان چي د تبرّعاتو اختیار نه لري هغوی ته د قرض ورکولو اختیار هم نسته، لکه نابالغه کوچني، وصي، غلام، مکاتب. نو ثابته سوه چي قرض له تبرّعاتو څخه دی. او انتهاءً قرض معاوضه ده (یعني قرض د انتهاء په اعتبار سره د معاوضې معامله ده)، ځکه چي انسان په دې وجه یو چا ته قرض ورکوي چي وروسته له هغه څخه د قرض بدل واخلي، له همدې کبله پر قرض اخیستونکي بعینه د هغه شي واپس کول واجب نه دي کوم چي هغه له صاحبُ القرض (قرض ورکوونکي) څخه اخیستی وي بلکي د هغه مثل واپس کول پر واجب دي، له دې څخه معلومه سوه چي قرض د انتهاء په اعتبار سره معاوضه ده.

نو د قرض د ابتدائي حالت په اعتبار کولو سره خو به په قرض کي میعاد نه لازمیږي، لکه په اعاره کي چي میعاد نه لازمیږي، یعني که خالد و زید ته خپل یو شی عاریتاً ورکړي، لېکن بیا خالد (مُعیر) وغواړي چي له زید څخه خپل شی فوراً واپس واخلي، نو هغه فوراً (سمدستي) خپل شی واپس ځني اخیستلای سي؛ ځکه چي اعاره (عاریتاً ورکول) تبرّع ده او په تبرعاتو کي جبر نسته، لهذا که میعاد لازم کړل سي نو دا به پر

مُعیر (خالد) جبروَي، ځکه د میعاد لازمولو په صورت کې به مُعیر ته له میعاد پوره کېدلو څخه مخکې د مطالبه کولو اجازت نه وي، لهٰذا چې څرنګه په اعاره کې میعاد نه لازمیږي همداسې به په قرض کې هم میعاد نه لازمیږي (ځکه چې قرض هم تبرّع ده).

او د انتهائي حالت په اعتبار کولو سره به میعاد ټاکل صحیح نه وي؛ ځکه چې د انتهاء په اعتبار سره د میعاد ټاکلو په صورت کې به قرض "بیعُ الدراهم بالدراهم نسیئةً" وګرځي، او دراهم د دراهمو په عوض کې په پور سره خرڅول ربوا ده که څه هم په دراهموُ کې کمي و زیاتوب نه وسي (ځکه په حدیث کې راغلي چې کله د دواړو شیانو جنس او قدر سره یو وي نو هغوی به "یدًا بید" سره ورکول کیږي، نه "نسیئةً")، او د ربوا لازمېدل د قرض د فساد تقاضا کوي، حال دا چې په شریعت کې قرض ورکول مستحب او مندوب دي او د قرض پر جواز د امت مُسلمه اجماع ده، نو ځکه موږ د قرض د ابتدائي حالت اعتبار وکړی او د میعاد لازمېدلو څخه بغیر مو هغه جائز وګرځوی.

وهٰذا بخلاف إلخ: دا د یو مقدّر سوال جواب دی، سوال دا دی چې ستاسې دا خبره چې "په قرض کې په میعاد ټاکلو سره میعاد نه لازمیږي" موږ نه تسلیمو، ځکه که زید (مثلاً) په مرضُ الموت کې خپلو وارثانو ته دا وصیت وکړي چې زما تر مرګ وروسته خالد ته زما له مال څخه سل درهمه د یوه کال پر وعده په قرض ورکړئ!، نو دا قرض مؤجل کیږي او د هغه میعاد لازمیږي، یعني د زید وارثان به د زید د مال له ثُلث څخه خالد ته قرض ورکوي او تر یوه کاله پوري به د دواپسی مطالبه نه ځني کوي. له دې څخه دا معلومه سوه چې په قرض کې د میعاد په ټاکلو سره میعاد لازمیږي، حال دا چې تاسو وویل چې میعاد نه لازمیږي، نو د دې په جواب کې فرمایي چې زید د یو احسان او تبرّع وصیت کړی دی او په وصیت کې هغه شی لازمیږي کوم چې په غیرِ وصیت کې نه لازمیږي، نو ځکه د قرض ورکولو په وصیت کې به د میعاد په ټاکلو سره میعاد لازمیږي که څه هم په غیرِ وصیت کې میعاد نه لازمیږي، د دې مثال داسې دی لکه یو څوک چې دا وصیت وکړي چې زما تر مرګ وروسته به زما د غه غلام د فلانکي سړي خدمت کوي یا فلانکی سړی به زما تر مرګ وروسته زما په کور کې اوسیږي، نو دا وصیت د هغه (وصیت کونکي) په حق کې لازمیږي. او لکه یو څوک چې د بل چا لپاره د خپل باغ د میوې وصیت وکړي (چې زما تر مرګ وروسته زما د باغ میوه د فلانکي ده) نو دا وصیت صحیح دی او لازمیږي که څه هم د وصیت په وخت کې میوه نه وي، همداسې به د قرض ورکولو په وصیت کې هم میعاد لازمیږي او د مړي (زید) وارثانو لره به تر ټاکل سوي میعاد (یوه کال) مخکې د مؤصی لهٗ (خالد) څخه د قرض د مطالبې اختیار نه وي.

حبیب الرحمٰن مدني

عفی الله عنه وعن والدیه



# بَابُ الرِّبَوا

(دا) باب د سود (داحکامو په بیان کي) دی

**تشریح:** مخکي تر دې صاحب د کتاب هغه بیوع بیان کړل کوم چي جائز دي او الله تعالیٰ په دغه آیت ﴿وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللهِ﴾ سره د هغوی د کولو حکم کړی دی. اوس له دې ځایه د بیع هغه بابونه بیانوي کوم چي ناجائز دي او الله تعالیٰ د ﴿یَآ اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا لَا تَأْکُلُوا الرِّبٰوا﴾ او ﴿حَرَّمَ الرِّبٰوا﴾ په آیتونو سره د هغوی د نه کولو او له هغوی څخه د ځان ساتلو حکم کړی دی. او څرنګه چي امر پر نهي مقدم وي، نو ځکه یې مخکي ابوابُ البیوع بیان کړل او تر هغه وروسته اوس بابُ الربوا بیانوي.

او دا باب یې ځکه تر بابُ المرابحة وروسته متصلاً بیان کړی دی چي څرنګه په مرابحه کي اضافه او زیاتوب کیږي. همداسي په ربوا کي هم زیاتوب کیږي. فرق یې صرف دا دی چي د مرابحې زیاتوب حلال او جائز دی او د ربوا زیاتوب حرام او ناجائز دی. او حلت پر حرمت مخکي وي. نو ځکه یې تر باب المرابحه وروسته بابُ الربوا بیان کړی دی (ځکه چي مرابحه د حلت سره متعلق دی. او ربوا [سود] د حرمت سره متعلق دی).

**د ربوا لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د "رِبٰوا" لغوي معنیٰ ده: زیاتوب، اضافه، وده او نما. ربَا یَرْبُوْا رِبٰوا: زیاتېدل، اضافه کېدل.

او د ربوا اصطلاحي معنیٰ ده: "هُوَ فَضْلٌ خَالٍ عَنِ الْعِوَضِ الْمَشْرُوْطِ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَیْنِ فِي الْبَیْعِ" (یعني ربوا هغه زیاتوب ته وایي کوم چي له عوض څخه خالي وي او په بیع کي د یوه عاقد لپاره شرط کړل سوی وي).

په قرآن او حدیث کي په ډېر ټینګار سره ربوا حرامه ګرځول سوې ده او مسلمان ته له هغه څخه د ځان ساتلو او منع کېدلو ټینګ حکم او تلقین سوی دی.

## ربوا په کومو شیانو کي حرامه ده؟ د ربوا علت

قَالَ: اَلرِّبَا مُحَرَّمٌ فِيْ كُلِّ مَكِيْلٍ أَوْ مَوْزُوْنٍ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمایي: ربوا [سود] په هر مکیلي یا موزوني شي کي حرام دی إِذَا بِيْعَ بِجِنْسِهِ مُتَفَاضِلًا [په دې شرط] کله چي هغه د خپل جنس په عوض کي په زیاتوب سره خرڅ کړل سي فَالْعِلَّةُ عِنْدَنَا الْكَيْلُ مَعَ الْجِنْسِ وَالْوَزْنُ مَعَ الْجِنْسِ نو [د ربوا]

علت زموږ په نيز کيل مع الجنس دی يا وزن مع الجنس دی قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: وَيُقَالُ الْقَدْرُ مَعَ الْجِنْسِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ اللّٰه فرمايي: چي قدر مع الجنس هم ويل کيږي [يعني داسي هم ويل کېدای سي چي د ربوا علت "قدر مع الجنس" دی] وَهُوَ أَشْمَلُ او دا [تعريف] زيات شامل دی وَالْأَصْلُ فِيهِ الْحَدِيثُ الْمَشْهُوْرُ او اصل په دغه باب کي مشهور حديث دی [يعني کوم چي د سود په هکله مشهور دی] وَهُوَ قَوْلُهُ ﷺ [1]: «اَلْحِنْطَةُ بِالْحِنْطَةِ مِثْلاً بِمِثْلٍ يَدًا بِيَدٍ وَالْفَضْلُ رِبًا» او هغه د نبي ﷺ دا فرمان دی: "غنم په غنمو سره، برابر برابر، لاس په لاس او زياتوب سود دی" وَعَدَّ الْأَشْيَاءَ السِّتَّةَ: اَلْحِنْطَةَ وَالشَّعِيْرَ وَالتَّمْرَ وَالْمِلْحَ وَالذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ عَلٰی هٰذَا الْمِثَالِ او نبي کريم ﷺ [په دې حديث کي] شپږ شيان شمارلي [ذکر کړي] دي: ① غنم ② اوربشي ③ خرما ④ مالګه ⑤ سره زر ⑥ سپين زر، پر همدغه مثال [يعني مثلاً بمثلٍ او يدًا بيدٍ] وَيُرْوٰی بِرِوَايَتَيْنِ: بِالرَّفْعِ مِثْلٌ وَبِالنَّصْبِ مِثْلاً او دا حديث په دوو روايتونو سره نقل سوی دی [يعني دوه ډوله روايت سوی دی]: ① د "مثل" په رفع سره، ② او د "مثلاً" په نصب سره وَمَعْنَی الْأَوَّلِ: بَيْعُ التَّمْرِ د اول روايت معنیٰ [تقدير] دا دی: بيعُ التمرِ وَمَعْنَی الثَّانِي: بِيْعُوا التَّمْرَ او د دويم روايت معنیٰ [تقدير] دی: بيعوا التمر.

**اللغات:** ﴿رِبَوا﴾ او رِبًا: سود. ﴿مکيل﴾ مکيلي شی (کيلي شی). هغه شی کوم چي په پېمانه سره خرڅيږي، لکه غنم او داسي نور (څکه غنم او داسي نور به پخوا په پېمانه سره خرڅېدل). ﴿موزون﴾ موزوني شی، هغه شی کوم چي په وزن (تول) سره خرڅيږي. ﴿متفاضلا﴾ د تفاعل له بابه د فاعل صيغه ده: د زياتوب سره (په کمي بيشي سره. په زياتوب او کمي سره). ﴿مثلا بمثل﴾ په پوره توګه سره برابر. بالکل سره يو ډول (برابر سرابر). ﴿يدا بيد﴾ لاس په لاس (يعني پر يوه ځای او يوه مجلس کي پر مبيع او ثمن قبضه کول).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي ربوا په هر مکيلي او موزوني شي کي حرامه ده، په دې شرط چي هغه د خپل جنس په عوض کي په کمي و زياتوب سره خرڅ کړل سي. نو زموږ په نيز د ربوا علت "کيل مع الجنس" او "وزن مع الجنس" دی (په لنډه توګه دا چي زموږ په نيز د ربوا علت "قدر مع الجنس" دی. يعني قدر او جنس). مطلب دا چي کوم دوه شيان سره تبادله کيږي هغه به دواړه مکيلي وي يا به موزوني

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجة في كتاب التجارات، باب الصرف وما لا يجوز متفاضلاً، حديث رقم: ۲۲۵۵، ۲۲۵۴.

وي او د هغوی دواړو جنس به يو وي، لېکن که دواړه شيان موزوني وي خو جنس يې يو نه وي لکه سره او سپين زره سره تبادله کول، يا دواړه مکيلي وي خو جنس يې يو نه وي لکه غنم او اوربشي، نو بيا په هغه دواړو کي ربوا او فضل (زياتوب) حرام نه دی.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي لفظ د "قدر" کَيل او وزن دواړو ته شامليږي نو ځکه داسي هم ويل کيږي چي د ربوا علت "قدر مع الجنس" دئ (يعني زموږ په نيز د ربوا علت دوه شيان دي: قدر او جنس). او په دې باره کي (چي قدر مع الجنس د ربوا علت دی) اصل "حديثِ مشهور" دی، دا حديث شپاړس (۱۶) صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ روايت کړی دی، او پـه عبارت کي صاحب د هدايې د دې حديث صرف يوه جمله ذکر کړې ده، په ترمذي شريف کي د عباده ابن صامت په حواله سره پوره حديث داسي ذکر سوی دی: قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ ﷺ: اَلذَّهَبَ بِالذَّهَبِ مثلاً بِمَثَلٍ والْفِضَّةَ بِالْفِضَّةِ مثلاً بِمَثَلٍ، والتَّمْرَ بِالتَّمْرِ مثلاً بِمَثَلٍ، والْبُرَّ بِالْبُرِّ مثلاً بِمَثَلٍ، والْمِلْحَ بِالْمِلْحِ مثلاً بِمَثَلٍ، والشَّعِيْرَ بِالشَّعِيْرِ مثلاً بِمَثَلٍ، فَمَنْ زَادَ أَوِ اسْتَزَادَ فَقَدْ أَرْبٰى. بِيْعُوا الْبُرَّ بِالشَّعِيْرِ كَيْفَ شِئْتُمْ يَدًا بِيَدٍ. او دابو سعيد خدري ﷺ په روايت کي تر هر "مَثَلًا بِمَثَلٍ" وروسته "يَدًا بِيَدٍ" او "وَالْفَضْلُ رِبًوا" ذکر سوي دي، يعني داسي ذکر سوي دي: الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ مثلاً بِمَثَلٍ يَدًا بِيَدٍ وَالْفَضْلُ رِبًوا، والْفِضَّةَ بِالْفِضَّةِ مثلاً بِمَثَلٍ يَدًا بِيَدٍ وَالْفَضْلُ رِبًوا... إلخ. (د "مثل" لفظ دوه ډوله ويل کېدای سي: مِثْل، مَثَل. په دغه حديث کي شپږ شيان [کلماتِ سته] ذکر سوي دي: الذهب، الفضة، التمر، البر، الملح، الشعير).

ويُروی بـروايتين إلخ: پـورتنی حـديث د اعـراب پـه اعتبـار سره دوه ډوله روايـت سوی دی، ① يو د "کلماتِ سته" او د "مِثْل" په رفع سره، په دې صورت کي به مضاف مقدر وي هغه به مبتداء وي او "مثل" به خبر وي، تقدير د عبارت به داسي وي: "بَيْعُ الـذَّهَبِ بِالذَّهَبِ مَثَلٌ بِمَثَلٍ... إلخ". بيعُ الذَّهَبِ به مبتداء وي او مَثَلٌ به د هغه خبر وي. او پـه بل روايـت کـي دغه کلمات او "مِثْل" منصوب دي، په دې صورت کي به فعل امر "بِيْعُوْا" مقدر وي، تقدير د عبارت به داسي وي: بِيْعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ مثلاً بِمَثَلٍ"، دا کلمات به د "بِيعوا" د مفعول کېدلو په وجه منصوب وي، او لفظ د "مَثَلًا" به د حال کېدلو په وجه منصوب وي.

په حديث کي له "مثلاً بمثلٍ" څخه مراد دا دي چي دواړه شيان (عوضين) به په کَيل يا وزن کي سره برابر وي، او له "يدًا بيدٍ" څخه مراد دا دي چي پر دواړو شيانو به د عقد په مجلس کي قبضه

کيږي. حاصل دا چي د اتحادُ القدر او اتحادُ الجنس په صورت کي دا شرط دي چي دواړه شيان (عوضين) به په کَيل يا وزن کي هم سره برابر وي او پر هغوی به پر يوه ځای (لاس په لاس) قبضه هم کيږي.

## د ربوا په علت کي د شوافعو او احنافو اختلاف

وَالْحُكْمُ مَعْلُوْلٌ بِإِجْمَاعِ الْقَائِسِيْنَ او [په حديث کي ذکر سوی] حکم د ټولو قياس کونکو [مجتهدينو] په اجماع سره معلول دی [يعني پر علت مبني دی] لٰكِنَّ الْعِلَّةَ عِنْدَنَا مَا ذَكَرْنَاهُ ليکن زموږ په نيز علت هغه دی کوم چي موږ ذکر کړی وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ الطَّعْمُ فِي الْمَطْعُوْمَاتِ وَالثَّمَنِيَّةُ فِي الْأَثْمَانِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په مطعوماتو کي طعم او په اثمانو کي ثمن کېدل دي وَالْجِنْسِيَّةُ شَرْطٌ وَالْمُسَاوَاةُ مَخْلَصٌ او د [هغه په نيز] جنسيت شرط دی او برابري [له ربوا څخه] د خلاصون ذريعه ده وَالْأَصْلُ هُوَ الْحُرْمَةُ عِنْدَهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز حرمت اصل دی لِأَنَّهُ نَصَّ عَلٰى شَرْطَيْنِ: التَّقَابُضِ وَالْمُمَاثَلَةِ ځکه نبي کريم ﷺ د دوو شرطونو صراحت کړی دی: قبضه، او مماثلت [برابري] وَكُلُّ ذٰلِكَ يُشْعِرُ بِالْعِزَّةِ وَالْخَطَرِ او [له دغو دواړو څخه] هر شرط د عزت او اهميت [احترام] خبر ورکوي كَاشْتِرَاطِ الشَّهَادَةِ فِي النِّكَاحِ لکه په نکاح کي چي د ګواهي شرط کېدل [د ملک بضع د عزت او اهميت خبر ورکوي] فَيُعَلَّلُ بِعِلَّةٍ تُنَاسِبُ إِظْهَارَ الْخَطَرِ وَالْعِزَّةِ نو ځکه [ربوا] به په داسي علت سره معلول کيږي کوم چي د عزت او اهميت ښکاره کولو لپاره مناسب وي وَهُوَ الطَّعْمُ لِبَقَاءِ الْإِنْسَانِ بِهِ او هغه طعم دی [په مطعوماتو کي] ځکه چي د طعم سره د انسان بقاء متعلق ده وَالثَّمَنِيَّةُ لِبَقَاءِ الْأَمْوَالِ الَّتِيْ هِيَ مَنَاطُ الْمَصَالِحِ بِهَا او ثمنيت دی [په اثمانو کي] ځکه چي د ثمنيت سره د هغه اموالو بقاء متعلق ده چي پر هغوی [د انساني ژوند] د مصلحتونو دارومدار دی وَلَا أَثَرَ لِلْجِنْسِيَّةِ فِيْ ذٰلِكَ او جنسيت لره په دې کي هيڅ دخل نسته فَجَعَلْنَاهُ شَرْطًا نو ځکه موږ [امام شافعي] جنس شرط وګرځوی [علت مونه وګرځوی] وَالْحُكْمُ قَدْ يَدُوْرُ مَعَ الشَّرْطِ او حکم ځيني وخت د شرط سره دائر کيږي [يعني د حکم مدار پر شرط وي، پر علت نه وي].

**اللغات**: ﴿معلول﴾ خلاف القياس د تفعيل له بابه استعماليږي: علت بيان کړی سوی، هغه شي چي وجه او علت يې بيان کړی سي، (پر علت مبني)، ﴿قائسين﴾ د ضرب له بابه د جمع مذکر فاعل صيغه ده: قياس کونکي، مراد ځني مجتهدين امامان دي، ﴿طعم﴾ خوراک والی، د خوراک شی کېدل، ﴿ثمنية﴾ ثمن والي، ثمن کېدل، ﴿مطعومات﴾ د خوراک شيان (تفصيلي معنی به يې په تشريح کي ذکر سي)، ﴿أثمان﴾ نغدي، سکې، سره او سپين زر، ﴿خطر﴾ اهميت (ارزښت)، حيثيت (د اهميت والا شی، ارزښتناکه شی)، ﴿مناط﴾ په لغت کي هغه شي ته وايي چي يو شی په راځړول سوی وي، مراد ځني مدار (دار ومدار) دی، ﴿الحکم قد يدور مع الشرط﴾ د دې جملې آسانه مطلب دا دی چي ځيني وخت شرط دومره اهم وي چي د ټوله حکم مدار پر هغه وي، او پر علت نه وي، نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز جنس هم دغه ډول دی چي که د دواړو شيانو (عوضينو) جنس سره يو وي نو ربوا حرامه ده، کنې حرامه نه ده. (أثمار الهدايه)

**تشريح**: فرمايي د مخکني عبارت په حديث "الذهب بالذهب... إلخ" کي چي کوم د ربوا د حرمت حکم بيان سوی دی، هغه حکم مطلق نه دی، بلکي ټوله مجتهدين امامان او فقهاء پر دې خبره متفق دي چي دا حکم په علت سره معلول دی، که چيري علت موجود سي نو دا حکم به هم موجوديږي او که علت موجود نه سي نو حکم به هم نه موجوديږي. (د قائسين په قيد سره يې اصحابِ ظواهر ايستلي دي. ځکه هغوی وايي چي د ربوا لپاره هيڅ علت نسته، بلکي په حديث کي چي کوم شپږ شيان ذکر دي. صرف په هغوی کي ربوا حرامه ده، لېکن مجتهدين امامان پر دې خبره اتفاق کړی دی چي دا حکم په علت سره معلول دی).

خو د دې علت په تعيين کي د امامانو اختلاف دی، زموږ په نېز د ربوا علت "قدر مع الجنس" دی، لهذا په کومو شيانو کي چي دا علت موجود سي هلته به ربوا ثابتيږي، مثلاً مالګه که د مالګي سره تبادله کړل سي، يا سيميټ د سيميټو سره، يا چونه د چونې سره، يا اوسپنه د اوسپني سره تبادله کړل سي نو په هغوی کي فضل او زياتوب کولو ته ربوا ووايي؛ ځکه چي دلته دواړه عوضونه کَيلي يا وزني دي او د دواړو جنس هم يو دی.

او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د ربوا علت په مطعوماتو کي "طعم" دی او په اثمانو کي "ثمنيت" (ثمن کېدل) دي، نو د هغه په نېز په هر هغه شي کي ربوا حرامه ده چي په هغه کي طعم يا ثمن کېدل موجود سي، له مطعوماتو څخه مراد هغه شيان دي کوم چي په عامه توګه خوړل کيږي، برابره ده هغه د سالن او کتنغ په توګه وي، يا د تلذذ او تفکه په توګه وي، د دې تعريف پر بنياد په

مطعوماتو کي مېوې، غله، سبزیجات او داسي نور ټوله داخلېږي. او له اثمانو څخه مراد هغه شیان دي کوم چي په پیدایشي توګه ثمن وي لکه سره زر او سپین زر یا هغه سکې چي د هغه پر ثمن والي خلګو اتفاق کړی وي لکه مروجه سکې (کلداري، افغاني او داسي نور). لنډه دا چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د ربوا علت په مطعوماتو کي طعم دی او په اثمانو کي ثمن کېدل دي، او د ربوا شرط د جنس متحد کېدل دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په اموال ربوا کي اصل خو حرمت دی لېکن د ربوا له حرمت څخه خلاصونکی (نجات ورکونکی) شی په دواړو عوضونو کي مساوات او برابري ده، یعني که د ربوا علت موجود سي لېکن دواړه عوضونه سره برابر وي نو هغه عقد (بیع) نه حرامېږي، بلکي مباح او جائز دی.

**د امام شافعي دلیل**: په دې هکله (چي طعم او ثمنیت د ربوا علت دی) د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي رسول الله ﷺ د اموالِ ربویه په بیع کولو کي د دوو شرطونو صراحت کړی دی: مثلاً بمثلٍ او یدًا بیدٍ، یعني یو دا چي دواړه عوضونه به سره مساوي او برابر وي. او بل دا چي عاقدین به پر دواړو عوضونو یوځای (لاس په لاس) قبضه کوي . دا دواړه خبري ځکه شرط دي چي د نصب په صورت کي دا دواړه لفظونه (مثلًا بمثلٍ او یدًا بیدٍ) په ترکیب کي حال واقع سوي دي، او حال شرط وي. نو ځکه به دا دواړي خبري شرط وي. او د رفع د روایت په صورت کي به دا ویل کېږي چي دا دواړه لفظونه یعني "مثلٌ بمثلٍ او یدٌ بیدٍ" که څه هم په لفظ کي مرفوع دي لېکن د معنیٰ په اعتبار سره یې نصب معتبر دی او له نصب څخه د رفع وطرف ته صرف په دې وجه عدول سوی دی چي د جملهٔ اسمیه کېدلو په وجه هغه پر دوام او ثبوت دلالت وکړي، لهذا کله چي نصب (حالیت) معتبر دی نو ځکه دا دواړي خبري یعني مماثلت او تقابض به شرط وي. لنډه دا چي په حدیث کي د مماثلت او تقابض شرط کېدل په صراحت سره وارد سوي دي، او په دغه دواړو شرطونو کي هر یو شرط پر دې خبره دلالت کوي چي د کوم مال لپاره دا شرطونه لګول سوي وي هغه مال د عزت او اهمیت قابل دی (یعني د هر مال په باره کي چي دا شرطونه لګول سوي دي چي هغه به لاس په لاس سره ورکول کېږي او دواړه عوضونه به سره مساوي وي. دا د هغه مال پر عزت او ارزښت دلالت کوي). لکه د نکاح لپاره د دوو ګواهانو شهادت (ګواهي) شرط کېدل او په نورو معاملاتو کي د دوو ګواهانو شهادت نه شرط کېدل پر دې خبره دلالت کوي چي ملک بضع (محل د وطي) د عزت او اهمیت قابل دی. نو د مال عزیز او محترم کېدل ثابت سنوه. او کله چي مال عزیز او محترم دی نو ځکه د ربوا علت یو داسي شی ګرځول مناسب دي کوم چي د مال عزت او اهمیت ښکاره کړي، او کله چي موږ (امام شافعي) په ژور نظر سره وکتل نو را ته معلومه سوه چي

طعم او ثمنيت دواړه د مال د عزت او اهميت ښکاره کونکي شيان دي. طعم خو ځکه د مال عزت او اهميت ښکاره کوي چې په طعم سره د انسان ژوند باقي پاتيږي. ځکه که انسان ته مطعومات حاصل نه سي نو انسان به د لوږې څخه مړ سي او انساني نسل به تباه سي. او ثمنيت ځکه د مال عزت او اهميت ښکاره کوي چې ثمن د هغو مقاصدو او ضرورياتو د پوره کولو ذريعه ده چې پر هغوی د انسان بقاء موقوفه ده. لهذا کله چې طعم او ثمنيت دواړه د مال عزت او اهميت ښکاره کوي نو ځکه موږ (امام شافعي) په مطعوماتو کي طعم او په اثمانو کي ثمنيت د ربوا علت وګرځوی. او څرنګه چې قدر او جنسيت د مال د عزت او اهميت ښکاره کونکي نه دي. نو ځکه موږ هغه د ربوا علت نه وګرځوی لېکن جنسيت مو د ربوا لپاره شرط وګرځوی. او څرنګه چې حکم د شرط سره وجوداً او عدماً دائر کيږي. نو ځکه که د علت سره جنسيت هم موجود سي نو ربوا (زياتوب) به حرامه وي لېکن که جنسيت موجود نه سي نو ربوا به حرامه نه وي.

## د احنافو دليل

وَلَنَا: أَنَّهُ أَوْجَبَ الْمُمَاثَلَةَ شَرْطًا فِي الْبَيْعِ او زموږ دليل دا دی: چې نبي کريم ﷺ په بيع کي مماثلت د شرط په توګه ذکر کړی دی وَهُوَ الْمَقْصُوْدُ بِسَوْقِهِ تَحْقِيقًا لِمَعْنَى الْبَيْعِ او د بيع د معنیٰ ثابتولو لپاره د حديث شريف د بيان مقصد همدا [مماثلت] دی [يعني د حديث په راوړلو او بيانولو سره مقصود هم مماثلت دی] إِذْ هُوَ يُنْبِئُ عَنِ التَّقَابُلِ ځکه چې لفظ د "بيع" د تقابل [مقابله] خبر ورکوي وَذٰلِكَ بِالتَّمَاثُلِ او تقابل [مقابله] په مماثلت سره راځي أَوْ صِيَانَةً لِأَمْوَالِ النَّاسِ عَنِ التَّوٰى يا [حديث شريف] له هلاکت څخه د خلکو د اموالو د ساتلو لپاره [بيان سوی دی] أَوْ تَتْمِيْمًا لِلْفَائِدَةِ بِاتِّصَالِ التَّسْلِيْمِ بِهِ يا [حديث شريف] د بيع سره د ورسپارلو د متصل کېدلو په ذريعه [د بيع] د فايدې د پوره کولو لپاره [بيان سوی دی] ثُمَّ يَلْزَمُ عِنْدَ فَوْتِهِ حُرْمَةُ الرِّبَا بيا د مماثلت د فوتېدلو په صورت کي به د ربوا حرمت لازميږي وَالْمُمَاثَلَةُ بَيْنَ الشَّيْئَيْنِ بِاعْتِبَارِ الصُّوْرَةِ وَالْمَعْنٰى او مماثلت د دوو شيانو په مينځ کي د صورت او معنیٰ په اعتبار سره وي وَالْمِعْيَارُ يُسَوِّي الذَّاتَ او معيار [پېمانه] په ذات کي برابري راولي وَالْجِنْسِيَّةُ تُسَوِّي الْمَعْنٰى او جنسيت [همجنس کېدل] په معنیٰ کي برابري راولي فَيَظْهَرُ الْفَضْلُ عَلٰى ذٰلِكَ نو ځکه پر دې به زياتوب ښکاره کيږي [يعني نو ځکه د معنیٰ او صورت دواړو په اعتبار سره د

مماثلت په صورت کي به زياتوب (تفاضل) ښکاره کيږي| فَيَتَحَقَّقُ الرِّبَا او ربوا [سود] به ثابتيږي لِأَنَّ الرِّبَا هُوَ الْفَضْلُ الْمُسْتَحَقُّ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ فِي الْمُعَاوَضَةِ الْخَالِي عَنْ عِوَضٍ شُرِطَ فِيهِ ځکه چي ربوا هغه مستحق زياتوب دی کوم چي په معاوضه کي د بائع يا مشتري لپاره وي، له عوض څخه خالي وي او په عقد کي شرط [مشروط] وي وَلَا يُعْتَبَرُ الْوَصْفُ او وصف معتبر نه دی لِأَنَّهُ لَا يُعَدُّ تَفَاوُتًا عُرْفًا ځکه چي وصف په عُرف کي تفاوت نه شمارل کيږي أَوْ لِأَنَّ فِي اعْتِبَارِهِ سَدَّ بَابِ الْبِيَاعَاتِ يا ځکه چي د وصف په اعتبار کولو [معتبر ګڼلو] سره د بيوعو دروازې بنديږي أَوْ لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: « جَيِّدُهَا وَرَدِيئُهَا سَوَاءٌ » يا ځکه چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: چي د اموالو ربويه ښه او بد سره برابر دي وَالطَّعْمُ وَالثَّمَنِيَّةُ مِنْ أَعْظَمِ وُجُوهِ الْمَنَافِعِ او طعم او ثمنيت د منافعو له غټو اسبابو څخه دي [يعني طعم او ثمنيت د منافعو غټ سببونه (ذريعې) دي] وَالسَّبِيلُ فِي مِثْلِهَا الْإِطْلَاقُ بِأَبْلَغِ الْوُجُوهِ او [غوره] لار په داسي شيانو کي په پوره توګه توسع [او آساني] کول دي [يعني په طعم او ثمنيت کي آزادي راوستل او آساني کول پکار دي. نه سختي او تنګي کول] لِشِدَّةِ الِاحْتِيَاجِ إِلَيْهَا ځکه چي د هغوی وطرف ته سخت ضرورت دی دُونَ التَّضْيِيقِ فِيهِ نه په هغوی کي تنګي کول [يعني په هغوی کي تنګي کول پکار نه دي] فَلَا مُعْتَبَرَ بِمَا ذَكَرَهُ نو ځکه کوم څه چي امام شافعي رَحِمَهُ الله ذکر کړه هغه لره اعتبار نسته.

**اللغات**: ﴿سوق﴾ د ضرب مصدر دی: بېول. مراد ځني راوړل او بيانول دي يعني حديث چي د کوم مقصد لپاره راوړل سوی او بيان سوی دی. ﴿ينبئ﴾ د افعال مضارع ده: خبر ورکول. ﴿تَوْی﴾ د سمع مصدر دی. تَوِيَ يَتْوِی تَوًی: هلاکېدل. بربادېدل. ﴿تتميم﴾ د تفعيل مصدر دی: پوره کول. سر ته رسول. ﴿معيار﴾ پيمانه. وزن او کَيل ته معيار وايي. ځکه چي د وزن او کَيل په ذريعه د دوو شيانو معيار او مقدار معلوميږي. ﴿جيّد﴾ ښه. غوره. ﴿رديء﴾ بد. خراب.

**تشريح**: په دغه عبارت کي د دې خبري دليل بيان سوی دی چي زموږ د احنافو په نيز ولي د ربوا علت قدر مع الجنس دی؟. د دليل حاصل دا دی چي رسول الله ﷺ په مخکني حديث کي د "مِثْلاً بِمِثْلٍ"

[1] تخريج: دا حديث په دغه الفاظو سره "غريب" دی او په مسلم شريف کي دې ته ډېر نژدې حديث ذکر سوی دی: (مسلم شريف، باب الصرف وبيع الذهب بالورق نقدا، حديث رقم: ١٥٨٨، ص: ٦٩٣)

په ذریعه په بیع کي مماثلت او برابري شرط ګرځولې ده، ځکه چي "مثلاً بمثلٍ" د نحوي ترکیب په اعتبار سره حال دی او حال شرط وي، نو ځکه د اموال ربویه په بیع کي مماثلت شرط او ضروري دی. او د حدیث په بیان سره مقصود هم دغه دي چي د اموال ربویه په بیع کي مماثلت موجود سي. ځکه چي د حدیث معنیٰ ده: "بیعُ هذه الأشیاء مثلاً بمثلٍ... إلخ" او د "بمثل" باء د الصاق لپاره ده او "بِیعُوا" (صیغه د امر) د وجوب لپاره ده، حالانکي بیع واجب نه ده، بلکي مباح (روا) ده. نو ځکه د امر د صیغې تعلق به د دې حال (مثلاً) سره وي کوم چي شرط دی. نو اوس به یې ترجمه دا وي چي "تاسو دغه شیان د مماثلت په وصف سره خرڅوئ!" یعني خرڅول خو مباح دي لیکن که تاسو هغه خرڅوی نو د مماثلت د شرط رعایت کول ضروري دي.

د هدایې شارحینو علامه بدر الدین او صاحب د عنایې رَحِمَهُمَا الله فرمایلي دي چي د حدیث په بیانولو سره مقصود د مماثلت شرط کېدل په دریو وجهو سره دي (یعني صاحب د هدایې چي دا خبره وکړه چي د حدیث په بیان سره مقصود دا دي چي په بیع کي مماثلت شرط او واجب دی. د دې خبري درې وجهې او درې دلیلونه دي). ①... اوله وجه خو دا ده چي که د دواړو عوضینو په مینځ کي مماثلت او برابري موجوده نه وي نو د بیع معنیٰ نه ثابتیږي او د بیع معنیٰ صرف هغه وخت ثابتیږي کله چي د عوضینو په مینځ کي مماثلت او برابري موجوده وي: ځکه چي بیع "مبادلةُ المال بالمال" ته وایي، او مبادلة د مفاعلې د باب مصدر دی او د مفاعلې د باب خاصه "اشتراک" دی، نو ځکه هغه د دې تقاضا کوي چي په متحد الجنس عوضینو کي به د هر یوه عوض ټوله اجزاء د بل عوض د ټولو اجزاؤ په مقابله کي وي (یعني د احدُ العوضین هر هر جزء به د بل عوض د هر هر جزء په مقابله کي وي)، او دا معنیٰ هغه وخت ثابتیږي کله چي د عوضینو په مینځ کي تماثل او برابري وي، ځکه که یو عوض زائد (زیات) وي او بل عوض کم وي، نو په زائد عوض کي چي کوم مقدار له بل عوض څخه زیات دی هغه به له عوض څخه خالي وي. او کله چي زائد مقدار له عوض څخه خالي دی نو ځکه د تقابل معنیٰ به ثابته نه سي، او کله چي د تقابله معنیٰ ثابته نه سي نو د بیع او معاوضې معنیٰ به هم ثابته نه سي، نو معلومه سوه چي د بیع د معنیٰ ثابتولو لپاره د عوضینو په مینځ کي مماثلت او برابري ضروري ده. ②... دویمه وجه دا ده چي د عوضینو په مینځ کي مماثلت او برابري ځکه شرط ګرځول سوې ده چي د خلکو مال له تلف کېدلو (ضایع کېدلو) څخه محفوظ پاته سي: ځکه که په عوضینو کي یو عوض زائد او بل کم وي، نو په زائد عوض کي چي کوم مقدار زائد دی، مبادله یعني بیع به د هغه مقدار ضائع کونکی وي د هغه عاقد په حق کي کوم عاقد ته چي کم عوض په لاس ورسي، ځکه چي هغه ته د زائد مقدار په مقابله کي

هیڅ حاصل نه سوه، او کله چي هغه ته د زائد په مقدار په مقابله کي هیڅ حاصل نه سوه. نو دا زائد مقدار د هغه په حق کي تلف سو، نو د مال دغه زائد مقدار له تلف کېدلو څخه د ژغورلو لپاره د اموال ربویه په بیع کي مماثلت او برابري شرط گرځول سوې ده. د همدغه زائد مقدار وطرف ته په اشاره کولو سره رسول الله ﷺ "وَالْفَضْلُ رِبًوا" فرمایلي دي، یعني د الله تعالیٰ په دې قول "وَحَرَّمَ الرِّبَـوا" کي له "ربوا" څخه مراد همدغه فضل او زیاتوب دی. ③ ... دریمه وجه دا ده چي د بیع فایده هغه وخت پوره کېږي کله چي په قبضه کولو کي مماثلت او برابري موجوده سي؛ ځکه د بیع فایده دا ده چي بائع د یوه عوض مالک سي او مشتري د بل عوض مالک سي، او دا خبره تسلیم سوې ده چي نفسِ عقد (نفسِ بیع کول) پر عوضَینو د عاقدَینو ملک رقبه ثابتوي، او تمامُ العقد (د عقد پوره کېدل) ملک تصرف ثابتوي (مطلب دا چي په نفس بیع کولو سره عاقد صرف د شي د ذات مالک کېږي او په هغه کي تصرف نه سي کولای. او تصرف هغه وخت کولای سي کله چي عقد پوره سي)، او تمام العقد هغه وخت کېږي (یعني عقد هغه وخت پوره کېږي) کله چي دواړه عاقدین پر عوضَینو قبضه وکړي، نو ثابته سوه چي د بیع فایده په قبضه سره پوره کېږي، لهذا کله چي د بیع فایده په قبضه سره پوره کېږي، نو د فایدې پوره کولو لپاره په قبضه کي مماثلت او برابري ضروري ده، او په قبضه کي برابري دا ده چي هر عاقد پر خپل، خپل عوض لاس په لاس قبضه وکړي، او همدې ته د "یدًا بیدٍ" په لفظ سره اشاره سوې ده.

له دغه دریو وجهو څخه معلومه سوه چي د حدیثِ مقصود د مماثلت واجبېدل او شرطیت بیانول دي (چي په بیع کي مماثلت شرط او واجب دی)، لهذا کله چي د مماثلت شرط فوت سي نو د ربوا حرامېدل به لازمېږي؛ ځکه رسول الله ﷺ فرمایلي دي: "وَالْفَضْلُ رِبًوا".

<u>والمماثلة بين الشيئين إلخ</u>: مخکي صاحب د هدایې په عوضَینو کي د مماثلت واجبېدل ثابت کړه، له دې ځایه دا خبره بیانوي چي د مماثلت د ثبوت لپاره قدر او جنس ضروري دی، یعني په پوره توگه د مماثلت ثابتېدلو لپاره قدر او جنس د ربوا علت گرځول ضروري دي؛ ځکه چي د دوو شیانو ترمینځ په حاصلېدونکي مماثلت کي صورتاً هم برابري ضروري ده او معناً هم برابري ضروري ده، او د صورتاً برابري حصول په معیار (پیمانه) سره کېږي (یعني صورتاً مماثلت په معیار [پیمانه] سره حاصلېږي) او د معیار برابري په قدر سره حاصلېږي، نو گواکي صورتاً مماثلت په قدر سره حاصلېږي. د مثال په توگه یو من غنم د نورو یو من غنمو سره صورتاً او معناً دواړه ډوله مماثل دي، صورتاً خو ځکه چي غنم د غنمو هم شکل (سره ورته) دي او معناً ځکه چي د دواړو جنس یو دی. خلاصه د کلام دا چي د عقد (بیع) د صحیح کېدلو لپاره په عوضَینو کي مماثلت ضروري دی، او د پوره مماثلت ثابتېدل په

قدر او جنس سره ممکن دي. نو ځکه صرف قدر او جنس به د ربوا علت وي (طعم او ثمنيت به د ربوا علت نه ګرځول کيږي. ځکه چي هغوی د مماثلت په ثبوت کي هيڅ دخل نه لري) او کله چي همدا دواړه (قدر او جنس) د ربوا علت سوه. نو په کومو دوو شيانو (عوضينو) کي چي قدر او جنس موجود وي او بيا په هغوی کي کمي يا زياتوب وسي نو په دغه وخت کي به ربوا ثابتيږي: ځکه چي د قدر او جنس د اتحاد په صورت کي کېدونکی زياتوب به له عوض څخه خالي وي. او ربوا همدغه زياتوب ته وايي کوم چي خالي عن العوض وي.

**ولا يعتبر الوصف إلخ:** ا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي څرنګه د دوو شيانو په مينځ کي مماثلت په قدر او جنس سره ثابتيږي. همداسي په وصف سره هم مماثلت ثابتيږي. لېکن تاسو د مماثلت په ثابتولو کي صرف د قدر او جنس اعتبار کړی دی او د وصف اعتبار مو نه دی کړی. د دې څه وجه ده؟.

صاحب د هدايې د دې سوال درې (۳) ځوابونه ذکر کړي دي:

①... اول جواب دا چي په عُرف عام کي تفاوت فی الوصف تفاوت نه شمارل کيږي (يعني په کوم شي کي چي د وصف په اعتبار سره تفاوت وي. هغه تفاوت نه شمارل کيږي). نو ځکه وصف لره به اعتبار نه وي، نو که په عوضينو کي يو عوض جيد (ښه) وي او بل عوض ردي (بد) وي نو د جودت (ښه والي) په اعتبار سره به فضل او زياتوب معتبر نه وي. يعني د يوه عوض جيد کېدل او بل عوض ردي کېدل به ربوا نه شمارل کيږي (لېکن په بنايه او کفايه کي د دې جواب ته هيڅ اهميت نه دی ورکول سوی. ځکه که چيري په عُرف کي تفاوت فی الوصف معتبر نه وای. نو د ښه او بدو شيانو قيمتونه به يو شان وای. حالانکي دا أظهر من الشمس خبره ده چي د جيد شي قيمت له ردي شي څخه زيات وي).

②... صاحب د هدايې دويم جواب دا ذکر کړی دی چي که د تفاوت فی الوصف اعتبار وسي، نو په اموال ربويه کي به د بيع دروازې بندي سي: ځکه دا خبره ناممکنه ده چي يو من غنم دي په هره توګه (من کل وجه) د نورو يو من غنمو مماثل وي. څه نا څه فرق به ضرور پکښې وي، او څرنګه چي د دې فرق په وجه ربوا لازميږي. نو ګواکي د دغو شيانو بيع ناممکنه سوه. حال دا چي د دغو شيانو د بيع دروازه خلاصه ده. نو ځکه مورږ د تفاوت فی الوصف اعتبار نه دی کړی.

③... درېيم جواب دا چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: "جَيِّدُهَا وَرَدِيئُهَا سَوَاءٌ" يعني په اموال ربويه کي ښه او بد (کره او کوټه) ټوله سره برابر دي. يعني د ښه او بد په اعتبار سره تفاوت متعبر نه دی.

**الطعم والثمنية إلخ:** څرنګه چي امام شافعي رَحِمَهُ الله د ربوا علت طعم او ثمنيت ګرځولی دی. نو له دې خايه صاحب د هدايې د هغه جواب ورکوي. د جواب حاصل دا دی چي طعم او ثمنيت د ربوا

علت ګرځول صحيح نه دي؛ ځکه د دې دوو شيانو سره غټ، غټ منافع متعلق دي، ځکه چې پر طعم د انسان ژوند موقوف دی، او ثمنيت د انساني ضرورياتو د حاصلولو ذريعه ده، ګواکي د دغه دوو شيانو وطرف ته د انسان سخت احتياج دی، او د الله تعالیٰ فطرت او عادت دا دی چې انسان د کوم شي وطرف ته څومره زيات محتاج وي په هغه کي هغومره توسع او آساني وي، لکه څرنګه چې اُوبه او هوا د سخت احتياج په وجه الله تعالیٰ په بشپړه توګه عام کړي دي او هر کس نا کس ته په آساني سره حاصليږي. بلکي دېر ځله سخت احتياج حرام شی حلال ګرځوي لکه د اضطرار (سختي لوږي) په حالت کي چې مردار سوی حيوان خوړل جائز دي، نو د طعم او ثمنيت وطرف ته سخت محتاجه کېدل د دې خبري تقاضا کوي چې په هغوی کي زياته توسع او آساني وسي، نه دا چې په هغوی کي تنګي وسي، او دا بالکل تنګي ده چې هغوی د ربوا علت وګرځول سي (ځکه کله چې هغوی د ربوا علت وګرځول سي. خلګ به په تنګي او حرج کي مبتلا سي)، نو ځکه په هغوی د ربوا علت ګرځول مناسب نه وي او د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول لره به هيڅ اعتبار نه وي.

## د ربوا د مذکوره تحقيق نتيجه

إِذَا ثَبَتَ هٰذَا نَقُوْلُ: إِذَا بِيْعَ الْمَكِيْلُ أَوِ الْمَوْزُوْنُ بِجِنْسِهِ مثلاً بِمِثْلٍ کله چې دا خبره ثابته سوه نو موږ وايو: چې کله مکيلي يا موزوني شی د خپل همجنس په عوض کي برابر، برابر خرڅ کړل سي جَازَ الْبَيْعُ فِيهِ نو په هغه کي بيع جائز ده لِوُجُوْدِ شَرْطِ الْجَوَازِ ځکه چې د جائز کېدلو شرط موجود سو وَهُوَ الْمُمَاثَلَةُ فِي الْمِعْيَارِ او هغه په مقدار [قدر] کي برابر والی دی أَلَا تَرَى إِلَى مَا يُرْوٰى مَكَانَ قَوْلِهِ مثلاً بِمِثْلٍ كَيْلًا بِكَيْلٍ وَفِي الذَّهَبِ بِالذَّهَبِ وَزْنًا بِوَزْنٍ آيا ته نه ګورې! چې د ”مثلاً بمثل“ پر ځای ”کيلا بکيل“ او په ”الذهب بالذهب“ کي ”وزناً بوزن“ روايت سوي دي وَإِنْ تَفَاضَلَا او که [په هغوی کي] زياتوب او کمي وسي لَمْ يَجُزْ نو بيع نه جائز کيږي لِتَحَقُّقِ الرِّبَوا د ربوا ثابتېدلو په وجه وَلَا يَجُوْزُ بَيْعُ الْجَيِّدِ بِالرَّدِيْءِ مِمَّا فِيهِ الرِّبَوا إِلَّا مثلاً بِمِثْلٍ او په اشياء ربويه [اموالِ ربويه] کي ښه شی د خراب شي په عوض کي خرڅول جائز نه دي مګر برابر، برابر لِإِهْدَارِ التَّفَاوُتِ فِي الْوَصْفِ ځکه چې د وصف تفاوت لغو ګرځول سوی دی.

**اللغات**: ﴿جيد﴾ ښه، غوره، ﴿رديء﴾ بد، خراب، ﴿إهدار﴾ د افعال مصدر دی: لغو ګرځول (لغو کول)، بې ځايه ګرځول.

**تشریح**: صاحب د هدایې فرمایي چې کله زموږ په مخکني بیان سوي تفصیل سره ثابته سوه چې د ربوا علت قدر مع الجنس دی، نو که څوک یو مکیلي شی د خپل هَمْ جنس مکیلي شيَ په عوض کي یا موزوني شی د خپل هَمْ جنس موزوني شي په عوض کي برابر سره خرڅ کړي، نو دا بیع جائز ده. ځکه چي د بیع مقتضیا یعني "مبادلةُ المال بالمال بالتراضي" هم موجود سو. او د بیع د جواز شرط یعني په مقدار او معیار کي برابري هم موجوده سوه، او برابري ځکه موجوده سوه چي په مخکني حدیث کي له "مثلاً بمثلٍ" څخه مراد "کیلاً بکیلٍ" او "وزناً بوزنٍ" دی، لکه څرنګه چي په بل حدیث کي له حنطة. شعیر. تمر او ملح څخه وروسته د "مثلاً بمثلٍ" پر ځای "کیلاً بکیلٍ" ذکر سوي دي او له ذهب او فضة څخه وروسته "وزناً بوزنٍ" ذکر سوي دي، نو معلومه سوه چي له مماثلت څخه مراد همدا دي چي مکیلي شیان د کَیل په ذریعه او موزوني شیان د وزن په ذریعه برابر سره خرڅ کړل سي، نو ځکه موږ وایو چي که مکیلي شی یا موزوني شی د خپل هَمْ جنس مکیلي یا موزوني شي په عوض کي برابر سره خرڅ کړل سي نو دا جائز دي؛ ځکه چي د بیع مقتضا او د بیع د جواز شرط دواړه موجود سول. او که چیري تفاضل وسي یعني یو عوض تر بل عوض زیات سي نو د ربوا د ثبوت په وجه دا ناجائز دي.

او څرنګه چي په وصف کي تفاوت معتبر نه دی، نو ځکه که د اموال ربویه په بیع کي جید شی د ردي شي په عوض کي برابر سره خرڅ کړل سي نو جائز دي، لیکن په تفاضل سره خرڅول جائز نه دي، ځکه چي د تفاضل په صورت کي ربوا ثابتیږي کوم چي ناجائز دي.

## په اموال ربویه کي د مقدار تعیین

وَيَجُوزُ بَيْعُ الْحَفْنَةِ بِالْحَفْنَتَيْنِ وَالتُّفَّاحَةِ بِالتُّفَّاحَتَيْنِ او [د غلې] یوه لپه د دوو لپو په عوض کي یا یو سېب د دوو سېبو په عوض کي خرڅول جائز دي لِأَنَّ الْمُسَاوَاةَ بِالْمِعْيَارِ ځکه چي برابري په معیار [پیمانه] سره کیږي وَلَمْ يُوجَدْ او معیار [په دې شیانو کي] موجود نه دی فَلَمْ يَتَحَقَّقِ الْفَضْلُ نو ځکه زیاتوب به نه ثابتیږي وَلِهَذَا كَانَ مَضْمُونًا بِالْقِيمَةِ عِنْدَ الْإِتْلَافِ او له همدې کبله د ضایع کولو په صورت کي هغوی مضمون بالقیمت دي [یعني د هلاکولو په صورت کي د هغوی قیمت واجبیږي، نه د هغوی مثل] وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ الْعِلَّةُ هِيَ الطُّعْمُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز د ربوا علت طعم دی. وَلَا مَخْلَصَ وَهُوَ الْمُسَاوَاةُ او [د ربوا له حرمت څخه] د خلاصون ذریعه یعني برابري [دلته] موجود نه ده

فَيَحْرُمُ نو ځکه به زیاتوب حرام وي وَمَا دُوْنَ نِصْفِ الصَّاعِ فَهُوَ فِيْ حُكْمِ الْحَفْنَةِ او کوم مقدار چې له نیم صاع څخه کم وي هغه [هم] د یوې لپې په حکم کې دی لِأَنَّهُ لَا تَقْدِيْرَ فِي الشَّرْعِ بِمَا دُوْنَهُ ځکه چې په شریعت کې له نصف صاع څخه د کم مقدار [لپاره] هیڅ اندازه [پیمانه] نسته وَلَوْ تَبَايَعَا مَكِيْلًا أَوْ مَوْزُوْنًا غَيْرَ مَطْعُوْمٍ بِجِنْسِهِ مُتَفَاضِلًا او که چیرې عاقدین [بائع او مشتري] یو غیر مطعوم شی د خپل همجنس په عوض کې په کمي و زیاتوب سره خرڅ کړي كَالْجَصِّ وَالْحَدِيْدِ لکه ګچ او اوسپنه لَا يَجُوْزُ عِنْدَنَا نو زموږ په نیز دا جائز نه دي لِوُجُوْدِ الْقَدْرِ وَالْجِنْسِ ځکه چې قدر او جنس موجود دي وَعِنْدَهُ يَجُوْزُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز جائز دي لِعَدَمِ الطُّعْمِ وَالثَّمَنِيَّةِ ځکه چې طعم او ثمنیت موجود نه دي.

**اللغات**: ﴿الحفنة﴾ لپه، د دواړو لاسو د خپړو د یو ځای نیولو مقدار، یعني انسان چې خپل د دواړو لاسو خپړې (پنجې) سره ولګوي نو دغه مقدار او اندازې ته لپه وایي، لکه په پښتو کې چې هم داسې ویل کیږي: یوه لپه غنم، یوه لپه اوړه. همدارنګه د یوه لاس د خپړې مقدار ته هم "حفنة" وايي (معجم الوسیط)، ﴿جص﴾ ګچ (یو ډول سپینه معدني خاوره ده کوم چې زموږ په سیمو کې مشهوره ده)، ﴿حدید﴾ اوسپنه (وسپنه).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې که یو څوک یوه لپه غنم په دوو لپو غنمو سره خرڅ کړي (یعني د یوې لپه غنمو په عوض کې دوې لپې غنم ځني واخلي)، یا یو سېب په دوو سېبو سره خرڅ کړي. یا یوه هګۍ په دوو هګیو سره خرڅه کړي، یا یو جوز په دوو جوزو سره خرڅ کړي، نو زموږ په نیز دا صورتونه جائز دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز ناجائز دي؛ د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز ځکه ناجائز دي چې د هغه په نیز د ربوا علت طعم او ثمنیت دی، او څرنګه چې په دې شیانو کې طعم موجود دی او د ربوا له حرمت څخه نجات ورکونکی شی یعنې برابري او مساوات موجود نه دی، نو ځکه د دغه شیانو بیع ناجائز ده. او زموږ په نیز ځکه دا بیع جائز ده چې د دوو شیانو په مینځ کې مساوات او برابري د پیمانه په ذریعه معلومیږي او په شریعت کې له نصف صاع څخه د کم مقدار لپاره هیڅ پیمانه نسته، لهذا په دې مذکوره شیانو کې د برابري کولو والا هیڅ پیمانه نسته، نو ځکه په دوی کې به فضل (زیاتوب) هم نه ثابتیږي، او کله چې فضل ثابت نه سي نو ربوا به هم نه ثابتیږي، او کله چې ربوا لازم نه سوه، نو ځکه به د بیع دا صورتونه جائز وي.

ولهذا إلخ: صاحب د هدايې فرمايي ځرنګه چي يوه لپه غنم او دوې لپې غنم تر هيڅ شرعي معيار (پيمانې) لاندي نه داخليږي، نو ځکه که يو څوک د بل چا له غنمو څخه يوه لپه يا دوې لپې غنم ضايع کړي، نو پر ضايع کونکي د هغه غنمو ضمان بالقيمت واجبيږي، نه ضمان بالمثل. لهذا که چيري يوه او دوې لپې موزوني واي نو پر ضايع کونکي به د هغه ضمان بالمثل واجبېداى، ځکه ټوله مکيلات او ټوله موزونات له ذواتُ الامثال څخه دي، نه له ذواتُ القيم څخه. لهذا د دغه مقدار (يوه او دوې لپې) ضمان بالثمل نه واجبېدل د دې خبري دليل دى چي دا مقدار يعني يوه او دوې لپې تر هيڅ شرعي معيار لاندي نه داخليږي.

وما دون نصف الصاع إلخ: صاحب د هدايې فرمايي: تر نصف صاع چي کم هر مقدار وي هغه د يوې لپې په حکم کي دى؛ ځکه په شريعت کي له نصف صاع څخه د کم مقدار لپاره هيڅ ميعار او پيمانه نسته. ها! ځرنګه چي د نصف صاع په باره کي شريعت وارد سوى دى لکه د صدقة الفطر (سرسايه) په صورت کي. نو ځکه نصف صاع تر شرعي معيار او پيمانې لاندي داخليږي. (يعني په شريعت کي چي تر ټولو کم او لږ مقدار واجبيږي هغه نيم صاع دى کوم چي په صدقةُ الفطر کي واجبيږي. نو نيم صاع ګواکي يو کَيل دى. نو ځکه به تر نيم صاع کم دلپې په حکم کي وي. يعني کمي و زياتوب به پکښي جائز وي).

اوس حاصل دا سو چي که دواړه عوضونه نصف صاع نه وي بلکي دواړه تر نصف صاع کم وي او په هغوى کي يو کم وي او بل زيات وي نو بيع جائز کيږي، او که يو عوض نصف صاع وي او بل تر نصف صاع کم وي نو بيع نه جائز کيږي.

ولوتبايعا إلخ: ځرنګه چي د احنافو په نيز د ربوا علت قدر مع الجنس دى او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د ربوا علت طعم او ثمنيت دى. نو صاحب د هدايې په دې هکله دا مسئله بيانوي چي که بائع او مشتري اوسپنه يا چونه د خپل همجنس په عوض کي په کمي يا زياتوب سره خرڅه کړي، نو زموږ په نيز بيع نه جائز کيږي؛ ځکه زموږ په نيز د ربوا علت قدر مع الجنس دى او دا دواړه شيان په اوسپنه او چونه کي موجود دي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا بيع جائز کيږي؛ ځکه په اوسپنه او چونه کي نه طعم سته او نه ثمنيت سته، او د هغه په نيز همدا دوه شيان د ربوا علت دي. نو ځکه د هغه په نيز دا بيع صحيح کيږي.

## که د روبوا دواړه علتونه یا یو علت موجود نه وي نو د بیع حکم او تفصیل

قَالَ: وَإِذَا عُدِمَ الْوَصْفَانِ فرمايي: او کله چي دوړه وصفونه معدوم سي الْجِنْسُ وَالْمَعْنَى الْمَضْمُومُ إِلَيْهِ یعني جنس او د هغه سره ضم کړل سوي معنیٰ [قدر] حَلَّ التَّفَاضُلُ وَالنَّسَاءُ نو کمي و زیاتوب [کمي بیشي] او پور دواړه حلالیږي لِعَدَمِ الْعِلَّةِ الْمُحَرِّمَةِ ځکه چي حرامونکی علت موجود نه دی وَالْأَصْلُ فِيهِ الْإِبَاحَةُ او اصل په بیع کي اباحت [روايښت] دی وَإِذَا وُجِدَا او کله چي دواړه وصفونه موجود سي حَرُمَ التَّفَاضُلُ وَالنَّسَاءُ نو کمي وزیاتوب او پور [دواړه] حرامیږي لِوُجُودِ الْعِلَّةِ ځکه چي [حرامونکی] علت موجود دی وَإِذَا وُجِدَ أَحَدُهُمَا وَعُدِمَ الْآخَرُ او کله چي له هغوی څخه یو وصف موجود سي او بل یو معدوم سي حَلَّ التَّفَاضُلُ وَحَرُمَ النَّسَاءُ نو کمي و زیاتوب حلالیږي او پور حرامیږي مِثْلَ أَنْ يُسْلِمَ هَرَوِيًّا فِي هَرَوِيٍّ مثلاً [یو څوک] یوه هروي کپړه د دوو هروي کپړو په عوض کي د بیع سَلم په توګه خرڅه کړي أَوْ حِنْطَةً فِي شَعِيرٍ یا غنم د اوربشو په عوض کي [د بیع په سَلم په توګه خرڅ کړي] فَحُرْمَةُ رِبَوا الْفَضْلِ بِالْوَصْفَيْنِ وَحُرْمَةُ النَّسَاءِ بِأَحَدِهِمَا نو [په دې صورت کي] به د ربوا د زیاتوب حرامېدل په دوو وصفونو سره وي او د پور حرامېدل به په یوه وصف سره وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: الْجِنْسُ بِانْفِرَادِهِ لَا يُحَرِّمُ النَّسَاءَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي یوازي جنس پور نه سي حراموﻻی لِأَنَّ بِالنَّقْدِيَّةِ وَعَدَمِهَا لَا يَثْبُتُ إِلَّا شُبْهَةُ الْفَضْلِ ځکه [په بیع سَلم کي یوه طرف ته] د نغد شي د موجودېدلو په وجه [او بل طرف ته] د هغه د نه موجودېدلو په وجه صرف د زیاتوب شبهه ثابتیږي وَحَقِيقَةُ الْفَضْلِ غَيْرُ مَانِعٍ فِيهِ حال دا چي د جنس په صورت کي حقیقي زیاتوب [له بیع څخه] مانع نه دی حَتَّى يَجُوزَ بَيْعُ الْوَاحِدِ بِالِاثْنَيْنِ تر دې چي یوه هروي کپړه د دوو هروي کپړو په عوض کي خرڅول جائز دي فَالشُّبْهَةُ أَوْلَى نو د زیاتوب شبهه خو به په درجه اولیٰ مانع نه دي [او پور به حلال او صحیح وي] وَلَنَا: أَنَّهُ مَالُ الرِّبَوا مِنْ وَجْهٍ نَظَرًا إِلَى الْقَدْرِ أَوِ الْجِنْسِ زموږ دلیل دا دی: چي دا [د پور بیع] د قدر یا جنس وطرف ته په نظر کولو سره د ربوا مال دی [احسن الهدایه] وَالنَّقْدِيَّةُ أَوْجَبَتْ

فَضْلًا فِي الْمَالِيَّةِ او [يوه طرف ته] نغد والی [يعني نغد شی موجودېدل] په ماليت کي زياتوب ثابتوي فَتَحَقَّقَ شُبْهَةُ الرِّبَا نو ځکه د ربوا شبهه به ثابته سي وَهِيَ مَانِعَةٌ كَالْحَقِيْقَةِ او د ربوا شبهه د حقيقت [حقيقي ربوا] په څېر [د بيع له جواز څخه] مانع ده إِلَّا أَنَّهُ إِذَا أَسْلَمَ النُّقُوْدَ فِي الزَّعْفَرَانِ وَنَحْوِهِ مګر دا چي ايو ځوک] په زعفران او داسي نورو کي په نقوود سره بيع سَلَم وکړي يَجُوْزُ نو دا جائز دي وَإِنْ جَمَعَهُمَا الْوَزْنُ که څه هم وزن هغوی جمع کوي [يعني که څه هم هغوی دواړه موزوني شيان دي، يعني دواړه وزن کيږي (تلل کيږي)] لِأَنَّهُمَا لَا يَتَّفِقَانِ فِي صِفَةِ الْوَزْنِ ځکه چي هغوی دواړه د وزن په صفت کي سره متحد [سره يو] نه دي فَإِنَّ الزَّعْفَرَانَ يُوْزَنُ بِالْأَمْنَاءِ ځکه چي زعفران د "امناء" په ذريعه وزن کيږي [تلل کيږي] وَهُوَ مُثَمَّنٌ يَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِيْنِ او [دوېمه وجه دا ده چي] زعفران مثمن دي [کوم چي] په مُتعينولو سره مُتعيّن کيږي وَالنُّقُوْدُ تُوْزَنُ بِالسَّنَجَاتِ او نقود د "سنجات" په ذريعه وزن کيږي وَهُوَ ثَمَنٌ لَا يَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِيْنِ [همدارنګه] نقود ثمن دي [کوم چي] په مُتعينولو سره نه مُتعيّن کيږي وَلَوْ بَاعَ بِالنُّقُوْدِ مُوَازَنَةً او که [يو ځوک] د نقودو په عوض کي په وزن سره زعفران خرڅ کړي وَقَبَضَهَا او بائع پر نقودو قبضه وکړي صَحَّ التَّصَرُّفُ فِيْهَا قَبْلَ الْوَزْنِ نو له وزن کولو څخه مخکي [هم بائع ته] په نقودو کي تصرف کول صحيح دي وَفِي الزَّعْفَرَانِ وَأَشْبَاهِهِ لَا يَجُوْزُ او په زعفران او د هغه په څېر نورو شيانو کي [مشتري ته له وزن کولو څخه مخکي] تصرف کوو جائز نه دي فَإِذَا اخْتَلَفَا فِيْهِ صُوْرَةً وَمَعْنًى وَحُكْمًا لهذا کله چي زعفران او نقود په وزن کي د صورت، معنیٰ او حکم [ټولو] په اعتبار سره مختلف دي لَمْ يَجْمَعْهُمَا الْقَدْرُ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ نو قدر [وزن] په پوره توګه هغوی نه سي جمع کولای [يعني من کُل وَجه هغوی لره جامع کېدای نه سي] فَتَنْزِلُ الشُّبْهَةُ فِيْهِ إِلَى شُبْهَةِ الشُّبْهَةِ نو ځکه [په هغوی کي] به شبهه د شبهة الشبهه ودرجې ته راکښته کيږي وَهِيَ غَيْرُ مُعْتَبَرَةٍ او شبهة الشبهه [په شريعت کي] معتبر نه ده.

**اللغات**: ﴿عُدِمَ﴾ د سمع له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده: معدوم کېدل، نيستېدل، نه موجودېدل.
﴿تفاضل﴾ د تفاعل مصدر دی: کمي وزياتوب، کمي بيشي (په کمي وزياتوب سره معامله کول).

﴿نساء﴾ په پور بيع کول (په قرض معامله کول کول). ﴿يُسْلِم﴾ د افعال له بابه د مضارع معلوم صيغه ده. أَسْلَمَ يُسْلِمُ إِسْلَامًا: د دغه باب څو معناوي دي، دلته يې معنیٰ ده: بيع سَلم کول. د بيع سَلم په توګه خرڅول. ﴿الأَمْنَاء﴾ جمع د "المَنَا" ده. له دې څخه زموږ من مراد نه دی. بلکي دا يو پخواني آله او پيمانه وه چي په هغه سره به کوچي، غوړي، زعفران او داسي نور تلل کېدل (مصباح المنير، معجم الوسيط)، ﴿سنجات﴾ جمع د سَنْجَةٌ ده: د سره زرو او سپينو زرو د وزن کولو اله. ﴿مثمن﴾ به ثمن سره چي کوم شی رانيول کيږي هغه ته "مثمن" وايي (يعني مبيع).

**تشريح**: دا خو تاسي ته معلومه ده چي زموږ په نېز د ربوا علت قدر مع الجنس دی، په دې عبارت کي د همدغه دوو علتونو د موجودېدلو يا نه موجودېدلو په هکله بحث سوی دی، نو فرمايي چي په کوم صورت کي قدر او جنس دواړه علتونه معدوم وي (يعني موجود نه وي)، نو هلته کمي و زياتوب (کمي بيشي) هم جائز ده او پور (قرض) هم جائز دی، مثلاً غنم د کپړې په عوض کي خرڅول، او ګورئ! د غنم او کپړې جنس هم سره جلا دی او په کپړه کي قدر هم معدوم دی يعني کپړه نه له مکيلاتو څخه ده او نه له موزوناتو څخه ده (بلکي له مذروعاتو څخه ده)، او د دې آيت "أَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ" په وجه په بيع کي اصل شی حلت او اباحت دی، نو ځکه به په دې صورت کي بيَع جائز کيږي، برابره ده هغه په کمي و زياتوب سره وي، يا په نغد ثمن او يا په پور (قرض) سره وي، په هر صورت کي به بيع جائز کيږي.

او که چيري دواړه علتونه موجود وي نو دواړه شيان حراميږي، يعني کمي و زياتوب هم حراميږي او پور هم حراميږي، مثلاً غنم د غنمو په عوض کي خرڅول (نو په دې صورت کي به په غنمو کي کمي و زياتوب هم نه کوي او لاس په لاس به يې هم سره ورکوي).

او که له قدر او جنس دواړو څخه صرف يو وصف موجود وي او دويم وصف معدوم وي نو په دې صورت کي کمي و زياتوب خو حلاليږي، لېکن پور حراميږي، مثلاً يو څوک يوه هروي کپړه په دوو هروي کپړو سره خرڅه کړي (يعني يوه هروي کپړه د دوو هروي کپړو په عوض کي خرڅه کړي)، نو څرنګه چي دلته يو وصف يعني جنس موجود دی او دويم وصف يعني قدر معدوم دی (ځکه چي کپړه له مکيلاتو او موزوناتو څخه نه ده) يا همدارنګه که څوک غنم په اوربشو سره خرڅ کړي نو دلته هم يو وصف يعني قدر موجود دی او دويم وصف يعني جنست معدوم دی، نو ځکه په دې صورت کي به کمي و زياتوب حلال وي او پور به حرام وي. خلاصه دا چي زموږ په نېز د ربوا د حرمت لپاره دواړه وصفونه موجودېدل شرط دي، او د پور (نساء) د حرمت لپاره صرف يو وصف موجودېدل کافي دي.

د دې په خلاف ځکه چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د ربوا علت طعم او ثمنیت دی نو ځکه د هغه په نېز یوازي جنسیت موجودېدل پور (نساء) نه حراموي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چې پور د مطالبې تاخیر ته وایي (یعني تر یو معلوم وخته پورې د خپل ثمن مطالبه نه کول) یعني یوه طرف ته نغد شی وي او بل طرف ته نغد شی نه وي بلکي پور وي. او په دې سره صرف د زیاتوب شبهه لازمیږي په دې توګه چې کېدای سي په نغد شي او پور والا شي کي به څه تفاوت وي. او دلته د اتحاد الجنس په صورت کي چې کله حقیقي فضل (زیاتوب) مانع نه دی او یوه هروي کپړه د دوو هروي کپړو په عوض کي خرڅول کېدای سي. نو شبهۀ فضل (د زیاتوب شبهه) خو به په درجه اولیٰ مانع نه وي.

**زموږ دليل**: دا دی چې په بیع نساء (د پور په بیع) کي د قدر یا جنس وطرف ته په نظر کولو سره د ربوا مالیت موجود دی. په دې توګه چې د "بیعُ الحنطة بالشعیر" په صورت کي قدر (کیل) هغوی جمع کوي او د "بیعُ الثوب الهروي بالثوبین" په صورت کي جنس هغوی جمع کوي (لنډه دا چې که غنم د اوربشو په عوض کي په پور سره خرڅ کړل سي یا یوه هروي کپړه د دوو کپړو په عوض کي په پور سره خرڅه کړل سي نو په دې هر صورت کي د ربوا یو علت سته چې هغه په اول صورت کي "قدر" دی او په دویم [د اوربشو په] صورت کي "جنسیت" دی) لېکن صرف د "قدر" یا "جنس" په وجود سره دا بیع ربوا نه ګرځي او نه حرامیږي؛ ځکه چې د ربوا د ثبوت لپاره قدر او جنس دواړه غلتونه موجودېدل ضروري دي. لهذا دلته خو ربوا ثابتېدای نه سي، لېکن یوه طرف ته د نغد شي او بل طرف ته د غیر نغد شي (پور والا شي) په وجه به د نغد شي په طرف کي اضافه او فضل خامخا وي (ځکه د نغد شي [نقد] ارزښت او قیمت زیات وي او د پور والا شي ارزښت وي قیمت کم وي نو ځکه به دلته د نغد شي په مالیت کي اضافه وي)، او دا اضافه شبهۀ ربوا (د ربوا شبهه) ثابتوي. او مخکي تاسو وویل چې د ربوا په باب کي شبهه هم د حقیقت په څېر له جواز څخه مانع ده (یعني د حقیقي ربوا په څېر شبهۀ ربوا هم بیع حراموي). نو ځکه په بیع نساء کي صرف د یوه وصف موجود والی به په بیع کي حرمت پیدا کوي او دغه د پور بیع (بیع نساء) به ناجائز ګرځي.

الا انه اذا سلم الخ: څه مخکي صاحب د هدایې دا وضاحت وکړی چې که له دواړو وصفونو څخه صرف یو وصف موجود وي او دویم وصف معدوم وي؛ نو په دې صورت کي کمي و زیاتوب حلالیږي او پور (نساء) حرامیږي. اوس له هغه څخه یو صورت مستثنیٰ کوي فرمایي چې یو صورت داسي دی چې هلته صرف د یوه وصف په موجود والي کي هم پور حلالیږي. او هغه دا چې که یو څوک د "بیع سلم" په توګه زعفران. یا پمبه یا اوسپنه رانیسي او په ثمن کي نقود (یعني سره او

سپین زر) وټاکي او فوراً یې اداء کړي نو دا بیع سَلم جائز کیږي، که څه هم دلته مبیع (زعفران یا داسې نور) پور والا شی دي (یعني که څه هم په بیع سَلم کې یوه طرف ته غیر نغد شی دی) او که څه هم دلته "قدر" یعني د ثمن او مبیع موزوني کېدل هغوی جمع کوي هم، لېکن د دې باوجود بیع سلم ځکه جائز ده چې نقود او زعفران که څه هم په وزن کې سره متحد دي لېکن د وزن په صفت کې سره متحد نه دي. نه صورتاً، نه معناً او نه حکماً. صورتاً خو ځکه سره متحد نه دي چې نقود په "سنجات" سره وزن کیږي (تلل کیږي) حال دا چې زعفران په "منا" سره وزن کیږي. او معناً ځکه سره متحد نه دي چې نقود ثمن وي کوم چې په عقد کې په مُتعیّن کولو سره مُتعیّن کیږي د دې په خلاف زعفران او داسې نور مثمن او مبیع دي کوم چې په عقد کې په مُتعیّن کولو سره نه مُتعیّن کیږي، همدا وجه ده چې که بائع مشتري ته د زعفران پر ځای بل شی ورکړي نو دا صحیح نه دي.

او حکماً هغوی دواړه ځکه سره متحد نه دي چې که یو څوک د وزن په ذریعه د نقودو په عوض کې زعفران یا داسې بل شی خرڅ کړي، د مثال په توګه لس سېره زعفران د دوه زره مثقاله سره زرو په عوض کې وزن کړي او خرڅ یې کړي او بائع پر نقودو قبضه وکړي او مشتري پر زعفران قبضه وکړي، نو اوس بائع ته دویم ځل د نقودو د وزن کولو (تللو) ضرورت نسته. بلکي قبل الوزن هغه ته په نقودو کې د تصرف کولو اجازت سته (ځکه چې نقود په مُتعینولو سره مُتعین کیږي)، لېکن مشتري ته له دویم ځل وزن کولو څخه بغیر په زعفران کې د تصرف کولو اجازت نسته (یعني مشتري هغه وخت په زعفران او داسې نورو کې تصرف کولای سي کله چې یې دویم ځل وزن کړي ځکه همداسې په حدیث کې ذکر سوي دي).

لنډه دا چې کله دا دواړه شیان د صورت، معنیٰ او حکم ټولو په اعتبار سره د وزن په صفت کې مختلف دي نو ځکه "قدر" یعني وزن په پوره توګه (مِن کل الوجوه) هغوی لره جامع نه سو، او موږ په بیع نساء کې هغه وخت یو وصف شبهة الربوا ګرځوو کله چې هغه وصف په پوره توګه (من کل الوجوه) موجود وي، او که چیري وصف په پوره توګه (من کل الوجوه) موجود نه وي (لکه دلته چې دی) نو په دې صورت کې د شبهة الربوا خرابي په شبهة شبهة الربوا سره بدلیږي، او مخکې تاسو وویل چې په شریعت کې صرف شبهه لره اعتبار سته لېکن شبهة الشبهه لره هیڅ اعتبار نسته. لهذا کله چې په دې صورت کې وزن (قدر) په پوره توګه زعفران او نقودو لره جامع نه دی، نو ځکه دلته به هم د دې وصف (یعني د وزن [قدر]) خرابي د شبهة الشبهه درجې ته رسیږي، او په شریعت کې شبهة الشبهه معتبر نه ده. نو ځکه په دې صورت کې به د نقودو په عوض کې د زعفران او داسې نورو بیع نساء هم صحیح او جائز وي.

# کوم شيان چي په نص (حديث) کي مکيلي يا موزوني وارد سوي وي، په اوسني وخت کي د هغوی حکم

قَالَ: وَكُلُّ شَيْءٍ نَصَّ رَسُولُ اللهِ ﷺ عَلَى تَحْرِيمِ التَّفَاضُلِ فِيهِ كَيْلًا فرمايي: او هر هغه شی چي رسول الله ﷺ په هغه کي د کَيل په اعتبار سره د کمي و زياتوب [کمي بيشي] د حرامېدلو صراحت کړی وي فَهُوَ مَكِيلٌ أَبَدًا نو هغه به همېشه مکيلي وي [يعني هغه به همېشه مکيلي شمارل کيږي. د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز] وَإِنْ تَرَكَ النَّاسُ الْكَيْلَ فِيهِ که څه هم خلګو په هغه کي کَيل کول پرې ايښی وي مِثْلَ الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالتَّمْرِ وَالْمِلْحِ لکه غنم، اوربشي، خرما، او مالګه وَكُلُّ مَا نَصَّ عَلَى تَحْرِيمِ التَّفَاضُلِ فِيهِ وَزْنًا او هر هغه شی چي رسول الله ﷺ په هغه کي د وزن په اعتبار سره د کمي وزياتوب د حرامېدلو صراحت کړی وي فَهُوَ مَوْزُونٌ أَبَدًا نو هغه به همېشه موزوني وي وَإِنْ تَرَكَ النَّاسُ الْوَزْنَ فِيهِ که څه هم خلګو په هغه کي وزن کول پرې ايښي وي مِثْلَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ لکه سره زر او سپين زر لِأَنَّ النَّصَّ أَقْوَى مِنَ الْعُرْفِ ځکه چي نص [حديث] له عُرف څخه زيات قوي دی وَالْأَقْوَى لَا يُتْرَكُ بِالْأَدْنَى او اقوی د ادنیٰ په وجه نه پرېښوول کيږي.

وَمَا لَمْ يَنُصَّ عَلَيْهِ او د کوم شي په باره کي چي نبي کريم ﷺ هيڅ صراحت نه وي کړی فَهُوَ مَحْمُولٌ عَلَى عَادَاتِ النَّاسِ نو هغه به د خلګو پر عادتونو محمول وي [يعني هغه به د خلګو پر عُرف حمل کول کيږي] لِأَنَّهَا دَالَّةٌ ځکه چي عادت هم [د حکم پر جواز] دليل وي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ۞ أَنَّهُ يُعْتَبَرُ الْعُرْفُ عَلَى خِلَافِ الْمَنْصُوصِ عَلَيْهِ أَيْضًا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي د منصوص عليه شي پر خلاف به هم عُرف معتبر وي لِأَنَّ النَّصَّ عَلَى ذَلِكَ لِمَكَانِ الْعَادَةِ ځکه چي پر هغه [يعني د مکيلي او موزوني شيانو پر کَيل او وزن] نص [وارد ېدل] د عادت په وجه دي [يا يې ترجمه دا ده چي په مکيلي او موزوني شيانو کي د کَيل صراحت د عادت (عرف) په وجه دی] فَكَانَتْ هِيَ الْمَنْظُورُ إِلَيْهَا نو ځکه همدا

۞ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله بعد تفصيل المسئلة: ومقتضاه أن النص معتبر بالعرف فللمعتبر هو العرف في أي زمن كان [الخ] (الدر المختار ج:۴، ص:۲۰۲)، وكذا في شرح المجلة (ج:۱، ص:۸۶، ۸۷) [القول الراجح ج:۲، ص:۵۸]

عادت [عرف] ته به کتل کیږي وَقَدْ تَبَدَّلَتْ حال دا چي [اوس] عادت بدل سوی دی فَعَلٰی هٰذَا لَوْ بَاعَ الْحِنْطَةَ بِجِنْسِهَا مُتَسَاوِيًا وَزْنًا نو پر همدې قاعده که یو څوک غنم د غنمو په عوض کي په وزن سره برابر برابر خرڅ کړي أَوِ الذَّهَبَ بِجِنْسِهِ مُتَمَاثِلًا كَيْلًا یا سره زر د سرو زرو په عوض کي [په کَیل سره برابر برابر خرڅ کړي] لَا يَجُوزُ عِنْدَهُمَا نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دا بیع نه جائز کیږي وَإِنْ تَعَارَفُوا ذٰلِكَ که څه هم په خلکو کي د دې عُرف وي لِتَوَهُّمِ الْفَضْلِ عَلٰى مَا هُوَ الْمِعْيَارُ فِيهِ ځکه په دې کي چي کوم معیار دی پر هغه د زیاتوب وهم سته كَمَا إِذَا بَاعَ مُجَازَفَةً لکه په هغه صورت کي کله چي یې په اټکل [اندازه] سره خرڅ کړي إِلَّا أَنَّهُ يَجُوزُ الْإِسْلَامُ فِي الْحِنْطَةِ وَنَحْوِهَا وَزْنًا لیکن په غنم او داسي نورو شیانو کي د وزن په اعتبار سره بیع سَلَم کول جائز دي لِوُجُودِ الْإِسْلَامِ فِي مَعْلُومٍ په معلوم مقدار کي د بیع سَلَم د موجودېدلو په وجه [یعني ځکه په دې صورت کي بیع سَلَم په معلوم مقدار کي موجوده سوه].

**اللغات:** ﴿نَصَّ﴾ د نصر ماضي ده: صراحت کول، په صراحت سره بیانول، په ښکاره الفاظو سره بیانول. ﴿تمر﴾ وچه خرما (خیشته خرما ته رُطَبٌ ویل کیږي). ﴿منصوص علیه﴾ د کوم شي په باره کي چي نص (حدیث) وارد سوی وي هغه ته "منصوص علیه" وایي. نو غنم او داسي نور منصوص علیه دي. ﴿الاسلام﴾ د افعال مصدر دی: بیع سَلَم کول.

**تشریح:** په دې عبارت کي امام قدوري رَحِمَهُ الله (د طرفینو) یو أصول او قاعده بیانوي فرمایي هر هغه شی کوم چي د نبي ﷺ په زمانه کي مکیلي وو یعني نبي کریم ﷺ او صحابه وو به په هغه کي په کَیل سره معامله کوله. نو داسي شی به همېشه مکیلي شمارل کیږي که څه هم خلکو کي په هغه کي په کَیل سره معامله پرې ایښې وي. لکه غنم، اوربشي، خرما او مالګه. نو په دې شیانو کي به د کَیل په ذریعه مساوات او برابري کیږي، نه د وزن په ذریعه. لهذا که غنم د غنمو په عوض کي خرڅ کړل سي او برابري د وزن په ذریعه وکړی سي، نه د کَیل په ذریعه. نو دا جائز نه دي، ځکه غنم د نبي ﷺ په زمانه کي مکیلي شی وو. نو ځکه په هغه کي به تر قیامته پوري د کَیل په ذریعه مساوات او برابري معتبره وي، نه د وزن په ذریعه.

او کوم شی چي د نبي ﷺ په زمانه کي موزوني وو یعني خلکو به په وزن سره په هغه کي معامله کوله نو هغه به همېشه موزوني شمارل کیږي. که څه هم وروسته په هغه کي خلکو په وزن سره

معامله پرې ایښې وي. لکه سره زر او سپین زر، نو که سره زر د سرو زرو په عوض کي خرڅ کړل سي او د هغوی په مینځ کي د کیل په ذریعه برابري وکړی سي. نه د وزن په ذریعه. نو دا جائز نه دي.

د دې مسئلې یو دلیل دا دی چي د رسول الله ﷺ اطاعت پر موږ واجب دی. نو کوم شی چي نبي کریم ﷺ مکیلي ګرځولی وي هغه به همېشه مکیلي شمارل کیږي او کوم شی چي یې موزوني ګرځولی وي هغه به همېشه موزوني شمارل کیږي. که څه هم د خلکو معامله د دې په خلاف وي.

دویم دلیل دا دی چي نص یعني حدیث د عُرف او رواج په نسبت زیات قوي (اقویٰ) دی. ځکه عرف خو پر باطل شي هم جاري کېدای سي لکه پخوا چي به د اختر په شپه په هدیره کي د څراغانو پر لګولو عرف جاري وو. او لکه زموږ په زمانه کي چي پر ځیني باطلو شیانو عرف جاري دی. نو معلومه سوه چي عُرف پر باطل شي هم جاري کېدای سي. او نص (حدیث) تر ثبوت وروسته د باطل احتمال نه لري. له دې څخه معلومه سوه چي نص د عُرف په مقابله کي اقوی دی. او بله وجه دا چي عُرف صرف د خپلو خلکو په حق کي حجت وي (یعني فقط د هغه خلکو په حق کي حجت وي چي د کومو خلکو هغه عُرف وي) او د کومو خلکو چي هغه عُرف نه وي نو د هغوی په حق کي عُرف حجت نه وي. او نص د ټولو په حق کي حجت وي. له دې څخه معلومه سوه چي نص د عرف په مقابله کي اقوی دی او عرف ادنیٰ دی. او اقویٰ د ادنی په وجه نه پرېښوول کیږي. نو ځکه د شیانو په مکیلي یا موزوني کېدلو کي به د رسول الله ﷺ حدیث یعني نص د خلکو د عُرف او رواج په وجه نه پرېښوول کیږي. لهذا کله چي نص د عرف په وجه نه سي پرېښوول کېدای نو د کومو شیانو مکیلي کېدل یا موزوني کېدل چي په نص یعني په حدیث سره ثابت وي هغه به تر قیامته مکیلي او موزوني وي. او د عُرف په وجه به په هغوی کي هیڅ تبدیلي نه واقع کیږي.

**وما لم ینص علیه فهو محمول إلخ:** فرمایي د کومو شیانو پر مکیلي یا موزوني کېدلو چي نص موجود نه وي. د هغه شیانو مکیلي یا موزوني کېدل به د تجارت کونکو خلکو پر عادت (عرف) حمل کیږي. یعني که تاجران او کاروباري خلک په هغه شي کي د کیل په ذریعه کاروبار کوي نو هغه به مکیلي شمارل کیږي او که د وزن په ذریعه کاروبار پکښي کوی نو هغه به موزوني شمارل کیږي. ځکه په کوم شي کي چي د خلکو عادت واقع سوی وي په هغه شي کي د حکم پر جواز د خلکو عادت (عرف) دلیل وي. لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي: "مَا رَآهُ الْمُسْلِمُوْنَ حَسَنًا فَهُوَ عِنْدَ اللهِ حَسَنٌ"، حاصل دا چي د نص (حدیث) د نه موجودېدلو په صورت کي عُرف (د مسلمانانو عادت او رواج) د اجماع په درجه کي دی. او اجماع شرعي حجت دی. نو څکه موږ وایو چي که د یو شي د مکیلي یا موزوني کېدلو په باره کي نص موجود نه وي نو په دې صورت کي به د تاجرانو د عُرف اعتبار کیږي.

وعن أبي يوسف إلخ: لـه امام ابـو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي د منصوص عليه شي پر خلاف هم عُرف معتبر دی، يعني که د يو شي مکيلي کېدل په نص سره ثابت وي لېکن عُرف د هغه پر موزوني کېدلو جاري وي نو هغه به موزوني شمارل کيږي. او که د يو شي موزوني کېدل په نص سره ثابت وي لېکن عُرف د هغه پر مکيلي کېدلو جاري وي نو هغه به مکيلي شمارل کيږي؛ ځکه د نبي کريم ﷺ په زمانه کي چي د مکيلي او موزوني شيانو پر کَيل کولو او وزن کولو کوم نص وارد سوی دی دا د هغه زمانې د خلکو د عرف او عادت په وجه دی. لهذا عُرف مقصود وګرځېدی، نو کله چي وروسته عُرف بدل سو نو د هغه مطابق به حکم ثابتيږي. لهذا څرنګه چي د غنمو مکيلي کېدل په نص سره ثابت دي لېکن وروسته چي په هغوی کي د خلکو عادت (عرف) بدل سو او خلکو په وزن سره معامله پکښي شروع کړه. نو ځکه هغوی به موزوني شمارل کيږي، همدارنګه سره او سپين زر د نبي ﷺ په زمانه کي موزوني وه. لېکن که يو ځای په هغوی کي په کَيل سره د معامله کولو رواج او عُرف وي نو هغوی به مکيلي شمارل کيږي او په هغوی کي به د کَيل په ذريعه برابري کيږي.

**د طرفينو له طرفه جواب**: د جواب حاصل دا دی چي د مکيلي يا موزوني شيانو د معيار او مقدار په بدلولو سره دا نه لازميږي چي د عُرف په وجه چي کوم معيار متعين کړل سي نو هغه دي بالکل برابر او د واقع مطابق وي. يعني که غنم په وزن سره خرڅ کړل سي نو په دې صورت کي پوره برابري (سل فيصده برابري) يقيني نه ده يعني دا يقيني نه ده چي په کَيل کي څومره غنم راځي په وزن کي دي هم هغومره راسي. همدارنګه د سره زرو په کَيل کولو سره دا نه لازميږي چي په کَيل کي دي هغومره سره زر راسي څومره چي په وزن کي راتلل. حاصل دا چي د کَيل او وزن په بدلولو کې د کمې و زياتوب شبهه سته. او دا خو تاسي ته معلومه ده چي د ربوا په باب کي شبهه هم د حقيقت په څېر ده يعني له شبهۀ ربوا (شبهۀ فضل) څخه د حقيقي ربوا په څېر ځان ساتل ضروري دي. کنې عقد به فاسد سي. لکه په هغه صورت کي چي د شبهۀ ربوا (شبهۀ فضل) په وجه عقد فاسديږي کله چي په اټکل سره غنم او داسي نور خرڅ کړل سي.

إلا أنه يجوز إلخ: د طرفينو په نيز خو اصلي قاعده همدا ده چي د نبي کريم ﷺ په زمانه کي کوم شی مکيلي يا موزوني وو هغه به همېشه مکيلي او موزوني وي. لېکن د "بيع سلم" مسئله له هغه څخه جلا ده. مثلاً که يو څوک غنم (کوم چي مکيلي دي) د وزن په حساب سره تر يو معلوم مودت پورې د بيع سَلم په توګه رانيسي نو هم دا بيع جائز ده؛ ځکه په بيع سلم کي مماثلت او برابري معتبر نه ده. بلکې په بيع سلم کي د مسلم فيه (يعني د غنمو) داسي معلومېدل معتبر دي چي د مسلم فيه (غنمو) د ورسپارلو په وخت کي جنګ او نزاع پيدا نه سي او د غنمو په وزن کولو او د هغوی د مقدار په بيانولو سره مسلم فيه يعني غنم معلوميږي (همدارنګه د معلوم مودت ټاکلو په وجه د ورسپارلو وخت هم معلوم وي). نو ځکه به د مکيلي شي "بيع سلم" د وزن په اعتبار سره جائز او صحيح وي.

## د رطلي شيانو حکم

قَالَ: وَكُلُّ مَا يُنْسَبُ إِلَى الرِّطْلِ فرمايي: او هر هغه شی کوم چي د رطل وطرف ته منسوب کيږي فَهُوَ وَزْنِيٌّ نو هغه به موزوني وي مَعْنَاهُ: مَا يُبَاعُ بِالْأَوَاقِيِّ د دې معنیٰ دا ده: چي کوم شی په اوقيه وو سره خرڅول کيږي [نو هغه به موزوني شمارل کيږي] لِأَنَّهَا قُدِّرَتْ بِطَرِيقِ الْوَزْنِ ځکه چي هغه د وزن په طريقه سره اندازه کړل سوي دي [مطلب دا چي د رطل او اوقيه اندازه د وزن په اعتبار سره تاکل سوې ده] حَتَّى يُحْتَسَبَ مَا يُبَاعُ بِهَا وَزْنًا همدا وجه ده چي کوم شی په اوقيه سره خرڅول کيږي هغه موزوني شمارل کيږي بِخِلَافِ سَائِرِ الْمَكَايِيلِ په خلاف د نورو مکيلي شيانو وَإِذَا كَانَ مَوْزُونًا او کله چي هغه [يعني د رطل او اوقيه وطرف ته منسوب] شی موزوني دی فَلَوْ بِيعَ بِمِكْيَالٍ لَا يُعْرَفُ وَزْنُهُ بِمِكْيَالٍ مِثْلِهِ نو که دا [موزوني] شی په داسي پيمانه سره خرڅ کړل سي چي د هغه وزن معلوم نه وي، د داسي پيمانې په عوض کي کوم چي د هغې په شان [په خير] وي لَا يَجُوزُ نو دا جائز نه دي لِتَوَهُّمِ الْفَضْلِ فِي الْوَزْنِ ځکه چي [دلته] په وزن کي د زياتوب شبهه سته بِمَنْزِلَةِ الْمُجَازَفَةِ لکه په اټکل سره چي [د خرڅولو په صورت کي د زياتوب] شبهه وي.

**اللغات**: ﴿رِطْل﴾ دا په عربو کي يو لوښی وو چي په هغه سره به مکيلي شيان يعني غنم او داسي نور پيمانه کېدل. صاحب د احسن الفتاویٰ ليکلي دي چي يو رطل د اوسني وخت په حساب سره (۴۴۲) ګرامه کيږي او (۸) رطله يو صاع کيږي او يو صاع (۳۵۳۸) ګرامه کيږي يعني تقريباً درې نيم کېلو (په پاکستاني حساب سره) دا د عراقي رطل مقدار دی کوم چي د فقهاؤ په نيز معتبر دی. ﴿أوقيه﴾ دا هم پخوا يو وزن او پيمانه وه چي په هغه سره به اکثراً دراهم او دنانير وزن کېدل. يوه اوقيه د مصري رطل له دوولسو (۱۲) اجزاؤ څخه يو جزء کيږي. او د درهم په حساب سره يوه اوقيه (۴۰) درهمه کيږي. د اوسني وخت په حساب سره د يوې اوقيې وزن (۲۵۶۴) ګرامه کيږي او (۱۲) اوقيې يو رطل کيږي. په خينو علاقو کي به د اوقيه او رطل مقدار څه مختلف وو (اثمار الهداية). اوقيه اوس هم په مصر او شام کي استعماليږي. خو اوس يې له پخوا څخه وزن کم کړل سوی دی. ﴿مکيال﴾ د مِفعال پر وزن د ظرف صيغه ده: د کيل کولو لوښی، پيمانه. ﴿فضل﴾ زياتوب، اضافه.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي رطل که څه هم يو لوښی او پيمانه ده او اوقيه که څه هم يو وزن او پيمانه ده، خو د هغوی په ذريعه چي کوم شيان خرڅ کړل سي هغه به موزوني شمارل کيږي، لکه زموږ په زمانه کي چي هم شيدې په پيمانه سره خرڅيږي لېکن مراد ځني وزن وي، مثلاً که يو څوک پنځه لېتره (پنځه لوټې) شيدې رانيسي، نو له دې څخه پنځه کېلو (پنځه سېره) شيدې مراد وي، همدارنګه غوړي، تېل او داسي نور که څه هم په لوښې او پيمانه سره خرڅول کيږي مګر د هغه لوښي وزن او مقدار معلوم وي او مراد ځني وزن وي.

حاصل د مسئلې دا چي که يو څوک د رطل يا اوقيه په ذريعه يو شی رانيسي يا يې خرڅ کړي نو له دې څخه به وزن مراديږي او د وزن حکم به پر کيږي، پيمانه به نه ځني مراديږي؛ ځکه چي اوقيه او رطل د وزن په اعتبار سره اندازه کړل سوي دي (يعني د اوقيه او رطل لپاره چي کوم مقدار ټاکل سوی دی هغه د وزن په اعتبار سره ټاکل سوی دی چي اوقيه مثلاً دومره وزن لري).

په خلاف د مکيلي شيانو چي په هغوی کي به کَيل معتبر وي. وزن به معتبر نه وي، مثلاً که څوک ووايي چي ما لس قفيزه غنم رانيول نو له دې څخه به وزن نه مراديږي بلکي هغه لوښی (قفيز) به ځني مراديږي چي په هغه سره غنم پيمانه کول کيږي.

**واذا کان موزونا إلخ**: فرمايي کله چي د رطل په ذريعه خرڅ کړل سوی شی موزوني دی، نو که يو څوک يو موزوني شی مثلاً سپين زر په نامعلومه وزن والا پيمانې او لوښي کي د هغه په شان پيمانې سره خرڅ کړي (يعني بائع په يو داسي لوښي کي سپين زر واچوي چي د هغه وزن معلوم نه وي او بيا مشتري ته ووايي چي د غه يو لوښی سپين زر د دغومره لوښي سپينو زرو په عوض کي درباندي خرڅوم) نو دا بيع جائز نه ده، ځکه که په موزوني شی کي د پيمانې په ذريعه برابري وکړی سي نو په يوه طرف کي د زياتوب شبهه راځي (يعني کېدای سي چي د يوه طرف په لوښي کي سپين زر څه زيات وي) لکه په اټکل او اندازه سره د برابري کولو په صورت کي چي يوه طرف ته د زياتوب شبهه راځي، او څرنګه چي د ربوا په باب کي شبهه هم د حقيقت قائم مقام ده او د حقيقي ربوا په څېر حرامه ده، نو ځکه به دلته د شبههٔ ربوا په وجه بيع فاسديږي.

## په "بيع صرف" كې پر دواړو عوضونو قبضه ضروري ده

قَالَ: وَعَقْدُ الصَّرْفِ مَا وَقَعَ عَلَى جِنْسِ الْأَثْمَانِ او بيع صرف هغه بيع ده چې پر ثمن [نقودو] واقع سوې وي يُعْتَبَرُ فِيهِ قَبْضُ عِوَضَيْهِ فِي الْمَجْلِسِ [او] په هغه كې پر دواړو عوضونو په مجلس كې دننه قبضه كول معتبر دي لِقَوْلِهِ ﷺ: [1] « وَالْفِضَةَ بِالْفِضَةِ هَاءَ وَهَاءَ » ځكه نبي ﷺ فرمايلي دي: او سپين زر د سپينو زرو په عوض كې د واخله او راكړه په ځېر [خرڅ كړئ!] مَعْنَاهُ: يَدًا بِيَدٍ او د دې معنى ده: لاس په لاس [ايې خرڅ كړئ!] وَسَنُبَيِّنُ الْفِقْهَ فِي الصَّرْفِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او [د دې] عقلي دليل به مونږ انشاء الله په كتاب الصرف كې بيان كړو.

**اللغات**: ﴿أثمان﴾ جمع د ثَمَن ده، مراد ځني نقود (دنانير او دراهم، سره او سپين زر دي). ﴿عقد الصرف﴾ بيع الصرف هغه بيع ته وايي چې په هغه كې دواړو طرفونو ته نقود وي. ﴿هاء وهاء﴾ واخله او واخله (يعني چې بائع ومشتري ته ووايي: واخله او مشتري بائع ته وايي: واخله). "هَاءَ" مبني پر فتح دی په معنی سره د "واخله"، او "فِضَةً" د "بِيْعُوا" مقدر مفعول دی. د حديث معنی ده: تاسي سپين زر د سپينو زرو په عوض كې داسي پر يوه ځاى خرڅ كړئ! چې بائع مشتري ته ووايي: واخله! او مشتري بائع ته ووايي: واخله! مطلب دا چې سپين زر او داسي نور شيان بالكل لاس په لاس سره خرڅ كړئ!.

**تشريح**: فرمايي په بيع صَرف كې دواړه عوضونه د نقودو له قبيلې څخه وي، او كله د دواړو جنس يو (متحد) وي، لكه سره زر د سرو زرو په عوض كې يا سپين زر د سپينو زرو په عوض كې، او كله د دواړو جنس مختلف وي، لكه سره زر د سپينو زرو په عوض كې يا سپين زر د سرو زرو په عوض كې. نو په اول صورت كې يعني د اتحاد الجنس په صورت كې د دواړو عوضونو په مينځ كې برابري هم ضروري ده او د عقد په مجلس كې د بائع او مشتري قبضه كول هم ضروري دي، او د اختلاف الجنس په صورت كې خو برابري شرط او ضروري نه ده لېكن د عقد په مجلس كې قبضه كول ضروري دي؛ دليل د عبارت حديث دی، په دې حديث كې لاس په لاس د سپينو زرو دوركولو او اخيستلو حكم سوی دی، چې د هغه ښكاره مطلب همدا دی چې د عقد په مجلس كې پر عوضينو قبضه كول ضروري دي. پاته سو عقلي دليل نو هغه به انشاء الله په كتاب الصرف كې بيان سي.

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب المساقاة، باب الصرف وبيع الذهب، حديث رقم: ۱۵۰۸۶، ۴۱۴۳، ص: ۶۹۲.

## له ثمانو څخه بغير په نورو شيانو کي فقط تعيــين معتبر دی، قبضه ضروري نه ده

قَالَ: وَمَا سِوَاهُ مِمَّا فِيهِ الرِّبَا يُعْتَبَرُ فِيهِ التَّعْيِينُ وَلَا يُعْتَبَرُ فِيهِ التَّقَابُضُ فرمايي: او له بيع صَرف [نقودو] څخه بغير هغه اموال چي په هغوی کي ربوا وي [يعني نور أموال ربويه] په هغه کي مُتعيَّن کول معتبر دي، او [د عاقدينو] قبضه کول معتبر نه دي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ فِي بَيْعِ الطَّعَامِ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله د غلې په بيع کي [يعني په غنم او داسي نورو خوراکي شيانو کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی] لَهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَام فِي الْحَدِيثِ الْمَعْرُوفِ[1]: "يَدًا بِيَدٍ" د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل په "حديث مشهور" کي د رسول الله ﷺ دا قول دی: "يدًا بيدٍ" وَلِأَنَّهُ إِذَا لَمْ يُقْبَضْ فِي الْمَجْلِسِ يَتَعَاقَبُ الْقَبْضُ او ځکه چي کله په مجلس کي قبضه نه وي نو قبضه به تر مجلس وروسته واقع سي [او يو عوض به غير نقد وګرځي] وَلِلنَّقْدِ مَزِيَّةٌ او نقد ته [پر غير نقد] ارزښت [او زياتوب] حاصل دی فَيَتَحَقَّقُ شُبْهَةُ الرِّبَوا نو ځکه د ربوا شبهه به ثابته سي وَلَنَا: أَنَّهُ مَبِيعٌ مُتَعَيِّنٌ زموږ دليل دا دی: چي هغه [يعني له نقودو څخه بغير بل مال] مبيع وي او مُتعيَّن وي فَلَا يُشْتَرَطُ فِيهِ الْقَبْضُ نو ځکه په هغه کي به قبضه شرط نه وي كَالثَّوْبِ لکه کپړه وَهٰذَا لِأَنَّ الْفَائِدَةَ الْمَطْلُوبَةَ إِنَّمَا هُوَ التَّمَكُّنُ مِنَ التَّصَرُّفِ او دا ځکه چي په بيع سره کومه فايده مقصود ده هغه د تصرف قدرت حاصلېدل دي وَيَتَرَتَّبُ ذٰلِكَ عَلَى التَّعْيِينِ او دا پر مُتعيَّن کولو مُرتّب کيږي بِخِلَافِ الصَّرْفِ په خلاف د بيع صَرف لِأَنَّ الْقَبْضَ فِيهِ لِيَتَعَيَّنَ بِهِ ځکه په هغه کي قبضه په دې وجه ده چي په قبضه سره [جنس د نقودو] مُتعيَّن سي وَمَعْنٰى قَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَام "يَدًا بِيَدٍ": "عَيْنًا بِعَيْنٍ" او د نبي کريم ﷺ د دې قول "يدا بيد" معنیٰ ده: "عينا بعين" وَكَذَا رَوَاهُ[2] عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او همداسي عباده بن صامت رضي الله عنه روايت کړی دی وَتَعَاقُبُ الْقَبْضِ لَا يُعْتَبَرُ تَفَاوُتًا فِي الْمَالِ عُرْفًا او [تر مجلس وروسته] د قبضې واقع کېدل [د تاجرانو] په عُرف کي په مال کي تفاوت نه شمارل کيږي بِخِلَافِ النَّقْدِ وَالْمُؤَجَّلِ په خلاف د نقد او مؤجل [پور والا].

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب المساقاة، باب الصرف وبيع الذهب، حديث رقم: ۴۱۴۷.

[2] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب المساقاة، باب الصرف وبيع الذهب، حديث رقم: ۴۱۴۵.

**اللغات**: ﴿تقابض﴾ د تفاعل مصدر دی: یو تر بله قبضه سره کول (یعني بائع پر مبیع قبضه وکړي او مشتري پر ثمن قبضه وکړي)، ﴿الطعام﴾ غله. یعني غنم او داسې نور د خوړلو شیان (مطعومات)، ﴿مزیة﴾ فضیلت، زیاتوب، اهمیت، ارزښت، ﴿یتعاقب﴾ د تفاعل مضارع ده: وروسته کېدل. بعد کې راتلل، وروسته واقع کېدل، ﴿تفاوت﴾ د تفاعل مصدر دی: یو له بل څخه جلا کېدل. توپیر. ﴿النقد﴾ نغد، کوم عوض چې فوراً (سمدستي) اداء کړل سي، ﴿مؤجل﴾ نېټه داره، پور والا، د کوم عوض لپاره چې څه مودت وټاکل سي (چې دومره وخت وروسته يې در کوم).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې له نقودو څخه بغیر (یعني له سرو او سپینو زرو څخه بغیر) د نورو اموالِ ربویه په بیع کې یعني د مکیلاتو او موزوناتو په بیع کې فقط د عوضینو مُتعین کول معتبر دي، په مجلس کې دننه قبضه کول معتبر نه دي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز که مطعوم شی د مطعوم په عوض کې خرڅ کړل سي برابره ده هغه په اتحاد الجنس سره وي لکه غنم د غنمو په عوض کې. یا په اختلاف الجنس سره وي لکه غنم د اوربشو په عوض کې، نو (د امام شافعي په نېز) په هغه کې مُتعین کول کافي نه دي بلکې قبضه کول ضروري دي، لهذا که د بیع الطعام بالطعام په صورت کې له قبضې څخه بغیر بائع او مشتري له مجلس څخه جلا سي، نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز بیع فاسدیږي، او زموږ په نېز نه فاسدیږي.

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چې د ربوا په حدیث کې له "یَدًا بیدٍ" څخه قبضه مراد ده، ځکه چې "یَد" (لاس) د قبضه کولو آله ده، نو د آلې (یَد) په ذکر کولو سره ذی الاله یعني قبضه مراد سوې ده، له دې څخه معلومه سوه چې د اموالِ ربویه په بیع کې پر عوضینو په مجلس کې دننه د بائع او مشتري قبضه کول ضروري دي، برابره ده عوضین د نقودو له قبیلې څخه یا نه وي.

دویم دلیل دا دی چې پر کوم عوض د عقد په مجلس کې قبضه نه وسي نو پر هغه به وروسته قبضه واقع سي یعني هغه به غیر نقد (غیرِ نغد) وي او پر کوم عوض چې د عقد په مجلس کې قبضه وسي هغه نقد دی، او نقد ته پر غیر نقد ارزښت او فضیلت حاصل وي (یعني پر کوم شي چې په مجلس کې قبضه وسي د هغه قیمت او ارزښت زیاتیږي او کوم شی چې پور والا / مؤجل / وي د هغه قیمت کمیږي)، لهذا کله چې نقد ته پر غیر نقد ارزښت او فضیلت حاصل دی نو په دې وجه به د ربوا شبهه پیدا سي. او د احنافو پر قول د ربوا شبهه د حقیقي ربوا په څېر د بیع له جواز څخه مانع ده. نو ځکه د بیع الطعام بالطعام په صورت کې پر دواړو عوضونو په مجلس کې دننه قبضه کول ضروري دي.

**زموږ دليل:** دا دی چي له سرو او سپينو زرو څخه بغير هر د ربوا مال (مال ربوا) مبيع او مُتعيّن وي، او کوم شی چي مُتعيّن وي يعني په مُتعيّنولو سره مُتعيّنيږي په هغه کي قبضه شرط نه ده، لکه کپړه، غلام، څاروی او داسي نور، او په مُتعيّن شي کي په دې وجه قبضه شرط نه ده ځکه د بيع فايده دا ده چي د تصرف قدرت حاصل سي (يعني چي دواړو عاقدينو ته په عوضينو کي د تصرّف کولو قدرت حاصل سي) او څرنګه چي د شي په مُتعيّنولو سره دا فايده حاصليږي، نو ځکه د قبضې ضرورت نسته. په خلاف د بيع صَرف، چي په هغه کي په مجلس کي دننه قبضه کول ضروري دي، ځکه په بيع صَرف کي نقود په مُتعيّنولو سره نه مُتعيّن کيږي، نو ځکه د هغوی د مُتعيّنولو لپاره قبضه شرط ګرځول سوې ده، او څرنګه چي له نقودو څخه بغير نور شيان په مُتعيّنولو سره مُتعيّن کيږي، نو ځکه د هغوی په بيع کي د قبضې اعتبار نه دی سوی.

**ومعنی قوله عليه السلام إلخ:** په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د نقلي دليل (حديث) جواب ورکوي فرمايي چي په حديث کي له "يداً بيدٍ" څخه مراد "عيناً بعينٍ" دي، يعني د اموال ربويه بيع د خپل همجنس په عوض کي هغه وخت جائز ده کله چي عوضين مُتعيّن وي، او د دې تائيد د عباده بن صامت رضي الله عنه په حديث سره هم کيږي حديث دا دی: "قَالَ: إِنِّي سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صلى الله عليه وسلم يَنْهٰى عَنْ بَيْعِ الذَّهَبِ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ بِالْفِضَّةِ وَالْبُرِّ بِالْبُرِّ وَالشَّعِيْرِ بِالشَّعِيْرِ وَالتَّمْرِ بِالتَّمْرِ وَالْمِلْحِ بِالْمِلْحِ إِلاَّ سَوَاءً بِسَوَاءٍ عَيْنًا بِعَيْنٍ فَمَنْ زَادَ أَوِ اسْتَزَادَ فَقَدْ أَرْبٰى". او ګورئ! د دې حديث په آخر کي د "عيناً بعينٍ" الفاظ ذکر سوي دي.

حاصل دا چي څرنګه "يداً بيدٍ" د قبضې احتمال لري (ځکه چي "يد" د قبضه کولو آله ده) همدارنګه د تعيين (متعين کولو) احتمال هم لري، ځکه چي "يد" د "اشاره باليد" احتمال لري او "اشاره باليد" په تعيين سره حاصليږي، نو ګواکي د "يداً بيدٍ" په لفظ کي د تعيين احتمال هم سته، او "عيناً بعينٍ" (کوم چي د مسلم شريف روايت دی دا محکم روايت دی او په دې کي د تعيين احتمال نسته، او قاعده دا ده چي محتمل به پر محکم حمل کيږي (يعني کله چي په يو شي کي دوه احتماله وي نو هغه به پر محکم حمل کيږي او يو احتمال به راجح ګرځول کيږي)، لهذا کله چي "يداً بيدٍ" د "عيناً بعينٍ" په معنیٰ سره دي نو ځکه په بيع الطعام بالطعام کي صرف د عوضينو مُتعيّن کول شرط سو، نه قبضه کول. نو ثابته سوه چي له نقودو څخه بغير په نورو اموال ربويه کي فقط تعيين معتبر دی، نه قبضه کول.

**اعتراض:** که څوک دا اعتراض وکړي چې تاسو په بيع صَرف کې له "يدًا بيدٍ" څخه د قبضې معنیٰ مراد کړې ده، او د نورو شيانو په بيع کې مو له هغه څخه د تعيين معنیٰ مراد کړې ده، نو که چيرې قبضه او تعيين دواړه د "يد" حقيقي معنیٰ سي نو "عمومِ مشترک" به لازم سي. او که يو حقيقت وي او بل مجاز وي نو "جمع بين الحقيقة والمجاز" به لازم سي، او دا دواړه خبرې داحنافو په نيز ناجائز دي.

د دې اعتراض جواب دا دی چې داسې نه ده بلکې په دواړو صورتونو کې يعنې په بيع صرف کې او له بيع صَرف (نقودو) څخه بغير په نورو شيانو کې له "يدًا بيدٍ" څخه ضرف تعيين مراد دی، خو څرنګه چې په بيع صَرف کې تعيين په قبضه سره حاصليږي، ځکه چې سره او سپين زر (نقود) په عقد او فسخ کې په مُتعينولو سره نه مُتعيّن کيږي، نو ځکه د سره او سپينو زرو تعيين صرف په قبضه سره کيږي، لهذا کله چې سره او سپين زر له قبضې څخه بغير نه مُتعيّن کيږي نو ځکه د هغوی د مُتعيّن کولو لپاره قبضه لازم وګرځول سوه، او څرنګه چې له سره او سپينو زرو څخه بغير نور شيان په مُتعيّنولو سره مُتعيّن کيږي، نو ځکه د هغوی د مُتعيّنولو لپاره به قبضې ته هيڅ ضرورت نه وي. (په لنډه توګه دا چې په بيع صَرف کې هم له "يداً بيدٍ" څخه تعيين مراد دی. خو څرنګه چې په بيع صَرف کې د تعيين لپاره قبضه کول ضروري دي نو ځکه په بيع صَرف کې له هغه څخه قبضه مراد سوې ده کوم چې تعيين لره مستلزم ده).

وتعاقب القبض إلخ: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د عقلي دليل جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چې که عوضين پور نه وي بلکې نقد (نغد) وي او مُتعيّن وي، نو د تاجرانو په عُرف کې د مقبوض فی المجلس او د غير مقبوض فی المجلس په ماليت کې تفاوت معتبر نه دی، يعنې داسې نه ده چې پر کوم عوض په مجلس کې قبضه سوې وي د هغه ماليت دې زيات وي او پر کوم عوض چې تر مجلس وروسته قبضه سوې وي د هغه د ماليت دې کم وي (داسې نه ده) بلکې په ماليت کې دواړه برابر وي، او کله چې په ماليت کې دواړه سره برابر دي، نو ځکه کوم عوض چې مقبوض فی المجلس وي هغه ته پر بل عوض هيڅ ارزښت او فضيلت حاصل نه دی، لهذا کله چې مقبوض فی المجلس ته په غير مقبوض فی المجلس باندې هيڅ ارزښت حاصل نه دی نو ځکه په دې صورت کې به د ربوا شبهه هم نه پيدا کيږي. او کله چې د ربوا شبهه پيدا نه سوه، نو بيع به هم ناجائز نه وي بلکې جائز به وي. په خلاف د نقد او پور. ځکه که يو عوض نقد وي او بل پور والا وي نو د تاجرانو په عُرف کې په ماليت کې تفاوت لازميږي (يعنې نقد ته پر غير نقد [پور والا] باندې ارزښت او فضيلت حاصل وي)، نو ځکه د يوه عوض د نقد کېدلو او د بل يوه د پور کېدلو په صورت کې به د ربوا شبهه پيدا کيږي او د هغه په وجه به بيع ناجائز وي.

## په عددي شیانو کې د تفاضل د جواز بیان

قَالَ: وَيَجُوزُ بَيْعُ الْبَيْضَةِ بِالْبَيْضَتَيْنِ وَالتَّمْرَةِ بِالتَّمْرَتَيْنِ وَالْجَوْزَةِ بِالْجَوْزَتَيْنِ فرمايي: یوه هګۍ د دوو هګیو په عوض کې او یوه خرما د دوو خرماوو په عوض کې او یو جوز د دوو جوزو په عوض کې خرڅول جائز دي لِانْعِدَامِ الْمِعْيَارِ ځکه چې [په هغوی کې] "قدر" معدوم دی فَلَا يَتَحَقَّقُ الرِّبَا نو ځکه ربوا به نه ثابتیږي وَالشَّافِعِيُّ يُخَالِفُنَا فِيهِ او په دې حکم کې امام شافعي رَحِمَهُ الله زموږ مخالف دی لِوُجُودِ الطَّعْمِ ځکه چې [په هغوی کې] طعم موجود دی عَلَى مَا مَرَّ لکه [مخکې] چې تېر سوه.

**اللغات**: ﴿بيضة﴾ هګۍ، ﴿جوزة﴾ یو جوز.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې زموږ په نېز یوه هګۍ د دوو هګیو په عوض کې. همدارنګه یوه خرما د دوو خرماوو په عوض کې خرڅول جائز دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز ناجائز دي.

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چې د هغه په نېز په مطعوماتو کې د ربوا علت طعم دی. او په دې شیانو کې طعم موجود دی. نو ځکه د عوضینو په مینځ کې برابري ضروري ده. او څرنګه چې دلته په مذکوره شیانو کې برابري موجود نه ده. نو ځکه به ربوا ثابتیږي او د هغه په وجه به بیع ناجائز وي.

**زموږ دلیل**: دا دی چې د ربوا علت قدر مع الجنس دی. او په مذکوره شیانو کې قدر مع الجنس موجود نه دی: ځکه هګۍ او جوز خو عددي شیان دي. او خرما که څه هم مکیلي ده لېکن له نصف صاع څخه د کم مقدار لپاره په شریعت کې هیڅ پیمانه نسته. نو ځکه یوه او دوې خرماوې به له مکیلي کېدلو څخه خارج وي. لهذا کله چې مذکوره شیان قدري نه دي. یعني نه مکیلي دي او نه موزوني دي. نو ځکه د تفاضل او زیاتوب سره به د هغوی بیع هم جائز وي (خو څرنګه چې په هغوی کې اتحادُالجنس موجود دی. نو ځکه صرف د هغوی نقد بیع به جائز وي او "نَساء" یعني د یوه عوض قرض کېدل به حرام وي؛ ځکه چې یوازې د یوه وصف موجودېدل "نَساء" حراموي).

## یوه پیسه (فلس) د دوو پیسو په عوض کې خرڅول (حکم او اختلاف)

قَالَ: وَيَجُوزُ بَيْعُ الْفَلْسِ بِالْفَلْسَيْنِ بِأَعْيَانِهِمَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ فرمايي: او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله یوه مُعینه پیسه د دوو مُعینو پیسو په عوض کې خرڅول جائز دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ [1]: لَا يَجُوزُ او

[1] القول الراجح قول محمد رَحِمَهُ الله، قال المفتي علام قادر النعماني: لأن جميع المعاملات في هذا الزمان على الثمن العرفي [illegible] ولا يعرف [illegible] الثمن الشرعي بل هو من الصناعة في هذا الزمان. ولو جاز بيع الفلس بالفلسين لانفتح باب [illegible] [illegible] ج ٢، ص ٥٩]

امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې جائز نه دي لِأَنَّ الثَّمَنِيَّةَ تَثْبُتُ بِاصْطِلَاحِ الْكُلِّ ځکه چې [د فلوسو] ثمن کېدل د ټولو خلکو په اتفاق سره ثابتيږي فَلَا تَبْطُلُ بِاصْطِلَاحِهِمَا نو ځکه [صرف] د بائع او مشتري په اتفاق سره به [د فلوسو] ثمنيت نه باطليږي وَإِذَا بَقِيَتْ أَثْمَانًا او کله چې فلوس ثمن پاته سوه لَا تَتَعَيَّنُ نو ځکه هغوی به نه متعين کيږي فَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَا بِغَيْرِ أَعْيَانِهِمَا نو دا [بيع] داسي سوه لکه کله چې هغوی دواړه [يعني د فلوسو دواړه عوضونه] غير معين وي وَكَبَيْعِ الدِّرْهَمِ بِالدِّرْهَمَيْنِ او لکه يو درهم د دوو درهمو په عوض کي خرڅول وَلَهُمَا: أَنَّ الثَّمَنِيَّةَ فِي حَقِّهِمَا تَثْبُتُ بِاصْطِلَاحِهِمَا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې د فلوسو ثمن والی د عاقدينو په حق کي د هغوی په اتفاق کولو سره ثابتيږي إِذْ لَا وِلَايَةَ لِلْغَيْرِ عَلَيْهِمَا ځکه چې بل چا ته پر هغوی دواړو هيڅ ولايت نسته فَتَبْطُلُ بِاصْطِلَاحِهِمَا نو ځکه د هغوی دواړو په اتفاق سره به د فلوسو ثمن والي باطليږي وَإِذَا بَطَلَتِ الثَّمَنِيَّةُ او کله چې ثمنيت باطل سو تَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِينِ نو هغوی [يعني فلوس] به په متعينولو سره متعين کيږي وَلَا يَعُودُ وَزْنِيًّا او هغوی به موزوني کېدونکي نه راګرځي لِبَقَاءِ الِاصْطِلَاحِ عَلَى الْعَدِّ ځکه چې د هغوی پر عددي کېدلو [شمېر والا کېدلو] اتفاق باقي دی إِذْ فِي نَقْضِهِ فِي حَقِّ الْعَدِّ فَسَادُ الْعَقْدِ ځکه چې د عددي کېدلو په حق کي د اتفاق په ماتېدلو [ختمېدلو] کي د عقد فساد دی [يعني په دې سره د عقد صحت له منځه ځي او عقد فاسديږي] فَصَارَ كَالْجَوْزَةِ بِالْجَوْزَتَيْنِ نو دا داسي سوه لکه يو جوز د دوو جوزو په عوض کي خرڅول بِخِلَافِ النُّقُودِ په خلاف د نقودو لِأَنَّهَا لِلثَّمَنِيَّةِ خِلْقَةٌ ځکه چې هغوی په پيدايشي ټوګه د ثمنيت لپاره وي [يعني هغوی په پيدايشي توګه ثمن دي او داسي نه دي لکه فلوس چې د خلکو په اتفاق سره ثمن کيږي] وَبِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَا بِغَيْرِ أَعْيَانِهِمَا او په خلاف د هغه صورت کله چې هغوی دواړه [يعني د فلوسو دواړه عوضونه] غير معين وي لِأَنَّهُ كَالِئٌ بِالْكَالِئِ ځکه چې دا د پور [دين] په عوض کي د پور بيع ده وَقَدْ نُهِيَ عَنْهُ[1] او له دې څخه منع سوې ده وَبِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ أَحَدُهُمَا بِغَيْرِ عَيْنِهِ او په خلاف د هغه صورت کله چې له دواړو څخه يو عوض غير معين وي لِأَنَّ الْجِنْسَ بِانْفِرَادِهِ يُحَرِّمُ النَّسَاءَ ځکه چې يوازي جنس [هم] پور حراموي.

---

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب البيوع، حديث رقم: ۳۰۴۱، ۳۰۴۲.

**اللغات**: ﴿اصطلاح﴾ د افتعال مصدر دی: پر یو مخصوص شي د خلکو اتفاق کول، راضي کېدل، (لکه څرنګه چي ویل کیږي چي دا د هغه ښار اصطلاح ده، یعني د ښار خلکو پر دغه اتفاق کړی دی)، ﴿لا یعود﴾ له نصر څخه د نفي صیغه ده: راګرځېدل (واپس راتلل)، ﴿کالئ﴾ دین، پور، قرض.

**تشریح**: "فلس" پیسه ته وایي، یعني له سرو او سپینو زرو څخه بغیر بله سکه، جمع یې "فلوس" راځي.

فلوس د فلوسو په عوض کي متفاضلاً خرڅول، د دې بیع څلور (۴) صورتونه دي:

①... د یوې غیرِ مُعیّنې پیسې بیع (خرڅول) د دوو غیرِ مُعیّنو پیسو په عوض کي. ② د یوې مُعیّنې پیسې بیع د دوو غیر مُعیّنو پیسو په عوض کي. ③ د یوې غیر مُعیّنې پیسې بیع د دوو مُعیّنو پیسو په عوض کي. ④ د یوې مُعیّنې پیسې بیع د دوو مُعیّنو پیسو په عوض کي.

په اولو دریو صورتونو کي بیع فاسده ده، او په څلورم صورت کي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز ده او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله یو قول دی، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز ناجائز ده او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله بل قول دی.

**اول صورت**: په اول صورت کي ځکه بیع فاسده ده چي هغه فلوس کوم چي په بازار کي رواج وي او چلیږي، هغوی ټوله په خپل منځ کي یو د بل مماثل دي او په مالیت کي سره برابره ده، او څرنګه چي خلکو پر دې اتفاق کړی دی چي د فلوسو د جید کېدلو او ردي کېدلو په وجه په مالیت کي تفاوت ساقط الاعتبار دی، لهذا کوم طرف ته چي دوې پیسې وي په هغه طرف کي یوه پیسه له عوض څخه خالي او په عقد (بیع) کي مشروط ده، او داسي زیاتوب کوم چي له عوض څخه خالي او په عقد کي مشروط وي هغه ته ربوا وایي او ربوا حرام ده، نو ځکه به دا بیع ناجائز او فاسد وي.

**دویم صورت**: په دویم صورت کي ځکه بیع فاسد او ناجائز ده چي کوم طرف ته یوه پیسه مُعیّنه ده، د هغه طرف والا عاقد به هغه پیسه خپل ملګري (دویم عاقد) ته سپاري او د هغه ملګری به بعینه هغه دیوې بلي پیسې سره یو ځای کوي او هغه ته به یې سپاري، نو کوم عاقد چي یوه مُعیّنه پیسه ور کړې وه د هغه و طرف ته بعینه د هغه خپل مال واپس راغلی دی او دویمه پیسه هغه ته بلا عوضه حاصله سوه، او په عقد کي بلاعوضه مال حاصلېدل (په دې شرط چي مشروط هم وي) ربوا ده، او ربوا ناجائز ده، نو ځکه به د بیع دا صورت هم ناجائز وي.

**دريم صورت:** ځکه ناجائز دی چي که يوه عاقد يوه غير مُعينه پيسه د دوو مُعينو پيسو په عوض کي خرڅه کړه او پر دوو مُعينو پيسو يې قبضه وکړه، نو د هغه پر ذمه چي کومه پيسه واجب سوه هغه به د دې پيسې پر ځای له مَقبوضه دوو پيسو څخه يوه پيسه خپل ملګري (دويم عاقد) ته ورکوي، نو د هغه سره يوه پيسه بلاعوضه پاته سوه، او بلاعوضه پاتېدل ربوا ده، نو ځکه دا صورت به هم ناجائز وي.

**څلورم صورت:** په څلورم صورت کي د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د فلوسو ثمن کېدل د ټولو خلکو په اتفاق سره ثابت سوي دي، او کوم شی چي د ټولو خلکو په اتفاق سره ثابت سوی وي هغه صرف د بائع او مشتري باطلولو سره نه باطلېږي، ځکه چي بائع او مشتري ته له خپل ځان څخه بغير پر بل چا ولايت حاصل نه دی، لهذا کله چي د بائع او مشتري په باطلولو سره د فلوسو ثمنيت (ثمن والی) نه باطلېږي، نو د هغوی ثمنيت به باقي پاته وي، او کله چي د فلوسو ثمنيت باقي دي نو هغوی به په مُتعينولو سره نه مُتعين کيږي، او کله چي فلوس په مُتعينولو سره نه مُتعين کيږي، نو د هغوی بيع به داسي وي لکه دواړه عوضونه چي غير مُعين وي، او مخکي ذکر سوه چي که دواړه عوضونه (يعني که د دواړو طرفونو فلوس) غير مُعين وي نو بيع ناجائز کيږي. نو ځکه به په دې صورت کي هم بيع نه جائز کيږي. او يوه پيسه د دوو پيسو په عوض کي خرڅول به داسي وي لکه يو درهم د دوو درهمو په عوض کي خرڅول، او څرنګه چي دا ناجائز دي، نو ځکه مذکورت صورت به هم ناجائز وي.

ولهما أن الثمنية إلخ: د شيخينو دليل دا دی چي د عاقدَينو (بائع او مشتري) په حق کي د فلوسو ثمن والی په خپله د هغوی په اتفاق کولو سره ثابت سوی دی، نه د ټولو خلکو په اتفاق سره؛ ځکه چي پر عاقدَينو د بل چا ولايت حاصل نه دی، لهذا کله چي د عاقدَينو په انکار کولو سره د فلوسو ثمن والی ثابت سوی دی نو ځکه د هغوی په باطلولو سره به باطلېږي، او کله چي د فلوسو ثمن والی باطل سو نو فلوس سامان وګرځېده، او سامان په مُتعيّنولو سره مُتعين کيږي، او څرنګه چي په يوه او دوو پيسو کي قدر (معيار) موجود نه دی، يعني نه مکيلي دي او نه موزوني دي. نو ځکه د هغوی په بيع کي د کمي وزياتوب (تفاضل) په کولو سره به ربوا نه ثابتيږي. او کله چي ربوا ثابته نه سوه. نو ځکه به دا بيع جائز وي.

ولا يعود وزنيًا إلخ: دا د يو سوال جواب دی، سوال دا دی چي کله د عاقدَينو په حق کي د فلوسو ثمن والی باطل سو نو اوس به د فلوسو موزوني کېدل هم واپس راګرځي، ځکه چي فلوس له اوسپني او ژړو څخه جوړ وي او ژړ او اوسپنه موزوني شيان دي. لهذا کله چي د هغوی ثمنيت (ثمن والي) باطل سي نو هغوی صرف د اوسپني او ژړو ټوټې پاته سي. نو دا داسي سو ګواکي هغه د ژړو يوه ټوټه کړه د دوو

نوکرو په عوض کې خرڅه کړه، او دا ناجائز دي، ځکه چې په هغوی کې د ربوا علت (قدر مع الجنس) موجود دی، نو ځکه هغوی په کمي و زیاتوب (تفاضل) سره خرڅول ناجائز دي، حال دا چې شیخین رَحِمَهُمَا اللّٰه دا جائز ګرځوي.

د دې جواب دا دی چې عاقدَینو په فلوسو کې پر دوو شیانو اتفاق کړی دی. یو د فلوس پر ثمن والي او بل د فلوسو پر عددي والي (چې هغوی عددي دي)، مګر کله چې عاقدَینو د یوه فلس (پیسې) په عوض کې د دوو فلوسو پر بیع اقدام وکړی نو ګواکې هغوی له ثمنیت (ثمن والي) څخه اعراض وکړی. ځکه چې د ثمن کېدلو په صورت کې یوه پیسه د دوو پیسو عوض کې خرڅول د ربوا کېدلو په وجه قطعاً ناجائز دي. او عاقدَینو د فلوسو د عددي کېدلو څخه اعراض نه دی کړی. او د هغو په حق کې فلوس له ثمن والي څخه خارجېدل له عددي کېدلو څخه د فلوسو خارجېدلو لره مستلزم هم نه دي. یعني د فلوسو د ثمن نه کېدلو په وجه دا نه لازمیږي چې هغوی دې عددي نه وي. لکه جوز او هګۍ چې دا شیان عددي دي لېکن ثمن نه دي، نو همدا ډول د فلوسو د ثمنیت پر باطلوالي د عاقدَینو د اتفاق کولو څخه وروسته په فلوسو کې خو ثمنیت ختم سو لېکن د هغوی عددي کېدل باقي دي، او کله چې د فلوسو عددي کېدل باقي دي نو اتحاد القدر فوت سو. او د قدر یا جنس د فوتېدلو په صورت کې په کمي و زیاتوب (تفاضل) سره بیع جائز کیږي، نو ځکه به په دې مسئله کې د یوې پیسې بیع د دوو پیسو په عوض کې بېله شکه جائز کیږي.

صاحب د هدایې همدغه جواب داسې ذکر کوي چې د فلوسو پر عددي کېدلو د عاقدَینو اتفاق باقي دی؛ ځکه چې د عددي کېدلو په حق کې دا اتفاق په ختمېدلو سره عقد فاسدیږي حال دا چې عاقدَینو د عقد د صحت (صحیح کېدلو) اراده کړې ده، او د عقد صحت په هغه وخت کې ممکن دی کله چې د فلوسو عددي کېدل باقي پاته سي (یعني د فلوسو د عددي کېدلو له بقاء څخه بغیر د عقد صحت ممکن نه دی)، نو ځکه همدا به ویل کیږي چې د فلوسو پر عددي کېدلو د عاقدَینو اتفاق دی، او کله چې د هغوی پر عددي کېدلو د عاقدَینو اتفاق دی نو فلوس د جوز په څېر سول. او د یوه جوز په عوض کې د دوو جوزو بیع جائز ده، نو همداسې به د یوې پیسې بیع د دوو پیسو په عوض کې جائز وي.

بخلاف النقود إلخ: یعني په خلاف د دراهم او دنانیرو چې د هغوی ثمنیت (ثمن والی) پیدایشي دی (یعني هغوی په پیدایشي توګه ثمن دی)، نو ځکه د عاقدَینو په اتفاق کولو سره به د هغوی ثمنیت نه باطلیږي. لهذا کله چې د هغوی ثمنیت نه باطلیږي نو په کمي و زیاتوب (تفاضل) سره به د هغوی بیع هم ناجائز وي.

**وبخلاف ما إذا كانا إلخ:** په دې سره د امام محمد رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي فرمايي چې که دواړه عوضونه غير مُعين وي نو بيع ځکه ناجائز ده چې په دې صورت کې "کالي بالکالي" يعني دَين بيع د دَين په عوض کې لازميږي (يعني د پور بيع د پور په عوض کې لازميږي). حال دا چې رسول الله ﷺ له "کالي بالکالي" يعني د "دَين بالدَين" له بيع څخه منع کړې ده.

**وبخلاف ما إذا إلخ:** او که له دواړو عوضونو څخه يو عوض غير مُعين وي او بل مُعين وي، نو بيع ځکه ناجائز ده چې په فلوسو کې اتحاد الجنس موجود دئ که څه هم په هغوی کې اتحاد القدر معدوم دی، او يوازې د جنس موجودېدل هم "نساء" يعني پُور حراموي، نو ځکه به دا بيع هم حرام وي؛ ځکه کوم عوض چې غير مُعين وي هغه پُور شمارل کيږي او کوم عوض چې مُعين وي هغه نقد شمارل کيږي.

## د غنمو بيع د اُوړو يا نيـــنو په عوض کې (حکم او اختلاف)

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الْحِنْطَةِ بِالدَّقِيْقِ وَلَا بِالسَّوِيْقِ فرمايي: او غنم نه د اُوړو په عوض کې خرڅول جائز دي او نه د نينو په عوض کې لِأَنَّ الْمُجَانَسَةَ بَاقِيَةٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه چې مجانست مِن وَجه [په يوه اعتبار سره] باقي دی لِأَنَّهُمَا مِنْ أَجْزَاءِ الْحِنْطَةِ ځکه چې اُوړه او نينې دواړه د غنمو له اجزاؤ څخه دي وَالْمِعْيَارُ فِيهِمَا الْكَيْلُ او په دوی دواړو کې [د مماثلت] معيار کَيل دی لٰكِنَّ الْكَيْلَ غَيْرُ مُسَوٍّ بَيْنَهُمَا وَبَيْنَ الْحِنْطَةِ لېکن کَيل د دوی او غنمو په مينځ کې برابري کونکی نه دی [يعني د دوی په مينځ کې برابري نه سي کولای] لِاكْتِنَازِهِمَا فِيْهِ ځکه چې اُوړه او نينې په کَيل [پيمانه] کې سره تخته کيږي [او په ښه توګه يکښې جمع کيږي] وَتَخَلْخُلِ حَبَّاتِ الْحِنْطَةِ او د غنمو د دانو په مينځ کې خلاء پاتيږي فَلَا يَجُوزُ وَإِنْ كَانَ كَيْلًا بِكَيْلٍ نو ځکه به د دوی بيع جائز نه وي که څه هم دا بيع کَيلاً بکَيلٍ وي.

**اللغات:** ﴿حنطة﴾ غنم، ﴿دقيق﴾ دغنمو اوړه، ﴿سويق﴾ نينې، دغنمو او اوربشو وربته سوي (کباب سوي) او ميده سوي دانې (پر اُور کباب کړل سوي او ميده سوي دانې)، دغنمو او اوربشو وربته سوي (کباب سوي) اوړه، ﴿مجانسة﴾ دمفاعلې مصدر دی: هَمْ جِنس کېدل (همجنس کېدل) ﴿اکتناز﴾ د افتعال مصدر دی: د دغه باب دری (۳) معناوې دي: جمع کېدل او ډکېدل، جمع کېدل او سختېدل، او که د دې باب په صله کې "في" راسي لکه دلته، نو بيا يې معنیٰ راځي: تخته کول او

کېښکاږل، یعني اُوړه او داسي نور شیان په ګوني، جوال یا داسي بل شي کي تخته کول چي په ښه توګه جمع سي او ډېر پکښي ځای سي.

**تشریح: مسئله:** دا ده چي زموږ په نېز د غنمو بیع د غنمو د اُوړو په عوض کي او د غنمو بیع د غنمو د نینو په عوض کي جائز نه ده، نه په برابري سره او نه په کمي وزیاتوب سره، همدا یو قول د امام شافعي، امام احمد او امام ثوري رَحِمَهُمُ الله دی. او د امام مالک رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي د غنمو بیع د هغه د اُوړو او نینو په عوض کي په برابري سره جائز ده، همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله اظهر قول دی.

د امام مالک رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي اُوړه او نیني بعینه غنم دي، فرق یې صرف دومره دی چي د غنمو د اجزاء متفرقه نوم اُوړه او نیني دی او د اجزاء مجتمعه نوم یې غنم (حنطة) دی، نو اُوړه او نیني د غنمو د کوچنی (وړوکي) دانو سره مشابه سوه او نفس غنم (خودي غنم) د غنمو د غټو دانو سره مشابه سوه، او د غنمو غټي داني د کوچنی دانو په عوض کي د کَیل او پیمانې په ذریعه په برابري سره خرڅول جائز دي، نو ځکه به غنم هم د اُوړو او نینو په عوض کي په برابری سره خرڅول جائز وي.

لأن المجانسة إلخ: زموږ دلیل دا دی چي د غنمو او اُوړو په مینځ کي او د غنمو او نینو په مینځ کي مِن وَجه مجانست (همجنس کېدل) سته او مِن وَجه نسته (یعني په یوه اعتبار سره په هغوی کي مجانست موجود نه دی او په یوه اعتبار سره موجود نه دی)؛ مِن وَجه ځکه مجانست سته چي د غنمو په میده کېدلو سره صرف د غنمو اجزاء متفرّق کیږي، او شی د خپلو اجزاؤ د متفرق کېدلو په وجه بل شی نه ګرځي بلکي هغه مُځکني شی باقي پاتیږي، نو له میده کېدلو څخه مخکي چي کوم شی وو، تر میده کېدلو وروسته هم هغه شی باقي دی. او من وَجه ځکه مجانست نسته چي د جنس اختلاف د نوم، صورت او معنیٰ په اختلاف سره ثابتیږي، لکه د غنمو او اوربشو په مینځ کي چي اختلاف الجنس دی؛ ځکه چي د دواړو نوم هم مختلف دی، صورت یې هم مختلف دی او معاني او منافع یې هم سره مختلف دي، نو همداسي په دغه صورت کي هم له میده کېدلو څخه مخکي یې نوم غنم وو، او تر میده کېدلو وروسته یې نوم اُوړه یا نیني وګرځېدی، نو ګواکي د دواړو نومونه سره مختلف او جلا دي، نو ځکه من وَجه مجانست زائل سو، او من وَجه زائل نه سو بلکي باقي دی، نو ګواکي د مجانست په زائلېدلو کي شک واقع سو، حال دا چي د مجانست موجودېدل یقیني دي، او یقین د شک په وجه نه زائلیږي، نو ځکه موږ وویل چي من وَجه مجانست موجود دی او من وَجه موجود نه دی بلکي باقي دي. لهذا د غنمو او د هغه د اُوړو او نینو په مینځ کي اتحاد الجنس او اتحاد القدر دواړه موجود سوه، او کله چي قدر مع الجنس دواړه موجود سوه، نو ځکه تفاضل او شبهۀ تفاضل دواړه به حرام وي او په برابري سره به بیع

جائز وي، لېکن څرنګه چې د غنمو، اُوړو او نينو د مقدار معلومولو شی کَيل او پېمانه ده. او د کَيل په ذريعه د غنمو او د هغه د اُوړو او نينو په مينځ کې برابري پيدا کول ناممکن دي. ځکه چې اُوړه په پېمانه کې سره تختته کيږي او په مينځ کې يې هيڅ خلاء نه پاتيږي لېکن د غنمو د دانو په مينځ کې خلاء پاتيږي او هغوی پوره نه سره تختته کيږي. لهذا کله چې د غنمو يو کَيل د اُوړو د يو کَيل په عوض کې خرڅ کړل سي نو د هغوی په مينځ کې به د کمي وزياتوب شبهه راسي يعني دا شبهه به پيدا سي چې اُوړه به زيات وي او غنم به کم وي، او د ربوا په مال کې يعني د قدر مع الجنس د موجودېدلو په صورت کې چې څرنګه حقيقي ربوا حرامه ده. همداسي د ربوا شبهه هم حرامه ده. نو ځکه د غنمو بيع د اُوړو او نينو په عوض کې ناجائز وګرځول سوه که څه هم د کَيل په ذريعه دواړه سره برابر کړل سي.

## د اُوړو بيع د اُوړو په عوض کي (حکم او اختلاف)

وَيَجُوزُ بَيْعُ الدَّقِيْقِ بِالدَّقِيْقِ مُتَسَاوِيًا كَيْلًا او اُوړه د اُوړو په عوض کې د کَيل کولو په ذريعه په برابرۍ سره خرڅول جائز دي لِتَحَقُّقِ الشَّرْطِ ځکه چې شرط موجود دی وَبَيْعُ الدَّقِيْقِ بِالسَّوِيْقِ لَا يَجُوزُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ مُتَفَاضِلًا وَلَا مُتَسَاوِيًا او اُوړه د نينو په عوض کې خرڅول د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز نه په کمي وزياتوب سره جائز دي او نه په برابرۍ سره لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ بَيْعُ الدَّقِيْقِ بِالْمَقْلِيَّةِ وَلَا بَيْعُ السَّوِيْقِ بِالْحِنْطَةِ ځکه چې اُوړه د کباب سوو [وريتل سوو] غنمو په عوض کې خرڅول جائز نه دي او نه نيني د غنمو په عوض کې [خرڅول جائز دي] فَكَذَا بَيْعُ أَجْزَائِهِمَا نو همداسي به د هغوی د اجزاؤ بيع [هم جائز نه] وي لِقِيَامِ الْمُجَانَسَةِ مِنْ وَجْهٍ ځکه چې من وجه مجانست موجود دی وَعِنْدَهُمَا[◎] يَجُوزُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز [په دې صورتونو کې] بيع جائز ده لِأَنَّهُمَا جِنْسَانِ مُخْتَلِفَانِ لِاخْتِلَافِ الْمَقْصُودِ ځکه چې اُوړه او نيني د مقصود د مختلف والي په وجه دوه مختلف [جلا] جنسونه دي قُلْنَا: مُعْظَمُ الْمَقْصُودِ وَهُوَ التَّغَذِّيْ يَشْمَلُهُمَا موږ جواب ورکوو: چې تر ټولو غټ مقصود [مقصد] يعني غذا حاصلول هغوی دواړو لره شامل دی وَلَا يُبَالَىٰ بِفَوَاتِ الْبَعْضِ او د بعضي

---

[◎] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في فتح القدير (ج:۶، ص:۱۶۵)، ورد المحتار (ج:۳، ص:۲۰۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۶۰]

مقصود په فوتېدلو سره به پروا نه کيږي كَالْمَقْلِيَةِ مَعَ غَيْرِ الْمَقْلِيَّةِ لکه د کباب سوو غنمو بيع د نا کباب سوو غنمو سره وَالْعِلْكَةِ بِالْمُسَوَّسَةِ او د ښه [سالم] غنمو بيع د سپږی والا [چينجي والا خرابو] غنمو سره.

**اللغات**: ﴿مقلية﴾ د غنمو وريتل سوي دانې. کباب کړل سوي دانې، پر اُور پخي کړل سوي دانې، ﴿تغذی﴾ د تفعل مصدر دی: غذا گرځول. غذا حاصلول. (دغذا او خوراک په توګه استعمالول). ﴿لا يبالی﴾ د مفاعلې له بابه د نفي مجهول صيغه ده: پروا کول. لحاظ کول. خيال ساتل. ﴿علکة﴾ صحيح سالم غنم کوم چي له سپږی او چينجي څخه پاک وي، صفا غنم. ﴿مُسوّسة﴾ د تفعيل له بابه دمفعول صيغه ده: له سوس څخه مشتق ده. سُوس: هغه چينچي ته کوم چي په دانو کي پيدا کيږي او دانې خوري او خرابوي. دلته ځني مراد سپږی ده. يعني هغه کوچنی حشره چي د غنمو په دانو کي پيدا کيږي او غنم خرابوي. نو د ''مُسوّسة'' معنیٰ ده: سپږی والا خراب غنم.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا ده چي زموږ په نېز د کَيل (پيمانې) په ذريعه په برابری سره د اُوړو بيع د اُوړو په عوض کي جائز ده. همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله قول دی، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په کَيل سره د برابري کولو باوجود هم د اُوړو بيع د اُوړو په عوض کي ناجائز ده.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د پيمانې او کَيل په ذريعه اُوړه نه سي برابرول کېدای، ځکه چي اُوړه په کَيل او پيمانه کي په تخته کولو سره تخته کيږي او سره ننوځي، نو ځکه د کَيل کولو باوجود به په پوره توګه برابري نه ثابتيږي، او کله چي برابري ثابته نه سوه، نو د شبهۀ ربوا په وجه به د اُوړو بيع د اُوړو په عوض کي ناجائز وي که څه هم د کَيل په ذريعه هغوی سره برابر کړل سي.

زموږ دليل دا دی چي د اُوړو او اُوړو په مينځ کي مِن کُلِ وَجه مجانست هم موجود دی او د هغوی په مينځ کي اتحاد القدر هم موجود دی. لهذا کله چي اتحاد الجنس او اتحاد القدر دواړه موجود دي، نو ځکه په دواړو عوضونو کي د کَيل په ذريعه د برابري کولو په صورت کي به بيع جائز کيږي. ځکه چي شرط موجود سو. يعني څرنګه چي د ربوا د علت موجودېدلو په صورت کي د بيع د جواز شرط مساوات او برابري ده. او دلته دا شرط موجود سو. نو ځکه د کَيل په ذريعه په برابري سره به د اُوړو بيع د اُوړو په عوض کي جائز وي. له شيخ ابو بکر محمد بن فضل څخه نقل سوي دي چي دا بيع په هغه وخت کي جائز ده کله چي د دواړو طرفونو اُوړه په کَيل او پيمانه کي ښه سره تخته کړل سي او پوره کنبېکارل سي، ځکه چي په دې صورت کي بيا د کمي وزياتوب شبهه نه پاتيږي.

وبیع الدقیق بالسویق إلخ: او د اوړه بیع د نینو په عوض کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز نه په برابرې سره (متساویاً) جائز ده او نه په کمې وزیاتوب سره (متفاضلاً) جائز ده، لیکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز متساویاً او متفاضلاً دواړه ډوله جائز ده.

**د صاحبینو دلیل:** دا دی چې د غنمو اوړه او د هغه نینې دوه جلا جنسونه دي که څه هم د دواړو اصل یو شی یعنې غنم دي، او د دوی جنس ځکه سره جلا دی چې د دواړو په مقصد کې اختلاف دی، ځکه له اوړو څخه خلک ډوډۍ، روغانۍ او داسې نور پخوي او دا مقصد په نینو سره نه سي حاصلیدای، او نینې د غوړو او بوره سره ګډول کیږي او دا مقصد په اوړو سره نه سي حاصلیدای، لنډه دا چې اوړه او نینې دوه جلا، جلا جنسونه دي، او کله چې هغوی دوه مختلف او جلا جنسونه سوه، نو هغوی به یو د بل په عوض کې په برابرې سره خرڅول هم جائز وي او په کمې وزیاتوب سره به یې خرڅول هم جائز وي؛ ځکه چې د اختلاف الجنس په صورت کې په هره توګه خرڅول جائز دي.

**د امام صاحب دلیل:** امام صاحب رَحِمَهُ الله په دوو طریقو سره د دې بیع پر ناجائز کیدلو دلیل پیش کړی دی، اول دا چې د کباب سوو غنمو بیع د ناکباب سوو غنمو په عوض کې بالاتفاق متساویاً هم ناجائز ده او متفاضلاً هم ناجائز ده، او دا ځکه ناجائز ده چې د دواړو جنس سره یو دی او د دوی په مینځ کې د کَیل په ذریعه برابري پیدا کول ممکن نه دي، ځکه په کباب سوو غنمو کې چې کوم کلکوالی او سختي وي هغو مره سختي په ناکباب سوو غنمو کې نه وي، نو ځکه په کَیل او پیمانه کې به کباب سوي غنم لږ کم راسي او ناکباب سوي غنم به زیات راسي، او کله چې په دوی دواړو کې مساوات ممکن نه دی بلکې د کمې وزیاتوب شبهه پکښې سته، نو ځکه به د دوی بیع هم ناجائز وي. او دا خو تاسې ته معلومه ده چې اوړه د ناکباب سوو غنمو اجزاء دي او نینې د کباب سوو غنمو اجزاء دي، لهذا کله چې اوړه د ناکباب سوو غنمو اجزاء دي او نینې د کباب سوو غنمو اجزاء دي نو د هغوی دواړو جنس به هم سره یو وي، او په هغوی کې د کَیل په ذریعه له برابري کولو څخه وروسته به هم د کمې وزیاتوب شبهه باقې پاتیږي؛ ځکه چې په اوړو کې د نینو په نسبت زیات سختوالي وي (یعنې کله چې اوړه سره تخته کړل سي نو تر نینو زیات سختیږي او سره نښلي)، نو په کوم لوښي او پیمانه کې چې اوړه واچول سي او ډک کړل سي که په هغه لوښي کې نینې واچول سي او ډک کړل سي نو نینې به د وزن په اعتبار سره کمې وي او غنم به زیات وي، نو د همدغه تفاضل د شبهه په وجه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د اوړو بیع د نینو په عوض کې ناجائز ده.

**دويم دليل:** کوم چي صاحب هدايې بيان کړی دی، دا دی چي د اُوړو بيع د کباب سوو غنمو (نينو) په عوض کي، او د نينو بيع د نا کباب سوو غنمو په عوض کي د مجانست او نه مماثلت په وجه ناجائز ده (يعني په دوی کي مجانست موجود دی لېکن مماثلت او برابري نه سي پکښې راتلای نو په دې وجه يې بيع جائز نه ده)، لهذا دغه نه جائز کېدلو د اُوړو او کباب سوو غنمو په مينځ کي او د نينو او نا کباب سوو غنمو په مينځ کي مجانست ثابت کړی، او څرنګه چي نينې او اُوړهٔ هم د هغوی له اجزاؤ څخه دي (يعني اُوړه د ناکباب سوو غنمو اجزاء دي او نينې د کباب سوو غنمو اجزاء دي. او کباب سوي او ناکباب سوي غنم أصل دي) نو ځکه په هغوی کي به هم مجانست ثابتيږي، او څرنګه چي په اصل کي کمي وزياتوب (تفاضل) کول او په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز نه دي، نو همداسي به د هغه اجزاء هم په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز نه وي.

قلنا معظم المقصود إلخ: په دې سره د صاحبينو د عقلي دليل جواب ورکوي فرمايي چي ستاسو دا خبره موږ نه تسليمو چي د اُوړو او نينو مقاصد سره مختلف دي، ځکه موږ وينو چي دا دواړه په غټو منافعو يعني په غذا کېدلو (خوراک کېدلو) کي سره شريک دي، يعني څرنګه چي په اُوړو سره غذا حاصليږي همداسي په نينو سره هم غذا حاصليږي، او پاته سو په ځينې شيانو کي تفاوت نو هغه د اتحاد الجنس لپاره مضر نه دی، لکه په کباب سوو غنمو او ناکباب سوو غنمو کي چي د څه نا څه تفاوت باوجود هم اتحاد الجنس موجود دی، همدارنګه په سپړی والا غنمو او نا سپړی والا غنمو (يعني په کومو غنمو کي چي سپړی پيدا سوي وي او په صحيح سالم غنمو) کي د څه تفاوت باوجود اتحاد الجنس سته، نو همداسي د اُوړو او نينو په مينځ کي هم د څه تفاوت باوجود اتحادُ الجنس سته، او کله چي اتحاد الجنس سته نو څرنګه چي د کباب سوو غنمو بيع د نا کباب سوو غنمو په عوض کي او د صحيح سالم غنمو بيع د سپړی والا غنمو په عوض کي متساوياً او متفاضلاً دواړه ډوله ناجائز ده، همداسي به د اُوړو بيع د نينو په عوض کي هم متساوياً او متفاضلاً دواړه ډوله ناجائز وي.

## د غوښو بيع د څاروي (حيوان) په عوض کي

قَالَ: وَيَجُوزُ بَيْعُ اللَّحْمِ بِالْحَيَوَانِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيفَةَ وَأَبِيْ يُوسُفَ فرمايي: او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز غوښې د ژوندي څاروي په عوض کي خرڅول جائز دي وَقَالَ: مُحَمَّدٌ ۞: إِذَا بَاعَهُ بِلَحْمٍ مِنْ جِنْسِهِ لَا يَجُوزُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي که څاروی د هغه د جنس د غوښو په عوض کي خرڅ کړي نو جائز نه دي [مطلب دا چي ژوندی پسه د بل پسه د پرېکړل سوو غوښو په عوض کي خرڅ کړي] إِلَّا إِذَا كَانَ اللَّحْمُ الْمُفْرَزُ أَكْثَرَ مګر دا چي جلا کړل سوي [پرېکړل سوي] غوښې [د څاروي له غوښو څخه] زياتې وي لِيَكُونَ اللَّحْمُ بِمُقَابَلَةِ مَا فِيهِ مِنَ اللَّحْمِ د دې لپاره چي د هغه غوښو يوه حصه په څاروي کي د موجوده غوښو په مقابله کي راسي وَالْبَاقِيْ بِمُقَابَلَةِ السَّقْطِ او پاته غوښې د څاروي د اجزاؤ په مقابله کي راسي إِذْ لَوْ لَمْ يَكُنْ كَذٰلِكَ ځکه که داسي نه وسي يَتَحَقَّقُ الرِّبَا مِنْ حَيْثُ زِيَادَةِ السَّقْطِ أَوْ مِنْ حَيْثُ زِيَادَةِ اللَّحْمِ نو ربوا به ثابته سي، د حيوان د اجزاؤ د زياتوب په اعتبار سره يا [په حيوان کي د موجوده] غوښو د زياتوب په اعتبار سره فَصَارَ كَالْخَلِّ بِالسِّمْسِمِ نو دا داسي سو لکه د کونجتو په عوض کي د کونجتو تېل خرڅول وَلَهُمَا: أَنَّهُ بَاعَ الْمَوْزُوْنَ بِمَا لَيْسَ بِمَوْزُوْنٍ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي [دلته] بائع موزوني شی د غير موزوني شي په مقابله کي خرڅ کړی دی لِأَنَّ الْحَيَوَانَ لَا يُوزَنُ عَادَةً ځکه چي ژوندی څاروی په عامه توګه نه وزن کيږي [نه تلل کيږي] وَلَا يُمْكِنُ مَعْرِفَةُ ثِقَلِهِ بِالْوَزْنِ او د وزن په ذريعه د هغه درواند والی معلومول [هم] ممکن نه دي لِأَنَّهُ يُخَفِّفُ نَفْسَهُ مَرَّةً وَيُثَقِّلُ أُخْرٰى ځکه چي حيوان کله خپل ځان سپکوي او کله يې درنوي [د دې جملې دوه مطلبه کېدای سي: يو دا چي ځيني وخت حيوان خوراک کړی وي نو په دې وجه درونډ وي او ځيني وخت وږی وي نو سپک وي (اثمار الهدايه). يا يې مطلب دا دی چي ځيني وخت د استرخاء مفاصل په وجه د هغه وزن زيات وي. يعني څاروي خپل اندامونه او بدن سست کړي وي (ځان يې ډيله کړی وي) نو په دې وجه درونډ وي، ځکه استرخاء مفاصل د درونډ والي سبب دی. لکه مړی (ميت) چي د استرخاء مفاصل په وجه درونډ ګرځي] بِخِلَافِ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ په خلاف د دغه

---

۞ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما يظهر من دأب المصنف رَحِمَهُ الله، وكذا في الدر المختار (ج:۴، ص:۲۰۵)، وفي البحر (ج:۶، ص:۱۳۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۶۱]

[دکونجتو] مسئلې لِأَنَّ الْوَزْنَ فِي الْحَالِ يُعَرِّفُ قَدْرَ الدُّهْنِ ځکه چې [دلته] په وزن کولو سره في الحاله [سمدستي] د تېلو مقدار معلومېږي إِذَا مِيزَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الثَّجِيرِ وَيُوزَنُ الثَّجِيرُ کله چې تېل او فضله کونجتي سره جلا کړل سي او فضله کونجتي وزن کړل سي [يعني که چيري فضله کونجتي (نخوړل سوي کونجتي) او تېل سره جلا کړل سي او فضلهٔ کونجتي وزن کړل سي، نو په دغه وزن کولو سره سمدستي د تېلو مقدار معلومېږي].

**اللغات**: ﴿مُفرز﴾ د افعال د باب مفعول دی: جلا کړی سوی، عليحده کړی سوی. ﴿السقط﴾ له غوښو څخه بغير د څاروي نور اجزاء. لکه څرمن (پوست)، سر، پښې، لرۍ، اينه، کولمې. ﴿حَلّ﴾ په حاء سره: د کونجتو تېل چي هغه ته ''شيرج'' هم وايي (معجم الوسيط، مصباح اللغات). ﴿سمسم﴾ کونجتي، کونجدي، مشهوره دانې چي له هغه څخه تېل هم ايستل کېږي. ﴿ثقل﴾ دروند والی، د وزن زياتوالی. ﴿دهن﴾ تېل، روغن. ﴿مِيزَ﴾ د ضرب له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده، د تفعيل له باب څخه هم راتلای سي: سره جلا کول، عليحده کول، بېلول (مصباح اللغات). ﴿ثجير﴾ فضله کوم چي د يو شي له نخوړلو څخه وروسته پاته سي، مثلاً که انګور ونښتېړل سي نو پاته فضله موداو ته ''ثجير'' وايي. دلته ځني مراد نخوړل سوي کونجتي دي. يعني کله چي له کونجتو څخه په پوره توګه خپل تېل ونخوړل سي او هغوی بالکل وچې پاته سي نو دغه فضله کونجتو ته ''ثجير'' وايي.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي که د يو څاروي مثلاً د پسه جلا کړل سوي (پرېکړل سوي) غوښې دژوندي پسه په عوض کي خرڅې کړل سي نو دا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز دي. برابره ده موجوده غوښې دژوندي پسه د غوښو سره برابري وي او که زياتي وي، امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: که چيري موجوده (پرېکړل سوي) غوښې دژوندي پسه د غوښو سره برابري وي، نو بيع جائز نه ده، لېکن که غوښې دژوندي پسه له غوښو څخه زياتي وي، نو بيع جائز ده.

**د امام محمد دليل**: دا دی چي که موجوده غوښې دژوندي پسه له غوښو څخه زياتي نه وي، نو ربوا به ثابته سي، په دې توګه چي که دا پرېکړل سوي غوښې د څاروي (پسه) د غوښو سره برابري وي نو دا دواړي غوښې به يو د بل په عوض کي سي، او پاته سوه د څاروي څرمن، سر، پښې او داسي نور به بېله عوضه پاته سي، او همدې ته ربوا وايي، ځکه چي د څاروي څرمن، سر، پښې او داسي نور هم قيمتداره او قابل انتفاع شيان دي. نو ځکه له ربوا څخه د ځان ساتلو او د بيع جائز کېدلو په خاطر پرېکړل سوي غوښې دژوندي څاروي له غوښو څخه زياتېدل ضروري دي. د دې لپاره چي د پرېکړل سوو غوښو يوه حصه د څاروي د غوښو په مقابله کي راسي او پاته (مابقي) غوښې د څاروي د سر،

ښنو، څرمن او داسي نورو په مقابله کي راسي. او دا مسئله داسي ده لکه د کونجتو دانې د کونجتو د تېلو په عوض کي خرڅول، يعني که د کونجتي رايستل سوي تېل له هغه تېلو څخه زيات وي کوم چي په کونجتو کي موجوده وي نو بيع جائز کيږي، ځکه د تېلو يوه حصه به د تېلو په مقابله کي راسي او پاته تېل به د فضله (نځوړل سوو) کونجتو په مقابله کي راسي، لېکن که رايستل سوي تېل د کونجتو له تېلو څخه زيات نه وي، نو فضله (نځوړل سوي) کونجتي به بېله عوضه پاته سي او دا ربوا ده کوم چي ناجائز ده.

**د شيخينو دليل**: دا دی چي د ربوا د ثبوت لپاره د ربوا دواړه علتونه موجودېدل ضروري دي. او دلته دواړه علتونه معدوم دي؛ ځکه چي غوښي موزوني شی دي او حيوان غير موزوني (عددي) شی دی، ځکه چي حيوان خو نه په عُرف عام کي وزن کيږي او نه په وزن سره د هغه مقدار معلومېدای سي؛ ځکه ځيني وخت هغه خپل ځان سپکوي او کله يې درنوي، لهذا اتحاد القدر موجود نه سو، او صاحب د کفايې ويلي دي چي دلته اتحاد الجنس هم موجود نه دی، ځکه حيوان محترک او حساس شی دی، حال دا چي غوښي له حرکت او حس څخه خالي دي، نو کله چي په حيوان او غوښو کي د ربوا دواړه علتونه معدوم دي، نو ځکه هغوی به يو د بل په عوض کي خرڅول جائز وي، هغه که په برابري سره وي او که په کمي و زياتوب سره وي.

بخلاف تلك المسألة إلخ: دا د امام محمد رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی، حاصل د جواب دا چي کونجتي که څه هم مکيلي دي، لېکن د دې باوجود د وزن په ذريعه د هغوی مقدار معلومول ممکن دي، په دې توګه چي تېل له فضله (نځوړل سوو) کونجتو څخه جلا کړل سي او فضله کونجتي يا تېل جلا وزن کړل سي نو سمدستي به يې مقدار معلوم سي، مثلاً که کونجتي پنځه سېره وي، بيا چي له هغوی څخه تېل ويستل سي او وزن کړل سي نو هغوی درې سره وي او تېل دوه سېره وي، نو له دې څخه دا اندازه معلومېږي چي د پنځه سېره کونجتو په مقابله کي له دوو سېرو څخه زيات تېل ورکول ضروري دي، چي د تېلو يوه حصه په کونجتو کي د موجوده تېلو په مقابله کي راسي او پاته تېل د فضله (نځوړل سوو) کونجتو په مقابله کي راسي، خلاصه د جواب دا چي په کونجتو کي د وزن په ذريعه د تېلو مقدار معلومول ممکن دي لهذا په دې توګه له ربوا څخه ځان ساتل کېدای سي، ځکه چي په کونجتو او تېلو کي اتحاد الجنس موجود دی، او اتحاد القدر که څه هم نسته لېکن په وزن سره د مقدار معلومول ممکن دي، د دې په خلاف د حيوان او د غوښو والا په مسئله کي نه اتحاد القدر سته او نه اتحاد الجنس سته. نو ځکه د حيوان او غوښو والا مسئله د کونجتو او تېلو پر مسئله قياسول صحيح نه دي.

## د لنده تازه خُرما بيع د وچي خُرما په عوض کي

قَالَ: وَيَجُوزُ بَيْعُ الرُّطَبِ بِالتَّمْرِ مِثْلاً بِمِثْلٍ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ فرمايي: او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تازه لنده خرما د وچي خرما په عوض کي په برابرۍ سره خرڅول جائز دي وَقَالاَ: لاَيَجُوزُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي جائز نه دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلاَم [1] حِيْنَ سُئِلَ عَنْهُ'' أَوَيَنْقُصُ إِذَا جَفَّ؟ ځکه کله چي دلندې خرما په باره کي له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسوه نو نبي ﷺ وفرمايل: آيا لنده خرما چي کله وچه سي نو کميږي [يعني آيا په وچېدلو سره يې وزن کميږي] فَقِيْلَ: نَعَمْ نو جواب ورکول سو: چي هو! فَقَالَ عَلَيْهِ السَّلاَم: لاَ إِذًا نو نبي ﷺ وفرمايل: چي جائز نه دي وَلَهُ: أَنَّ الرُّطَبَ تَمْرٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي رطب هم تمر ده [يعني لنده خرما هم د وچي خرما په څېر ده] لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلاَم [2] حِيْنَ أُهْدِيَ إِلَيْهِ رُطَبٌ: أَوَكُلُّ تَمْرِ خَيْبَرَ هٰكَذَا ځکه کله چي رسول الله ﷺ ته د خيبر رطب [تازه خرماوي] هديه کړل سوې، نو نبي ﷺ وفرمايل: آيا د خيبر ټوله تمر داسي دي سَمَّاهُ تَمْرًا [او ګورئ!] رسول الله ﷺ رطب ته تمر ويلي دي وَبَيْعُ التَّمْرِ بِمِثْلِهِ جَائِزٌ لِمَا رَوَيْنَا او تمر د تمر په عوض کي برابر برابر خرڅول جائز دي، د هغه حديث په وجه کوم چي موږ [مخکي] روايت کړی وَلِأَنَّهُ لَوْكَانَ تَمْرًا او په دې وجه [هم] چي که چيري رطب تمر وي جَازَ الْبَيْعُ بِأَوَّلِ الْحَدِيْثِ نو د حديث په اول [اولي حصې] سره به دا بيع جائز وي وَإِنْ كَانَ غَيْرَتَمْرٍ او که تمر نه وي فَبِآخِرِهِ نو د حديث په آخر سره به [بيع جائز وي] وَهُوَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلاَم [3]: «إِذَا اخْتَلَفَ النَّوْعَانِ فَبِيْعُوْا كَيْفَ شِئْتُمْ» او هغه د نبي ﷺ دا فرمان دی: کله چي دواړه نوعي سره مختلف وي نو څنګه چي ستاسو خوښه وي بيع کوئ! وَمَدَارُ مَا

---

❁ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما أن العلامة العيني والمحقق ابن الهمام رَحِمَهُمَا الله يرجحان قول الصاحبين وميلانهما إليه (طلوع النيرين ج:١، ص:٣٣٥)، وكذا في رد المختار (ج:٤، ص:٢٠٦). [القول الراجح ج:٢، ص:٦٢]

[1] تخريج: أخرجه امام مالک في الموطاء، كتاب البيوع، باب ما يكره من بيع التمر، حديث رقم:٢٢. وابو داؤد في كتاب البيوع، باب في التمر والتمر، حديث رقم:٣٣٥٩. ودار قطني في كتاب البيوع، حديث رقم:٢٩٧٦.

[2] تخريج: أخرجه النسائي في كتاب البيوع، باب بيع التمر متفاضلاً، حديث رقم:٤٥٥٧.

[3] تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب البيوع، حديث رقم:٢٨٥٣.

| رَوَاهُ عَلٰى زَيْدِ بْنِ عَيَّاشٍ او كوم حديث چي صاحبينو روايت كړی دی د هغه مدار پر زيد بن عياش دی وَهُوَضَعِيفٌ عِنْدَ النَّقَلَةِ او هغه د حديث نقل كونكو په نيز ضعيف راوي دی. |
|---|

**اللغات:** ﴿الرُّطَب﴾ تازه لنده خرما، خیشته خرما، واحد یې رُطَبَةٌ راځي، او رَطب: لانده شي ته وايي، ﴿تَمر﴾ وچه خرما، چې ځيني خلک هغه ته "چواره" وايي، واحد يې "تَمرَةٌ" راځي، ﴿ينقص﴾ د نصر له بابه د مضارع صيغه ده: کمېدل، سپکېدل، ﴿جف﴾ د ماضي صيغه ده، له ضرب او سمع دواړو څخه راتلای سي: وچېدل، ﴿أُهدی﴾ د افعال له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده: هديه کول (هديتاً ورکول)، په تحفه کي ورکول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د خيشته تازه خرما (رُطَب) بيع د وچي خرما (تَمر) په عوض کي متفاضلاً يعني په کمي و زياتوب سره بالاجماع ناجائز ده. او متساوياً يعني په برابري سره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز جائز ده، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز ناجائز ده. (د امام مالک، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله مسلک هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په څېر دی، يعني د هغوی په نيز هم جائز ده).

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي يو ځل له نبي کريم ﷺ څخه د "بيعُ الرطب بالتمر مثلاً بمثل" په باره کي پوښتنه وسوه چي دا جائز ده، که نه؟ نو نبي ﷺ وفرمايل چي آيا رطب يعني تازه خرما چي کله وچه سي نو د هغې وزن کمېږي، که نه؟ خلکو په جواب کي وويل چي هو! کمېږي، نو نبي کريم ﷺ وفرمايل چي کله خبره داسي ده نو بيا د رطب بيع د تمر په عوض کي په برابري سره ناجائز ده. له دې حديث څخه معلومه سوه چي بيع الرطب بالتمر په برابري سره (مثلاً بمثل) ناجائز ده.

**د امام صاحب دليل:** د هغه نقلي دليل دا دی چي يو ځل رسول الله ﷺ ته د خيبر رطب يعني د خيبر تازه خرماوي هديه کړل سوې نو نبي کريم ﷺ وفرمايل: "أَوَكُلُّ تَمْرِ خَيْبَرَ هٰكَذَا"، آيا د خيبر ټولي خرماوي داسي دي. نو اوګورئ! رسول الله ﷺ رطب ته تمر ويلي دي، له دې څخه معلومه سوه چي رطب تمر دي، او د تمر بيع د تمر په عوض کي په برابري سره جائز ده، لکه په حديث کي چي ذکر سوي دي: "اَلتَّمْرُ بِالتَّمْرِ مَثَلاً بِمَثَلٍ وَالفَضْلُ رِبًوا" يعني د تمر بيع د تمر په عوض کي په برابري سره جائز ده. نو ثابته سوه چي د رطب بيع د تمر په عوض کي هم په برابري سره جائز ده.

**ولأنه لوكان تمرا إلخ:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دی چي د رطب دوه صور تونه دي: يا رطب به تمر وي او يا به غير تمر وي، که رطب تمر وي، نو د رطب بيع د تمر په عوض کي په برابري سره جائز

ده، ځکه د "حديث مشهور" په اول کي ذکر سوي دي چي "اَلتَّمْرُ بِالتَّمْرِ مِثلاً بِمِثْلٍ"، او که رطب غير تمر وي نو په دې صورت کي د رطب بيع د تمر په عوض کي متساوياً او متفاضلاً دواړه ډوله جائز ده، ځکه د همدغه حديث په آخر کي ذکر سوي دي "إِذَا اخْتَلَفَ النَّوْعَانِ فَبِيْعُوْا كَيْفَ شِئْتُمْ" يعني د اختلاف الجنس په صورت کي چي څنګه ستاسو زړه غواړي بيع کوئ!، برابره ده هغه متساوياً وي او که متفاضلاً وي.

ومارواه إلخ: د صاحبينو د ذکر سوي حديث جواب دا دی چي د دې حديث مدار پر زيد بن عياش دی، او زيد بن عياش د محدثينو په نېز ضعيف او مجهول راوي دی، نو ځکه دا روايت به د "حديث مشهور" په مقابله کي د استدلال قابل نه وي.

## د انګورو بيع د کشمشو په عوض کي

قَالَ: وَكَذَا الْعِنَبُ بِالزَّبِيْبِ فرمايي: او همدارنګه انګور د کشمشو په عوض کي [خرڅول] يَعْنِي عَلىٰ هٰذَا الْخِلَافِ يعني [هغه هم] پر دغه اختلاف دي وَالْوَجْهُ مَا بَيَّنَّاهُ او د دې دليل هغه دی کوم چي موږ [مخکي] بيان کړی وَقِيْلَ: لَا يَجُوْزُ بِالْاِتِّفَاقِ او ويل سوي دي چي دا بالاتفاق جائز نه دي اعْتِبَارًا بِالْحِنْطَةِ الْمَقْلِيَّةِ بِغَيْرِ الْمَقْلِيَّةِ د نا کباب سوو غنمو په عوض کي د کباب سوو غنمو پر بيع په قياس کولو سره وَالرُّطَبُ بِالرُّطَبِ يَجُوْزُ مُتَمَاثِلًا كَيْلًا عِنْدَنَا او زموږ په نېز رطب د رطب په عوض کي په کيل کولو سره برابر، برابر خرڅول جائز دي لِأَنَّهُ بَيْعُ التَّمْرِ بِالتَّمْرِ ځکه چي دا د تمر په عوض کي تمر خرڅول دي وَكَذَا بَيْعُ الْحِنْطَةِ الرَّطْبَةِ أَوِ الْمَبْلُوْلَةِ بِمِثْلِهَا أَوْ بِالْيَابِسَةِ او همدارنګه پاخه تازه غنم يا [په اوبو سره] لانده سوي غنم د هغوی د مثل غنمو په عوض کي يا د وچو غنمو په عوض کي خرڅول [د شيخينو رحمهما الله په نېز جائز دي] أَوِ التَّمْرُ أَوِ الزَّبِيْبُ الْمُنْقَعُ بِالْمُنْقَعِ مِنْهُمَا مُتَمَاثِلًا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ يا وچه لنده سوې خرما يا لانده سوي کشمش د لنده سوې خرما او لانده سوي کشمشو په عوض کي په برابرۍ سره خرڅول د شيخينو رحمهما الله په نېز جائز دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا يَجُوْزُ جَمِيْعُ ذٰلِكَ او امام محمد رحمه الله فرمايي: چي دغه ټوله صورتونه جائز نه دي لِأَنَّهُ

---

[illegible]

يَعْتَبِرُ الْمُسَاوَاةُ فِي أَعْدَلِ الْأَحْوَالِ ځکه چي امام محمد رَحِمَهُ الله په برابري کونکي [مناسب] حالت کي د مساوات اعتبار کوي وَهُوَ الْمَآلُ او هغه د انجام حالت دی [يعني هغه د ميوې آخري حالت (د وچېدلو حالت) دی] وَأَبُوحَنِيفَةَ يَعْتَبِرُهُ فِي الْحَالِ او امام صاحب رَحِمَهُ الله د في الحاله مساوات اعتبار کوي [يعني د عقد کولو په وخت کي د مساوات اعتبار کوي] وَكَذَا أَبُويُوسُفَ او همداسي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله [هم د في الحاله مساوات اعتبار کوي] عَمَلًا بِإِطْلَاقِ الْحَدِيثِ د حديث په اطلاق باندي په عمل کولو سره إِلَّا أَنَّهُ تَرَكَ هٰذَا الْأَصْلَ فِي بَيْعِ الرُّطَبِ بِالتَّمْرِ مګر دا چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله خپل دغه اصل په بيع الرطب بالتمر کي پرې ايښی دی لِمَا رَوَيْنَاهُ لَهُمَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ د صاحبينو لپاره روايت کړی وَوَجْهُ الْفَرْقِ لِمُحَمَّدٍ بَيْنَ هٰذِهِ الْفُصُولِ وَبَيْنَ الرُّطَبِ بِالرُّطَبِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د دغه [پورتني مذکوره] صورتونو او د بيع الرطب بالرطب په مينځ کي د فرق وجه دا ده أَنَّ التَّفَاوُتَ فِيمَا يَظْهَرُ مَعَ بَقَاءِ الْبَدَلَيْنِ عَلَى الِاسْمِ الَّذِي عُقِدَ عَلَيْهِ الْعَقْدُ چي په دغه صورتونو کي تفاوت ښکاره کيږي سره د دې چي دواړه عوضونه پر هماغه نوم باقي پاتيږي چي پر هغه عقد منعقد سوی دی وَفِي الرُّطَبِ بِالتَّمْرِ مَعَ بَقَاءِ أَحَدِهِمَا عَلَى ذٰلِكَ او [همدارنګه] په بيع الرطب بالتمر کي [تفاوت ښکاره کيږي] سره د دې چي په دواړو عوضونو کي يو عوض پر هماغه نوم باقي پاتيږي [چي پر هغه عقد واقع سوی دی] فَيَكُونَ تَفَاوُتًا فِي عَيْنِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ نو ځکه دا به د معقود عليه [مبيع] په ذات کي تفاوت وي وَفِي الرُّطَبِ بِالرُّطَبِ التَّفَاوُتُ بَعْدَ زَوَالِ ذٰلِكَ الِاسْمِ او په بيع الرطب بالرطب کي د هغه نوم [رطب] تر زائلېدلو وروسته تفاوت ښکاره کيږي فَلَمْ يَكُنْ تَفَاوُتًا فِي الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ نو ځکه دا به په معقود عليه کي تفاوت نه وي فَلَا يُعْتَبَرُ نو ځکه هغه به معتبر [هم] نه وي.

**اللغات**: ﴿عنب﴾ انګور، ﴿زبيب﴾ وچ کړل سوي انګور، کشمش، ﴿مبلولة﴾ د نصر له بابه د مفعول صيغه ده: په اوبو سره لوند سوی شی، ﴿مقنع﴾ د افعال له بابه د مفعول صيغه ده. أَنْقَعَ يُنْقِعُ إِنْقَاعًا: کشمش يا داسي بل شی په اوبو کي اچول او دومره وخت پرېښوول چي ښه لانده او ښه پاسته سي، التمر المنقع: خيشته لنده سوې خرما، الزبيب المنقع: خيشته لانده سوي کشمش،

﴿أعدل﴾برابري كونكى، مناسب، مطلب يې دا دى چي تر وچېدلو وروسته مماثلت او برابري باقي پاته وي، ﴿مآل﴾ انجام، وروستني حالت، آخري حالت.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تازه انګور د کشمشو په عوض کي په برابري سره خرڅول جائز دي، او د صاحبينو په نېز نه متساوياً جائز دي، او نه متفاضلاً، (همداد ائمه ثلاثه وو مسلک دى) او د دواړو دليلونه مخکي تېر سوي دي، يعني:

**د امام صاحب دليل:** دا دى چي که د عنب او زبيب دواړو جنس سره يو وي، نو د "حديث مشهور" د اولي حصې په وجه به هغوى يو د بل په عوض کي د کَيل په ذريعه په برابرۍ سره خرڅول جائز وي، او که د دواړو جنس جلا وي نو بيا به د هغه حديث د آخري حصې "إِذَا اخْتَلَفَ النَّوْعَانِ فَبِيْعُوْا كَيْفَ شِئْتُمْ" په وجه د هغوى بيع متساوياً او متفاضلاً دواړه ډوله جائز وي.

**د صاحبينو دليل:** دا دى چي کله تازه انګور وچ سي او کشمش وګرځي نو د هغوى وزن کم سي، نو ځکه د زيد بن عياش د حديث "أَوَيَنْقُصُ إِذَا جَفَّ، فَقِيْلَ: نَعَم. فَقَالَ: لَا" په وجه به د هغوى بيع جائز نه وي.

<u>وقيل لايجوز بالاتفاق إلخ</u>: ځيني حضرات وايي چي د انګورو بيع د کشمشو په عوض کي متساوياً بالاتفاق ناجائز ده، د صاحبينو په نېز هم او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم، او پر دغه نه جوازيې په قياس سره استدلال کړى دى، يعني څرنګه چي د کباب سوو غنمو بيع د نا کباب سوو غنمو په عوض کي په برابرۍ سره ناجائز ده لکه مخکي چي تېر سوه، همداسي د عنب بيع د زبيب په عوض کي په برابرۍ سره ناجائز ده. نو د دې ځيني حضراتو پر قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله د روايت مطابق د بيع التمر بالرطب او بيع العنب بالزبيب په مېنځ کي فرق بيانول ضروري دي، ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بيع التمر بالرطب متساوياً جائز ده، او د دې روايت مطابق د هغه په نېز بيع العنب بالزبيب متساوياً ناجائز ده؛ نو د فرق وجه يې دا ده چي په رطب باندي د تمر اطلاق په مخکني حديث "أَوَكُلُّ تَمْرِ خَيْبَرَ هٰكَذَا" سره ثابت دى، نو رطب د تمر په عوض کي خرڅول داسي دي لکه تمر د تمر په عوض کي خرڅول، او تمر د تمر په عوض کي په برابرۍ سره خرڅول جائز دي، نو ځکه رطب به د تمر په عوض کي په برابرۍ سره خرڅول هم جائز وي. او څرنګه چي پر عنب د زبيب

اطلاق په حديث سره ثابت نه دى نو ځکه په زبيب او عنب كي د برابري كولو باوجود به هم تفاوت معتبر وي، او كله چي تفاوت معتبر دى، نو بيع به هم فاسد او ناجائز وي.

والرطب بالرطب إلخ: فرمايي چي د رطب بيع د رطب په عوض كي او د عنب بيع د عنب په عوض كي د كَيل او پيمانې په ذريعه په برابرۍ سره زموږ په نيز جائز ده، همدا د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله قول دى، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز ناجائز ده.

**د امام شافعي دليل**: دا دى چي رطب او عنب د وچېدلو په وخت كي متفاوت كيږي، يعني د رطب او عنب تر وچېدلو وروسته دا ضروري نه ده چي دواړه عوضونه دي برابر پاته سي بلكي په دواړو كي كمي وزياتوب واقع كېداى سي، او ربوا همدې ته وايي چي كمي وزياتوب واقع سي او ربوا ناجائز ده، نو ځكه به د رطب بيع د رطب په عوض كي او د عنب بيع د عنب په عوض كي د كَيل په ذريعه په برابرۍ سره ناجائز وي، لكه څرنګه چي د غنمو بيع د اُوړو په عوض كي په برابرۍ سره ناجائز ده.

**زموږ دليل**: دا دى چي رطب ته نبي ﷺ تمر ويلي دي، نو رطب د رطب په عوض كي خرڅول په حقيقت كي داسي دي لكه تمر د تمر په عوض كي خرڅول، او د مخكني حديث "التَّمْرُ بِالتَّمْرِ مِثْلاً بِمِثْلٍ" په وجه د تمر بيع د تمر په عوض كي په برابرۍ سره جائز ده، نو ځكه به د رطب بيع د رطب په عوض كي هم په برابرۍ سره جائز وي، پر همدې باندي په قياس كولو سره به د عنب بيع د عنب په عوض كي هم په برابري سره جائز وي.

وكذا بيع الحنطة إلخ: فرمايي چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز پاخه تازه غنم د پاخه تازه غنمو په عوض كي يا د لانده كړل سوي غنمو په عوض كي يا د وچو غنمو په عوض كي خرڅول جائز دي، او همداسي لانده سوي غنم د لانده سوو غنمو يا د وچو غنمو په عوض كي خرڅول جائز دي، همدارنګه نور هغه صورتونه كوم چي په عبارت كي ذكر سول دا ټوله صورتونه د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز صحيح او جائز دي. او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي له دغه صورتونو څخه په يوه صورت كي هم بيع جائز نه ده. همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دى.

**د امام محمد دليل**: دا دى چي هغه (امام محمد) په دواړو عوضونو كي د مساوات اعتبار په داسي حالت كي كوي چي هغه تر ټولو زيات برابري كونكى وي، يعني امام محمد رَحِمَهُ الله په اموال ربويه كي د مساوات په هكله د آخري حالت اعتبار كوي، او په دغه پورتني شيانو كي آخري حالت (يعني د دغو شيانو انجام) وچېدل دي، نو ځكه د هغه په نيز به پر همدغه حالت د برابرۍ اعتبار كيږي، لنډه دا

چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د عوضينو تر وچېدلو وروسته د هغوی په مينځ کې مساوات او برابري ضروري ده، لکه د دې حديث "أَوَيَنْقُصُ إِذَا جَفّ. فَقِيْلَ: نَعَم. فَقَال: لَا "څخه چې هم دغه حکم ښکاره کيږي، او په دغه مذکوره صورتونو کې که څه هم في الحاله د عوضينو په مينځ کې برابري او مساوات موجود دي، لېکن تر وچېدلو وروسته خامخا تفاوت پکښې واقع کيږي، نو ځکه په دغه مذکوره صورتونو کې بيع ناجائز ده.

**د شيخينو دليـل**: دا دی چې شيخين په حديث مشهور "الحِنْطَةُ بِالْحِنْطَةِ وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ مِثْلاً بِمَثَلٍ...إلخ" باندې په عمل کولو سره د بيع په وخت کې په دواړو عوضونو کې د مساوات اعتبار کوي، يعنې د هغوی په نيز د اموال ربويه په بيع کې د عقد کولو (بيع کولو) په وخت کې د دواړو عوضونو برابر والی ضروري دی، که څه هم تر وچېدلو وروسته د هغوی په مينځ کې برابري ختمه سي. خو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د عقد کولو په وخت کې د مساوات د اعتبار کولو دغه اُصول په بيع الرطب بالتمر کې پرې اېښې دی، د دغه حديث "أَوَيَنْقُصُ إِذَا جَفّ. فَقِيْلَ: نَعَم. فَقَال: لَا" په وجه، يعنې که چيري په بيع الرطب بالتمر کې دواړه عوضونه د عقد کولو په وخت کې سره برابر وي، نو هم د دغه حديث په وجه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز بيع ناجائز ده.

پاته سوه دا خبره چې امام محمد رَحِمَهُ الله په بيع الرطب بالرطب کې ولې د عقد کولو په وخت کې د مساوات اعتبار کوي لېکن په دغه مذکوره صورتونو کې د آخري حالت اعتبار کوي. يعنې که رطب د رطب په عوض کې د کَيل په ذريعه په برابري سره خرڅ کړل سي نو دا د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز جائز دي که څه هم تر وچېدلو وروسته د هغوی په مينځ کې برابري ختميږي، لېکن په دغه مذکوره صورتونو کې يعنې د پاخه تازه غنمو او داسي نورو په بيع کې د آخري حالت يعنې تر وچېدلو وروسته د مساوات اعتبار کوي، نو د اول صورت او د دغه صورتونو په مينځ کې د فرق وجه څه ده؟

د دې جواب دا دی چې په دغه صورتونو کې يعنې د پاخه تازه غنمو او داسي نورو په بيع کې تر وچېدلو وروسته د دواړو عوضينو په مينځ کې تفاوت ښکاره کيږي سره د دې چې (په دغه رروستني حالت کې هم) دا دواړه عوضونه پر هغه خپل نوم پاتيږي کوم چې د عقد منعقد کېدلو په وخت کې وو. يعنې غنمو ته له وچېدلو څخه مخکې هم غنم وايي او تر وچېدلو وروسته هم غنم ورته وايي، همدارنګه تمر او زبيب له وچېدلو څخه مخکې هم تمر او زبيب وي او تر وچېدلو وروسته هم تمر او زبيب ورته وايي، په نامه کې يې هيڅ تبديلي نه واقع کيږي. همدارنګه په بيع الرطب بالتمر کې تر

وچېدلو وروسته تفاوت ښکاره کيږي سره د دې چې (په دغه وروستني حالت کي) له هغوی دواړو څخه صرف يو عوض يعني تمر پر خپل هغه نوم پاتيږي کوم چي د عقد په وخت کي وو. نو ځکه دغه تفاوت د معقود عليه په ذات کي ښکاره سو. او د معقود عليه په ذات کي چي کوم تفاوت وي هغه ربوا ده او د ربوا کېدلو په وجه عقد فاسدوي. نو ځکه په دغه مذکوره صورتونو کي بيع فاسد او ناجائز ده. او څرنګه چي په بيع الرطب بالرطب کي له نوم زائلېدلو او بدلېدلو څخه وروسته تفاوت ښکاره کيږي، ځکه چي له وچېدلو څخه مخکي د عوضينو نوم رطب وي او تر وچېدلو وروسته د هغوی نوم تمر ګرځي، لهذا کله چي دلته د هغه نوم تر زائلېدلو وروسته تفاوت ښکاره سو کوم چي د عقد په وخت کي وو. نو دا به د معقود عليه په ذات کي تفاوت هم نه شمارل کيږي (ځکه چي معقود عليه رطب وو، نه تمر)، او کله چي دا معقود عليه په ذات کي تفاوت نه سو نو هغه لره به اعتبار هم نه وي، او کله چي دغه تفاوت معتبر نه دی، نو عقد به هم نه فاسديږي، بلکي دا عقد (يعني بيع الرطب بالرطب) به صحيح او جائز وي.

## بُسر د تمر په عوض کي تفاضلاً خرڅول (حکم)

وَلَوْ بَاعَ الْبُسْرَ بِالتَّمْرِ مُتَفَاضِلًا او که [يو څوک] نيم پخته خُرما د [پخې] وچي خُرما په عوض کي په کمي وزياتوب سره خرڅه کړي لَا يَجُوزُ نو جائز نه دي لِأَنَّ الْبُسْرَ تَمْرٌ ځکه چي نيم پخته خرما هم تمر ده بِخِلَافِ الْكُفُرَّىٰ په خلاف د خرما د شکوفې [غوټۍ] حَيْثُ يَجُوزُ بَيْعُهُ بِمَا شَاءَ مِنَ التَّمْرِ اثْنَانِ بِوَاحِدٍ ځکه چي د هغه بيع د هغومره خرماوو په عوض کي جائز کيږي کوم چي [د بائع] خوښه وي، دوې د يوه په عوض کي [يعني دوې شکوفې د يوه تمر په عوض کي او داسي نور ټوله جائز دي] لِأَنَّهُ لَيْسَ بِتَمْرٍ ځکه شګوفه تمر نه ده فَإِنَّ هٰذَا الِاسْمَ لَهُ مِنْ أَوَّلِ مَا تَنْعَقِدُ صُوْرَتُهُ لَا قَبْلَهُ ځکه چي د خرما دا نوم [يعني تمر] د خرما د ابتدائي صورت پر جوړېدلو وي، نه تر هغه مخکي [يعني "تمر" په هغه وخت کي خرما ته وايي کله چي د خرما شکل جوړ سي او پوره سي، او کُفرىٰ خو تر هغه په مخکي حالت کي ورته وايي] وَالْكُفُرَّىٰ عَدَدِيٌّ مُتَفَاوِتٌ او د خرما شکوفه عددي شی ده او متفاوته ده [چي ځيني شګوفې غټې وي او ځيني کوچنۍ وي] حَتّٰى لَوْبَاعَ التَّمْرَ بِهِ نَسِيئَةً تر دې چي که [يو څوک] د شګوفې په عوض کي خرماوي په پور خرڅي کړي [يعني بيع سلم وکړي] لَا يَجُوزُ لِلْجَهَالَةِ نو د جهالت په وجه بيع نه جائز کيږي.

**اللغات**: ﴿بُسر﴾ تر پخېدلو مخکې خرما ته "بسر" وايي، نيم پخته خرما. يعني خرما چې کله جوړه سي لېکن تر اوسه لا کوچنی وي او رسېدلې نه وي نو دا "بسر" خرما ده. ﴿کُفَرّیٰ﴾ او کَفَرّیٰ او کُفُرّیٰ او کَفَر. ټوله لغات پکښې جائز دي: دا په اصل کي د خرما د شګوفې غلاف او پوښ ته وايي، مراد يې دا دی چې د خرما په شګوفه (يعني د خرما په غوټۍ او غنچه) کي انتهائي کوچنۍ کوچنۍ خرماوي وي کوم چې تر اوسه سم نه ليدل کيږي او بيا له هغه ځخه خرماوي جوړيږي، دا شګوفې او غوټۍ په خلګو د دغه انتهائي کوچنۍ خرماوو سره په شمېر خرڅولې. او په دغو شګوفو کي ځيني شګوفې غټې او ځيني کوچنۍ وي لکه د انګورو په ډنډورو کي چې ځيني غټ او ځيني کوچني وي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې نيم پخته خرما د پخې وچې خرما په عوض کي په کمي وزياتوب سره خرڅول ناجائز دي؛ ځکه چې بُسر هم تمر دی، او د تمر بيع د تمر په عوض کي په کمي وزياتوب سره ناجائز ده، نو ځکه د بسر دا بيع به هم ناجائز وي. لېکن د کَيل په ذريعه په برابرۍ سره خرڅول جائز دي په دې شرط چې بائع او مشتري دواړه د عقد په مجلس کي پر عوضَينو قبضه وکړي.

بخلاف الكفرى إلخ: او د خرما شګوفې (غنچې) د وچې خرما په عوض کي په برابرۍ سره خرڅول هم جائز دي او په کمي وزياتوب سره خرڅول هم جائز دي. لهذا يوه شګوفه د دوو خرماوو په عوض کي او يوه خرما د دوو شګوفو په عوض کي خرڅول جائز دي.

دليل دا دی چې کُفریٰ (د خرماوو شګوفه) تمر نه ده، ځکه تمر هغه وخت خرما ته وايي کله چې د خرما شکل او صورت جوړ سي او پوره سي، او کفریٰ خو له دې ځخه په مخکي حالت کي ورته وايي (چې هغوی انتهائي کوچنۍ وي او تر اوسه سم ليدل کيږي نه).

والكفرى عددي إلخ: څرنګه چې کُفریٰ يعني شګوفه عددي شی ده او په شمېر سره خرڅول کيږي او په هغوی کي غټې او کوچنۍ راځي، نو ځکه که څوک د شګوفو په عوض کي خرماوي په پُور سره خرڅې کړي يعني بيع سَلم وکړي نو دا جائز نه دي؛ ځکه کله چې شګوفې په پور خرڅې کړل سي نو دا نا معلومه ده چې د ورسپارلو (ورکولو) په وخت کي به مشتري څنګه شګوفې بائع ته وسپاري غټې او که کوچنۍ. په دې کي جهالت دی. يعني دا اوس نه سي معلومېدلای. او دا جهالت د نزاع سبب ګرځي چې مشتري به د ورسپارلو په وخت کي کوچنۍ شګوفې ورسپاري او بائع به د غټو شګوفو مطالبه کوي. او کوم جهالت چې مفضی الی النزاع وي په هغه سره عقد فاسديږي، نو ځکه په دې صورت کي به هم بيع فاسديږي.

## د زيتون او كونجتو بيع د زيتون او كونجتو د تېلو په عوض كې (تفصيلي حكم)

وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الزَّيْتُوْنِ بِالزَّيْتِ وَالسِّمْسِمِ بِالشَّيْرَجِ او د زيتون بيع د زيتون د [را ايستل سوو] تېلو په عوض كې او د كونجتو بيع د كونجتو د [را ايستل سوو] تېلو په عوض كې جائز نه ده حَتّٰى يَكُوْنَ الزَّيْتُ وَالشَّيْرَجُ أَكْثَرَ مِمَّا فِي الزَّيْتُوْنِ وَالسِّمْسِمِ تر دې چې د زيتون او كونجتو [را ايستل سوي] تېل له هغه تېلو څخه زيات وي كوم چې په زيتون او كونجتو كې موجود وي فَيَكُوْنُ الدُّهْنُ بِمِثْلِهِ وَالزِّيَادَةُ بِالثُّجِيْرِ د دې لپاره چې [را ايستل سوي] تېل د تېلو په عوض كې راسي او زياتوب [زائد تېل] د فضله [نخوړل سوو زيتون او كونجتو] په عوض كې راسي لِأَنَّ عِنْدَ ذٰلِكَ يَعْرٰى عَنِ الرِّبٰوا ځكه چې په همدې وخت كې دا بيع له ربوا څخه خالي كيږي إِذْ مَا فِيْهِ مِنَ الدُّهْنِ مَوْزُوْنٌ ځكه كوم تېل چې په زيتون يا كونجتو كې دي هغه موزوني شی دي وَهٰذَا لِأَنَّ مَا فِيْهِ لَوْ كَانَ أَكْثَرَ أَوْ مُسَاوِيًا لَهُ او دا زياتوب په دې وجه شرط دی ځكه كه چيري هغه تېل كوم چې په زيتون يا كونجتو كې موجود وي له [را ايستلی سوو] تېلو څخه زيات وي يا ور سره برابر وي فَالثُّجِيْرُ وَبَعْضُ الدُّهْنِ أَوِ الثُّجِيْرُ وَحْدَهُ فَضْلٌ نو فضله [نخوړل سوي زيتون، كونجتي] او د تېلو بعضي حصه به زياته [زائده] وي يا فقط فضله [به زياته وي] وَلَوْ لَمْ يُعْلَمْ مِقْدَارُ مَا فِيْهِ او كه د هغه تېلو مقدار معلوم نه وي كوم چې په زيتون يا كونجتو كې دي لَا يَجُوزُ لِاحْتِمَالِ الرِّبٰا نو [هم] د ربوا د احتمال په وجه بيع نه جائز كيږي وَالشُّبْهَةُ فِيْهِ كَالْحَقِيْقَةِ او د ربوا په باب كې شبهه د حقيقت په څېر ده. وَالْجَوْزُ بِدُهْنِهِ وَاللَّبَنُ بِسَمْنِهِ وَالْعِنَبُ بِعَصِيْرِهِ وَالتَّمْرُ بِدِبْسِهِ عَلٰى هٰذَا الْاِعْتِبَارِ او جوز د خپل تېلو په عوض كې، شيدې د خپل كوچو په عوض كې، انگور د خپل رسُ په عوض كې، او خرما د خپل ځوښنا په عوض كې خرڅول هم پر دغه اعتبار دي وَاخْتَلَفُوْا فِي الْقُطْنِ بِغَزْلِهِ او پمبه د خپل تارونو په عوض كې د خرڅولو په هكله مشائخو اختلاف كړی دی وَالْكِرْبَاسُ بِالْقُطْنِ يَجُوزُ كَيْفَ مَا كَانَ بِالْإِجْمَاعِ او د پمبه وو كپړه د پمبې په عوض كې په هره توگه خرڅول جائز دي په اجماع سره.

**اللغات**: ﴿زيتون﴾ مشهوره مېوه ده چې له هغه څخه تېل هم ايستل كيږي. ﴿زيت﴾ د زيتون تېل (روغن). ﴿السمسم﴾ كونجتي، كونجدي، له دې څخه هم تېل ايستل كيږي. ﴿شيرج﴾ د كونجتي

تېل چي هغه ته "خَلّ" هم وايي، ﴿ثجير﴾ له تېل ايستلو څخه وروسته پاته پوک او فضله، يعني کله چي له زيتون او کونجتو څخه تېل ويستل سي نو پاته وچ فضله زيتون او کونجتو ته "ثجير" وايي، ﴿سمن﴾ کوچ، ﴿عصير﴾ دانګورو رس، دانګورو څوښا (دوښا، شېره)، ﴿الدبس﴾ د خرما څوښا (دوښا)، ﴿غزل﴾ له پمبه وو څخه جوړ سوي (وودل سوي) تارونه (احسن الهدايه)، يعني کله چي د څرخي (مِغزَل) په ذريعه له پمبه وو څخه تارونه جوړ کړل سي، نو هغه تارو ته "غَزْل" او "مَغزُول" وايي، ﴿کيف ما کان﴾ څنګه چي هم وي، په هره توګه چي وي.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که زيتون او کونجتي د زيتون او کونجتو د را ايستلی سوو تېلو په عوض کي خرڅ کړل سي او د زيتون را ايستل سوي تېل له هغه تېلو څخه زيات وي کوم چي په زيتون کي وي همدارنګه د کونجتي را ايستل سوي تېل له هغه تېلو څخه زيات وي کوم چي په کونجتو کي وي، نو دا بيع جائز ده؛ ځکه چي په دې صورت کي ربوا نه ثابتيږي، او ربوا ځکه نه ثابتيږي چي د را ايستل سوو تېلو يوه حصه به د هغه تېلو په عوض کي راسي کوم چي په زيتون يا کونجتو کي دي، او پاته زائد مقدار به د فضله (نځوړل سوو) زيتون او کونجتو په مقابله کي راسي، او څرنګه چي د فضله زيتون، فضله کونجتو او د تېلو جنس سره جلا دی، نو ځکه په دې کي به هيڅ ربوا ثابته نه سي.

او که چيري هغه تېل کوم چي په زيتون يا کونجتو کي دي د را ايستل سوو تېلو څخه زيات وي يا ور سره برابر وي نو دا بيع نه جائز کيږي؛ ځکه چي را ايستل سوي تېل هم موزوني دي او کوم تېل چي په زيتون او کونجتو کي دی هغه هم موزوني دی، نو ځکه د قدر مع الجنس د موجودېدلو په وجه له ربوا څخه د ځان ساتلو او د بيع جائز کېدلو لپاره د دواړو عوضونو برابرېدل ضروري دي، لېکن دلته چي کله هغه تېل کوم چي په زيتون يا کونجتو کي دي له را ايستل سوو تېلو څخه زيات وي نو په دې صورت کي به په يوه عوض کي څه تېل او فضله (ثجير) زيات پاته سي، همدارنګه که د زيتون يا کونجتو تېل د را ايستل سوو تېلو سره برابر وي نو په دې صورت کي به فضله (ثجير) زيات پاته سي (يعني نځوړل سي زيتون او کونجتي به زائد پاته سي)، او دا تاسو ته معلومه ده چي ربوا (سود) همدې ته وايي چي يو عوض زيات سي او بل عوض کم سي، نو ځکه د ربوا لازمېدلو په وجه دا دوه صورتونه ناجائز دي.

ولولم يعلم إلخ: او كه دا معلومه نه وي چي په زيتون يا كونجتو كي څومره اندازه تېل دي نو هم دا بيع نه جائز كيږي، ځكه چي په دې صورت كي د ربوا احتمال او شبهه سته، او د ربوا شبهه د حقيقي ربوا په څېر حرامه ده، نو ځكه د نه معلومېدلو په صورت كي هم بيع ناجائزه.

والجوز بدهنه إلخ: فرمايي چي د جوز بيع د هغه د تېلو په عوض كي او د شيدو بيع د كوچو په عوض كي او د انګورو بيع د انګورو د رس او ځوښا په عوض كي او د خرما بيع د خرما د ځوښا په عوض كي پر همدغه اعتبار جائز ده، يعني كه را ايستل سوي تېل له هغه تېلو څخه زيات وي كوم چي په جوز كي وي، او د انګورو يا خرما اوبه او ځوښا له هغه اوبو څخه زياتي كوم چي په انګورو او خرما كي وي، نو دا بيع جائز ده، كنې جائز نه ده.

واختلفوا في القطن إلخ: فرمايي په دې هكله د مشائخو اختلاف دی چي پمبه د هغه تارونو په عوض كي په برابرۍ سره خرڅول كوم چي له پمبه وو څخه جوړ وي، ځيني مشائخ دا بيع جائز ګرځوي، او دليل دا بيانوي چي د پمبې او د هغه د تارونو اصل يو دی، يعني د دواړو اصل د پمبه وو ګل او بوټی دی او دواړه موزوني دي، لهذا اتحاد الجنس او اتحاد القدر دواړه موجود سوه، نو ځكه به پمبه د هغه د تارونو په عوض كي په برابرۍ سره خرڅول جائز وي.

او ځيني مشائخ فرمايي چي دا بيع جائز نه ده؛ ځكه كله چي له پمبې څخه تارونه جوړ كړل سي نو د هغې وزن كم سي، مثلاً كه له يو سېر (يو كېلو) پمبه وو څخه تارونه جوړ كړل سي نو هغه تارونه يو سېر نه كيږي بلكي تر يو سېر كميږي، نو ځكه دله بيع الحنطة بالدقيق سره مشابه سوه، يعني غنم د هغه د اُوړو په عوض كي په برابرۍ سره خرڅول، او دا ناجائز دي، نو ځكه به پمبه هم د هغه د تارونو په عوض كي په برابرۍ سره خرڅول ناجائز وي.

او له پمبه وو څخه جوړه كپړه د پمبه وو په عوض كي په هره توګه خرڅول په اتفاق سره جائز دي. برابره د كپړې پمبه له هغه پمبه وو څخه زياته وي او كه كمه وي؛ په دې كي د هيڅ اختلاف نسته، ځكه چي د دې دواړو جنس مختلف او جلا دی، او د اختلاف الجنس په صورت كي د دې حديث " إِذَا اخْتَلَفَ النَّوْعَانَ فَبِيعُوا كَيْفَ شِئْتُمْ " پر بناء هر ډول خرڅول جائز دي.

## د مختلفُ الاجناس شيانو بيع په کمي وزياتوب سره (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَيَجُوزُ بَيْعُ اللُّحْمَانِ الْمُخْتَلِفَةِ بَعْضِهَا بِبَعْضٍ مُتَفَاضِلًا فرمايي: او په مختلفه غوښو کي ځيني د ځينو په عوض کي په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز دي وَمُرَادُهُ لَحْمُ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ او د امام قدوري رَحِمَهُ الله مراد د اوښ غوښې، د غوا [او غوايي] غوښې، د بزې [او پسه] غوښې دي فَأَمَّا الْبَقَرُ وَالْجَوَامِيسُ جِنْسٌ وَاحِدٌ ليکن غوا او ګاميښه يو جنس دى [دوه جلا جنسونه نه دي] وَكَذَا الْمَعْزُ مَعَ الضَّأْنِ او همدارنګه بزه [او سېرلى] د پُسه [او ميږي] سره [يو جنس دى] وَكَذَا الْعِرَابُ مَعَ الْبَخَاتِيِّ او همدارنګي عربي اوښان د بختي اوښانو سره [يو جنس دى] قَالَ: وَكَذَلِكَ أَلْبَانُ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ فرمايي: او همداسي د غوا او بزې شيدې دي [يعني په هغوى کي هم ځيني د ځينو په عوض کي په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز دي] وَعَنْ الشَّافِعِيِّ لَا يَجُوزُ او له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه روايت سوى دى چي جائز نه دي لِأَنَّهَا جِنْسٌ وَاحِدٌ لِاتِّحَادِ الْمَقْصُودِ ځکه چي [هر ډول] شيدې د مقصود د يو والي په وجه يو جنس دى وَلَنَا: أَنَّ الْأُصُولَ مُخْتَلِفَةٌ زموږ دليل دا دى: چي [د دې شيدو] اُصول [يعني څاروي] سره مختلف دي [مطلب دا چي د دې پورتني څارويو اصل او جنس سره جلا دى] حَتَّى لَا يَكْمُلَ نِصَابُ أَحَدِهِمَا بِالْآخَرِ فِي الزَّكَاةِ همدا وجه ده چي په هغوى کي د يوه څاروي د زکاة نصاب د بل يوه په ذريعه نه پوره کيږي فَكَذَا أَجْزَاؤُهَا نو همداسي به د هغوى اجزاء هم سره مختلف وي إِذَا لَمْ تَتَبَدَّلْ بِالصَّنْعَةِ په دې شرط چي د جوړښت په ذريعه شيدې بدلي سوي نه وي [يعني په دې شرط چي له شيدو څخه يو شى (مستې او داسي نور) جوړ سوي نه وي].

**اللغات:** ﴿البقر﴾ اسم جنس دى، غويي او غوا دواړو ته وايي، واحد يې بَقَرَةٌ راځي (مصباح المنير). ﴿الغنم﴾ دا هم اسم جنس دى: پسه، بزه، سېرلي او ميږي ټولو ته وايي، واحد د خپل لفظ څخه نه لري. واحد ته يې "شاة" ويل کيږي (مصباح المنير). ﴿جواميس﴾ جمع د جاموسٌ ده: ګاميښه. ﴿معز﴾ بزې (وزې) او سېرليان، يوه سېرلي او بزې ته "مَاعِزٌ او مَاعِزَةٌ" وايي، عربي قاموسونو يې داسي تعريف کړى دى: "ذو الشعر من الغنم. خلاف الضأن". ﴿الضأن﴾ "ذو الصوف من الغنم": يعني ميږي او پسونه. يوه پُسه او ميږي ته "ضَائِنٌ او ضَائِنَةٌ" وايي. (مصباح المنير، معجم الوسيط، معجم لغة الفقهاء)

**تشریح : مسئله** : دا ده کـه غوښې مختلف الاجناس وي، مثلاً د پُسه غوښې د غوايي د غوښو په عوض کي خرڅول، يا د اوښ غوښي د سپرلي د غوښو په عوض کي خرڅول، نو په دې صورت کي په کمي و زياتوب سره خرڅول هم جائز دي، ځکه چي د پُسه او غوايي، د اوښ او سپرلي جنسونه سره جلا دي، او د اختلاف الجنس په صورت کي په کمي و زياتوب سره خرڅول جائز دي.

لېکن د غوايي، غوا او ګاميښي جنس سره يو (متحد) دی، نو ځکه د هغوی غوښي يو د بل په عوض کي په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز نه دي، او همدارنګه د بزې، سپرلي (وزګړي) او د ميږي او پُسه جنس سره يو دی، او د عربي اوښ او بختي اوښ جنس سره يو دی، لهذا د سپرلي (وزګړي) غوښي د پُسه د غوښو په عوض کي او د عربي اوښ غوښي د بختي اوښ د غوښو په عوض کي په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز نه دي.

**فايده** : صاحب د عنايې د څارويو د اتحاد الجنس او اختلاف الجنس په هکله دا قاعده بيان کړې ده چي د کوم څاروي د زکاة نصاب چي د بل څاروي په ذريعه پوره کيږي، نو د هغوی دواړو جنس سره يو دی، لکه ګاميښه او غوا، او د کوم څاروي نصاب چي په بل څاروي سره نه پوره کيږي، نو د هغوی جنس سره مختلف دی، لکه بزه او غوا.

قال وكذا ألبان البقر إلخ : څرنګه چي د غوا او بزې جنسونه سره مختلف دي (ځکه په دوی کي د يوه د زکاة نصاب د بل يوه په ذريعه نه پوره کيږي)، نو ځکه به د دوی اجزاء هم مختلف الاجناس وي، لهذا د يوه شيدې به د بل يوه د شيدو په عوض کي په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز وي، لېکن له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا هم دی چي له هغوی څخه د يوه غوښي او شيدې د بل يوه د غوښو او شيدو په عوض کي په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز نه دي؛ ځکه چي د ټولو څارويو د غوښو جنس يو دی او د ټولو د شيدو جنس يو دی؛ ځکه چي د ټولو غوښو او شيدو مقصد يو دی يعني د غذا په توګه استعمالول او تقويت حاصلول، لهذا کله چي د ټولو جنس يو دی، نو ځکه د غوا او بزې غوښي او شيدې به يو د بل په عوض کي په برابرۍ سره خرڅول خو جائز وي لېکن په کمي وزياتوب سره به خرڅول جائز نه وي.

ولنا أن الأصول إلخ : زموږ دليل دا دی چي غوښي او شيدې فروع او اجزاء دي او د هغوی اُصول يعني غوا او بزه مختلفة الاجناس دي، همدا وجه ده چي په دوی کي د يوه د زکاة نصاب د بل يوه په ذريعه نه پوره کيږي، نو ځکه به د هغوی فروع او اجزاء يعني شيدې او غوښي هم مختلفة الاجناس وي، او کله چي هغه مختلفة الاجناس دي نو يو به د بل په عوض کي په کمي و زياتوب سره خرڅول هم جائز وي.

إذا لم تتبدل إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چي د غوا او بزې شيدې تر هغه وخته پورې مختلفة الاجناس دي تر څو چي هغوی شيدې پاته وي او بدلې سوې نه وي، لېکن که هغوی بدلي کړل سي، يعني له شيدو څخه مستې، ملايي يا داسي بل شی جوړ کړل سي، نو بيا هغوی يو جنس شمارل کيږي او اختلاف الجنس يې ختميږي، ځکه په صنعت او جوړښت سره مختلفه اجزاء د يوه جزء په څېر ګرځي، نو ځکه تر دې وروسته هغوی په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز نه دي که څه هم د هغوی اصل يعني شيدې مختلفة الاجناس دي.

## د پورتني مسئلې بل صورت

قَالَ: وَكَذَا خَلُّ الدَّقَلِ بِخَلِّ الْعِنَبِ فرمايي: او همدارنګه د خرما سرکه د انګورو د سرکې په عوض کي [په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز دي] لِلِاخْتِلَافِ بَيْنَ أَصْلَيْهِمَا ځکه چي د دې دواړو په اصل کي اختلاف دی فَكَذَا بَيْنَ مَاءَيْهِمَا نو همداسي به د دوی په اوبو کي هم اختلاف وي وَلِهَذَا كَانَ عَصِيرَاهُمَا جِنْسَيْنِ او له همدې کبله د دې دواړو رسونه [څوښاوي] دوه جلا جنسونه دي وَشَعْرُ الْمَعْزِ وَصُوفُ الْغَنَمِ جِنْسَانِ او د بزې وربښته او د پسه اوړۍ دوه جلا جنسونه دي لِاخْتِلَافِ الْمَقَاصِدِ ځکه چي [د هغوی] په مقاصدو کي اختلاف دی قَالَ: وَكَذَا شَحْمُ الْبَطْنِ بِالْأَلْيَةِ أَوْ بِاللَّحْمِ فرمايي: او همدارنګه د نس وازګه د لم په عوض کي يا د غوښو په عوض کي [په کمي وزياتوب سره خرڅول هم جائز دي] لِأَنَّهَا أَجْنَاسٌ مُخْتَلِفَةٌ لِاخْتِلَافِ الصُّوَرِ وَالْمَعَانِي وَالْمَنَافِعِ اخْتِلَافًا فَاحِشًا ځکه چي د شکل، معانی او منافعو د مختلف کېدلو په وجه د هغوی جنسونه سره مختلف [جلا] دي.

**اللغات:** ﴿دقل﴾ ردي خرما، کم اصله (کمسله) او کمزورې خرما ته وايي، خو څرنګه چي عُرف او عادت دا دی چي د خرما سرکه غالباً له ردي خرماوو څخه جوړول کيږي، نو ځکه يې عادتاً له "دقل" څخه د خرما سرکه مراد کړې ده. ﴿شحم﴾ وازګه (وازده)، ﴿إلية﴾ لم (د ميږې او پُسه پلنه لکی، کوناټی).

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چي د خرما سرکه د انګورو د سرکې په عوض کي په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز دي؛ ځکه کله چي د دې دواړو سرکو په اصل يعني په خرما او انګورو کي اختلاف الجنس سته، نو د هغوی په اوبو يعني په دغه سرکو کي به هم اختلاف الجنس وي او د دې سرکو

جنسونه به سره جلا وي، همدا وجه ده چې د انګور درس او څوښا او د خرما د څوښا په مينځ کې بالاجماع اختلاف الجنس سته، او مخکې ذکره سوه چې د اختلاف الجنس په صورت کې په کمي وزياتوب سره بيع کول جائز دي، نو ځکه به د خرما د سرکې بيع د انګورو د سرکې په عوض کې متفاضلاً جائز وي.

وشعر المعز إلخ: فرمايي چې د بزې ورېښته او د پسه او مېږې وړۍ دوه جلا جنسونه دي، که څه هم په خپله بزه او پسه دواړه يو جنس دي؛ د بزې ورېښته او اوړۍ ځکه دوه جلا جنسونه دي چې د هغوی په مقاصدو کې اختلاف دی، ځکه چې له اوړۍ څخه کپړه (ټوکر) او قيمتي جامې جوړېږي، او د بزې له ورېښتو څخه رسياني او کمبلي جوړېږي، لهذا کله چې د بزې ورېښته او وړۍ دوه جلا جنسونه دي، نو ځکه به يو د بل په عوض کې په زياتوب وکمي سره خرڅول جائز وي.

قال: وكذا شحم البطن إلخ: فرمايي چې د پسه د نس وازګه د هغه د لم په عوض کې يا د هغه د غوښو په عوض کې متفاضلاً خرڅول جائز دي؛ ځکه چې د مقصد په اعتبار سره د وازګې او د لم او غوښو جنسونه سره جلا دي او په دوی کې د شکل، منفعت او معنويت ټولو په اعتبار سره اختلاف دی، د شکل او صورت اختلاف خو ښکاره دی، د معاني اختلاف يې په دې توګه دی چې په هغوی کې د هر يوه جقيقت جلا دی، ځکه په هغوی کې د يوه نوم "شَحْم" دی او د بل نوم "إِلْيَة" ده او د بل نوم "لَحْم" دی، او په منافعو کې يې اختلاف په دې توګه دی چې د لم غوښې (سپيني) د وازګې په مقابله کې زياتې ګرمي دي او هغه د خشک او يخ بدن والا خلکو لپاره فايده مني دي، د دې په خلاف وازګه زياته ګرمي نه لري، او پاتې سوه غوښه نو هغه يوه کامله غذا ده او د هر چا لپاره د هغه استعمال د تقويت باعث دي، لنډه دا چې کله په دې دريو شيانو کې په هر اعتبار سره اختلاف دی (که څه هم د هغوی أصل يو شی يعني پسه دی)، نو ځکه به هغوی يو د بل په عوض کې په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز وي.

## د ډوډۍ (روټۍ) بيع د غنم أوړو په عوض کې (حکم او اختلاف)

قَالَ: وَيَجُوزُ بَيْعُ الْخُبْزِ بِالْحِنْطَةِ وَالدَّقِيقِ مُتَفَاضِلًا فرمايي: او ډوډۍ [روټۍ] د غنمو او أوړو په عوض کې په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز دي لِأَنَّ الْخُبْزَ صَارَ عَدَدِيًّا أَوْ مَوْزُونًا ځکه چې ډوډۍ عددي شی ده يا موزوني شی ده فَخَرَجَ مِنْ أَنْ يَكُونَ مَكِيلًا مِنْ كُلِّ وَجْهٍ لهذا ډوډۍ من كل وجه [په هر اعتبار] له مکيلي کېدلو څخه ووتله وَالْحِنْطَةُ مَكِيلَةٌ او غنم مکيلي شی دي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ لَا خَيْرَ

فِيهِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي په دې کي خير [ښېګڼه] نسته [چي ډوډۍ د غنمو يا اُوړو په عوض کي خرڅه کړل سي] وَالْفَتْوٰى عَلَى الْأَوَّلِ او فتوىٰ پر اول قول ده وَهٰذَا إِذَا كَانَا نَقْدَيْنِ او دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي دواړه عوضونه نقد وي [يعني ډوډۍ او غنم يا اُوړه نغد اداء کړل سي] فَإِنْ كَانَتِ الْحِنْطَةُ نَسِيئَةً او که غنم په پور وي [يعني ډوډۍ نقد وي او غنم پور وي] جَازَ أَيْضًا نو هم جائز دي وَإِنْ كَانَ الْخُبْزُ نَسِيئَةً او که ډوډۍ په پور وي يَجُوزُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو [صرف] د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى او د هغه پر قول فتوىٰ [هم] ده وَكَذَا السَّلَمُ فِي الْخُبْزِ جَائِزٌ فِي الصَّحِيحِ او همدارنګه د صحيح روايت مطابق په ډوډۍ کي بيع سَلَم جائز ده وَلَا خَيْرَ فِي اسْتِقْرَاضِهِ عَدَدًا أَوْ وَزْنًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په شمېر يا وزن سره په قرض د ډوډۍ په اخيستلو کي هيڅ خير نسته لِأَنَّهُ يَتَفَاوَتُ بِالْخُبْزِ وَالْخَبَّازِ وَالتَّنُّورِ وَالتَّقَدُّمِ وَالتَّأَخُّرِ ځکه چي ډوډۍ د پخولو، پخونکي، تنور او د مخته کېدلو او وروسته کېدلو په وجه متفاوت کيږي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ ۞ يَجُوزُ بِهِمَا لِلتَّعَامُلِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [د خلکو] د تعامل په وجه په شمېر او وزن دواړو سره ډوډۍ په قرض اخيستل جائز دي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يَجُوزُ وَزْنًا وَلَا يَجُوزُ عَدَدًا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز په وزن سره خو جائز دي لېکن په شمېر سره جائز نه دي لِلتَّفَاوُتِ فِي آحَادِهِ ځکه چي د ډوډۍ په افرادو کي [زيات] تفاوت وي.

**اللغات:** ﴿خبز﴾ ډوډۍ، روټی (مړۍ)، ﴿نسيئةً﴾ په تاخير سره، يعني په پور، مؤجل، ﴿خباز﴾ ډوډۍ پخونکی، نانوای.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نېز د غنمو يا اُوړو په عوض کي ډوډۍ په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز دي، په دې شرط چي په مجلس کي دننه پر دواړو عوضينو قبضه وسي؛ ځکه چي ډوډۍ يا عددي شی ده يا موزوني ده، لېکن مکيلي نه ده او غنم مکيلي شی دي همدارنګه

---

۞ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما قال الحصكفي رَحِمَهُ الله: ويستقرض الخبز وزناً وعدداً عند محمد رَحِمَهُ الله، وعليه الفتوىٰ...إلخ (الدر المختار ج:۴، ص:۲۰۸)، وقال المفتى غلام قادر النعماني: قول محمد رَحِمَهُ الله ارفق للناس وأليق بهذا الزمان. [القول الراجح ج:۲، ص:۶۳]

اُوړه هم مکیلي شی دي، ځکه چې اُوړه د غنمو اجزاء دي، لهذا کله چې غنم او اُوړه مکیلي دي او ډوډۍ غیر مکیلي ده، نو د اتحاد القدر د فوتېدلو په وجه به په هغوی کې تفاضل (کمي وزیاتوب) جائز وي.

لېکن له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی چې د ډوډۍ بیع د غنمو یا اُوړو په عوض کې بالکل جائز نه ده، نه متساویاً او نه متفاضلاً، همدا د امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَا الله قول دی؛ د دې روایت دلیل دا دی چې په ډوډۍ، اُوړو او غنمو کې یو ډول مجانست شته نو ځکه د دوی په بیع کې به مساوات او برابري شرط وي، لېکن څرنګه چې د ډوډۍ، اُوړو او غنمو په مینځ کې مساوات معلومول ممکن نه دي، نو ځکه د هغوی بیع به جائز نه وي، لېکن فتویٰ پر اول قول ده چې د هغوی بیع جائز ده.
او دا جواز په هغه صورت کې متفق علیه دی کله چې دواړو عوضونه یعني ډوډۍ او غنم یا ډوډۍ او اُوړه نقد (نغد) وي، همدارنګه که له دواړو عوضونو څخه یو عوض یعني غنم په پور (په قرض) وي، یعني بائع او مشتري بیع سَلم وکړي او په بیع سَلم کې غنم "مسلم فیه" وګرځوي او ډوډۍ رأسُ المال وګرځوي، نو دا هم بالاتفاق جائز دي، ځکه چې په دې صورت کې د یو موزوني شی یعني د ډوډۍ بیع سَلم په داسي مکیلي شي یعني په غنمو کې سوې ده چې د هغه وصف او مقدار معلومول ممکن دي، نو ځکه به دا بیع سَلم جائز وي. لېکن که ډوډۍ "مسلم فیه" (پور) وګرځوي او غنم راس المال (نقد) وګرځوي، نو دا صورت صرف د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز جائز دی، ځکه چې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز ډوډۍ موزوني شی ده، او په موزوني شي کې بیع سَلم کول جائز دي، نو ځکه به دا بیع سَلم جائز وي، او پر همدې قول فتویٰ ده.

وکذا السلم إلخ: صاحب د هدایې دویم ځل بیا د تاکید په توګه فرمایلي دي چې د صحیح روایت او مفتیٰ به قول مطابق په ډوډۍ (روټۍ) کې بیع سَلم کول جائز دي. (د أحسن الهدایې مؤلف لیکلي دي چې د دې جملې "وکذا السلم جائز" ضرورت نسته، ځکه کله چې یو ځل دا قول مفتیٰ به ګرځول سوی دی نو هغه نور واضح کول تحصیل د حاصل دی، خو غوره خبره ده چې دا پر تأکید حمل کړی سي یعني صاحب د هدایې د تأکید په توګه هغه بیان کړی دی. والله أعلم)

ولا خیر إلخ: فرمایي چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز ډوډیاني په قرض اخیستل نه په شمېر سره جائز دي او نه په وزن (تول) سره؛ ځکه چې ډوډیاني د مختلفه اسبابو په وجه یوه د بلې څخه متفاوته وي او دا تفاوت د جنګ او نزاع سبب جوړېږي؛ ځکه ډوډیاني د پخولو په وجه هم متفاوت کېږي، یعني بعضي ډوډیاني پنډې وي او بعضي نرۍ وي، او بعضي غټې او کوچنۍ وي، او همدارنګه د پخونکي

کس (خباز) په وجه هم متفاوت کيږي، ځکه د ماهر پخونکی (نانوای) ډوډۍ ښه خوندوره وي او د غير ماهر کس ډوډۍ هغومره ښه نه وي بلکي څه سوځلې وي، او په خپله د تنور په وجه هم متفاوت کيږي، ځکه د نوي تنور ډوډۍ ښه وي او د زاړه تنور ډوډۍ څه خرابه وي، همدارنګه د تقدم او تاخر په وجه يعني کله چي د تنور شروع وي او ډېر ګرم سوی نه وي نو هم ډوډۍ ډېره ښه نه وي (يعني د تنور لګولو په شروع کي هم ډوډۍ خوندوره نه وي) لېکن وروسته چي تنور ګرم سي نو آخري ډوډياني ښه پخې او خوندوري راوځي (اشرف الهدايه). لهذا کله چي په ډوډيانو کي دومره تفاوت سته نو هغوی به په قرض سره اخيستل څنګه جائز وي!؟، ځکه که دا جائز وګرځول سي نو د قرض اداء کولو او ورسپارلو په وخت کي به د دومره تفاوت په وجه جنګ او نزاع پيدا سي، مقروض به هغسي ډوډۍ نه ورکوي کوم چي يې په قرض اخيستې وه او قرض والا به له مقروض څخه هغه ډوډۍ غواړي، په دې توګه به د نزاع نوبت راسي، نو ځکه ډوډۍ په قرض اخيستل جائز نه دي.

او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د خلګو د تعامل او رواج په وجه په دواړو صورتونو کي ډوډۍ په قرض اخيستل جائز دي، يعني که په شمېر سره وي او که په وزن (تول) سره وي، ځکه کله چي په خلګو کي دا ډول معامله عادت او رواج وي نو د جنګ او نزاع خطره به هم نه وي، او د "نه جائز کېدلو" مدار د نزاع پر خطرې دی او هغه دلته نسته، نو ځکه به ډوډۍ په قرض اخيستل او ورکول جائز وي. او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز په وزن (تول) سره جائز دي لېکن په شمېر سره جائز نه دي، په وزن سره ځکه جائز دي چي ډوډۍ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله موزوني ده، او په شمېر سره ځکه جائز نه دي چي په ډوډيانو کي زيات تفاوت وي، نو ځکه د ورسپارلو او اداء کولو په وخت کي به جنګ او نزاع پېښ سي.

## د مالک او غلام په مينځ کي د ربوا (سُود) نه ثابتېدلو مسئله

قَالَ: وَلَا رِبٰوا بَيْنَ الْمَوْلٰى وَعَبْدِهٖ فرمايي: د مالک او د هغه د غلام په مينځ کي ربوا [سُود] نسته لِأَنَّ الْعَبْدَ وَمَا فِي يَدِهٖ مِلْكٌ لِمَوْلَاهُ ځکه غلام او کوم څه چي د ده په قبضه کي دي هغه د مالک ملکيت دي فَلَا يَتَحَقَّقُ الرِّبٰوا نو ځکه [د دوی په مينځ کي] به سُود نه ثابتيږي وَهٰذَا إِذَا كَانَ مَأْذُوْنًا لَهٗ وَلَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ او دا [حکم] په هغه صورت کي دی کله چي غلام مأذون لهٗ في التجارة وي او پر هغه [محيط] قرض هم نه وي فَإِنْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ او که پر هغه [محيط] قرض وي لَا يَجُوْزُ بِالْاِتِّفَاقِ نو اد هغه او مالک په مينځ کي په کمي وزياتوب سره بيع کول] بالاتفاق جائز نه دي لِأَنَّ مَا فِي يَدِهٖ لَيْسَ مِلْكَ

الْمَوْلٰى عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ ځکه کوم مال چې د هغه په قبضه کې دی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه د مالک ملکيت نه دی وَعِنْدَهُمَا تَعَلَّقَ بِهٖ حَقُّ الْغُرَمَاءِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغه سره د قرض غوښتونکو حق متعلق سوی دی فَصَارَ كَالْأَجْنَبِيِّ نو ځکه غلام [د مالک په حق کې] د اجنبي په څېر سو [يعني ګواکي دا د هغه غلام نه دی] فَيَتَحَقَّقُ الرِّبَا، نو ځکه به ربوا ثابتيږي كَمَا يَتَحَقَّقُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ مُكَاتَبِهٖ لکه څرنګه چې د مالک او د هغه د مکاتب غلام په مينځ کې ربوا ثابتيږي.

**اللغات:** ﴿غرماء﴾ جمع د غَرِيْمٌ ده: قرضخواه. قرض غوښتونکی يعني د قرض مالک. او پر چا چې قرض باندي وي يعني پور وړی (مقروض) هغه ته هم "غريم" وايي (معجم لغة الفقهاء). دلته اوله معنىٰ مراد ده. ﴿أجنبي﴾ پردی، کوم چې د چا سره هيڅ علاقه نه لري.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې که د يو سړي غلام مأذون لهٗ في التجاة وي (يعني سړي [مالک] خپل غلام ته د کاروبار او تجارت اجازه ورکړې وي) او پر غلام دومره قرض باندي نه وي چې هغه د ده پر ذات احاطه کړې وي، نو د دې غلام او خپل مالک په مينځ کې ربوا نه ثابتيږي. يعني که دا غلام او د ده مالک په اموال ربويه کې په کمي وزياتوب سره بيع وکړي، نو دا ربوا نه ګرځي؛ ځکه غلام او د غلام مال يعني کوم شيان او مال چې د دې غلام په قبضه کې دي هغه ټول د مالک (مولىٰ) ملکيت دي (يعني هغه ټول د مالک په ملکيت او تصرّف کې دي)، لهذا کله چې غلام او د هغه مال د مالک ملکيت دي، نو ځکه د مالک او د دې غلام په مينځ کې خو ګرسره بيع نه ثابتيږي، او کله چې بيع ثابته نه سوه نو ربوا به هم نه ثابتيږي.

او که چيري پر غلام د خلکو دومره قرضونه باندي وي چې هغه د ده پر ذات احاطه کړې وي (مثلا د غلام قيمت پنځه زره درهمه وي او قرضونه پنځه نيم زره درهمه وي)، نو په دې صورت کې د غلام او مالک په مينځ کې په اموالِ ربويه کې په کمي وزياتوب سره بيع کول بالاتفاق ناجائز دي؛ ځکه په دې صورت کې چې کوم مال د غلام په قبضه کې دی هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د مالک ملکيت نه دی، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز که څه هم د مالک ملکيت دی ليکن د هغه سره د قرض غوښتونکو حق متعلق دی، حاصل دا چې د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په نيز دا غلام د خپل مالک لپاره د اجنبي په څېر سو، او د دوو اجنبي کسانو په مينځ کې بيع ثابتيږي، او کله چې بيع ثابتيږي نو د ربوا کولو په صورت کې به ربوا هم ثابتيږي، لکه څرنګه چې د مالک او د هغه د مکاتب غلام په مينځ کې بيع ثابتيږي او ربوا هم ثابتيږي.

## په دارُ الحرب کي د سُود مسئله

قَالَ: وَلَا بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْحَرْبِيِّ فِيْ دَارِ الْحَرْبِ او په دارُ الحرب کي د مسلمان او حربي په مينځ کي ربو نسته خِلَافًا لِأَبِيْ يُوسُفَ وَالشَّافِعِيِّ په خلاف د امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله [يعني د دوی په نيز په دارُ الحرب کي هم د مسلمان او حربي په مينځ کي ربوا ثابتيږي] لَهُمَا الْاِعْتِبَارُ بِالْمُسْتَأْمِنِ مِنْهُمْ فِيْ دَارِنَا د دوی دليل زموږ په دارُ الاسلام کي پر امان اخيستونکي حربي قياس کول دي [يعني هغو دا صورت پر هغه صورت قياس کړی دی کله چي له حربيانو څخه يو په دارُ الاسلام کي أمان واخلي] وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَام: "لَا رِبَا بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْحَرْبِيِّ فِيْ دَارِ الْحَرْبِ" [1] زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی چي: "په دارُ الحرب کي د مسلمان او حربي په مينځ کي ربوا نسته" وَلِأَنَّ مَالَهُمْ مُبَاحٌ فِيْ دَارِهِمْ او ځکه چي د حربيانو مال د هغوی په دارُ الحرب کي مباح [روا] دی [د مسلمانانو لپاره] فَبِأَيِّ طَرِيْقٍ أَخَذَهُ الْمُسْلِمُ أَخَذَ مَالًا مُبَاحًا نو په هره طريقه سره چي مسلمان هغه اخيستی وي نو مباح مال به يې اخيستی وي إِذَا لَمْ يَكُنْ فِيْهِ غَدْرٌ په دې شرط چي په هغه کي دوکه نه وي بِخِلَافِ الْمُسْتَأْمِنِ مِنْهُمْ په خلاف د حربيانو د مستأمن [يعني هغه حربي کوم چي په دارُ الاسلام کي أمان اخيستی وي] لِأَنَّ مَالَهُ صَارَ مَحْظُوْرًا بِعَقْدِ الْأَمَانِ ځکه چي د امان د عقد [امان اخيستلو] په وجه د هغه مال ممنوع ګرځيدلی دی.

**اللغات:** ﴿مستأمن﴾ امان اخيستونکی، هغه حربي کافر کوم چي دارُ الاسلام ته راسي او دا امان واخلي چي زما ځان، مال او داسي نور دي په امن وي او دارُ الاسلام والا هغه ته امان پانه ورکړي، ﴿غدر﴾ دوکه، فريب، غداري، ﴿محظور﴾ ممنوع.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي په دارُ الحرب کي د مسلمان او حربي په مينځ کي ربوا نسته، يعني که يو مسلمان امان واخلي دارُ الحرب ته ولاړ سي او هلته پر يو حربي کافر يو درهم د دوو درهمو په عوض کي خرڅ کړي نو دا حلال او جائز دي. لېکن د امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نيز په دارُ الحرب کي د مسلمان او حربي په مينځ کي ربوا ثابتيږي، يعني هلته يو درهم د دوو درهمو په عوض کي خرڅول ناجائز دي، او همدا د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله قول دی؛ د دې حضراتو دليل

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في معرفة السنن والآثار، باب بيع الدرهم بالدرهمين في أرض، حديث رقم: ۵۶۳۳.

قياس دی، يعني كه چيري يو حربي كافر امان واخلي دارُ الاسلام ته راسي او ربوا وكړي يعني يو درهم د دوو درهمو په عوض كي خرڅ كړي نو دا بالاتفاق ناجائز دي، نو همداسي كه مسلمان امان واخلي دارُ الحرب ته ولاړ سي او دا كار وكړي يعني يو درهم د دوو درهمو په عوض كي خرڅ كړي نو دا به هم ناجائز وي.

ولنا قوله ﷺ إلخ: زموږ دليل دا حديث دی: "لَا رِبَوا بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْحَرْبِيِّ فِيْ دَارِ الْحَرْب".

دويم دليل دا دی چي په دارُ الحرب كي د حربيانو مال مباح الاصل او غير معصوم دی او په هره توګه د هغه د اخيستلو اجازت سته په دې شرط چي د غدر او دوكې په ذريعه نه واخيستل سي، ځكه دوكه او غدر كول حرام دي.

په خلاف د هغه حربي كوم چي په دارُ الاسلام كي امان واخلي، ځكه چي د هغه مال د امان اخيستلو په وجه محفوظ او ممنوع وګرځي، او صرف په جائزه طريقه سره د هغه اخيستل مباح وي، او څرنګه چي ربوا يو غير شرعي او ناجائزه طريقه ده، نو ځكه كه دلته (په دارُ الاسلام كي) په كمي وزياتوب سره بيع وسي نو هغه به حرام او ناجائز وي.

لنډه دا چي په دارُ الحرب او دارُ الاسلام كي فرق سته نو ځكه د امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله قياس صحيح نه دی.



# بَابُ الْحُقُوْقِ

(دا) باب د حقوقو (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح :** "حقوق" جمع د "حق" ده، یعني هغه شی چې انسان د هغه مستحق وي، دلته له "حقوق" څخه مراد هغه حقونه دي کوم چې د مبیع تابع کیږي او له ذکر کولو څخه بغیر په مبیع کې داخلیږي (یعني که څوک یو کور رانیسي نو په هغه کور کې کوم، کوم شیان داخلیږي).او څرنګه چې "مبیع" متبوع ده او اصل ده، او "حق" تابع او فرع دی، نو ځکه یې مخکې د متبوع او اصل (یعني د مبیع) بیان وکړ، اوس له ځایه د تابع او فرع په بیان شروع کوي.

په فتح القدیر کې بله وجه دا هم ذکر سوې ده چې څرنګه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله خپل کتاب د جامع صغیر پر ترتیب مُرتَّب کړی دی، او په جامع صغیر کې تر "بیوع" وروسته د "حقوق" بیان سوی دی، نو ځکه د ترتیب په رعایت سره صاحب د هدایې تر "بیوع" وروسته سمدستي د حقوقو باب ذکر کړی دی.

**د بَیْت، مَنْزِل او دَار په مینځ کې فرق :** په عربي ژبه کې د بَیْت، مَنْزِل او دَار په مینځ کې فرق دی: بَیْت: د شپې تېرولو ځای (د شپه تېر ځای)، په کوم ځای کې چې کوچنۍ چار دېواري جوړه وي، بام او دروازه لري نو هغه ته "بیت" وایي، چې په پښتو کې هغه ته خونه، کمره، کوټه او حجره وایي. مَنْزِل: هغه ځای ته وایي چې په هغه کې یو څو خوني (کمرې)، اشپزخانه (باورچي خانه) او بیت الخلاء (تشې) وي، لیکن صحن (غولی) او د حیواناتو د تړلو ځای (غوجل) پکښې نه وي. دَار: هغه غټه چاردېواري ته وایي چې په هغه کې یو څو "منزله"، مکانات او صحن (غولی) وي، او په هغه کې هر ډول د ضرورت او سهولت ځایونه جوړ سوي وي (لکه اشپزخانه، بیتُ الخلاء، غوجل او داسي نور د ضرورت ځایونه).

**یادونه :** په دې کوچني باب کې د څلورو جملو تشریح ضروري ده:

①... بِكُلِّ حَقٍّ هُوَ لَهُ: د دې مطلب دا دی چې زه دا کور د خپلو ټولو حقوقو سره رانیسم.

②... بِكُلِّ مَرَافِقِه: یعني په دې کور کې چې کوم د سهولت او نفع ځایونه دي د هغه ټولو سره زه دا کور رانیسم

③... بِكُلِّ قَلِيْلٍ وَكَثِيْرٍ هُوَ فِيْه: په دې کور کې چې هر غټ او کوچنی شی دی د هغه ټولو سره زه دا کور رانیسم.

④... بِكُلِّ قَلِيْلٍ وَكَثِيْرٍ هُوَ مِنْه: د دې جملې مطلب هم د پورتنۍ جملې په شان دی.

د دې څلورو جملو مطلب دا دی چې هغه شی په کور کې داخل نه دی لیکن د کور د متعلقاتو او توابعو څخه دی، نو ځکه د دې جملو په ویلو سره به هغه شی په بیع کې شاملیږي، مثلاً په "مَنزِل" کې لاره داخله نه ده، لیکن که مشتري "بِمَرَافِقِه" وواییي نو لاره به په "منزل" کې داخلیږي. (أثمار الهدایه ج:۸، ص:۳۹۵)

## د کور په بیع کې د بالا خانې د شاملېدلو بیان

وَمَنِ اشْتَرٰى مَنْزِلًا فَوْقَهُ مَنْزِلٌ او که څوک داسي "منزل" رانیسي "چي د هغه د پاسه بل "منزل" وي فَلَيْسَ لَهُ الْأَعْلٰى نو د مشتري [رانیونکي] لپاره به پاسنی [لوړ] "منزل" نه وي إِلَّا أَنْ يَشْتَرِيَهُ بِكُلِّ حَقٍّ هُوَ لَهُ أَوْ بِمَرَافِقِهِ أَوْ بِكُلِّ قَلِيْلٍ وَكَثِيْرٍ هُوَ فِيهِ أَوْ مِنْهُ مګر دا چي کله مشتري لاندینی منزل د خپل هر هغه حق سره رانیسي کوم چي د "منزل" لپاره ثابت دی یا یې د خپلو مرافقو یا د هر قلیل وکثیر سره کوم چي په "منزل" کي دي یا له "منزل" څخه دي رانیسي وَمَنِ اشْتَرٰى بَيْتًا فَوْقَهُ بَيْتٌ بِكُلِّ حَقٍّ هُوَ لَهُ او که څوک داسي "بیت" رانیسي چي د هغه د پاسه بل "بیت" وي د هر هغه حق سره کوم چي د "بیت" لپاره ثابت دی لَمْ يَكُنْ لَهُ الْأَعْلٰى نو د هغه لپاره به پاسنی [لوړ] "بیت" نه وي وَمَنِ اشْتَرٰى دَارًا بِحُدُوْدِهَا او که څوک یو "دار" د خپلو حدودو سره رانیسي فَلَهُ الْعُلُوُّ وَالْكَنِيْفُ نو د هغه [مشتري] لپاره به بالاخانه او بیت الخلاء [تشی] دواړه وي جَمَعَ بَيْنَ الْمَنْزِلِ وَالْبَيْتِ وَالدَّارِ امام محمد رَحِمَهُ الله [دلته په متن کي] منزل، بیت او دار درې سره جمع کړي دي فَاسْمُ الدَّارِ يَنْتَظِمُ الْعُلُوَّ نو د "دار" لفظ بالاخانې لره شاملیږي لِأَنَّهُ اسْمٌ لِمَا أُدِيْرَ عَلَيْهِ الْحُدُوْدُ ځکه چي "دار" د هغه ځای [میدان] نوم دی چي پر هغه حدود راګرځېدلي وي [او په هغه کي څو منازل، مکانات او د ضرورت ځایونه وي] وَالْعُلُوُّ مِنْ تَوَابِعِ الْأَصْلِ وَأَجْزَائِهِ او بالاخانه د اصل له توابعو او د هغه له اجزاؤ څخه ده فَيَدْخُلُ

فِيهِ نو ځکه به بالاخانه په اصل [دار] کي داخليږي وَالْبَيْتُ اسْمٌ لِمَا يُبَاتُ فِيهِ او "بيت" د داسي ځای نوم دی چي په هغه کي شپه تېرول کيږي وَالْعُلُوُّ مِثْلُهُ او بالاخانه د هغه مثل ده [يعني په بالاخانه کي هم شپه تېرول کيږي] وَالشَّيْءُ لَا يَكُونُ تَبَعًا لِمِثْلِهِ او شی د خپل مثل نه تابع کيږي فَلَا يَدْخُلُ فِيهِ نو ځکه به بالاخانه په بيت کي [يعني د بيت په بيع کي] نه داخليږي إِلَّا بِالتَّنْصِيصِ عَلَيْهِ مګر د هغه په صراحت کولو سره [يعني بالاخانه به صرف هغه وخت د بيت په بيع کي داخليږي کله چي مشتري هغه په صراحت سره ذکر کړي چي زه دا بيت د خپل بالاخانې سره رانيسم] وَالْمَنْزِلُ بَيْنَ الدَّارِ وَالْبَيْتِ او د "منزل" لفظ د کور او "دار" په مينځ کي دی لِأَنَّهُ يَتَأَتَّى فِيهِ مَرَافِقُ السُّكْنَى مَعَ ضَرْبِ قُصُورٍ ځکه چي په "منزل" کي د استوګنې ټوله اسباب [سهوليات] راځي، خو د معمولي کمي سره إِذْ لَا يَكُونُ فِيهِ مَنْزِلُ الدَّوَابِّ ځکه چي په "منزل" کي د څارويو د تړلو ځای نه وي فَلِشَبَهِهِ بِالدَّارِ يَدْخُلُ الْعُلُوُّ فِيهِ تَبَعًا عِنْدَ ذِكْرِ التَّوَابِعِ لهذا څرنګه چي "منزل" د "دار" مشابه دی نو ځکه د توابعو د ذکر کولو په وخت کي به بالاخانه [د منزل] په متابعت کي په "منزل" کي داخليږي وَلِشَبَهِهِ بِالْبَيْتِ لَا يَدْخُلُ فِيهِ بِدُونِهِ او څرنګه چي [بل طرف ته] "منزل" د "بيت" مشابه دی نو ځکه د توابعو له ذکر کولو څخه بغير به بالاخانه په "منزل" کي نه داخليږي وَقِيلَ[*] فِي عُرْفِنَا يَدْخُلُ الْعُلُوُّ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ او ويل سوي دي [يعني ځيني حضرات وايي]: چي زموږ په عُرف کي په دې ټولو صورتو کي بالاخانه داخليږي لِأَنَّ كُلَّ مَسْكَنٍ يُسَمّٰى بِالْفَارِسِيَّةِ "خانه" ځکه چي هر استوګنځي ته په فارسي کي "خانه" وايي وَلَا يَخْلُو عَنْ عُلُوٍّ او خانه له بالاخانې [پاسني ځای] څخه خالي نه وي وَكَمَا يَدْخُلُ الْعُلُوُّ فِي اسْمِ الدَّارِ يَدْخُلُ الْكَنِيفُ او د "دار" په بيع کي چي څرنګه بالاخانه داخليږي همداسي بيت الخلاء [تشی] هم پکښې داخليږي لِأَنَّهُ مِنْ تَوَابِعِهِ ځکه بيت الخلاء د "دار" له توابعو څخه ده وَلَا تَدْخُلُ الظُّلَّةُ إِلَّا بِذِكْرِ مَا ذَكَرْنَاهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او "ظله" د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [په بيع کي] نه داخليږي مګر زموږ په ذکر کړی سوو جملو سره [يعني بکل حق هو له...إلخ] لِأَنَّهُ مَبْنِيٌّ عَلَى

[*] القول الراجح: هو قول صاحب قيل، كما في سائر الكتب الفقهية. [القول الراجح ج:۲، ص:۶۴]

هَوَاءِ الطَّرِيْقِ ځکه چي "ظله" د لاري پر فضاء [پاسنۍ حصه] باندي جوړه سوې وي فَأَخَذَ حُكْمَهُ نو ځکه هغې ه لاري حکم واخیستی [یعني د لاري په څیر سوه] وَعِنْدَهُمَا ۞ إِنْ كَانَ مَفْتَحُهُ فِي الدَّارِ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا اللهُ په نیز که د "ظله" لاره په دار" کي وي [او صاحب د أثمار الهدایه ددې جملې معنیٰ داسي کړې ده: او که چیري د "ظله" دروازه په "دَار" (کور) کي را خلاصیږي] يَدْخُلُ مِنْ غَيْرِ ذِكْرِ شَيْءٍ مِمَّا ذَكَرْنَا نو هغه زموږ له ذکر سوو جملو څخه بغیر [د دَار په بیع کي] داخلیږي لِأَنَّهُ مِنْ تَوَابِعِهِ ځکه چي [په دې صورت کي] هغه د "دار" له توابعو څخه ده فَشَابَهَ الْكَنِيفَ نو [په دې صورت کي] هغه د بیت الخلاء سره مشابه سوه.

**اللغات:** ﴿مرافق﴾ جمع د مَرْفِق ده (پر وزن د مسْجد): هغه شی چي انسان نفع ځني اخلي، مَرافق الدار: د کور د نفع شیان او سهولیات لکه اشپزخانه، بیت الخلاء او داسي نور. او مِرْفَق په کسره د میم سره څنګلي ته وایي، ﴿علو﴾ لوړ والی، لوړ منزل (پاسنی ځای)، ﴿الكنيف﴾ بیت الخلاء، تشتی، پاخانه (پای خانه)، ﴿أُدير﴾ د افعال ماضي مجهوله ده: راګرځېدل، مدار کېدل، ﴿يُبات﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: شپه تېرول، ﴿تنصيص﴾ د تفعیل په مصدر دی: صراحت کول، په ښکاره لفظو سره ذکر کول، په خوله سره ذکر کول، ﴿سكنیٰ﴾ استوګنه، اوسېدنه، ﴿قصور﴾ کمي، ﴿دواب﴾ څارویان، حیوانان، ﴿مسكن﴾ استوګنځی (استوګنځای)، د اوسېدلو او قیام کولو ځای، ﴿ظُلَّة﴾ دا هر هغه شي ته وایي کوم چي له باران او لمر څخه د حفاظت لپاره جوړ سوی وي، چي ځیني خلک یې پوخ جوړوي، چي هغه ته "سایهٔ بان، سایهٔ بام، چتر او داسي نور" وایي، سایهٔ بان پر دوه قسمه دی: ① یو هغه چي له باران او داسي نورو څخه د حفاظت لپاره د دروازې پر سر جوړ سوی وي، دا د "بكل حق هو لهٗ" او داسي نورو الفاظو له ذکر کولو څخه بغیر په بیع کي داخلیږي، ② دویم قسم هغه دی چي له کور څخه دباندي پر لاره جوړ سوی وي، څرنګه چي دا له کور څخه دباندي وي نو ځکه د هغه حکم د لاري د حکم په څېر دی، او د "بكلّ حق هو لهٗ" له ذکر کولو څخه بغیر په بیع کي نه داخلیږي (أثمار الهدایه)، ځیني حضرات وایي چي "ظُلّه" هغه سایهٔ بان او چت ته وایي چي د هغه یو طرف پر مبیعه دَار وي او بل طرف یې د بل چا پر دَار وي، همدارنګه "ظُلّه" هغه چت او سایهٔ بان ته هم وایي کوم چي کور ته

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۲۱۱)، وفي حاشية الشبلي (ج:۴، ص:۹۸)، والبحر الرائق (ج:۶، ص:۱۳۷). [القول الراجح ج:۲، ص:۶۶]

ر داخلېدونکي کوټې پر سر جوړ سوی وي، چې داسي کوټې ته ځيني خلک د کور سوپ وايي. ﴿مفتح﴾ د خلاصېدلو ځای، لاره. ﴿هواء﴾ فضاء.

**تشريح**: امام محمد رَحِمَهُ الله په متن کي درې (۳) مسئلې ذکر کړي دي (د هدايې دا متن له جامع صغير څخه را اخيستل سوی دی):

(۱)... که څوک داسي "منزل" رانيسي چې پر هغه د پاسه بل "منزل" وي نو پاسنی (لوړ) منزل د مشتري لپاره نه ثابتيږي يعني په بيع کي نه داخليږي، لېکن که مشتري داسي ووايي چې زه دا "منزل" د خپل هر هغه حق سره رانيسم کوم چې د هغه لپاره ثابت دی، يا يې د هغه د ټولو مرافقو سره رانيسم، يا يې د هر هغه قليل او کثير سره رانيسم کوم چې په دې منزل کي دي يا له منزل څخه دي، يعني پورتنی څلور جملې ووايي: بکلّ حق هو لهٗ. بکلّ مرافقه...إلخ، نو د دې جملو د ذکر کولو په صورت کي پاسنی منزل هم په بيع کي داخليږي.

(۲)... که څوک داسي "بيت" (کوټه) رانيسي چې پر هغه د پاسه بل "بيت" وي، نو پاسنی (لوړ) بيت په بيع کي نه داخليږي او د مشتري لپاره نه ثابتيږي، که څه هم پورتنی څلور جملې ووايي.

(۳)... او که څوک يو "دَار" د خپل حدودو سره رانيسي، نو په بيع کي د هغه "دَار" بالاخانه (پاسنی ځای) هم داخليږي او بيت الخلاء هم پکښې داخليږي، که څه هم پورتنی جملې نه ووايي.

جمع بين المنزل إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې (په متن کي) امام محمد رَحِمَهُ الله منزل، دار او بيت درې سره جمع کړي دي، نو د "دار" لفظ بالاخانې ته شامليږي، ځکه چې "دار" هغه ميدان ته وايي چې حدود يې مُتعيّن کړل سوي وي او په هغه کي بُيُوت (خوني)، غوجل، صحن او بالاخانه وي، نو څرنګه چې بالاخانه د "دار" له توابعو او اجزاؤ څخه ده نو ځکه د اصل "دار" په بيع کي به بالاخانه هم داخليږي، که څه هم مشتري "بکل حق هو لهٗ، يا بمرافقه، يا بکل قليل أو کثير هو فيه، يا منه" ويلي نه وي.

او "بيت" داسي ځای ته وايي چې په هغه کي شپه تېرول کيږي، او بالاخانه د هغه مثل دی (يعني په بالاخانه کي هم د "بيت" په څېر شپه تېرول کيږي، او هغه د "منزل" او "دار" په څېر غټ او پر ضروریاتو مشتمل ځای نه وي)، او څرنګه چې شی د خپل مثل نه تابع کيږي، نو ځکه د "بيت" په بيع کي به بالاخانه نه داخليږي که څه هم پورتنی څلور جملې ذکر سوي وي؛ ځکه که د دې جملو په ذريعه بالاخانه د "بيت" په بيع کي داخله کړی سي نو بيا هم بالاخانه د بيت په بيع کي نه داخليږي، ها! که

چیري د بیت په بیع کي په صراحت سره د بالاخانې ذکر وکړي (چي زه د بیت سره بالاخانه هم رانیسم) نو په داسي صورت کي بالاخانه د بیت په بیع کي داخلیږي.

او "منزل" د بیت او دار په مینځ کي دی، ځکه چي په منزل کي د استوګني ټوله ضروریات او سهولیات موجود وي لیکن د لږ معمولي کمي سره؛ ځکه چي په منزل کي صحن او د څارویو د تړلو ځای نه وي، لهذا که چیري مشتري "بکل حق، یا مرافق، یا بکل قلیل وکثیر" ذکر کړي نو د منزل په بیع کي به بالاخانه هم داخلیږي، ځکه چي منزل د "دار" مشابه دی، او بل طرف ته د "بیت" هم مشابه دی، نو ځکه په پورتني څلورو جملو کي به دیوې جملې له ذکر کولو څخه بغیر بالاخانه د منزل په بیع کي نه داخلیږي.

وقيل إلخ: صاحب د هدایې فرمایي چي ځیني حضرات (د جامع صغیر شارحین) یعني امام زاهد عتابي او داسي نور وایي چي د بیت او دار د غه فرق د اهل کوفه او عربو د عُرف مطابق دی، کنې زموږ په عُرف یعني په بخارا، سمرقند او داسي نورو ځایو کي هر کور او استوګنځي ته "خانه (کور) وایي، او په خانه کي بالاخانه هم راځي (یعني په کور کي لوړ ځای هم وي)، نو ځکه به د خانه (کور) په بیع کي بالاخانه هم داخلیږي، برابره ده مشتري د "بیت" په لفظ سره هغه رانیولی وي، او که د "منزل" یا "دار" په لفظ سره.

وكما يدخل إلخ: فرمایي څرنګه چي د "دار" په بیع کي بالاخانه داخلیږي همداسي به بیت الخلاء (تشناب) هم پکښي داخلیږي؛ ځکه چي هغه د "دار" له توابعو څخه ده.

ولا تدخل الظلة إلخ: او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز "ظلة" (سایهٔ بان) د "دار" په بیع کي نه داخلیږي، مګر هغه وخت کله چي له پورتني څلورو جملو څخه یوه جمله ذکر کړی سي، یعني که مشتري "بکل حق هو لهٗ" یا داسي نوري جملې ذکر کړي نو "ظله" د کور په بیع کي داخلیږي، ځکه چي "ظله" د لاري په فضا کي جوړه سوې وي، او لاره له صراحت څخه بغیر یا د پورتني جملو له ذکر کولو څخه بغیر په بیع کي نه داخلیږي نو "ظله" به هم له صراحت یا د پورتني جملو له ذکر کولو څخه بغیر د دار په بیع کي نه داخلیږي.

او د صاحبینو په نېز که د "ظله" لاره په "دار" کي وي، نو د پورتني جملو له ذکر څخه بغیر "ظله" د دار په بیع کي داخلیږي، ځکه چي په دې صورت کي "ظله" د کور له توابعو څخه ده، نو ځکه دا د بیت الخلاء سره مشابه سوه، او بیت الخلاء د "دار" (کور) په بیع کي له ذکر کولو څخه بغیر داخلیږي، نو ځکه به "ظله" هم له ذکر کولو څخه بغیر د "دار" په بیع کي داخلیږي.

## يوازې د يوې کمرې (خونې) د رانيونکې لپاره د لارې حق

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى بَيْتًا فِي دَارٍ أَوْ مَنْزِلًا أَوْ مَسْكَنًا او که څوک په "دَار" کې يو "بيت" [کمره] رانيسي لَمْ يَكُنْ لَهُ الطَّرِيقُ نو د مشتري لپاره به لاره نه وي [يعني د مشتري لپاره د هغه لاره نه ثابتيږي] إِلَّا أَنْ يَشْتَرِيَهُ بِكُلِّ حَقٍّ هُوَ لَهُ أَوْ بِمَرَافِقِهِ أَوْ بِكُلِّ قَلِيلٍ وَكَثِيرٍ مګر دا چې مشتري هغه [بيت] د خپل هر هغه حق سره رانيسي کوم چې د "بيت" لپاره ثابت دی يا هغه د خپل مرافقو سره يا د هر قليل او کثير سره رانيسي وَكَذَا الشِّرْبُ وَالْمَسِيلُ او همدا حکم د اوبو د حصې [حقُ الشرب] او د اوبو د لښتې [نالی] دی لِأَنَّهُ خَارِجُ الْحُدُودِ ځکه چې هغه له حدودو څخه خارج دي إِلَّا أَنَّهُ مِنَ التَّوَابِعِ مګر دا چې هغه له توابعو څخه دي فَيَدْخُلُ بِذِكْرِ التَّوَابِعِ نو ځکه به د توابعو د ذکر کولو په صورت کې [پکښې] داخليږي بِخِلَافِ الْإِجَارَةِ په خلاف د اجارې لِأَنَّهَا تُعْقَدُ لِلِانْتِفَاعِ ځکه چې اجاره د نفع اخيستلو لپاره منعقد کيږي وَلَا يَتَحَقَّقُ إِلَّا بِهِ او نفع اخيستل نه ثابتيږي مګر په هغه سره [يعني په لارې، حقُ الشرب او مسيل سره] إِذِ الْمُسْتَأْجِرُ لَا يَشْتَرِي الطَّرِيقَ عَادَةً وَلَا يَسْتَأْجِرُهُ ځکه چې په اجاره اخيستونکی کس په عامه توګه نه لار رانيسي او نه هغه په اجاره اخلي فَيَدْخُلُ تَحْصِيلًا لِلْفَائِدَةِ الْمَطْلُوبَةِ مِنْهُ نو ځکه له اجارې څخه د مطلوبه نفع د حاصلولو لپاره به لار [او حق الشرب او مسيل په اجاره کې] داخليږي أَمَّا الِانْتِفَاعُ بِالْمَبِيعِ مُمْكِنٌ بِدُونِهِ او له مبيع څخه نفع اخيستل بغير د لارې [هم] ممکن دی لِأَنَّ الْمُشْتَرِيَ عَادَةً يَشْتَرِيهِ وَقَدْ يَتَّجِرُ فِيهِ فَيَبِيعُهُ مِنْ غَيْرِهِ ځکه چې ځينې وخت مشتري کور رانيسي او په هغه سره تجارت کوي او پر بل چا يې خرڅوي فَحَصَلَتِ الْفَائِدَةُ نو ځکه [دلته د لارې څخه بغير هم] نفع حاصله سوه.

**اللغات:** ﴿بيت﴾ خونه، کمره، ﴿منزل﴾ د کور يوه بشپړه برخه، ﴿مسكن﴾ استوګنځی (استوګنځای)، د اوسېدلو او قيام کولو ځای، ﴿الطريق﴾ لار، لاره، ﴿الشِّرْب﴾ کښت او ځمکې ته د اوبه ورکولو حق، حق الشرب، ﴿مسيل﴾ د اوبو بهېدلو ځای، مراد ځني د اوبو راتللو لښتی (ځمکې ته د اوبو راتللو نالی) ده، ﴿مستأجر﴾ د استفعال فاعل دی: هغه کس چې يو شی په اجاره واخلي، استأجر يستأجر استيجاراً: په اجاره اخيستل (په کرايه اخيستل)، په کرايه نيول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه څوك په "دَار" (كور) كې يو بيت (كمره) رانيسي يا په "دَار" كې منزل يا مسكن رانيسي نو د هغه لاره په بيع كې نه داخليږي او د مشتري لپاره نه ثابتيږي، هاا كه چيري مشتري له مخكنيو څلورو جملو څخه يوه جمله ذكر كړي، مثلاً داسي ووايي چي زه دا بيت يا منزل يا مسكن د خپلو ټولو حقوقو سره رانيسم، يا يې د خپلو مرافقو سره يا يې د هر قليل وكثير سره رانيسم، نو بيا په دې بيع كې لاره داخليږي او د مشتري لپاره ثابتيږي.

همدارنګه د ځمكې په بيع كې حق الشرب او د اوبو لښتى (مسيل) نه داخليږي، يعني كه څوك ځمكه رانيسي او د "حق الشرب" او "مسيل" صراحت نه وكړي او نه په مخكنيو څلورو جملو كې يوه جمله ذكر كړي، نو نه حق الشرب په بيع كې داخليږي او نه مسيل، او كه له څلورو جملو څخه يوه جمله ذكر كړي نو حق الشرب او مسيل په بيع كې داخليږي؛ دليل يې دا دى چې لاره، حق الشرب او مسيل دا درې سره د مبيع له حدودو څخه خارج (وتلي) دي ليكن د مبيع توابع دي، لهذا كله چې دا درې سره شيان د مبيع له حدودو څخه خارج دي، نو ځكه به د توابعو يعني په څلورو جملو كې ديوې جملې له ذكر كولو څخه بغير په بيع كې نه داخليږي، او كه يوه جمله ذكر كړى سي نو بيا به پكښې داخليږي.

بخلاف الإجارة إلخ: يعني كه يو ځاى او خونه په كرايه ونيول سي نو لاره په اجاره (كرايه) كې داخليږي كه څه هم له مخكنيو څلورو جملو څخه يوه جمله ذكر نه كړى سي، همداسي د ځمكې په اجاره كې حق الشرب او مسيل داخليږي كه څه هم له مخكنيو جملو څخه يوه جمله ذكر نه كړى سي؛ د دې وجه دا ده چې اجاره د نفع د اخيستلو لپاره منعقد كيږي (يعني يو سړى چې كور يا مثلاً آس په كرايه واخلي نو دا سړى له هغه كور يا آس څخه صرف د اوسېدلو يا سپرېدلو نفع اخلي، كور يا آس نه اخلي) همدا وجه ده چې كومه ځمكه خرابه او ښوره نا كه وي (يعني د كرلو قابله نه وي) نو د هغې اجاره نه صحيح كيږي، لهذا اجاره صرف د نفع اخيستلو لپاره منعقد كيږي، او دا تاسي ته معلومه ده چې بغير د لارې له خونې (كمرې) او ځاى څخه نفع اخيستل او بغير د حق الشرب او مسيل له ځمكې څخه نفع اخيستل ممكن نه دي، ځكه چې عادة نه څوك لاره رانيسي او نه يې په كرايه نيسي، نو ځكه له اجارې څخه د مطلوبه نفع د اخيستلو لپاره به د ځاى په اجاره كې لاره او د ځمكې په اجاره كې حق الشرب او مسيل داخليږي.

ليكن د بيع په صورت كې بغير د لارې له مبيع يعني له "دار" او ځاى څخه نفع اخيستل او بغير د حق الشرب او مسيل له ځمكې څخه نفع اخيستل كېداى سي، لهذا كله چې بغير د دې شيانو له ځاى او ځمكې څخه نفع اخيستل كېداى سي، نو ځكه به دا شيان د توابعو يعني د حقوقو او مرافقو او د داسي نورو جملو له ذكر كولو څخه بغير په بيع كې نه داخليږي. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم



# بَابُ الِاسْتِحْقَاقِ

(دا) باب داستحقاق (داحکامو په بیان کې) دی

**تشریح:** "استحقاق" د حق طلب کولو ته وايي، څرنګه چې مخکې تر دې صاحب د کتاب د حقوقو باب بیان کړی، نو ځکه اوس له دې ځایه د استحقاق باب بیانوي، او په دواړو کې مناسبت بالکل ښکاره دی، په دې توګه چې اول د شي حق ثابتيږي او تر دې وروسته د هغه طلب کيږي، نو ځکه يې باب الاستحقاق تر باب الحقوق وروسته بیان کړی دی.

## د مُستحقه مینځې د اولاد ملکیت

وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً او که څوک یوه مینځه رانیسي فَوَلَدَتْ عِنْدَهُ بیا هغه مینځه د مشتري [رانیونکي] سره بچی وزيږوي فَاسْتَحَقَّهَا رَجُلٌ بِبَيِّنَةٍ بیا یو سړی د ګواهۍ [ګواهانو] په ذریعه د هغې مستحق سي فَإِنَّهُ يَأْخُذُهَا وَوَلَدَهَا نو هغه به دا مینځه [هم] اخلي او د هغې بچی به [هم] اخلي وَإِنْ أَقَرَّ بِهَا لِرَجُلٍ او که مشتري د یو سړي لپاره د مینځې اقرار وکړي لَمْ يَتْبَعْهَا وَلَدُهَا نو [په دې صورت کې] بچی د مینځې نه تابع کيږي وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ الْبَيِّنَةَ حُجَّةٌ مُطْلَقَةٌ او وجه د فرق دا ده چې بیّنه "حجت مطلقه" [حجت کامله] دی فَإِنَّهَا كَاشِفَةٌ مُبَيِّنَةٌ او هغه د خپله نامه په څېر [د حقیقت] ښکاره کونکې ده [یعني لکه څرنګه چې "د بیّنه" د نامه څخه ښکاري هغه د حقیقت او اصل حال ښکاره کونکې ده] فَيَظْهَرُ بِهَا مِلْكُهُ مِنَ الْأَصْلِ لهذا د بیّنه په ذریعه به د حقدار سړي ملکیت له اصل [بنیاد] څخه ښکاره کيږي وَالْوَلَدُ كَانَ مُتَّصِلًا بِهَا او [څرنګه چې] بچی د مینځې [اصل] سره متصل وو فَيَكُونُ لَهُ نو ځکه به بچی [هم] د هغه [حقدار سړي] وي أَمَّا الْإِقْرَارُ حُجَّةٌ قَاصِرَةٌ لیکن اقرار حجت قاصره دی يُثْبِتُ الْمِلْكَ فِي الْمُخْبَرِ بِهِ ضَرُورَةَ صِحَّةِ الْإِخْبَارِ [او] اقرار صرف د إخبار صحیح کېدلو د ضرورت په وجه په مخبر به [مینځه] کې ملکیت ثابتوي وَقَدِ انْدَفَعَتْ بِإِثْبَاتِهِ بَعْدَ الِانْفِصَالِ او دا ضرورت د بچي له جلا

کېدلو [زیږیدلو] څخه وروسته [صرف په مینځه کي] په ملکیت ثابتولو سره پوره کیږي فَلَا يَكُونُ الْوَلَدُ لَهُ نو ځکه [د اقرار په صورت کي] به بچی د هغه [مُقر لهٗ] نه وي ثُمَّ قِيلَ: يَدْخُلُ الْوَلَدُ فِي الْقَضَاءِ بِالْأُمِّ تَبَعًا بیا ویل سوي دي: چي بچی د خپل مور په متابعت کي [د قاضي] په قضاء [فیصله] کي داخلیږي [او مستقلاً قضاء شرط نه ده] وَقِيلَ ❁: يُشْتَرَطُ الْقَضَاءُ بِالْوَلَدِ او ویل سوي دي: چي د بچي لپاره [مستقلا] قضاء شرط ده وَإِلَيْهِ تُشِيرُ الْمَسَائِلُ او د همدې قول وطرف ته د مسبوط مسئلې اشاره کوي فَإِنَّ الْقَاضِيَ إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِالزَّوَائِدِ [د مبسوط یو مسئله دا ده] که چیري قاضي په زوائدو خبر نه وي قَالَ: مُحَمَّدٌ: لَا تَدْخُلُ الزَّوَائِدُ فِي الْحُكْمِ نو امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایلي دي: چي زوائد به [د قاضي] په حکم [فیصله] کي نه داخلیږي وَكَذَا الْوَلَدُ إِذَا كَانَ فِي يَدِ غَيْرِهِ لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْحُكْمِ بِالْأُمِّ تَبَعًا [او بله مسئله دا ده چي] همدارنګه بچی که د بل چا په قبضه کي وي نو هم به د مور په متابعت کي هغه [د قاضي] تر حکم لاندي نه داخلیږي./

**اللغات**: ﴿بيّنة﴾ ګواهي، مراد ځني ګواهان ـ ي، ﴿مُبيّنة﴾ د تفعيل فاعل دی: واضح کونکی، ښکاره کونکی، ﴿إخبار﴾ د افعال مصدر دی: خبر ورکول، مطلب يې اقرار دی، ځکه چي د اقرار کولو په ذریعه هم انسان د یو شي خبر ورکوي او انسان چي په خپله پر خپل ځان د یو چا لپاره د قرض یا بل شي خبر ورکړي یعني اقرار وکړي، نو هغه خامخا صحیح وي، لهذا د دې خبر ورکولو (اخبار) د صحیح کېدلو د ضرورت په خاطر اقرار په مخبر به (قرض یا بل شي) کي ملکیت ثابتوي، ﴿اندفعت﴾ لیري کېدل، (پوره کېدل)، ﴿انفصال﴾ د انفعال مصدر دی: جلا کېدل، بېلېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی مینځه رانیسي او پر هغې قبضه وکړي، بیا مینځه د مشتري په قبضه کي له خپل مالک څخه بغیر د بل سړي له نطفې څخه بچی وزیږوي، بیا یو سړی د ګواهانو په ذریعه پر دغه مینځې خپل استحقاق ثابت کړي (چي دا مینځه زما ده)، نو هغه حقدار سړی به دا مستحقه مینځه هم اخلي او د هغې بچی به هم اخلي، او که مشتري د بل سړي لپاره د مینځې اقرار وکړي (چي دا مینځه مثلاً د خالد ده) نو مقر لهٗ (خالد) به صرف مینځه اخلي لیکن د هغې بچی به نه اخلي،

❁ القول الراجح: هو قول هذا القيل (يعني القول الثاني)، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: يتبعها ولدها بشرط القضاء بالولد في الأصح (الدر المختار ج:۴، ص:۲۱۷)، و كذا في التبيين (ج:۴، ص:۱۰۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۶۷]

يعني د چا لپاره چي مشتري د مينځي اقرار کړی وي هغه ته خو به مينځه ورکول کيږي لېکن د مينځي بچي به نه ورکول کيږي.

د بيّنه (ګواهي) او اقرار په مينځ کي د فرق وجه دا ده چي بيّنه د ټولو خلګو په حق کي حجت کامله ده؛ ځکه چي بيّنه د قاضي د قضاء (فيصلې) په وجه حجت وي او قاضي ته ولايت عامه حاصل دی، نو ځکه به بيّنه د ټولو خلګو په حق کي حجت کامله وي، او د بيّنه مطلب او معنیٰ ده: "اصل حالت ښکاره کونکې" يعني کوم شی چي په حقيقت کي له ګواهي څخه مخکي ثابت وي، بيّنه هغه ښکاره کوي، لکه څرنګه چي د "بيّنه" د لفظ څخه همدا مطلب ښکاري، لهذا د بيّنه په ذريعه به د حقدار سړي ملکيت له اصل څخه ثابتيږي، يعني د بيّنه په ذريعه به دا ثابتيږي چي دا مينځه اصلاً د هغه ملکيت ده، او څرنګه چي په هغه وخت کي بچي هم د مينځي سره متصل وو، او مينځه د هغه حقدار سړي ملکيت سوه نو ځکه د هغې بچي به هم د حقدار سړي وي.

او پاته سو اقرار نو هغه ناقص حجت دی او فقط د اقرار او إخبار صحيح کېدلو د ضرورت په وجه په هغه سره يو شی ثابتيږي، او دا ضرورت د بچي له پيدا کېدلو څخه وروسته صرف په مينځه کي د ملکيت په ثابتېدلو سره پوره کيږي، نو ګواکي د مشتري د اقرار کولو په وجه د مقرلهٗ (خالد) ملکيت صرف په مينځه کي ثابت سو او په بچي کي ثابت نه سو، لهذا کله چي د مُقَرلهٗ ملکيت صرف په مينځه کي ثابت سو او په بچي کي ثابت نه سو، نو ځکه به مقرلهٗ ته فقط د مينځي د اخيستلو اجازه وي او د بچي د اخيستلو اجازه به ورته نه وي.

ثم قيل يدخ الولد إلخ: صاحب د کتاب په دې عبارت سره د يو اختلاف وطرف ته اشاره کړې ده، اختلاف دا دی چي د مدعي سړي د بيّنه تر پېښولو وروسته چي کله قاضي د مينځي په باره کي دا فيصله وکړي چي دا مينځه د مدعي يعني د حقدار سړي ده، نو آيا په دې صورت کي د مينځي بچي د خپل مور په متابعت کي د قاضي په فيصله کي داخليږي او که د بچي لپاره جلا فيصله صادرول شرط دي، نو په دې سلسله کي د ځينو مشائخو قول دا دی چي بچي هم د خپل مور په متابعت کي د قاضي په فيصله کي داخليږي او د هغه لپاره د جلا فيصله کولو ضرورت نسته، او ځيني مشائخ وايي چي د بچي لپاره مستقلاً د قاضي فيصله شرط ده (يعني قاضي به له نوي سره د هغه لپاره جلا فيصله کوي) او د مبسوط مسائل هم دغه طرف ته اشاره کوي، په مبسوط کي امام محمد رَحِمَهُ الله يوه دا مسئله ذکر کړې ده چي که قاضي د يو حقدار سړي لپاره د مينځي فيصله وکړي او قاضي په زوائدو (يعني د مينځي په بچي) خبر نه وي (چي دا مينځه بچي هم لري)، نو په دې صورت کي به زوائد (يعني بچي) د

قاضي په حکم کي نه داخليږي، همدارنګه امام محمد رَحِمَهُ الله دا مسئله هم ذکر کړې ده چي که قاضي د حقداره سرې لپاره د مينځي فيصله وکړي لېکن بچی د مشتري په قبضه کي نه وي بلکي د بل چا په قبضه کي وي، نو په دې صورت کي به هم بچی د مور په متابعت کي په دې فيصله کي نه داخليږي، له دغه دواړو مسئلو څخه ښکاره کيږي چي بچی د خپل مور په متابعت کي د قاضي په حکم او فيصله کي نه داخليږي، بلکي د بچي لپاره مستقلاً د قاضي حکم او فيصله ضروري ده.

## داسي څوک رانيول يا په رهن کي ورکول کوم چي د خپل غلامتوب اقرار کوي لېکن هغه په حقيقت کي آزاد وي

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى عَبْدًا فَإِذَا هُوَ حُرٌّ فرمايي: او که څوک يو غلام رانيسي بيا هغه آزاد وخيږي [يعني بيا ثابته سي چي هغه آزاد دی] وَقَدْ قَالَ الْعَبْدُ: لِلْمُشْتَرِي اِشْتَرِنِي فَإِنِّي عَبْدٌ لَهُ حال دا چي هغه غلام [د بيع په وخت کي] مشتري ته ويلي وي چي ته ما رانيسه! ځکه زه د دې بائع غلام يم [يعني غلام په خپله د غلامتوب اقرار کړی وي] فَإِنْ كَانَ الْبَائِعُ حَاضِرًا أَوْ غَائِبًا غَيْبَةً مَعْرُوفَةً نو که چيري بائع موجود وي يا په داسي توګه غائب وي چي د هغه درک [پته] معلومه وي لَمْ يَكُنْ عَلَى الْعَبْدِ شَيْءٌ نو [په دې صورت کي] پر غلام هيڅ شی نه لازميږي وَإِنْ كَانَ الْبَائِعُ لَا يُدْرٰى أَيْنَ هُوَ او که بائع نا معلوم وي [يعني د هغه درک نا معلوم وي] چي هغه چيري دی؟ رَجَعَ الْمُشْتَرِي عَلَى الْعَبْدِ نو [په دې صورت کي] به مشتري پر غلام رجوع کوي [يعني له غلام څخه به ثمن واپس اخلي] وَرَجَعَ هُوَ عَلَى الْبَائِعِ او غلام به پر بائع رجوع کوي وَإِنِ ارْتَهَنَ عَبْدًا مُقِرًّا بِالْعُبُوْدِيَّةِ او که څوک داسي غلام په رهن کي واخلي کوم چي خپل د غلامتوب اقرار کونکی وي [چي زه غلام يم] فَوَجَدَهُ حُرًّا بيا مرتهن هغه آزاد ومومي لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهِ عَلٰى كُلِّ حَالٍ نو مرتهن په هيڅ حالت کي هم پر غلام [د مال] رجوع نه سي کولای [يعني په هيڅ حالت کي هم له غلام څخه مال (قرض) نه سي اخيستلای] وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ ❁ أَنَّهُ لَا يَرْجِعُ فِيْهِمَا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي هغه په دواړو صورتونو کي رجوع نه سي کولای [يعني د هغه په نېز په دواړو صورتونو کي مشتري يا مرتهن له غلام څخه هيڅ شی واپس نه سي اخيستلای] لِأَنَّ الرُّجُوْعَ

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَاالله، کما ذکر فی الدر المختار (ج:۴، ص:۲۲۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۶۹]

بِالْمُعَاوَضَةِ أَوْ بِالْكَفَالَةِ ځکه چې رجوع کول [يعني له غلام څخه ثمن واپس اخيستل] د معاوضې په وجه وي يا د کفالې په وجه وي وَالْمَوْجُوْدُ لَيْسَ إِلَّا الْإِخْبَارُ كَاذِبًا او دلته فقط درواغجن خبر موجود دی [عقد معاوضه او کفاله موجود نه دي] فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ الْأَجْنَبِيُّ ذٰلِكَ نو داسې سو لکه يو اجنبي چې مشتري ته دا [پورتنی] خبره وکړي [چې دا رانيسه! دا غلام دی] أَوْ قَالَ: الْعَبْدُ اِرْتَهِنِّيْ فَإِنِّيْ عَبْدٌ يا غلام دا ووايي: چې ما په رهن کې واخله! ځکه زه غلام يم وَهِيَ الْمَسْأَلَةُ الثَّانِيَةُ او همدا دويمه مسئله ده

وَلَهُمَا أَنَّ الْمُشْتَرِيَ شَرَعَ فِي الشِّرَاءِ مُعْتَمِدًا عَلٰى أَمْرِهِ وَإِقْرَارِهِ "أَنِّيْ عَبْدٌ" د طرفينو دليل دا دی: چې مشتري د غلام پر وينا او د هغه پر دې اقرار "چې زه غلام يم" په اعتماد کولو سره رانيول شروع کړه إِذِ الْقَوْلُ لَهُ فِي الْحُرِّيَّةِ ځکه چې د آزادۍ په باره کې د هغه [غلام] قول معتبر دی فَيُجْعَلُ الْعَبْدُ بِالْأَمْرِ بِالشِّرَاءِ ضَامِنًا لِلثَّمَنِ لَهُ عِنْدَ تَعَذُّرِ رُجُوعِهِ عَلَى الْبَائِعِ لهذا پر بائع د رجوع د متعذر کېدلو [ناممکن کېدلو] په صورت کې به د رانيولو د حکم کولو په وجه غلام د مشتري د ثمن ضامن ګرځول کېږي دَفْعًا لِلْغُرُوْرِ وَالضَّرَرِ د دې لپاره چې [له مشتري څخه] ضرر او دوکه لېرې کړی سي وَلَا تَعَذُّرَ إِلَّا فِيْمَا لَا يُعْرَفُ مَكَانُهُ او رجوع صرف په هغه وخت کې متعذر ده کله چې د بائع ځای [درک] معلوم نه وي وَالْبَيْعُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ او بيع عقد معاوضه دی [يعني د معاوضې عقد او معامله ده] فَأَمْكَنَ أَنْ يُجْعَلَ الْآمِرُ بِهِ ضَامِنًا لِلسَّلَامَةِ نو ځکه د بيع حکم کول [يعني د بيع حکم کونکی کس] د مبيع د سلامتيا ضامن ګرځول کېدای سي كَمَا هُوَ مُوْجَبُهُ لکه څرنګه چې دا [د مبيع سلامتيا] د بيع مُوجب ده بِخِلَافِ الرَّهْنِ په خلاف د رهن لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُعَاوَضَةٍ ځکه چې رهن عقد معاوضه نه دی بَلْ هُوَ وَثِيْقَةٌ لِاسْتِيْفَاءِ عَيْنِ حَقِّهِ بلکې هغه [د مرتهن لپاره] د خپل عَين حق د حاصلولو وثيقه ده حَتّٰى يَجُوْزَ الرَّهْنُ بِبَدَلِ الصَّرْفِ وَالْمُسْلَمِ فِيْهِ همدا وجه ده چې "د بدل صرف" او "مسلم فيه" په عوض کې رهن اېښوول جائز دي مَعَ حُرْمَةِ الْاِسْتِبْدَالِ حال دا چې [له قبضه کولو څخه مخکې] استبدال حرام دی فَلَا يُجْعَلُ الْآمِرُ بِهِ ضَمَانًا لِلسَّلَامَةِ نو ځکه د رهن حکم کول [يعني د رهن حکم کونکی کس] د سلامتيا ضامن نه سي ګرځول کېدای وَبِخِلَافِ الْأَجْنَبِيِّ او په خلاف د اجنبي کس لِأَنَّهُ لَا يُعْبَأُ بِقَوْلِهِ

ځکه چي د هغه پر خبره اعتبار نه کيږي [يعني د هغه قول لره اعتبار نسته] فَلَا يَتَحَقَّقُ الْغُرُوْرُ نو ځکه به [د هغه له طرفه] دوکه نه ثابتيږي وَنَظِيْرُ مَسْأَلَتِنَا قَوْلُ الْمَوْلٰى: بَايِعُوْا عَبْدِيْ هٰذَا فَإِنِّيْ قَدْ أَذِنْتُ لَهٗ او زموږ د دې مسئلې مثال دا دی چي مالک [د بازار تاجرانو ته] ووايي: تاسي زما د دې غلام سره بيع کوئ! ځکه ما هغه ته [د تجارت] اجازه ورکړې ده ثُمَّ ظَهَرَ الْاِسْتِحْقَاقُ [لېکن] بيا پر هغه غلام [د بل چا] استحقاق ښکاره سي فَإِنَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ عَلَيْهِ بِقِيْمَتِهٖ نو [په دې صورت کي] به تاجران د غلام له مالک څخه د غلام د قيمت په اندازه مال واپس اخلي.

**اللغات**: ﴿لا يُدرىٰ﴾ د ضرب له بابه د نفي مجهول صيغه ده، دَرَىٰ يَدْرِيْ دِرَايَةً: پېژندل، په خبرېدل، معلومول، نو د "لا يُدرىٰ" معنیٰ ده: (که بائع) نامعلوم وي (يعني د هغه خبر او معلومات هيچا ته نه وي)، ﴿ارتهن﴾ د افتعال ماضي ده: په رهن اېښوول (په رهن اخيستل، په گرو اخيستل)، ﴿وثيقة﴾ هغه شی چي د هغه په ذريعه معامله مضبوطه کړی سي او عاقدين يو پر بل اعتماد وکړي، سند، تړون ليک (او رهن هم داسي دی، يعني يو سړی چي بل سړي ته قرض ورکړي او له هغه څخه يو شی په رهن کي واخلي نو په دې سره قرض ورکونکي [مرتهن] ته اعتماد حاصل سي، او په دې سره د هغه لپاره خپل قرض حاصلول او پر مقروض (راهن) د قرض ورکول مضبوط او لازم سي)، ﴿مُسْلَم فيه﴾ د افعال مفعول دی: هغه شی چي بيع سَلَم پکښي سوې وي، ﴿بايعوا﴾ د مفاعلې له بابه د امر صيغه ده: بيع کول، خرڅول او رانيول.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که يو کس بل سړي ته ووايي چي ته ما رانيسه! زه د خالد غلام يم، او دا سړی هغه رانيسي بيا ثابته سي چي کوم يو ده غلام گڼلی وو (يعني کوم يو چي خپل ځان غلام ښکاره کړی وو) هغه غلام نه دی بلکي آزاد دی، نو که چيري بائع (خالد) حاضر وي يا په داسي توگه غائب وي چي د هغه پته او درک معلوم وي نو پر غلام هيڅ شی نه لازميږي، بلکي مشتري به خپل ثمن له بائع څخه واپس اخلي، ځکه چي همدا بائع له مشتري څخه ثمن اخيستی دی نو ځکه به ثمن صرف له بائع څخه واپس اخيستل کيږي.

او که بائع (خالد) داسي غائب وي چي د هغه درک نامعلوم وي چي چيري دی؟ نو په دې صورت کي به مشتري خپل ثمن له غلام څخه واپس اخلي يعني کوم چي ده غلام گڼلی او رانيولی وو، وروسته به دا غلام له بائع څخه د هغه په اندازه ثمن اخلي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که يو سړی بل داسي کس په رهن کي واخلي، کوم چي د خپل غلامتوب اقرار کوي (يعني د حامد پر زيد قرض باندي وي، او حامد له زيد څخه داسي کس په رهن کي واخلي کوم چي د خپل غلام کېدلو اقرار کوي) بيا مرتهن (حامد) ته معلومه سي چي دا غلام نه دئ بلکي آزاد دی، نو مرتهن ته په هيڅ حالت کي هم دا اختيار نسته چي پر غلام د خپل مال (قرض) رجوع وکړي (يعني دا اختيار ورته نسته چي له غلام څخه خپل قرض واخلي)، برابره ده راهن (زيد) حاضر وي او که داسي غائب وي چي د هغه درک معلوم نه وي. له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي په رهن او بيع کي هيڅ فرق نسته، يعني څرنګه چي د رهن په صورت کي مرتهن ته په هيڅ حالت کي هم پر غلام د رجوع کولو اختيار نسته، همداسي د بيع په صورت کي هم مشتري ته په هيڅ حالت کي پر غلام د رجوع کولو اختيار نسته.

**د امـام ابـو يوسـف دليـل:** دا دی چي د ثمن واپس اخيستلو اختيار د عقد معاوضه په وجه حاصليږي، يا د کفاله په وجه حاصليږي، حال دا چي د غلام له طرفه نه عقد معاوضه سوی دی او نه کفاله؛ معاوضه خو ځکه چي غلام د مشتري سره نه يو معامله کړې ده او نه يې له هغه څخه څه مال اخيستی دی، او کفاله ځکه نه ده سوې چي غلام د بائع له طرفه د مشتري لپاره د ثمن کفيل سوی نه دی، لهذا کله چي د غلام له طرفه نه عقد معاوضه سته او نه کفاله سته بلکي محض يو درواغجن خبر سته، يعني هغه صرف خپل د غلام کېدلو اقرار کړی دی (چي دا يو درواغجن خبر او اقرار دی) نو ځکه به غلام د ثمن ضامن هم نه وي، او کله چي هغه د ثمن ضامن نه سو نو پر هغه به د رجوع کولو (يعني له هغه څخه د ثمن واپس اخيستلو) اختيار به هم نه وي. او دا داسي سو لکه يو اجنبي سړی چي مشتري ته ووايي: دا رانيسه! دا غلام دی، او مشتري د اجنبي پر وينا هغه رانيسي، بيا معلومه سي چي هغه غلام نه دی بلکي آزاد دی نو پر اجنبي هيڅ شی نه لازميږي، نو همداسي که يو کس په خپله ووايي چي ما رانيسه! زه غلام يم، بيا معلومه سي چي هغه آزاد دی نو مشتري ته به له هغه څخه د ثمن واپس اخيستلو اختيار نه وي. امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د بيع صورت د رهن پر صورت قياس کړې دی يعني څرنګه چي د رهن په صورت کي مرتهن پر غلام د رجوع کولو (يعني له غلام څخه د خپل قرض اخيستلو) اختيار نسته، همداسي به د بيع په صورت کي مشتري ته له غلام څخه د ثمن واپس اخيستلو اختيار نه وي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چي مشتري خو د هغه غلام پر وينا او اقرار (چي زه غلام يم ما رانيسه!) د اعتماد کولو په وجه د هغه د رانيولو اراده وکړه او هغه يې رانيوی، ځکه چي په آزاد کېدلو کي (چي زه آزاد يم) هم د هغه قول معتبر وو، نو څرنګه چي غلام مشتري ته د رانيولو حکم کړی دی (چي ما

راتیسه!) نو ځکه به په دې صورت کې که له بائع ځخه د ثمن واپس اخیستل متعذر (ناممکن) وي نو له مشتري ځخه به د ضرر او دوکې لیرې کولو لپاره دا غلام د مشتري د ثمن ضامن گرځول کیږي. او له بائع ځخه ثمن واپس اخیستل په هغه صورت کې متعذر دي کله چې د بائع درک معلوم نه وي. نو ثابته سوه چې کله د بائع درک معلوم نه وي چې هغه چیرې دی؟، نو په دې صورت کې به مشتري له دې غلام ځخه ثمن اخلي کوم چې خپل ځان غلام ښکاره کړی او مشتري ته یې دوکه ورکړه، ځکه چې د دوکه ورکولو په وجه دا غلام د مشتري د ثمن ضامن دی.

والبیع عقد معاوضة إلخ: په دې عبارت سره د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د دلیل جواب ورکوي، امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایلي وو چې "په بیع او رهن کې هیڅ فرق نسته لهذا څرنګه چې د رهن په صورت کې مرتهن ته له غلام ځخه د مال واپس اخیستلو اختیار نسته همداسې به د بیع په صورت کې هم مشتري ته له غلام ځخه د ثمن واپس اخیستلو اختیار نه وي"، موږ جواب ورکوو چې په بیع او رهن کې ډېر فرق سته، ځکه چې بیع عقد معاوضه دی، او د عقد معاوضه مُوجب دا دی چې مبیع د مشتري لپاره صحیح سالم وي، نو ځکه کوم کس چې مشتري ته د رانیولو حکم کونکی وي (چې ما رانیسه! زه غلام یم) هغه د مبیع سالم کېدلو ضامن جوړول کېدای سي، یعني مشتري چې په کوم صفت سره د مبیع مستحق سوی وي دا کس به د رانیولو د حکم ورکولو په وجه د هغه (مبیع) د سلامتیا ضامن وي، خو څرنګه چې دا کس (کوم چې په دې بیع کې مبیع دی) آزاد وختی او په خپله خبره کې درواغجن سو (یعني آزادي یې ثابته سوه) نو ځکه به هغه د ثمن ضامن وي، او کله چې هغه د ثمن ضامن سو، نو ځکه به پر بائع د رجوع د متعذر کېدلو په صورت کې مشتري له هغه ځخه خپل ثمن واپس اخلي.

او پاتـه سو رهن نو هغه عقد معاوضه نه دی بلکې د وثوق او اعتبار ذریعه ده، د دې لپاره چې مرتهن ته خپل عَین حق حاصل سي یعني هغه شی ورته حاصل سي کوم چې مرتهن راهن ته په قرض ورکړی دی، همدا وجه ده چې د "بدل صرف" په عوض کې او د "مسلم فیه" په عوض کې رهن اینښوول جائز دي، حال دا چې له قبضه کولو ځخه مخکې په بدل صرف او مسلم فیه کې تصرف کول او د هغوی په عوض کې یو شی اخیستل حرام ادي، د "بدل صرف" صورت دا دی چې خالد لس درهمه د لسو درهمو په عوض کې پر حامد خرڅ کړل (چې دې ته بیع صَرف وایي)، او خالد لس درهمه حامد ته ورکړه لېکن حامد لس درهمه خالد ته نه ورکړه بلکې د لسو درهمو په عوض کې یې خالد ته یو شی په رهن کښېښوی، بیا د خالد (مرتهن) په قبضه کې هغه مرهون شی هلاک سو، نو دا به ویل کیږي چې گواکې خالد (مرتهن) تـه خپل حق ورسېدی او هغه خپل حق واخیستی، په دې شرط چې د مرهون شي قیمت به د لسو درهمو په اندازه وي (یعني مرهون شی به هم لس درهمه قیمت لري)، او که

چیري د مرهون شي قیمت د لسو درهمو څخه زیات وي نو د لسو درهمو څخه زائد دراهم به د مرتهن (خالد) سره امانت وي چي راهن (حامد) ته به د هغه واپس کول ضروري وي، او که چیري د مرهون شي قیمت د لسو درهمو څخه کم وي نو مرتهن به له راهن څخه پاته دراهم واپس اخلي.

د "مسلم فیه" صورت دا دی چي خالد و حامد ته د بیع سَلم په توګه سل درهمه ورکړه او دوه منه غنم "مسلم فیه" وټاکل سوه، بیا حامد (یعني مسلم إلیه) و خالد ته (یعني ربُ السَلم ته) د مسلم فیه په عوض کي یو شی په رهن کښېښوی، بیا د مرتهن (خالد) سره هغه مرهون شی هلاک سو، نو په دې صورت کي به خالد (کوم چي مرتهن او رب السَلم دیٔ) د خپل حق اخیستونکی شمارل کیږي (یعني ګواکي هغه ته خپل حق ورسېدی او هغه خپل حق واخیستی)، په دې شرط چي د مرهون شي قیمت به د مسلم فیه د قیمت په اندازه وي. نو که چیري رهن عقد معاوضه وای نو د "بدل صرف" یا "مسلم فیه" په عوض کي به رهن ایښول جائز نه وای (ځکه چي د بدل صرف یا مسلم فیه په عوض کي د رهن په ایښولو سره د رأسُ المال یا مسلم فیه تبادله لازمیږي، حال دا چي قبل القبض په هغوی کي تصرّف کول حرام دي)، لهذا کله چي رهن عقد معاوضه نه دی نو د رهن حکم کونکی سړی یعني هغه کس کوم چي خپل ځان غلام ښکاره کړی وو (هغه به) د مرهون شي د سلامتیا ضامن نه وي. له همدې کبله فقهاوو ویلي دي چي که له یو سړی څخه یو چا پوښتنه وکړه چي کومه لاره په امان ده، او دې سړي یو لار هغه ته وروښووله چي فلانکې لاره په امان ده، او سائل پر هغه لاره سفر شروع کړی لېکن په لاره کي غله او لوټمارانو پر هغه حمله وکړه او مال یې ځني واخیستی، نو دا لاره وروښوونکی سړی د هغه د مال نه ضامن کیږي، ځکه چي د لاره وروښونکي سړي له طرفه دوکه په داسي شي کي موجوده سوه کوم چي عقد معاوضه نه دی. همدارنګه که یو سړي بل چا ته وویل چي دا ډوډۍ له زهرو څخه پاکه ده، دا وخوره! ، لېکن هغه چي ډوډۍ وخوړه نو سمدستي مړ سو، او په تحقیق کولو سره معلومه سوه چي هغه ډوډۍ زهرجنه وه (یعني زهر په ګډ وه)، نو څرنګه چي دغه دوکه هم په عقد معاوضه کي داخله نه ده، نو ځکه د خوړلو حکم کونکی سړی به نه ضامن کیږي. لنډه دا چي ثابته سوه چي له عقد معاوضه څخه بغیر په بل شي کي دوکه ورکونکی سړیٌ د شي د سلامتیا نه ضامن کیږي، او څرنګه چي رهن هم د معاوضې عقد نه دی، نو ځکه د رهن ایښوولو حکم کونکی سړیَ به (یعني هغه کس کوم چي د خپل غلامتوب اقرار کړی وو او ځان یې غلام ښکاره کړی وو) د مرهون شي د سلامتیا نه ضامن کیږي، او کله چي

دا غلام د سلامتيا ضامن نه سو، نو ځکه د هغه د آزاد ختلو (آزاد ثابتېدلو) په صورت کي به مرتهن ته پر هغه د رجوع کولو اختيار هم نه وي.

**وبخلاف الأجنبي إلخ:** په دې سره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چي کله يو اجنبي سړی د بل چا په باره کي ووايي چي دا رانيسه! دا غلام دی، نو د هغه پر قول اعتماد نه کيږي (يعني د اجنبي قول لره اعتبار نسته)، ځکه چي د هر کس ناکس پر خبره اعتماد نه کيږي، او کله چي د اجنبي کس پر خبره اعتماد نه کيږي (او د هغه قول لره اعتبار نسته) نو د هغه له طرفه به دوکه هم نه ثابتيږي، او کله چي دوکه ثابته نه سوه نو د غلام د آزاد ختلو (آزاد ثابتېدلو) په صورت کي به د مشتري لپاره پر هغه ضِمان هم نه واجبيږي؛ ځکه مخکي تېر سوه چي غلام ځکه د مشتري د ثمن ضامن گرځول کيږي چي له مشتري څخه دوکه ليري کړی سي، لېکن کله چي دلته د اجنبي له طرفه دوکه نه ده سوې، نو بيا به هغه څنګه ضامن وګرځول سي!، نو ځکه به اجنبي سړی د مشتري د ثمن نه ضامن کيږي.

**ونظيره إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چي د متن د مسئلې مثال دا دی چي مالک (مولیٰ) د بازار تاجرانو ته ووايي چي "تاسي زما د دې غلام سره بيع کوئ! ځکه چي هغه ته ما د تجارت اجازه ورکړې ده"، بيا معلومه سي چي هغه غلام نه دی بلکي آزاد دی او پر هغه د تاجرانو قرض باندي وي، نو په دې صورت کي به قرض غوښتونکي تاجران خپل قرض له مالک (مولیٰ) څخه اخلي؛ ځکه چي هغه دوکه ورکړې ده، نو د دوکه ورکولو په وجه به مولیٰ د قرض غوښتونکو ضامن کيږي. لېکن دا په ياد لرئ! چي په دې صورت کي مالک د غلام د قيمت په اندازه ضامن کيږي، تر هغه زيات نه ضامن کيږي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

ثُمَّ فِي وَضْعِ الْمَسْأَلَةِ ضَرْبُ إِشْكَالٍ عَلٰى قَوْلِ أَبِي حَنِيْفَةَ بيا [د متن] د دې مسئلې په صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول يو قسم اشكال [اشتباه] سته لِأَنَّ الدَّعْوٰى شَرْطٌ فِي حُرِّيَّةِ الْعَبْدِ عِنْدَهُ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د غلام په آزادي کي دعویٰ کول شرط دي وَالتَّنَاقُضُ يُفْسِدُ الدَّعْوٰى او تناقض دعویٰ فاسدوي وَقِيْلَ: إِذَا كَانَ الْوَضْعُ فِي حُرِّيَّةِ الْأَصْلِ او ويل سوي دي: كه چيري د مسئلې وضع په اصلي حريت [اصلي آزادي] کي وي [يعني په اصلي حريت کي دا مسئله وضع کړی سوې او فرض کړی سوې وي] فَالدَّعْوٰى فِيهَا لَيْسَ بِشَرْطٍ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [هم] په هغه کي

دعوىٰ شرط نه ده لِتَضَمُّنِهِ تَحْرِيْمَ فَرْجِ الْأُمِّ ځکه چي آزادي د مور د فرج [شرمګاه] حرامېدلو لره شامله ده وَقِيْلَ[1] : هُوَشَرْطٌ او ويل سوي دي: چي [په دې صورت کي هم] دعوىٰ شرط ده لٰكِنَّ التَّنَاقُضَ غَيْرُ مَانِعٍ لېکن [دلته] تناقض مانع نه دی لِخَفَاءِ الْعَلُوْقِ ځکه چي [په رحم کي] نطفه قرار نیول [حامله کېدل] يو مخفي کار دی وَإِنْ كَانَ الْوَضْعُ فِي الْإِعْتَاقِ او که د مسئلې وضع په اعتاق [آزادولو] کي وي فَالتَّنَاقُضُ لَا يَمْنَعُ نو [په دې صورت کي هم] تناقض مانع نه دی لِاسْتِبْدَادِ الْمَوْلٰى بِهِ ځکه چي مالک په اعتاق کي مستقل [او منفرد] دی [يعني هغه په خپله غلام آزادولای سي. او هغه ته د غلام آزادولو پوره حق سته] فَصَارَ كَالْمُخْتَلِعَةِ تُقِيْمُ الْبَيِّنَةَ عَلَى الطَّلَقَاتِ الثَّلَاثِ قَبْلَ الْخُلْعِ نو دا داسي سو لکه خلع کونکې ښځه چي له خلع څخه مخکي پر دريو طلاقونو ګواهان پېش کړي وَالْمُكَاتَبِ يُقِيْمُهَا عَلَى الْإِعْتَاقِ قَبْلَ الْكِتَابَةِ او [لکه] مکاتب [چي] له کتابت څخه مالک [د مالک] پر آزادولو ګواهان پېش کړي.

**اللغات** : ﴿إشكال﴾ د افعال مصدر دی: اشتباه، ستونزه، أَشْكَلَ يُشْكِلُ إِشْكَالًا : يو شی مشتبه کېدل، شکمن کېدل. ستونزمن کېدل (مشکل کېدل)، ﴿وضع﴾ صورت، ﴿ضرب﴾ يو قسم، يو شکل، ﴿تَضَمُّن﴾ د تفعل مصدر دی: شاملېدل، مشتمل کېدل، ﴿خفاء﴾ پټوالی، ﴿علوق﴾ په رحم کي نطفه قرار نيول، حمل نيول کېدل (ښځه حامله کېدل).

**تشريح** : صاحب د هدايې فرمايي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول د متن په مسئله کي يو ډول اشکال سته. له اشکال څخه مخکي په دې ځان پوه کړئ! چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د غلام د آزادۍ د ثابتولو لپاره د آزادۍ دعوىٰ کول شرط دي. يعني غلام به مخکي د آزادۍ مدعي وي بيا به پر آزادي ګواهي پېشول کېږي. دويمه خبره دا ده چي که په دعوىٰ کي تناقض وي نو هغه (تناقض) دعوىٰ ساقطوي.

**اشکال** : اوس د اشکال وضاحت دا دی چي کوم غلام مشتري ته دا وويل چي زه د بائع (خالد) غلام يم ما رانيسه! او وروسته هغه د مشتري په قبضه کي دعوىٰ وکړه چي زه آزاد يم او پر خپل آزادي يې

---

[1] القول الراجح: هو هذا القول. كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: والصحيح أنه دعوى العبد شرط عند أبي حنيفة رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:٦، ص:١٨٦). [القول الراجح ج:٢، ص:٦٩]

ګواهان پېش کړل، نو ګواکي غلام اول د غلام کېدلو (غلامتوب) دعوىٰ وکړه بيا يې د آزاد کېدلو دعوىٰ وکړه، او دا صريح تناقض دى، او د چا په دعوىٰ کي چي تناقض وي د هغه دعوىٰ نه صحيح کيږي بلکي فاسديږي، لهذا کله چي د غلام د آزادۍ دعوىٰ فاسده سوه نو د هغه ګواهان به هم نه قبلول کيږي. او کله چي د غلام د آزادۍ ګواهان مقبول نه سوه نو د هغه آزادي به هم نه ثابتيږي. او کله چي د غلام آزادي ثابته نه سوه نو مشتري به څنګه ثمن واپس اخلي (ځکه چي اوس د ثمن واپس اخيستلو هيڅ وجه نسته) ځکه د ثمن واپس اخيستلو اختيار د آزادۍ ثابتېدلو په وجه وو، او دلته د دعوىٰ فاسدېدلو په وجه آزادي ختمه سوه، نو ځکه د ثمن واپس اخيستلو حق هم ختمېدل پکار دي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دغه اشکال دوه جوابونه ورکړي دي:

**اول جواب:** دا دى چي د ماتن رَحِمَهُ الله په دې قول "فَإِذَا هُوَ حُرٌّ" کي له حريت (آزاد کېدلو) څخه اصلي او پيدايشي حريت مراد دى، نو د عامو مشائخو رَحِمَهُمُ الله قول دا دى چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د اصلي حريت د ثابتولو لپاره دعوىٰ شرط نه ده، ځکه کله چي يو سړى اصلاً آزاد وي نو د هغه مور د هيچا مملوکه نه وي، او کله چي د هغه مور د هيچا مملوکه نه وي نو د هغه د مور فرج او شرمګاه پر هغه سړي حرامه وي کوم چي دعوىٰ کوي چي هغه زما مملوکه ده، او د فرج حرامېدل له حقوق الله څخه دي، او د حقوق الله د ثابتولو لپاره دعوىٰ شرط نه وي، بلکي بغير له دعوىٰ څخه د ګواهانو ګواهي قبليږي، حاصل دا سو چي اصلي حريت د هغه د مور د فرج حرامېدلو لره متضمن دى، او څرنګه چي د فرج د حرمت لپاره دعوىٰ شرط نه ده، نو ځکه د اصلي حريت (کوم چي د فرج حرمت لره متضمن دى د هغه) لپاره به هم دعوىٰ شرط نه وي، او کله چي د اصلي حريت لپاره دعوىٰ شرط نه ده، نو کوم کس چي "اِشْتَرِنِيْ فَإِنِّيْ عَبْدٌ" ويلي وه د هغه په کلام کي به تناقض هم نه لازميږي. او د ځينو مشائخو قول دا دى چي د اصلي حريت د ثابتولو لپاره هم دعوىٰ شرط ده لېکن په دې صورت کي تناقض واقع کيږي، ځکه چي اول هغه کس د خپل ځان د غلام کېدلو اقرار کړى دى او اوس د آزاد کېدلو دعوىٰ کوي. نو د دې جواب دا دى چي دلته تناقض د دعوىٰ له صحيح کېدلو څخه مانع نه دى بلکي دا تناقض معاف دى، ځکه چي نطفه په رحم کي قرار نيول (حامله کېدل) يو مخفي کار دى، په دې توګه چي هغه کس له دارُ الحرب څخه په کوچنيوالي کي راوستل سوى وي او هغه ته د خپل مور او پلار د آزادوالي حالت معلوم نه وي نو ځکه هغه د خپل ځان د غلام کېدلو اقرار کوي، بيا وروسته ورته

معلومه سوه چي زما پلار او مور آزاد دي نو ځکه هغه د خپل آزاد کېدلو دعوىٰ وکړه. لنډه دا چي علوق او نطفه قرار نيول يو مخفي کار دی، او کوم شی چي مخفي وي په هغه کي تناقض معاف کيږي، نو ځکه به دلته هم تناقض معاف وي، او کله چي تناقض معاف دی نو د هغه په وجه به دعوىٰ نه فاسديږي بلکي دلته به دعوىٰ ثابتيږي او هغه کس به آزاد وي، نو ځکه له هغه څخه به د ثمن اخيستلو اختيار هم وي.

**دويم جواب**: دا دی چي که د ماتن رَحِمَهُ الله له دې قول "فإذا هو حرٌ" څخه مراد هغه آزادي وي کوم چي د مالک (مولیٰ) په آزادولو سره حاصله سوې وي نو په دې صورت کي هم تناقض د دعوىٰ له صحت څخه مانع نه دی، ځکه چي مالک د خپل غلام په آزادولو کي مستقل وي (او هغه ته د دې پوره حق وي)، نو کېدای سي چي کله مالک هغه آزاد کړی وي نو څه خلک به په آزادي خبر وي او په خپله غلام به په خبر نه وي، تر دې چي کله مالک هغه خرڅ کړی نو هغه د خپل ناخبرۍ په وجه اقرار وکړی چي زه د ده غلام يم، بيا چي کله هغه د خلکو څخه پوښتنه وکړه نو هغه پر خپل حريت (آزاد کېدلو) ګواهان پېش کړل او دعوىٰ يې وکړه چي زه آزاد کړی سوی يم. نو څرنګه چي د علوق د مخفي کېدلو په وجه تناقض د دعوىٰ له صحت څخه مانع نه دی، همداسي په اعتاق (ازادولو) کي هم د خفاء احتمال سته، نو ځکه دلته به هم په تناقض سره دعوىٰ نه فاسديږي او د غلام آزادي به ثابتيږي او مشتري ته به له هغه څخه د ثمن واپس اخيستلو اختيار وي.

او دا داسي سو لکه يو ښځه چي د خپل خاوند سره خلع وکړي، او بيا دعوىٰ وکړي چي زما خاوند ما ته له خلع څخه مخکي درې طلاقه راکړي دي او پر دې ګواهان پېش کړي، نو که څه هم دلته د خلع او د طلاق د دعوىٰ په مينځ کي تناقض سته لېکن د دې باوجود د هغې دعوىٰ صحيح کيږي او د هغې ګواهان قبلول کيږي؛ ځکه چي خاوند د طلاق په واقع کولو کي مستقل او منفرد دی، او د طلاق د صحت او واقع کېدلو لپاره د ښځي خبرېدل ضروري نه دي، نو ځکه کېدای سي چي ښځه په طلاق خبره نه وه او هغې خلع وکړه، لېکن کله چي په طلاق خبره سوه نو هغې دعوىٰ وکړه او د ګواهانو په ذريعه يې هغه ثابته کړه، نو ځکه به د هغې ګواهان قبلول کيږي او هغې ته به خپل هغه مال واپس ورکول کيږي کوم چي خاوند ته هغې په خلع کي ورکړی وو.

همدارنګه که غلام د خپل مالک سره عقد کتابت وکړي او بيا ګواهان پېش کړي چي زما مالک تر مکاتب کولو مخکي زه آزاد کړی يم او په ګواهانو سره دا ثابته کړي، نو دلته هم د هغه ګواهان قبلول کيږي. نو څرنګه چي په دغه صورتونو کي د ناخبرۍ او د حقيقت د خفاء په وجه د ښځي خلع او د غلام کتابت

ختميږي او د ښځي طلاق او د غلام آزادي ثابتيږي او په دواړو کي تناقض نه مانع کيږي، نو همداسي به د متن کي په مسئله کي هم د غلام د غلامتوب په دعویٰ او د حريت په دعویٰ کي تناقض مانع نه وي او د حريت په دعویٰ سره به د غلام آزادي ثابتيږي، او مشتري ته به له دې غلام څخه د ثمن واپس اخيستلو اختيار وي (په دې شرط کله چي له بائع څخه د ثمن واپس اخيستل متعذر وي).

## په کور کي د مجهول حق د دعویٰ کونکي سړي سره پر مال تر صلح کولو وروسته په هغه کور کي د بل چا حق ثابتېدل

قَالَ: وَمَنِ ادَّعٰى حَقًّا فِي دَارٍ فرمايي: او که څوک په يو کوړ کي د حق دعویٰ وکړي مَعْنَاهُ: حَقًّا مَجْهُولًا د دې معنیٰ ده: د مجهول حق [يعني د مجهول حق دعویٰ وکړي] فَصَالَحَهُ الَّذِي فِي يَدِهِ عَلٰى مِائَةِ دِرْهَمٍ بيا هغه کس چي کوريې په قبضه کي وي د هغه دعویٰ کونکي [مدعي] سره پر سلو درهمه صلح وکړي فَاسْتُحِقَّتِ الدَّارُ إِلَّا ذِرَاعًا مِنْهَا او تر دې وروسته له يوه ګز څخه بغير [نور] ټوله کور مستحق وخيږي لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ نو قابض له مدعي څخه يو درهم هم واپس نه سي اخيستلای لِأَنَّ لِلْمُدَّعِي أَنْ يَقُولَ: دَعْوَايَ فِي هٰذَا الْبَاقِي ځکه مدعي دا ويلای سي: چي زما دعویٰ صرف په همدغه يوه ګزه کي وه قَالَ: وَإِنِ ادَّعَاهَا كُلَّهَا فرمايي: او که مدعي په ټوله کور دعویٰ وکړي فَصَالَحَهُ عَلٰى مِائَةِ دِرْهَمٍ او قابض [مدعیٰ عليه] د هغه سره پر سلو درهمو صلح وکړي فَاسْتُحِقَّ مِنْهَا شَيْءٌ بيا د کور يوه حصه مستحق وخيږي رَجَعَ بِحِسَابِهِ نو قابض به [پر مدعي] د هغه په حساب سره رجوع کوي لِأَنَّ التَّوْفِيقَ غَيْرُ مُمْكِنٍ ځکه چي توفيق ممکن نه دی فَوَجَبَ الرُّجُوعُ بِبَدَلِهِ عِنْدَ فَوَاتِ سَلَامَةِ الْمُبْدَلِ نو ځکه د مبدل د سلامتيا د فوتېدلو په وخت کي د هغه د بدل واپس اخيستل واجب سو وَدَلَّتِ الْمَسْأَلَةُ عَلٰى أَنَّ الصُّلْحَ عَنِ الْمَجْهُولِ عَلٰى مَعْلُومٍ جَائِزٌ او دا مسئله پر دې خبره دلالت کوي چي د مجهول شي په باره کي پر معلوم مال صلح کول جائز دي لِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِيمَا يَسْقُطُ لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ ځکه چي جهالت په هغه شي کي کوم چي ساقطيږي نزاع ته رسول نه کوي [يعني کوم شی چي ساقطيږي جهالت په هغه کي د جنګ او اختلاف سبب نه جوړيږي].

**اللغات**: ﴿صالح﴾ صلح کول (سوله کول)، ﴿ذراع﴾ يو ګز.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی (مثلا خالد) د بل چا په يو کور کي د مجهول حق دعویٰ وکړي (يعني داسي ووايي چي زه په دې کور کي حق لرم) او قابض يعني مدعیٰ عليه انکار وکړي، بيا قابض

د مدعي (خالد) سره پر سلو درهمو صلح وکړي، يعني قابض سل درهمه مدعي ته ورکړي او د هغه مجهول حق واخلي، بيا په دې مينځ کي بل درېيم سړی له يوه گز ځخه بغير پر هغه ټوله کور خپل استحقاق ثابت کړي، نو په دې صورت کي قابض يعني مدعیٰ عليه ته له مدعي ځخه د هيڅ مال اخيستلو اختيار نسته؛ ځکه چي مدعي دا ويلای سي چي زما دعویٰ صرف په هغه يوه گز کي وه چي د هغه په عوض کي تا ما ته سل درهمه راکړه.

وإن ادعاها كلها إلخ: لېکن که مدعي (خالد) په ټوله کور دعویٰ وکړي (چي ټوله کور زما دی)، بيا قابض د مدعي سره پر سلو درهمه صلح وکړي يعني د ټوله کور په عوض کي سل درهمه ورکړي. بيا د دې کور پر يوه حصه بل درېيم سړي خپل استحقاق ثابت کړي، مثلاً په نيمايي کور کي خپل استحقاق ثابت کړي او هغه واخلي، نو په دې صورت کي به قابض يعني مدعیٰ عليه له مدعي ځخه د سلو درهمو نيمه حصه يعني پنځوس درهمه واپس اخلي، ځکه چي له استحقاق ثابتېدلو ځخه وروسته معلومه سوه چي مدعي دا پنځوس درهمه بغير له څه حقه (په ناحقي سره) اخيستي وه.

ودلت المسألة إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چي دا مسئله پر دې خبره دلالت کوي (يعني د دې خبري دليل ده) چي د مجهول شي په باره کي پر معلوم مال صلح کول جائز دي؛ ځکه چي جهالت په هغه شيانو کي نزاع نه پيدا کوي کوم چي ساقطيږي (يعني جهالت په اسقاطاتو کي مُفضي الى النزاع نه گرځي)، او کوم جهالت چي نزاع (جنگ) نه پيدا کوي هغه د ناجائز والي سبب نه گرځي، او دلته همدغه خبره ده؛ ځکه کله چي مدعي (خالد) په کور کي د مجهول حق دعویٰ وکړه او قابض د هغه سره پر سلو درهمو صلح وکړه، نو گواکي مدعي د سلو درهمو په عوض کي خپل حق ساقط کړی، او په اسقاطاتو کي جهالت مفضی الی النزاع نه وي، او کوم جهالت چي مُفضي الى النزاع نه وي هغه د ناجائز والي سبب نه گرځي، نو ځکه پر معلوم مال به د مجهول شي په باره کي صلح کول هم جائز وي. او دويم دا مسئله پر دې خبره دلالت کوي چي د صلح د صحيح کېدلو لپاره دعویٰ شرط نه ده؛ ځکه چي دلته په کور کي د مجهول حق دعویٰ کول د جهالت په وجه صحيح نه ده. لېکن بيا هم صلح صحيح گرځول سوې ده، نو معلومه سوه چي د صلح د صحت لپاره دعویٰ شرط نه ده. (فتح القدير، بنايه)



# فَصْلٌ فِيْ بَيْعِ الفُضُوْلِيْ

(دا) په (بيان کې د) "بيع فضولي" دی

**تشريح**: "فضولي" د فضول وطرف ته منسوب دی (يعني هغه کس کوم چې په فضول او بې ځايه کار مشغول وي)، د فقهاؤ په اصطلاح کې "فضولي" هغه سړي ته وايي کوم چې نه اصيل وي، نه وکيل وي او نه وصي وي، د "فضولي" بل تعريف دا کيږي چې هغه سړی کوم چې د مالک له اجازت څخه بغير د هغه په حق کې تصرف وکړي. (نو "بيع فضولي" دې ته وايي چې يو څوک د مالک له اجازت څخه بغير د هغه شی خرڅ کړي).

او د بابُ الاستحقاق سره د دې فصل مناسبت دا دی چې "بيع فضولي" هم د استحقاق له صور تونو څخه يو صورت دی، ځکه کله چې مستحق سړی (مالک) د فضولي په بيع خبر سي او مشتري ته ووايي چې دغه زما شی دی (د هغه فضولي نه دی) او هغه زما له اجازت څخه بغير پر تا خرڅ کړی دی، نو همدا د استحقاق دعویٰ ده.

او د علامه عيني رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې په دې فصل او باب الاستحقاق کې د مناسبت ثابتولو هيڅ ضرورت نسته، بلکې داسي ويل ډېر غوره دي چې دا فصل په باب الاستحقاق کې داخل دی، لکه څرنګه چې د مصنفينو همدا طريقه ده چې که هغوی د باب تر بيانولو وروسته يو فصل بيان کړي نو هغه فصل په باب کې داخل شماري، خو څرنګه چې دا فصل مِن کُلِّ وَجه په باب الاستحقاق کې داخل نه دی، نو ځکه دا جلا بيان کړی سوی دی.

## د "بيع فضولي" حکم او د امام شافعي رَحِمَهُ الله رايه

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ مِلْكَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ او که څوک د بل چا ملکيت [مملوک شی] د هغه له حکم څخه بغير خرڅ کړي فَالْمَالِكُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَجَازَ الْبَيْعَ وَإِنْ شَاءَ فَسَخَ نو مالک ته اختيار دی که وغواړي نو د بيع اجازت دې ورکړي [بيع دې نافذ کړي] او که غواړي نو بيع دې فسخ کړي وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ: لَا يَنْعَقِدُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د فضولي بيع نه منعقد کيږي لِأَنَّهُ لَمْ يَصْدُرْ عَنْ وِلَايَةٍ

شَرْعِيَّةِ ځکه چي دا بيع په شرعي ولايت سره نه ده صادر سوې لِأَنَّهَا بِالْمِلْكِ أَوْ بِإِذْنِ الْمَالِكِ ځکه چي شرعي ولايت يا په ملکيت [مالک کېدلو] سره ثابتيږي او يا د مالک په اجازت سره وَقَدْ فُقِدَا او [دلته] دا دواړه موجود نه دي وَلَا انْعِقَادَ إِلَّا بِالْقُدْرَةِ الشَّرْعِيَّةِ او له شرعي قدرت [شرعي ولايت] څخه بغير [د بيع] انعقاد نه سي کېداى وَلَنَا: أَنَّهُ تَصَرُّفُ تَمْلِيكٍ زموږ دليل دا دی: چي [د فضولي] بيع د مالک جوړولو تصرف دی وَقَدْ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ فِي مَحَلِّهِ او دا تصرف له خپل اهل څخه په خپل محل کي صادر سوی دی فَوَجَبَ الْقَوْلُ بِانْعِقَادِهِ نو ځکه د دې بيع د انعقاد قائل کېدل ضروري سو إِذْ لَا ضَرَرَ فِيهِ لِلْمَالِكِ مَعَ تَخْيِيرِهِ ځکه چي مالک ته د اختيار ورکولو په وجه په دې بيع کي د مالک هيڅ ضرر نسته بَلْ فِيهِ نَفْعُهُ بلکي په دې کي د مالک نفع ده حَيْثُ يَكْفِي مُؤْنَةَ طَلَبِ الْمُشْتَرِي وَقَرَارِ الثَّمَنِ وَغَيْرِهِ په دې توګه چي دا بيع [د مالک لپاره] د مشتري د طلب کولو او د ثمن او داسي نورو د متعين کولو له زحمت څخه کافي کيږي [يعني د فضولي د بيع په وجه مالک له دې زحمتونو څخه خلاصيږي] وَفِيهِ نَفْعُ الْعَاقِدِ او په دې کي د عاقد [فضولي] نفع [هم] سته لِصَوْنِ كَلَامِهِ عَنِ الْإِلْغَاءِ ځکه چي د هغه کلام د لغو کېدلو څخه ساتل کيږي وَفِيهِ نَفْعُ الْمُشْتَرِي او په دې کي د مشتري نفع [هم] سته فَثَبَتَ الْقُدْرَةُ الشَّرْعِيَّةُ تَحْصِيلًا لِهَذِهِ الْوُجُوهِ نو د دغه اسبابو [او منافعو] د حاصلولو په خاطر شرعي قدرت ثابت سو كَيْفَ وَإِنَّ الْإِذْنَ ثَابِتٌ دَلَالَةً او دا بيع به څنګه نه منعقد کيږي حال دا چي [د مالک له طرفه] دلالتاً اجازت ثابت دی لِأَنَّ الْعَاقِلَ يَأْذَنُ فِي التَّصَرُّفِ النَّافِعِ ځکه چي [هر] عاقل کس د نفع من تصرف اجازت ورکوي.

**اللغات:** ﴿فُقِدا﴾ د ضرب له بابه د تثنيه غائب ماضي مجهولي صيغه ده: نيستي کول (نيستي کېدل)، نه موجودېدل. ﴿يكفي﴾ د ضرب مضاع ده: کافي کېدل. ﴿مؤنة﴾ مشقت، زحمت، بوج. ﴿صون﴾ د نصر مصدر دی: ساتل، حفاظت کول، ژغورل. ﴿إلغاء﴾ د افعال مصدر دی: لغو کول، باطلول.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که يو څوک د مالک له اجازت څخه بغير د هغه شی خرڅ کړي، نو مالک ته اختيار دی، که وغواړي نو د بيع اجازت دي ورکړي او که وغواړي نو هغه دي فسخ کړي،

همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله مذهب دی او همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله یو روایت دی. لیکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي د فضولي بیع بالکل نه منعقد کیږي. د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز د فضولي ټول تصرفات باطل دي. همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله بل روایت دی.

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چي د بل چا د مملوک شي خرڅول (بیع) په شرعي ولایت سره نه صادریږي، ځکه چي شرعي ولایت خو یا په مالک کېدلو سره ثابتیږي او یا د مالک په اجازت سره ثابتیږي حال دا چي دلته دواړه موجود نه دي. یعني فضولي نه په خپله د هغه شي مالک دی او نه هغه ته د مالک اجازت حاصل دی. لنډه دا چي د فضولي بیع په شرعي ولایت سره نه ده صادر سوې. او کوم شی چي په شریعت سره نه وي صادر سوی هغه نه منعقد کیږي. ځکه چي له شرعي ولایت او شرعي قدرت څخه بغیر د شي انعقاد کېدای نه سي. نو ځکه به د فضولي به هم نه منعقد کیږي.

**زموږ دلیل**: دا دی چي بیع د مالک جوړولو تصرف دی. یعني بائع د بیع په ذریعه مشتري د مبیع مالک جوړوي او مشتري بائع د ثمن مالک جوړوي. او دا تصرف له خپل اهل څخه په خپل محل کي صادر سوی دی؛ اهل خو ځکه دی چي فضولي عاقل او بالغ دی. او محل ځکه دی چي د بیع محل متقوم مال دی، او د فضولي د ملکیت په نشتوالي سره د مبیع مال کېدل او متقو کېدل نه ختمیږي (یعني د فضولي د نه مالک کېدلو په وجه د مبیع مالیت او تقوم نه ختمیږي). لهذا کله چي تصرف کونکی یعني فضولي د تصرف اهل هم دی او په کوم محل کي چي هغه تصرف کړی دی یعني مبیع هغه د تصرف محل هم دی، نو بیا د بیع په منعقد کېدلو کي څه اشکال نسته. او د دې بیع په منعقد کېدلو کي د مالک او عاقدینو هیڅ نقصان هم نسته؛ د مالک نقصان خو ځکه نسته چي مالک ته د بیع قبلولو او فسخ کولو اختیار سته. یعني که مالک د فضولي په بیع کي د ځان نقصان ووینی نو بیع دې فسخ کړي او که نفع ووینی نو اجازت دې ورکړي، بلکي په دې کي خو د مالک یو قسم نفع هم ده او هغه دا چي مالک د خپل شي د خرڅولو لپاره د مشتري (ګراک) د طلب کولو له زحمت څخه خلاص سو او همدارنګه د ثمن مُتعیّن کولو له محنت (او چنې) څخه خلاص سو او همدارنګه له بیع څخه د عاجزه کېدلو په صورت کي د وکیل پیدا کولو له تکلیف څخه خلاص سو. او د بیع په منعقد کېدلو د فضولي نفع دا ده چي د هغه کلام د لغو کېدلو څخه محفوظ سو کنې د بیع د نه منعقد کېدلو په صورت کي به د هغه کلام لغو سوي وای. او د مشتري نفع ځکه ده چي مشتري په خپل رضا سره هغه شی رانیولی دی، که چیري په هغه کي د مشتري نفع نه وای نو مشتري به نه رانیولای، نو د دې منافعو د حاصلولو لپاره به د فضولي لپاره شرعي ولایت او شرعي قدرت ثابتیږي، او کله چي د فضولي لپاره شرعي ولایت او قدرت ثابت سو نو د هغه بیع به هم منعقد کیږي.

**كيف وإن إلخ:** په دې عبارت سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب وركوي فرمايي چې ستاسو دا وينا چې "شرعي ولايت يا په مالک كېدلو سره ثابتيږي يا د مالک په اجازت سره ثابتيږي او دلته دواړه موجود نه دي" صحيح نه ده، ځكه چې دلته د مالک له طرفه دلالتاً اجازت ثابت دى ځكه چې په دې بيع كې د مالک نفع ده، او مالک الحمد الله عاقل دى، او هر عاقل كس د نفع من تصرف اجازت وركوي (يعني د داسې تصرف اجازت وركوي چې په هغه كې د ده ګټه وي)، نو ثابته سوه چې د مالک له طرفه فضولي ته اجازت حاصل دى، او كله چې فضولي ته شرعي قدرت حاصل دى نو د هغه بيع به هم منعقد كيږي.

## په بيع فضولي كې تر كوم وخته پورې مالک ته د اجازت اختيار سته؟ (تفصيلي بحث)

قَالَ: وَلَهُ الْإِجَازَةُ إِذَا كَانَ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ بَاقِيًا وَالْمُتَعَاقِدَانِ بِحَالِهِمَا فرمايي: او مالک ته [په دې شرط] د اجازت اختيار سته كله چې معقود عليه [مبيع] موجوده وي او دواړه عاقدين پر خپل حالت [پاته] وي لِأَنَّ الْإِجَازَةَ تَصَرُّفٌ فِي الْعَقْدِ ځكه چې اجازت وركول [داسې دي لكه] په عقد كې تصرف كول فَلَا بُدَّ مِنْ قِيَامِهِ نو ځكه [د تصرف لپاره] د عقد موجودېدل ضروري دي وَذَلِكَ بِقِيَامِ الْعَاقِدَيْنِ وَالْمَعْقُودِ عَلَيْهِ او د عقد وجود د عاقدينو او معقود عليه په موجودېدلو سره وي وَإِذَا أَجَازَ الْمَالِكُ كَانَ الثَّمَنُ مَمْلُوكًا لَهُ او كله چې مالک د بيع اجازت وركړي نو ثمن به د مالک مملوک وي أَمَانَةً فِي يَدِهِ بِمَنْزِلَةِ الْوَكِيلِ چې هغه به د فضولي سره د وكيل په څېر امانت وي لِأَنَّ الْإِجَازَةَ اللَّاحِقَةَ بِمَنْزِلَةِ الْوَكَالَةِ السَّابِقَةِ ځكه چې وروستنى اجازت د مخكني وكالت په ګرځه كې دى وَلِلْفُضُولِيِّ أَنْ يَفْسَخَ قَبْلَ الْإِجَازَةِ دَفْعًا لِلْحُقُوقِ عَنْ نَفْسِهِ او فضولي ته (د مالک تر اجازت مخكې) له خپل ځان څخه د حقوق [او ذمه واريو] د لېرې كولو د بيع فسخ كولو [ماتولو] اختيار سته بِخِلَافِ الْفُضُولِيِّ فِي النِّكَاحِ په خلاف د فضولي د نكاح لِأَنَّهُ مُعَبِّرٌ مَحْضٌ ځكه چې هغه صرف تعبير كونكى [ترجماني كونكى] وي هَذَا إِذَا كَانَ الثَّمَنُ دَيْنًا دا حكم په هغه وخت كې دى كله چې ثمن دَين وي فَإِنْ كَانَ عَرْضًا مُعَيَّنًا البكن [كه چيرې ثمن مُعيّن سامان وي إِنَّمَا تَصِحُّ الْإِجَازَةُ إِذَا كَانَ الْعَرْضُ بَاقِيًا أَيْضًا نو [په دې صورت كې] د مالک اجازت هغه وخت صحيح كيږي كله چې سامان هم موجود وي ثُمَّ الْإِجَازَةُ إِجَازَةُ نَقْدٍ لَا إِجَازَةُ عَقْدٍ بيا دا اجازت د نقد اجازت دى، نه د عقد حَتَّى يَكُونَ الْعَرْضُ الثَّمَنُ مَمْلُوكًا لِلْفُضُولِيِّ تر دې

چي ثمن والا سامان به د فضولي مملوک وي وَعَلَيْهِ مِثْلُ الْمَبِيْعِ إِنْ كَانَ مِثْلِيًّا او پر فضولي به د مبيع مثل واجب وي که چيري مبيع مثلي وي أَوْ قِيمَتُهُ إِنْ لَمْ يَكُنْ مِثْلِيًّا يا به د هغه قيمت پر واجب که چيري مثلي نه وي لِأَنَّهُ شِرَاءٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه چي دا من وجه رانيول دي وَالشِّرَاءُ لَا يَتَوَقَّفُ عَلَى الْإِجَازَةِ او رانيول پر اجازت نه موقوف کيږي وَلَوْ هَلَكَ الْمَالِكُ او که چيري مالک مړ سي لَا يَنْفُذُ بِإِجَازَةِ الْوَارِثِ فِي الْفَصْلَيْنِ نو [د هغه] د وارث په اجازت سره په د فضولي بيع نه نافذيږي، په دواړو صورتونو کي لِأَنَّهُ تَوَقَّفَ عَلَى إِجَازَةِ الْمُوَرِّثِ لِنَفْسِهِ ځکه بيع د مورث پر ذاتي اجازت موقوفه وه فَلَا يَجُوزُ بِإِجَازَةِ غَيْرِهِ نو ځکه هغه به د بل چا په اجازت سره نه جائز کيږي [نه نافذيږي] وَلَوْ أَجَازَ الْمَالِكُ فِي حَيَاتِهِ وَلَا يَعْلَمُ حَالَ الْمَبِيْعِ او که چيري مالک په خپل ژوند کي د بيع اجازت ورکړي حال دا چي د مبيع حالت حال معلوم نه وي جَازَ الْبَيْعُ فِي قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ أَوَّلًا نو د امام اوسف رَحِمَهُ الله د اول قول مطابع بيع جائز کيږي وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ او همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْأَصْلَ بَقَاؤُهُ ځکه چي اصل د مبيع باقي پاتېدل [موجودېدل] دي ثُمَّ رَجَعَ أَبُو يُوسُفَ بيا امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله [له خپل قول څخه] رجوع وکړه وَقَالَ ۞ : لَا يَصِحُّ حَتَّى يُعْلَمَ قِيَامُهُ عِنْدَ الْإِجَازَةِ او ويې فرمايل: چي بيع صحيح نه ده تر دې چي د اجازت په وخت کي د مبيع موجودېدل معلوم سي لِأَنَّ الشَّكَّ وَقَعَ فِي شَرْطِ الْإِجَازَةِ ځکه چي [دلته] د اجازت په شرط کي شک واقع سو فَلَا يَثْبُتُ مَعَ الشَّكِّ نو ځکه د شک سره به اجازت نه ثابتيږي.

**اللغات:** ﴿معقود عليه﴾ د ضرب له بابه د مفعول صيغه ده: پر کوم شي چي معامله وسي، يعني مبيع، ﴿معبّر﴾ د تفعيل له بابه د فاعل صيغه ده: تعبير کونکی، خبره نقلونکی (ترجماني کونکی)، ﴿عرض﴾ سامان، ﴿معيّن﴾ د تفعيل له بابه د مفعول صيغه ده: مُتعيّن، معلوم، ټاکل سوی.

**تشريح:** مخکي ذکر سوه چي که فضولي د مالک له اجازت څخه بغير د هغه شي خرڅ کړي نو دا بيع منعقد کيږي لېکن مالک ته د اجازت ورکولو او فسخ کولو اختيار سته، په دې عبارت کي امام

---

۞ القول الراجح: هو هذا القول الاخير لأبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۴، ص:۱۶۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۷۰]

قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې مالک ته د اجازت ورکول اختيار تر هغه وخته پورې حاصل دی تر څو چې مبيع موجوده وي او عاقدين يعني فضولي او مشتري پر خپل حالت موجود وي، يعني که مالک اجازت ورکړي نو په دې شرط د مالک په اجازت سره عقد نافذيږي چې د اجازت په وخت کې به مبيع موجوده وي (هلاک سوې به نه وي) او دواړه عاقدين به پر خپل مخکني حالت پاته وي (په جنون او داسې نورو به مبتلا سوي نه وي)، ليکن که له دې دوو شيانو څخه يو شی ختم سي (يعني مبيع موجوده نه وي يا يو عاقد پر خپل مخکني حالت پاته نه وي) نو د مالکت د اجازت اختيار ختميږي او بيع به فسخ کول کيږي؛ دليل دا دی چې اجازت ورکول په بيع کې تصرف کول دی (ځکه چې په همدې اجازت سره د فضولي موقوفه بيع نافذيږي)، نو ځکه د اجازت ورکولو په وخت کې د بيع موجودېدل ضروري دي، او بيع موجوديږي د عاقدَينو او معقود عليه (مبيع) په موجودېدلو سره، نو ځکه د اجازت ورکولو په وخت کې د عاقدَينو او معقود عليه موجودېدل شرط وګرځول سوه. لهذا که د اجازت په وخت کې معقود عليه (سبيع) موجوده نه وي يا عاقدين پر خپل حالت پاته نه وي، نو د مالک اجازت به نه نافذيږي. او کله چې دا دواړه شيان موجود وي او بيا مالک د بيع اجازت ورکړي، نو په دې صورت کې به ثمن د مالک مملوک کيږي (يعني د مولیٰ په ملکيت کې داخليږي) او د فضولي په قبضه کې به هغه صرف د امانت په توګه پاته وي (يعني په دې صورت کې ثمن د فضولي په قبضه کې امانت ګرځي او د مالک مملوک ګرځي)، لکه څرنګه چې وکيل بالبيع (د بيع وکيل) که چيري پر ثمن قبضه وکړي نو ثمن د هغه په قبضه کې امانت ګرځي، نو همداسې به د فضولي سره ثمن امانت وي؛ ځکه قاعده دا ده چې "اَلإِجَازَةُ اللَّاحِقَةُ كَالْوَكَالَةِ السَّابِقَةِ" يعني وروسته صادرېدونکی اجازت د مخکې وکيل جوړولو په څېر دی، مطلب دا چې د فضولي تر بيع وروسته د مالک اجازت ورکول داسې دي لکه تر بيع مخکې وکيل جوړول. او څرنګه چې د وکيل په قبضه کې ثمن امانت دی، نو ځکه د فضولي په قبضه کې به هم امانت وي (ځکه چې په اجازت ورکولو سره فضولي د وکيل په څېر سو). او د امانت کېدلو فايده دا ده چې که چيري ثمن د فضولي په قبضه کې هلاک سي نو پر هغه ضمان نه واجبيږي.

وللفضولي إلخ: فرمايي که چيري د مالک له اجازت ورکولو څخه مخکې فضولي بيع فسخ کول وغواړي نو هغه فسخ کولای سي؛ ځکه چې د بيع حقوق د عاقد (عقد کونکي) وطرف ته راجع کيږي (او ښکاره خبره ده چې عاقد فضولي دی)، لهذا څرنګه چې په دې مسئله کې د بيع ټوله حقوق او ذمه واري د فضولي وطرف ته راجع کيږي، نو ځکه فضولي له خپل ځان څخه د بيع د حقوقو او ذمه واريو د ليري کولو لپاره بيع فسخ کولای سي. (ځکه څرنګه چې انسان ته د دې حق سته چې پر خپل ځان يو شی لازم

کړي. نو همداسي هغه ته د دې حق هم سته چي له خپل ځان څخه هغه دفع کړي، نو د حقوقو د دفع کولو په خاطر به فضولي ته د بيع فسخ کولو اجازت وي).

لېکن که يو سړی په نکاح کي فضولي وي نو د چا پر اجازت چي نکاح موقوفه وي که چيري د هغه له اجازت څخه مخکي فضولي نکاح فسخ کول وغواړي نو هغه نه سي فسخ کولای. ځکه چي په نکاح کي فضولي صرف معبر او پيغام رسونکی وي او د نکاح حقوق د هغه وطرف ته نه راجع کيږي.

وهذا إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چي د مالک د اجازت په وخت کي د معقود عليه او عاقدينو موجودېدل په هغه وخت کي ضروري دي کله چي ثمن دَين وي، يعني دراهم يا دنانير وي. يا فلوس وي، يا غير مُعيّن مکيلي او موزوني شی وي، لېکن که چيري ثمن يو مُعيّن سامان وي نو بيا د اجازت په وخت کي د معقود عليه او عاقدينو د موجودېدلو سره، سره د هغه مُعيّن سامان موجودېدل هم ضروري دي، او په دې صورت کي چي د مالک له طرفه کوم اجازت دی هغه د دې خبري اجازت دی چي فضولي دي د مالک له مال څخه هغه سامان اداء کړي کوم چي يې خرڅ کړی دی، او هغه د موقوف عقد اجازت نه دی؛ ځکه چي په دې صورت کي پر فضولي د مالک له اجازت څخه بغير بيع لازميږي او هغه نافذيږي، حتیٰ چي کوم مُعيّن سامان په ثمن کي ټاکل سوی دی هغه به د فضولي مملوک وي (يعني د فضولي په ملکيت کي داخليږي)، همدارنګه که چيري مالک له اجازت ورکولو څخه مخکي مړ سي يا دعَين مبيع (سامان) له ورکولو څخه انکار وکړي نو که مبيع له ذواتُ الامثال څخه وي نو پر فضولي به د هغه مثل واجب وي او که له ذواتُ القيم څخه وي نو د مبيع قيمت به پر واجب وي؛

**دليل**: بيع خو په دې صورت کي په دې وجه لازميږي ځکه کله چي ثمن هم مُعيّن سامان وي او مبيع هم سامان وي نو دا "بيع مقايضه" سوه، او بيع مقايضه (د هر عاقد په طرف کي) من وَجه شراء وي، نو ګواکي دا بيع د فضولي په حق کي من وَجه شراء ده، او شراء د هيچا پر اجازت نه موقوف کيږي، نو ځکه به د فضولي په حق کي دا بيع لازميږي او نافذيږي او فضولي به د ثمن (معين سامان) مالک کيږي، اوس که مالک اجازت ورکړي نو ثمن به د هغه ملکيت ته منتقل کيږي، او که اجازت نه ورکړي (حال دا چي پر فضولي عقد لازم سوی دی) نو پر فضولي به د مبيع مثل واجبيږي که چيري مبيع مثلي وي، او که له ذواتُ القيم څخه وي نو پر هغه به د مبيع قيمت واجبيږي.

ولوهلك إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مالک له اجازت ورکولو څخه مخکي مړ سي، نو په دې صورت کي د مالک د وارثانو په اجازت سره بيع نه نافذيږي، برابره ده ثمن دَين او که مُعيّن سامان وي؛

ځکه چې د فضولي بيع د مورث يعني د مالک پر ذاتي اجازت موقوفه وه، نو ځکه له هغه څخه بغير به د بل چا په اجازت سره نه جائز کيږي (نه نافذيږي).

او که چيري مالک په خپل ژوند کې د بيع اجازت ورکړي او بيا مړ سي. لېکن د هغه تر مرګ وروسته د مبيع حال معلوم نه وي چې هغه موجوده ده او که معدومه ده، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د اول قول مطابق بيع جائز کيږي (نافذيږي)، او همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی؛ ځکه چې اصل همدا دی چې مبيع موجوده ده (او د هغې په موجد کېدلو کې صرف شک دی)، و کله چې د مبيع موجودېدل اصل دي نو ځکه به د مالک اجازت صحيح وي، او کله چې د هغه اجازت صحيح دی نو بيع به هم صحيح کيږي. لېکن بيا امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله له دې قول څخه رجوع وکړه او ويې فرمايل چې بيع نه صحيح کيږي تر دې چې د اجازت په وخت کې د مبيع موجودېدل په يقيني توګه معلوم نه وي؛ ځکه چې د مبيع موجودېدل د اجازت ورکولو لپاره شرط دي، او دلته د اجازت په شرط (يعني د مبيع په موجودېدلو کې) شک واقع سوی دی، نو ځکه د شک سره به اجازت نه ثابتيږي، او کله چې اجازت ثابت نه سو نو د فضولي بيع به هم نه جائز کيږي.

## د مغصوب غلام د آزادی بحث

قَالَ: وَمَنْ غَصَبَ عَبْدًا فَبَاعَهُ او که چا غلام غصب کړی بيا يې خرڅ کړی وَأَعْتَقَهُ الْمُشْتَرِيْ او مشتري هغه آزاد کړی ثُمَّ أَجَازَ الْمَوْلَى الْبَيْعَ بيا مالک د بيع اجازت ورکړی فَالْعِتْقُ جَائِزٌ اِسْتِحْسَانًا نو استحساناً آزادېدل جائز دي [يعني په دې صورت کې د مشتري آزادول استحساناً جائز دي] وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوسُفَ او دا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دي وَقَالَ: مُحَمَّدٌ[۞]: لَا يَجُوْزُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې جائز نه دي لِأَنَّهُ لَا عِتْقَ بِدُوْنِ الْمِلْكِ ځکه چې له ملکيت څخه بغير عتق نسته [يعني له مالک کېدلو څخه بغير آزادول نه ثابتيږي] قَالَ: ﷺ[1]: «لَا عِتْقَ فِيْمَا لَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ» نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: "انسان چې د کوم شي مالک نه وي په هغه کې عتق نسته" وَالْمَوْقُوْفُ لَا يُفِيْدُ

---

[۞] القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، لأن قولهما استحسان، كما ذكر في فتح القدير (ج:٦، ص:٩٣)، وكذا في الدر المختار (ج:٤، ص:١٤٩). [القول الراجح ج:٢، ص:٧١]

[1] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الطلاق، باب ما جاء لا طلاق قبل النكاح، حديث رقم:١١٨١. و أبوداؤد في كتاب الطلاق، باب في الطلاق قبل النكاح، حديث رقم:٢١٩.

الْمِلْكَ او کومه بيع چي موقوفه وي هغه ملکيت نه فايده کوي [يعني ملکيت نه ثابتوي] وَلَوْ ثَبَتَ فِي الْآخِرَةِ او که چيري په آخر کي ملکيت ثابت هم سي يَثْبُتُ مُسْتَنِدًا نو هغه به [د مخکني سبب وطرف ته] په منسوب کېدلو سره ثابت وي وَهُوَ ثَابِتٌ مِنْ وَجْهٍ دُونَ وَجْهٍ او هغه (يعني کوم شي چي په منسوب کېدلو سره ثابت وي) هغه من وجه ثابت وي او من وجه ثابت نه وي وَالْمُصَحِّحُ لِلْإِعْتَاقِ الْمِلْكُ الْكَامِلُ حال دا چي د اعتاق [ازادولو] صحيح گرځونکی کامل ملکيت وي [يعني د اعتاق د صحيح کېدلو لپاره کامل ملکيت ضروري دی] لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَلِهَذَا لَا يَصِحُّ أَنْ يُعْتِقَ الْغَاصِبُ ثُمَّ يُؤَدِّيَ الضَّمَانَ او له همدې کبله دا نه صحيح کيږي چي غاصب [اول] غلام آزاد کړي بيا ضمان اداء کړي وَلَا أَنْ يُعْتِقَ الْمُشْتَرِيُّ وَالْخِيَارُ لِلْبَائِعِ ثُمَّ يُجِيزُ الْبَائِعُ ذَلِكَ او نه دا صحيح کيږي چي مشتري غلام آزاد کړي [په داسي حال کي چي] د بائع لپاره خيار وي بيا بائع د دې بيع اجازت ورکړي وَكَذَا لَا يَصِحُّ بَيْعُ الْمُشْتَرِيِّ مِنَ الْغَاصِبِ فِيمَا نَحْنُ فِيهِ همداسي زموږ په مسئله کي له غاصب څخه د رانيول سوي غلام خرڅول نه صحيح کيږي مَعَ أَنَّهُ أَسْرَعُ نَفَاذًا سره د دې چي آزادي د بيع په نسبت ژر نافذيږي حَتَّى نَفَذَ مِنَ الْغَاصِبِ إِذَا أَدَّى الضَّمَانَ تر دې چي کله غاصب ضمان اداء کړي نو د هغه بيع نافذيږي وَكَذَا لَا يَصِحُّ إِعْتَاقُ الْمُشْتَرِيِّ مِنَ الْغَاصِبِ إِذَا أَدَّى الْغَاصِبُ الضَّمَانَ او همدارنگه له غاصب څخه د رانيونکي کس آزادول نه صحيح کيږي، کله چي غاصب ضمان اداء کړي وَلَهُمَا: أَنَّ الْمِلْكَ ثَبَتَ مَوْقُوفًا بِتَصَرُّفٍ مُطْلَقٍ مَوْضُوعٍ لِإِفَادَةِ الْمِلْكِ د شيخينيو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي د مشتري ملکيت [د مالک پر اجازت] موقوف ثابت سوی دی په داسي تصرف سره کوم چي مطلق دی [او] د ملکيت فايده کولو لپاره وضع سوی دی وَلَا ضَرَرَ فِيهِ او په هغه کي د هيڅ نقصان [هم] نسته عَلَى مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سو فَيَتَوَقَّفُ الْإِعْتَاقُ مُرَتَّبًا عَلَيْهِ نو ځکه به اعتاق [هم] پر هغه [موقوف ملکيت] په مُرتّب کېدلو سره موقوف وي وَيَنْفُذُ بِنَفَاذِهِ او د هغه په نافذېدلو سره به نافذيږي وَصَارَ كَإِعْتَاقِ الْمُشْتَرِيِّ مِنَ الرَّاهِنِ او دا داسي سو لکه د راهن څخه

د رانيونکي کس آزادول [يعني لکه د راهن شخصه چي څوک غلام رانيسي او آزاد يې کړي] وَكَإِعْتَاقِ الْوَارِثِ عَبْدًا مِنَ التَّرِكَةِ وَهِيَ مُسْتَغْرِقَةٌ بِالدُّيُوْنِ او لکه د ترکې [ميراث] څخه د وارث غلام آزادول، حال دا چي ترکه ټوله په قرضونو سره نيول سوې وي يَصِحُّ نو دا اعتاق [موتوفا] صحيح کيږي وَيَنْفُذُ إِذَا قَضَى الدُّيُوْنَ بَعْدَ ذٰلِكَ او تر اعتاق وروسته چي کله قرض اداء کړي نو دا [موقوف] اعتاق نافذيږي بِخِلَافِ إِعْتَاقِ الْغَاصِبِ بِنَفْسِهِ په خلاف د غاصب بذات خود اعتاق [يعني په خلاف د دې چي غاصب په خپله غلام آزاد کړي] لِأَنَّ الْغَصْبَ غَيْرُ مَوْضُوْعٍ لِإِفَادَةِ الْمِلْكِ څکه چي غصب د ملکيت فايده کولو لپاره وضع کړی سوی نه دی وَبِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ فِي الْبَيْعِ خِيَارُ الْبَائِعِ او په خلاف د هغه صورت کلي چي په بيع کي د بائع خيار وي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُطْلَقٍ څکه چي دا بيع مطلق نه ده وَقِرَانُ الشَّرْطِ بِهِ يَمْنَعُ انْعِقَادَهُ فِي حَقِّ الْحُكْمِ أَصْلًا او د دې بيع سره د شرط متصل کېدل د حکم په حق کي د بيع انعقاد بالکل منع کوي وَبِخِلَافِ بَيْعِ الْمُشْتَرِي مِنَ الْغَاصِبِ إِذَا بَاعَ او په خلاف له غاصب څخه د رانيونکي کس کله چي هغه [غلام] خرڅ کړي لِأَنَّ بِالْإِجَازَةِ يَثْبُتُ لِلْبَائِعِ مِلْكٌ بَاتٌّ څکه چي [د مالک] په اجازت سره د بائع لپاره ملک قطعي [يقيني ملکيت] ثابتيږي فَإِذَا طَرَأَ عَلَى مِلْكٍ مَوْقُوْفٍ لِغَيْرِهِ او کله چي دا ملک قطعي پر ملک موقوف لغيره باندي واقع سي أَبْطَلَهُ نو هغه باطلوي وَأَمَّا إِذَا أَدَّى الْغَاصِبُ الضَّمَانَ او پاته سوه [دا مسئله چي] کله غاصب ضمان اداء کړي يَنْفُذُ إِعْتَاقُ الْمُشْتَرِيْ مِنْهُ نو [په دې صورت کي] له غاصب څخه د رانيونکي کس اعتاق [آزادول] نافذيږي كَذَا ذَكَرَهُ هِلَالٌ همداسي هلال بن يحيى رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا زيات صحيح [قول] دی

**اللغات**: ﴿مستند﴾ د استفعال فاعل دی: منسوب کېدونکی، مضاف، ﴿أسرع﴾ د تفعيل اسم تفضيل دی: زيات تېز، ﴿باتٌّ﴾ د ضرب فاعل دی: قطعي، يقيني (حتمي)، ﴿قران﴾ اسمِ مصدر دی، له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: متصل کېدل، يوځای کېدل، ﴿التركة﴾ (د راء په کسره سره) او التِرْكَة: مړی چي کوم مال پرېږدي هغه ته "ترکه" وايي، ميراث، ﴿طرأ﴾ د فتح ماضي ده: طاري کېدل، پېښېدل، ناګهانه ښکاره کېدل، (ناڅاپه واقع کېدل)، غالبېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه يو سړی (غاصب) د بل چا غلام غصب كړي، او له هغه غاصب سړي څخه يو مشتري دا غلام رانيسي او آزاد يې كړي، بيا مالک (مولیٰ) د بيع اجازت وركړي نو په دې صورت كې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د مشتري آزادول استحساناً جائز دي، يعني د مالک د بيع تر اجازت وروسته دا غلام آزاديږي، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې د قياس د تقاضا مطابق دا آزادول صحيح نه دي، يعني د مشتري من الغاصب په آزادولو سره دا غلام نه آزاديږي كه څه هم مالک د بيع اجازت وركړی دی، همدا د امام زفر، امام شافعيؒ، امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمُ الله قول دی.

**د امام محمد دليل**: دا دی چې له ملكيت څخه بغير آزادي نه متحقق كيږي، يعني انسان چې د چا مالک نه وي كه انسان هغه آزاد كړي نو آزادي نه ثابتيږي، لكه څرنگه چې د شريعت لارښود ﷺ فرمايلي دي: "لَا نَذْرَ لِابْنِ آدَمَ فِيْمَا لَا يَمْلِكُ وَلَا عِتْقَ لَهُ فِيْمَا لَا يَمْلِكُ وَلَا طَلَاقَ لَهُ فِيْمَا لَا يَمْلِكُ (ترمذي)، (يعني انسان چې د كوم شي مالک نه وي په هغه كې نذر نشته، او انسان چې د كوم چا مالک نه وي په هغه كې آزادي او طلاق نشته)، لنډه دا چې انسان د چا مالک نه وي هغه نه سي آزادولای، او په دې مسئله كې غاصب د رانيونكي غلام مالک نه دی، ځكه د غاصب له طرفه چې كومه بيع سوې ده هغې نفاذ د مالک (مغصوب منهٗ) پر اجازت موقوف دی، او څرنگه چې د مشتري من الغاصب د آزادولو په وخت كې د مالک اجازت موجود نه وو (ځكه چې مالک د هغه تر آزادولو وروسته د بيع اجازت وركړی دی)، نو ځكه مشتري د آزادولو په وخت كې د غلام مالک نه وو، ها! كه چيري څوک ووايي چې د انجام په اعتبار سره يعني د مالک د اجازت په وخت كې د مشتري لپاره ملكيت ثابت سو. نو موږ وايو چې دغه ملكيت د مخكني سبب (سبب سابق) وطرف ته يعني د غاصب د بيع وطرف ته په منسوب كېدلو سره ثابت سوی دی. او كوم ملكيت چې په منسوب كېدلو (استناد) سره ثابت وي هغه من وجه ثابت وي او من وجه ثابت نه وي، او كوم ملكيت چې داسې وي (يعني من وجه ثابت وي او من وجه ثابت نه وي) هغه ملكيت ناقص (ملک ناقص) وي. حال دا چې د غلام د آزادولو لپاره كامل ملكيت (ملک كامل) ضروري دی: ځكه چې په پورتني حديث "لَا عِتْقَ فِيْمَا لَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ" كې ملكيت مطلق دی. او له مطلق څخه فرد كامل مراد وي، لهذا په حديث كې له ملک څخه مراد ملک كامل (كامل ملكيت) دی. او څرنگه چې په دې مسئله كې د مشتري من الغاصب لپاره كامل ملكيت موجود نه سو، نو ځكه به دا غلام د مشتري من الغاصب له طرفه نه آزاديږي.

ولهذا إلخ: له دې ځايه هغه مسئلې ذکر کوي کوم چې امام محمد رَحِمَهُ الله په خپل قياس کې وړاندې کړې دي او په هغه سره خپل دليل مستحکم کوي: ①...فرمايي څرنګه چې بغير له ملکيت څخه آزادي نه واقع کيږي نو له همدې کبله که غاصب اول مغصوب غلام آزاد کړي او بيا ضمان اداء کړي (يعني مالک ته ضمان ورکړي)، نو دا غلام د غاصب له طرفه نه آزاديږي. ②...او همدارنګه که د غلام په بيع کې د بائع لپاره خيار شرط وي او مشتري غلام آزاد کړي نو هم غلام نه آزاديږي؛ ځکه چې تر ضمان اداء کولو مخکې غاصب ته او د بائع تر اجازت مخکې مشتري ته ملکيت حاصل نه دی، او تر ضمان اداء کولو وروسته غاصب ته او د بائع تر اجازت وروسته مشتري ته چې کوم ملکيت حاصل سوی دی هغه د مخکنۍ سبب وطرف ته په منسوب کېدلو (استناد) سره حاصل سوی دی چې په هغه سره ناقص ملکيت ثابتيږي، حال دا چې د آزادولو لپاره کامل ملکيت ضروري دی. ④... همدارنګه که يو سړی له غاصب څخه غلام رانيسي او دا سړی (مشتري من الغاصب) د بل چا سره بيع وکړي يعني غلام پر بل چا خرڅ کړي، بيا مالک د اولې بيع (بيع اول) اجازت ورکړي نو دا دويمه بيع (يعني د مشتري من الغاصب خرڅول) نه صحيح کيږي، نو همداسې که مشتري من الغاصب غلام آزاد کړي نو آزادول به هم نه صحيح کيږي، ځکه چې د آزادولو په نسبت بيع ژر نافذيږي، ځکه که غاصب غلام خرڅ کړي بيا د هغه ضمان اداء کړي نو د غاصب بيع نافذيږي او که غلام آزاد کړي بيا ضمان اداء کړي نو د هغه آزادول نه نافذيږي، لهذا کله چې د مشتري من الغاصب بيع نه صحيح کيږي، حال دا چې د آزادۍ په نسبت بيع ژر نافذيږي، نو د مشتري من الغاصب آزادول خو به په درجه اولیٰ نه صحيح کيږي، او څرنګه چې د غاصب تر ضمان اداء کولو وروسته د مشتري من الغاصب آزادول نه صحيح کيږي نو همداسې به د مالک د بيع تر اجازت وروسته د مشتري من الغاصب آزادول نه صحيح کيږي.

**د شيخينو دليل**: دا دی چې د مشتري من الغاصب ملکيت د غلام د مالک پر اجازت موقوف ثابت سوی او په داسې تصرف سره ثابت سوی دی کوم چې مطلق دی يعني په هغه کې د خيار او داسې نورو شرط نسته او هغه د ملکيت فايده کولو لپاره وضع سوی دی (يعني د ملکيت ثابتولو لپاره وضع سوی دی. مطلب دا چې په مطلق تصرف سره ملکيت ثابتيږي)، او د مشتري من الغاصب لپاره د موقوف ملکيت په ثابتولو کې د مالک هيڅ نقصان هم نسته لکه مخکې چې تېر سو، لهذا کله چې د مشتري من الغاصب ملکيت د مالک پر اجازت موقوف دی، نو د هغه آزادول به هم د مالک پر اجازت موقوف وي، او کله چې هم د مالک په اجازت سره بيع نافذ سي نو د هغه سره به آزادول هم نافذيږي، او دا داسې سو لکه يو سړی چې له بل چا (خالد) څخه قرض واخلي او بيا هغه ته غلام په رهن ورکړي، بيا راهن (قرض اخيستونکی) د مرتهن (خالد) له اجازت څخه بغير غلام خرڅ کړي او مشتري هغه آزاد کړي، نو

دا آزادي د مرتهن (خالد) پر اجازت يا د رهن (غلام) پر خلاصولو موقوف کيږي، يعني که مرتهن د بيع اجازت ورکړي نو هم د مشتري من الراهن آزادول نافذيږي، او که راهن د مرتهن قرض اداء کړي او خپل غلام ځني واخلي (خلاص کړي) نو هم آزادي نافذيږي، لهذا څرنګه چې د مشتري من الراهن آزادول صحيح او جائز دي، همداسي به د مشتري من الغاصب آزادول هم صحيح وي. همدارنګه دا داسي سو لکه يو وارث چې د مړي له ميراث (ترکې) څخه غلام آزاد کړي حال دا چې د مړي ميراث (ترکه) د خلګو په قرضونو مستغرقه وي (يعني د مړي چې څومره مال وي هغومره قرضونه پر باندي وي)، نو دا آزادول موقوفا صحيح کيږي، يعني که وارث د غلام تر آزادولو وروسته د مړي قرض اداء کړي نو د وارث آزادول نافذيږي.

**بخلاف إعتاق الغاصب:** په دې سره د امام محمد رَحِمَهُ الله د بيان کړل سوو مسئلو (قياس) جواب ورکوي، نو فرمايي که چيري غاصب په خپله غلام آزاد کړي او بيا ضمان اداء کړي نو دا آزادول ځکه نه صحيح کيږي چې غصب د ملکيت ثابتولو لپاره نه دی وضع سوی، يعني په غصب سره د غاصب ملکيت نه ثابتيږي؛ ځکه چې غاصب د مالک دښمن دی، او د ضمان اداء کولو په وخت کي د غاصب لپاره د ضرورت په وجه ملکيت ثابتيږي، يعني په دې وجه چې فقط د يوه سړي (مالک) په ملکيت کي بدل او ضمان دواړه (يعني غلام او ضمان دواړه) جمع نه سي، لهذا غصب صرف د ضمان اداء کولو په وخت کي د ملکيت حاصلېدلو سبب دی، ګواکي غاصب د ضمان اداء کولو په وخت کي د غلام مالک سو، حال دا چې هغه يې تر دې مخکي آزاد کړی دی، نو دا د غير مملوک غلام آزادول سو (يعني غاصب داسي غلام آزاد کړی کوم چې د هغه په ملکيت کي نه دی) او د غير مملوک غلام آزادول صحيح نه دي، نو په دې وجه د غاصب آزادول نه صحيح کيږي.

**وبخلاف ما إذا كان إلخ:** د دويمي مسئلې جواب دا دی چې د بائع د خيار په صورت کي د مشتري آزادول ځکه نه صحيح کيږي چې دا بيع مطلق نه ده بلکي د خيار په شرط سره مقيد ده، او د بائع لپاره که چيري خيار شرط وي نو مشتري د مبيع نه مالک کيږي، لهذا په دې صورت کي مشتري د آزادولو په وخت کي د غلام مالک نه وو، او کله چې مشتري د آزادولو په وخت کي د غلام مالک نه وو، نو د هغه آزادول به هم لغو او بې ځايه وي، ځکه چې د غير مملوک غلام آزادول نه صحيح کيږي.

**وبخلاف المشترى من الغاصب إلخ:** د دريمي مسئلې جواب دا دی چې کله مشتري من الغاصب غلام خرڅ کړي نو دا (خرڅول) په دې وجه صحيح نه دي، ځکه کله چې مالک (مغصوب منهٔ) د اولي بيع اجازت ورکړي، نو د بائع يعني د مشتري من الغاصب لپاره ملک قطعي (يقيني او حتمي ملکيت) ثابت

سو، او تر دې مخکې د مشتري من الغاصب لپاره ملک موقوف (موقوف ملکيت) ثابت وو، نو کله چې د مالک په اجازت سره د مشتري من الغاصب لپاره ملک قطعي ثابت سو او هغه پر ملک موقوف واقع سو، نو دغه ملک قطعي ملک موقوف باطل کړی، او کله چې ملک موقوف باطل سو نو ځکه اوس به هغه ته اجازت هم نه لاحق کېږي (يعني اجازت پې نه نافذيږي) او کله چې هغه ته اجازت لاحق نه سو نو هغه به صحيح هم نه وي (ځکه ملک موقوف پر اجازت موقوف وو، او کله چې هغه ته اجازت لاحق نه سو نو ځکه به صحيح نه وي او خرڅول (بيع) به باطل وي)، نو په دې وجه د مشتري من الغاصب لپاره پر بل چا خرڅول صحيح نه دي (ځکه چې د اجازت نه لاحق کېدلو په وجه مشتري من الغاصب اوس د غلام مالک نه سو، او د غير مملوک شي بيع نه صحيح کېږي).

وإما إذا أدى إلخ: د څلورمي مسئلې جواب دا دی چې کله غاصب ضمان اداء کړی نو په دې صورت کې د مشتري من الغاصب د اعتاق نه نافذېدل مونږ نه تسليموو (يعني مونږ ته د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قياس تسليم نه دی چې د غاصب له ضمان اداء کولو څخه وروسته هم د مشتري آزادول صحيح او نافذ نه دي)، بلکې د غاصب له ضمان اداء کولو څخه وروسته د مشتري من الغاصب آزادول نافذيږي، ځکه چې هلال الرى بن يحيىٰ رَحِمَهُ الله او داسې نورو فقهاؤ په دې صورت کې د مشتري من الغاصب آزادول نافذ شمارلي دي، او همدا زيات صحيح قول دی، لهذا څرنګه چې د غاصب له ضمان اداء کولو څخه وروسته د مشتري من الغاصب آزادول صحيح او نافذ دي، نو همداسې به د مالک له اجازت ورکولو څخه وروسته هم د مشتري من الغاصب آزادول صحيح او نافذ وي.

## د مشتري من الغاصب په قبضه کې د مبيع د عيبداره کېدلو حکم

قَالَ: فَإِنْ قُطِعَتْ يَدُ الْعَبْدِ فرمايي: که د غلام لاس پرېکړل سي فَأَخَذَ أَرْشَهَا او مشتري من الغاصب د هغه جرمانه واخلي ثُمَّ أَجَازَ الْمَوْلَى الْبَيْعَ بيا مالک د بيع اجازت ورکړي فَالْأَرْشُ لِلْمُشْتَرِي نو دا جرمانه به د مشتري لپاره وي لِأَنَّ الْمِلْكَ قَدْ تَمَّ لَهُ مِنْ وَقْتِ الشِّرَاءِ ځکه چې د مشتري ملکيت د رانيولو له وقت څخه پوره سو فَتَبَيَّنَ أَنَّ الْقَطْعَ حَصَلَ عَلَى مِلْكِهِ نو ښکاره سوه چې لاس پرېکېدل د مشتري په ملکيت په ملکيت کې واقع سو وَهٰذِهِ حُجَّةٌ عَلَى مُحَمَّدٍ او دا مسئله د امام محمد په خلاف حجت ده وَالْعُذْرُ لَهُ أَنَّ الْمِلْكَ مِنْ وَجْهٍ يَكْفِي لِاسْتِحْقَاقِ الْأَرْشِ [لېکن] د امام محمد رَحِمَهُ الله عذر دا دی چې من وجه ملکيت هم [د لاس] د جرمانې د مستحق کېدلو لپاره کافي کېږي

كَالْمُكَاتَبِ إِذَا قُطِعَتْ يَدُهُ وَأَخَذَ الْأَرْشَ لكه د مكاتب لاس چي پرېكړل سي او [بيا] مكاتب د هغه جرمانه واخلي ثُمَّ رُدَّ فِي الرِّقِّ بيا هغه [بيرته] غلامتوب واپس كړى سي [يعني له "بدل كتابت" څخه د هغه د عاجزه كېدلو په وجه عقد كتابت ختم سي او هغه بيرته خالص غلام وګرځي] يَكُونُ الْأَرْشُ لِلْمَوْلَى نو دا د جرمانې مال به د مالک وي [يعني د جرمانې مال به مالک ته ورکول کيږي] وَكَذَا إِذَا قُطِعَتْ يَدُ الْمُشْتَرَى فِي يَدِ الْمُشْتَرِي وَالْخِيَارُ لِلْبَائِعِ او همدارنګه کله چي د خيار للبائع په صورت کي د رانيول سوي غلام لاس د مشتري په قبضه کي پرېكړل سي ثُمَّ أُجِيزَ الْبَيْعُ بيا د بيع اجازت ورکړل سي فَالْأَرْشُ لِلْمُشْتَرِي نو دا جرمانه به د مشتري وي بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ په خلاف د آزادولو عَلَى مَا مَرَّ لکه [څه مخکي] چي تېر سو وَيَتَصَدَّقُ بِمَا زَادَ عَلَى نِصْفِ الثَّمَنِ او مشتري به له نصف ثمن څخه زياته جرمانه صدقه کوي لِأَنَّهُ لَمْ يَدْخُلْ فِي ضَمَانِهِ ځکه چي [دلته] غلام د مشتري په قبضه کي داخل نه سو أَوْ فِيهِ شُبْهَةُ عَدَمِ الْمِلْكِ يا [دا چي] په دې کي د ملکيت د نشتوالي [نه مالک کېدلو] شبهه سته.

**اللغات:**

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه د مشتري من الغاصب په قبضه كي د غلام لاس پرېكړل سي، بيا مشتري من الغاصب له مجرم (پرېكونكي سړي) څخه د هغه جرمانه (تاوان) واخلي، او تر دې وروسته مالک د بيع اجازت ورکړي، نو دا جرمانه به د مشتري من الغاصب لپاره وي (يعني هغه ته حاصليږي او هغه ته به ورکول کيږي)، ځکه چي د اجازت په وجه د مشتري ملکيت د رانيولو له وخت څخه پوره سو، او کله چي د هغه ملکيت د غلام د رانيولو له وخت څخه تام او پوره دی، نو ښکاره خبره ده چي د لاس پرېکېدل د مشتري په ملکيت کي واقع سوي دي، او کله چي لاس د مشتري په ملکيت کي پرېكړل سوی دی نو جرمانه هم به د مشتري لپاره وي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا مسئله د امام محمد رَحِمَهُ الله په خلاف حجت ده، يعني په دې مسئله کي مشتري ته جرمانه (تاوان) حاصلېدل د دې خبري دليل دی چي د مشتري من الغاصب آزادول هم جائز دي (او مخکي ذکر سوه چي امام محمد رَحِمَهُ الله د هغه آزادول جائز نه ګرځوي او دا دليل پېشوي چي هغه ته ملکيت حاصل نه دی، لهذا دا مسئله د هغه په خلاف حجت ده)، ځکه که چيري مشتري ته ملکيت حاصل نه وای نو د مالک د اجازت په وخت کي به هغه ته د لاس جرمانه نه حاصلېدای، لهذا د

مشتري من الغاصب لپاره جرمانه حاصلېدل د دې خبرې دليل دی چې د مالک د اجازت په وجه هغه ته د رانيولو په وخت کې ملکيت حاصل سو، او کله چې مشتري من الغاصب ته ملکيت حاصل سو نو د هغه آزادول به هم صحيح وي (معلومه سوه چې دا مسئله د هغه په خلاف حجت ده). لېکن بيا صاحب د هدايې په خپله د امام محمد رَحِمَهُ الله له طرفه جواب ورکوي، فرمايي چې وروره! آخر خو هغه هم امام دی او د امام اعظم ابو حنيفه رَحِمَهُ الله ځانګړی شاګرد دی نو آخر د هغه سره به هم د دې حجت يو جواب وي، او د هغه جواب دا دی چې په اعتاق او استحقاق الارش کې فرق سته، د جرمانې (ارش) د مستحق کېدلو لپاره منٔ وَجه ملکيت کافي دی (يعني په من وَجه ملکيت سره هم أرش حاصلېږي) او د هغه لپاره کامل ملکيت ضروري نه دی لېکن د اعتاق (ازادولو) لپاره کامل ملکيت ضروري دی، د دې يو مثال دا دی چې که د مکاتب لاس پرېکړل سو او هغه له مجرم څخه جرمانه واخيستله بيا هغه د بدل کتابت له اداء کولو څخه عاجز سو، نو د جرمانې مال د هغه مالک ته حاصلېږي (يعني کوم مال چې مکاتب ته په جرمانه کې حاصل سو هغه به ته خپل مالک ته ورکوي)؛ ځکه په کوم وخت کې چې دئ مکاتب وو نو په هغه وخت کې په ده د مالک (مولیٰ) ملکيت من وَجه ثابت وو، او د استحقاق الارش لپاره من وَجه ملکيت هم کافي دی، نو ځکه به مکاتب رقيت (غلامتوب) ته ترواپس کېلو وروسته هغه جرمان خپل مالک ته ورکوي. او بل مثال دا دی چې که د مشتري په قبضه کې د غلام لاس پرېکړل سو او د بائع لپاره خيار شرط وو، بيا مالک د بيع اجازت ورکړی نو څرنګه چې په دې صورت کې هم مشتري ته من وَجه ملکيت حاصل دی، نو ځکه د جرمانې مال صرف هغه ته حاصلېږي. لهذا څرنګه چې په دې دواړونو صورتونو کې په من وَجه ملکيت سره استحقاق الارش ثابت دی، نو همداسي به د مشتري من الغاصب والا په صورت کې هم په من وَجه ملکيت سره استحقاق الارش ثابتېږي. د دې په خلاف د مشتري من الغاصب آزادول (اعتاق) نو هغه ځکه نه نافذېږي چې د هغه لپاره د کامل ملکيت موجودېدل ضروري دي من وَجه ملکيت کافي نه دی، او څرنګه چې د مشتري من الغاصب لپاره صرف من وَجه ملکيت ثابت دی نو ځکه د مشتري من الغاصب آزادول به صحيح نه وي.

**ويتصدق إلخ:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې پر مشتري من الغاصب واجب دي چې له نيم ثمن څخه چې څومره قدر جرمانه زياته سي هغه دې صدقه کړي (ديوه لاس جرمانت د "ديت" نصف کيږي. نو که د غلام ثمن [قيمت] زر درهمه وي نو مشتري دې صرف پنځه سوه درهمه واخلي او نور پنځه سوه درهمه دې صدقه کړي)؛ ځکه د غلام لاس که چيري د مشتري له قبضه کولو څخه مخکې پرېکړل سوی وي نو مبيع (غلام) د هغه په قبضه کې د نه راتللو په وجه د هغه په ضمان او ذمه واري کې داخله نه سوه. او کله چې مبيع د هغه په ضمان کې داخله نه سوه نو نيم ثمن به د هغه شي نفع وي کوم چې د هغه په

ضمان اکي داخل نه دی، او کوم شی چي په ضمان کي داخل نه وي د هغه نفع نه جائز کيږي. نو ځکه له نيم ځخه د زائد ثمن صدقه کول به واجب وي. او که چيري د غلام لاس د مشتري له قبضې ځخه وروسته پرېکړل سوی وي نو ځرنګه چي په دې وخت کي د مالک (مولی) اجازت نسته نو ځکه د مالک د اجازت د نشتوالي په وجه د لاس پرېکېدلو په وخت کي حقيقتاً د مشتري ملکيت موجود نه دی بلکي د مشتري ملکيت د استناد (منسوب کېدلو) په توګه ثابت دی، او کوم ملکيت چي د استناد په توګه ثابت وي هغه من وَجه ثابت وي، نو ځکه په دې کي د عدم ملکيت شبهه پيدا سوه او کله چي د عدم ملکيت شبهه پيدا سوه نو په دې ملکيت سره چي کومه نفع حاصل سي هغه به جائز نه وي، او کله چي دا نفع جائز نه سوه نو د هغه صدقه کول به واجب وي. (صاحب د أحسنُ الهدايې دغه آخري عبارت داسي بيان کړی دی: او که چيري د غلام لاس د مشتري له قبضې ځخه وروسته پرېکړل سوی وي نو ځرنګه چي په دې وخت کي د مالک اجازت نسته، نو ځکه په غلام کي د مشتري ملکيت صرف من وَجه موجود دی يعني مشتري په کامله توګه د غلام مالک نه دی، لهذا کله چي مشتري فقط من وَجه د غلام مالک دی نو هغه به فقط د من وَجه جرمانې مستحق وي، او من وَجه جرمانه نصف ده، نو ځکه به مشتري فقط د نصف جرمانې مالک وي او له نصف ثمن ځخه زائد جرمانه به واجبُ التصدّق وي).

## د مشتري من الغاصب د بيع يو صورت

قَالَ: فَإِنْ بَاعَهُ الْمُشْتَرِيْ مِنْ آخَرَ فرمايي: او که مشتري من الغاصب دا غلام پر بل چا خرڅ کړي ثُمَّ أَجَازَ الْمَوْلَى الْبَيْعَ الْأَوَّلَ بيا مالک د اولي بيع اجازت ورکړي لَمْ يَجُزِ الْبَيْعُ الثَّانِيْ نو دويمه بيع نه جائز کيږي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلِأَنَّ فِيهِ غَرَرَ الِانْفِسَاخِ عَلَى اعْتِبَارِ عَدَمِ الْإِجَازَةِ فِي الْبَيْعِ الْأَوَّلِ او په دې وجه [هم] چي په اوله بيع کي د اجازت د نشتوالي په اعتبار کولو سره په دويمه بيع کي د عقد فسخ کېدلو دوکه سته وَالْبَيْعُ يَفْسُدُ بِهِ او په داسي دوکه سره بيع فاسديږي بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ عِنْدَهُمَا په خلاف د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د اعتاق [د جائز کېدلو] لِأَنَّهُ لَا يُؤَثِّرُ فِيهِ الْغَرَرُ ځکه چي په اعتاق کي دوکه اثر نه کوي قَالَ: فَإِنْ لَمْ يَبِعْهُ الْمُشْتَرِيْ فَمَاتَ فِي يَدِهِ أَوْ قُتِلَ فرمايي: که مشتري من الغاصب دا غلام خرڅ نه کړي [لېکن] هغه د مشتري په قبضه کي مړ سي يا قتل کړی سي ثُمَّ أَجَازَ الْبَيْعَ بيا مالک د بيع اجازت ورکړي لَمْ يَجُزْ نو [دا بيع] نه جائز کيږي لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ الْإِجَازَةَ مِنْ شُرُوطِهَا قِيَامُ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر

کړي چې د اجازت شرط د معقود عليه [مبيع] موجودېدل دي وَقَدْ فَاتَ بِالْمَوْتِ وَكَذَا بِالْقَتْلِ حال دا چې [دلته] د مړ کېدلو همدارنګه د قتل کېدلو په وجه معقود عليه فوت سوه إِذْ لَا يُمْكِنُ إِيجَابُ الْبَدَلِ لِلْمُشْتَرِي بِالْقَتْلِ حَتَّى يُعَدَّ بَاقِيًا بِبَقَاءِ الْبَدَلِ ځکه چې د قتل په وجه د مشتري لپاره بدل [قيمت] واجبول ممکن نه دي چې د بدل په موجودېدلو سره معقود عليه موجوده وشمارل سي لِأَنَّهُ لَا مِلْكَ لِلْمُشْتَرِي عِنْدَ الْقَتْلِ مِلْكًا يُقَابَلُ بِالْبَدَلِ ځکه چې د قتل په وخت کې د مشتري لپاره داسې ملکيت نه وو چې هغه د بدل مقابل وګرځول سي [يعني داسې ملکيت نه وو چې د هغه په مقابله کې دي بدل وي] فَيَتَحَقَّقُ الْفَوَاتُ نو ځکه به فوت کېدل ثابتيږي بِخِلَافِ الْبَيْعِ الصَّحِيحِ په خلاف د صحيح بيع لِأَنَّ مِلْكَ الْمُشْتَرِي ثَابِتٌ ځکه چې [په بيع صحيح کې] د مشتري ملکيت ثابت دی فَأَمْكَنَ إِيجَابُ الْبَدَلِ لَهُ نو [دلته] د مشتري لپاره بدل واجبول ممکن دي فَيَكُونُ الْمَبِيعُ قَائِمًا بِقِيَامِ خَلَفِهِ نو ځکه د هغه د نائب د موجودېدلو په وجه به مبيع موجوده وي [يعني د بدل د موجود والي په وجه به مبيع موجوده شمارل کيږي].

**اللغات:** ﴿غرر﴾ دوکه، فريب، ﴿انفساخ﴾ د انفعال مصدر دی: فسخ کېدل (بيع ختمېدل، ماتېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيرې مشتري من الغاصب د مالک (مولیٰ) له اجازت څخه مخکې دغه مغصوب غلام پر بل چا خرڅ کړي، بيا مالک د اولي بيع اجازت ورکړي نو د دويمه بيع (يعني د مشتري من الغاصب خرڅول) نه جائز کيږي بلکې فاسديږي؛ يو دليل خو مخکې تېر سو چې کله ملک قطعي پر ملک موقوف واقع سي، نو هغه ملک موقوف باطلوي.

دويم دليل دا دی چې د دويمې بيع نافذېدل پر اولي بيع موقوف دي، او اوله بيع د مالک پر اجازت موقوف ده، نو د اولي بيع د موقوف کېدلو په وجه دويمه بيع (يعني د مشتري من الغاصب خرڅول) غدر او دوکې لره متضمن دي؛ ځکه ډېره ممکنه ده چې مالک د اولي بيع اجازت نه ورکړي، لهذا د اولي بيع د موقوف کېدلو په وجه په دويمه بيع کې د دوکې احتمال سته، او د دوکې په احتمال سره بيع فاسديږي او نه جائز کيږي، نو ځکه به دويمه بيع فاسد او ناجائز وي.

او که چيرې څوک اعتراض وکړي چې څرنګه د مشتري من الغاصب خرڅول جائز نه دي همداسې د هغه آزادول هم نه جائز کېدل پکار دي، حال دا چې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز آزادول جائز دي، د دې جواب دا دی چې دلته صرف د دوکې احتمال سته او د دوکې په احتمال سره بيع فاسديږي،

لېکن پاته سو اعتاق (ازادول) نو هغه د دوکې په احتمال سره نه فاسدېږي، نو ځکه اعتاق جائز دی او بيع ناجائز ده، لکه په منقولي شيانو کي چي له قبضه کولو څخه مخکي د "فسخ کېدلو" د دوکې په وجه بيع نه جائز کيږي، مګر اعتاق له قبضه کولو څخه مخکي جائز کيږي.

فإن لم يبعه إلخ: د پورتني مسئلې دويم صورت دا دی چي که مشتري من الغاصب غلام خرڅ نه کړي بلکي هغه د ده په قبضه کي مړ سي، يا قتل کړی سي، بيا مالک د بيع اجازت ورکړي، نو دا بيع نه جائز کيږي؛ دليل مخکي تېر سو چي د اجازت شرط دا دی چي د اجازت په وخت کي به معقود عليه (مبيع) موجوده وي، حال دا چي دلته معقود عليه يعني غلام له اجازت څخه مخکي مړ سوی يا قتل کړی سوی دی، او د قتل په وجه د مشتري لپاره پر قاتل د غلام بدل يعني قيمت واجبېدل هم ممکن نه دي چي د بدل په موجودېدلو سره معقود عليه موجوده وشمارل سي؛ ځکه چي د مشتري ملکيت موقوف (ملک موقوف) دی، او د ملک موقوف په مقابله کي بدل نه راځي، لهذا کله چي د مشتري لپاره داسي ملکيت ثابت نه دی چي د هغه په مقابله کي دي بدل وي چي د بدل په موجودېدلو سره معقود عليه موجوده وشمارل سي نو معقود عليه حقيقتاً هم فوت سوه، او کله چي معقود عليه بالکل موجود نه ده نو ځکه د مالک په اجازت سره به دا بيع نه جائز کيږي. د دې په خلاف که چيري په بيع صحيح کي له قبضې څخه مخکي غلام مړ سي يا قتل کړی سي نو څرنګه چي هلته د مشتري ملکيت ثابت دی، نو ځکه د مشتري لپاره د مبيع قيمت (بدل) واجبول ممکن دي، نو د قيمت يعني د بدل په موجودېدلو سره به مبيع موجوده شمارل کيږي، او کله چي مبيع موجوده ده نو بيع به هم موجوده او باقي وي، لېکن مشتري ته به د بدل د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار وي (يعني د هغه خوښه ده بدل (د مبيع قيمت) اخلي او که يې نه اخلي).

## که مشتري پر بائع د فضولي کېدلو د اقرار دعویٰ وکړي او بيّنه پېش کړي (تفصيلي حکم)

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ عَبْدَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ فرمايي: او که څوک د بل چا غلام د هغه له حکم [اجازت] څخه بغير خرڅ کړي وَأَقَامَ الْمُشْتَرِيْ الْبَيِّنَةَ عَلٰى إِقْرَارِ الْبَائِعِ أَوْ رَبِّ الْعَبْدِ أَنَّهُ لَمْ يَأْمُرْهُ بِالْبَيْعِ او مشتري د بائع پر اقرار يا د غلام د مالک پر اقرار بيّنه پېش کړي چي هغه بائع ته د خرڅولو حکم نه دی کړی [يعني مشتري پر دې خبره بيّنه پېش کړي چي بائع دا اقرار کړی دي: زه فضولي يم، يا مالک اقرار کړی دی چي بائع فضولي دی] وَأَرَادَ رَدَّ الْمَبِيْعِ او مشتري د مبيع واپس کولو [بيع ماتولو] اراده وکړي [ لَمْ تُقْبَلْ بَيِّنَتُهُ لِلتَّنَاقُضِ فِي الدَّعْوٰى نو په دعویٰ کي د تناقض په وجه به د مشتري بيّنه نه قبلول کيږي إِذِ الْإِقْدَامُ

عَلَى الشِّرَاءِ إِقْرَارٌ مِنْهُ بِصِحَّتِهِ ځکه چې پر رانيولو اقدام کول [يعني غلام رانيول] د مشتري له طرفه د بيع د صحت [صحيح کېدلو] اقرار دی وَالْبَيِّنَةُ مَبْنِيَّةٌ عَلَى صِحَّةِ الدَّعْوَى او بيّنه د دعوىٰ پر صحت مبني وي [مطلب دا چې بيّنه پر صحيح دعوىٰ مبني کيږي] وَإِنْ أَقَرَّ الْبَائِعُ بِذَلِكَ عِنْدَ الْقَاضِيْ او که چيري بائع د قاضي سره [د قاضي مخته] د دې خبرې اقرار وکړي [چې ما د مالک له اجازت څخه بغير دا غلام خرڅ کړی دی] بَطَلَ الْبَيْعُ إِنْ طَلَبَ الْمُشْتَرِيْ ذٰلِكَ نو بيع باطليږي [ماتيږي] که چيرې مشتري د هغه مطالبه وکړي لِأَنَّ التَّنَاقُضَ لَا يَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقْرَارِ ځکه چې تناقض د اقرار صحت [صحيح والی] نه منع کوي [يعني تناقض د اقرار له صحيح کېدلو څخه مانع نه دی] فَلِلْمُشْتَرِيْ أَنْ يُسَاعِدَهُ عَلَى ذٰلِكَ فَيَتَحَقَّقُ الِاتِّفَاقُ بَيْنَهُمَا نو مشتري ته اختيار دی چې هغه د بائع سره پر دې اقرار موافقت وکړي [د دې لپاره] چې د بائع او مشتري په مينځ کې اتفاق ثابت سي فَلِهٰذَا شَرَطَ طَلَبَ الْمُشْتَرِيْ او له همدې کبله د مشتري د مطالبه کولو شرط لګول سوی دی قَالَ رَحِمَهُ اللهُ : وَذَكَرَ فِي الزِّيَادَاتِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په زيادات کې [دا مسئله داسې] ذکر سوې ده أَنَّ الْمُشْتَرِيَ إِذَا صَدَّقَ مُدَّعِيَهُ ثُمَّ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ عَلَى إِقْرَارِ الْبَائِعِ أَنَّهُ لِلْمُسْتَحِقِّ چې کله مشتري د خپل مدعي تصديق وکړي بيا مشتري د بائع پر دې اقرار بيّنه پېش کړي چې دا مبيع د مستحق سړي ده تُقْبَلُ نو [په دې صورت کې] به بيّنه قبلول کيږي وَفَرَّقُوا أَنَّ الْعَبْدَ فِي هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ فِي يَدِ الْمُشْتَرِيْ وَفِي تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ فِي يَدِ غَيْرِهِ وَهُوَ الْمُسْتَحِقُّ او مشائخو [په دواړو مسئلو کې] دا فرق بيان کړی دی چې په دې مسئله کې غلام د مشتري په قبضه کې دی او په هغه [د زيادات والا] په مسئله کې د بل چا يعني د مستحق سړي په قبضه کې دی وَشَرْطُ الرُّجُوْعِ بِالثَّمَنِ أَنْ لَا يَكُوْنَ الْعَيْنُ سَالِمًا لِلْمُشْتَرِيْ او د ثمن واپس اخيستلو شرط دا دی چې مشتري لپاره به عَين مبيع سالم نه وي.

**اللغات**: ﴿يساعد﴾ د مفاعلې مضارع ده: مدد کول، موافقت کول. ﴿صدّق﴾ د تفعيل ماضي ده: تصديق کول (رښتيا ګڼل، تأييدول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی د مالک له اجازت څخه بغير د هغه غلام پر مشتري خرڅ کړي. بيا مشتري دا بيع رد کول (ماتول) وغواړي او ووايي چې تا دا غلام د مالک له اجازت څخه بغير پر ما خرڅ کړی دی. مګر بائع له دې څخه انکار وکړي. بيا مشتري پر دې خبره بيّنه (ګواهان) پېش کړي چې بائع د دې اقرار وکړی چې ما دا غلام د مالک له اجازت څخه بغير خرڅ کړی دی. يا مشتري د غلام د مالک پر اقرار ګواهان پېش کړي چې مالک بائع ته اجازت نه دی ورکړی. نو په دې دواړو صورتونو کې به د مشتري بيّنه نه

قبلول کیږي، ځکه چي د مشتري په دعویٰ کي تناقض (تضاد) راغلی په دې توګه چي کله مشتري د رانیولو اقدام وکړی نو ګواکي هغه د شراء د صحیح کېدلو اقرار او دعویٰ وکړه، لېکن تر دې وروسته هغه د بیّنه په ذریعه د شراء د نه صحیح کېدلو دعویٰ وکړه، نو ځکه د هغه په دواړو دعوو کي تناقض او تضاد رغلی، او څرنګه چي بیع پر صحیح دعویٰ مبني کیږي، او دلته د مشتري دعویٰ (یعني د شراء نه صحیح کېدلو دعویٰ) صحیح نه ده، نو ځکه به پر هغه بیّنه نه مبني کیږي او د هغه بیّنه به نه قبلول کیږي، بلکي صرف د هغه اوله دعویٰ (یعني د اقدام علی الشراء والا دعویٰ) به معتبره وي.

وإن اقر البائع إلخ: د دې حاصل دا دئ چي که چیري بائع همدا خبره د قاضي مخته وکړي چي ما دا غلام د مالک له اجازت څخه بغیر خرڅ کړی دی، نو دا بیع باطلیږي (په دې شرط چي مشتري د بیع د ماتولو او باطلولو مطالبه کړې وي)؛ ځکه چي تناقض د اقرار له صحیح کېدلو څخه مانع نه دی، ځکه که یو وار څوک د یو شي انکار وکړي بیا د هغه اقرار وکړي نو صحیح دی، او د بیع د ماتولو او باطلولو لپاره د مشتري مطالبه ځکه ضروري ده چي د بائع اقرار حجت قاصره دی د بل چا په حق کي هغه نه نافذیږي صرف د هغه په حق کي معتبر دی، لېکن که مشتري پر دې اقرار د بائع موافقت وکړي نو د بائع او مشتري په مینځ کي به اتفاق پیدا سي او بیع ماتول به جائز وي، نو له همدې کبله د بیع د ماتولو لپاره د مشتري د مطالبې شرط لګول سوی دی چي د دواړو په اتفاق سره بیع ماته سي.

وقال وذكر إلخ: د دې حاصل دا دی چي په زیادات کي دغه مسئلې ته ورته بله مسئله داسي ذکر سوې ده چي که یو سړی دعویٰ وکړي چي د مشتري په قبضه کي چي کوم غلام دی هغه زما دی، او مشتري د خپل دغه مدعي تصدیق وکړی (چي هو! دا غلام د هغه مستحق سړي دی)، بیا مشتري په خپله پر دې خبره بیّنه پېش کړي چي بائع د دې اقرار کړی دی چي دا غلام د هغه مستحق سړي ملکیت دی، نو د مشتري دا بیّنه به قبلول کیږي، که څه هم د مشتري په بیّنه او د هغه په اقدام علی الشراء کي تضاد او تناقض دی. نو د جامع صغیر او زیادت په دغه مسئلو کي ښکاره تضاد دی، ځکه په جامع صغیر کي ذکر سوي دي چي په داسي صورت کي به بیّنه نه قبلول کیږي او په زیادات کي ذکر سوي دي چي بیّنه به قبلول کیږي.

نو ځکه مشائخو د جامع صغیر او زیادات په دواړو مسئلو کي فرق دا بیان کړی دی چي د جامع صغیر په مسئله کي مبیع یعني غلام د مشتري په قبضه کي صحیح سالم پاته دی، او کله چي مبیع (غلام) د مشتري لپاره صحیح سالم دی نو ځکه به مشتري ته له بائع څخه د ثمن واپس اخیستلو حق نه وي؛ ځکه چي د رجوع بالثمن شرط د مبیع نا سالم کېدل دي (یعني مشتري هغه وخت له بائع څخه ثمن واپس اخیستلای سي کله چي مبیع سالم پاته نه وي)، او د زیادات په مسئله کي مبیع (غلام) له مشتري څخه بغیر د یو بل چا یعني د مستحق سړي په قبضه کي دی، نو ځکه دلته د مشتري په حق کي د مبیع سالموالی فوت سو (یعني مبیع [غلام] د مشتري

لپاره سالم پاته نه سو)، او کله چي مبيع (غلام) د مشتري لپاره سالم پاته نه سو، نو ځکه هغه ته به له بائع څخه د خپل ثمن د واپس اخيستلو حق وي؛ ځکه چي دلته د رجوع بالثمن شرط موجود سو.

## د فضولي خرڅ کړل سوي ځمکه په بناء کي داخلول

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ دَارًا لِرَجُلٍ وَأَدْخَلَهَا الْمُشْتَرِيْ فِيْ بِنَائِهِ فرمايي: او که څوک يو کور خرڅ کړي او مشتري هغه په خپل بناء [وداني] کي داخل کړي لَمْ يَضْمَنِ الْبَائِعُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز بائع د هغه نه ضامن کيږي وَهُوَ قَوْلُ أَبِيْ يُوْسُفَ آخِرًا او همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله آخري قول دی وَكَانَ يَقُوْلُ أَوَّلًا: يَضْمَنُ الْبَائِعُ او هغوی به اول فرمايل: چي بائع ضامن کيږي وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ او همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی وَهِيَ مَسْأَلَةُ غَصْبِ الْعَقَارِ او دا د غيرِ منقوله جايداد د غصب کولو مسئله ده وَسَنُبَيِّنُهُ فِي الْغَصْبِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او هغه به موږ په "کتاب الغصب کي بيان کړو. انشاء الله تعالیٰ.

**اللغات**: ﴿أدخل﴾ د افعال ماضي ده: داخلول، دننه کول، ﴿بناء﴾ تعمير، وداني، ﴿غصب﴾ د ضرب مصدر دی: په زوره اخيستل، ﴿عقار﴾ غيرِ منقوله جايداد، يعني ځمکه، کور او داسي نور.

**أصول**: د شيخينو رَحِمَهُمَا الله أصول دا دی چي د غيرِ منقوله جايداد غصب نه ثابتيږي، يعني که څوک ځمکه غصب کړي نو دا غصب نه شمارل کيږي. او د امام محمد رَحِمَهُ الله أصول دا دی چي د غيرِ منقوله جايداد غصب ثابتيږي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی د يو مالک کور د هغه له اجازت څخه بغير پر مشتري خرڅ کړي، او مشتري هغه په خپل بناء (وداني) کي داخل کړي (يا مثلاً يو بل ځای پر جوړ کړي)، نو په دې صورت کي بائع د مالک لپاره د کور د قيمت نه ضامن کيږي (يعني پر بائع هيڅ ضمان نه واجبيږي)، همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله آخري قول دی، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول دا وو چي بائع د کور د قيمت ضامن کيږي، همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی.

دا د غيرِ منقوله جايداد د غصب کولو مسئله ده، چي د هغه پوره تفصيل به انشاء الله په کتاب الغصب کي راسي، لنډه دا چي څرنگه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د غيرِ منقوله جايداد غصب نه ثابتيږي، نو ځکه غاصب يعني بائع به نه ضامن کيږي، خو څرنگه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز دا غصب ثابتيږي، نو ځکه به غاصب يعني بائع ضامن کيږي. والله اعلم بالصواب



# بَابُ السَّلَم

(دا) باب د بيع سَلم (د احکامو په بيان کي) دی

**تشريح**: کله چي صاحب د هدايې د هغه بيوعو له بيان څخه فارغ سو چي په هغوی کي پر دواړو عوضونو يا پر يوه عوض (احدُ العوضَين) قبضه کول شرط نه دي، نو اوس له دې ځايه د هغه بيوعو احکام او مسئلې بيانوي چي په هغوی کي پر عوضَينو يا پر يو عوض قبضه کول لازمي او ضروري دي يعني "بيع سلم" او "بيع صَرف"، خو څرنګه چي په "بيع سلم" کي فقط پر يوه عوض يعني پر رأسُ المال قبضه کول ضروري دي او په بيع صَرف کي پر دواړو عوضونو قبضه کولو ضروري وي، نو ځکه په دې حواله سره "بيع سلم" د مفرد په درجه کي سوه او "بيع صَرف" د مرکب په درجه کي سوه، او دا خو تاسي ته معلومه ده چي مفرد له مرکب څخه مخکي وي، نو له همدې کبله صاحب د هدايې د مفرد يعني د بيع سَلم احکام د مرکب يعني د بيع صَرف تر احکامو مخکي بيان کړي دي. (بنايه ج:۷، ص:۴۱۹)

**د "سلم" لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: د "بيع سلم" لغوي معنیٰ ده: "بَيْعٌ يَتَعَجَّلُ فِيْهِ الثَّمَن" (يعني هغه بيع چي سمدستي د ثمن اداء کول پکښي واجب وي). همدا د "سلف" معنیٰ ده (يعني سَلم او سلف دواړه سره مترادف الفاظ دي).

د "بيع سلم" اصطلاحي معنیٰ ده: "أَخْذُ الآجِلِ بِالْعَاجِل" (يعني په نغد ثمن سره پور والا مبيع اخيستل). يعني "بيع سلم" دې ته وايي چي مشتري بائع ته پيسې (مال) اوس ورکړي او مبيع څو وخت وروسته ځني واخلي (يعني بائع څو وخت وروسته مشتري ته مبيع وسپاري).

په دغه بيع کي د څو اصطلاحاتو پېژندل ضروري دي:

①... رَبُّ السَّلَم: مال والا (ثمن والا)، او هغه ته "مُسْلِم" هم ويل کيږي.

②... مُسْلَمٌ إِلَيْه: دويم عاقد ته "مسلم اليه" وايي، يعني هغه عاقد کوم چي مبيع ورسپاري. په بله وينا دا چي په بيع سَلم کي "رب السلم" مشتري ته وايي، او "مسلم اليه" بائع ته وايي.

③... رَأْسُ المَال: دراهم او دنانيرو ته وايي، يعني مشتري چي په بيع سَلم کي کوم ثمن او مال ورکوي، هغه ته "رأس المال" وايي. (رأسُ المال په اصل کي د مبيع هغه قيمت ته وايي چي انسان ته په هغومره

قیمت مبیع پر ته وي، مثلاً یو څوک په پنځه لکه موټر رانیسي او پنځوس زره خرچه په وکړي، ځرنګه چي اوس هغه ته دا موټر په پنځه نیم لکه ولاړ دی، نو دغه پنځه نیم لکو ته "رأس المال" وایي. [معجم لغة الفقهاء]

(۴)... مُسْلَم فِيْه: په کوم شي کي چي بیع سَلم وسي، لکه غنم، اُوره او داسي نور.

مثلاً یو عاقد دویم عاقد ته ووایي: أَسْلَمْتُ (یا أَسْلَفْتُ) إِلَيْكَ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ فِيْ كُرِّ حِنْطَةٍ (ما ستا سره په یوه "کُر" غنمو کي دلسو درهمو په عوض کي بیع سَلم وکړه)، او دویم عاقد دا بیع قبوله کړي، نو صاحبُ الدراهم ته "ربُ السلم" وایي، او صاحبُ الحنطة (غنمو والا) ته "مسلم الیه" وایي، او غنمو ته "مسلم فیه" او دراهمو ته "رأس المال" وایي.

**د بیع سَلم حکم:** "ثُبُوْتُ الْمِلْكِ لِرَبِّ السَّلَمِ فِى الْمُسْلَمِ فِيْهِ مُؤَجَّلًا بِمُقَابَلَةِ ثُبُوْتِ الْمِلْكِ فِيْ رَأْسِ الْعَيْنِ لِلْمُسْلَمِ إِلَيْهِ مُعَجَّلًا (یعني د ربُ السَلم لپاره په مسلم فیه کي په مؤجله توګه [یعني په وروستني وخت کي] ملکیت ثابتېدل، او د مسلم الیه لپاره في الحاله په رأسُ المال کي ملکیت ثابتېدل).

## د "سَلم" د ثبوت دلائل

اَلسَّلَمُ عَقْدٌ مَشْرُوعٌ بِالْكِتَابِ وَهُوَ آيَةُ الْمُدَايَنَةِ سَلم داسي عقد دی کوم چي په کتابُ الله یعني د مداینت په آیت سره مشروع [او ثابت سوی] دی فَقَدْ قَالَ: ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: "أَشْهَدُ أَنَّ اللهَ تَعَالٰى أَحَلَّ السَّلَفَ الْمَضْمُوْنَ وَأَنْزَلَ فِيهَا أَطْوَلَ آيَةٍ فِي كِتَابِهِ [لکه ځرنګه چي] ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمایلي دي: زه ګواهي ورکوم چي الله جَلَّ جَلَالُهُ سَلم مضمون حلال کړی دی او د هغه په باره کي يې په خپل کتاب کي اوږد آیت نازل کړی دی وَتَلَا قَوْلَهُ تَعَالَىٰ: «يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوْا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوْهُ» [بیا] ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د الله تعالیٰ دا فرمان تلاوت کړی: "يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِذَا تَدَايَنْتُمْ... إلخ" وَبِالسُّنَّةِ او سَلم په سنت [حدیث] سره هم مشروع [او ثابت] دی وَهُوَ مَا رُوِيَ: «أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ نَهٰى [1] عَنْ بَيْعِ مَا لَيْسَ عِنْدَ الْإِنْسَانِ وَرَخَّصَ فِي السَّلَمِ» او هغه دا روایت دی چي نبي کریم ﷺ د داسي شي له خرڅولو څخه منع کړې ده کوم چي د انسان [بائع] سره نه وي او د

[1] تخریج: أخرجه أبو داؤد، باب في الرجل يبيع ما ليس عنده، حديث رقم: ۳۵۰۵. والترمذي، باب ما جاء في كراهية بيع ما ليس عنده، حديث رقم: ۱۲۳۲. حديث دا دی: عَنْ حَكِيْمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: ...وَلَا تَبِعْ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ.

سَلم اجازه یې ورکړې ده وَالْقِيَاسُ وَإِنْ كَانَ يَأْبَاهُ وَلَكِنَّا تَرَكْنَاهُ بِمَا رَوَيْنَاهُ او قیاس که څه هم د سَلم [د جواز] انکار کوي لېکن موږ د خپل روایت کړی سوي [مذکوره] حدیث په وجه قیاس پرې ایښی دی وَوَجْهُ الْقِيَاسِ أَنَّهُ بَيْعُ الْمَعْدُومِ او د قیاس دلیل دا دی چې دا د معدوم [ناموجود] شي بیع ده إِذِ الْمَبِيْعُ هُوَ الْمُسْلَمُ فِيهِ ځکه چې [په بیع سَلم کي] همدا مسلم فیه مبیع ده.

**اللغات**: ﴿عقد﴾ معامله، ﴿مداينة﴾ د مفاعلې مصدر دی: یو د بل سره د قرض معامله کول. د "مداینت ایت" په قرآن کریم کي تر ټولو اوږد آیت دی، ﴿السلف﴾ لفظي معنیٰ یې ده: اول، کوم شی چې اول اداء کړی سي، مراد ځني سَلم دی (سلف او سَلم دواړه مترادف الفاظ دي یعني دواړه په یوه معنیٰ سره دي)، ﴿إذا تداينتم﴾ د تفاعل د باب مضارع صیغه ده: یو د بل سره د قرض معامله کول، د دې جملې معنیٰ ده: (اې مؤمنانو!) کله چې تاسي یو د بل سره د قرض معامله وکړئ!، ﴿أجل﴾ مودت، نېټه، ﴿مسمّٰی﴾ د تفعّل د باب مفعول دی: ټاکل سوی، مقرر سوی، أجل مسمیٰ: ټاکل سوی مودت، میعاد، ﴿رخّص﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: اجازه ورکول، رخصت ورکول، ﴿يأباه﴾ د فتح مضارع ده: انکار کول.

**تشریح**: په دغه عبارت کي صاحب د هدایې په قرآن او حدیث سره د بیع سَلم جواز ثابت کړی دی، فرمایي چې بیع سَلم د قرآن کریم د "مداينة" په آیت سره ثابته ده یعني: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوْهُ...إلخ﴾، او د دغه ثبوت ښکاره دلیل د رئیس المفسرین حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا هغه قول دی کوم چې په عبارت کي ذکر سوی دی چې په هغه کي د "أَشْهَد" په لفظ سره ابن عباس دا ګواهي ورکړې ده چې د مداینت په آیت سره الله تعالیٰ بیع سَلم حلال کړې ده. د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په قول کي له "السلف" څخه سَلم مراد دی، او له "المضمون" څخه مراد مؤجل یا واجب في الذمه دی، دواړه صحیح دي؛ ځکه په بیع سَلم کي مسلم فیه مؤجل وي او د مسلم الیه پر ذمه واجب وي، نو اوس د هغه د قول ترجمه دا سوه: "زه ګواهي ورکوم چې الله تعالیٰ سَلم مؤجل یا سَلم واجب في الذمه حلال کړی دی" او بیا هغه د مداینت آیت

ولوستی. لنډه دا چي که "المضمون" څخه د مؤجل معنیٰ مراد کړی سي او که د واجب في الذمه معنیٰ مراد کړی سي، په هر صورت کي له هغه څخه "بیع سلم" مراد دی.

وبالسنة إلخ: فرمایي چي بیع سَلم په سنت (حدیث) سره هم ثابته ده. ځکه په حدیث کي د معدوم شي له خرڅولو څخه منع سوې ده او د بیع سَلم اجازه ورکول سوې ده. یعني که څه هم په بیع سَلم کي مبیع معدومه وي، لېکن د شریعت لار ښوود محمد ﷺ د خلکو د حاجت او ضرورت پر بناء د بیع سَلم اجازه ورکړې ده. حدیث په عبارت کي ذکر سوی دی.

په دې باره کي دویم حدیث له ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه روایت سوی دی چي په هغه کي ذکر سوي دي: "مَنْ أَسْلَمَ مِنْكُمْ فَلْيُسْلِمْ فِيْ كَيْلٍ مَعْلُوْمٍ وَوَزْنٍ مَعْلُوْمٍ إِلىٰ أَجَلٍ مَعْلُوْمٍ" (یعني که څوک بیع سَلم کول وغواړي نو هغه ته پکار دي چي په معلوم کَیل او وزن کي تر معلوم مودته پوري بیع سَلم وکړي)، په دې روایت سره هم بیع سَلم ثابتیږي. لېکن د قیاس له رویه د بیع سَلم جائز کېدل له عقل څخه لیري دي؛ ځکه په بیع سَلم کي مسلم فیه (مبیع) موجود نه وي، او کله چي مبیع موجود نه وي نو بیع نه صحیح کیږي. لېکن څرنګه چي په قرآن کریم او حدیث کي د بیع سَلم اجازه ورکول سوې ده، نو ځکه د قرآن او حدیث په خاطر دلته قیاس پرېښوول سوی دی.

## د "مسلم فیه" بیان

قَالَ: وَهُوَ جَائِزٌ فِي الْمَكِيْلَاتِ وَالْمَوْزُوْنَاتِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمایي: او بیع سَلم په مکیلاتو اوموزوناتو کي جائز ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [2]: « مَنْ أَسْلَمَ مِنْكُمْ فَلْيُسْلِمْ فِي كَيْلٍ مَعْلُوْمٍ وَوَزْنٍ مَعْلُوْمٍ إِلٰى أَجَلٍ مَعْلُوْمٍ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: څوک چي په تاسو کي بیع سَلم وکړي نو هغه دي په معلومه پیمانه او په معلوم وزن کي تر معلوم مودت [میعاد] پوري بیع سَلم وکړي وَالْمُرَادُ بِالْمَوْزُوْنَاتِ غَيْرُ الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيْرِ او په موزوناتو سره مراد له دراهم او دنانیرو څخه بغیر نور شیان دي لِأَنَّهُمَا أَثْمَانٌ

[2] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب المساقات، باب السلم، حديث رقم:١٢٨ ، ١٢٨. و ابو داؤد في كتاب البيوع، باب في السلف، حديث رقم:٣٤٦٣. والنسائي في كتاب البيوع، باب السلام في الثمار، حديث رقم: ٤٦٢٠.

ځکه چې دا دواړه ثمن دي وَالْمُسْلَمُ فِيهِ لَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ مُثَمَّنًا او [څرنګه چې] د مسلم فيه مبيع کېدل ضروري دي فَلَا يَصِحُّ السَّلَمُ فِيهِمَا نو ځکه په دې دواړو [دراهم او دنانيرو] کې به بيع سَلم صحيح نه وي ثُمَّ قِيلَ: يَكُونُ بَاطِلًا بيا ويل سوي دي: چې سَلم به باطل وي وَقِيلَ ۞: يَنْعَقِدُ بَيْعًا بِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ او ويل سوي دي: چې د نېټه داره ثمن [قرض ثمن] په عوض کې به بيع منعقد کيږي تَحْصِيلًا لِمَقْصُودِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ بِحَسَبِ الْإِمْكَانِ د دې لپاره چې حتى الامکان د عاقدَينو [بائع او مشتري] مقصد حاصل سي وَالْعِبْرَةُ فِي الْعُقُودِ لِلْمَعَانِي او اعتبار په عقودو کې معانيو [او مقاصدو] لره دی وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او اول قول زيات صحيح دی لِأَنَّ التَّصْحِيحَ إِنَّمَا يَجِبُ فِي مَحَلٍّ أَوْجَبَا الْعَقْدَ فِيهِ ځکه چې عقد صحيح ګرځول په هغه محل کې واجبيږي چې په هغه کې عاقدَينو عقد لازم کړی وي وَلَا يُمْكِنُ ذٰلِكَ حال دا چې [دلته] دا ممکن نه دي.

**اللغات**: ﴿كَيْل﴾ د ضرب د باب اسمِ مصدر دی: پيمانه (د غنمو، اوربشو او داسي بل شي د اندازه کولو او پيمانه کولو لوښی)، ﴿أَثْمان﴾ جمع د ثَمَن ده: نقود، نغدي (دراهم اودنانير)، ﴿مؤجّل﴾ قرض (پور)، نېټه داره، پر يو مودت موقوف، قرض والا (پور والا)، ﴿عبرة﴾ اعتبار.

**تشريح**: په دې عبارت کې د بيع سَلم مقام او محل بيان سوی دی، فرمايي چې بيع سَلم په هر مکيلي او موزوني شي کې جائز ده؛ دليل دا حديث دی: "مَنْ أَسْلَمَ مِنْكُمْ فَلْيُسْلِمْ فِيْ كَيْلٍ مَعْلُوْمٍ وَوَزْنٍ مَعْلُوْمٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُوْم "(يعني په تاسو کې چې څوک بيع سَلم کول وغواړي نو هغه ته پکار دي چې په معلوم کَيل او وزن کې تر معلوم مودته پوري بيع سَلم وکړي)، له دې حديث څخه معلوميږي چې بيع سَلم په مکيلاتو او موزوناتو کې جائز ده.

**والمراد إلخ**: صاحب د هدايې فرمايي چې په متن کې له "موزونات" څخه مراد هغه شيان دي کوم چې له دراهم او دنانيرو څخه بغير دي، لهذا که څوک په دراهم يا دنانيرو کې بيع سَلم وکړي نو دا بيع سَلم نه صحيح کيږي که څه هم درهم او دنانير موزوني شيان دي، او د دې دوه صورتونه دي: يو دا چې په بيع

---

۞ القول الراجح: هو هٰذا القيل، يعني قول عيسىٰ بن ابان رَحِمَهُ الله، کما ذکر في رد المحتار (ج:۴، ص:۲۲۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۷۲]

سلم کي له دواړو طرفونو څخه دراهم يا دنانير وي يا له يوه طرفه دراهم او له بل طرفه دنانير وي. يعني دراهم او دنانير رأسُ المال هم وګرځول سي او مسلم فيه هم وګرځول سي. نو دا صورت بالاجماع ناجائز دی؛ دليل دا دی چي کله رأسُ المال او مسلم فيه دواړه عوضونه دراهم وي نو د قدر او جنس باوجود نساء (قرض والا معامله) موجوده سوه. او کله چي يو عوض دراهم وي او بل عوض دنانير وي نو د اتحاد القدر باوجود نساء موجوده سوه يعني مسلم فيه په قرض او په پور وګرځېده. حال دا چي په دغه دواړو صورتونو کي نساء حرام او ناجائز ده.

دويم صورت دا دی چي د غنمو عقد په دراهمو يا دنانيرو کي وسي، يعني غنم رأسُ المال وګرځول سي او دراهم يا دنانير مسلم فيه وګرځول سي نو په دې صورت کي هم بيع سَلم ناجائز ده؛ دليل دا دی چي په دې صورت کي دراهم او دنانير مسلم فيه (مبيع) دي، حال دا چي هغوی مسلم فيه ګرځول صحيح نه دي، ځکه چي مسلم فيه مبيع وي او په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي، لېکن دراهم او دنانير ثمن وي او هغوی په مُتعيّن کولو سره نه مُتعيّن کيږي، لهذا کله چي دراهم او دنانير ثمن دي او په مُتعيّن کولو سره نه مُتعيّن کيږي نو هغوی به مسلم فيه (مبيع) ګرځول هم صحيح نه وي، او کله چي هغوی مسلم فيه ګرځول صحيح نه دي نو په هغوی کي به بيع سَلم هم صحيح نه وي.

ثم قيل يکون إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله غنم رأسُ المال وګرځول سي او دراهم يا دنانير مسلم فيه (مبيع) وګرځول سي نو ښکاره خبره ده چي دا بيع صحيح نه ده، لېکن آيا داسي کېدای سي چي د مؤجل ثمن په عوض کي په غنمو کي بيع منعقد کړی سي، يعني چي غنم مسلم فيه (مبيع) وګرځول سي او دراهم يا دنانير مؤجل ثمن (پور والا ثمن) وګرځول سي او بيع صحيح وګرځول سي؟ په دې باره کي د فقهاؤ دوه قولونه دي:

① ... د عيسىٰ بن ابان رَحِمَهُ الله قول دا دی چي دا بيع بالکل باطله ده، يعني دا نه بيع سَلم کېدای سي او نه د مؤجل ثمن په عوض کي د غنمو بيع.

② ... د ابو بکر اعمش رَحِمَهُ الله قول دا دی چي دا د مؤجل ثمن (پور والا ثمن) په عوض کي د غنمو بيع ده، يعني که څه هم دا بيع سَلم ګرځول ممکن نه دي لېکن دا به ويل کيږي چي دا د مؤجل ثمن په عوض کي د غنمو بيع ده؛ دليل يې دا دی چي په دې بيع کي د يوه عاقد مقصد پر غنمو قبضه کول دي او د بل عاقد مقصد پر دراهم او دنانيرو قبضه کول دي (او دا صحيح مقاصد دي)، او دا مقاصد په دغه طريقه سره هم حاصليږي چي د مؤجل ثمن په عوض کي د غنمو بيع منعقد کړی سي. نو ځکه حتى الامکان به د عاقدَينو د مقصد او مطلب د حاصلولو لپاره د مؤجل ثمن په عوض کي بيع منعقد ګرځول کيږي، ځکه په عقودو کي د مقاصدو او معانيو اعتبار کيږي، د الفاظو اعتبار نه کيږي.

والأول إلخ: فرمايي چي داول قول يعني دعسیٰ بن ابان رَحِمَهُ الله قول زيات صحيح دی، ځکه چي بيع صحيح ګرځول په هغه محل کي واجبيږي (يعني بيع به په هغه شي کي صحيح ګرځول کيږي) چي په هغه کي عاقدينو بيع منعقد کړي وي، حال دا چي دلته دا خبره ناممکنه ده، ځکه دلته بيع په دراهمو او دنانيرو کي منعقد سوې ده، او دراهم او دنانير هيڅکله هم مبيع نه سي کېدای؛ ځکه چي دراهم او دنانير په پيدايشي توګه ثمن دي او مبيع مسلم فيه وي. حاصل دا چي دلته عاقدينو دراهم او دنانير مسلم فيه ګرځولي دي، حال دا چي دراهم او دنانير مسلم فيه نه سي کېدای نو ځکه به دا بيع سَلم نه منعقد کيږي، او څرنګه چي بيع سَلم بدلول او دمؤجل ثمن په عوض کي بيع کول هم جائز نه دي. نو ځکه دا بيع به هم نه منعقد کيږي، لهذا کله چي دواړه صورتونه ناممکن دي، نو ځکه به په دراهم او دنانيرو کي بيع سَلم کول بالکل باطل وي.

## په مذروعاتو کي د بيع سَلم حکم

قَالَ: وَكَذَا فِي الْمَذْرُوعَاتِ فرمايي: او همداسي په ګزېدونکو شيانو کي هم [بيع سَلم جائز ده] لِأَنَّهُ يُمْكِنُ ضَبْطُهَا بِذِكْرِ الذَّرْعِ وَالصِّفَةِ وَالصَّنْعَةِ ځکه چي د دې شيانو ضبطول [معلومول] د ګز، صفت او صنعت په بيانولو سره ممکن دي وَلَا بُدَّ مِنْهَا لِتَرْتَفِعَ الْجَهَالَةُ فَيَتَحَقَّقُ شَرْطُ صِحَّةِ السَّلَمِ او د دې شيانو بيانول [ځکه] ضروري دي چي جهالت ليري سي او د سَلم د صحت [صحيح کېدلو] شرط موجود سي وَكَذَا فِي الْمَعْدُودَاتِ الَّتِي لَا تَتَفَاوَتُ همداسي په شمارل کېدونکو هغه شيانو کي هم [بيع سَلم جائز ده] کوم چي [يو له بل څخه] متفاوت نه وي كَالْجَوْزِ وَالْبَيْضِ لکه جوز او هګۍ. لِأَنَّ الْعَدَدِيَّ الْمُتَقَارِبَ مَعْلُومُ الْقَدْرِ مَضْبُوطُ الْوَصْفِ مَقْدُورُ التَّسْلِيمِ ځکه چي د عددي متقارب شي مقدار معلوم وي، د هغه وصف هم [په بيان سره] د ضبطولو قابل وي [يعني معلومېدای سي] او د هغه ورسپارل هم ممکن وي فَيَجُوزُ السَّلَمُ فِيهِ نو ځکه په هغه کي بيع سَلم جائز ده وَالصَّغِيرُ وَالْكَبِيرُ فِيهِ سَوَاءٌ او په هغوی کي کوچنی او غټ سره برابر دي لِاصْطِلَاحِ النَّاسِ عَلَى إِهْدَارِ التَّفَاوُتِ ځکه چي [په هغوی کي] د تفاوت پر اعتبار نه کولو خلکو اتفاق کړی دی بِخِلَافِ الْبِطِّيخِ وَالرُّمَّانِ په خلاف د خټکي او انار لِأَنَّهُ يَتَفَاوَتُ آحَادُهُ تَفَاوُتًا فَاحِشًا ځکه چي د هغوی په افرادو کي زيات تفاوت وي وَبِتَفَاوُتِ الْآحَادِ فِي الْمَالِيَّةِ يُعْرَفُ الْعَدَدِيُّ الْمُتَفَاوِتُ او په ماليت کي د افرادو په متفاوت کېدلو سره

عددي متفاوت شی پېژندل کیږي وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ أَنَّهُ لَا يَجُوْزُ فِيْ بَيْضِ النَّعَامَةِ ❁ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چي د شترمرغ په هګیو کي بیع سَلم جائز نه ده لِأَنَّهُ يَتَفَاوَتُ آحَادُهُ فِي الْمَالِيَّةِ ځکه چي د هغه افراد په مالیت کي متفاوت [سره مختلف] وي ثُمَّ كَمَا يَجُوْزُ السَّلَمُ فِيْهَا عَدَدًا يَجُوْزُ كَيْلًا بیا په عددی متقارب شیانو کي چي څرنګه په شمېر [شمارلو] سره بیع سَلم جائز ده همداسي په کَیل کولو[پیمانه کولو] سره هم جائز ده وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَجُوْزُ كَيْلًا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په کَیل کولو سره جائز نه ده لِأَنَّهُ عَدَدِيٌّ وَلَيْسَ بِمَكِيْلٍ ځکه هغه عددي شي دی، مکیلي شی نه دی وَعَنْهُ أَنَّهُ لَا يَجُوْزُ عَدَدًا أَيْضًا لِلتَّفَاوُتِ او له امام زفر رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی: چي د تفاوت په وجه په شمېر سره هم جائز ده وَلَنَا: أَنَّ الْمِقْدَارَ مَرَّةً يُعْرَفُ بِالْعَدَدِ وَتَارَةً بِالْكَيْلِ زموږ دلیل دا دی: چي مقدار خو کله په شمېر سره پېژندل کیږي او کله په کَیل [پیمانه] سره پېژندل کیږي [معلومیږي] وَإِنَّمَا صَارَ مَعْدُوْدًا بِالِاصْطِلَاحِ او هغه [عددي شی] خو [د خلکو] په اتفاق کولو سره عددي ګرځېدلی دی فَيَصِيْرُ مَكِيْلًا بِاصْطِلَاحِهِمَا نو ځکه د بائع او مشتري په اتفاق کولو سره به هغه مکیلي [هم] ګرځي وَكَذَا فِي الْفُلُوْسِ عَدَدًا او همداسي په فلوسو کي په عدد سره هم [بیع سَلم جائز ده] وَقِيْلَ: هٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ او ویل سوي دي: چي دا [حکم] د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَا يَجُوْزُ ❁ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه ده لِأَنَّهَا أَثْمَانٌ ځکه چي فلوس خو ثمن دي وَلَهُمَا: أَنَّ الثَّمَنِيَّةَ فِيْ حَقِّهِمَا بِاصْطِلَاحِهِمَا د شیخینو دلیل دا دی چي د بائع او مشتري په حق کي د فلوسو ثمن کېدل د هغوی په اتفاق کولو سره دي فَتَبْطُلُ

❁ القول الراجح: هو ظاهر الرواية (أي يجوز في بيض النعامة) كما ذكر في فتح القدير (ج:۶، ص:۲۰۸)، وكذا في رد المحتار (ج:۴، ص:۲۲۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۷۲]

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۲۲۷). وقال المفتي غلام قادر النعماني: لكن عرف زماننا يؤيد قول محمد رَحِمَهُ الله؛ لأن الفلوس من الأثمان العرفية وتستعمل استعمال الشرعية، وذلك لاتحاد الجنس؛ إذ الأثمان العرفية كلها في حكم جنس واحد إلا أن يكون الأثمان العرفية في مقابلة الأثمان الشرعية، فحينئذ يفتى بقول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، وذلك لاختلاف الجنسين. [القول الراجح ج:۲، ص:۷۳]

بِاصْطِلَاحِهِمَا نو ځکه دا [ثمن کېدل] به د هغوی په اتفاق کولو سره باطليږي [هم] وَلَا تَعُوْدُ وَزْنِيًّا او فلوس [د تمنيت تر بطلان وروسته] موزوني کېدونکي نه راګرځي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او دا موږ مخکې [هم] ذکر کړي دي.

**اللغات**: ﴿مذروعات﴾ جمع د مَذْرُوْعٌ: د ګز په ذريعه ناپېدونکي شيان، هغه شيان کوم چې ګزول کيږي لکه کپړه او داسي نور، ﴿ضبط﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ضبطول، ټينګ يادول، مُتعين کول (معلومول)، ﴿صنعة﴾ جوړښت، جوړ، کاروايي، ﴿مضبوط الوصف﴾ هغه شی چې په وصف بيانولو سره ضبطول کېدای سي (معلومېدای سي) (يعني يو شي داسي وي چې که د هغه وصف بيان کړی سي نو هغه معلوم وګرځي او په ضبط کي راسي، داسي شي ته "مضبوطُ الوصف" وايي)، ﴿بيض﴾ جمع د بَيْضَةٌ ده: هګۍ، ﴿عددی متقارب﴾ هغه شيان کوم چې په شمېر سره معلومول کيږي او عموماً په شمېر خرڅول کيږي او هغوی يو بل ته نژدې، نژدې وي (تفاوت پکښې کم وي)، لکه هګۍ او داسي نور، ځکه هګۍ يو له بلي څخه زياته غټه يا کوچنۍ نه وي بلکي هغوی ټوله په اندازه کي سره نژدې، نژدې وي، ﴿اصطلاح﴾ د افتعال مصدر دی: يو د بل سره اتفاق کول، ﴿إهدار﴾ د افعال مصدر دی: ضايع کول، بې ځايه کول، بې معنیٰ کول (بې اعتباره کول)، ﴿بِطّيخ﴾ کله چې مطلق ذکر سي نو خټکي او هندوانې دواړو ته ويل کيږي (المعجم العربي الميسر)، ﴿رُمّان﴾ انار، ﴿نعامة﴾ شترمرغ، اوښ مرغه (يو غټ مشهوره مرغه دی).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې څرنګه په مکيلاتو او موزوناتو کي بيع سَلم جائز ده همداسي په مذروعاتو يعني په هغه شيانو کي هم بيع سَلم جائز ده کوم چې ګزول کيږي (يعني په ګزو سره خرڅول کيږي، لکه کپړه او داسي نور)؛ دليل دا دی چې د بيع سَلم د صحيح کېدلو لپاره د دريو (۳) شيانو معلومېدل (او ضبطول) ضروري دي: ① مقدار، ② صفت، ③ صنعت؛ او د دې دريو شيانو معلومېدل ځکه ضروري دي چې د "مسلم فيه" جهالت ليري سي او د سَلم د صحت (صحيح کېدلو) شرط موجود سي، او په مذروعاتو کي دا درې سره شيان په آساني سره معلومېدای سي، په دې توګه چې د مذروعاتو (مثلاد کپړې) د طول او عرض په بيانولو سره مقدار معلومېږي، او د جيد يا ردي والي په بيانولو سره د هغوی صفت معلومېږي، او د پنډوالي يا باريکوالي په بيانولو سره د هغوی صنعت (جوړ) معلومېږي، لهذا کله چې دا درې سره شيان معلومېدای سي نو ځکه د مذروعاتو بيع سَلم به هم جائز وي.

وكذا في المعدودات إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چي كوم شيان په شمېره سره خرڅول كيږي او په هغوی كي د ماليت او قيمت په اعتبار سره تفاوت نه وي لكه هګۍ، او جوز، نو په هغوی كي هم بيع سَلم جائز ده؛ ځكه چي داسي عددي شی كوم چي په خپل مينځ كي يو بل ته نږدې (متقارب) وي نو د هغه مقدار هم معلوم وي، او په بيان سره د هغه وصف هم معلوميږي، او د هغه ورسپارل هم ممكن وي، او د كومو شيانو مقدار چي معلوم وي او د هغوی وصف معلومېدای سي او ورسپارل يې ممكن وي، د هغوی بيع سَلم جائز كيږي، نو ځكه د عددي متقارب شي بيع سَلم به هم جائز وي. په عددي شيانو كي كوچنی او غټ سره برابر دي، ځكه د هغوی تفاوت لره د خلكو په مينځ كي اعتبار نسته يعني خلكو په هغوی كي د تفاوت پر اعتبار نه كولو (معتبر نه ګڼلو) اتفاق كړی دی، مثلاً د چرګي هګۍ كه څه هم يو له بلي څخه لږ غوندي متفاوته وي لېكن خلك بالاتفاق د دې تفاوت اعتبار نه كوي همدا وجه ده چي د غټو او كوچنيو هګيو قيمت سره برابر وي، او داسي نه كيږي چي كه هګۍ څه غټه وي نو د هغې قيمت زيات وي او كه څه كوچنۍ وي نو د هغې قيمت كم وي، بلكي د قيمت په اعتبار سره ټولي برابري وي.

بخلاف البطيخ إلخ: فرمايي چي د خټكي، (هندوانې) او د انار بيع سَلم جائز نه ده، همدارنګه د كدو، او د حيوان د سر او پښو بيع سَلم جائز نه ده؛ ځكه چي د قيمت په اعتبار سره د هغوی په افرادو كي زيات تفاوت وي، او خلك په هغوی كي د تفاوت اعتبار هم كوي، همدا وجه ده چي موږ وينو يو خټكي په پنځوس روپۍ وي او بل په سل روپۍ وي، همدارنګه يو انار په كم قيمت وي او بل انار په زيات قيمت وي، او د قيمت په اعتبار سره چي د كوم شي په افرادو كي تفاوت وي، د هغه بيع سَلم نه جائز كيږي، نو ځكه د خټكي، انار او داسي نورو شيانو بيع سَلم به جائز نه وي.

اوس د عددي متقارب شي او عددي متفاوت شي په مينځ كي قاعده دا سوه چي كه د عددي شي په افرادو كي د قيمت په اعتبار سره تفاوت وي نو هغه شي ته عددي متفاوت ويل كيږي، او كه تفاوت نه وي نو هغه ته عددي متقارب ويل كيږي. (لنډه دا چي په ماليت كي د افرادو په تفاوت او نه تفاوت سره عددي متفاوت او متقارب شی پېژندل كيږي)

وعن أبي حنيفة رَحِمَهُ الله إلخ: له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي د شترمرغ په هګيو كي بيع سَلم جائز نه ده؛ ځكه چي د شترمرغ په هګيو كي هم د ماليت او قيمت په اعتبار سره تفاوت وي، او څه مخكي ذكر سوه چي د عددي متفاوت شي بيع سَلم جائز نه ده، نو ځكه به د شترمرغ د هګيو بيع سَلم هم جائز نه وي. لېكن ظاهر روايت دا دی چي د شتر په هګيو كي هم بيع سَلم جائز ده، او راجح قول همدا ظاهر روايت دی.

ثم كما إلخ: فرمايي څرنګه چي د عددي متقارب شيانو بيع سَلم په شمېر (شمارلو) سره جائز ده همداسي په کَيل کولو (پيمانه کولو) سره هم جائز ده، نو که څوک په يوه قفيز هګۍ کي په لسو درهمو سره بيع سَلم وکړي نو دا جائز دي. امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په عددي متقارب شيانو کي صرف په شمېر سره بيع سَلم جائز ده لېکن په کَيل کولو سره جائز نه ده، ځکه کوم شيان چي د عددي متقارب له قبيلې څخه دي هغوی مکيلي نه دي، بلکي هغوی ټوله عددي دي، او کوم شيان چي مکيلي نه وي، نو د هغوی بيع څنګه د کَيل په ذريعه صحيح کېدای سي. نو ثابته سوه چي د عددي متقارب شيانو بيع سَلم په کَيل سره ناجائز ده.

د امام زُفر رَحِمَهُ الله بل روايت دا دی چي د عددي متقارب شيانو بيع سَلم نه کيلا جائز ده او نه عدداً جائز ده؛ ځکه چي د عددي متقارب شيانو په افرادو کي تفاوت وي که څه هم دا تفاوت لږ وي، او هغه عددي شيان چي په افرادو کي يې تفاوت وي د هغوی مطلق بيع هم عدداً نه جائز کېږي، نو ځکه د هغوی بيع سَلم به هم عدداً جائز نه وي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چي مقدار ځيني وخت په شمېر سره معلومېږي، او ځيني وخت د کَيل کولو په ذريعه معلومېږي، نو عددي متقارب شيان په شمېر او کَيل سره معلومول (ضبطول) ممکن دي، او کله چي په دواړو سره معلومول ممکن دی نو په دواړو سره به بيع سَلم جائز وي، يعني د عددي متقارب شيانو بيع به عدداً هم جائز وي او کيلا به هم جائز وي. او پاته سو د هغوی عددي کېدل نو دا د نص په حکم سره نه دي بلکي د خلګو په اتفاق کولو سره هغوی عددي ګرځېدلي دي، نو ګواکي د عددي کېدلو مدار د خلګو پر اتفاق دی، لهذا څرنګه چي د خلګو په اتفاق سره يو شی عددي ګرځي همداسي به د عاقدَينو په اتفاق سره هغه شی مکيلي ګرځي، او کله چي عددي شی د عاقدَينو په اتفاق سره مکيلي سو، نو د هغه بيع سَلم چي څرنګه عدداً جائز ده همداسي به مکيلا هم جائز وي.

(دلته دا يوه جلا خبره په ياد لرئ! چي نن سبا هم عددي متقارب شيان په عدد او شمېر سره خرڅېدل دا د ټوله نړۍ پر سطح نه دي، بلکي دا د هر ښار او هري علاقې پر خپل تعامل او اتفاق مبني دي، نو په ځيني ښارونو او علاقو کي جوز او داسي نور په عدد سره خرڅول کيږي او په نورو ښارونو کي هغوی په وزن سره خرڅول کيږي. لهذا چيري چي کوم عُرف او رواج [اتفاق] وي هلته به د هغه عُرف او رواج مطابق بيع سَلم کول زيات غوره وي [أحسن الهدايه])

وكذا في الفلوس إلخ: فرمايي چي د فلوسو بيع سَلم هم عدداً جائز ده، دا حکم په جامع صغير کي بلا اختلافه ذکر سوی دی، لېکن صاحب د هدايې فرمايي چي د ځينو مشائخو قول دا دی چي د جواز دغه حکم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د فلوسو بيع سَلم ناجائز ده.

د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې فلوس ثمن دي، او مخکې تېر سوه چې د ثمن بيع سَلم ناجائز وي، نو ځکه به د فلوسو بيع سَلم هم ناجائز وي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چې د فلوسو ثمن کېدل (ثمنيت) د عاقدَينو په حق کې د دوی په اتفاق سره ثابت سوي وي ځکه چې پر دوی د بل چا هيڅ ولايت نسته، نو کله چې د فلوسو ثمن کېدل (ثمنيت) د عاقدَينو په حق کې په حق کې د دوی په اتفاق سره وي، نو د دوی په اتفاق سره به د فلوسو ثمن کېدل هم باطلېږي، او کله چې د فلوسو ثمنيت باطل سو، نو فلوس د دوی په حق کې د سامان په څېر وګرځېده، او د سامان بيع سَلم جائز ده، لهذا د فلوسو بيع سَلم به هم جائز وي.

ولا تعود وزنياً: دا د يو سوال جواب دی، سوال دا دی چې کله په فلوسو کې ثمنيت باطل او ختم سي نو هغوی به موزوني روګرځي، او په موزوني شي کې په وزن سره بيع سَلم صحيح ده، نه په عدد سره؟ نو د دې جواب دا دی چې عاقدَينو صرف د فلوسو د ثمنيت پر ابطال (باطلولو) اتفاق کړی دی، نه د هغوی د عددي کېدلو پر ابطال، او د فلوسو د ثمنيت په ابطال سره د هغوی د عددي کېدلو ابطال نه لازميږي، او کله چې د فلوسو د ثمنيت په ابطال سره د عددي کېدلو ابطال لازم نه سو، نو فلوس به عددي وي، موزوني به نه وي، او کله چې فلوس عددي پاته سوه او موزوني نه وګرځېده، نو ځکه د فلوسو بيع سَلم به هم په عدد سره جائز وي.

د دې تفصيل په باب الربوا کې د "بيعُ الفلسِ بالفلسين" په مسئله کې هم ذکر سوی دی.

## په حيوان (څاروي) کې د بيع سَلم حکم

وَلَا يَجُوزُ السَّلَمُ فِي الْحَيَوَانِ او په حيوان کې بيع سَلم جائز نه ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوزُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې جائز ده لِأَنَّهُ يَصِيرُ مَعْلُومًا بِبَيَانِ الْجِنْسِ وَالسِّنِّ وَالنَّوْعِ وَالصِّفَةِ ځکه چې د جنس، عمر، نوع او صفت په بيانولو سره حيوان مُتعيّن کېږي وَالتَّفَاوُتُ بَعْدَ ذٰلِكَ يَسِيرٌ او تر دې وروسته معمولي تفاوت وي [يعني د دې شيانو تر ذکر کولو وروسته معمولي غوندې تفاوت پاتېږي] فَأَشْبَهَ الثِّيَابَ لهذا دا د کپړو سره مشابه سوه وَلَنَا: أَنَّهُ بَعْدَ ذِكْرِ مَا ذُكِرَ يَبْقَى فِيهِ تَفَاوُتٌ فَاحِشٌ فِي الْمَالِيَّةِ بِاعْتِبَارِ الْمَعَانِي الْبَاطِنَةِ زموږ دليل دا دی: چې د دې ذکر سوو شيانو تر ذکر کولو وروسته هم د باطني اُمورو په اعتبار سره د حيوان په ماليت کې زيات تفاوت پاتېږي فَيُفْضِيْ إِلَى الْمُنَازَعَةِ نو ځکه

به دا [تفاوت] جنګ ته رسول وکړي [یعني د جنګ او اختلاف سبب به وګرځي] بِخِلَافِ الثِّيَابِ په خلاف د کپړو لِأَنَّهُ مَصْنُوعُ الْعِبَادِ ځکه چي هغه د انسانانو جوړي سوي دي [یعني ټوکر او کپړي د انسانانو د لاس کاریګري او جوړښت دی] فَقَلَّمَا يَتَفَاوَتُ الثَّوْبَانِ إِذَا نُسِجَا عَلَى مِنْوَالٍ وَاحِدٍ او کله چي دوې کپړې پر یوه طرز جوړي کړل سي نو په هغوی کي ډېر کم تفاوت وي وَقَدْ صَحَّ [1] أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهَى عَنِ السَّلَمِ فِي الْحَيَوَانِ او په صحیح حدیث کي دي چي نبي ﷺ په حیوان کي له بیع سَلم څخه منع کړې ده وَيَدْخُلُ فِيهِ جَمِيعُ أَجْنَاسِهِ حَتَّى الْعَصَافِيرُ او د حیوان په لفظ کي د هغه ټوله اجزاء داخلیږي. تر دې چي مرغیاني [چوغکي] هم.

**اللغات**: ﴿سن﴾ عمر. ﴿یسیر﴾ معمولي، لږ، د تحمل قابل. ﴿ثیاب﴾ جمع د ثَوْبٌ ده: کپړه، ټوکر. ﴿فاحش﴾ ښکاره، واضح. ﴿یُفضي﴾ د افعال مضارع ده: رسول (رسوول)، سبب جوړېدل. ﴿مصنوع﴾ د فتح د باب مفعول دی: جوړ کړی سوی (جوړ سوی). ﴿نُسِجَا﴾ د ضرب له بابه د تثنیه ماضي مجهولي صیغه ده: ټوکر جوړول، کپړه جوړول. ﴿منوال﴾ طرز، طریقه. ﴿عصافیر﴾ جمع د عُصْفُورٌ ده: مرغۍ، چوغکه.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک په حیوان (څاروي) کي بیع سَلم وکړي او د هغه حیوان جنس مثلاً پسه، اوښ، غوا، بزه او داسي نور بیان کړي، همدارنګه د هغه عمر بیان کړي، او د هغه صفت یعني چاغوالی او ډنګروالي بیان کړي، همدارنګه د هغه نوع مثلاً افغاني، پاکستاني، عربي او داسي نو هم بیان کړي (مثلا وواییي چي دا عربي اوښ دی یا بختي اوښ دی)، نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي د حیوان بیع سَلم جائز ده، همدا د امام احمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله مسلک دی، لېکن زموږ په نېز په دې صورت کي بیع سَلم جائز نه ده.

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چي کله د حیوان جنس، نوع، عمر او صفت بیان کړی سي نو هغه معلوم المقدار والصفة وګرځیږي، او مخکي تاسو ته ذکر سوه چي په معلوم المقدار والصفة مبیع کي بیع سَلم جائز ده، نو ځکه به په دې حیوان (مسلم فیه) کي هم بیع سَلم جائز وي. او بل دا چي کله دغه اوصاف بیان کړل سي نو اولاً خو هیڅ جهالت نه پاتیږي، لېکن بیا هم کوم جهالت چي پاته سي هغه

[1] تخریج: أخرجه دار قطني في كتاب البيوع، حديث رقم: ۳۰۴۰.

به ډېر معمولي وي او ډېر معمولي جهالت لره هيڅ اعتبار نسته، نو ځکه د هغه جهالت به هم هيڅ اعتبار نه کيږي، او څرنګه چي د کپړې جنس، نوع، صفت او داسي نور ټوله معلوم کړل سي نو څرنګه چي په هغې کي معمولي غوندي پاته سوی جهالت له بيع سَلم څخه مانع نه وي، همداسي به د دغه اوصافو له بيانولو څخه وروسته هم په حيوان کي پاته سوی معمولي جهالت له بيع سَلم څخه مانع نه وي.

**زموږ دليل:** په حيوان کي د بيع سَلم نه جائز کېدلو په هکله زموږ دليل دا دی چي د حيوان د جنس، نوع او صفت له بيانولو څخه وروسته هم د باطن او دننه امر په اعتبار سره په هغه کي خفاء او جهالت پاته وي، لکه څرنګه چي يو آس په باطني توګه په ځغستا کي تېز وي او بل له هغه څخه په ځغستا کي کمزوری وي، همدارنګه يو غلام په باطني توګه زيات فرمانبرداره او تابع وي او بل کم فرمانبرداره (او سرکښ) وي، او په دې حواله سره په معامله کي جنګ او نزاع پيدا کيږي، او هر هغه عقد کوم چي مُفضي الی النزاع وي هغه فاسديږي، نو ځکه به د حيوان بيع سَلم هم فاسديږي.

بخلاف الثياب إلخ: لېکن په کپړو کي چي کوم تفاوت وي هغه واقعي ډېر کم وي او د نه تفاوت په درجه کي وي؛ ځکه چي کپړې د انسان په لاس جوړي سوي وي، او که کاريګر په يوه طرز او له يوه تار څخه دوې جلا، جلا کپړې جوړې کړي نو په هغوی کي هيڅ فرق نه وي، د دې په خلاف د يوه حيوان له نس څخه په پيدا سوو دوو بچو کي د صفت په اعتبار سره هم تفاوت وي او د ماليت او قيمت په اعتبار سره هم تفاوت وي، نو ځکه حيوان پر کپړه قياسول صحيح نه دي، لهذا په کپړه کي بيع سَلم جائز ده لېکن په حيوان کي جائز نه ده.

په حيوان کي د بيع سَلم نه جائز کېدلو په هکله زموږ نقلي دليل دا حديث دی: "نَهَى النَّبِيُّ ﷺ عَنِ السَّلَفِ فِي الحَيَوَانِ" (نبي ﷺ په حيوان کي له بيع سَلم څخه منع کړې ده)، صاحب د بنايې ليکلي دي چي حاکم د دې حديث تخريج کړې ده او دار قطني په خپل سنن کي هم بيان کړی دی. (بنايه ج:۷، ص:۴۲۸)

او څرنګه چي نبي ﷺ په دې حديث کي د مطلق حيوان له بيع سَلم څخه منع کړې ده، نو ځکه په دې کي به د حيوان ټوله اجناس داخل وي، تر دې چي په مرغيو او کوترو کي به هم بيع سَلم جائز نه وي.

## د حيوان په سر او پښو کي د بيع سَلم حکم

قَالَ: وَلَا فِي أَطْرَافِهِ كَالرُّءُوسِ وَالْأَكَارِعِ فرمايي: او د حيوان په اعضاؤ کي [هم] بيع جائز نه ده لکه سر او پښې لِلتَّفَاوُتِ فِيهَا ځکه په هغوی کي تفاوت وي إِذْ هُوَ عَدَدِيٌّ مُتَفَاوِتٌ لَا مُقَدِّرَ لَهَا ځکه چي دا شيان عددي متفاوت دي د هغوی لپاره هيڅ اندازه نسته قَالَ: وَلَا فِي الْجُلُودِ عَدَدًا وَلَا فِي الْحَطَبِ حُزَمًا وَلَا فِي الرَّطْبَةِ جُرَزًا فرمايي: او نه په څرمنو [پوستو] کي په شمېر سره بيع سَلم جائز ده او نه په لرګيو [بوټو] کي په بنډل سره جائز ده او په وښو کي په غوټې [او بنډل] سره جائز ده لِلتَّفَاوُتِ فِيهَا ځکه چي په هغوی کي تفاوت وي [يعني د هغوی په افرادو کي تفاوت او فرق وي] إِلَّا إِذَا عُرِفَ ذٰلِكَ بِأَنْ بَيَّنَ لَهُ طُولَ مَا يُشَدُّ بِهِ الْحُزْمَةَ أَنَّهُ شِبْرٌ أَوْ ذِرَاعٌ مګر دا چي کله [د هغوی طول او عرض] معلوم وي په دې توګه چي په کوم شي سره بنډل [او غوټه] تړل کيږي د هغه طول [اوږدوالی] بيان کړي چي [مثلاً] يوه لوېشت يا يو لاس دی فَحِينَئِذٍ يَجُوزُ نو په دې وخت کي بيع سَلم جائز کيږي إِذَا كَانَ عَلَى وَجْهٍ لَا يَتَفَاوَتُ [په دې شرط] کله چي هغه په دې توګه وي چي تفاوت پکښې نه وي.

**اللغات:** ﴿أطراف﴾ جمع د "طَرَفٌ" ده: طرفونه، اړخونه، مراد ځني اعضاء (اندامونه) دي، ﴿أكارع﴾ جمع د "كُرَاع" ده: د حيوان پښې، ﴿جلود﴾ جمع د "جِلْدٌ" څرمن، پوست، ﴿حطب﴾ د سوځولو لرګي، بوټي، ﴿حزمًا﴾ حُزْمَةٌ بنډل او غوټې ته ويي. لرګي او بوټي چي سره ټول کړل سي او يو ځای سره وتړل سي نو هغه ته "حُزْمَةُ الحَطَب" (د لرګيو بنډل، د لرګيو بار)، ﴿الرطبة﴾ د حيوانو شنه واښه، لکه شوتل، شپيشتي، خسيل او داسي، او کله چي وچ کړل سي نو هغوی ته "قَتّ" وايي چي په پښتو کي ورته "بېده" وايي، ﴿جرزًا﴾ واښه چي سره جمع کړل سي او يو ځای سره وتړل سي نو هغه ته "جُرْزَة" وايي (د وښو غوټه)، جمع يې جُرَز راځي (مصباح اللغات)، ﴿شبر﴾ لوېشت، ﴿ذراع﴾ شرعي ګز، يو لاس،

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چه څرنګه په حيوان کي بيع سَلم جائز نه ده، همداسي د هغه په سر او پښو کي هم بيع سَلم جائز نه ده؛ ځکه چي د حيوان په سر او پښو کي تفاوت وي، او دا تفاوت د هغه په ماليت او قيمت کي هم اثر کړی وي، نو په دې حواله سره د حيوان سر او پښې "عددي

متفاوت" شیان سوه، او مخکې تاسو وویل چې د "عددي متفاوت" شي بیع سَلم جائز نه ده، نو ځکه د حیوان د سر او پښو بیع سَلم به هم جائز نه وي.

قال إلخ: د دې حاصل دا دی چې د حیوان په څرمن (پوست) کې د مقدار په حواله سره هم تفاوت وي او د مالیت په اعتبار سره هم تفاوت وي (یعني د مقدار او مالیت دواړو په اعتبار سره یو پوست له بل پوست څخه جلا او متفاوت وي)، همدارنګه د لرګیو کې چې کوم بنډل او غوټه وي (یعني کله چې ډېر لرګیان سره جمع کړل سي او وتړل سي) په هغه کې د مقدار او مالیت په اعتبار سره تفاوت وي، همدارنګه د حیوانو د وښو غوټه (یعني چې ډېر واښه سره جمع کړل سي او وتړل سي) په هغه کې هم د مقدار او مالیت په اعتبار سره تفاوت وي، نو ځکه په دې ټولو شیانو کې بیع سَلم جائز نه ده، ځکه چې د مقدار او مالیت د تفاوت په وجه دا شیان په "عددي متفاوت" کې داخل دي، او د عددي متفاوت شیانو بیع سَلم جائز نه ده، نو ځکه به په دې شیانو کې هم بیع سَلم جائز نه وي.

إلّا إذا إلخ: صاحب د کتاب له مخکنې صورتونو څخه یو صورت مستثنیٰ کوي، فرمایي چې که مسلم الیه (بائع) د بنډل (او غوټې) طول او عرض بیان کړي او د هغه رسۍ او پړي مقدار (سایز) هم بیان کړي چې په هغه سره بنډل (او غوټه) تړل سوې وي، مثلاً داسې ووایي چې رسۍ دوه ګزه یا یو ګز ده، او تر دې وروسته تفاوت پاته نه سي، نو په دې صورت کې د دغه شیانو بیع سَلم هم جائز ده، لېکن که د دې باوجود تفاوت پاته وي نو بیع سَلم جائز نه ده.

## د مسلم فیه د موجود والي شرط (حکم او اختلاف)

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ السَّلَمُ حَتَّى يَكُونَ الْمُسْلَمُ فِيهِ مَوْجُودًا مِنْ حِينِ الْعَقْدِ إِلَى حِينِ الْمَحَلِّ فرمايي: او بیع سَلم جائز نه ده تر دې چې مسلم فیه د عقد له وخت څخه د اداء کولو تر وخته پورې موجود وي حَتَّى لَوْ كَانَ مُنْقَطِعًا عِنْدَ الْعَقْدِ مَوْجُودًا عِنْدَ الْمَحَلِّ نو که چیرې د عقد په وخت کې معدوم وي او د اداء کولو په وخت کې موجود وي أَوْ عَلَى الْعَكْسِ یا د دې برعکس وي (یعني د عقد په وخت کې موجود وي او د اداء کولو په وخت کې معدوم وي) أَوْ مُنْقَطِعًا فِيمَا بَيْنَ ذَلِكَ یا د دې په مینځ کې معدوم وي لَا يَجُوزُ نو [بیا] بیع سَلم جائز نه ده وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: يَجُوزُ إِذَا كَانَ مَوْجُودًا وَقْتَ الْمَحَلِّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې که د اداء کولو په وخت کې مسلم فیه موجود وي نو بیع سَلم جائز ده لِوُجُودِ الْقُدْرَةِ

عَلَى التَّسْلِيمِ حَالَ وُجُوبِهِ ځکه چي د مسلم فيه [د اداء] د واجبېدلو په وخت کي د ورسپارلو قدرت موجود سو [يعني په دې صورت کي عاقد ته د اداء کولو په وخت کي د مسلم فيه پر ورسپارلو قدرت حاصل دی] وَلَنَا قَوْلُهُ الطَّيْلِا ❶: « لَا تُسْلِفُوْا فِي الثِّمَارِ حَتَّى يَبْدُوَ صَلَاحُهَا » او زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی چي: "په مېوو کي بيع سَلم مه کوئ! تر دې چي د هغوی صلاحيت [او منفعت] ښکاره سي وَلِأَنَّ الْقُدْرَةَ عَلَى التَّسْلِيمِ بِالتَّحْصِيلِ او ځکه چي [د مسلم فيه] د ورسپارلو قدرت د حاصلولو په ذريعه وي فَلَا بُدَّ مِنْ اسْتِمْرَارِ الْوُجُودِ فِي مُدَّةِ الْأَجَلِ نو ځکه د ټاکل سوي ميعاد په مودت کي په دوام [همېشتوب] سره د مسلم فيه موجودېدل ضروري دي لِيَتَمَكَّنَ مِنَ التَّحْصِيلِ د دې لپاره چي [مسلم إليه] پر حاصلولو قادر وي.

**اللغات**: ﴿حين﴾ وخت، زمانه، ﴿لا تسلفوا﴾ د افعال له بابه د نفي صيغه ده: بيع سَلم کول، د بيع سَلم په توګه ورکول (المعجم الوسيط)، ﴿يبدو﴾ د نصر مضارع ده: ښکاره کېدل، ﴿صلاح﴾ استعداد، صلاحيت، (منفعت)، ﴿تسليم﴾ د تفعيل مصدر دی: ورسپارل، ﴿أجل﴾ ټاکل سوی مودت، ميعاد، ﴿يتمكّن﴾ د تفعّل مضارع ده: قدرت حاصلېدل (قدرت پيدا کول، قادر کېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي زموږ په نېز د بيع سَلم جائز کېدلو شرط دا دی چي مسلم فيه به د عقد په وخت کي هم (په بازار او منډۍ کي) موجود وي، د اداء کولو په وخت کي به هم موجود وي او د دې دواړو وختونو په مېنځ کي به هم موجود وي، لهذا که مسلم فيه د عقد په وخت کي نه پيدا کېږي او د اداء کولو په وخت کي پيدا کېږي، يا د دې برعکس وي يعني د عقد په وخت کي پيدا کېږي لېکن د اداء کولو په وخت کي نه پيدا کېږي، يا د عقد په وخت کي هم پيدا کېږي او د اداء کولو په وخت هم، مګر د دوی په مېنځ کي څو وخت له بازار څخه منقطع او نيستي سي، نو په دې صورتونو کي بيع سَلم جائز نه ده. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي که چيري د اداء کولو په وخت کي مسلم فيه موجود وي (يعني پيدا کېدای سي) نو هم بيع سَلم جائز ده که څه هم د عقد په وخت کي په بازار کي نه پيدا کېږي، ګواکي د امام شافعي رَحِمَهُ الله (د بيع سَلم د جواز لپاره) د اداء کولو په وخت کي د

---

❶ تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب البيوع، باب في السلم في ثمرة بعينها، حديث رقم:۳۴۶۷. وابن ماجه في كتاب التجارات، باب إذا اسلم في نخل بعينه لم يطلع، حديث رقم:۲۲۸۴.

مسلم فيه د موجود والي اعتبار کوي، همدا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی، او د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز (د بيع سَلم د جواز لپاره) د عقد او اداء کولو په وخت کي د مسلم فيه موجدېدل شرط دی، لېکن د هغه دواړو په مينځ کي موجودېدل شرط نه دي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي په کوم وخت کي چي د مسلم فيه اداء کول واجب دي که په هغه وخت کي مسلم فيه موجود وي، نو مسلم اليه (ربُ السلم ته) پر ور سپارلو او ورکولو قادر وي، او د بيع سَلم د جائز کېدلو شرط همدا دی چي مسلم اليه به د مسلم فيه پر ورسپارلو قادر وي، نو ځکه به په دې صورت کي بيع سَلم جائز وي. د امام شافعي رَحِمَهُ الله بل دليل دا هم دی چي کله نبي کريم ﷺ مدينې منورې ته راغلی او خلک يې وليدل چي په مېوو کي به يې د يوه کال، دوو کالو او دريو کالو پر وعده بيع سَلم کوله نو نبي کريم ﷺ د بيع سَلم شرطونه بيان کړل او ويې فرمايل: "مَنْ أَسْلَمَ مِنْكُمْ فَلْيُسْلِمْ فِيْ كَيْلٍ مَعْلُوْمٍ وَ وَزْنٍ مَعْلُوْمٍ إِلىٰ أَجَلٍ مَعْلُوْم" (يعني د مسلم فيه مقدار به د کَيل يا وزن په ذريعه معلوم وي او د اداء کولو نېټه (ميعاد) به معلوم وي). اوګورئ! پر دې موقع رسول الله ﷺ د عقد له وخته څخه د اداء کولو تر وخته پوري د مسلم فيه موجود والی (موجودېدل) نه دي ذکر کړي، که چيري د مسلم فيه نه منقطع کېدل د بيع سَلم لپاره شرط وای نو رسول الله ﷺ به خامخا د هغه يادونه کړې وای، خو څرنګه چي هغه رسول الله ﷺ نه دي ذکر کړي، نو ځکه د هغه شرط والي به هم ثابت نه وي او هغه به شرط نه وي.

**زمـوږ دليـل**: هغه حديث دی کوم چي په عبارت کي ذکر سو، او هغه دا چي نبي ﷺ فرمايلي دي: "تاسي په مېوو کي بيع سَلم مه کوئ! تر دې چي د هغوی صلاح ښکاره سي"، يعني تر څو چي مېوه د نفع اخيستلو قابله (پخه) نه وګرځي، تر هغه وخته په مېوه کي بيع سَلم مه کوئ!. له دغه حديث څخه معلومه سوه چي د عقد سَلم په وخت کي دا ضروري دي چي مېوه به د منفعت قابله وي او په کار به راتلای سي، او له همدې څخه ثابته سوه چي د عقد په وخت کي د مبيع (مسلم فيه) موجودېدل شرط دي، ځکه چي له صلاح او منفعت ښکاره کېدلو څخه مخکي مبيع يعني مېوه معدوم وي، او پر دې د ټولو اجماع ده چي د اداء کولو په وخت کي د مبيع موجودېدل شرط دي.

دويـم دليـل دا دی چي مسـلم اليـه (بـائع) هغـه وخـت ربُ السَـلم (مشـتري) تـه مسـلم فيـه ورسپارلای سي کله چي هغه مسلم فيه حاصل کړي، او هغه صرف په هغه وخت کي مسلم فيه حاصلولای او ورسپارلای سي کله چي مسلم فيه له مخکي څخه په بازار کي موجود وي؛ ځکه مسلم اليه چي کله په بازار کي په مسلم فيه پسي ګرځي، او له بازار څخه يې راوړي او بيا يې بائع ته

سپاري نو خامخا په دې کې يو مودت کښېوځي، اوس ښکاره خبره ده چې که مسلم اليه له مخکې څخه هغه پيدا نه کړي او د ځان سره يې محفوظ نه کړي نو د اداء کولو په ورځ به دا ټوله کارونه کول د هغه لپاره ستونزمن وي او په دې توګه به د فتنې او فساد بازار ګرم سي، نو ځکه د ټاکل سوي ميعاد په مودت کې په دوام سره په بازار اومنډۍ کې مسلمٌ فيه موجودېدل ضروري دي چې مسلم اليه د هغه پر حاصلولو قادر وي. (أحسنُ الهدايه)

## د ورسپارلو په وخت کې د مسلم فيه د نا موجود والي حکم

وَلَوِ انْقَطَعَ بَعْدَ الْمَحَلِّ او که چيري مسلم فيه د اداء کولو تر وخت وروسته معدوم سي [يعني خاص د ورسپارلو او اداء کولو په وخت کې معدوم سي] فَرَبُّ السَّلَمِ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ فَسَخَ السَّلَمَ وَإِنْ شَاءَ انْتَظَرَ وُجُودَهُ نو ربُ السَلَم ته اختيار دی که وغواړي نو بيع سَلم دې فسخ کړي او که وغواړي نو د هغه د موجودېدلو انتظار دې وکړي لِأَنَّ السَّلَمَ قَدْ صَحَّ ځکه بيع سَلم خو صحيح سوه وَالْعَجْزُ الطَّارِئُ عَلٰى شَرَفِ الزَّوَالِ او [پر مسلم إليه] واقع سوی عجز زائلېدلو ته ډېر نژدې دی فَصَارَ كَإِبَاقِ الْمَبِيعِ قَبْلَ الْقَبْضِ نو داسي سو لکه تر قبضې مخکې د مبيع [غلام] تښتېدل.

**اللغات**: ﴿انقطع﴾ د انفعال ماضي ده: منقطع کېدل، ختمېدل، معدوم کېدل (نيستي کېدل)، ﴿عجز﴾ عاجزي، عاجزوالی، ﴿شرف﴾ کناره، ژۍ (غاړه)، څنډه، عرب وايي: هُوَ عَلٰى شَرَفِ الْهَلَاكِ: هغه د هلاکېدلو پر ژۍ دی، يعني هلاکېدلو ته ډېر نژدې دی، ﴿إباق﴾ د سمع مصدر دی: تښتېدل.

**تشريح**: دا مسئله د مخکني عبارت پر مسئلې متفرع ده، حاصل يې دا دی چې که مسلم فيه د عقد له وخت څخه د اداء کولو تر وخته پوري خو موجود وي لېکن خاص د اداء کولو او ورسپارلو په وخت کې هغه معدوم سي او په بازار کي نه پيدا کيږي، نو په دې صورت کې خو بيع سَلم صحيح دی لېکن ربُ السَلم ته اختيار دی که وغواړي نو بيع سَلم دې فسخ کړي او که وغواړي نو د مسلم فيه د موجودېدلو (او بازار ته د هغه د راتللو) انتظار دې وکړي؛ ځکه چې د عقد له وخت څخه د اداء کولو تر وخته پوري د مسلم فيه د موجودېدلو په وجه بيع سَلم صحيح سوه. او صرف د عَين اداء کولو په وخت کې په معدوم کېدلو سره د مسلم فيه ورسپارل نه وسوه، لېکن دا معدوميت عارضي دی، يقيني نه دی، او کېدای سي چې تر دې وروسته ډېر ژر مسلم فيه بازار ته راسي او د غه معدوميت په موجوديت سره بدل سي، نو ځکه به دلته بيع سَلم صحيح وي او فسخ کيږي به نه.

او پاته سو ربُ السَلم (مشتري) ته اختيار حاصلېدل، نو د هغه حل دا دی چي څرنګه په هغه وخت کي مشتري ته اختيار حاصليږي کله چي د مشتري له قبضه کولو څخه مخکي غلام و تښتي، يعني په دې صورت کي بيع صحيح کيږي او نه فسخ کيږي بلکي هغه ته دا اختيار حاصليږي چي که وغواړي نو بيع دي فسخ کړي او که وغواړي نو د غلام د واپس راتللو انتظار دي وکړي، نو همداسي به په دې صورت کي هم مشتري ته اختيار حاصليږي او د بيع فسخ کېدل به نه مُتعيّن کيږي.

## د مالګين ماهي د بيع سَلم حکم

قَالَ: وَيَجُوزُ السَّلَمُ فِي السَّمَكِ الْمَالِحِ وَزْنًا مَعْلُومًا وَضَرْبًا مَعْلُومًا فرمايي: او په مالګين ماهي کي په معلوم وزن او معلوم نوع سره بيع سَلم کول جائز دي لِأَنَّهُ مَعْلُومُ الْقَدْرِ مَضْبُوطُ الْوَصْفِ مَقْدُورُ التَّسْلِيمِ ځکه چي د هغه مقدار معلوم دی، وصف يې د ضبط قابل دی [يعني په وصف بيانولو سره هغه معلوم ګرځي]، او ورسپارل يې ممکن دي إِذْ هُوَ غَيْرُ مُنْقَطِعٍ ځکه چي هغه معدوم نه وي وَلَا يَجُوزُ السَّلَمُ فِيهِ عَدَدًا لېکن په مالګين ماهي کي په شمېر سره بيع سَلم کول جائز نه دي لِلتَّفَاوُتِ ځکه چي [د هغه په افرادو کي] تفاوت وي.

**اللغات**: ﴿سمك﴾ ماهي، کب، ﴿مالح﴾ په مالګه لړل سوی (په مالګه کي لت پت سوی)، مالګين، نمکين، ﴿ضرب﴾ قسم، نوع، ﴿مقدور التسليم﴾ هغه شی چي ورسپارل يې د انسان په قدرت کي وي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که ماهي مالګين وي او د هغه وزن او نوع (قِسم) معلوم وي، نو په هغه کي بيع سَلم جائز ده؛ ځکه چي د وزن په معلومېدلو سره هغه معلوم المقدار ګرځي او د نوع په معلومېدلو سره معلوم الوصف (معلوم الصفة) ګرځي، او څرنګه چي داسي ماهي هر وخت په بازار کي ترلاسه کېدای سي او هيڅکله له بازار څخه نه منقطع کيږي نو ځکه هغه مقدورُ التسليم هم دی، او د بيع سَلم د جواز لپاره همدغه شيان کافي دي، نو ځکه په هغه کي به بيع سَلم جائز وي.

خو څرنګه چي د ماهي په مقدار (سايز) کي تفاوت وي او د ماهي افراد يو له بل څخه ډېر مختلف وي او دغه تفاوت په ماليت کي هم اثر کړی وي، نو ځکه په هغه کي د شمېر په حساب سره بيع سلم کول (مثلاً پنځوس ماهيان مسلم فيه ټاکل) جائز نه دي، کنې د فتنې او نزاع سبب به وګرځي.

# د تازه ماهي د بيع سَلم حکم

قَالَ: وَلَا خَيْرَ فِي السَّلَمِ فِي السَّمَكِ الطَّرِيِّ او د تازه ماهي په بيع سَلم کي هيڅ ښېګڼه [ښه والی] نسته إِلَّا فِي حِينِهِ وَزْنًا مَعْلُومًا وَضَرْبًا مَعْلُومًا مګر په خپل موسم کي په معلوم وزن او معلوم نوع سره لِأَنَّهُ يَنْقَطِعُ فِي زَمَانِ الشِّتَاءِ ځکه چي تازه ماهی دژمي په موسم کي منقطع کيږي حَتَّى لَوْ كَانَ فِي بَلَدٍ لَا يَنْقَطِعُ تر دې چي که عاقد په داسي ښار کي وي چي هلته تازه ماهی نه منقطع کيږي يَجُوزُ مُطْلَقًا نو مطلقاً [د هغه] بيع سَلم جائز ده وَإِنَّمَا يَجُوزُ وَزْنًا لَا عَدَدًا لِمَا ذَكَرْنَا او فقط په وزن سره جائز ده، نه په وزن سره د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي لَحْمِ الْكِبَارِ مِنْهَا او له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله ځنځه روايت سوی دی چي د تازه غټو ماهيانو په غوښه کي بيع سَلم جائز نه ده وَهِيَ الَّتِي تُقْطَعُ او غټ ماهيان هغه دي کوم چي [د خرخولو لپاره] پرېکول کيږي [يعني په ټوټه، ټوټه سره خرخول کيږي] اعْتِبَارًا بِالسَّلَمِ فِي اللَّحْمِ عِنْدَهُ [دا مسئله] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د غوښو پر بيع قياس کړی سوې ده.

**اللغات**: ﴿طری﴾ تازه (تروتازه)، ﴿فی حينه﴾ د ماهيانو په وخت او موسم کي (په خپل موسم کي).

﴿شتاء﴾ ژمی، ديخ موسم، ﴿ينقطع﴾ د انفعال مضارع ده: نيستي کېدل (معدوم کېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د تازه ماهي په بيع سَلم کي هيڅ خير او ښېګڼه نسته، لېکن د ماهيانو په موسم يعني د باران وغيره په زمانه کي چي کله تازه ماهيان زيات پيدا کيږي، نو بيا د هغوی بيع سَلم جائز ده، په دې شرط چي د ماهيانو وزن هم معلوم وي او د هغوی نوع (قسم) هم معلوم وي، او څرنګه چي له خپل موسم ځنځه بغير د هغوی پيدا کېدل او تر لاسه کول مشکل وي (مثلاً د ژمي په موسم کي تازه ماهيان ډېر په مشکله پيدا کيږي)، نو ځکه له خپل موسم ځنځه بغير په بل موسم کي د هغوی بيع سَلم جائز نه ده. ها! که چيري عاقدين په داسي ښار کي وي چي هلته په هر موسم کي تازه ماهيان پيدا کېدای سي نو په هغه ښار کي د تازه ماهي بيع سَلم جائز ده، لېکن دا خبره په ياد لرئ! چي په هغه کي د وزن په حساب سره خو بيع سَلم جائز ده، لېکن د شمېر (عدد) په

---

❁ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَاالله، كما قال ابن عابدين رَحِمَهُ الله: والمختار الجواز وهو قولهما، لأن السمن والهزال غير معتبر فيه عادة، وقيل الخلاف...إلخ (رد المحتار ج:۴، ص:۲۲۸)، وكذا في فتح القدير (ج:۶، ص:۲۱۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۷۴]

حساب سره جائز نه ده، ځکه چي د هغه په افرادو کي زيات تفاوت وي، نو ځکه هغه عددي متفاوت سو. او په عددي متفاوت کي عدداً بيع سَلم جائز نه ده.

وعن أبي حنيفة إلخ: له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي د غټو تازه ماهيانو په غوښه کي بيع سَلم جائز نه ده. غټ ماهيان هغه دي کوم چي يې بائع ټوټه. ټوټه کوي او په ټوټه سره يې خرڅوي (درست يې نه خرڅوي)؛ دليل يې دا دی چي د غوښو په ټوټو (ټوکړو) کي هم تفاوت وي او د ماهي د بدن غوښي هم په خپل مينځ کي يو له بل څخه په ښه والي کي مختلفه وي (مثلاً ځيني غوښي يې له هډوکو څخه پاکي وي. او ځيني غوښي يې هډوکي لري) لکه د پسه او داسي نورو غوښي چي په خپل مينځ کي يو له بل څخه مختلفه وي (ځيني د ښه ځای وي او ځيني د خراب. ځيني وازګه لري او ځيني له وازګي څخه پاکي وي)، لهذا که د غټو تازه ماهيانو په غوښه کي بيع سَلم جائز وګرځول سي نو دا به د فتنې او نزاع سبب وګرځي، نو ځکه به د هغوی په غوښه کي بيع سَلم جائز نه وي.

**يادونه**: په دغه مسئله او را روانه مسئله کي د ''لَا يَجُوْزُ'' پر ځای ''لَا خَيْر'' ذکر سوي دي، د دې وجه څه ده؟ د بنايې مصنف رَحِمَهُ الله دوې (۲) وجهي ليکلي دي: (۱)... اوله وجه دا ده چي په دې سره علىٰ سبيل المبالغه د غوښو د بيع سَلم ناجائز والی بيانول مقصود دي (يعني په ډېر ټينګار او مبالغه سره د غوښو بيع سَلم ناجائز کېدل د امام صاحب رَحِمَهُ الله مقصود دي) چي په غوښو کي له هر ډول بيع سَلم څخه د خلکو توجه ليري سي، او دا مبالغه په ''لَا خَيْر'' سره په ښه توګه حاصليږي (په نسبت د ''لَا يَجُوْزُ'')، ځکه چي ''خَيْر'' نکره دی او مخکي يې ''لَا'' نفي واقع سوي دی، او قاعده دا ده چي نکره تحت النفي د عموم فايده ورکوي، نو ځکه ''لَا خَيْر'' د خپل عموم په وجه د خير ټوله انوع نفي کوي يعني د غوښو په بيع سَلم کي بالکل هيڅ خير نسته، او ښکاره خبره ده چي په دې کي زياته مبالغه ده.

(۲)... دويمه وجه او دويمه نکته دا ده چي کله مجتهد په خپله رايه او خپل اجتهاد سره يو مسئله او حکم مستنبط کړي، نو که چيري هغه مسئله د جواز سره تعلق لري نو د هغې لپاره د ''لَا بَأْسَ'' لفظ اختياروي، او که هغه مسئله د عدم جواز (ناجائز والي) سره تعلق لري نو د هغې لپاره د ''لَا خَيْرَ'' لفظ اختياروي. او داسي ځکه کوي چي په شرعي احکامو کي په خپله رايه له قطعي او يقيني فيصله کولو څخه ځان وساتي. او دا د مجتهدينو د بشپړ احتياط او زيات اهتمام معامله ده. (بنايه ج: ۷. ص: ۴۳۵)

## د غوښو د بيع سَلم حکم

قَالَ: وَلَا خَيْرَ فِي السَّلَمِ فِي اللَّحْمِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فرمايي: او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د غوښو په بيع سَلم کي هيڅ ښېګڼه نسته وَقَالَا۞: إِذَا وَصَفَ مِنَ اللَّحْمِ مَوْضِعًا مَعْلُومًا بِصِفَةٍ مَعْلُومَةٍ [لېکن] صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي که په معلوم وصف سره [او] د غوښي مُتعيّن ځای بيان کړي جاَزَ نو [بيا] بيع سَلم جائز ده لِأَنَّهُ مَوْزُونٌ مَضْبُوطُ الْوَصْفِ ځکه چي غوښي موزوني شی دي او وصف يې د ضبط قابل دی [مطلب دا چي په وصف بيانولو سره په ضبط کي راتلای او معلومېدای سي] وَلِهَذَا يُضْمَنُ بِالْمِثْلِ او له همدې کبله غوښي مضمون بالمثل وي وَيَجُوزُ اسْتِقْرَاضُهُ وَزْنًا او [له همدې کبله] په وزن سره غوښي په قرض اخيستل جائز دي وَيَجْرِي فِيهِ رِبَا الْفَضْلِ او په هغې کي ربوا الفضل جاري کيږي بِخِلَافِ لَحْمِ الطُّيُورِ په خلاف د مرغانو د غوښي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ وَصْفُ مَوْضِعٍ مِنْهُ ځکه چي له مرغه څخه يو مخصوص ځای بيانول ممکن نه دي وَلَهُ: أَنَّهُ مَجْهُولٌ لِلتَّفَاوُتِ فِي قِلَّةِ الْعَظْمِ وَكَثْرَتِهِ أَوْ فِي سِمَنِهِ وَهُزَالِهِ عَلَى اخْتِلَافِ فُصُولِ السَّنَةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي غوښه د هډوکو د کموالي او زياتوالي په وجه يا د کال په مختلفه موسمونو کي د حيوان د چاغوالي او ډنګرالي په وجه مجهوله وي وَهَذِهِ الْجَهَالَةُ مُفْضِيَةٌ إِلَى الْمُنَازَعَةِ او دغه جهالت جنګ ته رسوونکي وي [يعني د جنګ او اختلاف سبب ګرځي] وَفِي مَخْلُوعِ الْعَظْمِ لَا يَجُوزُ عَلَى الْوَجْهِ الثَّانِي او له هډوکو څخه په جلا کړل سوې غوښه کي د دويم دليل په وجه بيع سَلم جائز نه ده وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا روايت زيات صحيح دی وَالتَّضْمِينُ بِالْمِثْلِ مَمْنُوعٌ او د غوښي مضمون بالمثل کېدل ممنوع نه دي [يعني امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي د صاحبينو دا خبره موږ نه تسليموو چي غوښه مضمون بالمثل ده] وَكَذَا الِاسْتِقْرَاضُ او همداس قرض اخيستل هم [ممنوع دي] وَبَعْدَ التَّسْلِيمِ فَالْمِثْلُ أَعْدَلُ مِنَ الْقِيمَةِ او د هغه له تسليمولو څخه وروسته [جواب دا دی چي] مثل د قيمت په مقابله کي زيات برابري کونکی [برابري راوستونکی]

---

۞ القول الراجح: قولُ الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله:...والفتوىٰ على قولهما، وهٰذا على الأصح من ثبوت الخلاف بينهم (فتح القدير ج:۶، ص:۲۱۶)، وكذا في الدر المختار (ج:۴، ص:۲۲۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۷۵]

وي ﴿وَلِأَنَّ الْقَبْضَ يُعَايَنُ﴾ او ځکه چې قبضه [مقبوض شی] په سترګو لیدل کیږي ﴿فَيُعْرَفُ مِثْلَ الْمَقْبُوضِ بِهِ فِي وَقْتِهِ﴾ نو ځکه د قبضه کولو په وخت کې به د مقبوض مثل [هم] معلوم وي ﴿أَمَّا الْوَصْفُ فَلَا يُكْتَفَى بِهِ﴾ پاتې سو وصف نو پر هغه به [په بیع سلم] اکتفاء نه کیږي.

**اللغات**: ﴿استقراض﴾ د استفعال مصدر دی: په قرض اخیستل. په پور غوښتل. ﴿ربوا الفضل﴾ د کمي وزیاتوب معامله. غوښې چې د غوښو په عوض کې خرڅې کړل سي او کمي وزیاتوب پکښې وسي نو دې ته "ربوا الفضل" وایي (أثمار الهدایه). ﴿سِمَن﴾ د سمع د باب اسمِ مصدر دی. د کرم له باب څخه هم راځي: چاغوالی. چاغېدل. ﴿هُزَال﴾ د نصر اسمِ مصدر دی. د سمع له بابه هم راځي: کمزور والی. ډنګر والی. کمزوري کېدل. ﴿فصول﴾ جمع د فَصْلٌ ده: موسم. په کال کې څلور موسمونه راځي: پسرلی. ګرمي. منی (خزان) او ژمی. دې ته فُصُوْلُ السَّنَةِ وایي. ﴿مفضية﴾ د افعال د باب فاعل دی: رسوونکی. سبب جوړېدونکی. ﴿مخلوع﴾ د فتح د باب مفعول دی: ایستل سوی. کښل سوی (هغه غوښې چې هډوکي ځني ایستل سوي وي). (یعرف مثل المقبوض به في وقته) صاحب د اثمار الهدایې د دې جملې مختصر مطلب دا ذکر کړی دی: چې که څوک غوښې په وزن سره په قرض واخلي او بیا د قرض مودت پوره سي او هغه وغواړي چې د قرض غوښې اداء کړي. نو د قرض اخیستلو په وخت کې چې هغه په کومو صفاتو سره غوښې قبضه کړي وي. د واپس ورکولو (قرض اداء کولو) په وخت کې دا معلومېدای سي چې دا غوښې د مخکنۍ غوښو په څېر دي. که نه. ﴿الوصف فلا یکتفی به﴾ د دې عبارت مطلب دا دی چې په بیع سَلَم کې صرف د غوښو (مسلم فیه) وصف بیان سوی وي او غوښې مخته موجوده نه وي نو ځکه صرف پر وصف به اکتفاء نه کیږي او بیع سَلَم به نه جائز کیږي.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د حیوان (څاروي) د غوښو بیع سلم جائز نه ده. برابره ده د غوښو مقدار او وصف بیان کړی سي او که نه. د دې په خلاف د صاحبینو رحمهما الله مسلک دا دی چې که د غوښو ځای او صفت بیان کړی سي. یعني دا خبره ذکر کړي چې د غوایي یا پسه غوښې او د هغه د ملا یا ورانه غوښې. او د غوښو وزن هم معلوم کړي نو په دې صورت کې د هغه بیع سلم جائز ده.

د صاحبینو دلیل دا دی چې د غوښې راتیول او خرڅول په وزن سره کیږي (یعني غوښه موزوني شی ده) او هغه مضبوط الوصف هم ده یعني د جنس. نوع او د ځای (موضع) په بیانولو سره د هغې

وصف په ضبط کي راتلای اومعلومېدای سي، لهذا کله چي غوښه موزوني ده او د هغې وصف هم د ضبط قابل دی نو هغه به مقدورُ التسليم وي يعني د هغې ورسپارل به ناممکن نه وي بلکي ممکن به وي، او کوم شی چي مقدورُ التسليم وي د هغه بيع سَلم جائز ده، نو ځکه د غوښو بيع سَلم به هم جائز وي.

ولهذا يضمن إلخ: صاحبين رَحِمَهُمَا الله د غوښو د موزوني کېدلو او مضبوطُ الوصف کېدلو نور وضاحت او تاکيد کوي فرمايي همدا وجه ده چي غوښي مضمون بالمثل دي يعني که څوک ديو چا غوښي ضايع کړي (مثلا ويې خوري)، نو پر ضايع کونکي د هغه غوښو ضمان بالمثل واجبېږي (يعني په ضمان [تاوان] کي به هغومره او هغسي غوښي ورکوي)، همدارنګه که څوک غوښي په قرض اخيستل وغواړي نو په وزن سره يې اخيستلای سي (يعني د غوښو استقراض بالوزن جائز دی)، او که څوک په کمي وزياتوب سره د غوښو بيع وکړي نو په هغه کي ربوا الفضل لازمېږي کوم چي حرامه ده. له دغو ټولو څخه هم معلومه سوه چي غوښي موزوني او مضبوطُ الوصف دي اوله وصف بيانولو څخه وروسته په هغه کي هيڅ جهالت نه پاتېږي، نو ځکه په دې حواله سره هم د هغه بيع سَلم جائز ده.

د دې په خلاف څرنګه چي د مرغانو غوښي نه سي مُتعيّن کېدلای او کما حقهٗ د هغه وصف بيانول کېدای نه سي، نو ځکه د هغوی په غوښو کي بيع سَلم جائز نه ده.

وله إلخ: له دې ځايه د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه د حيوان په غوښو کي د بيع سَلم نه جائز کېدلو دليل بيانوي، حاصل يې دا دی چي د غوښو د نوع او صفت تر بيان وروسته هم په هغه کي دومره جهالت پاتېږي کوم چي د بيع سَلم له جواز څخه د مانع کېدلو لپاره کافي دی، مثلاً د هډوکو د کموالي او زياتوالي په وجه هم په مقدار کي جهالت پاتېږي، همدارنګه د موسمونو په بدلون سره حيوان چاغ او ډنګر کېږي مثلاً په ژمي کي د ذبح کړی سوي حيوان غوښي له هغه حيوان څخه چاغي وي کوم چي په ګرمۍ کي ذبح کړی سي، نو اوس که موږ په هغه کي د بيع سَلم اجازه ورکړو نو د ربُ السَلم او مسلم اليه تر مينځ به د چاغو او ډنګرو (ښه او خرابو) غوښو د اخيستلو په هکله اختلاف راسي چي هغه به د اختلاف او نزاع سبب وګرځي، نو ځکه له اختلاف او نزاع څخه د عاقدينو د ساتلو لپاره په غوښه کي د بيع سَلم نه جائز کېدلو فتویٰ ورکول زيات غوره دي.

وفيه مخلوع إلخ: فرمايي څرنګه چي په هډوکو والا غوښه کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز بيع سَلم جائز نه ده، همدارنګه په هغه غوښه کي هم بيع سَلم جائز نه ده چي له هغې څخه هډوکي ايستل سوي او جلا کړل سوي وي؛ ځکه چي په دې کي به هم هغه د چاغو او ډنګرو (ښه او خرابو) غوښو

اختلاف راسي او فتنه او نزاع به پيدا سي، نو ځکه په داسي غوبنو کي هم بيع سَلم جائز نه ده، دا روايت محمد بن شجاع له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه نقل کړی دی، او صاحب د هدايې همدې ته اصح ويلي دي. (بنايه ج:۷، ص:۴۳۶)

والتضمين بالمثل إلخ: څه مخکي تېر سوه چي صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د حيوان د غوښي په مضمون بالمثل کېدلو او استقراض بالوزن سره د هغې موزوني کېدل ثابت کړي دي، له دې ځايه د هغه خبري ترديد کوي، حاصل يې دا دی چي د غوښي په مضمون بالمثل کېدلو سره د هغې موزوني کېدل يا د وزن په ذريعه په هغې کي قرض جائز کېدل موږ نه تسليموو، نو ځکه په هغه سره دليل نيول صحيح نه دي، او که بيا هم موږ دا خبره تسليم کړو چي غوښي مضمون بالمثل دي او په دې وجه هغه موزوني دي نو د دې جواب دا دی چي د ضايع سوي او هلاک سوي شي د ضمان دوه صورتونه دي: ① ضمان بالمثل، ② ضمان بالقيمة، او په دغه دواړو صورتونو کي اول صورت يعني د ضمان بالمثل والا صورت زيات اهم دی، له همدې کبله فقهاء د ضايع سوي (هلاک سوي) شي په ضمان کي تر ټولو مخکي د ضمان بالمثل فيصله کوي، ځکه چي هغه د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار سره د ضايع سوي شي مماثل وي، او څرنګه چي د ضمان بالمثل په ذريعه د ضايع سوو غوښو تلافي ممکن ده، نو ځکه په دې صورت کي ضمان بالمثل واجبيږي، لهذا د ضمان بالمثل په وجوب سره د غوښو موزوني کېدل نه لازميږي.

همداسي په وزن سره د قرض اخيستلو په صورت کي چي څرنګه په قرض کي فوراً (سمدستي) پر غوښو قبضه کيږي او پر کومو غوښو چي قبضه کيږي هغه مخته موجوده وي او په ستر ګو ليدل کيږي او د هغې واپس کول آسانه وي، همدارنګه په هغې کي جهالت هم نه پاتيږي او دا صورت مُفضِي الى النزاع نه ګرځي، نو ځکه په وزن سره په قرض اخيستلو کي هيڅ حرج نسته او دا صورت جائز دی، لېکن په دې جواز سره په غوښو کي د بيع سَلم جائز کېدل نه لازميږي؛ ځکه چي په بيع سَلم کي فوراً پر مسلم فيه (غوښو) قبضه نه کيږي، بلکي د تاکل سوي ميعاد پوره کېدلو په وخت کي پر هغه قبضه کيږي او د عقد په وخت کي صرف د مسلم فيه وصف ذکر کيږي او هغه مخته موجود نه وي (او په ستر ګو نه ليدل کيږي)، نو ځکه د غوښو د بيع سَلم په صورت کي مسلم فيه مجهول پاتيږي او د هغه دا جهالت مُفضِي الى النزاع ګرځي، نو په دې وجه په هغه کي بيع سَلم جائز نه ده. (أحسن الهدايه)

## له میعاد څخه بغیر بیع سلم جائز نه ده (او د امام شافعي رَحِمَهُ الله رایه)

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ السَّلَمُ إِلَّا مُؤَجَّلًا فرمایي: او بیع سَلم صرف په میعادي توګه جائز ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوزُ حَالًّا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې حالا [بغیر له میعاده] هم جائز ده لِإِطْلَاقِ الْحَدِيثِ "وَرَخَّصَ فِي السَّلَمِ" ځکه په حدیث مبارک کې "ورخص فی السلم" مطلق دی وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ: "إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ" فِيمَا رَوَيْنَا او زموږ دلیل د نبي ﷺ دا فرمان دی: "إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ" په هغه حدیث کې کوم چې موږ روایت کړی وَلِأَنَّهُ شُرِعَ رُخْصَةً دَفْعًا لِحَاجَةِ الْمَفَالِيسِ او ځکه چې بیع سَلم د مفلسو خلکو د ضرورت لیرې کولو په خاطر د رخصت په توګه مشروع سوې ده فَلَا بُدَّ مِنَ الْأَجَلِ لِيَقْدِرَ عَلَى التَّحْصِيلِ فِيهِ فَيُسَلِّمَ نو ځکه میعاد ضروري دي چې [مسلم الیه] په هغه میعاد کې د مسلم فیه پر حاصلولو قادر سي او هغه [رب السلم ته] وسپاري وَلَوْ كَانَ قَادِرًا عَلَى التَّسْلِيمِ او که چیرې هغه [فی الحاله] پر ورسپارلو قادر وي لَمْ يُوجَدِ الْمُرَخِّصُ نو [څرنګه چې په دې صورت کې] رخصت ورکونکی سبب موجود نه سو فَبَقِيَ عَلَى النَّافِي نو ځکه به حکم پر نفي کونکي [حدیث] باقي پاته وي.

**اللغات**: ﴿مُؤَجَّل﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: هغه شی چې د هغه لپاره میعاد او مودت وټاکل سي، میعادي. تریو ټاکل سوي مودت پوري مؤخر کړی سوی. ﴿حالاً﴾ فی الحاله، فی الفور، دستي. ﴿رخّص﴾ د تفعیل ماضي ده: رخصت او اجازه ورکول (اجازت ورکول). ﴿مفالیس﴾ جمع د مُفْلِسٌ: غریب، مسکین، (ډېوالي). ﴿النافي﴾ د ضرب د باب فاعل دی: نفي کونکی، مراد ځني د باب په شروع کې د ذکر سوي حدیث دا جمله ده: "لَا تَبِعْ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ" کوم چې موږ د ابو داؤد او ترمذي په حواله سره په حاشیه کې ذکر کړی.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې زموږ په نېز صرف میعادي بیع سَلم جائز ده او له میعاد څخه بغیر في الحاله والا بیع سَلم زموږ په نېز جائز نه ده، همدا د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله مسلک

دي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز جائز ده. مثلاً که څوک بل چا ته ووايي چې زه ستا سره د ي لس درهمو بيع سَلم په يوه کر غنمو کي (چې د هغه صفات دا دي) کوم. او د في الحاله (فوراً) سپارلو شرط ولګوي يا ميعاد نه وټاکي. نو دا بيع سَلم زموږ په نېز ناجائز ده او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز جائز ده.

**د امام شافعي دليل**: دا حديث دی: "أَنَّهُ نَهٰى عَنْ بَيْعِ مَا لَيْسَ عِنْدَ الْإِنْسَانِ وَرَخَّصَ فِي السَّلَمِ". په دې حديث کې رسول الله ﷺ مطلقاً بيع سَلم جائز ګرځولې ده، برابره ده هغه ميعادي وي او که غير ميعادي وي، نو ځکه د اجل او ميعاد شرط لګول به پر دې حديث (نص) زياتوب کول وي، او پر نص زياتوب کول جائز نه دي، نو ځکه د حديث د اطلاق په وجه ميعادي او غير ميعادي دواړه قسمه بيع سَلم جائز ده.

**زموږ دليل**: دا حديث دی: "مَنْ أَسْلَمَ مِنْكُمْ فَلْيُسْلِمْ فِي كَيْلٍ مَعْلُوْمٍ وَوَزْنٍ مَعْلُوْمٍ إِلٰى أَجَلٍ مَعْلُوْمٍ"، په دې حديث کې چې څرنګه رسول الله ﷺ په مسلم فيه کې د کَيل او وزن د معلومېدلو شرط ذکر کړی دی همداسې يې د مسلم فيه د ميعادي کېدلو شرط هم ذکر کړی دی، له دې څخه معلوموميږي چې د مسلم فيه ميعادي کېدل (مؤجل کېدل) ضروري دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله پېش کړی سوی حديث به پر هغه حديث حمل کيږي کوم چې د اجل او ميعاد په قيد سره مقيد دی.

ولأنه شرع إلخ: زموږ عقلي دليل دا دی چې د بيع سَلم رخصت او اجازت د غريبانو او مفلسو خلکو د ضرورت پوره کولو په خاطر ورکول سوی دی (چې غريبان خلک مخکې له مشتري څخه ثمن واخلي خپل حاجتونه په پوره کړي او مبيع وروسته ورکړي)، او دا ضرورت هغه وخت پوره کيږي کله چې د مسلم فيه د اداء کولو لپاره يو ميعاد مقرر کړی سي چې غريب مسلم اليه په هغه مودت کې مسلم فيه حاصله کړي او ربُ السَلم ته يې وسپاري. او که چيرې مسلم اليه في الحاله د مسلم فيه پر ورسپارلو قادر وي نو څرنګه چې په دې صورت کې مُرَخِّص (د رخصت سبب) يعني ضرورت موجود نه سو نو ځکه د بيع سَلم نه جائز کېدلو والا حکم به پر نافي يعني پر "لَا تَبِعْ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ" باقي وي.

حاصل دا چې مخکې په حديث کې ذکر سوي دي چې "هغه شی مه خرڅوه! کوم چې ستا سره نه وي" نو په دې سره د معدوم شي بيع بالکل باطل او ناجائز وګرځېده، لېکن بيع سَلم د غريبانو د ضرورت پوره کولو په خاطر د مسلم فيه د معدوم والي باوجود جائز وګرځول سوه (ځکه چې د غريب سره في الحاله مسلم فيه نه وي او د هغه پر ورسپارلو قادر نه وي، او ثمن ته سخت ضرورت هم لري)، لېکن کله چې

مسلم اليه في الحاله د مسلم فيه پر ورسپارلو قادر وي نو د بيع سَلم ضرورت ثابت نه سو، او کله چي د بيع سَلم جائز کولو والا ضرورت ثابت نه سو نو بيع سَلم به هم جائز نه وي.

## د بيع سَلم لپاره معلوم ميعاد ضروري دی

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ إِلَّا بِأَجَلٍ مَعْلُومٍ فرمايي: او بيع سَلم جائز نه ده مګر په معلوم ميعاد سره لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَلِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِيهِ مُفْضِيَةٌ إِلَى الْمُنَازَعَةِ او ځکه چي د ميعاد مجهول والی جنګ ته رسوونکی وي [يعني د جنګ او اختلاف سبب ګرځي] كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه په بيع کي اچي د ثمن يا مبيع جهالت د جنګ او اختلاف سبب ګرځي] وَالْأَجَلُ أَدْنَاهُ شَهْرٌ او د ميعاد کم از کم مودت يوه مياشته ده وَقِيلَ: ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ او ويل سوي دي: چي درې ورځي دي وَقِيلَ ●: أَكْثَرُ مِنْ نِصْفِ يَوْمٍ او ويل سوي دي: چي تر نيمي ورځي زيات وخت دی وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او [په دې ټولو کي] اول قول زيات صحيح دی.

**اللغات**: ﴿أجل﴾ ميعاد (مياد)، ټاکل سوی مودت (ټاکل سوی وخت). ﴿منازعة﴾ جنګ، جګړه، ﴿أدنیٰ﴾ کم از کم (کم تر کمه، لږ تر لږه).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله د بيع سَلم لپاره ميعاد شرط دی نو دا خبره هم په ياد لرئ! چي د ميعاد معلوم والی هم شرط دی (يعني ميعاد به معلوم وي). او د دې دليل مخکي تېر سو، يعني د رسول الله ﷺ دا فرمان: "مَنْ أَسْلَمَ مِنْكُمْ فَلْيُسْلِمْ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ".

دويم دليل دا دی چي د ميعاد مجهول والی مفضی الی النزاع ګرځي، په دې توګه چي ربُ السَلم به په نژدې مودت کي د مسلم فيه مطالبه کوي او مسلم اليه به په ليري او زيات مودت کي د ورسپارلو کوشش کوي، او داسي جهالت کوم چي مفضی الی النزاع وي عقد فاسدوي، نو ځکه به د ميعاد مجهول والی بيع سَلم لره فاسدونکی وي. لکه څرنګه چي په بيع کي د ثمن يا مبيع جهالت د مُفضي الی النزاع کېدلو په وجه بيع فاسدوي.

**والأجل إلخ**: پاته سوه دا خبره چي په بيع سَلم کي د ميعاد ادنیٰ مودت څومره دی؟ نو په دې هکله صاحب د هدايې درې (۳) قولونه ذکر کړي دي.

---

● القول الراجح: القول الأول ان الأجل أدناه شهر، كما ذكر في رد المختار (ج:۴، ص:۲۳۰)، وفي البحر الرائق (ج:۶، ص:۱۶۰)، وفي الكفاية (ج:۲، ص:۱۱۵)، وفي الزيلعي (ج:۴، ص:۱۱۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۷۷]

(۱)... اول قول (کوم چي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه نقل سوی دی) دا دی چي په بيع سَلم کي ادنیٰ ميعاد يوه مياشته ده.

(۲)... دويم قول (کوم چي له امام طحاوي رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی) دا دی چي هغه درې ورځي دي.

(۳)... درېيم قول (کوم چي له امام ابو بکر رازي رَحِمَهُ الله څخه نقل سوی دی) دا دی چي هغه له نصف يوم (نيمي ورځي) څخه زيات مودت دی.

**دلائل**: د اول قول دليل د قسم (يمين) دا مسئله ده چي که يو سړی قسم واخلي چي زه به ستا قرض عاجلا (ډېر ژر) اداء کړم، بيا هغه تر يوه مياشته مخکي، مخکي قرض اداء کړي، نو د هغه سړي قسم پوره سو. له دغه مسئلې څخه معلومه سوه چي تر يوې مياشتي کم د "عاجل" په حکم کي دی، او کله چي تر يوې مياشتي کم مودت د "عاجل" او "معجل" په حکم کي دی نو يوه مياشت او تر يوې مياشتي زيات مودت به د "اجل" او "مؤجل" په حکم کي وي.

د دويم قول دليل قياس دی د خيارِ شرط پر مودت، ځکه چي د خيارِ شرط مودت هم درې ورځي تاکل سوی دی.

د درېيم قول دليل دا دی چي معجل هغه شي ته وايي چي په مجلس کي دننه پر هغه قبضه وسي او پر کوم شي چي تر مجلس وروسته قبضه وسي هغه ته مؤجل وايي. او مجلس په عامه توګه تر نصف يوم (نيمي ورځي) پوري باقي پاتيږي، له نصف يوم څخه زيات باقي نه پاتيږي، نو ځکه د اجل او ميعاد کم از کم مودت به له نصف يوم څخه زيات وي.

والأول إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي اول قول زيات صحيح دی؛ ځکه يوه مياشت داسي مودت دی چي په هغه کي د مسلم فيه حاصلول ممکن دي.

## د معيّن سړي په پېمانه او ګزه سره د بيع سَلم کولو حکم

وَلَا يَجُوْزُ السَّلَمُ بِمِكْيَالِ رَجُلٍ بِعَيْنِهِ وَلَا بِذِرَاعِ رَجُلٍ بِعَيْنِهِ او بيع سَلم د يو مُعيّن سړي په [ذاتي] پېمانه او د يو مُعيّن سړي په ګز سره جائز نه ده مَعْنَاهُ: إِذَا لَمْ يُعْرَفْ مِقْدَارُهُ د دې معنیٰ دا ده: چي کله د هغه مقدار معلوم نه وي لِأَنَّهُ يَتَأَخَّرُ فِيهِ التَّسْلِيمُ ځکه چي په بيع سَلم کي د مسلم فيه ورسپارل مؤخر کيږي [ځنډول کيږي. يعني مسلم إليه ډېر وخت وروسته ربّ السلم ته مبيع ورکوي] فَرُبَّمَا يَضِيعُ فَيُؤَدِّيْ إِلَى الْمُنَازَعَةِ نو کېدای سي چي هغه پېمانه يا ګز ضايع سي او دا به د جنګ سبب وګرځي

وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ او دا [مسئله] مخکي تېره سوې ده وَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ الْمِكْيَالُ مِمَّا لَا يَنْقَبِضُ وَلَا يَنْبَسِطُ او ضروري ده چي پیمانه به له هغه شیانو څخه وي کوم چي [د وېر په څېر] نه سختیږي [راټولیږي] او نه غوړیږي كَالْقِصَاعِ مثلاً مثلاً لکه کاسې فَإِنْ كَانَ مِمَّا يَنْكَبِسُ بِالْكَبْسِ كَالزِّنْبِيلِ وَالْجِرَابِ لیکن که پیمانه له هغه شیانو څخه وي کوم چي په کښېکاږلو [او چټولو] سره ننوځي [او چټیږي] لکه ټوکرۍ او بوری [توښه دان] لَا يَجُوزُ لِلْمُنَازَعَةِ نو [بیا] د جنګ [او اختلاف] په وجه بیع سَلَم جائز نه ده إِلَّا فِي قِرَبِ الْمَاءِ مګر د اوبو په ژیانو کي جائز ده لِلتَّعَامُلِ فِيهِ ځکه چي په هغه کي [د خلکو] تعامل دی كَذَا رُوِيَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ همداسي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی.

**اللغات:** ﴿مکیال﴾ پیمانه، ظرف (لوښی)، ﴿تسلیم﴾ د تفعیل مصدر دی: مبیع ورسپارل، مبیع اداء کول. ﴿لا ینقبض﴾ د انفعال د باب نفي صیغه ده: راټولېدل، سختېدل، کلکېدل، ټینګېدل. ﴿لا ینبسط﴾ مخکنی صیغه ده: غوړېدل. ﴿قِصاع﴾ جمع د قَصْعَةٌ ده: کاسه. ﴿ینکبس﴾ د انفعال د باب مضارع ده: سره ننوتل (چټېدل)، دننه کېدل. یعني کله چي یو پوست او ربړي شی کښېکاږل سي نو هغه سره ننوځي او چټ سي، همدې ته "انکباس" وایي. ﴿کبس﴾ د ضرب مصدر دی: (پوست او نرم شی) کښېکاږل، کېمنډل. ﴿الجِراب﴾ له څرمني (چمړې) څخه جوړه بوری چي په هغه کي به د سفر توښه (خوراک او خرچه) ساتل کېده، توښه دان. ﴿الزنبیل﴾ د خرما له پاڼو څخه جوړه سوې ټوکرۍ او بوری چي په هغه کي به خرما او داسي بله مېوه ساتل کېده. ﴿قِرَب﴾ جمع د قِرْبَةٌ ده: د اوبو ژی (مشک)، له څرمني څخه جوړه هغه بوری (تېلی) چي په هغه کي به اوبه، شیدې او داسي نور ساتل کېدل. (مصباح اللغات، مصباح المنیر، معجم الوسیط، معجم لغة الفقهاء)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د یو سړي سره خپل ذاتي مخصوصه پیمانه وي خو د هغې مقدار معلوم نه وي یا مخصوص (ځانګړی) ګز ور سره وي چي د هغه مقدار معلوم نه وي، نو په دې پیمانه او ګز سره بیع سَلَم جائز نه ده؛ ځکه چي په بیع سَلَم کي د مسلم فیه ورسپارل تر ټاکل سوي مودت (میعاد) پوري مؤخر کیږي، او په دې مودت کي د دغه مخصوص ګز او پیمانې ضایع کېدل ممکن دي، نو د ضایع کېدلو په صورت کي به د مسلم فیه د ورسپارلو پر موقع د ربُ السَلم او مسلم الیه تر مینځ جنګ او نزاع راسي، په دې توګه چي ربُ السَلم به د پیمانې د غټوالي دعویٰ کوي (چي هغه پیمانه غټه وه) او مسلم الیه به د کوچني والي دعویٰ کوي، او داسي شی کوم چي د جنګ او نزاع

سبب ګرځي هغه بيع فاسدوي، نو ځکه په داسي مخصوص ګز يا پيمانې سره چي د هغه مقدار معلوم نه وي بيع سَلم جائز نه ده (دا مسئله د کتاب البيوع په اول کي تېره سوې ده). له دغه مذکوره دليل څخه دا خبره ښکاره سوه چي که د هغه مخصوص ګز يا مخصوصه پيمانې مقدار معلوم وي نو بيع سَلم جائز ده، ځکه چي د مقدار تر معلوم والي وروسته که چيري هغه پيمانه او لوښی ضايع هم سي نو بيا هم د جنګ او نزاع هيڅ امکان نسته.

ولا بد إلخ: فرمايي په کومه پيمانه سره چي د مسلم فيه اندازه کول او پيمانه کول شرط کړی سوي وي، هغه به د ربړ په څېر نه کشيږي او نه سختيږي، بلکي د اوسپني، خاوري، لرګي يا داسي بل سخت شي څخه به جوړه وي، لکه بالټی، کاسه او داسي نور چي دا شيان سخت دي او د ربړ په څېر نرم نه دي. لهذا که يو پيمانه په کشولو سره کشيږي او په کنبېکاږلو سره ننوځي نو په هغه سره بيع سَلم جائز نه ده، ځکه چي په دې صورت کي به جنګ او نزاع پيدا سي، په دې توګه چي مشتري (رب السلم) به مطالبه کوي چي پيمانه دي ښه کش کړی سي او پوره دي ډکه سي ليکن د بائع (مسلم إليه) زيات کوشش به دا وي چي دا پيمانه په داسي انداز سره ډکه کړی سي چي مبيع څه لږ پکښي راسي، او نزاع بيع فاسدوي، نو ځکه په داسي ظرف او پيمانه سره بيع سَلم کول فاسد او ناجائز دي.

ها! د اوبو په ژيانو کي بيع سَلم جائز ده، که څه هم ژی په کشولو او غوړولو سره غوړيږي او زياتي اوبه پکښي راځي، او په کنبېکاږلو سره ننوځي او کمي اوبه پکښي راځي؛ د دې د جواز دليل د خلکو تعامل دی، ځکه د خلکو عمل او رواج دا دی چي هغوی په ژيانو سره اوبه رانيسي او خرڅوي او هيڅ جنګ او نزاع مينځ ته نه راځي، نو ځکه په هغوی کي بيع سَلم صحيح او جائز ده.

## د معيّن ځای او علاقې په غله او مېوه کي د بيع سَلم حکم

قَالَ: وَلَا فِيْ طَعَامِ قَرْيَةٍ بِعَيْنِهَا أَوْ ثَمَرَةِ نَخْلَةٍ بِعَيْنِهَا فرمايي: او د يو مُتعيّن کلي [غلاقې] په غله يا د مُتعيّني درختي په مېوه کي [هم] بيع سَلم جائز نه ده لِأَنَّهُ قَدْ يَعْتَرِيْهِ آفَةٌ ځکه چي ځيني وخت به پر هغه يو آفت واقع سي فَلَا يَقْدِرُ عَلَى التَّسْلِيْمِ نو عاقد به د هغه پر ورسپارلو قادر نه وي وَإِلَيْهِ أَشَارَ عليه السلام حَيْثُ قَالَ او د همدې وطرف ته رسول الله ﷺ اشاره کړې ده چي هغه فرمايلي دي «أَرَأَيْتَ[1] لَوْ

[1] تخريج: أخرجه أبو داؤد بمعناه، باب في السلم في ثمرة بعينها، حديث رقم:۳۴۶۷. وابن ماجه، باب إذا أسلم في نخل بعينه لم يطلع، حديث رقم:۲۲۸۴. وسنن البيهقي، باب لا يجوز السلف حتى يكون بصفة معلومة لا تتعلق بعين، ج:۶، ص:۴۰، حديث رقم:۱۱۱۱۲.

أَذْهَبَ اللهُ تَعَالَى الثَّمَرَ بِمَ يَسْتَحِلُّ أَحَدُكُمْ مَالَ أَخِيهِ ﴾ او ګورئ! که الله تعالیٰ مېوه ضايع کړي نو په تاسي کي به څوک د کوم شي په عوض کي د خپل ورور مال [ځان ته] حلال کړي وَلَوْ كَانَتِ النِّسْبَةُ إِلَى قَرْيَةٍ لِبَيَانِ الصِّفَةِ او که چيري د کلي [علاقې] وطرف ته نسبت کول د صفت بيانولو لپاره وي لَا بَأْسَ بِهِ نو [بيا] په دې کي څه حرج نسته عَلَى مَا قَالُوا لکه څرنګه چي فقهاؤ ويلي دي كَالْخُشْمُرَانِيِّ بِبُخَارَا وَالْبِسَاخِيِّ بِفَرْغَانَةَ لکه په بخارا کي خشمرانی غنم او په فرغانه کي بساخي غنم.

**اللغات:** ﴿قرية﴾ غټ کلی، قصبه، سيمه (علاقه)، ﴿يعتري﴾ د افتعال مضارع ده: پيښېدل، ﴿أذهب﴾ د افعال ماضي ده: بېول، ضايع کول (ختمول)، ﴿يستحلّ﴾ د استفعال مضارع ده: حلال ګڼل، حلال کول (حلال ګرځول)، ﴿خشمرانی، بساخي﴾ د غنمو ښه قسمونه دي او د خشمران او بساخ وطرف ته منسوب دي، لکه زموږ په سيمو کي چي شنډوخاني د انګورو يو ښه قسم دی کوم چي د کندهار ښار ته منسوب دي.

**تشريح: صورتِ د مسئلې:** دا دی چي د يو مُتعيّن ځای او مُتعيّني علاقې په غله کي يا د يو مُتعيّن باغ يا درختي په مېوه کي بيع سَلم کول جائز نه دي، مثلاً يو عاقد داسي ووايي چي زه ستا سره خاص د هلمند په غنمو کي بيع سَلم کوم يا د خالد د باغ په ميوه کي يا د خالد د فلانکی درختي په مېوه کي بيع سَلم کوم، نو دا جائز نه دي.

- دليل دا دی چي ځيني وخت د مُتعيّن ځای پر غلې يا د مُتعيّن باغ او درختي پر مېوې آسماني آفت راسي او هغه تباه کړي، او د هغه مخصوص ځای غله يا د مخصوص باغ او درختي مېوه له خلګو څخه منقطع سي او په بازار کي نه پيدا کيږي، نو ځکه په دې صورت کي به مسلم اليه د مسلم فيه پر ورسپارلو قادر نه وي، او په کوم صورت کي چي مسلم اليه د مسلم فيه پر ورسپارلو قادر نه وي په هغه صورت کي بيع سَلم نه جائز کيږي؛ نو ځکه به د مُتعيّن ځای په غله کي يا د مُتعيّن باغ او درختي په مېوه کي بيع سَلم جائز نه وي، رسول الله ﷺ په دې فرمان سره همدې طرف ته اشاره کړې ده: "أَرَأَيْتَ لَوْ أَذْهَبَ اللهُ تَعَالَى... إلخ"، پوره حديث داسي دی: "سُئِلَ (النبي ﷺ) عَنِ السَّلَمِ فِي ثَمَرِ فُلَانٍ. فَقَالَ أَمَّا مِنْ ثَمَرِ حَائِطِ فُلَانٍ فَلَا. أَرَأَيْتَ لَوْ أَذْهَبَ اللهُ الثَّمَرَ بِمَ يَسْتَحِلُّ أَحَدُكُمْ مَالَ أَخِيهِ" (يعني له نبي ﷺ د فلانکي سړي په مېوه کي د بيع سَلم کولو په هکله پوښتنه وسوه، نو نبي ﷺ وفرمايل چي ورورہ! د فلانکي (متعيّن سړي) د باغ په مېوه کي خو بيع سَلم جائز نه ده، ځکه که الله

تعالیٰ د هغه مېوه ضایع کړي نو په تاسو کي به يو کس د کوم شي په ذریعه د خپل ورور مال ځان ته حلال کړي؟)، (حَائِط په عربي ژبه کي باغ ته هم وايي. المعجم الوسيط). د حديث حاصل دا دی چي د متعين سړي د باغ په مېوه کي بيع سَلم جائز نه ده؛ ځکه چي کېدای شي چي د هغه باغ مېوه د يو آسماني آفت په وجه ضايع سي، نو مسلم اليه به د خپل ورور يعني د ربُ السَلم رأسُ المال د کوم شي په عوض کي ځان ته حلال کړي، يعني کله چي هغه مُتعيّنه مېوه هلاکه سي او ربُ السَلم ته حاصله نه سي نو د مسلم اليه لپاره به رأسُ المال څنګه حلال وي!. له دې حديث څخه دا هم ثابتيږي چي د يو مُتعين ځای په غله کي يا د مُتعيّني درختي په مېوه کي بيع سَلم جائز نه ده.

ولوكانت إلخ: او که د يو ځای او علاقې وطرف ته نسبت کول د صفت بيانولو په غرض سره وي (يعني که د صفت او ښه والي په غرض سره غله او مېوه د يو علاقې وطرف ته منسوبه کړل سي) مثلاً کندهاري انار چي کله ذکر کړی سي نو له هغه څخه خاص کندهار مراد نه وي بلکي مطلب يې دا وي چي د کندهاري انارو په څېر ښه انار، برابره ده هغه په کندهار کي پيدا سوي وي او که په بل ځای کي پيدا سوي وي. لهذا که د ځای او علاقې وطرف ته نسبت محض د صفت بيانولو لپاره وي نو په دې کي هيڅ حرج نسته، يعني په دې صورت کي بيع سَلم جائز ده، مثلاً يو څوک داسي ووايي چي د بخارا په خشمراني غنمو کي بيع سَلم کوم، يا د فرغانه په بساخي انګورو کي بيع سَلم کوم. نو دا صحيح او جائز دي؛ ځکه چي په صفت بيانولو سره عَين شی مقصود نه وي بلکي ښه والي او خوندر والي مطلوب وي. يعني ربُ السَلم د خشمراني او بساخي غنمو په څېر ښه غنم غواړي، نه خاص د خشمران او بساخ غنم، او څرنګه چي د هغه په څېر غنم پيدا کول او ترلاسه کول ممکن او آسانه دي، نو ځکه په دې صورت کي به بيع سَلم جائز وي.

## د بيع سَلم شرطونه

قَالَ: وَلَا يَصِحُّ السَّلَمُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِلَّا بِسَبْعِ شَرَائِطَ فرمايي: او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بيع سَلم له اوو شرطونو څخه بغير نه صحيح کيږي: جِنْسٌ مَعْلُومٌ كَقَوْلِنَا: حِنْطَةٌ أَوْ شَعِيرٌ (۱) [د مسلم فيه] جنس به معلوم وي لکه زموږ دا قول: غنم يا اوربشي وَنَوْعٌ مَعْلُومٌ كَقَوْلِنَا: سَقِيَّةٌ أَوْ بَخْسِيَّةٌ (۲) او نوع به [يې] معلومه وي لکه زموږ دا قول: عامو اوبو والا [غنم] يا باراني اوبو والا وَصِفَةٌ مَعْلُومَةٌ كَقَوْلِنَا: جَيِّدٌ أَوْ رَدِيءٌ (۳) صفت به [يې] معلوم وي لکه زموږ دا قول: ښه يا خراب وَمِقْدَارٌ مَعْلُومٌ كَقَوْلِنَا

كَذَا كَيْلًا بِمِكْيَالٍ مَعْرُوْفٍ أَوْ كَذَا وَزْنًا (۴) مقدار به [يې] معلوم وي لکه زموږ دا قول: په مشهوره پېمانه سره به دومره کيله وي، يا دومره وزن والا به وي وَأَجَلٌ مَعْلُوْمٌ (۵) او ميعاد به [يې] معلوم وي وَالْأَصْلُ فِيهِ مَا رَوَيْنَا او په هکله اصل هغه حديث دی کوم چې موږ روايت کړی دی وَالْفِقْهُ فِيهِ مَا بَيَّنَّا او په دې کې حکمت [او عقلي دليل] هغه دی کوم چې موږ [مخکې] بيان کړی دی.

**اللغات:** ﴿سقيّة﴾ هغه کښت او کښتي کوم چې د ځمکې په اوبو (عامو اوبو) سره اوبه کړل سوې او راشنه سوې وي، ﴿بخسيّة﴾ هغه کښت او کښتي کوم چې صرف د باران په اوبو سره راشنه سوې وي، ﴿كيل﴾ پېمانه، پېمانه کول، ﴿أجل﴾ ټاکل سوی مودت، ميعاد.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د بيع سَلم د صحت (صحيح کېدلو) لپاره اووه (۷) شرطونه دي (يعني که دا اُوه شرطونه موجود سي نو بيع سَلم صحيح کيږي)، له هغوی څخه پنځه شرطونه د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په مېنځ کې متفق عليه دي او پاته دوه مختلف فيه دي.

① ... اول شرط دا دی چې د مسلم فيه جنس به معلوم وي، يعني د مسلم فيه جنس به بيانوي چې مثلاً غنم يا اوربشي.

② ... دويم شرط دا دی چې د مسلم فيه نوع او قسم به معلوم وي، چې د ځمکې په اوبو سره اوبه کړل سوي غنم، يا صرف د باران په اوبو سره اوبه کړل سوي غنم.

③ ... درېيم شرط دا دی چې د مسلم فيه صفت به معلوم وي، چې ښه (جيد) غنم يا خراب (ردي) غنم يا د مېنځوی درجې غنم.

④ ... څلورم شرط دا دی چې د هغه مقدار به معلوم وي، چې شل منه غنم يا څلوېښت قفيزه غنم يا لس ګونې غنم. مطلب دا چې په کومه پېمانه يا وزن سره چې مسلم فيه ټاکل سوی وي هغه پېمانه يا وزن به په خلګو کې مشهور او په بازار کې رواج وي (لکه زموږ په زمانه کې چې من او سېر معلوم وزنونه دي).

⑤ ... پنځم شرط دا دی چې د مسلم فيه د اداء کولو (ورسپارلو) ميعاد به معلوم وي، چې مثلاً غنم په يوه مياشت کې اداء کوم، يا يې په پنځه مياشتو کې اداء کوم.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د دغو شرطونو په هکله اصل او بنياد هغه حديث دی کوم چې مخکې څو ځله ذکر سوی دی، يعني مَنْ أَسْلَمَ مِنْكُمْ فَلْيُسْلِمْ فِيْ كَيْلٍ مَعْلُوْمٍ وَوَزْنٍ مَعْلُوْمٍ إِلَى

أَجَلٍ مَعْلُوْمٍ"، په دې حديث كي كه څه هم صراحتاً دوه شرطونه "معلوم مقدار او معلوم ميعاد" ذكر سوي دي لېكن دلالتاً (په دلالة النص سره) پاته شرطونه هم ثابت او ښكاره دي. نو ځكه هغوى به هم په دې ضمن كي راځي او د بيع سَلَم د صحت لپاره به شرط وي. او په دې باره كي حكمت او عقلي دليل هم مخكي تېر سوى دى چي د داسي شيانو په نشتوالي سره مُفضي الى النزاع جهالت پيدا كيږي، او كوم جهالت چي مُفضي الى النزاع وي هغه بيع فاسدوي. نو ځكه د بيع سَلَم د صحت او جواز لپاره دا شرطونه ضروري دي.

## د بيع سَلَم ما بقي مختلف فيه شرطونه

وَمَعْرِفَةُ مِقْدَارِ رَأْسِ الْمَالِ إِذَا كَانَ يَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ عَلٰى مِقْدَارِهٖ (۶) او د رأسُ المال مقدار به معلوم وي [په دې شرط] كله چي عقد سَلَم د هغه د مقدار سره متعلق وي كَالْمَكِيْلِ وَالْمَوْزُوْنِ وَالْمَعْدُوْدِ لكه مكيلي كېدل، موزوني كېدل او معدودي كېدل وَتَسْمِيَةُ الْمَكَانِ الَّذِىْ يُوْفِيْهِ فِيْهِ إِذَا كَانَ لَهٗ حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ (۷) او د هغه ځاى بيانول [متعين كول] چي په هغه كي مسلم اليه مسلم فيه اداء كوي كله چي د مسلم فيه لپاره بوج او خرچه [أجرت] وي [يعني كله چي مسلم فيه بار والا او أجرت والا شى وي. مطلب دا چي مسلم فيه داسي دروند شى وي چي له يوه ځاى شخه بل ځاى ته په أجرت سره وړل كيږي او خرچه پر لګيږي] وَقَالَا●: لَا يَحْتَاجُ إِلٰى تَسْمِيَةِ رَأْسِ الْمَالِ إِذَا كَانَ مُعَيَّنًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د رأسُ المال بيانولو [متعين كولو] ته ضرورت نسته كله چي رأسُ المال مُتعين وي وَلَا إِلٰى مَكَانِ التَّسْلِيْمِ او نه [د مسلم فيه] د ورسپارلو د ځاى بيانولو ته ضرورت سته وَيُسَلِّمُهٗ فِىْ مَوْضِعِ الْعَقْدِ [بلكي] مسلم اليه به د عقد په ځاى كي مسلم فيه ورسپاري فَهَاتَانِ مَسْأَلَتَانِ نو دا دوې مسئلې دي وَلَهُمَا فِى الْأُوْلٰى: أَنَّ الْمَقْصُوْدَ يَحْصُلُ بِالْإِشَارَةِ او په اوله مسئله كي د صاحبينو دليل دا دى: چي [دلته] په اشاره سره مقصود حاصليږي فَأَشْبَهَ الثَّمَنَ وَالْأُجْرَةَ نو دا د ثمن او أُجرت سره مشابه سو وَصَارَ كَالثَّوْبِ او د كپړې په څېر سو وَلِأَبِىْ حَنِيْفَةَ: أَنَّهٗ رُبَّمَا يُوْجَدُ بَعْضُهَا زُيُوْفًا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي ځيني وخت بعضي دراهم كوټه [جعلي] وخيږي وَلَا يُسْتَبْدَلُ فِى الْمَجْلِسِ او په هغه مجلس كي بدل نه كړل سي فَلَوْلَمْ يَعْلَمْ قَدْرَهٗ نو كه

● القول الراجح: قول ابى حنيفة رَحِمَهُ الله فى كلتا المسالتين، كما ذكر فى رد المحتار (ج:۴، ص:۲۳۰، ۲۳۱)، والهندية (ج:۳، ص ۱۷۸)، والحاشية (ج:۲، ص:۳۳۳). [القول الراجح ج:۲، ص:۷۸]

چیري [اوس] د رأس المال مقدار معلوم نه وي لَا يَدْرِیْ فِي كَمْ بَقِيَ نو دا به معلومه نه وي چي [بیع سَلم د مسلم فیه] په څومره مقدار کي پاته ده [یعني کله چي د پوره رأسُ المال مقدار معلوم نه وي نو دا به هم نه معلومیږي چي بیع سَلم په څومره مسلم فیه کي پاته ده] أَوْ رُبَّمَا لَا يَقْدِرُ عَلٰى تَحْصِيْلِ الْمُسْلَمِ فِيْهِ یا ځیني وخت هغه [مسلم إلیه] د مسلم فیه پر حاصلولو نه قادر کیږي فَيَحْتَاجُ إِلٰى رَدِّ رَأْسِ الْمَالِ نو هغه د رأسُ المال واپس کولو ته مجبوره وي وَالْمَوْهُوْمُ فِي هٰذَا الْعَقْدِ كَالْمُتَحَقِّقِ او په دې عقد [بیع سلم] کي موهوم شی د متحقق [موجود] شي په څېر دی لِشَرْعِهِ مَعَ الْمُنَافِيْ ځکه چي دغه عقد د منافي باوجود مشروع دی بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ رَأْسُ الْمَالِ ثَوْبًا په خلاف د هغه صورت کله چي رأسُ المال تان وي لِأَنَّ الذَّرْعَ وَصْفٌ فِيْهِ لَا يَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ عَلٰى مِقْدَارِهِ ځکه چي په تان کي ګزیو وصف دی [او] عقد د هغه د مقدار سره متعلق نه وي وَمِنْ فُرُوْعِهِ إِذَا أَسْلَمَ فِي جِنْسَيْنِ وَلَمْ يُبَيِّنْ رَأْسَ مَالِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا او د دې له فروعو څخه یو دا مسئله ده چي کله [یو څوک] په دوو جنسونو کي بیع سَلم وکړي او په هغوی کي د هر یوه رأسُ المال بیان نه کړي أَوْ أَسْلَمَ جِنْسَيْنِ وَلَمْ يُبَيِّنْ مِقْدَارَ أَحَدِهِمَا یا د دوو جنسونو بیع سَلم وکړي او په هغوی کي د یوه مقدار بیان نه کړي.

**اللغات**: ﴿رأس المال﴾ په بیع سَلم کي قیمت او ثمن ته "راس المال" وایي، او په مطلق بیع کي قیمت ته "ثمن" وایي، او په اجاره کي قیمت ته "أجرت" (کرایه او مزدوري) وایي. ﴿عقد﴾ معامله، تړون. ﴿تسمیة﴾ د تفعیل مصدر دی: نومول، ذکر کول (بیانول)، مُتعین کول (ټاکل). ﴿یوفی﴾ د افعال مضارع ده، أَوْفٰى يُوْفِيْ إِيْفَاءً: (حق) پوره کول، اداء کول (پوره اداء کول). ﴿حمل﴾ بار، بوج. ﴿مؤنة﴾ خرچه (خرڅه)، اخرجات، لګښت. ﴿ثمن﴾ قیمت. ﴿زیوف﴾ جمع د زَيْفٌ ده: کوټه (ناچله)، جعلي، ردي.

**تشریح**: په دې عبارت کي هغه دوه شرطونه بیان سوي دي چي په هغه کي د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله اختلاف دی.

① ... له هغوی څخه اول شرط دا دی چي که چیري د عقد تعلق د رأسُ المال د مقدار سره وي په دې توګه چي رأسُ المال د مکیلاتو له قبیلې څخه وي. یا د موزوناتو له قبیلې څخه وي. یا د معدودات

متقاربه وو له قبيلې څخه وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په کَيل يا وزن يا عدد سره د هغه مقدار معلومول او مُتعيّن کول ضروري دي که څه هم د رأسُ المال وطرف ته اشاره سوې وي (يعني که څه هم د عقد په وخت کي د رأسُ المال وطرف ته اشاره وسي بيا هم په کَيل يا وزن يا عدد سره د هغه مقدار معلومول ضروري دي). همدا د امام مالک، امام احمد او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله مسلک دی.

②... دويم شرط دا دی چي که چيري مسلم فيه داسي درونـد شی وي چي کـه لـه يـوه ځـای څخه يـې انسان بل ځای ته منتقل کوي نو خرچه پر لګيږي (يعني له يوه ځايه بل ځای ته په خرچه او اُجرت سره وړل کيږي)، نو د امام صاحب په نېز د هغه ځای بيانول او مُتعيّن کول هم ضروري دي چيري چي مُسلم اليه ربُ السَلَم ته مسلم فيه ورسپاري.

د دې په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي که د رأسُ المال وطرف ته اشاره سوې وي يعني په اشاره سره مُتعيّن سوی وي نو بيا د هغه مقدار بيانول ضروري نه دي. همدارنګه د مسلم فيه د ورسپارلو د ځای بيانول او مُتعيّن کول هم ضروري نه دي، بلکي مسلم اليه ته پکار دي چي په کوم ځای کي د سَلم عقد (بيع سلم) سوې وي هلته دي مسلم فيه ور وسپاري.

د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په مينځ کي دغه دوې مسئلې مختلف فيه ده.

**د صاحبينو دليـــل:** په اوله مسئله کي د صاحبـينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي د رأسُ المال د مقدار مُتعيّن کولو او معلومولو مقصد دا وي چي ربُ السَلَم د رأسُ المال پر ورسپارلو قادر سي او په آساني سره رأسُ المال ور وسپاري، او دغه مقصود په هغه وخت کي هم حاصليږي کله چي د اشارې په ذريعه رأسُ المال مُتعيّن کړی سي (يعني صرف د هغه وطرف ته اشاره وسي)، لهذا کله چي په اشارې سره دا مقصود حاصليږي نو د کَيل يا وزن يا عدد په ذريعه د رأسُ المال د مقدار مُتعيّن کولو ته ضرورت پاتـه نه سو. او دا داسي ده لکه ثمن او اُجرت، يعني څرنګه چي په بيع کي صرف د ثمن وطرف ته اشاره کول کافي دي او د ثمـن مقدار بيـانول ضروري نه دي، او څرنګـه چي په اجاره کـي صرف د اُجرت وطرف ته اشاره کول کافي دي، همداسي به د رأسُ المال وطرف تـه اشاره کـول هم کـافي وي او د هغه د مقدار بيانول به ضروري نه وي. همدارنګه دا داسي ده لکه د کپړې تان، يعني کـه د تـان وطرف تـه اشاره وسي او هغه رأسُ المال وګرځول سي لېکن د هغه د ګزونو مقدار بيان نه کړی سي نو دا جائز دي (يعني په دې صورت کي بيع سَلم جائز کيږي)، نو همداسي که مکيلي يا موزوني يا معدودي شی په اشاره سره مُتعيّن کړی سي او رأسُ المال وګرځول سي نو دا به هم جائز وي که څه هم په کَيل يا وزن يا عدد سره د هغه مقدار بيان نه کړی سي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې د رأس المال د مقدار مجهول والی د مسلم فيه جهالت لره مستلزم دی. په دې توګه چې مسلم اليه د رأس المال ثمن په کراره. کراره خرچوي (خوري). نو ځيني وخت داسي وسي چې د څه رأس المال تر خرچولو (خوړلو) وروسته بعضي دراهم کوټه (جعلي) وخيږي، او دا په هغه مجلس کي بدل نه شول سي يعني په کوم مجلس کي چې مسلم اليه کوټه دراهم رب السلم ته واپس کړي د هغه په بدله کي له رب السلم څخه نور کره (اصلي) دراهم نه واخلي. نو اوس ښکاره خبره ده چې کوم دراهم کوټه (جعلي) ختلي دي د هغوی په اندازه بيع سلم فاسديږي. او څرنګه چې د ټوله رأس المال مقدار معلوم نه دی نو ځکه دا هم معلومېدای نه سي چې کوټه دراهم د رأس المال څومره حصه ده؟ نصف حصه. که دريمه حصه او که څلورمه حصه. او کله چې دا معلومېدای نه سي نو دا به هم نه معلوميږي چې بيع سلم په څومره مسلم فيه کي پاته ده او په څومره کي نه ده پاته. او ښکاره خبره ده چې په دې سره د مسلم فيه مقدار مجهول سو، او د مسلم فيه د مقدار مجهول والی بالاتفاق بيع سلم فاسدوي. نو ځکه په دې صورت کي به بيع سلم فاسديږي.

د دې په خلاف که د رأس المال مقدار معلوم وي، مجهول نه وي نو بيا د کوټه (جعلي) دراهمو په وزن کولو سره دا معلوميږي چې بيع سلم په څومره مسلم فيه کي پاته ده او په څومره کي نه ده پاته. مثلاً که رأس المال يو سېر (يو کيلو) دراهم وي او بيا د څه دراهمو تر خرچولو وروسته په هغوی کي څه دراهم کوټه وخيږي. نو دا کوټه دراهم دي وزن کړل سي. نو که کوټه دراهم نيم سېر وي نو معلومه سوه چې کره (اصلي) دراهم هم نيم سېر دي يعني د ټوله رأس المال نيمه حصه ده. نو د نصف مسلم فيه بيع به فسخ سي او په پاته نصف مسلم فيه کي به بيع سلم پاته وي. نو څرنګه چې د رأس المال د مقدار معلومېدلو په صورت کي د مسلم فيه مجهول کېدل نه لازميږي (يعني کله چې د رأس المال مقدار معلوم وي نو مسلم فيه مجهوله نه وي) نو ځکه په دې صورت کي به بيع سلم صحيح وي، او څرنګه چې د رأس المال د مقدار په مجهول کېدلو سره د مسلم فيه مجهول کېدل لازميږي. نو ځکه په دې صورت کي به بيع فاسديږي.

(د وَلَا يَسْتَبْدِلُ فِي الْمَجْلِسِ څخه دا خبره معلوميږي چې که مسلم اليه د کوټه (جعلي) دراهمو په بدله کي له رب السلم څخه په هغه مجلس کي کره (اصلي) دراهم واخلي په کوم مجلس کي چې يې کوټه دراهم رب السلم ته واپس کړي وي. نو بيع سلم نه فاسديږي. حال دا چې داسي نه ده. بلکي د دې تفصيل دا دی چې که نصف دراهمو يا له نصف څخه کم دراهم کوټه وخيږي نو په کوم مجلس کي چې هغه رب السلم ته واپس کړل سي که چيري په هغه مجلس کي له رب السلم څخه د کوټه دراهمو په بدل کي کره دراهم واخيستل سي. نو بالاتفاق د حنفيانو په نيز بيع سلم صحيح کيږي. لېکن که له نصف څخه زيات دراهم کوټه وخيږي او بيا هغه رب السلم ته واپس کړل سي او په هغه

مجلس کي کره دراهم څني واخيستل سي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز بيع سلم نه صحيح کيږي بلکي فاسديږي، ځکه چي امام صاحب رحمه الله له نصف څخه په زيات رأسُ المال کي استبدال جائز نه ګرځوي. لیکن د صاحبینو رحمهما الله په نيز په دې صورت کي هم بيع سلم جائز کيږي).

**وربما لا يقدر إلخ:** دويمه د فساد وجه دا ده چي مسلم اليه ځيني وخت د مسلم فيه له حاصلولو څخه عاجزه سي. نو په داسي صورت کي پر مسلم اليه د رأسُ المال واپس کول ضروري وي. او ښکاره خبره ده چي کله د رأس المال مقدار مجهول وي نو د رأسُ المال واپس کول به هم متعذر (ناممکن) وي، او کله چي د مسلم فيه له اداء کولو څخه د عاجز والي په صورت کي د مجهول المقدار رأس المال واپس کول متعذر کيږي نو ضروري ده چي د رأسُ المال مقدار به معلوم وي. او کله چي د رأس المال د مقدار معلومېدل ضروري دي (په دې غرض چي د عاجزوالي صورت کي د هغه واپس کول ممکن وي). نو ځکه د مقدار د مجهول کېدلو (مجهول والي) په صورت کي به بيع سَلم فاسديږي.

که چيري څوک دا اعتراض وکړي چي د رأسُ المال ځيني دراهم کوټه (جعلي) ختل يا د مسلم اليه د مسلم فيه له حاصلولو څخه عاجزه کېدل يو موهوم (شکمن) امر دی. او موهوم امر معتبر نه دي خصوصاً په داسي ځای کي چي د هغه مدار په رخصت باندي وي. او د بيع سَلم مدار په رخصت باندي دی نو ځکه په بيع سَلم کي به د موهوم امر اعتبار نه کيږي، او کله چي دغه موهوم امر معتبر نه دی نو د رأس المال د مقدار په مجهول والي سره به بيع سَلم هم نه فاسديږي.

د دې اعتراض جواب دا دی چي په بيع سَلم کي موهوم امر د متحقق امر (او موجود امر) په څېر دی. ځکه چي بيع سَلم خلاف القياس د بيع د منافي شي باوجود مشروع سوې ده، ځکه چي په بيع سلم کي مسلم فيه يعني مبيع معدومه (ناموجوده) وي او د مبيع معدوم کېدل د جواز منافي دي، او کوم شی چي خلاف القياس مشروع وي په هغه کي احتياط واجب وي. نو ځکه په بيع سَلم کي موهوم امر احتياطاً د متحقق او موجود امر په څېر وګرځول سو او بيع سلم فاسده کړل سوه.

**بخلاف إذا كان رأس المال إلخ:** په دې سره د صاحبينو د قياس "وصف کلثوب" جواب ورکوي. د جواب حاصل دا دی چي رأس المال که چيري د کپړې داسي تان وي چي د هغه د ګزونو مقدار معلوم نه وي نو بيع سلم ځکه جائز کيږي چي په کپړه کي ګز يو وصف دی چي عقد (بيع سلم) د هغه د مقدار سره تعلق نه لري همدا وجه ده که چيري ګزونه له بيان سوي مقدار څخه زيات وخيږي. نو زياتوب (زائد ګزونه) د مشتري کيږي او که چيري کم وخيږي نو د هغوی د کمېدلو په وجه ثمن نه کمول کيږي. لنډه دا چي د ګزونو د مقدار سره عقد تعلق نه لري. او زموږ کلام په داسي رأس المال کي دی چي عقد د هغه د مقدار سره تعلق لري. او د کپړې تان داسي نه دی. نو ځکه د کپړې پر تان قياس کول قياس مع الفارق دی.

ومن فروعه إلك: فرمايي چي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په مينځ کيَ د اختلاف له فروعو څخه يوه دا مسئله ده چي که څوک د سلو دراهمو بيع سَلم په يوه کُر غنمو او يوه کُر اوربشو کي وکړي يعني يو کُر غنم او يو کُر اوربشي مسلم فيه وګرځوي او سل دراهم رأسُ المال وګرځوي، او د هر يوه لپاره رأسُ المال جلا، جلا بيان نه کړي (يعني د غنم او اوربشو لپاره جلا، جلا رأسُ المال بيان نه کړي)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا بيع سَلم نه جائز کيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز جائز کيږي.

د امام صاحب دليل دا دی چي سل دراهم به د قيمت په اعتبار سره پر غنمو او اوربشو تقسيمول کيږي، او څرنګه چي د قيمت معرفت په اندازه سره کيږي (يعني د هر يوه لپاره د رأسُ المال نه بيانولو په صورت کي د هر يوه قيمت صرف په اندازه او اټکل سره معلومېدای سي)، لهذا په دې دواړو کي به د هر يوه د رأسُ المال مقدار پوره معلوم نه وي، نو ځکه به بيع سَلم نه جائز کيږي.

د صاحبينو دليل دا دی چي د عَين شي وطرف ته اشاره کول د عقد د جواز لپاره کافي وي، او اشاره دلته موجود سوه (يعني دلته دراهمو ته اشاره سوې ده)، نو ځکه به په دې صورت کي بيع سَلم جائز کيږي.

همدارنګه که څوک د دوو جنسونو بيع سَلم وکړي او په هغوی کي د يوه مقدار بيان نه کړي، مثلاً ربُ السَلم داسي ووايي چي "زه ستا سره د دې لسو درهمو او د دې دنانيرو بيع سَلم په يوه کُر غنمو کي کوم". (دلته د دراهمو مقدار معلوم دی لېکن د بل يوه يعني د دنانيرو مقدار معلوم نه دی) نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز داسي بيع سَلم هم نه جائز کيږي. ځکه کله چي د يوه مقدار مجهول دی (يعني د دنانيرو مقدار مجهول دی) نو د هغه د حصې مُطابق بيع سَلم باطليږي. او کله چي د هغه په حصه کي بيع سَلم باطله سوه نو د بل يوه (يعني د دراهمو) په حصه کي به هم بيع سَلم باطليږي: ځکه چي صفقه يوه ده (يعني څرنګه چي دلته عقد او صفقه يوه ده نو ځکه د يوه رأسُ المال د مقدار په مجهول کېدلو سره به ټوله عقد او ټوله صفقه باطليږي).

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا بيع سَلم جائز کيږي: ځکه چي اشاره موجوده سوه، په دې توګه چي ربُ السَلم داسي ووېل چي "زه ستا سره د دې لسو درهمو او د دې دنانير...الخ"، او څه مخکي تېر سوه چي د عقد د جواز لپاره د عَين شي وطرف ته اشاره کول کافي دي.

## د ورسپارلو د ځای (مقام التسليم) د متعيّنوالي شرط

وَلَهُمَا فِي الثَّانِيَةِ: أَنَّ مَكَانَ الْعَقْدِ يَتَعَيَّنُ لِوُجُوْدِ الْعَقْدِ الْمُوْجِبِ لِلتَّسْلِيْمِ او په دويمه مسئله کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي [د ورسپارلو لپاره به] د عقد ځای په دې وجه مُتعيَّن کيږي ځکه چي [دلته] هغه عقد موجود سو کوم چي [د عقد په ځای کي] د ورسپارلو واجبونکی دی وَلِأَنَّهُ لَا يُزَاحِمُهُ مَكَانٌ آخَرُ فِيهِ او په دې وجه [هم] چي بل ځای د دغه ځای مزاحم [مقابل] نه دی [يعني د عقد د

ځاى په مقابله كې بل هيڅ ځاى هم نسته] فَيَصِيرُ نَظِيرُ أَوَّلِ أَوْقَاتِ الْإِمْكَانِ فِي الْأَوَامِرِ نو ځكه دا به په اوامرو [عباداتو] د امكان د اول وخت په شان وګرځي وَصَارَ كَالْقَرْضِ وَالْغَصْبِ او دا د قرض او غصب په شان سو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ التَّسْلِيمَ غَيْرُ وَاجِبٍ فِي الْحَالِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې [څرنګه په بيع سَلم كې] في الحاله [د مسلم فيه] ورسپارل واجب نه دي فَلَا يَتَعَيَّنُ نو ځكه به د عقد ځاى نه مُتعيّن كيږي بِخِلَافِ الْقَرْضِ وَالْغَصْبِ په خلاف د قرض او غصب وَإِذَا لَمْ يَتَعَيَّنْ فَالْجَهَالَةُ فِيهِ تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ او كله چې د عقد ځاى مُتعيّن نه سو نو د هغه جهالت به جنګ [او اختلاف] ته رسونكي وي [يعني د نزاع سبب به وګرځي] لِأَنَّ قِيَمَ الْأَشْيَاءِ تَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمَكَانِ ځكه چې د شيانو قيمتونه د ځاى په بدلېدلو سره بدليږي فَلَا بُدَّ مِنَ الْبَيَانِ نو ځكه [د ورسپارلو د ځاى] بيانول به ضروري وي وَصَارَ كَجَهَالَةِ الصِّفَةِ او دا د صفت د مجهول والي [مجهول كېدلو] په شان سو.

**اللغات**: ﴿لا يزاحم﴾ د مفاعلې د باب نفي صيغه ده: مزاحم كېدل، مقابل كېدل، تنګي كول، نژدې كېدل، ﴿نظير﴾ مثل، مشابه، ﴿إمكان﴾ د افعال مصدر دى: ممكن كېدل، پر يو شي قادر كېدل، ﴿تختلف﴾ د افتعال مضارع ده: مختلف كېدل، بدلېدل.

**تشريح**: مخكې ذكر سوه چې د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په مينځ كې دويم مختلف فيه شرط دا وو چې د مسلم فيه د ورسپارلو (اداء كولو) ځاى بيانول او مُتعيّن كول هم ضروري دي لېكن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا ضروري نه دي.

**د صاحبينو دليل**: دا دى چې د مسلم فيه ورسپارل د عقدِ سَلم په وجه واجبيږي (يعني بيع سَلم موجب للتسليم ده)، او هغه دلته موجود سو (يعني بيع سَلم دلته منعقد سوې ده)، لهذا په كوم ځاى كې چې عقد موجب للتسليم موجود سوى او واقع سوى وي صرف په هغه ځاى كې به د مسلم فيه ورسپارل واجب وي، او كله چې صرف د عقد په ځاى كې د مسلم فيه ورسپارل واجب سو، نو ځكه د سلم د ورسپارلو لپاره به د بل ځاى مُتعيّن كول او بيانول ضروري نه وي. د دې مثال دا دى لكه مشتري چې په يو علاقه كې مُتعيّن غنم رانيسي نو پر بائع مشتري ته د غنمو ورسپارل صرف په هغه ځاى كې لازم دي چيري چې هغه پر مشتري غنم خرڅ كړي وي، نو همداسې به دلته به هم په كوم ځاى كې چې عقد سَلم (بيع سلم) واقع سوې وي صرف په هغه ځاى كې به پر مسلم اليه د مسلم فيه ورسپارل لازم وي.

دویم دلیل دا دی چي مسلم فیه چي په کوم ځای (مقام) کي هم اداء کړل سي (ورسپارل سي) نو هغه اداء کیږي، او په دې سلسله کي هیڅ ځای (مقام) لره پر بل ځای ترجیح نسته بلکي د مسلم فیه په اداء کولو (ورسپارلو) کي ټوله ځایونه برابر دي. ها! څرنګه چي د عقد ځای لره د عقد په وجه ترجیح حاصله ده، او د هغه هیڅ مزاحم هم نسته، نو ځکه په دې حواله سره به هم د عقد په ځای کي د مسلم فیه ورسپارل ضروري وي، او د هغه لپاره به د بل ځای مُتعیّن کول او بیانول ضروري نه وي.

او د دې مثال دا دی لکه په اوامرو او عباداتو کي اول وخت، یعني څرنګه چي په عباداتو کي اول وخت د عبادت د نفس وجوب سبب دی (مثلا محض چي وخت داخل سي نو انسان لمونځ کولای سي)، ځکه چي د اول وخت بل هیڅ وخت مزاحم نه وي، نو څرنګه چي دلته هم د عقد د ځای بل هیڅ مزاحم ځای نسته، نو ځکه صرف په هغه ځای کي به د مسلم فیه ورسپارل واجب وي. او د دې بل مثال قرض او غصب دی، یعني څرنګه چي د قرض د اداء کولو لپاره د قرض خپل ځای مُتعیّن دی او د مغصوب مال د اداء کولو لپاره د غصب خپل ځای مُتعیّن دی، همداسې به د مسلم فیه د اداء کولو (ورسپارلو) لپاره هم د عقد سَلم ځای مُتعیّن وي.

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چي څرنګه په بیع سَلم کي اجل او میعاد شرط دی، نو ځکه په هغه کي في الحاله یعني د بیع سَلم کولو (عقد سلم) په وخت کي د مسلم فیه ورسپارل واجب نه وي بلکي د میعاد پوره کېدلو په وخت کي د هغه ورسپارل واجبیږي، او هر هغه شی چي د هغه في الحاله ورسپارل واجب نه وي، د هغه د ورسپارلو لپاره د عقد ځای (مقام) نه مُتعیّن کیږي، نو ثابته سوه چي د مسلم فیه د ورسپارلو لپاره د عقد ځای مُتعیّن نه دی.

بخلاف القرض إلخ: په خلاف د قرض او غصب، ځکه چي په قرض او غصب کي في الحاله ورسپارل واجب دي، همدا وجه ده چي په قرض کي په میعاد ټاکلو سره میعاد نه ټاکل کیږي بلکي که قرض غوښتونکی (قرضخواه) فوراً د قرض واپس کولو مطالبه وکړي (چي ما ته خپل قرض راکړه!) نو پر مقرض په هغه وخت کي او پر هغه ځای د قرض واپس کول ضروري دي. او پاته سو غصب نو په هغه کي تر غصبولو وروسته فوراً د مغصوب شي واپس کول واجب دي. لنډه دا چي کله په قرض او غصب کي في الحاله ورسپارل واجب دي، نو ځکه د قرض او مغصوب شي د واپس کولو او ورسپارلو لپاره به د قرض او غصب خپل ځای مُتعین وي. او څرنګه چي په بیع سَلم کي في الحاله د مسلم فیه ورسپارل واجب نه دي، نو ځکه د مسلم فیه د ورسپارلو لپاره به د عقد ځای مُتعیّن نه وي، او کله چي د مسلم د ورسپارلو لپاره د عقد ځای مُتعیّن نه دی نو ورسپارلو د ځای (مقام) د مجهول والي په وجه به په آخر کي (د ربّ السلم او مسلم إلیه تر مینځ) جنګ او نزاع پیدا سي، ځکه چي د ځای (مقام) په بدلېدلو

سره د شيانو قيمتونه هم بدليږي، لهذا ربُ السَلم به په داسي ځاى کې د مسلم فيه مطالبه کوي چي هلته د مسلم فيه قيمت زيات او ګران وي، او مسلم اليه به هغه ته په داسي ځاى کي مسلم فيه ورسپاري چي هلته د مسلم فيه قيمت ډېر کم وي. او دا داسي سو لکه د مسلم فيه صفت چي مجهول وي، يعني څرنګه چي د مسلم فيه د صفت د مجهول والي په صورت کي د صفت په بدلېدلو سره قيمت بدليږي، همداسي د ځاى په بدلېدلو سره هم قيمت بدليږي . او د صفت د مجهول والي په صورت کي بيع سَلم نه جائز کيږي، نو همداسي به د ورسپارلو د ځاى (مقام) د مجهول والي په صورت کي هم بيع سَلم نه جائز کيږي، او کله چي د ورسپارلو د ځاى په مجهول کېدلو سره بيع سَلم نه جائز کيږي، نو ځکه د مسلم فيه د ورسپارلو لپاره به د ځاى (مقام) مُتعيّن کول او بيانول ضروري وي.

## د ورسپارلو په ځاى (مقامُ التسليم) کي د اختلاف راتللو صورت

وَعَنْ هٰذَا قَالَ مَنْ قَالَ مِنَ الْمَشَايِخِ: أَنَّ الِاخْتِلَافَ فِيهِ عِنْدَهُ يُوجِبُ التَّحَالُفَ او له همدې کبله [په همدې وجه] له مشايخو څخه ځينو ويلي دي: چي د مسلم فيه په ځاى کي اختلاف کول د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تحالف [يو د بل څخه قسم اخيستل] واجبوي كَمَا فِي الصِّفَةِ لکه په صفت کي چي کيږي وَقِيلَ: عَلَى عَكْسِهِ او ويل سوي دي: چي حکم د دې برعکس دى لِأَنَّ تَعَيُّنَ الْمَكَانِ قَضِيَّةُ الْعَقْدِ عِنْدَهُمَا ځکه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د ځاى مُتعيّن کېدل د عقد مقتضا ده وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ الثَّمَنُ وَالْأُجْرَةُ وَالْقِسْمَةُ او ثمن، اُجرت او تقسيم [وېش] هم پر دغه اختلاف دي وَصُورَتُهَا: إِذَا اقْتَسَمَا دَارًا وَجَعَلَا مَعَ نَصِيبِ أَحَدِهِمَا شَيْئًا لَهُ حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ او د تقسيم صورت دا دی: چي کله دوه خلک مشترک کور [په خپل مينځ کي] تقسيم کړي او دوی د يوه شريک په حصه کي داسي شی شامل کړي کوم چي بار والا او خرڅې [اُجرت] والا وي وَقِيلَ: لَا يُشْتَرَطُ ذٰلِكَ فِي الثَّمَنِ او ويل سوي دي: چي د ثمن په صورت کي دا [د ځاى بيانول] شرط نه دي وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ يُشْتَرَطُ إِذَا كَانَ مُؤَجَّلًا [لېکن] صحيح دا ده چي [د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز] دا شرط دي کله چي ثمن ميعادي وي [يعني په دې شرط کله چي ثمن قرض وي او د هغه لپاره ميعاد ټاکل سوى وي] وَهُوَ اخْتِيَارُ شَمْسِ الْأَئِمَّةِ السَّرَخْسِيِّ او همدا د شمس الائمه رَحِمَهُ الله اختيار کړی سوی قول دی وَعِنْدَهُمَا يَتَعَيَّنُ مَكَانُ الدَّارِ

وَمَكَانُ تَسْلِيْمِ الدَّابَّةِ لِلْإِيْفَاءِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د اداء اورسپارلو لپاره د کور ځاى او د څاروي ورسپارلو ځاى مُتعين كيږي.

**اللغات**: ﴿تحالف﴾ د تفاعل مصدر دی: په خپل مينځ كي يو د بل څخه قسم اخيستل (يو تربله قسم اخيستل). ﴿قضيّة﴾ مقتضا، تقاضا. ﴿القسمة﴾ تقسيم، وېش. ﴿لصيب﴾ حصه، برخه. ﴿دابة﴾ څاروى، سپارلي. ﴿إيفاء﴾ (حق) پوره كول، اداء كول.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي څرنګه د ځاى او مقام په بدلېدلو سره قيمت هم بدليږي نو له همدې كبله ځيني مشايخو ويلي دي چي د مسلم فيه د ورسپارلو په ځاى كي د ربُ السَلم او مسلم اليه اختلاف د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تحالف واجبوي، يعني كه ربُ السَلم دا دعوىٰ كوي چي د مسلم فيه د اداء كولو لپاره كندهار مُتعيّن سوى وو، او مسلم اليه دا دعوىٰ كوي چي زابل مُتعيّن سوى وو، او د يوه سره هم ګواه موجود نه وي، نو په داسي صورت كي به له دواړو څخه قسم اخيستل كيږي. نو كه په دوی كي يو قسم واخلي او بل يو انكار وكړي نو د انكار كونكي (منكر) په خلاف به فيصله كيږي، او كه دواړه قسمونه واخلي نو بيع سَلم به فسخ كيږي. لكه څرنګه چي د بيع سَلم د احد البدلين (احدُ العوضَين) په صفت كي د عاقدَينو د اختلاف په صورت كي پر دواړو قسم واجبيږي (يعني لكه څرنګه چي په هغه وخت كي هم قسم واجبيږي، كله چي ربُ السلم او مسلم إليه په رأسُ المال يا مسلم فيه كي اختلاف وكړي).

لېكن څرنګه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د عقد ځاى د مسلم فيه د اداء كولو لپاره مُتعيَّن دی، نو ځكه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا اختلاف تحالف نه واجبوي بلكي د مسلم اليه قول به معتبر وي.

وقيل على عكسه إلخ: فرمايي د ځينو مشايخو رايه دا ده چي دا اختلاف د امام صاحب په نېز تحالف نه واجبوي او د صاحبينو په نېز يې واجبوي او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به د مسلم اليه قول معتبر وي.

د دې روايت مطابق د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي د مسلم فيه د اداء كولو لپاره د عقد ځاى (مقام) مُتعيَن كېدل دا د عقد سَلم مقتضا ده. نو ځكه د مسلم فيه اداء كولو په ځاى كي اختلاف كول داسي دي لكه په خودي عقد سَلم كي اختلاف كول، او په خودي عقد كي اختلاف كول بالاجماع تحالف واجبوي. نو ځكه د مسلم فيه اداء كولو په ځاى كي اختلاف كول به هم تحالف واجبوي.

او د دې روایت مطابق د امام صاحب دلیل دا دی چې څرنګه چې د مسلم فیه اداء کولو د ځای (مقام) مُتعیّن کېدل د عقد مقتضا نه ده، نو ځکه دا د میعاد په درجه کې سو. او په میعاد کې د عاقدینو اختلاف کول تحالف نه واجبوي، نو ځکه د مسلم فیه اداء کولو په ځای کې اختلاف کول به هم تحالف نه واجبوي بلکې د مسلم الیه قول به معتبر وي.

وعلی هٰذا الخلاف إلخ: همدا اختلاف په ثمن، اُجرت او تقسیم (وېش) کې هم دی. د ثمن صورت دا دی چې که یو سړی د لس منه غنمو په عوض کې یو ځای (مکان) په قرض رانیسي، یعنې د لس منه غنمو د اداء کولو (ورسپارلو) لپاره مثلاً دوې میاشتې میعاد وټاکي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د لس منه غنمو د اداء کولو (ورسپارلو) ځای بیانول او مُتعیّن کول ضروري دي، لهذا که هغه سړی د اداء کولو ځای بیان کړي نو جائز دي، کنې جائز نه دي.

د اُجرت (اجارې) صورت دا دی چې که څوک د دوه منه غنمو په عوض کې یو ځای (مکان) په کرایه ونیسي یا مثلاً آس په کرایه ونیسي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز (د غنمو) د اداء کولو ځای بیانول او مُتعیّن کول ضروري دي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د هغه بیانول او مُتعیّن کول ضروري نه دي، بلکې پر کوم ځای چې د کرایې مکان دی خاص هغه ځای د دوه منه غنمو د ورسپارلو لپاره مُتعیّن دی، او چیرې چې آس ور وسپارې خاص پر هغه ځای دې د اُجرت دوه منه غنم اداء کړي.

او د تقسیم (وېش) صورت دا دی چې که یو کور یا دوکان د دوو خلکو په مینځ کې مشترک وي او بیا هغوی دا مشترک کور (یا دوکان) په خپل مینځ کې تقسیم کړي (وېش وکړي)، او په دوی کې دیوه شریک په حصه کې داسې درونه شی راسي چې هغه په خرچه او اُجرت سره بل ځای ته وړل کیږي او منتقل کیږي (مثلا دیوه شریک په حصه کې لس منه وریجې راسئ)، نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د اداء کولو ځای مُتعیّن کول او بیانول ضروري دي (چې دا وریجې به په کوم ځای کې ور کوي د هغه ځای مُتعیّن کول ضروري دي) کنې تقسیم فاسدیږي، لیکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د هغه ځای مُتعیّن کول ضروري نه دي بلکې د دوی په نیز هغه ځای مُتعیّن کیږي چیرې چې تقسیم سوی وي (یعنې خاص د وېش او تقسیم په ځای کې د هغه اداء کول واجب دي).

وقیل إلخ: ځینې مشائخو ویلي دي چې د ثمن په صورت کې بالاجماع د اداء کولو ځای بیانول شرط او ضروري نه دي. لیکن صحیح دا ده چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د ثمن اداء کولو ځای بیانول

شرط دي. په دې شرط چې ثمن ميعادي قرض وي، او هغه داسې درونډ شی وي چې په خرڅه او اُجرت سره منتقل کيږي، همدا قول شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله اختيار کړی دی. (أشرف الهدايه)

وعندهما يتعيّن الخ: د دې عبارت تعلق د کور تقسيمولو او د اُجرت (اجارې) سره دی. يعني د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز چې د کور تقسيم چيرې سوی وي هلته دې هغه (درونډ) شی ور وسپارې کوم چې د يوه شريک په حصه کې راغلی دی، او چيرې چې مالک ته آس ورسپارې په هغه ځای کې دې اُجرت (دوه منه غنم) اداء کړي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: وَمَا لَمْ يَكُنْ لَهُ حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ او د کوم شي لپاره چې بوج او خرچه نه وي [يعني کوم شی چې بار والا او خرچې (اُجرت) والا نه وي بلکې سپک کوچنی شی وي] لَا يَحْتَاجُ فِيهِ إِلَى بَيَانِ مَكَانِ الْإِيفَاءِ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاجماع د هغه د اداء کولو د ځای بيانول [متعيّن کول] ضروري نه دي لِأَنَّهُ لَا تَخْتَلِفُ قِيمَتُهُ ځکه چې د هغه [سپک کوچني شي] قيمت نه بدليږي وَيُوَفِّيهِ فِي الْمَكَانِ الَّذِي أَسْلَمَ فِيهِ او دا شی به مسلم اليه په هغه ځای کې اداء کوي چې په هغه کې يې عقدِ سَلم کړی وي قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: وَهٰذِهِ رِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ وَالْبُيُوعِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا د جامع صغير او د مبسوط د کتاب البيوع روايت دی وَذَكَرَ فِي الْإِجَارَاتِ أَنَّهُ يُوَفِّيهِ فِي أَيِّ مَكَانٍ شَاءَ او د مبسوط په کتاب الاجارات کې امام محمد رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چې په کوم ځای کې مسلم اليه وغواړي دا شی [مسلم فيه] اداء کولای سي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا زيات صحيح دی لِأَنَّ الْأَمَاكِنَ كُلَّهَا سَوَاءٌ ځکه چې ځايونه ټول سره برابر دي وَلَا وُجُوبَ فِي الْحَالِ او في الحاله وجوب [هم] نسته [يعني اداء کول (ورسپارل) في الحاله واجب هم نه دي] وَلَوْ عَيَّنَا مَكَانًا او که چيرې ربُ السَلم او مسلم اليه دواړه يو ځای مُتعيّن کړي قِيلَ: لَا يَتَعَيَّنُ نو ويل سوي دي: چې هغه نه مُتعيّن کيږي لِأَنَّهُ لَا يُفِيدُ ځکه چې مُتعيّن کول اتعيين] هيڅ فايده نه کوي وَقِيلَ[①]: يَتَعَيَّنُ او ويل سوي دي: چې هغه مُتعيّن کيږي لِأَنَّهُ يُفِيدُ

① القول الراجح هو ... (يعني يتعيّن)، كما ذكر في الدر المختار... وهو الأصح (ج:۴. ص:۲۳۱)، وكذا في البحر ... (ج:... ص:۱۶۲) [... القول الراجح ج:۲، ص:۷۹]

سُقُوْطَ خَطَرِ الطَّرِيْقِ ځکه چې دا مُتعيّن کول [تعيين] د لارې د خطرې د ساقطېدلو فايده ورکوي وَلَوْ عَيَّنَ الْمِصْرَ فِيمَا لَهُ حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ او که چيرې [يو ښوک] د بار والا او خرچې [اُجرت] والا شي لپاره يو ښار مُتعيّن کړي يُكْتَفٰى بِهِ نو پر هغه به اکتفاء کيږي لِأَنَّهُ مَعَ تَبَايُنِ أَطْرَافِهِ كَبُقْعَةٍ وَاحِدَةٍ فِيمَا ذَكَرْنَا ځکه چې ښار له خپلو اطرافو څخه د جلا کېدلو باوجود زموږ په ذکر سوي صورت کې د يوه ځای [موضع واحد] په څېر دی.

**اللغات:** ﴿حمل﴾ بار، بوج، ﴿مؤنة﴾ خرچه، اخراجات، لګښت، مصرف، ﴿إيفاء﴾ د افعال مصدر دی: پوره کول، اداء کول، ﴿عيّنا﴾ د تفعيل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: مُتعيّن کول (معلومول)، ټاکل، مقرر کول، ﴿مصر﴾ ښار، ﴿تباين﴾ د تفاعل مصدر دی: يو له بل څخه جلا کېدل (عليحده کېدل)، ﴿بقعة﴾ ځای، د ځمکي ټوکړه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيري مسلم فيه ډېر درونډ شی نه وي او له يوه ځای څخه بل ځای ته په خرچه او اُجرت سره نه وړل کيږي (يعني پر وړلو او منتقل کولو يې خرچه نه لګيږي)، د مثال په توګه مسلم فيه لږ عطر وي، يا زعفران، يا کافور وي، نو د هغه د ورسپارلو لپاره بالاجماع يو ځای مُتعيّن کول واجب نه دي؛ ځکه چې د داسي سپک او کوچني شي قيمت د ځای په بدلېدلو سره نه بدليږي، بلکې د هغه په حق کې ټوله ځايونه برابر دي. پاته سوه دا خبره چې کله د داسي مسلم فيه د ورسپارلو لپاره د ځای مُتعيّن کول واجب نه دي، نو آيا د دې مسلم فيه د اداء کولو لپاره به د عقد ځای مُتعيّن کيږي، که نه؟ په دې باره کې دوه روايتونه دي: د جامع صغير او د مبسوط د کتاب البيوع روايت دا دی چې د عقد ځای به مُتعيّن کيږي، يعني چيري عقد سَلم واقع سوی وي په هغه ځای کې به مسلم فيه ور سپاري؛ ځکه چې همدا د عقد ځای د التزام ځای دی، يعني مسلم اليه په همدې ځای کې پر خپل ځان د مسلم فيه ورسپارل لازم کړي دي چيري چې عقد سَلم واقع سوی دی. نو ځکه همدې ځای ته به پر نورو ځايونو ترجيح ورکول کيږي. او د مبسوط د کتاب الاجارات روايت دا دی چې د مسلم فيه د اداء کولو لپاره به د عقد ځای نه مُتعيّن کيږي، بلکې چيري چې د مسلم فيه زړه وغواړي هلته دې يې ور وسپاري، او همدا زيات صحيح روايت دی؛ ځکه کوم شی چې دومره سپک او کوچنی وي چې په خرچه او اُجرت سره نه وړل کيږي نو د ځای په بدلېدلو سره د هغه قيمت نه بدليږي، او د هغه په حق کې ټوله ځايونه برابر وي، او کله چې ټوله ځايونه برابر دي، نو ځکه د دې مسلم فيه د اداء کولو لپاره به د عقد ځای يا بل ځای نه مُتعيّن کيږي.

ولا وجوب في الحال إلخ: دا د جامع صغير او د مبسوط د كتاب البيوع د روايت جواب دی، د جواب حاصل دا دی چې موږ هم دا تسليموو چې مسلم اليه د عقد په ځای کې پر خپل ځان د مسلم فيه ورسپارل لازم کړي دي، لېکن څرنګه چې (په بيع سَلم کې) في الحاله د هغه ورسپارل واجب نه دي، نو ځکه به د ورسپارلو لپاره د عقد ځای نه مُتعيّن کيږي.

ولوعيّنا إلخ: فرمايي چې که مسلم فيه بار والا او اُجرت والا شی نه وي (يعني سپک کوچنی شی وي)، او په دې صورت کې د هغه د سپارلو (اداء کولو) لپاره ربُ السَلم او مسلم اليه دواړه (په اتفاق سره) يو ځای مُتعيّن کړي، نو آيا هغه ځای به مُتعيّن کيږي، او که نه به مُتعيّن کيږي؟ په دې باره کې دوه روايتونه دي: يو روايت دا دی چې نه به مُتعيّن کيږي؛ ځکه کله چې مسلم فيه داسې سپک کوچنی شی دی چې هغه په خرچه او اُجرت سره نه وړل کيږي نو د هغه د ورسپارلو لپاره به د يو ځای د مُتعيّن کولو هيڅ فايده نه وي، او کله چې د ځای د مُتعيّن کولو هيڅ فايده نسته، نو هغه به په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي هم نه.

دويم روايت دا دی چې د ربُ السَلم او مسلم اليه په (اتفاقا) مُتعيّن کولو سره د ورسپارلو ځای مُتعيّن کيږي، او همدا روايت زيات صحيح دی؛ ځکه چې د مُتعيّن کولو فايده د ربُ السَلم په حق کې ښکاره کيږي، په دې توګه چې د ربُ السَلم څخه به د لارې خطره ساقطه سي. د مثال په توګه يو ځای داسې وي چې د هغه په لاره کې د غلو او ډاکوګانو خطره وي او د مسلم فيه د غلا کېدلو ېره وي، او بل ځای په امن وي او په هغه کې دا خطره او ېره نه وي، نو څرنګه چې په داسې صورت کې د ورسپارلو لپاره (د أمن والا) د ځای په مُتعيّن کولو سره د لارې خطره ليرې کيږي، نو ځکه د دغه فايدې په خاطر به (د دې مسلم فيه) د ورسپارلو ځای په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي.

ولوعيّن المصر إلخ: فرمايي که چيرې مسلم فيه د بار او اُجرت والا (يعني درونــد) شی وي او د هغه د ورسپارلو لپاره يو ښار مُتعيّن کړی سي، مثلاً ربُ السَلم د مسلم فيه د ورسپارلو لپاره د کندهار ښار مُتعيّن کړی نو دا صحيح دي، او صرف د ښار تعيين کافي دي او د ښار محله (کلی) او کوڅه مُتعيّن کول شرط نه دي؛ ځکه که څه هم په يو ښار کې ډېر محلې او اطراف وي، لېکن څرنګه چې د هغه په محلو او اطرافو کې د شيانو په قيمتونو کې فرق او اختلاف نه وي او ټوله په يوه قيمت وي، نو ځکه صرف د ښار تعيين کافي دی د محلې او طرف مُتعيّن کول شرط نه دي؛ ځکه د هغه ټوله محلې او اطراف د يوه ځای په څېر دي، لهذا په کوم طرف او محله کې چې يې ور وسپاري، جائز دي. صاحب د کتاب په "فيما ذکرنا" سره د همدې قيمتونو وطرف ته اشاره کړې ده.

## په بیع سَلم کې پر رأسُ المال قبضه کول ضروري دي

قَالَ: وَلَا يَصِحُّ السَّلَمُ حَتّٰى يَقْبِضَ رَأْسَ الْمَالِ قَبْلَ أَنْ يُفَارِقَهُ فِيهِ فرمايي: او بيع سَلم نه صحيح کيږي تر دې چې [د عقد] په مجلس کې له جلا کېدلو څخه مخکې مسلم اليه پر رأسُ المال قبضه وکړي [يعني د عقد له مجلس څخه د عاقدَينو تر جلا کېدلو مخکې پر رأسُ المال د مسلم إليه قبضه ضروري ده] أَمَّا إِذَا كَانَ مِنَ النُّقُودِ هر چې کله رأسُ المال د نقودو له قبيلې څخه وي فَلِأَنَّهُ افْتِرَاقٌ عَنْ دَيْنٍ بِدَيْنٍ نو ځکه [قبضه ضروري ده] چې دا له دَين بدَين څخه جلا کېدل دي [يعني په دې صورت کې قرض د قرض په بدله کې جلا کيږي، يعني دا د قرض په عوض کې د قرض بيع ده] وَقَدْ نَهَى النَّبِيُّ ﷺ عَنِ الْكَالِئِ بِالْكَالِئِ [1] حال دا چې نبي ﷺ د قرض په عوض کې د قرض له بيع څخه منع کړې ده وَإِنْ كَانَ عَيْنًا فَلِأَنَّ السَّلَمَ أَخْذُ عَاجِلٍ بِآجِلٍ او که چيرې رأسُ المال عَين وي [يعني دِ اعيانو له قبيلې څخه وي] نو ځکه [قبضه ضروري ده] چې بيع سَلم د مؤجل په عوض کې د معجل اخيستل دي إِذِ الْإِسْلَامُ وَالْإِسْلَافُ يُنْبِئَانِ عَنِ التَّعْجِيلِ ځکه چې سَلم او سلف کول د في الحاله [فوراً] کولو خبر ورکوي فَلَا بُدَّ مِنْ قَبْضِ أَحَدِ الْعِوَضَيْنِ لِيَتَحَقَّقَ مَعْنَى الِاسْمِ نو ځکه په دواړو عوضونو کې پر يوه عوض قبضه کول ضروري دي چې [د سَلم او سلف] د لفظ معنیٰ ثابته سي وَلِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ تَسْلِيمِ رَأْسِ الْمَالِ او ځکه چې د رأسُ المال ورسپارل ضروري دي لِيَتَقَلَّبَ الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ فِيهِ فَيَقْدِرُ عَلَى التَّسْلِيمِ د دې لپاره چې مسلم اليه په هغه کې تصرف وکړي او [په تصرّف کولو سره] د مسلم فيه پر ورسپارلو قادر سي وَلِهٰذَا قُلْنَا: لَا يَصِحُّ السَّلَمُ إِذَا كَانَ فِيهِ خِيَارُ الشَّرْطِ لَهُمَا أَوْ لِأَحَدِهِمَا او له همدې کبله موږ وويل: چې که په بيع سَلم کې د دواړو عاقدَينو لپاره يا په دوی کې د يوه لپاره خيارِ شرط وي نو بيع سَلم نه صحيح کيږي لِأَنَّهُ يَمْنَعُ تَمَامَ الْقَبْضِ ځکه چې خيارِ شرط د قبضې پوره کېدل منع کوي [يعني خيارِ شرط د قبضې له پوره والي څخه مانع دی] لِكَوْنِهِ مَانِعًا مِنَ الِانْعِقَادِ فِي حَقِّ الْحُكْمِ ځکه چې خيارِ شرط د حکم په حق کې [د عقد] له منعقد کېدلو څخه مانع وي [مطلب دا چې خيارِ شرط د حکم له منعقد

---

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب البيوع، حديث رقم: ۳۰۴۲.

تر منع دی [نو عقد به نه جائز وي - ابن] ... شخه مانع دی | وَكَذَا لَا يَثْبُتُ فِيهِ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ او همدارنګه په بيع سَلم کي خيارِ رؤيت [هم] نه ثابتيږي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُفِيدٍ ځکه چي خيارِ رؤيت [په بيع سَلم کي] فايده کونکي نه دی بِخِلَافِ خِيَارِ الْعَيْبِ په خلاف د خيار عيب لِأَنَّهُ لَا يَمْنَعُ تَمَامَ الْقَبْضِ ځکه چي هغه د قبضې پوره کېدل نه منع کوي وَلَوْ أَسْقَطَ خِيَارَ الشَّرْطِ قَبْلَ الِافْتِرَاقِ او که چيري "من له الخيار" [له مجلس شخه] تر جلا کېدلو مخکي خيار شرط ساقط کړي وَرَأْسُ الْمَالِ قَائِمٌ او رأسُ المال موجود وي جَازَ نو عقد جائز کيږي خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله وَقَدْ مَرَّ نَظِيرُهُ او د دې مثال مخکي تېر سوی دی.

**اللغات**: ﴿يفارق﴾ د مفاعلې مضارع ده: جلا کېدل. عليحده کېدل. ﴿نقود﴾ جمع د نَقْد ده: دراهم او دنانير. ﴿دين بدين﴾ د قرض بيع په قرض سره (د قرض په عوض کي د قرض بيع). ﴿كالئ﴾ قرض. پور. ﴿عاجل﴾ تلوار کونکی. ژر اداء کېدولو والا. نغد. ﴿آجل﴾ وروستنی. قرض والا. وروسته اداء کېدلو والا ﴿يتقلّب﴾ د تفعّل مضارع ده: په يو شي کي خپل د خوښې مطابق تصرف کول. صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف کړی دی: تَقَلَّبَ فِي الْأَمْرِ: أَيْ تَصَرَّفَ فِيهَا كَيْفَ شَاءَ. (معجم الوسيط. ج ۲ ص ۷۵۳)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د عقد له مجلس شخه د عاقدينو تر جلا کېدلو مخکي پر رأسُ المال د مسلم فيه قبضه کول ضروري دي. يعني عقد سلم (بيع سلم) هغه وخت صحيح کيږي کله چي د عقد له مجلس شخه د ربّ السلم او مسلم اليه دواړو تر ولاړېدلو (جلا کېدلو) مخکي. مخکي مسلم اليه په رأسُ المال باندي قبضه وکړي: ځکه چي رأسُ المال له دوو حالتونو شخه خالي نه دی، يا به هغه د نقودو له قبيلې شخه وي يعني دراهم او دنانير به وي. يا به د اعيانو له قبيلې شخه وي يعني کپړه. شاروی او داسي نور به وي. که چيري اول حالت وي نو په دې صورت کي به "دَيْن بِدَيْن" يعني د قرض بيع د قرض په عوض کي راسي. ځکه کله چي پر رأسُ المال د عقد په مجلس کي قبضه نه وسي نو رأسُ المال به هم (د نقد نه بدلو په وجه) دين وي او مسلم فيه به هم دين وي (يعني مسلم فيه د مسلم إليه پر ذمه دين وي)، نو دا د دَين په عوض کي د دَين بيع سوه. يعني د قرض په عوض کي د قرض بيع سوه. حال دا چي رسول الله ﷺ د "كَالِئِ بِالْكَالِئِ" يعني د قرض په عوض کي د قرض له بيع شخه منع کړې ده. همدا د امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُ الله قول دی. نو ثابته سوه چي که چيري رأسُ المال نقد (دراهم يا دنانير) وي نو د عقد په مجلس کي پر هغه قبضه کول ضروري دي.

او که دويم حالت وي يعني رأسُ المال د اعيانو له قبيلې څخه وي (يعني يو مُعين شی وي لکه کېږه)، نو د عقد په مجلس کي ځکه قبضه کول ضروري دي چي د سَلم معنیٰ ده ''د مؤجل په عوض معجل کي اخيستل''، يعني په بيع سَلم کي رأسُ المال معجل وي او فوراً اداء کيږي. او مسلم فيه مؤجل (په قرض) وي او وروسته اداء کيږي؛ او د دې وجه دا ده چي د سلم، سلف، اسلام او اسلاف په لفظ کي لغتا د تعجيل معنیٰ موجوده ده. او څرنګه چي په شرعي احکامو کي د لغوي معنیٰ رعايت کيږي، نو ځکه د لفظ سَلم او اسلام د لغوي معنیٰ ثابتولو لپاره پر احدُ العوضين (يوه عوض) فوراً قبضه کول ضروري دي. او څرنګه چي دا خبره تسليم سوې ده چي مسلم فيه ميعادي وي يعني په قرض وي، نو ځکه پر بل عوض يعني پر رأسُ المال به د عقد په مجلس کي دننه قبضه کول ضروري وي.

**دويم دليل**: د دويم دليل له وضاحت څخه مخکي تاسو دوې خبري په ياد لرئ! : يوه دا چي بيع سلم د مسلم اليه د افلاس (غريب والي) په وجه مشروع سوې ده (يعني بيع سلم د غريبانو او مفلسانو د ضرورت پوره کولو لپاره مشروع سوې ده)، او دويمه خبره دا چي د بيع سلم د جواز لپاره د مسلم فيه پر ورسپارلو د مسلم اليه قادر کېدل ضروري دي. نو له دغه دوو خبرو څخه ښکاره سوه چي د عقد په مجلس کي پر رأسُ المال د مسلم اليه قبضه کول ضروري دي چي غريب مسلم اليه په رأس المال کي تصرف وکړي او د مسلم فيه پر ورسپارلو قادر سي.

ولهذا قلنا إلخ: څرنګه چي د عقد په مجلس کي پر رأسُ المال قبضه کول ضروري دي نو ځکه موږ وايو چي که په بيع سَلم کي د ربُ السَلم او مسلم اليه دواړو لپاره يا د يوه لپاره د خيار شرط لګول سوی وي (يعني په دوی کي يوه يا دواړو خيار شرط اخيستی وي)، نو بيع سَلم نه صحيح کيږي؛ ځکه موږ وويل چي په بيع سلم کي پر رأسُ المال په مجلس کي قبضه کول ضروري دي. حال دا چي خيار شرط د قبضې له پوره کېدلو (تماميت) څخه مانع دی. او هغه ځکه د قبضې له پوره کېدلو څخه مانع دی چي د خيار شرط په وجه د عقد حکم يعني ملکيت نه ثابتيږي. همدا وجه ده که په بيع کي د دواړو عاقدَينو لپاره خيار شرط وي نو د مشتري ملکيت په مبيع کي او د بائع ملکيت په ثمن کي نه ثابتيږي (يعني مشتري د مبيع او بائع د ثمن نه مالک کيږي). لهذا کله چي د خيار شرط په صورت کي مسلم اليه د رأسُ المال مالک نه سو، نو پر رأسُ المال به د هغه قبضه هم پوره (تام) نه وي، او کله چي پر رأسُ المال د مسلم اليه پوره قبضه نه وسوه، نو هغه به په رأسُ المال کي تصرف هم نه سي کولای نو په دې وجه به هغه د مسلم فيه پر ورسپارلو قادر هم نه سي، حال دا چي د مسلم فيه پر ورسپارلو قادر کېدل ضروري دي.

وكذا إلخ: فرمايي څرنګه چي په بيع سَلم كي خيارِ شرط صحيح نه دى، همداسي په هغه كي خيارِ رؤيت هم نه صحيح كيږي او نه ثابتيږي؛ ځكه چي خيارِ رؤيت مفيد نه دى (يعني په بيع سَلم كي د خيارِ رؤيت هيڅ فايده نشته)؛ ځكه چي د خيارِ رؤيت مقصد او فايده دا ده چي مشتري (ربُ السلم) چي كله مبيع (مسلم فيه) وويني او د هغه مبيع خوښه نه سي نو بيع دي فسخ كړي، او دا تاسو ته معلومه ده چي په بيع سَلم كي مسلم فيه د مسلم اليه پر ذمه دَين وي، لهذا كله چي مسلم اليه ربُ السَلم ته مسلم فيه وسپاري او ربُ السَلم د خيارِ رؤيت پر بناء هغه واپس كړي، نو مسلم فيه به د مسلم اليه پر ذمه بيا ثابت سي (يعني د مسلم إليه پر ذمه به بيا دَين وګرځي)، اوس كه مسلم اليه دويم ځل بل مسلم فيه ور وسپاري، نو د ربُ السَلم لپاره به په هغه كي هم خيارِ رؤيت حاصل سي، نو كه ربُ السَلم د خيارِ رؤيت پر بناء دا هم و مسلم اليه ته واپس كړي، نو د مسلم اليه پر ذمه به بيا ثابت سي، اوس كه دريم ځل بيا مسلم اليه ربُ السَلم ته بل مسَلم فيه ور وسپاري نو ربُ السَلم ته به په هغه كي هم خيارِ رؤيت حاصل سي (ځكه چي د هغه لپاره خيارِ رؤيت ثابت دى نو ځكه هر وخت او هر ځل به هغه ته خيارِ رؤيت حاصليږي)، نو كه ربُ السَلم د خيارِ رؤيت پر بناء دا هم واپس كړي نو مسلم فيه به بيا د مسلم اليه پر ذمه ثابت سي، لنډه دا چي په لا متناهي توګه چي ربُ السَلم كومه مسلم فيه هم اخلي په هغه كي به د ده لپاره خيارِ رؤيت ثابتيږي، او د خيارِ رؤيت پر بناء د مسلم فيه د واپس كولو په صورت كي به د هغه په مثل كي د ده حق ثابتيږي (يعني پر مسلم إليه به بل مسلم فيه وركول لازم وي)، نو په دې توګه به بيع سَلم هيڅكله هم نه فسخ كيږي بلكي تر قيامته به دا سلسله روانه وي، او كله چي د خيارِ رؤيت په وجه بيع سَلم نه سي فسخ كېداى نو د خيارِ رؤيت هيڅ فايده به نه ښكاره كيږي، ځكه چي د خيارِ رؤيت فايده همدا ده چي كه د "من له الخيار" مبيع خوښه نه سي نو بيع دي فسخ كړي، او كله چي په بيع سَلم كي د خيارِ رؤيت هيڅ فايده نشته، نو ځكه په بيع سَلم كي به خيارِ رؤيت نه ثابتيږي.

بخلاف خيار العيب إلخ: فرمايي چي په بيع سَلم كي خيار عيب صحيح كيږي او ثابتيږي، يعني په مسلم فيه كي ربُ السَلم لره خيارِ عيب حاصليږي؛ ځكه چي خيارِ عيب د قبضې له پوره كېدلو (تمليت) څخه مانع نه دى، او خيارِ عيب د قبضې له پوره كېدلو څخه ځكه مانع نه دى چي د قبضې پوره كېدل د صفقې (عقد) د پوره كېدلو سره متعلق دي، او د صفقې پوره كېدل موقوف دي د عاقدينو د رضا پر پوره كېدلو، او د بيع سَلم كولو په وخت كي د عاقدينو رضا موجوده ده، نو ځكه صفقه به هم تام (پوره) وي، او كله چي صفقه تام ده نو قبضه به هم تام وي، او كله چي پر رأسُ المال د مسلم اليه قبضه تام سوه، نو د خيارِ عيب حاصلېدلو باوجود به هم بيع سَلم صحيح كيږي.

ولوأسقط إلخ: څرنګه چې مخکې تېر سوه چې د خيار شرط سره بيع سَلم نه صحيح کيږي يعني که د يو عاقد لپاره د خيار شرط لګول سوی وي نو بيع سَلم نه صحيح کيږي. لېکن که په دې صورت کې هغه عاقد (من له الخيار) له مجلس څخه تر جلا کېدلو مخکې خپل خيار ساقط کړي او رأسُ المال د مسلم اليه سره موجود وي، نو زموږ په نيز دا بيع سَلم صحيح کيږي، او که چيرې رأسُ المال د مسلم اليه سره نه وي بلکې ضايع سوی وي (مثلا هغه خرچ کړی وي) نو بالاجماع دا بيع سَلم نه صحيح کيږي. امام زفر، امام شافعي او مام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې که څه هم د رأسُ المال د موجودېدلو په صورت کې هغه خيار ساقط کړي نو بيا هم بيع سَلم نه صحيح کيږي. او د دې مثال او دليل مخکې په باب البيع الفاسد کې ذکر سول. او هغه دا چې که څوک تر مجهول مودت پورې يو شی په قرض خرڅ کړي لېکن بيا بائع او مشتري دواړه هغه مودت ساقط کړي نو زموږ په نيز دا عقد جائز ګرځي په دې شرط چې مبيع د مشتري سره موجوده وي. او د امام زفر، امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز دا عقد جائز نه ګرځي، همدغه اختلاف په بيع سَلم کې هم دی.

## د بيع سَلم د ټولو شرطونو خلاصه

وَجُمْلَةُ الشُّرُوطِ جَمَعُوْهَا فِي قَوْلِهِمْ او د بيع سَلم ټوله شرطونه مشائخو رَحِمَهُمُ الله په خپل دې قول کې جمع کړي دي إِعْلَامُ رَأْسِ الْمَالِ (۱) [مسلم إليه] په رأسُ المال خبرول [اګاه کول] وَتَعْجِيلُهُ (۲) او رأسُ المال في الحاله [فوراً] ورکول وَإِعْلَامُ الْمُسْلَمِ فِيْهِ (۳) او [ربُ السلم] په مسلم فيه خبرول وَتَأْجِيلُهُ او (۴) او د مسلم فيه لپاره ميعاد ټاکل وَبَيَانُ مَكَانِ الْإِيْفَاءِ (۵) او د مسلم فيه د اداء کولو ځای بيانول وَالْقُدْرَةُ عَلٰى تَحْصِيلِهِ (۶) او د مسلم فيه پر حاصلولو قدرت درلودل [قادر کېدل].

**اللغات**: ﴿إعلام﴾ د افعال مصدر دی: خبرول، اګاه کول، اطلاع ورکول. ﴿تعجيل﴾ تلوار کول، ژر اداء کول (فی الحاله اداء کول). ﴿إيفاء﴾ اداء کول (پوره اداء کول).

**تشريح**: مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چې مشائخو په مختصره توګه د بيع سَلم ټوله شرطونه په خپل دې قول کې جمع کړي دي (او داسې ښکاري لکه درياب چې يې په کوزه کې بند کړی وي): "إِعْلَامُ رَأْسِ الْمَالِ" د دې مطلب دا دی چې د رأسُ المال جنس، صفت، نوع او مقدار به بيانوي (په کَيل يا وزن يا عدد سره). "وَتَعْجِيلُهُ" يعني رأسُ المال به في الحاله (له مجلس څخه تر جلا کېدلو مخکې) اداء کوي.

"وَإِعْلَامُ الْمُسْلَمِ فِيْهِ" يعني د مسلم فيه جنس، نوع، صفت او مقدار به بيانوي. "وَتَأْجِيْلُه" يعني د مسلم فيه د اداء كولو (ورسپارلو) لپاره به يو معلوم ميعاد ټاكي. "وَبَيَانُ مَكَانِ الْإِيْفَاءِ" يعني كه چيري ضرورت وي نو د مسلم فيه د اداء كولو لپاره به ځاى هم بيانوي (متعين كوي). "وَالْقُدْرَةُ عَلٰى تَحْصِيْلِه" يعني مسلم اليه به د مسلم فيه پر حاصلولو قادر وي، يعني د عقد له وخت څخه واخله د اداء كولو (ورسپارلو) تر وخته پوري به مسلم فيه له بازار څخه نه منقطع كيږي بلكي په دې مودت كي به هغه په بازار كي ترلاسه كېداى سي.

## كه د رأسُ المال څه حصه په قرض (دَين) وي (حكم او تفصيل)

فَإِنْ أَسْلَمَ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ فِيْ كُرِّ حِنْطَةٍ مِائَةٌ مِنْهَا دَيْنٌ عَلَى الْمُسْلَمِ إِلَيْهِ وَمِائَةٌ نَقْدٌ نو كه [يو څوك] د دوو سوو درهمو عقد سَلم په يوه كُر غنمو كي وكړي چي له هغوى څخه سل درهمه د مسلم اليه پر ذمه دَين [قرض] وي او سل درهمه نقد [نغد] وي فَالسَّلَمُ فِيْ حِصَّةِ الدَّيْنِ بَاطِلٌ نو د دَين په حصه كي بيع سَلم باطله ده لِفَوَاتِ الْقَبْضِ ځكه چي قبضه فوت سوه وَيَجُوْزُ فِيْ حِصَّةِ النَّقْدِ او د نقد په جصه كي بيع سَلم جائز ده لِاسْتِجْمَاعِ شَرَائِطِهِ ځكه چي [په هغه كي] د بيع سَلم ټوله شرطونه جمع دي وَلَا يَشِيْعُ الْفَسَادُ او فساد [په نقد والا حصه كي] نه غوړيږي لِأَنَّ الْفَسَادَ طَارِئٌ ځكه چي فساد طاري دی [يعني وروسته واقع سوی دی] إِذِ السَّلَمُ وَقَعَ صَحِيْحًا ځكه چي عقد سَلم صخيح واقع سو [منعقد سو] وَلِهٰذَا لَوْ نَقَدَ رَأْسَ الْمَالِ قَبْلَ الْإِفْتِرَاقِ همدا وجه ده كه چيري ربُ السَلم [له مجلس څخه] تر جلا كېدلو مخكي رأسُ المال اداء كړي صَحَّ نو عقد صحيح كيږي إِلَّا أَنَّهُ يَبْطُلُ بِالْإِفْتِرَاقِ لېكن هغه د جلا كېدلو په وجه باطليږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړی وَهٰذَا لِأَنَّ الدَّيْنَ لَا يَتَعَيَّنُ فِي الْبَيْعِ او دا ځكه چي په بيع كي دَين [قرض] نه مُتعيّن كيږي أَلَا تَرٰى أَنَّهُمَا لَوْ تَبَايَعَا عَيْنًا بِدَيْنٍ آيا ته نه ګورې! چي كه عاقدين [بائع او مشتري] عَين د دَين په عوض كي خرڅ كړي ثُمَّ تَصَادَقَا أَنْ لَا دَيْنَ بيا دواړه اتفاق وكړي چي هيڅ دَين نسته لَا يَبْطُلُ الْبَيْعُ نو بيع نه باطليږي فَيَنْعَقِدُ صَحِيْحًا او صحيح منعقد كيږي.

**اللغات**: ﴿كُرّ﴾ دا په عربو كي د يو غټي پيمانې نوم وو چي په هغه سره به وريجي، غنم او داسي نور پيمانه كېدل. مخكي چي د هدايې په حاشيه كي د دې كوم مقدار ليكل سوی دی، د هغه په اعتبار سره يو كُر تقريباً (۲۵۴۷) كېلو

کېږي (یعني ۲۵۴۷ سېره په پاکستاني سېر سره)، صاحب د اشرفُ الهدایې د قفیز په حساب سره د هغه مقدار داسې لیکلی دی: یو کُر شپېته (۶۰) قفیزه کېږي، او یو قفیز اته "مکاکیک" کېږي، او یو "مکوک" یو نیم صاع کېږي، او په جامع صغیر کې ذکر سوي دي چې یو کُر څلوېښت قفیزه کېږي. ﴿لایشیع﴾ د ضرب د باب نفي صیغه ده: شایع کېدل، خپرېدل، غوړېدل، سرایت کول. ﴿افتراق﴾ د افتعال مصدر دی: جلا کېدل، علیحده کېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو څوک په یوه کُر غنمو کې د دوو سوو (۲۰۰) درهمو عقد سَلَم وکړي، او په هغوی کې سل درهمه (د ربُ السَلم) پر مسلم الیه قرض وي او سل درهمه نقد (نغد) اداء کړي (یعني ربُ السلم صرف سل درهمه مسلم إلیه ته ورکړي او سل درهمه د هغه قرض په عوض کې ځني را وګرځوي کوم چې د ده پر مسلم إلیه باندې دی)، نو د دَین یعني د سلو درهمو په حصه کې بیع سَلَم باطلېږي او د نقد یعني د پاته سلو درهمو په حصه کې بیع سَلَم صحیح کېږي (لنډه دا چې د سلو درهمو د حصې والا بیع سَلَم جائز کېږي او د سلو درهمو د حصې والا بیع سَلَم فاسدېږي)، برابره ده مسلم الیه دا دوه سوه درهمه مطلق ذکر کړي وي (یعني د دَین [قرض] او نقد وطرفُ ته یې نه وي منسوب کړي) یا یې سل درهمه د دَین او سل درهمه د نقد وطرف ته منسوب کړي وي (په دواړو صورتونو کې حکم برابر دی).

دلیل دا دی چې د عقد په مجلس کې پر رأسُ المال د مسلم الیه قبضه کول ضروري دي، حال دا چې دلته په مجلس کې د دَین پر حصې یعني پر سلو درهمو د مسلم الیه قبضه موجوده نه سوه، نو ځکه د دَین د حصې والا بیع سَلَم به جائز نه وي، او څرنګه چې په هغه نقد سلو درهمو کې (کوم چې په مجلس کې اداء کړل سوه) د بیع سَلَم ټوله شرطونه موجود دي، نو ځکه د هغه د حصې والا بیع سَلَم به جائز وي.

ولایشیع الفساد إلخ: په دې سره د امام زفر رَحِمَهُ الله د قول جواب ورکول سوی دی، امام زفر رَحِمَهُ الله وېلي دي چې کله د دَین په حصه کې یعني په سلو دراهمو کې بیع سَلَم فاسده ده نو د نقد په حصه کې به هم بیع سَلَم فاسدېږي؛ ځکه چې صفقه یوه ده (یعني عقد صرف یو دانه سَوی دی، دوه عقده نه دي سوي) نو د صفقې د یو والي په وجه به فساد په ټوله رأسُ المال کې غوړېږي. لېکن زموږ له طرفه د دې جواب دا دی چې د دَین د حصې والا په بیع سَلَم کې چې کوم فساد دی هغه طاري او عارضي دی، او طاري فساد د مُفسد (فاسدونکي شي) په اندازه وي، او مُفسد (په مجلس کې پر رأسُ المال قبضه نه کول) فقط د دَین په حصه کې موجود سوی دی، نه د نقد په حصه کې، نو دا فساد به فقط د دَین په حصه کې مؤثر وي. او د دَین د حصې والا په بیع سَلَم کې فساد طاري او عارضي ولې دی؟، نو د دې وجه دا ده چې ابتداءً په یوه کُر غنمو کې د دوه سوه درهمو بیع صحیح منعقد سوه، ځکه که چیري ربُ السَلم مطلقاً

د دوو سوو درهمو وطرف ته عقد سَلم منسوب کړی وي (یعني د دَین او عَین دواړو وطرف ته یې نه وي منسوب کړی). مثلاً داسې یې ویلي وي: "زه ستا سره په یوه کُر غنمو کې د دوو سوو درهمو عقد سَلم کوم" او بیا ووایي چې سل درهمه دا دي او سل درهمه هغه دي کوم چې ما پر تا قرض باندي دي (یعني سل درهمه نقد اداء کړي او سل درهمه د قرض پر ځای ځني راوګرځوي). نو په دې صورت کې خو ښکاره ده چې ابتداءً عقد صحیح دی. او که چیرې هغه د دَین او عَین [نقد] دواړو وطرف ته عقد سَلم منسوب کړی وي، مثلاً داسې یې ویلي وي: "زه ستا سره د دې نقد سلو درهمو او د قرض سلو درهمو (کوم چې ما پر تا قرض دي) بیع سَلم په یوه کُر غنم کې کوم" نو په دې صورت کې هم عقد سَلم ابتداءً صحیح کیږي. همدا وجه ده که ربُ السَلم دَین او عَین دواړه له مجلس څخه تر جلا کېدلو مخکې اداء کړي نو ټوله عقد سَلم صحیح کیږي.

لېکن که پر رأسُ المال له قبضه کولو څخه بغیر دواړه عاقدین له مجلس څخه جلا سي نو بیع سَلم د هغه دلیل په وجه باطلیږي کوم چې مخکې تېر سو، یعني په مجلس کې د رأسُ المال د نه اداء کولو په صورت کې "بیعُ الکالئ بالکالئ" لازمیږي حال دا چې رسول الله ﷺ له دې بیع څخه منع کړې ده.

وهذا لأن إلخ: پاته سوه دا خبره چې کله سل درهمه دَین وي او سل درهمه عَین (نقد) وي نو په دې صورت کې ابتداءً ولې بیع سَلم صحیح کیږي؟ نو د صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په بیع کې دَین په مُتعیّن کولو سره نه مُتعیّن کیږي یعني که مشتري پر بائع قرض باندي وي، بیا مشتري د بائع سره بیع وکړي او په بیع کې هغه قرض د ثمن لپاره مُتعیّن کړي نو دا نه مُتعیّن کیږي، ځکه دا عامه قاعدهٔ ده چې نقود که چیرې عَین (نقد) نو هم هغه په بیع کې په مُتعیّن کولو سره نه مُتعیّن کیږي، لهذا کله چې د عَین کېدلو (نقد کېدلو) په صورت کې هغه نه مُتعیّن کیږي نو د دَین کېدلو په صورت کې خو به په درجه اولیٰ نه مُتعیّن کیږي. لهذا برابره ده نقود مطلق ذکر کړی سي او که د عَین او دَین په نامه سره ذکر کړی سي په هر صورت کې به عقد صحیح وي.

ألاترى إلخ: صاحب د دې لپاره یو مثال ذکر کړی دی، د مثال وضاحت دا دی چې که د مشتري پر بائع قرض باندي وي، او هغه د دې قرض په عوض کې له بائع څخه یو غلام رانیسي، بیا مشتري ووایي چې زما پر تا قرض باندي نه وو (زه خطا وتم) او بائع د هغه سره اتفاق وکړي (یعني دوی دواړه د دَین پر

نشتوالي اتفاق وکړي چې پر بائع د مشتري هیڅ قرض نه وو)، نو بیع نه باطلیږي. له دې څخه هم معلومه سوه چې د دَین په عوض کې بیع ابتداءً صحیح کیږي، کنې د دَین په نشتوالي باندې په اتفاق کولو سره به بیع نه صحیح کېدای. (ها! که چیرې د بیع کولو په وخت کې مشتري او بائع دواړو ته دا پوره معلومه وي چې پر بائع د مشتري قرض نسته لېکن بیا هم مشتري د قرض (دَین) په عوض کې غلام څنې رانیسي نو دا بیع باطلیږي: ځکه چې په دې صورت کې دواړو قصداً بلا ثمنه بیع منعقد کړې ده، او بلا ثمنه بیع ابتداءً (په شروع کې لا) باطلیږي، او کله چې بیع ابتداءً باطله سوه نو د دَین په نشتوالي باندې تر اتفاق کولو وروسته به هم بیع صحیح نه وي).

لنډه دا چې کله نقود یعني دراهم او دنانیر د مُتعیّن کولو باوجود نه مُتعیّن کیږي نو ځکه هغوی مطلق ذکر کول یا په دَین او عَین سره مقید کول دواړه برابر دي، او څه مخکې ذکر سوه چې که رأسُ المال یعني دوه سوه درهمه مطلق ذکر کړې نو په دې صورت کې بیع سَلم ابتداءً صحیح منعقد کیږي، نو همداسې به په دَین سره د مقید کولو په صورت کې هم بیع سَلم ابتداءً صحیح کیږي. صرف دا لازم دي چې له مجلس څخه تر جلا کېدلو مخکې مسلم الیه پر دوو سوو درهمو قبضه وکړي د دې لپاره چې "بیع الکالئ بالکالئ" واقع نه سي، لېکن کله چې ربُ السَلم سل درهمه نقد اداء کړي او سل درهمه اداء نه کړي (بلکې د قرض په بدله کې یې راوګرځوي) نو د قرض په سلو درهمو کې به د قبضې د شرط فوتېدلو په دجه د هغوی د حصې والا بیع سَلم باطلیږي او د سلو نقد درهمو د حصې والا بیع سَلم به صحیح وي. او څرنګه چې دا فساد طاري (وروسته واقع سوی) دی، نو ځکه ټوله بیع سَلم به نه باطلیږي.

## له قبضې څخه مخکې په رأسُ المال یا مسلم فیه کې د تصرف کولو حکم

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ التَّصَرُّفُ فِيْ رَأْسِ مَالِ السَّلَمِ وَالْمُسْلَمِ فِيهِ قَبْلَ الْقَبْضِ او له قبضې څخه مخکې د بیع سَلم په رأسُ المال او مسلم فیه کې تصرف کول جائز نه دي أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِمَا فِيهِ مِنْ تَفْوِيتِ الْقَبْضِ الْمُسْتَحَقِّ بِالْعَقْدِ کوم چې اول دی نو ځکه چې په هغه کې [په تصرف کولو سره] د هغه قبضې فوتول [لازمیږي] کوم چې د عقد په وجه واجب سوې ده وَأَمَّا الثَّانِيْ فَلِأَنَّ الْمُسْلَمَ فِيهِ مَبِيعٌ او کوم چې دویم دی نو ځکه چې مسلم فیه مبیع وي وَالتَّصَرُّفُ فِي الْمَبِيعِ قَبْلَ الْقَبْضِ لَا يَجُوزُ او له قبضې څخه مخکې په مبیع کې تصرف کول جائز نه دي وَلَا تَجُوزُ الشَّرِكَةُ وَالتَّوْلِيَةُ فِي الْمُسْلَمِ فِيهِ او په مسلم فیه کې شرکت او تولیه جائز نه ده لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِيهِ ځکه چې دا په مسلم فیه کې [له قبضې څخه مخکې] تصرف کول دي.

**اللغات**: ﴿رأسُ المال﴾ د بيع سَلم ثمن (قيمت)، ﴿مسلم فيه﴾ د بيع سَلم مبيع (معقودعليه)، ﴿تفويت﴾ د تفعيل مصدر دی: فوتول، ضايع کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي په رأسُ المال کي له قبضې څخه مخکي د مسلم اليه تصرف کول او په مسلم فيه کي له قبضې څخه مخکي د ربُ السَلم تصرف کول جائز نه دي، مثال يې دا دی چي خالد د حامد سره په دوه سوه درهمو کي د پنځه منو غنمو عقد سَلم وکړي (نو په دې عقد کي خالد ربُ السلم [ثمن والا] دی او حامد مسلم إليه [غنمو والا] دی)، بيا حامد (مسلم اليه) د هغه دوه سوه درهمو له قبضه کولو څخه مخکي په هغه يو آس رانيسي، نو د حامد يعني د مسلم اليه دغه تصرف جائز نه دی. همدارنګه که خالد يعني ربُ السَلم د پنځه منه غنمو (مسلم فيه) له قبضه کولو څخه مخکي هغوی خرڅ کړي نو دا هم جائز نه دي.

لنډه دا چي له قبضې څخه مخکي نه په رأسُ المال کي تصرف کول جائز دي او نه په مسلم فيه کي.

**دليل**: د اول (راس المال) دليل دا دی چي که له قبضې څخه مخکي په رأسُ المال کي تصرف وکړي نو هغه قبضه به فوت سي کوم چي د عقد (بيع سلم) په وجه واجب سوې ده. خلاصه دا چي د بيع سَلم د صحيح کېدلو لپاره په مجلس کي دننه پر رأسُ المال قبضه کول شرط او واجب دي، او تصرف کول دا شرط باطلوي، نو ځکه به له قبضې څخه مخکي د مسلم اليه لپاره په رأسُ المال کي تصرف کول ناجائز وي.

د دويم (مسلم فيه) دليل دا دی چي مسلم فيه مبيع ده، او له قبضې څخه مخکي په مبيع کي تصرف کول ناجائز دي، نو ځکه به د ربُ السَلم لپاره قبل القبض په مسلم فيه کي تصرف کول ناجائز وي.

ولايجوز الشركة إلخ: د دې حاصل دا دی چي له قبضې څخه مخکي په مسلم فيه کي نه شرکت جائز دی او نه توليه جائز ده. د شرکت صورت دا دی چي ربُ السَلم يو سړي ته ووايي: "که ته ما ته زما د رأسُ المال په اندازه نيم مال راکړې نو ته به ټوله مسلم فيه ستا ده"؛ د شرکت او توليه د نه جائز کېدلو دليل دا دی چي د شرکت په صورت کي له قبضې څخه مخکي په نصف مسلم فيه کي تصرف کول لازميږي او د توليه په صورت کي له قبضې څخه مخکي په ټوله مسلم فيه کي تصرف کول لازميږي. او مخکي ذکر سوه چي له قبضې څخه مخکي په مسلم فيه کي تصرف کول ناجائز دي، نو ځکه په مسلم فيه کي نه شرکت جائز دی او نه توليه جائز ده.

## په بيع سَلم کې د اقاله کولو حکم

فَإِنْ تَقَايَلَا السَّلَمَ او که دواړه [عاقدين] د بيع سَلم اقاله وکړي لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ مِنَ الْمُسْلَمِ إِلَيْهِ بِرَأْسِ الْمَالِ شَيْئًا حَتَّى يَقْبِضَهُ كُلَّهُ نو ربُ السَلم ته دا اختيار نسته چې د رأسُ المال په عوض کې له مسلم اليه څخه يو شی رانيسي تر دې چې پر ټوله رأسُ المال قبضه وکړي لِقَوْلِهِ عليه السلام [1] : « لَا تَأْخُذْ إِلَّا سَلَمَكَ أَوْ رَأْسَ مَالِكَ » أَيْ عِنْدَ الْفَسْخِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "مه اخله! مګر خپل سَلم يا خپل راس المال" يعني [د بيع سلم] د فسخ کېدلو په وخت کې وَلِأَنَّهُ أَخَذَ شِبْهًا بِالْمَبِيعِ او ځکه چې رأسُ المال د مبيع سره مشابهت اختيار کړی [يعني د مبيع سره مشابه سو] فَلَا يَحِلُّ التَّصَرُّفُ فِيهِ قَبْلَ قَبْضِهِ نو ځکه له قبضې څخه مخکې به په هغه کې تصرف کول روا نه وي وَهَذَا لِأَنَّ الْإِقَالَةَ بَيْعٌ جَدِيدٌ فِي حَقِّ ثَالِثٍ او دا ځکه چې اقاله د دريم کس په حق کې نوې بيع ده وَلَا يُمْكِنُ جَعْلُ الْمُسْلَمِ فِيهِ مَبِيعًا او مسلم فيه مبيع ګرځول ممکن نه دي لِسُقُوطِهِ ځکه چې هغه ساقط سوه فَجُعِلَ رَأْسُ الْمَالِ مَبِيعًا نو ځکه رأسُ المال به مبيع ګرځول کيږي لِأَنَّهُ دَيْنٌ مِثْلُهُ ځکه چې هغه هم د مسلم فيه په څېر [پر مسلم إليه] قرض دی [يعني مخکې پر مسلم إليه مسلم فيه قرض وه لېکن کله چې هغه ساقط سوه نو اوس رأسُ المال پر هغه قرض سو، نو ځکه اوس به رأسُ المال مبيع ګرځول کيږي] إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجِبُ قَبْضُهُ فِي الْمَجْلِسِ لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي حُكْمِ الِابْتِدَاءِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ مګر په مجلس کې په دې وجه پر هغه قبضه کول ضروري نه دي ځکه چې دا [اقاله] په هر اعتبار سره [د بيع سلم] د ابتداء په حکم کې نه ده وَفِيهِ خِلَافُ زُفَرَ او په دې کې د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا ذَكَرْنَاهُ او د هغه په خلاف زموږ ذکر سوی دليل حجت دی.

**اللغات:** ﴿تقايلا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو د بل سره اقاله کول.

**تشريح:** په مخکني عبارت کې ذکر سوه چې په رأسُ المال او مسلم فيه کې له قبضې څخه مخکې تصرف کول جائز نه دي، د دې عبارت مسئله پر هغه متفرع ده.

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب البيوع، حديث رقم: ۲۹۵۸.

**صورت د مسئلې**: دا دی که ربُ السلم او مسلم اليه دواړه د بيع سَلم اقاله وکړي (يعني دواړه پښېمانه سي او بيع سَلم فسخ کړي) نو ربُ السَلم ته دا اختيار نسته چي پر رأسُ المال له قبضه کولو څخه مخکي د هغه په عوض کي له مسلم اليه څخه يو شی رانيسي. ها! کله چي ربُ السَلم پر ټوله رأسُ المال قبضه وکړي نو بيا هغه ته اختيار دی هر شی رانيولای سي او له هر چا څخه يې رانيولای سي.

دليل د رسول الله ﷺ دا فرمان دی: "لَا تَأْخُذْ إِلَّا سَلَمَكَ وَرَأْسَ مَالِكَ" (يعني مه اخله! مګر خپل مسلم فيه يا راس المال). يعني که چيري بيع سَلم باقي وي نو ربُ السَلم به له مسلم اليه څخه خپل مسلم فيه اخلي (کوم چي ده د رأسُ المال په عوض کي رانيولې وه) او که بيع سَلم فسخ کړی سي نو ربُ السَلم به له مسلم اليه څخه خپل رأسُ المال اخلي (کوم چي ده هغه ته ورکړی وو). له دې څخه بغير بله هيڅ مبادله نه سي کولای. (حاصل دا چي ربُ السَلم د عقد د بقاء په صورت کي فقط مسلم فيه اخيستلای سي او د فسخ په صورت کي فقط رأسُ المال اخيستلای سي، او د هغه په بدله کي ربُ السَلم ته بل د هيڅ شي اخيستلو اختيار نسته).

ولأنه أخذ شبهًا إلخ: زموږ عقلي دليل دا دی چي د اقالې په وجه رأسُ المال د مبيع سره مشابه سوه، ځکه چي اقاله د عاقدَينو څخه بغير د بل چا (دريم کس) په حق کي بيع جديد ده. او د بيع لپاره د معقود عليه (مبيع) موجودېدل ضروري دي، او څرنګه چي دلته مسلم فيه د اقالې په وجه د مسلم اليه له ذمې څخه ساقط سوه، نو ځکه دلته مسلم فيه معقود عليه نه سي کېدای، او کله چي مسلم فيه معقود عليه نه سي کېدای، نو ځکه اوس به رأسُ المال معقود عليه (مبيع) ګرځول کيږي، د دې لپاره چي پر هغه عقد وارد کړی سي، او رأسُ المال د مبيع جوړېدلو صلاحيت هم لري، ځکه چي رأسُ المال د مسلم فيه په څېر دَين دی (يعني کله چي د اقاله کولو په وجه مسلم فيه ساقط سوه نو اوس رأسُ المال پر مسلم إليه قرض پاته سو)، نو ځکه په دې حواله سره رأسُ المال مبيع ګرځول صحيح دي، لنډه دا چي ثابته سوه چي رأسُ المال د مبيع سره مشابه دی، او مخکي ذکر سوه چي له قبضې څخه مخکي په مبيع کي تصرف کول جائز نه دي، لهذا کله چي له قبضې څخه مخکي په مبيع کي تصرف کول جائز نه دي نو په رأسُ المال کي به هم له قبضې څخه مخکي تصرف کول جائز نه وي، او کله چي د اقالې په صورت کي له قبضې څخه مخکي په رأسُ المال کي د تصرف کولو اختيار او اجازت نسته، نو تر اقالې وروسته به هم ربُ السَلم ته له مسلم اليه څخه د رأسُ المال په عوض کي د شي د رانيولو اختيار نه وي.

إلا أنه لا يجب إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي کله اقاله (د عاقدَينو څخه بغير) د بل دريم کس په حق کي بيع ده، نو څرنګه چي دا (پورتنۍ اقاله) د بيع سَلم اقاله ده، نو ځکه دا به د دريم

کس په حق کې بیع سَلم وي، او په بیع سَلم کې پر رأسُ المال په مجلس کې دننه قبضه کول شرط دي، نو ځکه پکار دا وه چې تر اقالې وروسته هم د اقالې په مجلس کې قبضه کول شرط وای، حال دا چې تاسو هغه شرط نه ده ګرځولې؟

د جواب حاصل دا دی چې د اقالې په مجلس کې به هغه وخت پر رأسُ المال قبضه کول شرط وای کله چې اقاله من کُلّ وجه (په هر اعتبار سره) بیع سَلم وای، حال دا چې اقاله من کُلّ وجه سَلم نه ده، ځکه چې هغه ابتداءً بیع سَلم نه ده، نو ځکه به په مجلس کې پر رأسُ المال قبضه کول ضروري نه وي.

**وفیه خلاف زفر إلخ:** فرمایي چې په اصل مسئله کې د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی، دوی فرمایي چې که عاقدین (ربُ السلم او مسلم إلیه) د بیع سَلم اقاله وکړي، نو تر اقالې وروسته ربُ السَلم ته دا اختیار سته چې پر رأسُ المال له قبضه کولو څخه مخکې د هغه په عوض کې له مسلم الیه څخه یو شی رانیسي؛ ځکه چې تر اقالې وروسته رأسُ المال د مسلم الیه پر ذمه دَین وګرځېدی، لهذا څرنګه چې د نورو دُیون په عوض کې شی رانیول جائز دي، همداسې به د رأسُ المال په عوض کې هم شی رانیول جائز وي.

لېکن د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په خلاف هغه حدیث او عقلي دلیل حجت دي کوم چې زموږ د مذهب په تائید کې ذکر سول، یعني دا حدیث: "لَا تَأْخُذْ سَلَمَكَ... إلخ" او عقلي دلیل: "وَلِأَنَّهُ أَخَذَ شِبْهًا... إلخ".

## د بیع سَلم یو صورت

قَالَ: وَمَنْ أَسْلَمَ فِي كُرِّ حِنْطَةٍ فرمایي: او څوک چې په یوه کُر غنمو کې عقد سَلم وکړي فَلَمَّا حَلَّ الْأَجَلُ اِشْتَرَى الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ مِنْ رَجُلٍ كُرًّا بیا چې کله [د مسلم فیه د اداء کولو] میعاد راسي نو مسلم الیه له یو سړي [بائع] څخه یو کُر غنم رانیسي وَأَمَرَ رَبَّ السَّلَمِ بِقَبْضِهِ قَضَاءً او ربُ السَلم ته د خپل حق اداء کولو لپاره پر هغه د قبضه کولو حکم وکړي لَمْ يَكُنْ قَضَاءً نو دا د حق اداء نه ده [یعني په دې سره مسلم إلیه د ربُ السلم له حق څخه نه بري کیږي] وَإِنْ أَمَرَهُ أَنْ يَقْبِضَهُ لَهُ ثُمَّ يَقْبِضَهُ لِنَفْسِهِ او که چیري مسلم الیه هغه ته دا حکم وکړي چې اول زما [مسلم إلیه] لپاره قبضه وکړه! بیا د خپل ځان لپاره قبضه وکړه! فَاكْتَالَهُ لَهُ ثُمَّ اكْتَالَهُ لِنَفْسِهِ نو رب السلسم هغه غنم [یو ځل] د مسلم الیه لپاره کَیل کړي بیا یې د خپل ځان لپاره هغه کَیل کړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ اجْتَمَعَتِ الصَّفْقَتَانِ بِشَرْطِ الْكَيْلِ ځکه چې [دلته] د کَیل په شرط سره دوې صفقې [دوه عقدونه] جمع سول فَلَا بُدَّ مِنَ الْكَيْلِ مَرَّتَيْنِ نو ځکه دوه

واره کَيل کول ضروري دي لِنَهْيِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] عَنْ بَيْعِ الطَّعَامِ حَتّٰى يَجْرِيَ فِيهِ صَاعَانِ ځکه چي نبي ﷺ د غلې له بيع څخه منع کړې تر دې په هغه کي دوه صاعه جاري سي وَهٰذَا هُوَ مَحْمَلُ الْحَدِيثِ عَلٰى مَا مَرَّ او همدا د حديث محمل دی لکه مخکي چي تېر سو وَالسَّلَمُ وَإِنْ كَانَ سَابِقًا لٰكِنْ قَبْضُ الْمُسْلَمِ فِيهِ لَاحِقٌ او بيع سَلم که څه هم مخکي ده ليکن د مسلم فيه قبضه وروسته ده [يعني پر مسلم فيه قبضه وروسته سوې ده] وَأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ ابْتِدَاءِ الْبَيْعِ او دا [پر مسلم فيه قبضه کول] د بيع د ابتداء په درجه کي دي لِأَنَّ الْعَيْنَ غَيْرُ الدَّيْنِ حَقِيقَةً ځکه چي عَين په حقيقت کي د دَين په خلاف دی [او له هغه څخه عليحده دی] وَإِنْ جُعِلَ عَيْنَهُ فِي حَقِّ حُكْمٍ خَاصٍّ وَهُوَ حُرْمَةُ الِاسْتِبْدَالِ که څه هم د يو خاص حکم يعني د استبدال په حرامېدلو کي عَين [مقبوض] دَين ګرځول سوی دی فَيَتَحَقَّقُ الْبَيْعُ بَعْدَ الشِّرَاءِ نو ځکه تر رانيولو وروسته به خرڅول ثابت سي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ سَلَمًا وَكَانَ قَرْضًا او که چيري بيع سَلم نه وي [بلکي] قرض وي فَأَمَرَهُ بِقَبْضِ الْكُرِّ بيا مقروض [يو کُر غنم رانيسي او] قرضخواه ته پر کُر د قبضه کولو حکم وکړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ الْقَرْضَ إِعَارَةٌ ځکه چي قرض اعاره ده [يعني عاريتاً ورکول دي. لکه مخکي چي هم موږ ذکر کړه چي په عربي ژبه کي د قرض او دَين په معنیٰ کي فرق سته او قرض عاريتاً ورکولو ته وايي] وَلِهٰذَا يَنْعَقِدُ بِلَفْظِ الْإِعَارَةِ همدا وجه ده چي قرض د "اعاره" په لفظ سره منعقد کيږي فَكَانَ الْمَرْدُودُ عَيْنَ الْمَأْخُوذِ مُطْلَقًا حُكْمًا نو کوم څه چي [قرضخواه ته] واپس کړی سوی وي د شريعت په حکم هغه به مطلقاً بعينه هغه څه وي کوم چي اخيستل سوي وي [يعني کوم څه چي مقروض اخيستي وي] فَلَا تَجْتَمِعُ الصَّفْقَتَانِ نو ځکه به دوې صفقې جمع نه سي.

**اللغات**: ﴿کُر﴾ د دې تعريف د مخکني عبارت په لغاتو کي ذکر سو، ﴿حلّ﴾ د ضرب ماضي ده: راتلل، نښتل، حلول کول. ﴿أجل﴾ ميعاد، ټاکل سوی مودت. ﴿اکتاله﴾ د افتعال ماضي ده: کَيل کول، پیمانه کول (غله په پیمانه سره اندازه کول). ﴿صفقة﴾ عقد، معامله. ﴿إعارة﴾ عاريتاً ورکول (خواست کوونکي ته شی ورکول). ﴿استبدال﴾ د استفعال مصدر دی: د يو شي په بدله کي بل شی

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب التجارات، باب النهي عن بيع الطعام قبل ما لم يقبض، حديث رقم: ٢٢٢٨.

اخيستل، يو شی په بل شي سره بدلول. مراد ځني د مسلم فيه په بدله کي بل شی اخيستل دي او دا حرام دي (ځکه دا له قبضه کولو څخه مخکي په مسلم فيه کي تصرف کول دي).

**تشريح**: د مسئلې له صورت څخه مخکي دا مثال په ذهن کي وساتئ!: ① زيد ربُ السَلم دی ② نعمان مسلم اليه دی ③ سلمان بائع دی.

**صورت د مسئلې**: دا دی چي زيد د نعمان سره په يوه کُر غنمو کي عقد سَلم وکړی. بيا چي کله د مسلم فيه د اداء کولو ميعاد پوره کېدلو ته نژدې سو، نو مسلم اليه يعني نعمان له بائع (سلمان) څخه يو کُر غنم رانيول او هغه يې د بائع سره پرېښوول. کله چي ربُ السَلم يعني زيد له مسلم اليه څخه د مسلم فيه (غنمو) مطالبه وکړه نو هغه ورته وويل چي د بائع (سلمان) سره زما يو کُر غنم دي. ته هغه واخله! نو ربُ السَلم له بائع څخه يو کُر غنم واخيستل او پر هغه يې قبضه وکړه. نو دا قبضه د مسلم فيه په اداء کولو کي معتبر نه ده او په دې سره د ربُ السَلم حق له مسلم اليه څخه نه ساقطيږي او مسلم اليه نه بري کيږي. بلکي پر هغه د مخکي په څېر مسلم فيه واجبُ الاداء پاته ده.

او دويم صورت دا دی چي که مسلم اليه ربُ السَلم ته داسي ووايي چي د بائع (سلمان) سره زما يو کُر غنم دي، ته زما له طرفه وکيل جوړ سه! اول پر هغه زما له طرفه قبضه وکړه! بيا يې د خپل ځان لپاره قبضه پر وکړه!، نو ربُ السَلم هغه يو کُر غنم اول د مسلم اليه لپاره کَيل کړه او قبضه يې پر وکړه، بيا يې د خپل ځان لپاره کَيل کړه او قبضه يې پر وکړه. نو په دې صورت کي مسلم فيه اداء کيږي، او اوس مسلم اليه د ربُ السَلم له حق څخه بري کيږي.

**دليل**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې دليل دا بيان کړی دی چي دلته د کَيل په شرط سره دوې صفقې (دوه عقدونه) جمع سول. ځکه اوله صفقه خو د ربُ السَلم او مسلم اليه په مينځ کي د بيع سَلم په نامه سره وسوه او دويمه صفقه د مسلم اليه او بائع په مينځ کي د بيع وشراء په ذريعه وسوه. او په دواړو ځايونو کي صرف غنم معقود عليه دي، او د غنمو مقدار د کَيل په ذريعه معلوميږي؛ لهذا کله چي دلته دوه عقدونه دي نو ښکاره خبره ده چي دوه ځله کَيل کول به هم ضروري وي. ځکه مخکي په دې باره کي حديث ذکر سو چي په هغه کي له دوه ځله صاع جاري کېدلو څخه مخکي د غلې (غنمو...) له رانيولو څخه منع سوې ده (حديث په بابُ المرابحة والتولية کي تېر سو). نو د حديث حکم دا دی چي کله څوک غله رانيسي نو هغه دي په کَيل سره رانيسي (يعني د ځان لپاره دي يې کَيل کړي)، او بيا چي کله هغه پر بل چا خرڅوي نو بيا دي يې په کَيل سره خرڅه کړي (يعني دا بل څوک دي هغه د ځان لپاره کَيل کړي). نو ځکه د مسئلې دويم صورت موږ جائز ګرځولی دی؛ ځکه چي په هغه کي دوه ځل کَيل جاري سوی دی. او څرنګه چي په اول صورت کي بالکل هيڅ کَيل نسته. نو ځکه موږ هغه ناجائز ګرځولی دی.

وهذا إلخ: فرمايي په "بـابُ المرابحة والتولية" چي کوم پورتنی حديث تېر سو، د هغه هم دغه مطلب دی کوم چي موږ دلته بيان کړی.

والسلم وإن كان إلخ: دا ديـو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي دلته تاسو د دوو صفقو د جمع کېدلو خبره کړې ده هغه موږ ته تسليم نه ده، ځکه دلته چي د ربُ السَلم او مسلم اليه په مينځ کي کوم عقد سوی دی يعني عقد سَلم هغه ډېر مخکي سوی دی، او د مسلم اليـه او بائع پـه مينځ کي چي کوم عقد بيع سوې ده هغه تر عَقد سَلم ډېر وروسته سوی دی، نو ځکه دلته دوې صفقې (دوه عقدونه) نه دي جمع سوي، او کله چي دوې صفقې نه دي جمع سوي، نو دوه ځله کَيل کـول بـه هـم ضروري نه وي. او کله چي دوه ځله کَيل کول ضروري نه سو، نو ښکاره خبره ده چي د مسئلې پـه اول صورت کي هم مسلم اليه د مسلم فيـه لـه اداء کولو څخه بري دی، حال دا چي تاسو پـه اول صورت کي مسلم اليـه د مسلم فيه له اداء کولو څخه نه دي بري کړی، آخر د دې څه وجه ده؟

د همدې سوال په جواب کي صاحبِ د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي موږ هـم دا منو چي عقد سَلم له عقد بيع څخه ډېر مخکي سوی دی، لېکن په هغه وخت کي دغه عقد سَلم پـوره سوی نه وو، ځکه چي معقود عليه يعني مسلم فيه ميعادي وي، او پر معقود عليه (مسلم فيـه) باندي د ربُ السَلم قبضه تر عقد بيع وروسته وسوه او پر مسلم فيه قبضه کول د بيع د ابتداء (ابتداءً بيع) په درجه کي وي، ځکه چي مسلم فيـه د مسلم اليـه پـر ذمه دَيـن وي، حال دا چي پـه دې مسئله کـي چي ربُ السَلم له بائع (سلمان) څخه کوم کُر غنم اخيستي دي هغه عَين دي، او پـه عَين مال او دَيـن مال کـي د ځمکي و آسمان فرق دی، نو ګواکي ربُ السَلم پر دَين يعني پر مسلم فيه له قبضـه کولو څخه مخکي د هغه په بدله کي عَين مال اخيستی دی، او تاسو ته معلومه ده چي پر مسلم فيه له قبضه کولو څخه مخکي په هغه کي تصرف کول حرام دي، نو په همدې وجه په مسلم فيـه کي له حرام تصرف څخه د ساتل کېدلو (محفوظ کېدلو) لپاره شريعت په دې مسئله کي "دين" عَين ګرځولی دی، لېکن پـه نورو ځايو کي دَين له عَين څخه غير (عليحده) ګرځول سوی دی او پـه دواړو کي فرق سوی دی، او ښکاره خبره ده چي کله دَين (يعني مسلم فيه) له عَين (يعني له مقبوضه غنمو) څخه غير وي، نو دا داسي ده لکه مسلم اليه چي يو کُر غنم رانيول او ربُ السَلم ته يې د مسلم فيه يعني د دَين په عوض کي ورکړه، او پـه دې صورت کي د دوو صفقو جمع کېدل ښکاره دي. او کله چي دوې صفقې جمع سوې نو دوه ځله کَيل کول به هم ضروري وي.

(لِأَنَّ الْعَيْنَ غَيْرُ الدَّيْنِ: د دې جملې آسانه مطلب دا دی چي پر مسلم إليه [نعمان] چي د ربُ السلم کوم غنم قرض وه هغه ګواکي جلا شی دي. او پر کومو غنمو چي اوس ربُ السلم ته د قبضه کولو حکم سوی دی هغه هم ګواکي جلا شی دي. لهذا دوې صفقې جمع سوې. نو ځکه دوه ځله کَيل کول به هم ضروري وي).

وإن لم یکن سلما إلخ: د دې حاصل دا دی چې که دا مسئله د بیع سَلم سره متعلق نه وي، بلکې د قرض سره متعلق وي، مثلاً زید له خالد څخه یو کُر غنم په قرض واخیستل، وروسته یې خالد ته وویل چې ما له فلانکي څخه یو کُر غنم رانیولي دي، ته ولاړ سه! هغه واخله!، نو خالد له فلانکي څخه یو کُر غنم واخیستل او یو ځل یې کَیل کړل، نو په دې صورت کې زید (مقروض) له قرض څخه بري کیږي او دوه ځله کَیل کول ضروري نه دي؛ ځکه چې قرض عاریتاً ورکولو ته وایي (یعني د قرض معنیٰ ده: په عاریت ورکول) همدا وجه ده چې قرض د "اعاره" په لفظ سره منعقد کیږي، او کله چې قرض عاریت دی، نو ښکاره خبره ده چې زید (مقروض) چې خالد (قرضخواه) ته کوم قرض واپس کوي هغه به د خالد د ورکول سوي قرض عَین وي (ځکه په اعاره کې چې څوک شی واپس کوي نو بعینه هغه شی واپس کوي کوم چې یې له مُعیر څخه اخیستی وي، مثلاً که حامد له عُمر څخه موټر په عاریت [په خواست] واخلي، نو هغه چې کله عُمر ته موټر واپس کوي نو بعینه هغه موټر واپس کوي کوم چې یې له عُمر څخه اخیستی دی، لهذا همدارنګه مقروض چې کله قرضخوا ته خپل قرض واپس کړي نو هغه به د قرضخواه د ورکول سوي قرض عَین وي) لهذا کله چې دا د هغه د ورکول سوي قرض عَین دی، نو د مقروض (زید) له طرفه چې قرضخواه (خالد) ته پر کوم شي د قبضه کولو حکم سوی وي په هغه سره به بیع نه ثابتیږي (یعني هغه د مقروض او قرضخواه په مینځ کې بیع نه سوه) او دلته به صرف یوه بیع ثابتیږي کوم چې د مقروض او بائع په مینځ کې سوې ده، او څرنګه چې د مقروض او قرضخواه په مینځ کې بیع نه ده سوې، نو ځکه دلته به د اجتماع الصفقتین هم نه لازمیږي او دوه ځله کَیل کول به ضروري نه وي، بلکې صرف یو ځل کَیل کول به کافي وي او مقروض به له قرض څخه بري کیږي.

(فَكَانَ الْمَرْدُوْدُ عَيْنَ الْمَأْخُوْذ: د دې جملې آسانه مطلب دا دی چې مقروض [زید] چې له قرضخواه [خالد] څخه کوم غنم اخیستي دي ګواکې مقروض خاص هغه غنم قرضخواه ته واپس کړل، نو ځکه دا یو نوی عقد او بیع نه سوه، لهذا دلته دوې صفقې [دوه عقدونه] نه دي جمع سوي، نو ځکه دوه ځله کَیل کول به هم ضروري نه وي).

## د ربُ السلم له طرفه د کَیل کولو امر د قبضې په حکم کې نه دی

قَالَ: وَمَنْ أَسْلَمَ فِي كُرٍّ فرمایي: او که څوک په یوه کُر غنمو کې بیع سَلم وکړي فَأَمَرَ رَبُّ السَّلَمِ أَنْ يَكِيلَهُ الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ فِي غَرَائِرِ رَبِّ السَّلَمِ بیا ربُ السَلم مسلم الیه ته حکم وکړي چې هغه دا غنم [زما د ربُ السَلم په بوریو [ګونیو] کې کَیل کړي فَفَعَلَ وَهُوَ غَائِبٌ نو مسلم الیه په داسې حالت کې دا کار وکړي چې ربُ السَلم غائب وي لَمْ يَكُنْ قَضَاءً نو دا [د مسلم إلیه له طرفه] د واجب اداء نه ده لِأَنَّ الْأَمْرَ

بِالْكَيْلِ لَمْ يَصِحَّ ځکه چي [د ربُ السلم له طرفه] د کَيل کولو حکم کول صحيح نه دي لِأَنَّهُ لَمْ يُصَادِفْ مِلْكَ الْآمِرِ ځکه چي د ربُ السَلم حکم د آمر [حکم کونکي] د ملکيت سره يو ځای نه سو [يعني د هغه په ملکيت کي واقع نه سو] لِأَنَّ حَقَّهُ فِي الدَّيْنِ دُونَ الْعَيْنِ ځکه چي د ربُ السَلم حق په دَين [مسلم فيه] کي دی، نه په عَين [معيّن مال] کي فَصَارَ الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ مُسْتَعِيرًا لِلْغَرَائِرِ مِنْهُ نو ځکه مسلم اليه له ربُ السَلم څخه د دې بوريو عاريتاً اخيستونکی وګرځېدی [يعني دا صورت داسي سو لکه مسلم إليه چي له ربُ السلم څخه عاريتاً (په خواست) بورياني اخيستي وي] وَقَدْ جَعَلَ مِلْكَ نَفْسِهِ فِيهَا حال دا چي هغه په دې بوريو کي خپل مملوک شی [غنم] اچولی دی فَصَارَ كَمَا لَوْ كَانَ عَلَيْهِ دَرَاهِمُ دَيْنٍ فَدَفَعَ إِلَيْهِ كِيسًا لِيَزِنَهَا الْمَدْيُونُ فِيهِ نو دا داسي سو لکه پر هغه چي دراهم قرض باندي وي بيا قرضخواه [قرض غوښتونکی] هغه [مقروض] ته خپله خلته ورکړي چي مقروض دا دراهم په هغه خلته کي وزن کړي لَمْ يَصِرْ قَابِضًا نو [په دې صورت کي هم] قرضخواه پر خپل قرض قبضه کونکی نه ګرځي.

**اللغات**: ﴿يكيل﴾ د ضرب مضارع ده: کَيل کول، پيمانه کول، ﴿الغرائر﴾ جمع د غِرَارَةٌ ده: بوريا، د لوخو او مزرو نه جوړه سوې ګونی (بوری)، ﴿لم يصادف﴾ د مفاعلې له بابه د جحد صيغه ده: ناڅاپه پيدا کول، ورسره يو ځای کېدل (لاحق کېدل، متصل کېدل، واقع کېدل) [المعجم الوسيط، احسن الهدايه]، ﴿مُستعِير﴾ د استفعال فاعل دی: په عاريت اخيستونکی، عاريتاً اخيستونکی (په خواست اخيستونکی)، ﴿كيس﴾ خلته، تېلی، ﴿يزن﴾ د ضرب مضارع ده: وزن کول، تلل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي زيد او خالد يو د بل سره په يوه کُر غنمو کي عقد سَلم وکړی، زيد ربُ السَلم وو، او خالد مسَلم اليه، تر دې وروسته ربُ السَلم مسلم اليه ته يو څو بورياني ورکړې چي دا واخله! او حکم يې ورته وکړی چي هغه غنم کَيل کړه! او زما په دې بوريو کي يې واچوه!، نو مسلم اليه د ربُ السَلم په حکم عمل وکړی او د هغه په ناموجوديت کي يې يو کُر غنم کَيل کړل او د هغه په بوريو کي يې واچول، نو په داسي کولو سره مسلم اليه د مسلَم فيه له اداء کولو څخه نه بري کيږي او مسلم فيه د هغه پر ذمه واجبُ الاداء پاتيږي؛ دليل دا دی چي د ربُ السَلم حق په دَين کي دی، نه په يو معيّن مال (عَين مال) کي، او دَين داسي وصف دی کوم چي پر ذمه ثابتيږي (لکه مخکي چي تېر سو چي دَين د قرض په څېر نه دی. ځکه قرض عاريتاً ورکولو ته وايي لېکن دَين وصفٌ ثابتٌ فی الذمه ته وايي) او داسي وصف د ربُ السَلم په بوريو کي اچول يو ناممکن امر دی، لهذا د ربُ السَلم د کَيل کولو

امر (حکم) د هغه د ملکيت سره يو ځای نه سو يعني د هغه په ملکيت کي واقع نه سو بلکي د مسلم اليه په ملکيت کي واقع سو، او کله چي د ربُ السَلم حکم د هغه په ملکيت کي واقع نه سو نو د هغه دا حکم چي ”کيل يې کړه!“ صحيح نه سو، او دا داسي ده لکه مسلم اليه چي له ربُ السَلم څخه هغه بورياني عاريتاً واخلي او په هغوی کي خپل شی واچوي، او ښکاره خبره ده چي په داسي کولو سره مسلم اليه د ربُ السَلم له حق يعني د مسلم فيه له اداء کولو څخه نه بري کيږي او ربُ السَلم د خپل حق اخيستونکی (قابض) نه شمارل کيږي. (دليل په لنډه توګه داسي هم ويل کېدای سي چي په دې صورت کي غنم [مسلم فيه] مُتعيّن نه دي، نو خالد [مسلم إليه] زيد [ربُ السلم] ته هر قسم ښه او کمزوري غنم ورکولای سي [حال دا چي د مسلم فيه غنم مُتعيّن وي] نو ځکه دا غنم صرف د خالد [مسلم إليه] سوه او داسي به ګڼل کيږي چي خالد له زيد [ربُ السلم] څخه بورياني عاريتاً (په خواست) واخيستلې او په هغه کي يې خپل غنم واچول).

د دې مثال دا دی لکه د حامد چي پر زيد مثلاً پنځوس (۵۰) درهمه قرض باندي وي، بيا حامد زيد ته يوه بوری ورکړي چي په دې کي زما (د حامد) دراهم وزن کړه! بيا يې راکړه!، نو په داسي کولو سره هم مقروضَ (زيد) د قرضخواه (حامد) له قرض څخه نه بري کيږي او قرضخواه (حامد) د خپل قرض اخيستونکی او قبضه کونکی نه ګرځي، نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم ربُ السَلم د خپل مسلم فيه اخيستونکی (قبضه کونکی) نه وي.

## هغه تصرّفات کوم چي د قبضې په حکم کي دي (تفصيلي بيان)

وَلَوْ كَانَتِ الْحِنْطَةُ مُشْتَرَاةً وَالْمَسْأَلَةُ بِحَالِهَا او که چيري غنم رانيول سوي وي او مسئله پر خپل حالت وي [يعني مسئله پر خپل مخکني صورت وي] صَارَ قَابِضًا نو مشتري قابض ګرځي لِأَنَّ الْأَمْرَ قَدْ صَحَّ ځکه چي د مشتري حکم کول صحيح سو حَيْثُ صَادَفَ مِلْكَهُ ځکه دا حکم د مشتري د ملکيت سره يو ځای سو [يعني د هغه په ملکيت کي واقع سو] لِأَنَّهُ مَلَكَ الْعَيْنَ بِالْبَيْعِ ځکه چي مشتري د بيع [شراء] په وجه د عَين مال [غنمو] مالک سو أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ أَمَرَهُ بِالطَّحْنِ آيا ته نه ګورې! چي که هغه د غنمو د ميده کولو [اوړه کولو] حکم وکړي كَانَ الطَّحِينُ فِي السَّلَمِ لِلْمُسْلَمِ إِلَيْهِ وَفِي الشِّرَاءِ لِلْمُشْتَرِي نو د بيع سَلم په صورت کي به دا اُوړه د مسلم اليه کيږي او د شراء [رانيولو] په صورت کي به د مشتري کيږي لِصِحَّةِ الْأَمْرِ ځکه چي حکم صحيح دی وَكَذَا إِذَا أَمَرَهُ أَنْ يَصُبَّهُ فِي الْبَحْرِ فِي السَّلَمِ او همدارنګه که مشتري بائع ته حکم وکړي چي دا مال په سمندر کي واچوه يَهْلِكُ مِنْ مَالِ الْمُسْلَمِ

إِلَيْهِ وَفِي الشِّرَاءِ مِنْ مَالِ الْمُشْتَرِي نو هغه [د بيع سَلم په صورت کي] د مسلم اليه د مال څخه هلاکيږي او د شراء په صورت کي د مشتري له مال څخه هلاکيږي وَيَتَقَرَّرُ الثَّمَنُ عَلَيْهِ او پر هغه ثمن واجبيږي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلِهٰذَا يُكْتَفٰى بِذٰلِكَ الْكَيْلِ فِي الشِّرَاءِ فِي الصَّحِيحِ او له همدې کبله د صحيح قول مطابق په شراء کي به پر دې کَيل اکتفاء کيږي لِأَنَّهُ نَائِبٌ عَنْهُ فِي الْكَيْلِ ځکه چي په کَيل کي بائع د مشتري نائب دی وَالْقَبْضُ بِالْوُقُوعِ فِي غَرَائِرِ الْمُشْتَرِي او د مشتري په بوريو کي د اچولو په وجه [د مشتري] قبضه هم وسوه [يعني په دې سره مشتري قابض هم وګرځېدی].

**اللغات**: ﴿صادف﴾ د مفاعلې ماضي ده: ناڅاپه پيدا کول، ور سره يو ځای کېدل (واقع کېدل)، ﴿طحن﴾ د فتح مصدر دی: ميده کول (اوړه کول)، ﴿طحين﴾ اوړه، ﴿يصب﴾ د ضرب مضارع ده: بيول، اچول، [معجم الوسيط، مصباح اللغات]، ﴿غرائر﴾ جمع د غِرَارَةٌ ده: بوريا، بوری، ګونی (بشپړ تعريف يې مخکي تېر سو).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مشتري مُتعيّن غنم رانيسي، بيا مشتري بائع ته خپلي بورياني ورکړي چي غنم کَيل کړه! او زما په دې بوريو کي يې واچوه!، نو بائع د مشتري په ناموجوديت کي غنم کَيل کړي او د هغه په بوريو کي يې واچوي، نو په دې صورت کي مشتري قابض (اخيستونکی) ګرځي او بائع به د مبيع ورسپارونکي شمارل کيږي (يعني بائع د مبيع له اداء کولو څخه بري کيږي).

دليل دا دی چي محض په رانيولو سره مشتري د غنمو مالک سو، لهذا د مشتري د کَيل کولو حکم د هغه په ملکيت کي واقع سو، لنډه دا چي مشتري بائع ته په خپلو بوريو کي د خپل مملوک شي د اچولو حکم کړی دی، او څرنګه چي په خپلو بوريو کي د خپل مملوک شي د اچولو حکم کول صحيح دی، نو ځکه د مشتري دا حکم کول به هم صحيح وي، او کله چي د مشتري دا حکم کول صحيح دي، نو بائع د مشتري له طرفه په بوريو کي د غنمو د اچولو نائب (وکيل) سو، او څرنګه چي بورياني د مشتري په ملکيت کي دي (يعني مشتري د هغوی مالک دی) نو ځکه هغوی حکماً د مشتري په قبضه کي دي، لهذا بائع چي په هغوی کي کوم غنم اچولي دي هغه به هم د مشتري په قبضه کي وي، نو ثابته سوه چي که بائع د مشتري په حکم سره د هغه په بوريو کي غنم اچولي وي نو مشتري قابض ګرځي او بائع بري کيږي.

(په لنډه توګه دا چي دلته غنم مُتعيّن دي او د مشتري د هغه مالک سوی دی، نو کله چي هغه د مشتري په حکم سره د مشتري په بوريو کي واچول سول، نو ځکه به مشتري قبضه کونکی او اخيستونکی شمارل کيږي، او بائع به د مشتري له حق څخه بري الذمه وي).

د دې مثال دا دی لکه په بيع سَلم او مطلق بيع کې د غنمو د ميده کولو (اوړه کولو) حکم کول، مثلاً که په بيع سَلم کې ربُ السَلم مسلم الَيه ته د مسلَم فيه يعني د غنمو د ميده کولو (اوړه کولو) حکم وکړي، او مسلم اليه د هغه د حکم مطابق غنم ميده کړي يعني اُوړه ځني جوړ کړي، نو اُوړه د مسلم اليه کيږي (او مسلم اليه د ربُ السَلم له حق څخه نه بري کيږي) حتىٰ که ربُ السَلم اُوړه واخلي نو د هغه لپاره حرام دي؛ ځکه چې په دې صورت کې پر مسلم فيه يعني پر غنمو له قبضه کولو څخه مخکې د هغوی تبادله کول لازم سوه (يعني ربُ السلم تر اوسه پر غنمو قبضه نه ده کړې، لېکن بيا هم هغه د غنمو په عوض کې له مسلم إليه څخه اُوړه واخيستل)، حال دا چې له قبضې څخه مخکې د مسلم فيه په عوض کې بل شی اخيستل جائز نه دي.

د دې په خلاف که چيرې همدا صورت په مطلق بيع کې وي، يعني مشتري غنم رانيسي، او بائع ته د غنمو د ميده کولو حکم وکړي، او بائع هغه ميده کړي اُوړه ځني جوړ کړي، نو اُوړه د مشتري کيږي؛ ځکه چې د مشتري له طرفه د غنمو ميده کولو حکم صحيح دی، نو ځکه اُوړه به هم د هغه وي.

او که چيرې دا اُوړه د بيع سَلم په صورت کې هلاک سي نو هغه د مسلم اليه له مال څخه هلاک کيږي (يعني ګواکې د مسلم إليه مال هلاک سو)، نو ځکه پر هغه به مسلم فيه (غنم) د مخکې په څېر واجب پاته وي، او که د مطلق بيع په صورت کې اُوړه هلاک سي نو هغه مشتري له مال څخه هلاک کيږي (يعني ګواکې د مشتري مال ضايع سو)، نو ځکه پر مشتري به د هغه ثمن واجب وي.

همدارنګه که ربُ السَلم مسلم اليه ته حکم وکړي چې مسلم فيه په سمندر کې واچوه! نو مسلم اليه د هغه په حکم عمل وکړي او په سمندر کې يې واچوي، نو دا د مسلم اليه مال شمارل کيږي او د هغه مال هلاک کيږي؛ ځکه چې د بيع سَلم په صورت کې د ربُ السَلم حکم صحيح نه دی. او که چيرې مشتري بائع ته د دې حکم وکړي نو د مشتري مال هلاک کيږي، او پر مشتري د هغه ثمن واجبيږي؛ ځکه چې د مشتري حکم کول صحيح دي.

ولهذا يكتفى إلخ: څرنګه چې د مشتري له طرفه خپل بائع ته حکم کول صحيح دي، نو په همدې وجه د مطلق بيع په صورت کې فقط د بائع کَيل کول کافي دي، همدا صحيح قول دی: ځکه چې په دې صورت کې بائع به کَيل کولو کې د مشتري نائب (وکيل) سو، او د نائب فعل د اصل (مؤکل) فعل شمارل کيږي. نو ځکه د بائع کَيل کول به په حقيقت کې د مشتري کَيل کول وي، او کله چې د بائع کَيل کول په حقيقت کې د مشتري کَيل کول سو، نو ځکه د بائع کَيل به کافي وي او د مشتري کَيل ته به ضرورت نه وي.

## هغه تصرفات کوم چي د قبضې په حکم کي دي

وَلَوْ أَمَرَهُ فِي الشِّرَاءِ أَنْ يَكِيلَهُ فِي غَرَائِرِ الْبَائِعِ او که چیري د شراء [رانیولو] په صورت کي مشتري بائع ته حکم وکړي چي مبیع د بائع په بوریو کي کَیل کړي فَفَعَلَ نو هغه [د مشتري په ناموجودیت کي] داسي وکړي لَمْ يَصِرْ قَابِضًا نو مشتري قابض نه ګرځي لِأَنَّهُ اسْتَعَارَ غَرَائِرَهُ وَلَمْ يَقْبِضْهَا ځکه چي [دلته] مشتري د بائع بوریاني عاریتاً اخیستي دي او پر هغوی یې قبضه کړې نه ده فَلَا تَصِيرُ الْغَرَائِرُ فِي يَدِهِ نو ځکه هغوی به د مشتري په قبضه کي نه وي فَكَذَا مَا يَقَعُ فِيهَا نو همداسي هغه شی به هم د ده په قبضه کي نه وي کوم چي په بوریو کي دی وَصَارَ كَمَا لَوْ أَمَرَهُ أَنْ يَكِيلَهُ وَيَعْزِلَهُ فِي نَاحِيَةٍ مِنْ بَيْتِ الْبَائِعِ او دا داسي سو لکه مشتري چي بائع ته حکم وکړي چي غنم کَیل کړي او د خپل کور په یو طرف [ګوښه] کي یې جلا کړي [یعني حکم ورته وکړي چي دا غنم پیمانه کړه! او د خپل کور په یو طرف کي یې کښېږده!] لِأَنَّ الْبَيْتَ بِنَوَاحِيهِ فِي يَدِهِ ځکه چي.کور د خپلو اطرافو سره د بائع په قبضه کي دی فَلَمْ يَصِرِ الْمُشْتَرِي قَابِضًا نو ځکه مشتري به قابض نه ګرځي.

**اللغات**: ﴿شراء﴾ د ضرب مصدر دی: رانیول، ﴿استعار﴾ د استفعال ماضي ده: په عاریت اخیستل (عاریتاً اخیستل، په خواست اخیستل)، ﴿ناحیة﴾ طرف، ګوښه، کونج، جمع: نَوَاحِي.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مشتري له بائع څخه (مثلاً) غنم رانیسي، بیا مشتري بائع ته حکم وکړي چي دا غنم تـه کَیل کـړه! او پـه خپلو بوریـو کـي یـې واچـوه!، نـو بـائع د مشتري پـه ناموجودیت کي غنم کَیل کړي او په خپلو بوریو کي یې واچوي، نو په دې صورت کي مشتري پر غنمو (مبیع) قابض نه شمارل کیږي؛ ځکه چي مشتري د بائع بوریاني عاریتاً (په خواست) غوښتي دي او پر هغوی یې قبضه نه ده کړې، او څرنګه چي اعاره د تبرّع (احسان کولو) عقد دی، او د تبرّع عقد له قبضې څخه بغیر نه تام کیږي (نه پوره کیږي)، نو ځکه دغه اعاره به هم بغیر له قبضې څخه نه تام کیږي، او کله چي دا اعاره تام نه سوه نو دا بوریاني به د مشتري په قبضه کي نه شمارل کیږي، او کله چي بوریاني د مشتري په قبضه کي نه سوې نو کوم غنم چي په دغو بوریو کي اچول سوي دي پر هغه به هم مشتري قابض نه شمارل کیږي.

او دا داسي سو لکه مشتري چي بائع تـه حکـم وکـړي چي غنم کَیل کـړه! او د خپـل کـور پـه یو طرف کي یې کښېږده!، نو بائع د مشتري په ناموجودیت کي هغه کَیل کړي او د خپل کور پـه یو طرف

کې يې کښېښي دي، نو په دې سره هم مشتري قابض نه شمارل کيږي؛ ځکه چې کور د خپل ټولو اطرافو سره د بائع په قبضه کې دی او مشتري له هغه څخه صرف يو طرف عاريتاً اخيستې دی او پر هغه يې قبضه نه ده کړې، نو د قبضه نه کولو په وجه به اعاره تام نه وي، او کله چې اعاره تام نه سوه، نو مشتري به پر هغه طرف قابض هم نه شمارل کيږي، او کله چې د کور پر طرف د مشتري قبضه ثابته نه سوه، نو کوم غنم چې په هغه طرف کې اچول سوي دي، پر هغه به هم مشتري قابض نه شمارل کيږي.

## هغه تصرّفات کوم چې د قبضې په حکم کې دي

وَلَوِ اجْتَمَعَ الدَّيْنُ وَالْعَيْنُ او که چيرې دَين او عَين دواړه سره جمع سي وَالْغَرَائِرُ لِلْمُشْتَرِيْ او بوريانې د مشتري وي إِنْ بَدَأَ بِالْعَيْنِ نو که چيرې بائع اول په عَين مال سره شروع وکړي [يعني اول عين (مبيع) غنم بوريو ته واچوي] صَارَ قَابِضًا نو مشتري قابض ګرځي أَمَّا الْعَيْنُ فَلِصِحَّةِ الْأَمْرِ فِيهِ کوم چې عَين مال دی نو ځکه چې په هغه کې د کَيل کولو حکم صحيح دی وَأَمَّا الدَّيْنُ فَلِاتِّصَالِهِ بِمِلْكِهِ او کوم چې دَين مال دی نو ځکه چې هغه د مشتري د ملکيت سره يوځای سو وَبِمِثْلِهِ يَصِيرُ قَابِضًا او په داسې يو ځای کېدلو سره مشتري قابض ګرځي كَمَنِ اسْتَقْرَضَ حِنْطَةً وَأَمَرَهُ أَنْ يَزْرَعَهَا فِي أَرْضِهِ لکه [په هغه صورت کې چې] يو څوک [قابض ګرځي کله] چې غنم په قرض واخلي او بيا قرضخواه [قرض ورکونکي] ته حکم وکړي چې هغه دا غنم د ده په ځمکه کې وکري وَكَمَنْ دَفَعَ إِلَى صَائِغٍ خَاتَمًا وَأَمَرَهُ أَنْ يَزِيدَهُ مِنْ عِنْدِهِ نِصْفَ دِينَارٍ او لکه [په هغه صورت کې] کله چې يو څوک زرګر ته ګوتمې ورکړي او حکم ورته وکړي چې په دې کې له خپل طرفه نصف دينار [سره زر] اضافه کړي وَإِنْ بَدَأَ بِالدَّيْنِ او که چيرې بائع اول په دَين مال [مسلم فيه] شروع وکړي لَمْ يَصِرْ قَابِضًا نو مشتري قابض نه ګرځي أَمَّا الدَّيْنُ فَلِعَدَمِ صِحَّةِ الْأَمْرِ کوم چې پر دَين قابض نه ګرځېدل دي نو ځکه چې [په هغه کې] د کَيل کولو حکم صحيح نه دی وَأَمَّا الْعَيْنُ فَلِأَنَّهُ خَلَطَهُ بِمِلْكِهِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ او کوم چې عَين دی نو ځکه چې بائع له ورسپارلو څخه مخکې هغه د خپل ملکيت سره ګډ کړی فَصَارَ مُسْتَهْلِكًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو [چونکې] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه مال هلاک سو فَيَنْتَقِضُ الْبَيْعُ نو ځکه بيع به ماتيږي وَهٰذَا الْخَلْطُ غَيْرُ مَرْضِيٍّ بِهِ مِنْ جِهَتِهِ او داسې ګډول د مشتري له طرفه ناخوښه دي

لِجَوَازِ أَنْ يَكُونَ مُرَادُهُ الْبِدَايَةُ بِالْعَيْنِ ځکه چي ممکنه ده چي د مشتري مراد په عَين مال سره شروع کول وي وَعِنْدَهُمَا ۞ هُوَ بِالْخِيَارِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز [په دې صورت کې] مشتري ته اختيار دى إِنْ شَاءَ نَقَضَ الْبَيْعَ وَإِنْ شَاءَ شَارَكَهُ فِي الْمَخْلُوطِ که وغواړي نو بيع دي ماته وکړي او که وغواړي نو بائع دي په مخلوط مال کي شريک کړي لِأَنَّ الْخَلْطَ لَيْسَ بِاسْتِهْلَاكٍ عِنْدَهُمَا ځکه چي ګډول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هلاکول [ضايع کول] نه شمارل کيږي.

**اللغات**: ﴿استقرض﴾ د استفعال ماضي ده: په قرض اخيستل، په پور اخيستل، ﴿يزرع﴾ د فتح مضارع ده: شنه کول، کرل، ﴿صائغ﴾ زرګر، سنار، ﴿خلط﴾ د ضرب مصدر دى: سره ګډول (سره يو ځاى کول ﴿ينتقض﴾ د افتعال مضارع ده: ماتېدل (بيع فسخ کېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: ذا دى که يو سړى د بل سړي سره په يوه کُر غنمو کي بيع سَلم وکړي او د مسلم فيه (غنمو) د اداء کولو لپاره يوه مياشته ميعاد وټاکي، بيا چي کله ميعاد پوره سي نو ربُ السّلم د مسلم اليه څخه يو کُر غنم عَين (نقد) رانيسي، نو اوس پر مسلم اليه د دوه کره غنمو ورسپارل واجب سوه ① دَين غنم کوم چي مسلم فيه دي، ② عَين (نقد) غنم کوم چي مبيع دي، بيا مشتري (ربُ السلم) بائع ته بوريانې ورکړي او حکم ورته وکړى چي دَين غنم (مسلم فيه) او عَين غنم (مبيع) دواړه په دغه بوريو کي واچوه!، او بائع (مسلم إليه) د مشتري په ناموجوديت کي هغه دواړه د مشتري په بوريو کي واچوي، نو اوس به دې ته کتل کيږي چي بائع (کوم چي مسلم إليه هم دى) په بوريو کي اول کوم غنم واچول، که چيري بائع (مسلم إليه) په بوريو کي عَين مال (عَين غنم) اچولي وي او بيا يې دَين يعني مسلم فيه اچولي وي نو په دې صورت کي مشتري (کوم چي ربُ السلم هم دى) پر عَين او دَين دواړو مالونو (غنمو) قابض شمارل کيږي.

پر عَين مال يعني پر مبيع خو ځکه قابض شمارل کيږي چي مبيع د مُعيّن کېدلو په وجه د هغه مملوک ده (يعني د عَين [نقد] غنمو د رانيولو په وجه مشتري د هغه مالک سو)، نو ځکه په هغه کي د مشتري له طرفه د کَيل کولو حکم صحيح سو. او څرنګه چي دلته بائع د مشتري له طرفه نائب (وکيل) دى او د نائب فعل د اصيل (مؤکل) فعل شمارل کيږي، نو ځکه د بائع له طرفه کَيل کول او د مشتري په بوريو کي اچول داسي دي لکه په خپله د مشتري کَيل کول او په بوريو کي اچول. او څرنګه چي مشتري د

---

۞ القول الراجح: قول ابي حنيفة رحمه الله، كما تظهر من داب المصنف و اصول الفتوى. [القول الراجح ج:۲، ص:۸۰]

مبیع (غنمو) په کَیل کولو او په خپلو بوریو کې په اچولو سره قابض گرځي، نو ځکه په دې صورت کې به هم هغه قابض گرځي. او پر دَین یعني پر مسلم فیه د مشتري قبضه ځکه ثابتیږي چې مسلم فیه د مشتري د ملکیت یعني د عَین مال سره یو ځای سوی (متصل سوی) دی، او څرنګه چې د دواړو عاقدَینو د راضي کېدلو په صورت کې په داسي یو ځای کېدلو (متصل کېدلو) سره هم قبضه ثابتیږي، نو ځکه مشتري به پر دَین یعني پر مسلم فیه هم قابض شمارل کیږي.

د دې مثال داسي دی لکه زید چې له خالد څخه غنم په قرض واخلي بیا خالد ته حکم وکړي چې هغه غنم زما په ځمکه کې وکره! (شنه یې کړه!)، نو خالد د زید د حکم مطابق دا غنم د زید په ځمکه کې وکري، نو څرنګه چې دا غنم د زید د ملکیت یعني د ځمکي سره ګډ او یو ځای سول، نو ځکه زید پر دغه غنمو قبضه کونکی شمارل کیږي.

همدارنګه که څوک (مثلاً حامد) زرګر ته یوه ګوتمۍ ورکړي او دا ورته ووایي چې په دې کې له خپل طرفه نیم دینار سره زر ګډ کړه! جوړه یې کړه!، نو کله چې زرګر په ګوتمۍ کې هغومره سره زر ګډ کړي نو د ګوتمۍ مالک (حامد) پر هغه قابض شمارل کیږي، ځکه چې دا نصف دینار سره زر د هغه د ملکیت یعني د ګوتمۍ سره یو ځای او مخلوط سول. لهذا څرنګه چې په دغه دوو صورتونو او مثالونو کې د ملکیت مخلوط کېدلو او یو ځای کېدلو په وجه صاحبُ الملک (مالک) قابض شمارل سوی دی، همداسي به په پورتنۍ مسئله کې هم د ملکیت یو ځای کېدلو په وجه مشتري قابض شمارل کیږي.

وإن بدأ إلخ: او که بائع (مسلم إلیه) اول د بیع سَلم غنم یعني مسلم فیه د مشتري په بوریو کې واچوي او بیا هغه غنم ور واچوي کوم چې مبیع دي، نو په دې صورت کې ربُ السَلم یعني مشتري پر هغه قابض نه شمارل کیږي؛ پر دَین یعني پر مسلم فیه خو ځکه نه قابض گرځي چې د ربُ السَلم حق په دَین کې دی، او دَین یعني مسلم فیه غیر مُتعیّن دی (او په بوریو کې چې کوم غنم اچول سوي دي هغه عَین یعني مُتعیّن دي) نو مسلم فیه تر اوسه د مسلم الیه مال دی، او کله چې هغه د مسلم الیه مال دی، نو د ربُ السَلم حکم کول به څنګه صحیح وي!؟، او کله چې د ربُ السَلم حکم کول صحیح نه دي، نو ربُ السَلم به پر هغه قابض هم نه شمارل کیږي. او پاته سو عَین مال یعني هغه غنم کوم چې په مطلق بیع سره رانیول سوي دي نو څرنګه چې هغه مشتري ته تر ورسپارلو مخکي د مسلم الیه د ملکیت سره داسي ګډ سوي دي چې هغه نه سي سره جلا کول کېدای، نو ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دا مبیع هلاکه شمارل کیږي (یعني ګواکي مبیع د مشتري له قبضې څخه مخکي هلاکه سوه) او د مشتري له قبضې څخه مخکي د مبیع هلاکېدلو په صورت کې بیع فسخ کیږي، نو ځکه په دې

صورت کي به بيع فسخ کيږي، او کله چي بيع فسخ سوه نو ښکاره خبره ده چي مشتري قابض نه ګرځي (ځکه هغه به قبضه پر څه شي وکړي!؟).

وهذا الخلط إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي کله د مسلم اليه د ملکيت يعني د مسلم فيه سره د مبيع مخلوط کېدل (او متصل کېدل) د مشتري په اجازت سره حاصل سوي دي نو ځکه بيع فسخ کېدل پکار نه وو؟

نو د دې جواب دا دی چي مشتري په دې طريقه سره پر مخلوط کولو راضي نه وو، بلکي هغه په دې توګه پر مخلوط کولو راضي وو چي په هغه سره د ده قبضه ثابته سي، او هغه صورت دا دی چي مسلم اليه اول عَين مال په بوريو کي اچولي وای او بيا يې دَين يعني مسلم فيه اچولي وای، لهذا کله چي د هغه د رضا مطابق خلط موجود نه سو نو بيع به فسخ کيږي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کي مشتري ته اختيار دی که وغواړي نو بيع دي فسخ کړي او که وغواړي نو په مخلوط مال کي دي مسلم اليه د خپل ځان سره شريک کړي؛ ځکه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز خلط يعني مبيع (عَين مال) د مسلم فيه (دَين مال) سره ګډول استهلاک نه شمارل کيږي.

## د بيع سَلم د اقالې يو صورت

قَالَ: وَمَنْ أَسْلَمَ جَارِيَةً فِي كُرِّ حِنْطَةٍ او که څوک په يوه کُر غنمو کي د يو مينځي عقد سَلم وکړي وَقَبَضَهَا الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ ثُمَّ تَقَايَلَا او مسلم اليه پر هغه قبضه وکړي بيا دواړه عاقدين اقاله وکړي فَمَاتَتْ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي بيا هغه مينځه د مشتري [مسلم إليه] په قبضه کي مړه سي فَعَلَيْهِ قِيمَتُهَا يَوْمَ قَبْضِهَا نو پر مسلم اليه د مينځي هغه قيمت واجبيږي کوم چي د قبضه کولو په ورځ وو وَلَوْ تَقَايَلَا بَعْدَ هَلَاكِ الْجَارِيَةِ او که چيري دوی د مينځي تر هلاکېدلو وروسته اقاله وکړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ صِحَّةَ الْإِقَالَةِ تَعْتَمِدُ بَقَاءَ الْعَقْدِ ځکه چي د اقالې صحيح کېدل د عقد پر بقاء [پاته والي] اعتماد کوي [يعني د اقالې صحيح کېدل د عقد پر بقاء موقوف دي] وَذَلِكَ بِقِيَامِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ او د عقد بقاء د معقود عليه [مبيع] په موجودېدلو سره وي [يعني د عقد بقاء د مبيع پر بقاء او موجود والي موقوف دي] وَفِي السَّلَمِ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ إِنَّمَا هُوَ الْمُسْلَمُ فِيهِ او په عقد سَلم کي معقود عليه همدا مسلم فيه وي فَصَحَّتِ الْإِقَالَةُ حَالَ بَقَائِهِ نو ځکه د مسلم فيه د بقاء په صورت کي به اقاله صحيح وي وَإِذَا جَازَ ابْتِدَاءً او کله چي

اقاله ابتداءً جائز ده فَأَوْلیٰ أَنْ يَبْقَى انْتِهَاءً نو انتهاءً به په درجه اولیٰ باقي پاته وي لِأَنَّ الْبَقَاءَ أَسْهَلُ ځکه چي بقاء [د ابتداء په مقابله کي] زياته آسانه ده وَإِذَا انْفَسَخَ الْعَقْدُ فِي الْمُسْلَمِ فِيهِ او کله چي په مسلم فيه کي عقد فسخ سي اِنْفَسَخَ فِي الْجَارِيَةِ تَبَعًا نو تبعاً به په مينځه کي [هم] فسخ کيږي فَيَجِبُ عَلَيْهِ رَدُّهَا نو ځکه پر مسلم ايه به د مينځي واپس کول واجب وي وَقَدْ عَجَزَ مګر [څرنګه چي] هغه له دې شخه عاجز دی فَيَجِبُ عَلَيْهِ رَدُّ قِيمَتِهَا نو ځکه پر ده به د هغې قيمت واپس کول واجب وي.

**اللغات**: ﴿تقايلا﴾ د تفاعل ماضي ده: د بيع اقاله کول (په بيع کي پښېمانه کېدل او هغه فسخ کول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی په يوه کُرغنمو کي د مينځي عقد سَلم وکړي، يعني مينځه رأسُ المال وګرځوي او يو کُرغنم مسلم فيه وګرځوي، او مسلم اليه پر مينځي (راس المال) قبضه هم وکړي، بيا دواړه عاقدين د عقد سَلم اقاله وکړي، تر اقالې وروسته مينځه د مسلم اليه په قبضه کي مړه سي نو د مينځي په مرګ سره اقاله نه باطليږي بلکي اقاله جائز ده. او پر مسلم اليه د مينځي د هغه ورځي قيمت واجب دی چي په کومه ورځ هغه پر مينځي قبضه کړې وي.

ولو تقايلا إلخ: او که مينځه مخکي مړه سي او اقاله وروسته وکړي نو هم اقاله جائز ده؛ ځکه چي اقاله هغه وخت صحيح کيږي کله چي عقد موجود وي؛ او د دې وجه دا ده چي اقاله "د عقد فسخ کولو" ته وايي او د عقد فسخ له عقد شخه بغير نه سي کېدای، نو معلومه سوه چي د اقالې صحيح کېدل د عقد پر بقاء موقوف دي، او د عقد بقاء د معقود عليه پر بقاء موقوف ده. او په عقد سَلم کي معقود عليه مسلم فيه وي، او دلته مسلم فيه يعني "ما وجب في الذمه" (يو کُرغنم) موجود دي، لهذا کله چي مسلم فيه موجوده ده، يعني د مسلم اليه په ذمه کي دَين ثابت دی نو عقد سَلم به هم موجود وي، او کله چي عقد سَلم موجود دی نو اقاله کول به هم صحيح وي.

لهذا کله چي اقاله د مينځي تر مرګ وروسته ابتداءً جائز ده (لکه شنګه چي په دويمه مسئله کي دي)، نو د مينځي تر مرګ وروسته (لکه شنګه چي په اوله مسئله کي دي) په درجه اولیٰ اقاله جائز وي (ځکه په دې صورت کي خو د اقاله کولو پر مهال مينځه ژوندی پاته وي)، ځکه چي بقاء د ابتداء په مقابله کي زياته آسانه وي، لهذا کله چي بقاءً اقاله جائز ده نو ابتداءً به هم جائز وي.

وإذا انفسخ العقد إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي کله مينځه مړه سوې وي نو د هغې په حق کي اقاله شنګه ثابتيږي حال دا چي مړه مينځه بالکل د اقالې محل نه سي کېدای؟

د دې جواب دا دی چې په مسلم فيه يعني په يوه کُر غنمو کې عقد سَلم بالذات او بلا واسطه فسخ سوی دی لېکن د مینځې په حق کې بالتبع فسخ سوی دی، او ډېر شيان داسې وي چې هغه که څه هم قصداً نه ثابتيږي لېکن تبعاً ثابتيږي، نو ځکه د مړې مينځې په حق کې به تبعاً عقد سَلم فسخ کيږي، او کله چې د مينځې په حق کې عقدِ سَلم فسخ سو نو ځکه پر مسلم اليه د هغه مينځې واپس کول واجب سو، خو څرنګه چې مسلم اليه د مينځې د مړه کېدلو په وجه بعينهٖ د هغې له واپس کولو څخه عاجز سو، نو ځکه د مينځې قائم مقام يعني د هغې قيمت به پر واجب وي، او په قيمت کې به د هغه ورځې اعتبار کيږي په کومه ورځ چې مسلم اليه پر مينځې قبضه کړې وي، يعني پر مسلم اليه به د مينځې هغه قيمت لازم وي کوم چې د قبضه کولو په ورځ د هغې قيمت وو که څه هم د مرګ په ورځ د هغې قيمت کم يا زيات وي؛ ځکه چې سبب يعني قبضه (کوم چې د ضمان واجبونکې ده) په هغه ورځ کې موجوده سوه، نو ځکه د هغه ورځې د قيمت اعتبار به کيږي.

ښکاره دې وي چې که ربُ السَلم او مسلم اليه د مينځې په قيمت کې اختلاف وکړي نو د ربُ السَلم بيّنه به قبلول کيږي، او که د ربُ السَلم سره بيّنه نه وي نو د مسلم اليه قول به معتبر وي.

## د بيع سَلم د اقالې بل صورت

وَلَوِ اشْتَرَى جَارِيَةً بِأَلْفِ دِرْهَمٍ او که څوک يوه مينځه د زرو درهمو په عوض کې رانيسي ثُمَّ تَقَايَلَا بيا دواړه عاقدين اقاله وکړي فَمَاتَتْ فِي يَدِ الْمُشْتَرِيْ بيا مينځه د مشتري په قبضه کې مړه سي بَطَلَتِ الْإِقَالَةُ نو اقاله باطليږي وَلَوْ تَقَايَلَا بَعْدَ مَوْتِهَا او که د مينځې تر مرګ وروسته دواړه اقاله وکړي فَالْإِقَالَةُ بَاطِلَةٌ نو اقاله باطله ده لِأَنَّ الْمَعْقُوْدَ عَلَيْهِ فِي الْبَيْعِ إِنَّمَا هُوَ الْجَارِيَةُ ځکه چې په بيع کې معقود عليه همدا مينځه ده فَلَا يَبْقَى الْعَقْدُ بَعْدَ هَلَاكِهَا نو د مينځې تر مرګ وروسته به عقد باقي پاته نه سي فَلَا تَصِحُّ الْإِقَالَةُ ابْتِدَاءً نو ځکه ابتداءً اقاله نه صحيح کيږي فَلَا تَبْقَى انْتِهَاءً لهذا انتهاءً به هم باقي نه پاتيږي لِانْعِدَامِ مَحَلِّهٖ ځکه چې د اقالې محل معدوم سو وَهٰذَا بِخِلَافِ بَيْعِ الْمُقَايَضَةِ او دا د بيع مقايضې په خلاف دي حَيْثُ تَصِحُّ الْإِقَالَةُ وَتَبْقَى بَعْدَ هَلَاكِ أَحَدِ الْعِوَضَيْنِ ځکه [په بيع مقايضه کې ابتداءً هم] اقاله صحيح کيږي او د يوه عوض تر هلاکېدلو وروسته باقي پاتيږي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَبِيْعٌ فِيْهِ ځکه چې په بيع مقايضه کې له دواړو عوضونو څخه هر عوض مبيع وي.

**اللغات**: ﴿اقاله﴾ د افعال مصدر دی: اقاله کول (پښېمانه کېدل او بيع ماتول). ﴿مقايضة﴾ د مفاعلې مصدر دی: بيعُ العَين بالعَين، هغه بيع چي په هغه کي له دواړو طرفونو څخه مُعيّن شی (سامان) وي، يعني داسي نه وي لکه مطلق بيع چي په هغه کي له يوه طرف څخه ثمن او پيسې وي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک په مطلق بيع سره د زرو درهمو په عوض کي يوه مينځه رانيسي، بيا بائع او مشتري په خپل رضا سره اقاله وکړي، او تر اقالې وروسته مينځه د مشتري په قبضه کي مړه سي، نو د مينځي په مړګ سره اقاله باطليږي. او که چيري بائع او مشتري د مينځي تر مړګ وروسته اقاله وکړي نو هم اقاله باطليږي؛ ځکه چي په مطلق بيع کي همدا مينځه معقود عليه ده، او د اقالې لپاره د معقود عليه بقاء ضروري ده، لهذا کله چي معقود عليه مخکي هلاک سوه او اقاله وروسته وسوه، نو د اقالې د محل يعني د معقود عليه د نشتوالي په وجه اقاله (ګرسره) ابتداءً صحيح نه سوه. همدارنګه په اول صورت کي چي کله اقاله مخکي وسوه او معقود عليه وروسته هلاک سوه نو د معقود عليه د باقي نه پاتېدلو په وجه به اقالهْ هم باقي نه پاتيږي بلکي باطليږي به.

وهذا بخلاف بيع المقايضة إلخ: فرمايي چي په دې مسئله کي د اقالې د باطلېدلو صورت د بيع مقايضې په خلاف دی، يعني که په بيع مقايضه (بيعُ العين بالعين) کي د يوه عوض تر هلاکېدلو وروسته اقاله وسي نو هم جائز ده، او که تر اقالې وروسته يو عوض (احدُ العوضَين) هلاک سي نو هم اقاله جائز ده.

دليل دا دی چي په بيع مقايضه کي دعَين بالعين معامله وي او په دې بيع کي له دواړو عوضونو څخه هر عوض د مبيع او ثمن دواړو د جوړېدلو صلاحيت لري (يعني په بيع مقايضه کي هر عوض مبيع هم کېدای سي او ثمن هم کېدای سي)، نو کوم عوض چي هلاک سي هغه به ثمن ګرځول کيږي او کوم يو چي باقي پاته وي هغه به مبيع ګرځول کيږي، او څرنګه چي د مبيع د موجود والي په صورت کي اقاله جائز ده، نو ځکه په دې صورت کي به اقاله ابتداءً هم جائز وي او بقاءً هم.

## د مسلم فيه په کيفيت کي د اختلاف کولو پر مهال د چا قول معتبر دی؟

قَالَ: وَمَنْ أَسْلَمَ إِلَى رَجُلٍ دَرَاهِمَ فِي كُرِّ حِنْطَةٍ فرمايي: او که څوک د يوه کُر غنمو په بيع سَلم کي يو سړي ته دراهم ورکړي فَقَالَ الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ: شَرَطْتُ رَدِيئًا نو مسلم اليه ووايي چي ما د ردي [کمزورو غنمو] شرط لګولی وو وَقَالَ: رَبُّ السَّلَمِ لَمْ تَشْتَرِطْ شَيْئًا او ربُ السَلم ووايي: چي تا د هيڅ شي شرط نه وو لګولی فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُسْلَمِ إِلَيْهِ نو قول د مسلم اليه معتبر دی لِأَنَّ رَبَّ السَّلَمِ مُتَعَنِّتٌ فِي إِنْكَارِهِ الصِّحَّةَ ځکه چي د بيع سَلم د صحت [صحيح والي] په انکار کولو کي ربُ السَلم سرکښ [او

خپل ځان نقصان رسونکی] دی لِأَنَّ الْمُسْلَمَ فِيهِ يَرْبُو عَلَى رَأْسِ الْمَالِ فِي الْعَادَةِ ځکه چې مسلم فيه عموماً له رأسُ المال څخه زياته [او اعلیٰ] وي وَفِي عَكْسِهِ قَالُوا: يَجِبُ أَنْ يَكُونَ الْقَوْلُ لِرَبِّ السَّلَمِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د دې په برعکس صورت کې مشائخو ويلي دي: چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د ربُ السَلم قول معتبر کېدل ضروري دي لِأَنَّهُ يَدَّعِي الصِّحَّةَ وَإِنْ كَانَ صَاحِبُهُ مُنْكِرًا ځکه چې ربُ السَلم د دې عقد د صحيح والي دعویٰ کوي، که څه هم د هغه ملګري [له دې څخه] منکر دی وَعِنْدَهُمَا ❁ الْقَوْلُ لِلْمُسَلَّمِ إِلَيْهِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د مسلم اليه قول معتبر دی لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ وَإِنْ أَنْكَرَ الصِّحَّةَ ځکه چې مسلم اليه منکر دی، که څه هم هغه د سَلم له صحيح والي څخه انکار کړی دی وَسَنُقَرِّرُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او دا به موږ انشاء الله وروسته ثابته کړو.

**اللغات:** ﴿رديء﴾ خراب، کمزوري، کم ارزښته، ﴿متعنت﴾ د تفعّل فاعل دی: له حد څخه تېرېدونکی (تجاوز کونکی)، نقصان رسونکی او د بل چا د ذلالت طلبګار، سرکښ، مراد ځني هغه کس دی کوم چې له داسي شي څخه انکار کوي چې د هغه لپاره نفع مند وي او په دې سره د بل چا د ذليله کولو او تکليف رسولو اراده لري، ﴿يربو﴾ د نصر مضارع ده: زياتېدل، لوړېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که دوو خلکو يو د بل سره عقد سَلم وکړی، او ربُ السَلم مسلم اليه ته رأسُ المال ورکړی، بيا چې کله د مبيع (مسلم فيه) د اداء کولو وخت پوره سو، نو مسلم اليه ربُ السَلم ته وويل چې وروره! ما د "ردي" (کمزورو) غنمو د ورکولو شرط لګولی وو (يعني ما دا شرط لګولی وو چې زه تا ته ردي غنم درکوم)، نو ربُ السَلم ته خښم ورغلی او ورېې ويل چې نه! تا هيڅ شرط نه وو لګولی، نو په دې صورت کې به د مسلم اليه قول معتبر وي؛ ځکه چې مسلم اليه د عقد د صحيح والي دعویٰ کوي په دې توګه چې هغه د مسلم فيه وصف بيانوي، او په بيع سَلم کې د مسلم فيه وصف بيانول ضروري دي (لکه مخکې چې د بيع سَلم په شرطونو کې تېر سو)، نو ځکه د هغه دعویٰ صحيح ده، د دې په خلاف ربُ السَلم په خپل انکار کې سرکښ دی؛ ځکه چې مسلم فيه عموماً له رأسُ المال

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما هو ظاهر من أصول الافتاء التي ذكرت في العقود رسم المفتي (شرح عقود، ص: ۳۰). وقال المفتي غلام قادر النعماني: وإنما يعتبر قول مدعي الصحة؛ لأن قوله موافق لشرائط السلم، فأصول السلم يؤيد مدعي الصحة. [القول الراجح ج: ۲، ص: ۸۰]

څخه زياته او اعلیٰ وي (او رأس المال تر هغه ادنیٰ وي)، لهذا د عقد سَلم په باقي پاتېدلو کي د هغه نفع ده، او کوم سړی چي له نفع مند شي څخه انکار کوي هغه ته شرعاً متعنّت وايي، او د متعنّت قول مقبول او معتبر نه وي، نو ځکه موږ دلته د ربُ السَلم قول مردود وګرځوی.

وفي عكسه إلخ: فرمايي که د پورتنۍ مسئلې صورت د دې برعکس وي، يعني ربُ السَلم د مسلم فيه د "ردي کېدلو" د شرط دعویٰ وکړي (مطلب دا چي وصف بيان کړي او د عقد سَلم د صحت دعویٰ وکړي)، او مسلم اليه له دې څخه انکار وکړي او د عقد سَلم د فاسدېدلو دعویٰ وکړي، نو د مشائخو رايه دا ده چي په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د ربُ السَلم قول معتبر دی، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په دې صورت کي د مسلم اليه قول معتبر دی.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي که څه هم په ښکاره دلته ربُ السَلم د عقد سَلم د صحت د دعویٰ کولو په وجه مدعي دی او مسلم اليه منکر دی، خو بيا هم ربُ السَلم د مدعي کېدلو باوجود د ظاهري حالت موافق خبره کوي، حال دا چي د مسلم اليه قول د ظاهري حالت مخالف دی؛ ځکه چي د مسلمان ظاهري حالت همدا دی چي هغه صحيح عقد کوي او له غلط عقد څخه پوره ځان ساتي، نو ځکه د ربُ السَلم قول د ظاهري حالت مطابق دی، او قاعده دا ده چي "مَنْ سَاعَدَهُ الظَّاهِرُ فَالْقَوْلُ قَوْلُه" يعني قول د هغه کس معتبر دی چي ظاهري حالت د هغه موافق وي. نو ځکه په دې صورت کي به د ربُ السَلم قول معتبر وي؛ ځکه چي ظاهري حالت د هغه موافق دی.

لېکن صاحبين رَحِمَهُمَا الله د مسلم اليه د منکر کېدلو پر بناء د "القول قول المنكر عند عدم البينة" د قاعدې په وجه د مسلم اليه قول معتبر مني، لېکن دا صحيح نه دي؛ ځکه چي دا قاعده د صحت په انکار کي نه جاري کيږي (او دلته مسلم إليه د عقد د صحت انکار کوي. نو ځکه دلته به دا قاعده نه جاري کيږي او د هغه قول به معتبر نه وي).

## د سَلم په ميعاد کي د اختلاف کولو په صورت کي د چا قول معتبر دی؟

وَلَوْقَالَ الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ: لَمْ يَكُنْ لَهُ أَجَلٌ او که چيري مسلم اليه ووايي: چي [د مسلم فيه د اداء کولو لپاره] هيڅ ميعاد نه وو وَقَالَ رَبُّ السَّلَمِ: بَلْ كَانَ لَهُ أَجَلٌ او ربُ السَلم ووايي: چي [نه!] بلکي د هغه لپاره ميعاد وو فَالْقَوْلُ قَوْلُ رَبِّ السَّلَمِ نو قول د ربُ السَلم معتبر دی لِأَنَّ الْمُسْلَمَ إِلَيْهِ مُتَعَنِّتٌ فِي إِنْكَارِهِ حَقًّا

لَهُ وَهُوَ الأَجَلُ ځکه چې مسلم اليه د خپل حق يعني د ميعاد په انکار کولو کې سرکښې دی وَالْفَسَادُ
بِعَدَمِ الأَجَلِ غَيْرُ مُتَيَقَّنٍ او د ميعاد د نشتوالي په وجه [د عقدِ سلم] فاسدېدل يقيني نه دي لِمَكَانِ
الاِجْتِهَادِ ځکه چې [په دې کې] اجتهاد [او اختلاف] دی فَلَا يُعْتَبَرُ النَّفْعُ فِي رَدِّ رَأْسِ الْمَالِ نو ځکه د
رأسُ المال په واپس کولو کې به نفع معتبر نه وي بِخِلَافِ عَدَمِ الْوَصْفِ په خلاف د وصف د
نشتوالي [يعني په خلاف د وصف نه بيانولو] وَفِي عَكْسِهِ الْقَوْلُ لِرَبِّ السَّلَمِ عِنْدَهُمَا او د دې په برعکس
صورت کې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د ربُ السلم قول معتبر دی لِأَنَّهُ يُنْكِرُ حَقًّا عَلَيْهِ ځکه چې
هغه پر ځان د حق لازمېدلو څخه انکار کوي [يعني ربُ السلم له هغه حق څخه انکار کوي کوم چې د مسلم
إليه پر ربُ السلم لازم دی] فَيَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلُهُ وَإِنْ أَنْكَرَ الصِّحَّةَ نو ځکه د هغه قول به معتبر وي، که څه هم
هغه د [بيع سلم] له صحيح والي څخه انکار کوي كَرَبِّ الْمَالِ إِذَا قَالَ لِلْمُضَارِبِ: شَرَطْتُ لَكَ نِصْفَ
الرِّبْحِ إِلَّا عَشَرَةً لکه ربُ المال چې مضارب ته ووايي: چې ما ستا لپاره د لسو درهمو څخه بغير د
نيمايي نفع شرط لګولی وو وَقَالَ الْمُضَارِبُ: لَا بَلْ شَرَطْتَ لِي نِصْفَ الرِّبْحِ او مضارب ووايي چې: نه!
بلکې تا زما لپاره د پوره نيمايي نفع شرط لګولی وو فَالْقَوْلُ لِرَبِّ الْمَالِ نو [په دې صورت کې] د ربُ
المال قول معتبر دی لِأَنَّهُ يُنْكِرُ اسْتِحْقَاقَ الرِّبْحِ وَإِنْ أَنْكَرَ الصِّحَّةَ ځکه چې هغه د نفع له استحقاق څخه
منکر دی، که څه هم د مضاربت له صحت [صحيح والي] څخه هم انکار کوي وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ الْقَوْلُ
لِلْمُسْلَمِ إِلَيْهِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مسلم اليه قول معتبر دی لِأَنَّهُ يَدَّعِي الصِّحَّةَ ځکه چې
هغه د عقد د صحت [صحيح والي] دعویٰ کوي وَقَدِ اتَّفَقَا عَلَى عَقْدٍ وَاحِدٍ حال دا چې دوی دواړه
صرف پر يوه عقد متفق دي فَكَانَا مُتَّفِقِينَ عَلَى الصِّحَّةِ ظَاهِرًا نو ځکه دوی به ظاهراً د عقد پر صحت
هم متفق وي بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ الْمُضَارَبَةِ په خلاف د مضاربت د مسئلې لِأَنَّهُ لَيْسَ بِلَازِمٍ ځکه چې
مضاربت لازم عقد نه دی فَلَا يُعْتَبَرُ الاِخْتِلَافُ فِيهِ لهذا په هغه کې به اختلاف معتبر نه وي فَبَقِيَ
مُجَرَّدُ دَعْوَى اسْتِحْقَاقِ الرِّبْحِ نو ځکه صرف د نفع د استحقاق دعویٰ پاته سوه أَمَّا السَّلَمُ فَلَازِمٌ او

کوم چي بيع سَلم دی نو هغه يو لازم عقد دی فَصَارَ الْأَصْلُ أَنَّ مَنْ خَرَجَ كَلَامُهُ تَعَنُّتًا نو قاعده دا سوه چي د کوم عاقد کلام د سرکښۍ په توګه صادر سي فَالْقَوْلُ لِصَاحِبِهِ بِالِاتِّفَاقِ نو قول د هغه د ملګري معتبر دی، د ټولو په اتفاق سره وَإِنْ خَرَجَ خُصُومَةً وَوَقَعَ الِاتِّفَاقُ عَلَى عَقْدٍ وَاحِدٍ او که چيري د عاقد کلام د خصومت په توګه صادر سي او پر يوه عقد اتفاق واقع سي فَالْقَوْلُ لِمُدَّعِي الصِّحَّةِ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [د عقد] د صحت د مدعي قول معتبر دی وَعِنْدَهُمَا لِلْمُنْكِرِ وَإِنْ أَنْكَرَ الصِّحَّةَ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز [له عقد څخه] د منکر قول معتبر دی که څه هم له صحت څخه انکار کوي.

**اللغات:** ﴿أجل﴾ ميعاد، ټاکل سوی مودت، نېټه. ﴿مجرد﴾ محض، صرف، فقط. ﴿ربح﴾ نفع، ګټه. ﴿تعنت، خصومة﴾ "تعنت" د تفعّل د باب مصدر دی: له حد څخه تجاوز کول، سرکښي (پوره تعريف يې مخکي تېر سو)، "خصومت" د سمع د باب مصدر دی: جنګ او جنجال. (دلته د تعنت او خصومت مختصر مطلب دا دی چي که په عقد کي د يو عاقد فايده وي بيا هم هغه انکار کوي نو دې ته "تعنت" وايي، او که په عقد کي د يو عاقد نقصان وي او په دې وجه هغه انکار کوي نو دې ته "خصومت" وايي). (أثمار الهدايه)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيري د مسلم اليه او ربُ السَلم په مينځ کي د ميعاد ټاکلو په هکله اختلاف راسي، مثلاً مسلم اليه ووايي چي د مسلم فيه د اداء کولو لپاره هيڅ ميعاد نه وو ټاکل سوی او ربُ السَلم ووايي چي نه! ميعاد ټاکل سوی وو، نو په دې صورت د احنافو په نيز بالاتفاق د ربُ السَلم قول معتبر دی؛ ځکه چي دلته ربُ السَلم د عقد د صحت او د مسلم اليه لپاره د نفع مند شي دعویٰ کوي، حال دا چي مسلم اليه د فساد دعویٰ کوي او له عقد او نفع مند شي څخه انکار او سرکښي کوي، او مخکي ذکر سوه چي د متعنّت قول مردود او غير معتبر وي، نو ځکه په دې صورت کي به صرف د ربُ السَلم قول معتبر وي او مسلم اليه کوم چي متعنّت دی د هغه قول به معتبر نه وي.

والفساد إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي مسلَم اليه د اجل (ميعاد) په انکار کولو کي متعنّت نه دی؛ ځکه چي د ميعاد په انکار کولو سره عقد سَلم فاسديږي، او کله چي عقد سَلم فاسد سي نو ښکاره خبره ده چي مسلم اليه به ربُ السَلم ته رأسُ المال واپس کوي، او کله چي ربُ السَلم ته رأسُ المال واپس حاصل سي نو د مسلم اليه سره به مسلم فيه (مبيع) سلامت پاته سي، او تاسو ته معلومه ده چي مسلم فيه له رأسُ المال څخه زياته (او اعلیٰ) وي (نو ګواکي هغه نفع مند شی د ځان

لپاره محفوظ کړی، لنده دا چي د رأسُ المال په واپس کولو کي د هغه نفع ده)، نو ځکه په دې صورت کي به مسلم الیه په خپل انکار کي متعنّت نه وي، او کله چي هغه متعنّت نه دی نو د هغه قول به مردود هم نه وي.

د دې جواب دا دی چي د میعاد نه ټاکل کېدلو په وجه د عقدِ سَلم فاسدېدل یقیني نه دي؛ ځکه دا مسئله مختلف فیه ده، د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز عقدِ سَلم حالي (في الحاله) هم جائز دی، یعني له میعاد ټاکلو څخه بغیر هم جائز دی، او د نورو علماؤ په نېز جائز نه دی، لهذا کله چي د میعاد د انکار کولو په صورت کي د عقدِ سَلم فاسدېدل یقیني نه دي، نو مسلم فیه به د مسلم الیه لپاره سلامت هم پاته نه وي او د رأسُ المال په واپس کولو کي به د هغه نفع هم نه وي، ها! میعاد کوم چي د مسلم الیه ظاهري حق دی او نفع ده، نو د هغه د انکار کولو په وجه به مسلم الیه خامخا متعنّت او سرکښ وي، او څرنګه چي د متعنّت قول مردود وي، نو ځکه د هغه قول به هم مردود او غیرِ معتبر وي.

بخلاف إلخ: فرمایي که چیري مسلم الیه د مسلم فیه د "ردي کېدلو" شرط ولګوي او ربُ السَلم له هغه څخه انکار وکړي، نو په دې صورت کي د مسلم الیه قول معتبر دی؛ ځکه چي د وصف نه بیانولو په صورت کي د عقدِ سَلم فاسدېدل یقیني او غیر مختلف فیه ده، نو د وصف له بیان څخه د انکار کولو په وجه به ربُ السَلم متعنّت وي، او تاسو ته معلومه ده چي د متعنّت او سرکښ قول معتبر نه دی، نو ځکه په دې صورت کي به د ربُ السَلم قول معتبر نه وي، بلکي د مسلم الیه قول به معتبر وي.

ولو عکسه إلخ: د دې حاصل دا دی چي د متن مسئله که د دې برعکس وي، یعني مسلم الیه د میعاد ټاکلو دعویٰ کوي او ربُ السَلم له هغه څخه انکار کوي، نو په دې صورت کي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د ربُ السَلم قول معتبر دی او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مسلم الیه قول معتبر دی.

لأنه ینکر حقًا إلخ: د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي ربُ السَلم له یو داسي حق څخه انکار کوي کوم چي پر هغه لازم دی، ځکه چي د مسلم فیه د اداء کولو لپاره میعاد ټاکل د مسلم الیه حق دی، او بیا په دې کي د هغه نفع هم سته په دې توګه چي مسلم الیه به په دې موده کي په رأسُ المال سره کاروبار وکړي او له هغه څخه به نفع حاصله کړي، لېکن ربُ السَلم د میعاد په انکار کولو سره د مسلم الیه له دغه حق او نفع څخه انکار کوي او د هغه د نفع لاره بندوي، او په دې ضمن کي هغه له عقدِ سَلم څخه هم انکار کوي، او مسلم الیه د خپل حق او نفع دعویٰ کوي، لېکن څرنګه چي د هغه سره بیّنه نسته، نو ځکه د "البَیِّنَةُ عَلَى المُدَّعِيْ وَالیَمِیْنُ عَلَى مَنْ أَنْکَرَ" د قاعدې پر بناء به په دې صورت کي د منکر یعني د ربُ السَلم قول معتبر وي.

کرب المال إلخ: صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د دې مثال داسي دی لکه په عقد مضاربت کي چي ربُ المال مضارب ته ووايي چي ما ستا لپاره د نصف نفع (نيمايي ګټي) شرط لګولی وو ما سوا د لسو درهمو څخه (يعني ما دا شرط لګولی وو چي کومه نفع په مال مضاربت سره حاصله سي په هغه کي به لس درهمه خاص زما وي او پاته نفع به زما او ستا په مينځ کي نصف، نصف وي)، او مضارب ووايي چي تا د لسو درهمو استثناء نه وکړه بلکي شرط دا وو چي ټوله به نفع زما او ستا په مينځ کي نصف، نصف وي، نو په دې صورت کي د ربُ المال قول معتبر دی؛ ځکه چي ربُ المال له هغه زياتي نفع څخه انکار کوي چي مضارب د هغه مستحق دی، يعني ربُ المال چي کوم لس دراهم د ځان لپاره خاص کړي دي د هغه په هکله مضاب وايي چي زه په هغه کي ستا سره برابريم شريک يم او زما حق په هغه کي هم ثابت دی، ليکن ربُ المال د مضارب له دغه حق څخه انکار کوي، نو که څه هم د ربُ المال په دغه انکار سره عقد مضاربت فاسديږي خو بيا هم د هغه قول به معتبر وي، ځکه چي هغه منکر دی، او تاسو ته معلومه ده چي کـه د مدعي سره بيّـنه نه وي نو په دې صورت کي د منکر قـول معتبر دی. لهذا څرنګه چي د مضاربت والا په مسئله کي د منکر قول معتبر کيږي، همداسي به د بيع سَلم والا په مسئله کي هم د ربُ السَلم (کوم چي منکر دی) قول به معتبر وي.

وعند أبي حنيفة: څرنګه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د مسلم اليه قول معتبر دی، نو د هغه دليل دا دی چي مسلم اليه د عقد د صحت دعوىٰ کوي، او مسلم اليه او ربُ السَلم دواړه پر يوه عقد يعني پر عقد سَلم متفق دي، نو ګواکي هغوی دواړه د عقد سَلم پر صحت هم متفق دي، حال دا چي ربُ السَلم د ميعاد په انکار کولو سره د دې عقد له صحت څخه هم منکر دی، ليکن ظاهري حالت د مخکي په څېر دلته هم د مسلم اليه په حق کي ګواه دی، نو ځکه د فقهي قاعدې "مَنْ سَاعَدَهُ الظَّاهِر ...إلخ" پر بناء به صرف د مسلم اليه قول معتبر وي.

صاحب د بنايې د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل داسي هم ذکر کړی دی چي کله ربُ السَلم او مسلم اليه د عقد سَلم پر انعقاد اتفاق وکړی نو د دې په ضمن کي هغوی د عقد سَلم د ټولو شرائطو او واجباتو اقرار هم وکړی، نو تر دې وروسته د ربُ السَلم له طرفه د ميعاد ټاکلو انکار کول "انکار بعد الاقرار" دی، او اقرار بعد الانکار لره اعتبار نسته، نو ځکه به د ربُ السَلم قول معتبر نه وي. (بنايه)

بخلاف المضاربة إلخ: صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دا مسئله پر عقد مضاربت قياس کړې وه، له دې ځايه صاحب د کتاب د هغو د قياس ترديد کوي فرمايي چي عقد سَلم پر عقد مضاربت قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چي په مضاربت او سَلم کي فرق دی، اول فرق يې دا دی چي کله په عقد مضاربت کي

اختلاف راسي نو هغه مضاربت نه پاتيږي بلکي اجاره ګرځي، د دې په خلاف که په عقد سَلم کي اختلاف راسي (مثلا عاقدَين د ميعاد په هکله اختلاف وکړي) نو د دې باوجود هغه سَلم پاتيږي او په بل عقد سره نه بدليږي. او د دواړو عاقدَينو له رضا څخه بغير يوازي يو عاقد هم عقد سَلم نه سي فسخ کولای، حٰال دا چي عقد مضاربت غيرِ لازم وي او يوازي مضارب يا ربُ المال هم هغه فسخ کولای سي. لهذا په دې حواله سره هم په دواړو کي فرق سته، نو ځکه يو پر بل قياسول صحيح نه دي.

او بيا په عقد مضاربت کي د ربُ المال د قول معتبر کېدلو وجه دا ده چي د مضارب او ربُ المال په اختلاف سره عقد مضاربت فاسديږي، نو ځکه په هغه کي به د دوی اختلاف هم معتبر نه وي، لهذا کله چي د دویٰ اختلاف معتبر نه دی نو ځکه صرف د مضارب د "استحقاق النفع" دعویٰ او د ربُ المال انکار باقي پاته سو، او څرنګه چي د مدعي يعني د مضارب سره بيّنه نسته، نو ښکاره خبره ده چي د ربُ المال (کوم چي منکر دی) قول به معتبر وي. د دې په خلاف څرنګه چي عقد سَلم لازم عقد دی، نو ځکه د عاقدَينو په اختلاف سره هغه نه ختميږي، او کله چي عقد سَلم ختم نه سو، نو ربُ السَلم (کوم چي د ميعاد انکار کړی دی) ګواکي هغه د عقد د عقد سَلم د فاسدېدلو دعویٰ کوي، نو ځکه د دې انکار په وجه هغه متعنّت او سرکښ دی، او تاسو ته معلومه دي چي د سرکښ قول معتبر نه وي.

فصا ر الأصل إلخ: فرمايي مخکي چي موږ کوم تفصيلات بيان کړل له هغوی څخه دا قاعده کليه را ووتل چي د کوم عاقد کلام پر تعنت او سرکښۍ مشتمل وي په دې توګه چي هغه له داسي شي څخه انکار کوي کوم چي د هغه لپاره نفع مند وي، نو احنافو په اتفاق د هغه قول مردود او غير معتبر دی او هغه ته متعنّت وايي. او د کوم عاقد کلام چي پر خصومت مشتمل وي په دې توګه چي هغه له داسي شي څخه انکار کوي کوم چي د هغه لپاره نقصان مند وي او دواړه عاقدين پر يوه عقد متفق وي، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه عاقد قول معتبر دی کوم چي د عقد د صحت دعویٰ کوي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغه عاقد قول معتبر دی کوم چي د عقد له صحت څخه انکار کوي.

## په کپړو کي د بيع سلم حکم

قَالَ: وَيَجُوزُ السَّلَمُ فِي الثِّيَابِ إِذَا بَيَّنَ طُولًا وَعَرْضًا وَرُقْعَةً فرمايي: او په کپړو کي بيع سلم جائز ده [په دې شرط] کله چي عاقد د هغوی اوږدوالی، پلنوالی او نری والی [باريک والی] بيان کړي لِأَنَّهُ أَسْلَمَ فِي مَعْلُومٍ مَقْدُورِ التَّسْلِيمِ ځکه چي [په دې صورت کي] ده په داسي معلوم شي کي بيع سَلم کړې ده

چې د هغه ورسپارل [د ده] په قدرت کې دي عَلَىٰ مَا ذَكَرْنَا لکه مخکې چې موږ ذکر کړه وَإِنْ كَانَ ثَوْبُ حَرِيْرٍ او که چيرې هغه ورېښمي کپړه وي لَا بُدَّ مِنْ بَيَانِ وَزْنِهٖ أَيْضًا نو د هغې وزن بيانول هم ضروري دي لِأَنَّهٗ مَقْصُوْدٌ فِيْهِ ځکه چې په ورېښمو کې وزن [هم] مقصود وي وَلَا يَجُوْزُ السَّلَمُ فِي الْجَوَاهِرِ وَلَا فِي الْخَرَزِ او په جواهرو او قيمتي دانو کې بيع سَلَم جائز نه ده لِأَنَّ آحَادَهَا مُتَفَاوِتَةٌ تَفَاوُتًا فَاحِشًا ځکه چې د هغوی په افرادو کې زيات تفاوت وي وَفِي صِغَارِ اللُّؤْلُؤِ الَّتِيْ تُبَاعُ وَزْنًا يَجُوْزُ السَّلَمُ او په هغه کوچنيو ملغلرو کې کوم چې په وزن سره خرڅول کيږي بيع سَلَم جائز ده لِأَنَّهٗ مِمَّا يُعْلَمُ بِالْوَزْنِ ځکه چې هغوی په وزن سره معلومېدای سي وَلَا بَأْسَ بِالسَّلَمِ فِي اللَّبِنِ وَالْآجُرِّ إِذَا سَمّٰى مِلْبَنًا مَعْلُوْمًا او په کچه او پخه خښتو کې بيع سَلَم جائز ده [په دې شرط] کله چې عاقد معلوم سانچه [غالب] بيان کړي لِأَنَّهٗ عَدَدِيٌّ مُتَقَارِبٌ لَا سِيَّمَا إِذَا سَمَّى الْمِلْبَنَ ځکه چې خښته عددي متقارب ده خصوصاً [په هغه صورت کې] کله چې د هغې سانچه بيان کړی سي.

**اللغات**: ﴿مقدور التسليم﴾ هغه شی چې ورسپارل يې د انسان په قدرت کې وي (يعني هغه څه چې انسان د هغه پر ورکولو او ورسپارلو قدرت لري)، ﴿حرير﴾ ورېښم، رېښم (رېشم)، ﴿جواهر﴾ جمع د جَوْهَرٌ: قيمتي کاڼي (ډبره) چې له هغه څخه نفع مند شيان (مثلاً غمیان او داسې نور) جوړېږي، ﴿خَرَز﴾ جمع د خَرَزَةٌ ده: قيمتي دانې او غميان (کوم چې په تار پېودل کيږي)، ﴿لبن﴾ کچه خښتې، ﴿آجر﴾ پخې خښتې، ﴿مِلْبَن﴾ د خښتو د جوړولو سانچه، يعني د خښتو غالب (قالب)، ﴿لا سيّما﴾ خصوصاً، په ځانګړې توګه.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د کپړې طول، عرض، پنډوالی او نری والی بيان کړی سي، نو د هغه کپړې بيع سَلَم جائز ده؛ ځکه چې په دې صورت کې کپړه معلومه او مقدورُ التسليم وګرځي، او مخکې ذکر سوه چې د معلوم او مقدورُ التسليم شي بيع سَلَم جائز ده. نو ځکه د داسې کپړې بيع سَلَم به هم جائز وي.

او که چيرې ورېښمي کپړه وي نو صرف طول او عرض بيانول کافي نه دي، بلکې د هغې وزن بيانول هم ضروري دي؛ ځکه چې د ورېښمو په کپړه کې د طول او عرض سره د هغې وزن هم مقصود وي، همدا وجه ده چې د وزن په کمېدلو يا زياتېدلو سره د ورېښمي کپړې قيمت هم بدليږي؛ لهذا کله

چې وزن هم مقصود دی نو د هغه بیانول به هم ضروري وي. لېکن د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمُ الله په نېز د وزن بیانول ضروري نه دي.

ولا یجوز السلم إلخ: څرنګه چې غټ جواهر، قیمتي دانې او ملغلرې د عددي متفاوت شي له قبیلې څخه دي، یعني چونکې هغوی عددي (معدودي) شیان دي (یعني په شمېر سره خرڅول کیږي) او د هغوی په افرادو کې د مالیت په اعتبار سره زیات تفاوت هم سته، نو ځکه په هغوی کې بیع سَلم جائز نه ده (ځکه مخکې ذکر سوه چې د عددي متفاوت شي بیع سَلم جائز نه ده). او کوچنۍ ملغلرې کوم چې په وزن سره خرڅول کیږي (مثلاً هغه ملغلرې کوم چې په رانجه [سرمه] او دواء کې اچول کیږي) د هغوی بیع سَلم په وزن سره جائز ده؛ ځکه چې هغوی په وزن سره معلومېدای سي، او د معلوم شي بیع سَلم جائز ده، نو ځکه د هغوی بیع سَلم به هم جائز وي.

ولا بأس إلخ: فرمایي که چیرې د خښتو د غالب مُتعیّن مقدار (سایز) بیان کړی سي نو د خښتو بیع سَلم جائز ده؛ ځکه چې خښته د عددي متقارب شي له قبیلې څخه ده، یعني د مالیت او قیمت په اعتبار سره د هغې په افرادو کې تفاوت نسته، او د عددي متقارب شي بیع سَلم جائز ده، نو ځکه د دې خښتو بیع سَلم به هم جائز وي.

## د بیع سَلم قاعدهٔ کُلیه

قَالَ: وَكُلُّ مَا أَمْكَنَ ضَبْطُ صِفَتِهِ وَمَعْرِفَةُ مِقْدَارِهِ فرمایي: او هر داسې شی چې د هغه صفت ضبطول او د هغه مقدار معلومول ممکن وي جَازَ السَّلَمُ فِيهِ نو په هغه کې بیع سَلم جائز ده لِأَنَّهُ لَا يُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ ځکه چې دا جنګ [او اختلاف] ته رسول نه کوي [یعني د جنګ سبب نه ګرځي] وَمَا لَا يُضْبَطُ صِفَتُهُ وَلَا يُعْرَفُ مِقْدَارُهُ او د کوم شي صفت چې نه سي ضبط کېدلای او نه د هغه مقدار معلومېدای سي لَا يَجُوزُ السَّلَمُ فِيهِ نو په هغه کې بیع سَلم جائز نه ده لِأَنَّهُ دَيْنٌ ځکه چې هغه دَین [قرض] دی وَبِدُونِ الْوَصْفِ يَبْقَى مَجْهُولًا جَهَالَةً تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ او له وصف [بیانولو] څخه بغیر داسې مجهول پاتیږي کوم چې جنګ ته رسول کوي وَلَا بَأْسَ بِالسَّلَمِ فِي طَسْتٍ أَوْ قُمْقُمَةٍ أَوْ خُفَّيْنِ أَوْ نَحْوَ ذَلِكَ إِذَا كَانَ يُعْرَفُ او په تال، قمقمه [پتک]، موزو یا داسې نورو شیانو کې د بیع سَلم په کولو کې هیڅ حرج نسته په دې شرط چې هغوی معلوم وي لِاسْتِجْمَاعِ شَرَائِطِ السَّلَمِ ځکه چې [په دې صورت کې] د سَلم

شرطونو جمع [او موجود] دي وَإِنْ كَانَ لَا يُعْرَفُ او كه معلوم نه وي فَلَا خَيْرَ فِيهِ نو د هغه په بيع سَلم كي خير [ښېګڼه] نسته لِأَنَّهُ دَيْنٌ مَجْهُولٌ ځكه چي دا مجهول دَين [قرض] دی.

**اللغات:** ﴿ضبط﴾ د ضرب مصدر دی: ټينګ ياد ساتل، په ضبط کي راوستل (ضبطول، منضبط كول)، ﴿لا يفضي﴾ د افعال د باب نفي صيغه ده: رسول (رسوول)، سبب جوړېدل، ﴿منازعة﴾ جنګ، جګړه، ﴿طست﴾ تال (غټه تالی)، له مسو او داسي نورو څخه جوړ لګن (المعجم الوسيط)، غټ پلن او اوار لوښی، ﴿قمقة﴾ له مسو څخه جوړ د اوبو پټک کوم چي دوه لاستي لري چي هغه به عموماً مسافر د ځان سره په سفر کي وړی (المصباح المنير، المعجم الوسيط)، ﴿خفين﴾ تثنيه د خُفٌّ ده: څرمني موزې (هغه موزې کوم چي له څرمني [چمړې] څخه جوړي کړل سوي وي).

**تشريح:** په دې عبارت کي امام قدوري رَحِمَهُ الله يوه قاعده بيانوي، د قاعدې حاصل دا دی چي هر هغه شی چي صفت يې په ضبط کي راوستل او د هغه مقدار معلومول ممکن وي، د هغه بيع سَلم جائز ده لکه مکيلات، موزونات، مزروعات او عدديات متقاربه؛ دليل دا دی چي د داسي شي په ورسپارلو کي د جنګ او نزاع خطره نسته، او کله چي د نزاع خطره نسته نو بيع سَلم به هم جائز وي.

او د کوم شي صفت چي په ضبط کي راوستل او د هغه مقدار معلومول ممکن نه وي، نو د هغه بيع سَلم جائز نه ده؛ دليل دا دی چي مسلم فيه دَين وي يعني د مسلم اليه پر ذمه واجب وي، او دَين (يعني کوم شی چي د مسلم اليه پر ذمه واجب وي هغه) له وصف بيانولو څخه بغير مجهول او نامعلوم پاتېږي، او مجهول هم داسي کوم چي نزاع پيدا کوي، او داسي جهالت کوم چي جنګ او نزاع پيدا کوي بيع فاسدوي، نو ځکه د داسي شي (مسلم فيه) بيع سَلم جائز نه ده چي د هغه وصف منضبط نه وي او مقدار يې معلوم نه وي.

ولا بأس إلخ: امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي د تالی، څراغ، څرمني موزې او د داسي نورو شيانو (لکه کاسه، ګيلاس، استيلي او مِسي لوښو) بيع سَلم جائز ده په دې شرط چي په وصف بيانولو سره دا شيان معلوم وګرځي؛ ځکه چي په دې صورت کي د بيع سَلم ټوله شرطونه جمع کيږي. او که يو شی د وصف بيانولو باوجود معلوم نه ګرځي (يعني که يو شی داسي وي چي که څه هم د هغه وصف بيان کړی سي لېکن بيا هم هغه معلوم نه وګرځي بلکي مجهول وي) نو د هغه بيع سَلم جائز نه ده؛ ځکه چي په دې صورت کي مسلم فيه مجهول دَين دی او د مجهول کېدلو په وجه نزاع پيدا کيږي، او کوم جهالت چي نزاع پيدا کوي هغه بيع فاسدوي، نو ځکه په دې صورت کي به بيع سَلم فاسد او ناجائز وي.

# د استصناع حکم

قَالَ: وَإِنِ اسْتَصْنَعَ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ بِغَيْرِ أَجَلٍ او که [يو څوک] له دغه مذکوره شيانو څخه يو شی له ميعاد [مياد] ټاکلو څخه بغير په اړر جوړ کړي جَازَ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً جائز دي لِلْإِجْمَاعِ الثَّابِتِ بِالتَّعَامُلِ د هغه اجماع په وجه کوم چي [د خلکو] په تعامل سره ثابته ده وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَجُوزُ او د قياس مطابق جائز نه دي لِأَنَّهُ بَيْعُ الْمَعْدُومِ ځکه چي دا د معدوم شي بيع ده وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ يَجُوزُ بَيْعًا لَا عِدَةً او صحيح دا ده چي استصناع د بيع په توګه جائز ده، نه د وعدې په توګه وَالْمَعْدُومُ قَدْ يُعْتَبَرُ مَوْجُودًا حُكْمًا او معدوم شی کله حکماً موجود شمارل کيږي وَالْمَعْقُودُ عَلَيْهِ الْعَيْنُ دُونَ الْعَمَلِ او [په استصناع کي] معقود عليه عين شی دی، نه عمل حَتّٰى لَوْ جَاءَ بِهِ مَفْرُوغًا عَنْهُ لَا مِنْ صَنْعَتِهِ همدا وجه ده که کاريګر [صانع] داسي شی راوړي کوم چي د ده جوړ نه وي [يعني ده خپله نه وي جوړ کړی بلکي په بل کاريګرې جوړ کړی وي] أَوْ مِنْ صَنْعَتِهِ قَبْلَ الْعَقْدِ يا [داسي شی راوړي کوم چي] د ده جوړ وي له عقد څخه مخکي [يعني کوم چي ده تر عقد استصناع مخکي جوړ کړی وي] فَأَخَذَهُ او مستصنع [اړر کونکی] هغه واخلي جَازَ نو جائز دي وَلَا يَتَعَيَّنُ إِلَّا بِالْاِخْتِيَارِ او دا شی نه متعين کيږي مګر د مستصنع [اړر کونکي] په خوښي سره حَتّٰى لَوْ بَاعَهُ الصَّانِعُ قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ الْمُسْتَصْنِعُ همدا وجه ده که کاريګر هغه خرڅ کړي مخکي تر دې چي اړر کونکي کس ته يې ورښکاره کړي جَازَ نو جائز دي وَهٰذَا كُلُّهُ هُوَ الصَّحِيحُ او دا ټوله تفصيل صحيح دی.

**اللغات**: ﴿استصناع﴾ د استفعال مصدر دی: يو شی په اړر جوړول، په فرمايش جوړول، يو چا ته د شي جوړولو حکم کول، صورت يې دا دی چي يو سړی مثلاً نجار ته ووايي چي يوه الماری را جوړه کړه! چي هغه دومره اوږده او پلنه وي او له دغه تختې څخه وي، او نجار ته څه بيانه (پيسې) ورکړي يا ټوله پيسې ورکړي او هيڅ ميعاد ذکر نه کړي. ﴿أجل﴾ ميعاد، ټاکل سوی مودت. ﴿صانع﴾ د فتح فاعل دی: کاريګر. جوړونکی. ﴿معقود عليه﴾ هغه شی پر کوم چي عقد واقع سي. يعني "مبيع"، ﴿مستصنع﴾ د استفعال فاعل دی: په اړر جوړونکی، اړر کونکی. هغه کس کوم چي کاريګر ته اړر او فرمايش وکړي چي دا شی را جوړ کړه!.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې استصناع (په اړر جوړول) د عامو مشايخو په نېز بيع ده او استحساناً جائز ده لېکن قياساً جائز نه ده؛ د استحسان دليل دا دی چې استصناع د خلګو په مېنځ کې جاري او رواج ده او پر هغه د امت تعامل دی، نو په دې حواله سره ګواکې پر هغه د امت اجماع سوې ده، او د امت اجماع هم له شرعي حجتونو څخه يو حجت دی لکه څرنګه چې دا حديثونه پر دې ګواه دی: "لَا تَجْتَمِعُ أُمَّتِيْ عَلٰى ضَلَالَةٍ" او "مَا رَآهُ الْمُسْلِمُوْنَ حَسَنًا فَهُوَ عِنْدَ اللهِ حَسَنٌ". او بل دا چې رسول الله ﷺ په خپله هم يوه ګوتمۍ او منبر په اړر سره جوړ کړي دي. نو بيا د استصناع په جواز کې څه شبهه سته!؟.

او قياساً استصناع جائز نه ده، همدا د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله مسلک دی (يعني دوی په قياس عمل کړی دی)؛ د قياس ليل دا دی چې د استصناع په صورت کې مبيع معدومه وي (يعني هغه شی د بيع په وخت کې جوړ سوی نه وي)، او د معدوم شي بيع جائز نه ده، نو ځکه استصناع به هم جائز نه وي.

اوس سول دا دی چې د استصناع د جائز کېدلو په صورت کې آيا استصناع بيع ده او که محض وعده ده، نو په دې باره کې ځيني حضرات وايي چې استصناع محض يو وعده ده، لېکن صحيح او معتمد قول دا دی چې استصناع بيع ده همدا د عامو مشايخو مذهب دی، لکه څرنګه چې امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کې هغه ته بيع ويلي دي او بل دا چې په هغه کې خيارِ رؤيت هم ثابتېږي، حال دا چې په وعده کې خيارِ رؤيت نه ثابتېږي، نو په دې حواله سره هم هغه بيع ده او د تعامل الناس او استحسان پر بناء صحيح او جائز ده. (بنايه ج:۱۱، ص:۴۷۸)

والمعدوم الخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چې د استصناع په صورت کې شی معدوم وي او معدوم شی مبيع نه سي جوړېدای. لهذا دا بالکل امکان نه لري چې استصناع بيع وګرځول سي؟

د دې په جواب کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې ځيني وخت معدوم شی د شريعت په حکم موجود شمارل کيږي، مثلاً که د پسه ذبحه کولو په وخت کې له مسلمان څخه بسم الله (تسميه) هېره سي نو د هيري د عذر په وجه شرعاً د هغه معدومه تسميه موجوده شمارل کيږي، او مثلاً د مستحاضه ښځې طهارت معدوم دی لېکن د جواز الصلاة د عذر په وجه هغه موجود شمارل کيږي؛ نو همداسي د استصناع والا په مسئله کې هم د خلګو د تعامل په وجه معدوم شی موجود شمارل سوی دی او د موجود شي درجه ور کول سوې ده. لهذا کله چې د استصناع په بيع کې معدوم شی موجود شمارل سوی دی نو ځکه اوس به د مبيع د معدوم والي اعتراض نه واقع کيږي.

والمعقود عليه إلخ: د دې حاصل دا دی چې داستصناع په صورت کې د کاریګر (صانع) عمل معقود علیه نه دی، بلکې هغه شی معقود علیه دی کوم چې کاریګر جوړ کړی دی، همدا وجه ده که کاریګر داسې شی راوړي چې هغه په خپله نه وي جوړ کړی بلکې په یو بل کاریګر (صانع) یې جوړ کړی وي، یا داسې شی راوړي کوم چې هغه داستصناع له عقد څخه مخکې جوړ کړی وي، نو په دې دواړو صورتونو کې د عقد صحت او عدم صحت د مستصنع (اړر کونکي) پر خوښه او رضا موقوف کیږي، که هغه په راضي سي نو عقد صحیح کیږي، کنې نه صحیح کیږي. له دې څخه معلومه سوه چې عمل "معقود علیه" نه دی بلکې جوړ کړی سوی شی "معقود علیه" دی؛ ځکه که چیرې عمل معقود علیه وای نو په دې دواړو صورتونو کې به استنصاع نه صحیح کېدای، ځکه په اول صورت کې د هغه کاریګر عمل بالکل موجود نه سو بلکې د بل کاریګر عمل موجود سو، او په دویم صورت کې خو د هغه عمل موجود سو لېکن له عقد څخه مخکې موجود سو، او ښکاره خبره ده چې له عقد څخه مخکنی عمل معقود علیه (مبیع) نه سي جوړېدای.

ولا يتعيّن إلخ: فرمایي چې کوم شی په اړر جوړ سوی وي دا شی هغه وخت د مبیع لپاره مُتعیّن کیږي کله چې مستصنع (اړر کونکی) هغه خوښ کړي، همدا وجه ده که کاریګر دا شی مستصنع ته تر ورښکاره کولو مخکې خرڅ کړي نو جائز دي؛ ځکه تر اوسه هغه شی د مبیع لپاره مُتعیّن سوی نه دی، نو ځکه اوس هغه د کاریګر په ملکیت کې دی او انسان ته په خپل ملکیت کې د هر ډول تصرف کولو اختیار سته.

ولهذا كله إلخ: فرمایي داستصناع د بیع کېدلو، په هغه کې د خیارِ رؤیت ثابتېدلو او د مستصنع له خوښې (رضا) څخه بغیر د هغه د نه مُتعیّن کېدلو په حواله سره زموږ دغه بیان کړل سوي تفصیلات ټول صحیح دي او په هغوی کې هیڅ ډول شک او شبهه نسته.

## په استصناع کې د خیار بیان

قَالَ: وَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ وَإِنْ شَاءَ تَرَكَهُ فرمایي: او مستصنع ته اختیار دی که خوښه یې وي نو هغه دې واخلي او که خوښه یې وي نو هغه دې پرېږدي لِأَنَّهُ اشْتَرَى شَيْئًا لَمْ يَرَهُ ځکه چې هغه داسې شی رانیولی دی کوم چې یې [تر اوسه] لیدلی نه دی وَلَا خِيَارَ لِلصَّانِعِ او کاریګر [جوړونکي] ته اختیار نسته كَذَا ذَكَرَهُ فِي الْمَبْسُوطِ همدا ډول امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کې ذکر کړي دي وَهُوَ

الْأَصَحُّ همدا زيات صحيح دي لِأَنَّهُ بَاعَ مَالَمْ يَرَهُ ځکه چي هغه داسي شی خرڅ کړی دی کوم چي يې [تر اوسه] ليدلی نه دی وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ أَنَّ لَهُ الْخِيَارَ أَيْضًا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي کاريگر ته هم اختيار ستته لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ تَسْلِيمُ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ إِلَّا بِضَرَرٍ ځکه چي له نقصان څخه بغير د هغه لپاره معقود عليه ورسپارل ممکن نه دي [يعني د هغه لپاره دا ممکنه نه ده چي د ځان له نقصان څخه بغير مستصنع ته هغه مبيع شی (مثلاً موزې) ور وسپاري] وَهُوَ قَطْعُ الصَّرْمِ وَغَيْرِهِ او هغه [نقصان] د څرمني [چمړې] پرېکول او داسې نور دي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَا خِيَارَ لَهُمَا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي مستصنع او کاريگر دواړو ته اختيار نسته أَمَّا الصَّانِعُ فَلِمَا ذَكَرْنَا کوم چي کاريگر دی نو د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَأَمَّا الْمُسْتَصْنِعُ فَلِأَنَّ فِي إِثْبَاتِ الْخِيَارِ لَهُ إِضْرَارًا بِالصَّانِعِ او کوم چي مستصنع دی نو ځکه چي د هغه لپاره په خيار ثابتولو کي بائع ته نقصان رسول ستته لِأَنَّهُ لَا يَشْتَرِيهِ غَيْرُهُ بِمِثْلِهِ ځکه چي بل څوک دا شی د هغومره ثمن په عوض کي نه رانيسي [د څومره ثمن په عوض کي چي مستصنع د هغه د جوړولو امر کړی وي] وَلَا يَجُوزُ فِيمَا لَا تَعَامُلَ فِيهِ لِلنَّاسِ او د کوم شي په استصناع کي چي د خلکو تعامل نه وي نو په هغه کي استصناع جائز نه ده كَالثِّيَابِ لکه کپړې لِعَدَمِ الْمُجَوِّزِ ځکه چي [په هغه کي] جائز گرځونکی سبب نسته وَفِيمَا فِيهِ تَعَامُلٌ إِنَّمَا يَجُوزُ إِذَا أَمْكَنَ إِعْلَامُهُ بِالْوَصْفِ او په کوم شي کي چي د خلکو تعامل وي په هغه کي [هم صرف] هغه وخت استصناع جائز ده کله چي په وصف سره د هغه ور ښوول [او اگاه کول] ممکن وي لِيُمْكِنَ التَّسْلِيمُ د دې لپاره چي [مستصنع ته د هغه] ورسپارل ممکن وي.

**اللغات**: ﴿صانع﴾ د فتح د باب فاعل دی: کاريگر، جوړونکی، ﴿صرم﴾ څرمن، چمړه، ﴿مُجوّز﴾ د تفعيل فاعل دی: جائز گرځونکی شی (مراد ځني د خلکو تعامل دی، ځکه چي هغه استصناع جائز گرځوي، او که هغه نه وي نو بيا استصناع جائز نه ده).

---

❁ القول الراجح: هو ظاهر الرواية أى لاخيار للصانع كما ذكر فى العناية ج:۶ ص:۲۴۴ لكن قال: المفتى غلام قادر النعمانى: والخدعة فى هذا الزمان من عادة الصانعين فلذا يثبت الخيار للمشتري لكن إن صنع على وصف ما شرط المشتري فلا خيار له.[القول الراجح ج:۲ ص:۸۱]

**تشریح : صورت د مسئلې** : دا دی د استصناع په عقد کې چې کله شی تیار سي او مستصنع (اېر کونکی) هغه ووېني، نو مستصنع ته اختیار دی که خوښه یې وي نو هغه دي واخلي او که خوښه یې نه وي نو هغه دي پرېږدي؛ ځکه چې استصناع د صحیح قول مطابق بیع ده نو مستصنع (یعني په اېر جوړونکی کس) مشتري دی او کاریګر (صانع) بائع دی، او مخکې ذکر سوه چې که څوک دلیدلو څخه بغیر شی رانیسي نو په دې صورت کې مشتري ته خیارِ رؤیت حاصلیږي، نو ځکه دلته به هم مشتري یعني مستصنع ته خیارِ رؤیت حاصلیږي.

او د مبسوط د بیان مطابق کاریګر (جوړونکي) ته خیارِ رؤیت نه حاصلیږي؛ ځکه چې کاریګر بائع وي او بائع ته خیارِ رؤیت نه حاصلیږي، لهذا کاریګر ته دا اختیار نسته چې د خیارِ رؤیت پر بناء معامله ختمه کړي، همدا اصح دي. هسې خو په دې باره کې له شیخینو رَحِمَهُمَا الله څخه دوه جلا، جلا روایتونه نقل سوي دي: ① ... اول روایت کوم چې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه نقل سوی دی، دا دی چې د مستصنع په څېر کاریګر (صانع) ته هم اختیار حاصلیږي، که خوښه یې وي نو هغه کار دي وکړي، کنې هغه دي پرېږدي؛ د دې روایت دلیل دا دی چې د کاریګر لپاره دا ممکنه نه ده چې معقود علیه (مبیع شی) له ضرر څخه بغیر (مستصنع ته) وسپاري، ځکه یو شی چې جوړول کیږي نو خامخا په دې کې پرېکول راځي (مثلاً که الماري جوړوي، یا څپلۍ او موزې جوړوي، نو هغه خامخا د دې لپاره خپله تخته یا څرمن پرېکوي)، او ښکاره خبره ده چې یو شی پرېکول او ټوټه ټوټه کول د کاریګر په حق کې نقصان دی، لهذا د خپل ځان څخه د ضرر او نقصان لیري کولو لپاره به کاریګر ته اختیار وي چې که د ده معامله خوښه نه سي نو هغه دې پرېږدي.

② ... دویم روایت کوم چې له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوی دی، دا دی چې کاریګر او مستصنع دواړو ته خیارِ رؤیت نه حاصلیږي؛ کاریګر ته خو د مخکني دلیل په وجه (چې کاریګر بائع دی) خیارِ رؤیت نه حاصلیږي (ځکه چې د بائع لپاره خیارِ رؤیت نه ثابتیږي). او مستصنع ته ځکه خیارِ رؤیت نه حاصلیږي چې په دې کې د کاریګر نقصان دی، ځکه کاریګر خپله تخته او څرمن (چمړه) د دې لپاره پرېکړل چې هغه ته دا پوره توقع وه چې ما ته به د دې بدل او عوض حاصل سي، لېکن که اوس مستصنع ته اختیار (خیارِ رؤیت) ورکول سي او هغه د خپل اختیار پر بناء دا شی نه واخلي نو ښکاره خبره ده چې په دې کې د کاریګر غټ نقصان دی؛ ځکه چې بل څوک دا شی په هغو مره پیسو نه رانیسي بلکې دا هم ممکنه ده چې هغه به ګرسره خرڅ نه سي. مثلاً که یو ملا د خپلو کتابو لپاره په اېر (فرمایش) یوه الماري جوړه کړي او بیا د خیارِ رؤیت پر بناء هغه نه واخلي، نو بل

سړی هغه نه راتیسي بلکي هغه به کاریګر (نجار) ته هسي پرته وي، او په دې کي بالکل د کاریګر نقصان دی، نو ځکه د کاریګر د نقصان په خاطر به مستصنع ته اختیار نه وي.

ولایجوز إلخ: صاحب د هدایې د استصناع په هکله یوه قاعدهٔ کلیه بیانوي، حاصل یې دا دی چي د استصناع جواز او عدمِ جواز د خلګو پر تعامل او عُرف موقوف دی. نو په کوم شي کي چي د خلګو تعامل نه وي په هغه کي استصناع جائز نه ده؛ لکه کپړه (ټوکر) په اډر جوړول؛ ځکه چي په کپړه کي مجوز یعني د خلګو تعامل نسته، نو ځکه په هغه کي به استصناع هم جائز نه وي. لېکن د کوم شي په استصناع کي چي د خلګو تعامل وي په هغه کي استصناع جائز ده په دې شرط چي د هغه شي وصف او کیفیت بیان کړی سي او په وصف بیانولو سره د هغه په هکله خبر او اګاهي حاصله سي، د دې لپاره چي کاریګر هغه شی د مستصنع د اډر او خواهش مطابق تیار کړي او ده ته یې وسپاري.

## استنصاع او اجل (میعاد)

وَإِنَّمَا قَالَ بِغَيْرِ أَجَلٍ لِأَنَّهُ لَوْ ضَرَبَ الْأَجَلَ فِيمَا فِيهِ تَعَامُلٌ او امام محمد رَحِمَهُ الله په دې وجه "بغير أجل" ویلي دي ځکه که چیري په داسي شي کي میعاد وټاکي چي په هغه کي د خلګو تعامل وي يَصِيرُ سَلَمًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا بیع سَلَم ګرځي خِلَافًا لَهُمَا[۞] په خلاف د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله وَلَوْ ضَرَبَهُ فِيمَا لَا تَعَامُلَ فِيهِ او که چیري په داسي شي کي میعاد وټاکي چي په هغه کي د خلګو کي تعامل نه وي يَصِيرُ سَلَمًا بِالِاتِّفَاقِ نو دا بالاتفاق بیع سَلَم ګرځي لَهُمَا: أَنَّ اللَّفْظَ حَقِيقَةٌ لِلِاسْتِصْنَاعِ د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چي د استصناع لفظ د استصناع د معنیٰ لپاره حقیقت دی [یعني د استصناع د لفظ حقیقي معنیٰ استصناع (په اډر جوړول) دي] فَيُحَافَظُ عَلَى قَضِيَّتِهِ وَيُحْمَلُ الْأَجَلُ عَلَى التَّعْجِيلِ نو ځکه د لفظ پر مقتضا به د هغه حفاظت کیږي [او د هغه د حقیقي معنیٰ خیال به ساتل کیږي] بِخِلَافِ مَا لَا تَعَامُلَ فِيهِ په خلاف د داسي شي چي په هغه کي [د استصناع] تعامل نه وي لِأَنَّهُ اسْتِصْنَاعٌ فَاسِدٌ ځکه چي دا فاسده استصناع ده فَيُحْمَلُ عَلَى السَّلَمِ الصَّحِيحِ نو هغه به پر صحیح سَلَم حمل کیږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ دَيْنٌ يَحْتَمِلُ السَّلَمَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا

۞ القول الراجح: قول ابی حیفة رَحِمَهُ الله کما ذکر فی رد المحتار ج:۴ ص:۲۳۷ والکفایة ج:۶ ص:۲۴۲ [القول الراجح ج:۲ ص:۸۱]

دی: چي هغه [يعني په اړه جوړ سوی شی] داسي دَين دی کوم چي د سَلم احتمال لري وَجَوَازُ السَّلَمِ بِإِجْمَاعٍ لَا شُبْهَةَ فِيهِ او د سَلم جائز کېدل په داسي اجماع سره ثابت دي چي په هغه کي هيڅ شبهه نسته وَفِي تَعَامُلِهِمُ الِاسْتِصْنَاعَ نَوْعُ شُبْهَةٍ حال دا چي پر استصناع د خلکو په تعامل کولو کي يو ډول شبهه سته فَكَانَ الْحَمْلُ عَلَى السَّلَمِ أَوْلَى نو ځکه [د استصناع لفظ] پر سَلم حمل کول غوره دي.

**اللغات:** ﴿أجل﴾ ميعاد، ټاکل سوی مودت، ﴿يحافظ﴾ د مفاعلې مضارع مجهوله ده: حفاظت کول، خيال ساتل، ﴿قضية﴾ مقتضا، تقاضا، ﴿تعجيل﴾ د تفعيل مصدر دی: يو کار ژر کول (ژر والی)، تلوار کول.

**تشريح:** مخکي چي د متن په دې جمله "وَإِنِ اسْتَصْنَعَ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ بِغَيْرِ أَجَلٍ" کي چي کوم د "بِغَيْرِ أَجَل" قيد ذکر سو، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دې عبارت کي د هغه قيد فايده ذکر کوي فرمايي چي په متن کي د "بِغَيْرِ أَجَل" قيد په دې وجه ذکر سوی دی ځکه که چيري په هغه شي کي اجل (ميعاد) وټاکل سي په کوم کي چي د استصناع تعامل وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا معامله "بيع سلم" ګرځي او د دې د جائز کېدلو لپاره د سَلم ټوله شرطونه موجودېدل ضروري دي، همدا د امام مالک، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله قول دی.

لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا معامله استصناع پاتيږي او بيع سَلم نه ګرځي. حاصل دا چي دلته دوه قسمونه دي: ① يو دا چي شی (مبيع) داسي وي چي د هغه په استصناع (اړ جوړولو) کي د خلکو تعامل وي، ② دويم دا چي شی داسي وي چي د هغه په استصناع کي د خلکو تعامل نه وي، نو که مستصنع د داسي شي د جوړولو اړ وکړي چي په هغه کي د خلکو تعامل جاري وي او ميعاد مقرر کړي، مثلاً نجار ته ووايي چي ته ما ته دومره او دا ډول الماری په يوه مياشت کي راجوړه کړه!، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا بيع سَلم ګرځي (په دې شرط چي ديوې مياشتي په مودت سره د مستصنع مطلب "تعجيل" نه وي، يعني د هغه مطلب دا نه وي چي ژر يې را جوړه کړه! بلکي دا يوه مياشت د مبيع [الماری] داداء کولو مهلت وي)، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا معامله استصناع ده.

او که مستصنع د داسي شي د جوړولو اړ وکړي چي په هغه کي د خلکو تعامل جاري نه وي، نو دا معامله بالاتفاق بيع سَلم ګرځي، نو معلومه سوه چي که ميعاد نه وټاکل سي نو هغه معامله بالاتفاق استصناع ده.

**د صاحبينو دليل:** په مختلف فيه مسئله کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي د استصناع (اړر جوړولو) لفظ د استصناع د معنیٰ لپاره حقيقي دی (لنډه دا چي د استصناع د لفظ حقيقي معنیٰ ده: "په اړر جوړول") نو د دې لفظ مقتضا (تقاضا) دا ده چي دا معامله دې سَلم نه وي، نو ځکه د لفظ د مقتضا د ساتلو لپاره به دا لفظ پر استصناع حمل کيږي او کوم مودت (ميعاد) چي تاکل سوی دی هغه به پر تعجيل (ژر والي) حمل کيږي يعني د مودت ټاکلو غرض دا دی چي دا شی ژر جوړ کړه!، او کله چي په دې غرض سره مودت ذکر کړی سي چي ژر يې را جوړ کړه! نو هغه بالاتفاق معتبر نه دی، لهذا کله چي مودت (ميعاد) پر دغه معنیٰ حمل کړی سي نو د استصناع لفظ به پر خپله حقيقي معنیٰ پاته سي، نو ثابته سوه چي د کوم شي په استصناع کي چي د خلکو تعامل وي او د هغه لپاره ميعاد هم ټاکل سوی وي نو داسي معامله به استصناع وي، بيع سَلم به نه وي. د دې په خلاف د کوم شي په استصناع کي چي د خلکو تعامل نه وي او د هغه لپاره ميعاد وټاکل سي نو د تعامل د نشتوالي په وجه به دا استصناع فاسده سي، او کله چي استصناع فاسده سوه نو د ميعاد په قرينه سره به هغه بيع پر صحيح سَلم حمل کيږي د دې لپاره چي د عاقل بالغ کس تصرف حتی الامکان صحيح کړی سي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي په استصناع کي معقود عليه دَين وي (يعني مستصنع چي د کوم شي د جوړولو اړر کړی دی هغه دَين او قرض دی) يعني د کاريګر پر ذمه ثابت او واجب دی (لکه مسلم فيه چي د مسلم إليه پر ذمه ثابت او واجب وي)، نو څرنګه چي په دې شي (معقود عليه) کي د استصناع احتمال سته همداسي د بيع سَلم احتمال هم پکښي سته، لېکن د دليل وطرف ته په نظر کولو سره دلته د سَلم اړخ قوي دی او د استصناع اړخ کمزوری دی؛ ځکه چي د استصناع دليل تعامل دی او تعامل دلته د يو لاندي (کمزوري) درجې دليل دی؛ ځکه چي (د استصناع له جواز څخه) د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله د انکار په وجه د خلکو په تعامل کي يو ډول شبهه سته، حال دا چي د سَلم جواز په داسي اجماع سره ثابت دی چي په هغه کي هيڅ شبهه نسته (لکه د باب په شروع کي چي ذکر سوه چي سَلم په آيت او حديث دواړو سره ثابت دی)، نو په دې حواله سره دلته د سَلم اړخ قوي دی، لهذا د استصناع لفظ پر بيع سَلم حمل کول غوره او زيات مناسب دي، نو ځکه هغه به پر دې حمل کيږي او پر خپل حقيقي معنیٰ به نه حمل کيږي.



# مَسَائِلُ مَنْثُوْرَةٌ

## خورې (متفرقې) مسئلې

**تشريح**: ''مَنْثُوْر'' د نصر او ضرب د باب مفعول دی، معنیٰ يې ده: خورول سوی (خپور)، نشر کړی سوی. (أثمار الهدايه)

د مصنفينو او مؤلفينو عادت دا دی چې په تېرو بابونو او فصلونو کښې چې کومې مسئلې پاتې سوې (پرېښوول سوې) وي، هغه مسئلې په يو جلا باب کې ذکر کوي او هغه باب د ''مسائل متفرقه'' يا ''مسائل شتّیٰ'' يا د ''مسائل منثورة'' په نامه سره نوموي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله هم په ''مسائل منثوره'' کې د مخکني ابوابو پرېښوول سوي مسئلې ذکر کړې دي.

### د سپي، پړانګ او درندګانو بيع

قَالَ: وَيَجُوزُ بَيْعُ الْكَلْبِ وَالْفَهْدِ وَالسِّبَاعِ فرمايي: او د سپي، پړانګ او درندګانو بيع جائز ده الْمُعَلَّمِ وَغَيْرُ الْمُعَلَّمِ فِي ذٰلِكَ سَوَاءٌ په دې حکم کې معلم [د ښکار لپاره روزل سوی، تعليم يافته] او غير معلم دواړه برابر دي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ❁ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ بَيْعُ الْكَلْبِ الْعَقُوْرِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د داړونکي [داړه مار] سپي بيع ناجائز ده لِأَنَّهُ غَيْرُ مُنْتَفَعٍ بِهِ ځکه چې هغه د نفع اخيستلو [انتفاع] قابل نه دی [يعني له هغه څخه د ښکار او حفاظت نفع نه سي اخيستل کېدای] وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ بَيْعُ الْكَلْبِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د سپي بيع [مطلقاً] جائز نه ده لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: «إِنَّ مِنَ السُّحْتِ مَهْرَ الْبَغِيِّ وَثَمَنَ الْكَلْبِ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي چې: ''د زناکاره ښځې أجرت او د سپي

---

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، إذا كان الكلب العقور لا يقبل التعليم، كما قال العلامة ابن العابدين رَحِمَهُ الله:...عن المبسوط أنه لا يجوز بيع الكلب العقور الذى لا يقبل التعليم فى الصحيح، والفهد والبازى يقبلان التعليم فيجوز بيعهما على كل حال...إلخ (رد المحتار ج:۴، ص:۲۳۹)، وكذا فى تبيين الحقائق (ج:۴، ص:۱۲۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۸۲]

[1] تخريج: أخرجه دار قطنى فى كتاب البيوع، حديث رقم:۳۰۴۵، ۳۰۴۸.

قیمت حرام دی" وَلِأَنَّهُ نَجِسُ الْعَيْنِ او ځکه چې سپی نجس العين دی وَالنَّجَاسَةُ تُشْعِرُ بِهَوَانِ الْمَحَلِّ او نجاست د محل د سپکوالي [ذلیل والي] خبر ورکوي وَجَوَازُ الْبَيْعِ يُشْعِرُ بِإِعْزَازِهِ او د بیع جائز کېدل د محل د اعزاز [او احترام] خبر ورکوي فَكَانَ مُنْتَفِيًا نو ځکه به بیع منتفي وي وَلَنَا: «أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ بَيْعِ الْكَلْبِ إِلَّا كَلْبَ صَيْدٍ أَوْ مَاشِيَةٍ» [2] زموږ دلیل دا دی: چې نبي ﷺ د سپي له بیع څخه منع کړې ده ماسوا له ښکاري سپي او حفاظت کونکي سپي څخه وَلِأَنَّهُ مُنْتَفَعٌ بِهِ حِرَاسَةً وَاصْطِيَادًا او ځکه چې له سپي څخه د حفاظت [چوکیدارۍ] او ښکار کولو نفع اخیستل کیږي فَكَانَ مَالًا فَيَجُوزُ بَيْعُهُ نو ځکه هغه به مال وي او بیع به یې جائز وي بِخِلَافِ الْهَوَامِّ الْمُؤْذِيَةِ په خلاف د نقصان رسونکو [زیانمنو] خزندو لِأَنَّهُ لَا يُنْتَفَعُ بِهَا ځکه چې له هغوی څخه نفع نه سي اخیستل کېدای وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ عَلَى الِابْتِدَاءِ قَلْعًا لَهُمْ عَنِ الِاقْتِنَاءِ او حدیث د اسلام پر ابتداء محمول دی [چې په هغه وخت کي د نبي ﷺ غرض دا وو] چې خلک د سپي له پالني څخه بالکل لیري کړل سي وَلَا نُسَلِّمُ نَجَاسَةَ الْعَيْنِ او د سپي نجس العين کېدل موږ نه تسلیموو وَلَوْ سُلِّمَ فَيَحْرُمُ التَّنَاوُلُ دُونَ الْبَيْعِ او که بیا هم تسلیم کړی سي نو د هغه خوړل به حرام وي، نه د هغه خرڅول.

**اللغات:** ﴿کلب﴾ سپی. ﴿فهد﴾ پړانګ، مشهوره ځناور دی. ﴿سباع﴾ جمع د سُبُعٌ ده: درنده (داړونکي او شیرونکی حیوان). ﴿مُعلَّم﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: ورښوول سوی. تعلیم یافته. هغه سپی او درنده چې ښکار ورښوول سوی وي، یعني د ښکار لپاره روزل سوی (تربیه سوی) وي. ﴿سحت﴾ حرام. ﴿بغي﴾ بدکاره ښځه. زناکاره. ﴿تشعر﴾ د افعال مضارع ده: احساس ورکول. خبر ورکول. ﴿هوان﴾ د نصر اسم مصدر دی: سپکوالی. ذلیل والی (رذالت، ټیټوالی). ﴿ماشیة﴾ رمه (د پسونو او داسي نورو مجموعه). ﴿حراسة﴾ د نصر مصدر دی: چوکیداري. پیره داري. حفاظت کول. ﴿هوام﴾ خزندې. حشرات. ﴿قلع﴾ د فتح مصدر دی: کښل. کاږل (جلا کول. لیري کول). ﴿اقتناء﴾ د افتعال مصدر دی: یو شی د ځان لپاره حاصلول (د ځان لپاره خاصول). مراد ځني د سپي پالل او ساتل دي. (أحسنُ الهدایه)

**تشریح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز د سپي، پړانګ او نورو درندګانو بیع مطلقاً جائز ده. یعني برابره ده هغوی معلم وي او که نه وي. په دواړو صورتونو کي د هغوی بیع زموږ په نېز جائز ده. له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چې د داړونکي سپي بیع جائز نه ده؛ ځکه چې له

[2] تخریج: أخرجه البیهقي في کتاب البیوع، باب النهي عن ثمن الکلب، حدیث رقم: ۱۱۰۱۲.

هغه څخه نفع اخيستل ممکن نه دي، او کله چي له هغه څخه نفع اخيستل ممکن نه دي نو ښکاره خبره ده چي د هغه په بيع کي هيڅ فايده نسته.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د سپي بيع مطلقاً جائز نه ده.

**د امام شافعي دليل**: دا حديث دی: "عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم قَالَ: إِنَّ مَهْرَ الْبَغِيِّ وَثَمَنَ الْكَلْبِ وَكَسْبَ الْحَجَّامِ مِنَ السُّحْتِ" يعني د زناکاره ښځي اُجرت، د سپي ثمن او د ښکر لګونکي ګټه دا ټوله حرام دي. او بل په صحيحينو کي د ابن مسعود رضي الله عنه دا حديث دی: "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَمَهْرِ الْبَغِيِّ... إلخ" يعني نبي ﷺ د سپي له قيمت او د زناکاره ښځي له اُجرت څخه منع کړې ده. له دې حديثونو څخه معلومه سوه چي د سپي ثمن حرام دی، او کله چي د سپي ثمن حرام دی نو د هغه بيع به هم حرامه وي؛ ځکه چي همدا بيع د ثمن سبب ده (يعني ثمن په بيع سره انسان ته حاصليږي).

<u>ولأنه نجس العين إلخ</u>: د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دی چي سپی نجس العين دی، او د سپي نجس العين کېدل د هغه د محل او مقام د رذالت او ټيټوالي علامت دی، نو په دې حواله سره هم د هغه بيع حرام کېدل پکار دي؛ ځکه که د سپي بيع جائز وګرځول سي نو دا به د هغه د عزت او احترام علامت وي (چي سپی د عزت او احترام قابل شی دی) حال دا چي د نجس العين کېدلو په وجه هغه رذيل او ذليل دی، نو ځکه د هغه بيع صحيح نه ده. (أحسن الهدايه).

**زموږ دليل**: دا حديث دی: "أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ بَيْعِ الْكَلْبِ إِلَّا كَلْبَ صَيْدٍ أَوْ مَاشِيَةٍ" يعني نبي کريم ﷺ د سپي له بيع څخه منع کړې ده ماسوا له دوو سپيانو څخه: يو ښکاري (معلم) سپی او بل د رمې (پسونو او داسي نورو) حفاظت کونکی سپی. په دې حديث سره موږ په دې توګه دليل نيسو چي که څه هم په دې حديث کي فقط د ښکاري او حفاظت کونکي سپي د بيع اجازت ورکول سوی دی، خو بيا هم په دلالة النص سره د ټولو سپيانو د بيع جواز ثابتيږي، او د دې خبري دليل دا دی چي د ښکار او حفاظت صلاحيت (وړتيا) په هر سپي کي موجوده وي، او عموماً د غله (سارق) او داسي نورو په ليدلو سره هر سپی غاپي او شور جوړوي، نو د بيع د جواز کوم علت چي په ښکاري او حفاظت کونکي سپيانو کي سته هغه علت په نورو سپيانو کي هم سته؛ لهذا څرنګه چي د ښکاري او حفاظت کونکي سپي بيع جائز ده، همداسي به د هغه سپي بيع جائز وي چي په هغه کي د ښکار او حفاظت (چوکيدارۍ) علت موجود وي.

**ولأنه منفتع به إلخ**: زموږ عقلي دليل دا دی چې مطلقاً سپی د انتفاع (نفع اخيستلو) قابل دی، له هغه شخه د حفاظت (چوکيدارۍ) کار هم اخيستل کيږي او د ښکار کار هم ځني اخيستل کيږي، او کوم شی چې د انتفاع قابل وي هغه مال دی، ځکه چې مال هغه شي ته وايي کوم چې د انسان د نفع لپاره پيدا سوی وي، نو معلومه سوه چې مطلقاً سپی مال دی، او د مال بيع جائز ده. لهذا د سپي بيع به هم جائز وي. د دې په خلاف د مار، لړم او زيان رسونکو خزندو بيع جائز نه ده؛ ځکه چې هغه د انتفاع قابل نه دي، بلکي هغه خو د انسان لپاره وبال او عذاب دی او هر وخت له هغه شخه خطره وي، او کوم شی چې د انتفاع قابل نه وي هغه مال نه دی، نو ځکه د خزندو (حشرات الارض) بيع جائز نه ده.

**والحديث إلخ**: د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حديث "إن من السحت... إلخ" جواب دا دی چې په دغه حديث کي د سپي د ثمن حرمت دائمي او ابدي نه دی، بلکي دا حرمت د اسلام په شروع کي وو. او د سپيانو په معامله کي د خلګو د زيات رغبت په وجه نبي کريم ﷺ مخکي د خلګو په زړونو کي له سپيانو شخه د نفرت پيدا کولو په غرض هغو ته د قتل کولو حکم وکړی، او که په يو لوښي کي سپی خوله ووهي نو د اووه (۷) واره پرېوللو حکم يې صادر کړی؛ ترې دې وروسته چې کله په کراره، کراره د خلګو له زړونو شه د سپيانو محبت ختم سو او نفرت پيدا سو نو د "رَخَّصَ فِيْ ثَمَنِ كَلْبِ الصَّيْدِ. الحديث" فرمان صادر سو، او کوم دائمي حرمت چې جاري وو په هغه کي نبي ﷺ نرمي وکړه، لهذا اوس حکم دا دی چې د اسلام په شروع کي خو د سپي بيع ممنوع وه، لېکن وروسته جائز وګرځول سوه.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله د عقلي دليل جواب دا دی چې د سپي نجس العين کېدل موږ ته تسليم نه دي، ځکه چې د وصيت او هبې په ذريعه بل شوک د سپي مالک کول (مالک جوړول) جائز دي (يعني که شوک وصيت وکړي چې زما تر مرګ وروسته زما دغه سپی د فلانکي سړي دی، يا وو وايي چې دا سپی زه فلانکي ته هبه کوم نو په دې سره فلانکی د سپي مالک کيږي)، حال دا چې شوک د نجس العين شي مالک کول جائز نه دي. نو له دې شخه معلومه سوه چې سپی نجس العين نه دی. او که بيا هم د سپي نجس العين کېدل تسلم کړی سي نو په دې صورت کي جواب دا دی چې د نجس العين کېدلو په وجه صرف د هغه خوړل حرام دي، نه د هغه خرڅول. لکه پچي، ګوبر او خوشايي چې نجس العين دي لېکن بيا هم زموږ په نيز د هغوی خرڅول جائز دي. نو ځکه د سپي د نجس العين کېدلو په هکله زموږ په خلاف دليل نيول صحيح نه دي. (احسن الهدايه ج:۹، ص: ۷۰، ۷۱)

## د شراب او خنزير بيع

وَقَالَ: وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ فرمايي: او د شراب او خنزير بيع جائز نه ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ فِيْهِ[1]: «إِنَّ الَّذِي حَرَّمَ شُرْبَهَا حَرَّمَ بَيْعَهَا وَأَكْلَ ثَمَنِهَا» ځکه د شرابو په هکله نبي ﷺ فرمايلي دي: کوم ذات چي د شرابو چيښل حرام کړي دي هغه ذات د هغوی خرڅول او د هغوی د ثمن خوړل هم حرام کړي دي وَلِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالٍ فِي حَقِّنَا او ځکه چي هغه زموږ په حق کي مال نه دی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او دا موږ [مخکي هم] ذکر کړي دي.

**اللغات:** ﴿خمر﴾ شراب، ﴿شُرب﴾ د سمع د باب مصدر دی: چيښل (چښاک).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د امامانو او فقهاؤ په اتفاق سره د شراب او خنزير بيع جائز نه ده؛ ځکه چي د دوی حرمت منصوص عليه دی (يعني په قرآن وحديث کي د دوی ممانعت وارد سوی دی)، د شرابو د حرمت په هکله د قرآن کريم دا آيت د صريح نص حيثيت لري: "إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ" چي شراب، خمار او داسي نورو نجس دي او شيطاني اعمال دي، او په نجس او حرام شي کي تصرف کول جائز نه دي، نو ځکه په شرابو کي هم تصرف کول (خرڅول او رانيول) جائز نه دي.

د خنزير د حرمت په هکله دا آيت صريح دی: "حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ"، په دې آيت کي په ښکاره توګه ذکر سوي دي چي خنزير حرام دی، او تاسو ته معلومه ده چي په حرام شي کي تصرف کول صحيح نه دي.

د شرابو د حرمت په هکله د حديث هغه جزء هم دليل دی کوم چي په عبارت کي ذکر سو: "إِنَّ الَّذِيْ حَرَّمَ شُرْبَهَا... إلخ"، د دې واقعه دا ده چي د "ثقيف" قبيلې يو سړی چي د هغه کنيت ابو عامر وو، هغه به هر کال نبي کريم ﷺ ته يو منګی شراب هديه کول، او په کوم کال چي شراب حرام سول په هغه کال کي هم ده نبي کريم ﷺ ته هغه هديه کړل، نو نبي ﷺ وفرمايل: "يَا أَبَا عَامِرٍ إِنَّ اللهَ تَعَالَى قَدْ حَرَّمَ الْخَمْرَ فَلَا حَاجَةَ لَنَا بِخَمْرِكَ" (اې ابو عامر! الله شراب حرام کړل، نو اوس ستا شرابو ته زموږ هيڅ ضرورت نسته)، نو ابو عامر وفرمايل: اې د الله نبي! دا خرڅ کړه او د دې ثمن واخله!، نو نبي ﷺ

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب المساقاة، باب تحريم بيع الخمر، حديث رقم:۶۸.

وفرمایل: "يَا أَبَا عَامِرٍ إِنَّ الَّذِیْ حَرَّمَ شُرْبَهَا حَرَّمَ بَيْعَهَا وَأَكْلَ ثَمَنِهَا" (اې ابو عامر! کوم ذات چې د شرابو چیښل حرام کړي دي، هغه ذات د شرابو خرڅول او د هغوی د ثمن خوړل هم حرام کړي دي) نوځکه اوس هغه په هيڅ ډول هم زموږ لپاره حلال نه دي.

د شرابو د حرمت عقلي دليل دا دی چې شراب د مسلمانانو په حق کې مال نه دی، او تاسو ته معلومه ده چې د غير مال بيع جائز نه ده.

## د بيع په احکامو کې د ذميانو حکم

قَالَ: وَأَهْلُ الذِّمَّةِ فِي الْبِيَاعَاتِ كَالْمُسْلِمِينَ فرمايي: او ذميان په بيوعو کې د مسلمانانو په څېر دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ فِي ذٰلِكَ الْحَدِيثِ [1]: «فَأَعْلِمْهُمْ أَنَّ لَهُمْ مَا لِلْمُسْلِمِينَ وَعَلَيْهِمْ مَا عَلَى الْمُسْلِمِينَ» ځکه نبي کريم ﷺ په هغه حديث کې فرمايلي دي: "او کفار په دې خبر کړه! چې کوم څه د مسلمانانو لپاره دي هغه د دوی لپاره هم دي او کوم څه چې پر مسلمانانو لازم دي هغه پر دوی هم لازم دي" وَلِأَنَّهُمْ مُكَلَّفُونَ مُحْتَاجُونَ كَالْمُسْلِمِينَ او ځکه چې ذميان هم د مسلمانانو په څېر مکلف او محتاج دي قَالَ: إِلَّا فِي الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ خَاصَّةً فرمايي: مګر په ځانګړې توګه په شراب او خنزير کې فَإِنَّ عَقْدَهُمْ عَلَى الْخَمْرِ كَعَقْدِ الْمُسْلِمِ عَلَى الْعَصِيرِ ځکه چې پر شرابو د ذميانو عقد کول داسې دي لکه د انګورو پر رسُ [جوس] د مسلمانانو عقد کول وَعَقْدُهُمْ عَلَى الْخِنْزِيرِ كَعَقْدِ الْمُسْلِمِ عَلَى الشَّاةِ او پر خنزير د هغو عقد کول داسې دي لکه پر پسه د مسلمانانو عقد کول لِأَنَّهَا أَمْوَالٌ فِي اعْتِقَادِهِمْ ځکه چې شراب او خنزير د ذميانو په عقيده کې مالونه دي وَنَحْنُ أُمِرْنَا بِأَنْ نَتْرُكَهُمْ وَمَا يَعْتَقِدُونَ او موږ ته حکم سوی دی چې ذميان او د هغو خپل عقيده سره پرېږدو دَلَّ عَلَيْهِ قَوْلُ عُمَرَ: وَلُّوهُمْ بَيْعَهَا وَخُذُوا الْعُشْرَ مِنْ أَثْمَانِهَا پر همدې د حضرت عمر رضي الله عنه دا قول [هم] دلالت کوي: [اې عاملينو!] تاسو ذميان د شراب او خنزير د بيع واليان کړئ! [يعني ذميان د خنزير او شرابو بيع ته پرېږدئ!] او د هغوی له ثمن څخه عشر واخلئ!.

**اللغات**: ﴿اهل الذمة﴾ ذميان. کوم کافران چې په دار الاسلام کې اوسېږي او اسلامي حکومت ته محصول (ټيکس) ورکوي. هغو ته "اهل الذمه" وايي. ﴿عصير﴾ رس. جوس (د مېوې نچوړل سوي اوبه).

[1] تخريج: أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه (بمعناه)، باب في دعاء المشركين... إلخ، حديث رقم: ۳۳۰۵۴.

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دې چې په بيع او شراء (خرڅولو او رانيولو) کې چې کوم احکام د مسلمانانو لپاره ثابت دي، هغه احکام د ذميانو لپاره هم دي، يعني د کومو شيانو رانيول او خرڅول چې د مسلمانانو لپاره روا (حلال) يا ناروا دي، د هغه شيانو رانيول او خرڅول د ذميانو لپاره هم روا، يا ناروا دي، لېکن د شراب او خنزير استثناء سوې ده.

د دې خبرې دليل چې د ذميانو لپاره د مسلمانانو په څېر احکام او مسائل ثابت دي، د نبي کريم ﷺ هغه فرمان دی کوم چې نبي ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه ته فرمايلي دي (په هغه وخت کله چې يې هغه يمن ته استوی) : "اې معاذ! ذميان په دې خبر کړه! چې کوم څه د مسلمانانو لپاره حلال دي هغه د دوی لپاره هم حلال دي، او کوم څه چې پر مسلمانانو حرام دي، هغه پر دوی هم حرام دي".

په دې هکله دويم دليل دا دی چې د مسلمانانو په څېر ذميان هم په معاملاتو مکلف دي او د ژوند او زندگي په حواله سره هغوی هم ضروري شيانو ته محتاج او مجبوره دي، او د ضرورياتو د پوره کولو يو اهم سبب بيع ده، نو ځکه د بيع په هکله چې کوم احکام د مسلمانانو دي، هغه به د ذميانو هم وي.

لېکن د شراب او خنزير معاملات جلا، جلا دي، ځکه دا دوه شيان د ذميانو لپاره حلال دي او د دې رانيول او خرڅول د ذميانو په نيز جائز دي، لېکن د مسلمانانو په حق کې دا شيان حرام دي او د دې بيع او شراء هم د دوی لپاره حرام او ناجائز ده. او پر شرابو د ذميانو عقد کول داسې دي لکه د انګورو پر اوبو (جوس) د مسلمانانو عقد کول. نو څرنګه چې د مسلمانانو لپاره د پسه او د انګورو د جوس بيع حلال ده همداسې د ذميانو لپاره د خنزير او شرابو بيع حلال ده، او دا د دوی ذاتي او اعتقادي مسئله ده، د دوی په عقيده کې دا شيان مال دي، نو ځکه موږ ته د دې سره هيڅ کار او تعلق نسته، ځکه زموږ نبي کريم ﷺ موږ له دې څخه منع کړي يو چې په ذميانو او د ذميانو په عقيده تعرض (او دخل اندازي) وکړو. او بل دا چې د نبي ﷺ معتمد خليفه حضرت عمر رضي الله عنه هم د خنزير او شرابو په هکله دا فرمان صادر کړی او کوم عاملين چې له ذميانو د جزيه اخيستلو لپاره ټاکلي سوي وه هغو ته يې وفرمايل: تاسو ذميان د خنزير او شرابو د بيع واليان (مالکان) جوړ کړئ! او د هغوی له ثمن څخه عشر اخلئ! (مطلب دا چې له هغو څخه د خنزير او شرابو ثمن واخلئ!). دا فرمان هم د ذميانو په حق کې د خنزير او شرابو د بيع پر جواز (جائز کېدلو) دليل دی.

## د يو چا له طرفه د څه ثمن د ضامن کېدلو حکم

قَالَ: وَمَنْ قَالَ لِغَيْرِهِ فرمايي: او که يو سړی بل چا [بائع] ته ووايي بِعْ عَبْدَكَ مِنْ فُلَانٍ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَى أَنِّيْ ضَامِنٌ لَكَ خَمْسَ مِائَةٍ مِنَ الثَّمَنِ سِوَى الْأَلْفِ ته پر فلانکي سړي خپل غلام په زر درهمه خرڅ کړه!، په دې شرط چې زه ستا لپاره له زرو درهمو څخه بغير د ثمن د [پاته] پنځه سوه درهمو ضامن [ذمه وار] يم فَفَعَلَ او بائع همداسي وکړي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي وَيَأْخُذُ الْأَلْفَ مِنَ الْمُشْتَرِيْ وَالْخَمْسَ مِائَةَ مِنَ الضَّامِنِ او بائع به زر درهمه له مشتري څخه اخلي او پنځه سوه به له ضامن څخه وَإِنْ كَانَ لَمْ يَقُلْ مِنَ الثَّمَنِ او که چيري هغه د "مِنَ الثَمَن" لفظ نه ووايي جَازَ الْبَيْعُ بِأَلْفٍ وَلَا شَيْءَ عَلَى الضَّمِيْنِ نو [صرف] د زرو درهمو په عوض کي بيع جائز کيږي او پر ضامن هيڅ شی واجب نه دي وَأَصْلُهُ أَنَّ الزِّيَادَةَ فِي الثَّمَنِ وَالْمُثَمَّنِ جَائِزٌ عِنْدَنَا وَتَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ او قاعدهٔ کليه دا ده چې زموږ په نيز په ثمن او مبيع کي زياتوب [اضافه] کول جائز دي او دا زياتوب د اصل عقد سره لاحق کيږي [يوځای کيږي] خِلَافًا لِزُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ په خلاف د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله لِأَنَّهُ تَغْيِيْرٌ لِلْعَقْدِ مِنْ وَصْفٍ مَشْرُوْعٍ إِلَى وَصْفٍ مَشْرُوْعٍ ځکه چې داسي کول عقد له يوه مشروع وصف څخه د بل مشروع وصف وطرف ته متغير کول [بدلول] دي وَهُوَ كَوْنُهُ عَدْلًا أَوْ خَاسِرًا أَوْ رَابِحًا او هغه د عقد برابر کېدل، يا نقصان من [تاواني] کېدل، يا نفع من کېدل دي ثُمَّ قَدْ لَا يَسْتَفِيْدُ الْمُشْتَرِيْ بِهَا شَيْئًا بيا ځيني وخت مشتري په دې متغير کولو سره هيڅ شی نه حاصلوي [يعني په دې تغير سره مشتري ته هيڅ فايده نه حاصليږي] بِأَنْ زَادَ فِي الثَّمَنِ وَهُوَ يُسَاوِي الْمَبِيْعَ بِدُوْنِهَا په دې توګه چې مشتري په ثمن کي زياتوب وکړي [په داسي حال کي] چې ثمن له زياتوب [اضافه سوي مقدار] څخه بغير د مبيع سره برابر وي فَيَصِحُّ اشْتِرَاطُهَا عَلَى الْأَجْنَبِيِّ نو ځکه پر اجنبي سړي د زياتوب [اضافه کولو] شرط لګول صحيح دي كَبَدَلِ الْخُلْعِ لکه د خلع عوض لٰكِنْ مِنْ شَرْطِهَا الْمُقَابَلَةُ تَسْمِيَةً وَصُوْرَةً ليکن د زياتوب [اضافه کولو] شرط دا دی چې د تسميې او صورت دواړو په اعتبار سره مقابله وي [يعني د نامه او صورت دواړو په اعتبار سره د مبيع په مقابله کي وي] فَإِذَا قَالَ مِنَ الثَّمَنِ وُجِدَ شَرْطُهَا نو کله چې ضامن "مِنَ الثمن" ووايي نو د زياتوب شرط موجود سو فَيَصِحُّ نو ځکه زياتوب [اضافه کول] به صحيح وي وَإِذَا لَمْ يَقُلْ

لَمْ يُوجَدْ او کله چي [مِنَ الثمن] نه ووايي نو شرط موجود نه سو فَلَمْ يَصِحَّ نو ځکه زياتوب به [هم] صحيح نه وي.

**اللغات**: ﴿بِعْ﴾ د ضرب له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده: خرڅول. ﴿عدل﴾ په معنىٰ سره د "عادل" دی: برابر عقد، چي په هغه کي نه نفع وي او نه تاوان. ﴿خاسر﴾ نقصان من عقد، تاواني. ﴿رابح﴾ نفع من عقد.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که زيد خالد ته ووايي چي ستا غلام په زر درهمه پر ما خرڅ کړه!، لېکن خالد (بائع) هغه په پنځلس سوه درهمه خرڅوي او تر هغه يې کم نه ورکوي او زيد (مشتري) صرف په زر درهمه هغه غواړي، نو په دې صورت کي که يو بل اجنبي سړی بائع (خالد) ته ووايي چي ته خپل غلام په زر درهمه پر زيد خرڅ کړه او د ثمن پاته پنځه سوه درهمه زما څخه واخله! د هغه ضامن (ذمه وار) زه يم، (يعني د ثمن زر درهمه له زيد څخه واخله! او پاته پنځه سوه زما څخه واخله!)، نو دا جائز دي او بائع به زر درهمه له مشتري (زيد) څخه اخلي او پنځه سوه به له ضامن څخه اخلي.

او که ضامن د "مِنَ الثمن" لفظ نه ووايي بلکي صرف داسي ووايي چي زر درهمه له مشتري څخه واخله او د پنځه سوه درهمو ضامن زه يم، نو په دې صورت کي صرف د زرو درهمو په عوض کي بيع جائز کيږي او پر ضامن هيڅ شی نه واجبيږي (يعني په دې صورت کي بائع ته دا حق نسته چي له ضامن څخه پنځه سوه درهمه واخلي بلکي هغه به صرف له مشتري څخه زر درهمه اخلي).

د دغه دوو صورتونو په مېنځ کي د فرق وجه هغه قاعدهٔ کليه ده کوم چي مخکي تېره سوه چي زموږ په نېز په ثمن او مبيع کي زياتوب (اضافه) کول جائز دي او دا زياتوب د اصل عقد سره لاحق کيږي (يو ځای کيږي)، يعني که په ثمن يا مبيع کي مشتري يا بائع زياتوب (اضافه) وکړي، يا له بائع او مشتري څخه بغير بل (اجنبي) سړی زياتوب پکښي وکړي نو دا ټوله جائز دي، او دا زياتوب د اصل عقد سره يو ځای کيږي يعني دا زيات کړی سوی (اضافه سوی) مقدار به داسي ګڼل کيږي ګواکي اصل عقد پر هغه واقع سوی دی. لېکن د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز دا زياتوب د اصل عقد سره نه يو ځای کيږي.

**زموږ دليل**: دا دی چي په ثمن يا مبيع کي زياتوب کول داسي دي لکه عقد چي له يوه مشروع وصف څخه د بل مشروع وصف وطرف ته متغير کول؛ ځکه چي د عقد درې (۳) اوصاف دي:

① ... **عدل**: که ثمن د مبيع د قيمت برابر وي نو دې ته عدل (عادل) عقد وايي.

② ... **خاسر**: که ثمن د مبيع له قيمت څخه کم وي نو دې ته خاسر عقد وايي.

③... **رابح**: که ثمن د مبیع له قیمت څخه زیات وي نو دې ته رابح عقد وايي.

او د عقد دغه درې سره اوصاف مشروع او جائز دي، نو که چیرې مشتري یو شی په سل افغانۍ رانیسي حال دا چې په دې کې د بائع خسازه او تاوان وي (یعني د شي اصل قیمت یونیم سل افغانۍ وي لېکن مشتري هغه په سل رانیسي) نو دا خاسر عقد سو، لېکن که مشتري په ثمن کې زیاتوب وکړي (یعني هغه شی په یونیم سل یا په دوه سوه افغانۍ رانیسي) نو دا عقد عادل یا رابح سو. نو معلومه سوه چې په زیاتوب کولو سره عقد له یوه مشروع وصف څخه د بل مشروع وصف ته متغیّر کیږي (بدلیږي)، او دا ډول تغیّر (بدلون) جائز دی، نو ځکه په ثمن یا مبیع کې زیاتوب کول به د اصل عقد سره یوځای کول هم جائز وي.

ثم قد لا یستفید إلخ: دا د یو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چې په دې مسئله کې د بائع لپاره د پنځه سوه درهمو زیاتوب (اضافه) کول د اجنبي له طرفه صحیح کېدل پکار نه دي (یعني که څه هم د بائع یا مشتري له طرفه په ثمن کې زیاتوب کول صحیح دي لېکن د بل اجنبي سړي له طرفه دا صحیح کېدل پکار نه دي)، ځکه چې اجنبي سړی د دې پنځه سوه درهمو په عوض کې له بائع څخه هیڅ شی نه اخلي بلکې کوم څه چې حاصلیږي هغه مشتري ته حاصلیږي بائع ته هیڅ فایده نه حاصلیږي.

د دې په جواب کې فرمايي چې زیاتوب کونکي (اضافه کونکي) کس ته څه فایده حاصلېدل شرط نه دي، د مثال په توګه که مشتري په ثمن کې اضافه وکړي (مثلا بائع یو شی په یونیم سل افغانۍ خرڅوي او مشتري هغه په دوه سوه ځني رانیسي) نو ښکاره خبره ده چې دا صحیح دي، سره د دې چې مشتري د دغه زیاتوب (اضافه سوي مقدار) په عوض کې له بائع څخه هیڅ شی اخیستی نه دی، نو معلومه سوه چې د زیاتوب کونکي لپاره د زیاتوب په عوض کې د یو شي حاصلول (اخیستل) شرط نه دي، او کله چې د زیاتوب په عوض کې د یو شي حاصلول شرط نه دي نو پر اجنبي کس به د پنځه سوه درهمو د زیاتوب شرط لګول هم صحیح وي.

او دا مسئله داسي ده لکه بدل خلع؛ ځکه چې ښځي هم ته د بدل خلع په عوض کې هیڅ شی نه حاصلیږي، او له ښځي څخه بغیر پر بل (اجنبي) کس د بدل خلع شرط لګول جائز دي، نو همداسي به له مشتري څخه بغیر پر بل چا د ضمان (ذمه واری) شرط لګول هم جائز وي. ها! د زیاتوب (اضافه) کولو شرط دا دی چې مقابله تسمیةً او صورةً دواړه ډوله وي، تسمیةً مقابله دا ده چې زیاتوب کونکی د "مِنَ الثَّمَن" لفظ ووایي، او صورةً مقابله دا ده چې (په ثمن کې چې) کوم زیاتوب وسي هغه د مبیع په مقابله کې وي (او دلته خو صورتاً مقابله سته او د تسمیةً مقابله لپاره د "من الثمن" لفظ ذکر کول ضروري دي). نو

ځکه وویل سوه چي که زیاتوب کونکی (ضامن) د "من الثمن" لفظ ووایي نو دا زیاتوب صحیح او جائز دی ځکه چي د زیاتوب کولو شرط یعني تسمية او صورتاً مقابله موجوده سوه، او که "من الثمن" نه ووایي نو په دې صورت کي زیاتوب صحیح نه دی؛ ځکه چي شرط (یعني تسمیۃ مقابله) موجوده نه سوه، نو ځکه زیاتوب کول (اضافه کول) به هم صحیح نه وي، او کله چي زیاتوب کول صحیح نه سو، نو دا زیاتوب (اضافه سوی مقدار) به پر ضامن واجب هم نه وي.

## د رانیول سوي مینځي له قبضه کولو څخه مخکي د هغې نکاح کول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً وَلَمْ يَقْبِضْهَا حَتَّى زَوَّجَهَا فرمايي: او که څوک مینځه رانیسي او پر هغې قبضه نه وکړي تر دې چي د هغې نکاح وکړي فَوَطِئَهَا الزَّوْجُ او خاوند د هغې سره وطي وکړي فَالنِّكَاحُ جَائِزٌ نو دا نکاح جائز ده لِوُجُودِ سَبَبِ الْوِلَايَةِ وَهُوَ الْمِلْكُ فِي الرَّقَبَةِ عَلَى الْكَمَالِ ځکه چي د ولایت سبب موجود سو، او هغه په پوره توګه د رقبې مالک کېدل دي وَعَلَيْهِ الْمَهْرُ او پر خاوند مهر واجب دی وَهٰذَا قَبْضٌ او دا [نکاح کول او د خاوندي وطي کول] قبضه ده لِأَنَّ وَطْءَ الزَّوْجِ حَصَلَ بِتَسْلِيطٍ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي د خاوند وطي کول د مشتري له طرفه په قدرت ورکولو سره حاصل سوي دي فَصَارَ فِعْلُهُ كَفِعْلِهِ نو ځکه د خاوند فعل د مشتري د فعل په څېر سو وَإِنْ لَمْ يَطَأْهَا او که چیري خاوند د هغې سره وطي نه وکړي فَلَيْسَ بِقَبْضٍ نو دا [یعني صرف نکاح کول] قبضه نه ده وَالْقِيَاسُ أَنْ يَصِيرَ قَابِضًا او قیاس دا دی چي [صرف په نکاح کولو سره هم] مشتري قابض وګرځي لِأَنَّهُ تَعْيِيبٌ حُكْمِيٌّ ځکه چي نکاح کول حکماً عیبداره کول دي فَيُعْتَبَرُ بِالتَّعْيِيبِ الْحَقِيقِيِّ نو ځکه هغه به پر حقیقتاً عیبداره کولو قیاسول کیږي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ فِي الْحَقِيقِيِّ اِسْتِيلَاءً عَلَى الْمَحَلِّ د استحسان دلیل دا دی چي په حقیقي عیبداره کولو کي پر محل غلبه کیږي وَبِهِ يَصِيرُ قَابِضًا او په همدې سره مشتري قابض ګرځي وَلَا كَذٰلِكَ الْحُكْمِيُّ او حکمي عیبداره کول داسي نه دي فَافْتَرَقَا نو ځکه دواړه سره جلا سول [یعني په حقیقي او حکمي تعییب کي فرق راغلی].

**اللغات**: ﴿زوّجها﴾ د تفعيل ماضي ده: نكاح تړل (ديو چا سره د ښځي نكاح كول). ﴿تسليط﴾ د تفعيل مصدر دى: قدرت وركول، قبضه وركول، مسلط كول (ګومارل). ﴿تعييب﴾ د تفعيل مصدر دى: عيبداره كول، عيبجن كول.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دى كه يو سړى مينځه رانيسي لېكن پر هغې قبضه نه وكړي، بلكي له قبضې څخه مخكي د هغې نكاح ديو چا سره وكړي، او د چا سره چي نكاح وكړي هغه د مينځي سره وطي هم وكړي، نو زموږ په نېز دا نكاح كول جائز دي؛ ځكه چي مشتري د شراء (رانيولو) په وجه د هغه مينځي مالک سو او پر هغې مشتري ته د ولايت سبب حاصل سو، او اوس مشتري په پوره توګه د هغې د رقبې (ذات) مالک دى او هغه ته د هر ډول تصرف كولو حق او اختيار سته، نو ځكه د هغه د نكاح تصرف به هم صحيح او جائز وي. او كله چي نكاح جائز ده نو د وطي كولو په وجه پر خاوند د مينځي مهر هم لازم دى. او كه څه هم مشتري پر هغې قبضه نه ده كړې مګر دا نكاح او وطي د مشتري له طرفه قبضه شمارل كيږي، مطلب دا چي د خاوند په وطي سره د مشتري قبضه ثابتيږي، ځكه چي خاوند ته د وطي كولو قدرت د مشتري له طرفه (او د مشتري په تسليط سره) حاصل سوى دى، نو ځكه دلته به د خاوند فعل د مشتري فعل شمارل كيږي، او كه چيري مشتري په خپله له قبضې څخه مخكي د رانيول سوي مينځي سره وطي وكړي نو په دې سره قبضه ثابتيږي، لهذا د خاوند په وطي سره به هم قبضه ثابتيږي.

وإن لم يطأها إلخ: د دې حاصل دا دى چي كه خاوند د مينځي سره وطي نه وكړي نو د استحسان تقاضا دا ده چي صرف په نكاح كولو سره د مشتري قبضه نه ثابتيږي، لېكن د قياس تقاضا دا ده چي صرف په نكاح سره هم د مشتري قبضه ثابتيږي. د قياس دليل دا دى چي (دبل چا سره) د مينځي نكاح كول حكماً داسي دي لكه مينځي عيبداره كول. همدا وجه ده كه څوک داسي مينځه رانيسي چي هغه د بل چا په نكاح كي وي لېكن ده (مشتري) ته د هغې د نكاح خبر نه وي، وروسته په خبر سي چي دې مينځي د بل چا سره نكاح كړې ده، نو مشتري ته د خيار رؤيت پر بناء د مينځي د واپس كولو اختيار سته. له دې څخه معلومه سوه چي نكاح په مينځه كي حكماً عيب دى، نو ځكه حكمي تعييب به پر حقيقي تعييب قياسول كيږي، او د حقيقي تعييب په صورت كي مينځه عيبداره شمارل كيږي او په هغه سره قبضه ثابتيږي، لهذا د حكمي تعييب په صورت كي به هم قبضه ثابتيږي.

داستحسان دليل دا دى چي د حقيقي تعييب په صورت كي پر محل غلبه ثابتيږي، يعني كوم محل چي يې عيبداره كړى دى پر هغه قدرت او قبضه حاصليږي (مثلاً كه څوک مينځه رانيسي او له قبضه كولو څخه مخكي د هغې لاس ورمات كړي يا يې ستركه وباسي نو څرنګه چي د مشتري دغه

فعل د مینځي سره متصل دی نو ځکه پر مینځي د مشتري غلبه ثابته سوه، او څرنګه چي په داسي غلبه سره د مشتري قبضه ثابتیږي، نو ځکه په حقیقي عیبداره کولو سره به د مشتري قبضه ثابتیږي او هغه به قابض ګرځي). او د حکمي تعییب په صورت کي صرف محل عیبداره کیږي او پر هغه غلبه نه ثابتیږي، یعني په حکمي تعییب سره صرف دومره کیږي چي د مینځي وطرف ته د خلکو رغبت کمیږي او د دې په وجه ثمن کیږي او پر محل یعني پر مینځي غلبه نه ثابتیږي، نو په دې حواله سره په حقیقي تعییب او حکمي تعییب کي دېر غټ فرق سته، نو ځکه یو پر بل قیاسول صحیح نه دي.

## له قبضه کولو څخه مخکي د غائبېدونکي مشتري حکم

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى عَبْدًا فَغَابَ فرمايي: او که څوک غلام رانیسي، بیا غائب سي وَالْعَبْدُ فِي يَدِ الْبَائِعِ او غلام د بائع په قبضه کي وي وَأَقَامَ الْبَائِعُ الْبَيِّنَةَ أَنَّهُ بَاعَهُ إِيَّاهُ او بائع پر دې خبره بیّنه [ګواهي] پېش کړي چي بائع دا غلام پر هغه خرڅ کړی دی فَإِنْ كَانَتْ غَيْبَتُهُ مَعْرُوفَةً نو که د مشتري غائب والي معلوم وي [یعني د هغه درک معلوم وي] لَمْ يُبَعْ فِي دَيْنِ الْبَائِعِ نو دا غلام به د بائع په قرض کي نه خرڅول کیږي لِأَنَّهُ يُمْكِنُ إِيصَالُ الْبَائِعِ إِلَى حَقِّهِ بِدُونِ الْبَيْعِ ځکه چي [په دې صورت کي د غلام] له خرڅولو څخه بغیر [هم] خپل حق ته د بائع رسېدل ممکن دي وَفِيهِ إِبْطَالُ حَقِّ الْمُشْتَرِي او په دې کي د مشتري د حق باطلول راځي وَإِنْ لَمْ يُدْرَ أَيْنَ هُوَ او که دا معلومه نه وي چي مشتري چیري دی؟ بِيعَ الْعَبْدُ وَأُوفِيَ الثَّمَنُ نو غلام دي خرڅ کړی سي او د بائع ثمن دي اداء کړی سي لِأَنَّ مِلْكَ الْمُشْتَرِي ظَهَرَ بِإِقْرَارِهِ ځکه چي د مشتري ملکیت د بائع په اقرار سره ظاهر سوی دی فَيَظْهَرُ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي أَقَرَّ بِهِ مَشْغُولًا بِحَقِّهِ نو ځکه په هماغه توګه به هغه ښکاره کیږي څرنګه چي بائع په خپل حق سره د هغه د مشغولېدلو اقرار کړی دی وَإِذَا تَعَذَّرَ اسْتِيفَاؤُهُ مِنَ الْمُشْتَرِي او کله چي له مشتري څخه د بائع حق اخیستل ناممکن سي يَبِيعُهُ الْقَاضِي فِيهِ نو قاضي به غلام د هغه په حق کي خرڅوي كَالرَّاهِنِ إِذَا مَاتَ لکه راهن، کله چي هغه مړ سي وَالْمُشْتَرِي إِذَا مَاتَ مُفْلِسًا وَالْمَبِيعُ لَمْ يُقْبَضْ او لکه مشتري چي د مفلسوالي په حالت کي مړ سي او [تر اوسه] پر مبیع قبضه سوې نه وي

بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْقَبْضِ په خلاف تر قبضې وروسته لِأَنَّ حَقَّهُ لَمْ يَبْقَ مُتَعَلِّقًا بِهِ ځکه چې [تر قبضې وروسته] د بائع حق د مبيع سره متعلق پاتې نه سو ثُمَّ إِنْ فَضَلَ شَيْءٌ بيا که [له ثمن څخه] مقدار زيات سي [يعني د غلام ثمن څه زيات سي] يُمْسَكُ لِلْمُشْتَرِيْ نو هغه به د [غائب] مشتري لپاره راګرځول کيږي لِأَنَّهُ بَدَلُ حَقِّهِ ځکه چې هغه د مشتري د حق عوض دی وَإِنْ نَقَصَ او که [له ثمن څخه] څه مقدار کم سي يُتْبَعُ هُوَ أَيْضًا نو [په دې صورت کي] به هم [قاضي] په مشتري پسي کيږي [يعني څومره ثمن چې کم سي هغه به له غائب مشتري څخه اخيستل کيږي].

**اللغات**: ﴿غيبة﴾ غائبوالی، پټوالی، ﴿إيصال﴾ د افعال مصدر دی: رسول، ﴿لم يدر﴾ د ضرب له بابه د جحد مجهول صيغه ده: خبرېدل، معلومېدل، ﴿تعذّر﴾ د تفعّل ماضي ده، د دې لفظ دوي معناوي دي: مشکل کېدل، ناممکن کېدل، ﴿استيفاء﴾ (خپل حق) پوره اخيستل، پوره تر لاسه کول، ﴿فضل﴾ د نصر د باب ماضي ده: زياتېدل، اضافه کېدل، ﴿نقص﴾ مخکني صيغه ده: کمېدل، لږېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی غلام رانيسي، بيا پر غلام له قبضه کولو څخه مخکي دا سړی (مشتري) غائب سي او ثمن اداء نه کړي، او مبيع (غلام) تر اوسه د بائع په قبضه کي وي او بائع ثمن (پيسو) ته محتاج وي، نو په داسي صورت کي که بائع د غلام پر خرڅولو بيّنه پيش کړي او د قاضي مخته د خپل ثمن د اخيستلو غوښتنه وکړي، نو قاضي صاحب دي تر ټولو مخکي د مشتري غيبة (غائب والي) ته اوګوري چي د هغه غيبة معروف دی او که مجهول، که چيري د مشتري غيبة (غائب والی) معروف وي يعني د هغه ځای او درک معلوم وي نو بائع ته دي ووايي چي وروره! مشتري ته ورسه! او له هغه څخه خپل ثمن واپس واخله!، او قاضي به د بائع د حق اداء کولو لپاره دا غلام دويم ځل (دوباره) نه خرڅوي، ځکه چي له خرڅولو څخه بغير هم د بائع لپاره دا ممکن دي چي له مشتري څخه خپل حقّ واخلي، او د خرڅولو په صورت کي د مشتري حق باطليږي، او د يو چا حق باطلول صحيح نه دي، نو ځکه ويل سوه چي که د مشتري غيبة معروف وي نو د غلام ثمن به له هغه څخه اخيستل کيږي او دويم ځل به غلام نه خرڅول کيږي.

او که چيري د مشتري درک معلوم نه وي چي هغه چيري دی، نو په دې صورت کي به قاضي د بائع غوښتني ته پاملرنه کوي او د بائع د حق اداء کولو لپاره به غلام دويم ځل خرڅوي او د هغه ثمن به بائع ته ورکوي؛ ځکه که څه هم غائب مشتري دا غلام رانيولی دی لېکن تر اوسه يې پر هغه قبضه

نه ده کړې، او پر غلام د غائب مشتري ملکيت صرف د بائع په اقرار سره ښکاره سوی دی. او بائع همداسي اقرار کړی دی چي مشتري خو د هغه مالک دی لېکن د هغه ملکيت اوس زما په حق سره مشغول دی، ځکه چه هغه زما ثمن نه دی اداء کړی، او څرنګه چي د مشتري درک او ځای هم معلوم نه دی، نو ځکه له هغه څخه د بائع حق (ثمن) اخيستل ناممکن دي، نو ځکه قاضي ته دا حق سته چي غلام پر بل چا خرڅ کړي او د هغه ثمن بائع ته ورکړي.

د دې مثال داسي دی لکه راهن چي مړ سي نو ښکاره خبره ده چي اوس د مرتهن لپاره خپل دَين (قرض) اخيستل ناممکن سوه، نو ځکه په دې صورت کي مرتهن ته دا حق سته چي مرهون شی خرڅ کړي او د هغه له ثمن څخه خپل دَين واخلي. او بل مثال يې دا دی لکه مشتري چي يو شی رانيسي، لېکن پر هغه له قبضه کولو څخه مخکي مشتري مفلس (ډېوالي) سي او د همدغه افلاس په حالت کي مړ سي، نو په دې صورت کي به هم د بائع د ثمن اداء کولو لپاره هغه شی (مبيع) خرڅول کيږي، لهذا څرنګه چي په دغه دوو صورتونو کي مبيع خرڅول کيږي، همداسي په پورتني مسئله کي که د مشتري درک معلوم نه وي نو هم به مبيع خرڅول کيږي.

بخلاف ما بعد القبض إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مشتري پر مبيع قبضه هم وکړي لېکن ثمن اداء نه کړي او غائب سي، او د هغه هيڅ ځای معلوم نه وي، نو په دې صورت کي به د بائع بيّنه نه قبلول کيږي او د هغه پر غوښتنه قاضي مبيع (غلام) دويم ځل نه سي خرڅولای؛ ځکه چي پر مبيع د غائب مشتري قبضه ده او له هغه څخه د بائع حق ختم سوی دی، او د ده حق د غائب مشتري پر ذمه دَين ګرځېدلی دی او څرنګه چي هغه موجود دی، نو ځکه د هغه په خلاف به د بائع بيّنه نه قبلول کيږي؛ ځکه چي دا پر غائب کس د دَين ثابتولو بيّنه ده (يعني دا بيّنه ګواکي د دې لپاره ده چي پر غائب مشتري دَين ثابت کړی سي)، او پر غائب کس زموږ په نېز دا ډول بيّنه پېشول معتبر نه دي.

ثم إن فضل إلخ: د دې حاصل دا دی چي د پورتني مسئلې په اول صورت کي چي قاضي د بائع په بيّنه سره پر بل چا مبيع (غلام) خرڅ کړي او ثمن ځني واخلي نو دا ثمن له دوو حالتونو څخه خالي نه دی، يا هغه به د بائع له اول (مخکني) ثمن څخه زيات وي يا به کم وي، که چيري زيات وي نو زائد مقدار به قاضي د مشتري لپاره خوندي کوي (يعني دا دويم ثمن چي څومره مقدار له مخکني ثمن څخه زيات سي هغه به قاضي د ځان سره خوندي کوي او کله چي غائب مشتري راسي، هغه ته به يې ورکوي)، ځکه چي دا د هغه حق دی يعني د رانيول سوي غلام بدل دی نو ځکه صرف هغه د دې زيات حقدار دی، او که چيري د غلام دويم ثمن له اول ثمن څخه کم وي، نو د کم سوی مقدار اداء کول د مشتري پر ذمه دي (يعني څومره

مقدار چي له مخکښي ثمن څخه کم سي هغه پر غائب مشتري واجب دی)، لهذا کله چي هم مشتري راسي نو قاضي به له هغه څخه کم سوی مقدار اخلي او بائع ته به یې ورکوي.

## په پورتني مسئله کي د دوو مشتریانو حکم

فَإِنْ كَانَ الْمُشْتَرِيْ اِثْنَيْنِ فَغَابَ أَحَدُهُمَا او که چیري مشتري دوه کسان [شریکان] وي بیا په هغو کي یو غائب سي فَلِلْحَاضِرِ أَنْ يَدْفَعَ الثَّمَنَ كُلَّهُ وَيَقْبِضَهُ نو حاضر ته دا اختیار سته چي ټوله ثمن ورکړي [اداء کړي] او پر غلام قبضه وکړي وَإِذَا حَضَرَ الْآخَرُ او کله چي بل [غائب] مشتري حاضر سي لَمْ يَأْخُذْ نَصِيبَهُ حَتَّى يَنْقُدَ شَرِيكَهُ الثَّمَنَ نو هغه خپله حصه نه سي اخیستلای، تر دې چي خپل شریک ته [د خپلي حصې] ثمن اداء نه کړي وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا د طرفینو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ[*]: إِذَا دَفَعَ الْحَاضِرُ الثَّمَنَ كُلَّهُ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایلي دي: چي کله حاضر ټوله ثمن ورکړي [اداء کړي] لَمْ يَقْبِضْ إِلَّا نَصِيبَهُ نو هغه صرف پر خپله حصه قبضه کولای سي وَكَانَ مُتَطَوِّعًا بِمَا أَدَّى عَنْ صَاحِبِهِ او کوم ثمن چي هغه د خپل ملګري له طرفه اداء کړي دی په هغه کي به دئ متبرّع [احسان کونکی] وي لِأَنَّهُ قَضَى دَيْنَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ ځکه چي هغه د بل چا قرض د هغه له حکم [او اجازت] څخه بغیر اداء کړی دی فَلَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ نو ځکه دئ پر هغه رجوع نه سي کولای [یعني ثمن واپس نه سي ځني اخیستلای] وَهُوَ أَجْنَبِيٌّ عَنْ نَصِيبِ صَاحِبِهِ او [څرنګه چي] هغه د خپل ملګري له حصې څخه اجنبي دی فَلَا يَقْبِضُهُ نو ځکه د هغه پر حصې قبضه [هم] نه سي کولای وَلَهُمَا: أَنَّهُ مُضْطَرٌّ فِيهِ او د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چي حاضر [شریک] د ټوله ثمن په اداء کولو کي مجبور دی لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ الِانْتِفَاعُ بِنَصِيبِهِ إِلَّا بِأَدَاءِ جَمِيعِ الثَّمَنِ ځکه چي د هغه لپاره د ټوله ثمن له اداء کولو څخه بغیر له خپلي حصې څخه نفع اخیستل ممکن نه دي لِأَنَّ الْبَيْعَ صَفْقَةٌ وَاحِدَةٌ ځکه چي [دلته] بیع یوه صفقه ده [یعني دواړو شریکانو په یوه عقد سره غلام رانیولی دی] وَلَهُ حَقُّ الْحَبْسِ

---

[*] القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَاالله، كما ذكر في فتح القدير (ج:۶، ص:۲۵۴)، وكذا في رد المختار (ج:۴، ص:۲۴۲).
[القول الراجح ج:۲، ص:۸۴]

مَا بَقِيَ شَيْءٌ مِنْهُ او تر څو چي څه ثمن پاته وي [تر هغه وخته پوري] بائع ته د مبيع راګرځولو حق سته وَالْمُضْطَرُّ يَرْجِعُ او مجبور کس رجوع کولای سي [ثمن واپس اخيستلای سي] كَمُعِيْرِ الرَّهْنِ لکن عاريتاً رهن ورکونکی وَإِذَا كَانَ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ عَلَيْهِ او کله چي حاضر [شريک] ته پر غائب د رجوع کولو اختيار ستته كَانَ لَهُ حَقُّ الْحَبْسِ عَنْهُ إِلَى أَنْ يَسْتَوْفِيَ حَقَّهُ نو هغه ته به له بائع څخه د مبيع راګرځولو اختيار هم وي، تر دې چي هغه خپل ټوله حق [له غائب شريک] څخه واخلي كَالْوَكِيلِ بِالشِّرَاءِ إِذَا قَضَى الثَّمَنَ مِنْ مَالِ نَفْسِهِ لکه وکيل بالشراء چي کله په خپل مال سره ثمن اداء کړي.

**اللغات**: ﴿يدفع﴾ د فتح مضارع ده: ورکول. ﴿نصيب﴾ حصه، برخه. ﴿ينقد﴾ د نصر مضارع ده: اداء کول (نغد ورکول). ﴿مضطر﴾ د افتعال د باب مفعول دی: مجبور کړی سوی. ﴿صفقة﴾ عقد، معامله. ﴿مُعِير﴾ عاريتاً ورکونکی، په عاريت ورکونکی. ﴿حبس﴾ د ضرب د باب مصدر دی: بندول، منع کول، راګرځول. ﴿يستوفي﴾ د استفعال مضارع ده: پوره اخيستل، ترلاسه کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که دوه خلک په مشترکه توګه يو غلام رانيسي او بيا د هغه د ثمن اداء کولو او پر هغه له قبضه کولو څخه مخکي يو مشتري غائب سي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز حکم دا دی چي حاضر شريک دي د غلام پوره ثمن اداء کړي او پر ټوله غلام دي قبضه وکړي، او کله چي غائب شريک واپس راسي نو حاضر شريک دي له هغه څخه د هغه د حصې ثمن واپس واخلي، او تر څو چي هغه حاضر شريک ته د خپلي حصې ثمن ور نه کړي تر هغه وخته پوري په غلام کي پر خپله حصه قبضه نه سي کولای، په بله وينا دا چي تر هغه وخته پوري د خپل واري او نوبت په وخت کي له غلام څخه خدمت نه سي اخيستلای.

د دې په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چي که څه هم حاضر شريک د مبيع غلام پوره ثمن اداء کړي ليکن بيا هم هغه ته صرف (په غلام کي) پر خپله حصه د قبضه کولو اختيار ستته او د غائب شريک پر حصه هغه قبضه نه سي کولای يعني په کوم وخت کي چي د غائب شريک د حصې نوبت وي په هغه وخت کي حاضر شريک له غلام څخه خدمت نه سي اخيستلای، او نه هغه د غائب شريک له طرفه اداء کړی سوی ثمن له هغه (غائب شريک) څخه اخيستلای سي؛ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي حاضر شريک د غائب شريک له طرفه په ثمن اداء کولو کي متبرّع دی (يعني د ثمن په اداء کي د هغه سره بخشش او احسان کونکی دی) او په تبرّع (بخشش او احسان) کي رجوع نه

کیږي. او بل دا چي د غائب شریک د حصې ثمن د ده (حاضر شریک) پر ذمه دَین دی، او څرنګه چي حاضر شریک د هغه له اجازت څخه بغیر د هغه دَین اداء کړی دی، نو ځکه په دې حواله سره هم هغه له غائب شریک څخه د هغه د حصې ثمن واپس نه سي اخیستلای، او کله چي حاضر شریک ته د ثمن واپس اخیستلو اختیار نسته، نو هغه ته به دا اختیار هم نه وي چي د غائب شریک د غلام پر حصه قبضه وکړي؛ ځکه چي هغه د غائب شریک د حصې په سلسله کي اجنبي دی، او اجنبي کس د بل چا پر حق او حصه قبضه نه سي کولای.

ولهما إلخ: د طرفینو رَحِمَهُمَا الله د دلیل حاصل دا دی چي دلته حاضر شریک د غائب شریک په ثمن اداء کولو کي متبرّع نه دی بلکي مجبور دی؛ ځکه چي د غائب شریک د حصې له ثمن اداء کولو څخه بغیر حاضر شریک له غلام څخه نفع نه سي اخیستلای، ځکه چي دوی دواړو په یوه عقد (یوه صفقه) سره دا غلام رانیولی دی، لهذا تر څو چي د ثمن یوه روپي هم پاته وي، تر هغه وخته به بائع له حاضر شریک څخه مبیع (غلام) راګرځوي او نه به یې ورکوي، او ښکاره خبره ده چي په دې کي د حاضر شریک نقصان دی، نو ځکه هغه له خپل ځان څخه د نقصان لیري کولو لپاره د غائب شریک د حصې په ثمن اداء کولو کي مجبور دی، او مجبور کس ته د خپل حق واپس اخیستلو پوره اختیار سته، نو ځکه حاضر شریک ته به له غائب شریک څخه د هغه د حصې د ثمن اخیستلو حق او اختیار وي.

د دې مثال داسي دی لکه خالد چي زید ته په دې وجه یو شی عاریتاً ورکړي چي زید هغه شی یو سړي ته په رهن کي کښېږدي او له هغه سړي څخه قرض واخلي او خپل کار په وکړي، نو مُستعیر (زید) همداسي وکړي یعني هغه شی یو سړي (مرتهن) ته په رهن کي کښېږدي او قرض ځني واخلي، لېکن تر دې وروسته مُستعیر (زید) کوم چي راهن هم دی مفلس سي او له قرض اداء کولو څخه عاجزه سي یا غائب سي او مُعیر (خالد) یعني د مرهون شي مالک د مرتهن قرض اداء کړي او له هغه څخه خپل شی واخلي، نو په دې صورت کي مُعیر (خالد) ته دا اختیار سته چي له راهن (زید) څخه هغه مال واپس واخلي کوم چي ده په قرض کي مرتهن ته ورکړی دی، ځکه چي مُعیر د قرض په اداء کولو کي مجبور دی، متبرّع نه دی (او مجبور ځکه دی چي هغه له خپل شي څخه تر هغه وخته نفع نه سي اخیستلای تر څو چي د مرتهن قرض اداء نه کړي)، همداسي په دې مسئله کي هم حاضر شریک د غائب شریک له طرفه د هغه د حصې د ثمن په اداء کولو کي مجبور دی، نو ځکه هغه ته به هم دا اختیار وي چي له غائب شریک څخه د هغه د حصې ثمن واپس واخلي، او کله چي حاضر شریک ته د ثمن واپس اخیستلو اختیار سته، نو ښکاره خبره ده چي هغه ته به دا اختیار هم وي چي تر څو غائب شریک د خپلي حصې ثمن حاضر شریک ته ورنه کړي، تر هغه وخته به حاضر شریک د هغه د حصې

مبيع (غلام) د ځان سره راګرځوي او هغه ته به يې نه سپاري. لکه يو څوک (مؤکل) چې بل څوک د يو شي د رانيولو وکيل جوړ کړي (چې دا شی زما لپاره رانيسه!). او وکيل په خپل ثمن او مال سره هغه شی رانيسي، نو په دې صورت کې وکيل ته هم دا حق سته چې له مؤکل شخصه د خپل توله ثمن له اخيستلو څخه مخکې هغه ته رانيول سوی شی نه وسپاري، همداسې په دې مسئله کې هم له غائب شريک شخصه د ثمن له اخيستلو څخه مخکې حاضر شريک ته د مبيع راګرځولو (حبسُ المبيع) پوره اختيار سته.

## په دوو ثمنو (نقودو) سره د يو شي د رانيولو حکم او تفصيل

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً بِأَلْفِ مِثْقَالِ ذَهَبٍ وَفِضَّةٍ فرمايي: او که څوک يوه مينځه د زر مثقاله سرو او سپينو زرو په عوض کې رانيسي فَهُمَا نِصْفَانِ نو [پر هغه] دا دواړه نيم، نيم واجب دي لِأَنَّهُ أَضَافَ الْمِثْقَالَ إِلَيْهِمَا عَلَى السَّوَاءِ ځکه چې هغه د دواړو وطرف ته په برابره توګه د مثقال نسبت کړی دی فَيَجِبُ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا خَمْسُ مِائَةِ مِثْقَالٍ نو ځکه په دواړو کې به له هر يوه شخه پنځه سوه مثقاله واجب وي لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ ځکه چې د اولويت وجه نسته وَبِمِثْلِهِ لَوِ اشْتَرَى جَارِيَةً بِأَلْفٍ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ او د همدې په څېر که چيري څوک له سره زر او سپينو زر څخه د زرو [ألف] په عوض کې مينځه رانيسي يَجِبُ مِنَ الذَّهَبِ مَثَاقِيلُ وَمِنَ الْفِضَّةِ دَرَاهِمُ وَزْنِ سَبْعَةٍ نو له سره زرو څخه مثقال واجبيږي او له سپينو زرو څخه د وزن سبعه والا دراهم واجبيږي لِأَنَّهُ أَضَافَ الْأَلْفَ إِلَيْهِمَا ځکه چې هغه د دواړو وطرف ته د زرو [ألف] نسبت کړی دی فَيَنْصَرِفُ إِلَى الْوَزْنِ الْمَعْهُودِ فِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو ځکه په هر يوه کې به د معلوم [متعين] وزن وطرف ته رجوع کيږي.

**اللغات:** ﴿ذهب﴾ سره زر (سونا)، ﴿فضة﴾ سپين زر، ﴿معهود﴾ معلوم، مشهور (معروف).

﴿مثقال﴾ يوه پيمانه (مقدار) دی کوم چې څلور "ماشې" او څلور "رتی" کيږي، او د ګرام په حساب سره تقريباً څلور (۴) ګرامه کيږي، ﴿وزن سبعة﴾ دې ته وايي چې لس درهمه د اوو (۷) مثقالو سره برابر وي. په دې صورت کې يو درهم د يوه مثقال اووه حصې (۰.۷) کيږي يعني له يوه مثقال څخه کميږي. د "وزن سبعه والا" د يوه درهم وزن تقريباً درې (۳) ګرامه کيږي، د حضرت عمر ﷺ په زمانه کې همدا وزن سبعه والا دراهم په بازار کې رواج وه. (أثمار الهدايه)

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی ووایې: چې زه دا مینځه د یو زر مثقالو سرو زرو او سپینو زرو په عوض کې رانیسم او بائع پر هغه مینځه خرڅه کړي، نو دا بیع جائزده او پر مشتري پنځه سوه مثقاله سره زر او پنځه سوه مثقاله سپین زر واجب دي.

که څوک دا اعتراض وکړي چې د سره زر مثقالو ته ترجیح حاصله ده، ځکه چې مثقال د سرو زرو سره خاص دی، په دې توګه چې د مثقال په ذریعه سره زر تلل کیږي، نه سپین زر، نو د دغه ترجیح په وجه پکار دا ده چې پر مشتري پوره زر مثقاله د سرو زرو واجب سي. د دې جواب دا دی چې څرنګه په دې یوه اعتبار سره سرو زرو ته ترجیح حاصله ده همداسې په بل اعتبار سره سپینو زرو ته ترجیح حاصله ده، ځکه چې په بیع او معامله کې عموماً سپین زر استعمالیږي، نه سره زر. لهذا کله چې په دې دواړو (سرو او سپینو زرو) کې هر یوه ته په یوه، یوه وجه سره ترجیح حاصله ده نو د تعارض په وجه به دواړې وجهې ساقطیږي، او کله چې دواړې وجهې ساقطه سوې، نو ځکه د سرو او سپینو زرو (دواړو) وطرف ته د مثقال د نسبت برابرېدلو په وجه به نیم، نیم مثقال واجبیږي، یعنې پنځه سوه مثقاله به د سره زرو او پنځه سوه مثقاله به د سپینو زرو واجبیږي.

وبمثله إلخ: د پورتنی مسئلې په څېر بله مسئله دا ده چې که یو سړی داسې ووایې: زه دا مینځه د یو زر سرو او سپینو زرو په عوض کې رانیسم (یعنې د مثقال یا درهم لفظ ذکر نه کړي بلکې صرف زر [ألف] ذکر کړي) او بائع پر هغه مینځه خرڅه کړي، نو په دې صورت کې پر مشتري پنځه سوه مثقاله د سرو زرو واجبیږي، او پنځه سوه دراهم د سپینو زرو پر واجبیږي، او دراهم به د وزن سبعه والا دراهم وي (یعنې پنځه سوه د وزن سبعه والا دراهم پر واجبیږي. د وزن سبعه تعریف په لغاتو کې بیان سو).

دلیل دا دی چې مشتري یو زر (ألف) د سرو او سپینو زرو دواړو وطرف ته منسوب کړي دي، لهذا په سرو او سپینو زر کې چې کوم وزن متعارف (په عُرف کې رواج) وي، د هغه اعتبار به کیږي، او په سرو زرو کې د مثقال وزن متعارف دی، نو ځکه له سرو زرو څخه به پنځه سوه مثقاله واجبیږي، او په سپینو زرو کې د وزن سبعه والا دراهم متعارف دي، نو ځکه له سپینو زرو څخه به پنځه سوه دراهم واجبیږي (ځکه چې مشتري د دواړو وطرف ته نسبت کړی دی، نو له دواړو څخه به نیم، نیم واجبیږي).

## د قرض په ادائینه (اداء کولو) کې د وصف د لحاظ کولو حکم

قَالَ: وَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ جِيَادٍ فرمایي: او که د یوه سړي پر بل چا لس کَرَه [اصلي] دراهم باندې وي فَقَضَاهُ زُيُوفًا لیکن مقروض هغه [قرضخواه] ته کوټه [جعلي] دراهم ورکړي وَهُوَ لَا يَعْلَمُ او قرضخواه [په دې] خبر نه سي فَأَنْفَقَهَا أَوْ هَلَكَتْ بیا قرضخواه هغه [کوټه دراهم] خرڅ کړي یا هغوی

ضايع سي فَهُوَ قَضَاءٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا اداء ده [يعني د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د قرضخواه قرض اداء سو او مقروض بري سو] وَقَالَ: أَبُو يُوسُفَ ❁: يَرُدُّ مِثْلَ زُيُوفِهِ وَيَرْجِعُ بِدَرَاهِمِهِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي قرضخواه به کوټه دراهم [مقروض] ته واپس کوي او [له هغه څخه به] کَرَه دراهم واپس اخلي لِأَنَّ حَقَّهُ فِي الْوَصْفِ مَرْعِيٌّ كَهُوَ فِي الْأَصْلِ ځکه چي د قرضخواه حق په وصف کي هغسي رعايت کړی سوی [ملحوظ] دی لکه څرنګه چي په اصل کي دی [يعني لکه څرنګه چي په اصل قرض کي د قرضخواه د حق رعايت سوی دی همداسي په وصف کي هم د هغه د حق رعايت سوی دی] وَلَا يُمْكِنُ رِعَايَتُهُ بِإِيجَابِ ضَمَانِ الْوَصْفِ او د وصف د ضمان په واجبولو سره د هغه [حق الوصف] رعايت کول ممکن نه دي لِأَنَّهُ لَا قِيمَةَ لَهُ عِنْدَ الْمُقَابَلَةِ بِجِنْسِهِ ځکه چي د خپل همجنس سره د مقابله کېدلو په وخت کي وصف لره هيڅ قيمت [او ارزښت] نه وي فَوَجَبَ الْمَصِيرُ إِلَى مَا قُلْنَا نو ځکه د هغه صورت وطرف ته رجوع کول ضروري سوه کوم چي موږ [يعني امام ابو يوسف] بيان کړی [يعني قرضخواه به کوټه دراهم مقروض ته واپس کوي... إلخ] وَلَهُمَا: أَنَّهُ مِنْ جِنْسِ حَقِّهِ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي کوټه دراهم هم د هغه د حق له جنس څخه دي حَتَّى لَوْ تَجَوَّزَ بِهِ فِيمَا لَا يَجُوزُ الِاسْتِبْدَالُ تر دې چي که هغه په کوټه دراهمو کي چشم پوشي وکړي [او هغه قصداً واخلي] په داسي عقد کي چي په هغه کي استبدال [د يوه عوض پر ځای بل شی اخيستل] جائز نه وي جَازَ نو دا جائز دي فَيَقَعُ بِهِ الِاسْتِيفَاءُ نو ځکه په دې سره به [د حق] حاصلول ثابتيږي وَلَا يَبْقَى حَقُّهُ إِلَّا فِي الْجَوْدَةِ او د هغه حق به نه پاتيږي مګر په جودت [کَرَه والي] کي وَلَا يُمْكِنُ تَدَارُكُهَا بِإِيجَابِ ضَمَانِهَا او د جودت تدارک [تلافي] د هغه د ضمان په واجبولو سره ممکنه نه ده لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَكَذَا بِإِيجَابِ ضَمَانِ الْأَصْلِ او همدارنګه د اصل د ضمان په واجبولو سره هم ممکنه نه ده. لِأَنَّهُ إِيجَابٌ لَهُ عَلَيْهِ ځکه چي دا [د اصل ضمان واجبول داسي دي لکه] د قرضخواه

---

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۲۴۳)، وكذا في البحر الرائق (ج:۶، ص:۱۷۷). [القول الراجح ج:۲، ص:۸۴]

لپاره پر خپل ځان [ضمانِ] واجبول وَلَا نَظِيرَلَهُ او [په شريعت کي] د دې هيڅ مثال نسته.

**اللغات**: ﴿جياد﴾ جمع د "جَيِّد" ده: ښه، کَرَه (اصلي)، سوچه. ﴿زيوف﴾ جمع د "زَيْف" ده: کوټه، جعلي (ناکَرَه)، بد. ﴿مرعی﴾ د فتح د باب مفعول دی: رعايت کړی سوی، لحاظ کړی سوی (ملحوظ). ﴿استيفاء﴾ (خپل حق) پوره حاصلول، پوره ترلاسه کول. ﴿تجوز﴾ د تفعل ماضي ده: چشم پوشي کول، زغمل، نقصان برداشت کول (مثلا که مالک د مزدور په کار کي خرابي ويني. خو بيا هم قصداً سترګي پر پټي کړي او هغه برداشت کړي [وزغمي] او معاف يې کړي، نو دې ته "تجوز" وايي). ﴿استبدال﴾ د استفعال مصدر دی: د يوه شي په بدله کي بل شی اخيستل، يو شی په بل شي سره بدلول. (مراد ځني د يوه عوض پر ځای بل شی اخيستل دي؛ او دا په بيع سَلَم او بيع صَرف کي جائز نه دي، خو کله چي عوض کَرَه دراهم وي نو بيا د هغه پر ځای کوټه دراهم اخيستل په بيع سَلَم او بيع صَرف کي هم جائز دي نو معلومه سوه چي کوټه دراهم "من جنس حقه" دي).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که (مثلاً) د خالد پر زيد لس کَرَه (اصلي) دراهم قرض باندي وي، لېکن زيد دوکه وکړي او خالد ته د لسو کَرَه دراهمو پر ځای کوټه (جعلي) دراهم ورکړي او خالد په ناپامي کي هغه خرچ کړي، يا هغه د خالد سره ضايع سي، تر دې وروسته هغه ته معلومه سي چي مقروض (زيد) خو ما ته کوټه (جعلي) دراهم راکړي وه، نو په دې صورت کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز معامله ختمه او پوره ده، يعني مقروض (زيد) له خپل قرض څخه بري (خلاص) دی او د قرضخواه (خالد) حق اداء سو. لېکن د امام ابويوسف رَحِمَهُ الله فرمان دا دی چي قرضخواه (خالد) ته پکار دي چي مقروض (زيد) ته هغسي کوټه دراهم واپس کړي کوم چي مقروض ده ته ورکړي دي او له هغه څخه خپل کَرَه دراهم واپس واخلي؛ ګواکي په دې صورت کي د امام ابويوسف رَحِمَهُ الله په نېز د قرضخواه حق (قرض) نه دی اداء سوی او تر اوسه د مقرض پر ذمه هغه باقي دی.

**د امام ابو يوسف دليل**: دا دی چي څرنګه په اصل کي د قرضخواه د حق رعايت کيږي يعني که مقروض هغه ته د لسو درهمو پر ځای نهه درهمه ورکړي نو مقروض نه بري کيږي، همداسي به په وصف کي هم د قرضخواه د حق رعايت کيږي يعني که مقروض هغه ته د کَرَه دراهمو پر ځای کوټه دراهم ورکړي نو هم به مقروض له قرض څخه نه بري کيږي. لېکن ستونزه دا ده چي د وصف د ضمان په واجبولو سره د هغه تدارک او تلافي نه سي کېدای (يعني پر مقروض تنها د جودت (کَرَه والي) ضمان واجبول ممکن نه دي) ځکه که يو شی د خپل همجنس شي په مقابله کي وي لکه دلته چي دراهم د

دراهمو په مقابله کي دي، نو په دې صورت کي وصف لره هيڅ قيمت او ارزښت نه وي، او يو کره درهم په يوه کوټه درهم سره بدلول جائز دي، معلومه سوه چي د دوه همجنس شيانو د مقابلې په صورت کي وصف لره هيڅ قيمت او ارزښت نسته، او په دې مسئله کي د قرضخواه په حق کي د وصف رعايت کول ضروري هم دي، نو ځکه د دې غوره صورت هماغه دی کوم چي موږ بيان کړی، يعني قرضخواه دي مقروض ته هغسي کوټه دراهم ورکړي کوم چي مقروض ده ته ورکړي دي او له هغه څخه دي خپل کره دراهم واپس واخلي. صاحب د هدايې په "وجب المصير إلى ما قلنا" سره همدا خبره بيان کړې ده.

**د طرفينو دليل:** دا دی چي مقروض (زيد) چي کوم دراهم اداء کړي دي هغه خو هم دراهم دي که څه هم په شکل او صورت کي له هغه دراهمو څخه جلا دي کوم چي د قرضخواه (خالد) له طرفه هغه ته ورکول سوي دي، ليکن په چشم پوشي سره دا ډول استبدال جائز دی، همدا وجه ده که په "بيع صرف" (يا په "بيع سلم") کي يو عاقد بل عاقد ته د کره دراهمو پر ځای کوټه دراهم ورکړي او دا بل عاقد چشم پوشي وکړي (يعني دغه کوټه والی برداشت کړي او سترگي پر پټي کړي) او دراهم څني واخلي نو دا جائز دي، حال دا چي په "بيع صرف" کي پر عوضينو له قبضه کولو څخه مخکي د هغوی استبدال (تبادله) جائز نه ده، معلومه سوه چي کوټه دراهم هم د کره دراهمو په څېر دي او د ماليت په اعتبار سره په هغوی کي فرق نسته. ها! څرنگه چي قرضخواه ته خپل اصل شی رسېدلی نه دی يعني د جودت (کره والي) صفت معدوم دی، او د هغه د تلافی (تدارک) هيڅ صورت نسته، ځکه نه تنهاد جودت ضمان (تاوان) واجب کېدای سي او نه تنها د اصل ضمان واجب کېدای سي، د جودت (وصف) ضمان خو ځکه نه سي واجب کېدای چي هغه لره هيڅ قيمت او ارزښت نسته (لکه مخکي چي ذکر سوه)، او کوم شي لره چي هيڅ قيمت نه وي د هغه ضمان نه سي واجب کېدای. او پر مقروض اوس د اصل ضمان هم نه سي واجب کېدای، ځکه چي په دې صورت کي به پر قرضخواه د هغه کوټه دراهمو ضمان واجب سي کوم چي ده ته مقروض ورکړي دي او کله چي قرضخواه هغه ته کوټه دراهم واپس کړي نو بيا به مقروض ده ته کره دراهم ورکوي، نو دا داسي سو لکه د خپلې فايدې لپاره پر خپل ځان ضمان واجبول (يعني گواکي قرضخواه د خپلې فايدې لپاره پر خپل ځان د کوټه دراهمو ضمان (تاوان) لازم کړی)، حال دا چي په شريعت کي د دې هيڅ اصل او مثال نسته چي انسان فقط د خپلې فايدې لپاره پر خپل ځان ضمان واجب کړي او هغه هم فقط د وصف (د فايدې) لپاره. لهذا کله چي نه د وصف (جودت) ضمان ممکن دی او نه د اصل ضمان، نو ځکه همدا به ويل کېږي چي قرضخواه چي کله کوټه دراهم واخلي نو معامله ختمه او پوره سوه، مقروض له قرض څخه بري سو او د قرضخواه حق اداء سو.

## د بل چا په ځمکه کې د نیول سوي ښکار حکم

قَالَ: وَإِذَا أَفْرَخَ طَيْرٌ فِي أَرْضِ رَجُلٍ فرمايي: او كه يو مرغه د يو سړي په ځمكه كي بچي [چيچيان] وباسي فَهُوَ لِمَنْ أَخَذَهُ نو هغوی د هغه كس دي كوم چي يې ونيسي [يعني كوم كس چي هم اول دغه د مرغه چيچيان ونيسي نو دا د هغه دي] وَكَذَا إِذَا بَاضَ فِيهَا او همداسي [حكم دی] كله چي مرغه په ځمكه كي هګۍ واچوي وَكَذَا إِذَا تَكَنَّسَ فِيهَا ظَبْيٌ او همداسي [حكم دی] كله چيْ په ځمكه كي هوسۍ خپل ځای جوړ كړي لِأَنَّهُ مُبَاحٌ سَبَقَتْ يَدُهُ إِلَيْهِ ځكه چي [له دغو شيانو څخه] هر يو مباح دی او د نيونكي كس [آخذ] لاس هغه ته مخكي رسېدلی دی [نو ځكه دا به د هغه وي] وَلِأَنَّهُ صَيْدٌ وَإِنْ كَانَ يُؤْخَذُ بِغَيْرِ حِيلَةٍ او ځكه چي [له دغو شيانو څخه] هر يو ښكار دی، كه څه هم هغه له يو حيلې [چل] څخه بغير نيول سوی وي وَالصَّيْدُ لِمَنْ أَخَذَهُ او ښكار د هغه كس دی كوم چي يې ونيسي وَكَذَا الْبَيْضُ او همداسي هګۍ ده [يعني د هګۍ هم دغه حكم دی] لِأَنَّهُ أَصْلُ الصَّيْدِ ځكه چي هګۍ د ښكار اصل [بنياد] ده وَلِهَذَا يَجِبُ الْجَزَاءُ عَلَى الْمُحْرِمِ بِكَسْرِهِ أَوْ شَيِّهِ او له همدې كبله پر محرم [حاجي] د هګۍ په ماتولو يا په سره كولو [كبابولو] سره جزاء واجبېږي وَصَاحِبُ الْأَرْضِ لَمْ يُعِدَّ أَرْضَهُ او د ځمكي خاوند خپله ځمكه د دې مقصد لپاره تياره كړې نه ده فَصَارَ كَنَصْبِ شَبَكَةٍ لِلْجَفَافِ نو دا داسي سو لكه د وچېدلو لپاره جال درول [غوړول] وَكَمَا إِذَا دَخَلَ الصَّيْدُ دَارَهُ او [داسي سو] لكه د يو سړي كور ته چي ښكار [مثلا مرغه] داخل سي أَوْ وَقَعَ مَا نُثِرَ مِنَ السُّكَّرِ وَالدَّرَاهِمِ فِي ثِيَابِهِ يا هغه خوږي او دراهم كوم چي [د شيريني لپاره] وپاشل سي د يو سړي په كپړه [او لمن] كي ولوېږي لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالَمْ يَكُفَّهُ أَوْ كَانَ مُسْتَعِدًّا لَهُ نو دا [خوږي او دراهم] د هغه سړي نه كيږي تر څو چي هغه خپله كپړه را ټوله نه كړي يا دا چي هغه د همدې لپاره تيار [ناست] وي [يعني د همدې مقصد لپاره يې خپله كپړه او لمن غوړولې وي] بِخِلَافِ مَا إِذَا عَسَّلَ النَّحْلُ فِي أَرْضِهِ په خلاف د هغه صورت كله چي مچمچۍ د يو چا په ځمكه كي شات وباسي [او جمع يې كړي] لِأَنَّهُ عُدَّ مِنْ أَنْزَالِهِ ځكه چي شات د ځمكي له حاصلاتو [پيداوار] څخه شمېرل كيږي فَيَمْلِكُهُ تَبَعًا لِأَرْضِهِ نو ځكه د ځمكي خاوند به د ځمكي

په متابعت کي د هغه هم مالک کيږي كَالشَّجَرِ النَّابِتِ فِيْهَا لکه هغه درخته کوم چي د هغه په ځمکه کي شنه سوې وي، وَالتُّرَابِ الْمُجْتَمِعِ فِي أَرْضِهِ بِجَرَيَانِ الْمَاءِ او لکه هغه خاوره کوم چي د اوبو بهېدلو په وجه د هغه په ځمکه کي جمع سوې وي.

**اللغات**: ﴿أفرخ﴾ د افعال ماضي ده: چيچي زېږول (چيچيان باسل)، ﴿باض﴾ د ضرب ماضي ده: هګۍ اچول، ﴿تكنّس﴾ د تفعّل ماضي ده: ځای جوړول، پناه ګاه جوړول (د هوسۍ لپاره استعماليږي)، هوسۍ په خپل ځای کي داخلېدل، ﴿ظبي﴾ هوسۍ، وسۍ، ﴿صيد﴾ ښکار، ﴿حيلة﴾ تدبير، چل، ﴿شيّه﴾ د ضرب مصدر دی: شَوٰى يَشْوِیُ شَيًّا: سور کول، کبابول (په اور کي پخول)، ﴿لم يُعِدّ﴾ د افعال د باب جحد صيغه ده، أَعَدَّ يُعِدُّ إِعْدَادًا: تيارول، چمتو کول، ﴿شبكة﴾ جال، ځال (کوم چي د مرغانو او حيوانانو د نيولو لپاره استعماليږي)، ﴿جفاف﴾ د ضرب مصدر دی: لوند شی وچېدل، ﴿نثر﴾ د نصر او ضرب د باب ماضي مجهوله ده: خورول (نشر کول)، پاشل، ﴿سكر﴾ بوره، مراد ځني له بورې څخه جوړ شيان دي يعني خوږي (مثلا چاکلېټ)، ﴿عسّل﴾ د تفعيل ماضي ده: عسل باسل (عسل جمع کول)، ﴿أنزال﴾ جمع د نُزْل او نُزُل ده: مراد ځني د ځمکي پيداوار دی (حاصلات، يعني هغه څه کوم چي په ځمکه کي را شنه کيږي، د ځمکي فصل)، ﴿نابت﴾ د نصر د باب فاعل دی: را شين سوی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د يو سړي په ځمکه کي يو مرغه بچي (چيچيان) وباسي يا هګۍ واچوي، يا هوسۍ د يو چا په ځمکه کي خپل د اوسېدلو ځای (پناه ګاه) جوړه کړي، او د ځمکي خاوند خپله ځمکه د همدې مقصد لپاره تيار کړې نه وي (يعني د ځمکي مالک خاص د دې مقصد لپاره خپله ځمکه نه وي پرې ايښې چي په هغه کي مرغان او حيوانان خپلي ځالګۍ او ځايونه جوړ کړي)، نو په دې صورت کي د ځمکي مالک د دغه مذکوره شيانو نه مالک کيږي، بلکي هر څوک چي هم اول هغه ونيسي نو هغه يې مالک کيږي؛ دليل دا دی چي دا مذکوره شيان د هر چا لپاره مباح (روا) دي او هغوی هيڅ مالک نسته، نو د هر چا لاس چي د هغوی نيولو ته وړانديتوب وکړي صرف هغه به د هغوی مالک کيږي.

دويم دليل دا دی چي دا شيان (يعني د مرغه چيچيان او هوسی) ښکار دي، او د ښکار په هکله د نبي ﷺ فرمان دا دی چي "اَلصَّيْدُ لِمَنْ أَخَذَهُ" يعني ښکار چي څوک ونيسي هغه د ښکار مالک کيږي، برابره ده هغه يې په يو حيله سره ونيسي يا بغير له حيلې يې ونيسي، يعني بغير له حيلې څخه د نيولو په صورت کي ښکار د "صيديت" له تعريف او د ښکار له نامه څخه نه وځي، بلکي په هر صورت کي هغه ښکار دی او د نيونکي لپاره مباح دی.

وكذا البيض إلخ: فرمايي کوم حکم چي د ښکار دی، هغه حکم يې د هگی هم دی؛ ځکه هگی که څه هم بذاتِ خود ښکار نه ده، لېکن د ښکار اصل او بنياد ده، همدا وجه ده که حاجي د احرام په حالت کي د حرم د ښکار هگی ماته کړي يا يې په اُور او اُوبو کي درسته پخه کړي نو پر ده هغسي جرمانه واجبيږي کوم چي پر ښکار کونکي محرم واجبيږي، نو معلومه سوه چي هگی هم د ښکار په حکم کي ده.

وصاحب الأرض إلخ: دا عبارت و دې طرف ته اشاره کوي چي که د ځمکي خاوند خپله ځمکه د دې مقصد لپاره تياره کړې وي (پرې ايښې وي) چي مرغان په هغه کي ځالگی جوړي کړي او په هغه کي بچي او هگی واچوي، يا په هغه کي هوسی او داسي نور خپل ځايونه جوړ کړي، نو په دې صورتِ کي فقط د ځمکي خاوند د هغه شيانو مالک کيږي، او بل هيڅوک د هغه نه مالک کيږي، بلکي د بل چا لپاره د هغه نيول او لاس وراچول هم جائز نه دي. ① ... د دې يو مثال دا دی لکه يو سړي چي خپل جال پرېولي او د وچېدلو لپاره يې وغوړوي، بيا ناڅاپه په هغه کي يو مرغه ونيول سي (ومنبلي)، نو کوم څوک چي هم اول دا مرغه ونيسي هغه د دې مالک کيږي. او که د جال خاوند خپل جال د وچېدلو لپاره نه وي غوړولی بلکي د ښکار لپاره يې غوړولی وي نو کوم مرغه چي په دې جال کي ونيول سي صرف د جال خاوند د هغه مالک کيږي، نه هغه کس کوم چي يې اول ونيسي.

② ... دويم مثال يې دا دی که د يو سړي په کور کي مرغه (يا مثلاً هوسی) ننوځي او د کور مالک په هغه خبر نه سي او په هغه پسي دروازه بنده کړي، نو د کور مالک د هغه نه مالک کيږي، بلکي څوک چي يې اول ونيسي هغه يې مالک کيږي. او که چيري مرغه کور ته ننوځي او د کور مالک په هغه خبر هم سي بيا دروازه او کړکی پسي بنده کړي، نو هغه يې مالک کيږي.

③ ... دريم مثال يې دا دی که څوک د شريني خوږي (مثلاً چاکلېټ) يا دراهم و پاشي او د يو سړي په لمن او کپړه کي ولوېږي، نو که دغه سړي خپله کپړه او لمن د همدې مقصد لپاره نه وي غوړولې او نه تر لوېدلو وروسته خپله کپړه او لمن را ټوله کړي، نو دا سړی د هغوی نه مالک کيږي.

ها! که چیرې هغه د همدې مقصد لپاره خپله کپړه غوړولې وي، یا یې د دغه مقصد لپاره نه وي غوړولې مګر کله چې خوړې یا دراهم د هغه په کپړه کې ولوېږي نو هغه خپله کپړه را ټوله کړي، نو په دغو دواړو صورتونو کې همدا کپړې والا د هغوی مالک کیږي، او د بل چا لپاره د هغه اخیستل مباح نه دي. همداسې په پورتنۍ مسئله کې به هم که ځمکه د مرغانو د بچو، هګیو او هوسیانو لپاره تیاره سوې نه وي نو د ځمکې خاوند به د هغوی نه مالک کیږي بلکې هر څوک چې یې اول ونیسي هغه به یې مالک کیږي، او که ځمکه د هغوی لپاره تیاره سوې وي (یعنې خاص د هغوی لپاره پرېښوول سوې وي) نو صرف د ځمکې خاوند به د هغوی مالک کیږي.

بخلاف العسل إلخ: د دې حاصل دا دی چې د شاتو مسئله له پورتنې حکم څخه جلا ده، نو که د یو چا په ځمکه کې مچمچۍ خپل ځای جوړ کړي او په هغه کې شات وباسي، نو صرف د ځمکې خاوند د هغوی مالک کیږي؛ ځکه شات داسې شی دی کوم چې د ځمکې له پیداوار او حاصلاتو څخه شمېرل کیږي؛ ځکه شات نه په هر ځای کې پیدا کیږي او نه له هرې غذا څخه جوړیږي، بلکې مچمچۍ یو مخصوص ګلان او مېوې څبېښې چې د هغه په وجه شات پیدا کیږي او بیا مچمچۍ هغه په یو مخصوص ځای کې جمع کوي. لهذا کله چې مچمچۍ د یو چا په ځمکه کې شات جمع کړل، نو معلومه سوه چې دا د هغه د ځمکې پیداوار دی، او کله چې شات د ځمکې پیداوار دی نو هغه به د ځمکې تابع وي او د ځمکې په متابعت کې به د هغه کس په ملکیت کې داخلیږي کوم چې د ځمکې مالک او خاوند وي. لکه په ځمکه کې شنه سوې درختې چې د ځمکې تابع کیږي او د ځمکې د خاوند په ملکیت کې داخلیږي، که څه هم هغه د خاوند له طرفه نه وي شنه کړل سوې. او لکه د یو چا کښت او ځمکې ته چې اوبه را رواني وي او د هغه په وجه په ځمکه کې خاورې جمع سي، نو هغه خاورې د ځمکې تابع کیږي او د ځمکې د خاوند په ملکیت کې داخلیږي؛ نو همداسې به دغه شات هم د ځمکې تابع وي او د ځمکې د خاوند په ملکیت کې به داخل وي.

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ، وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ،

وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ مُحَمَّدٍ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ أَجْمَعِيْنَ

